# ارمغان خوشحال

سره د مقدمے د

میاں سید رسول رساؔ

یونیورسټي بک ایجنسی
خیبر بازار
پیښور



دکتاب نوم ——— ارمغانِ خوشحال

مقدمه ——— سید رسول رسا

دچاپ کال ——— اول ځل : ۱۹۶۷ء

دوېم ځل : ۲۰۰۱ء

تعداد ——— یو زر (۱۰۰۰)

خرونکي — یونیورسټي بک ایجنسی خیبر بازار پېښور

چاپ ځائے — ماسټر پریس محله جنګی پېښور

# ترون



سرا یولن ها ول او سرا ولف کیرو

ته

چاچه دَ خوشحال خان خټک منتخب کلام

دَ انګریزي شعر په جامه کښې ننني، دُنیا ته

څرګند کړو ـ

رسا

# پیش لفظ

دَ نوښار دَ ادبی جرگے دَ انتظام دَ لاندِ په ۱۹۳۸ء کښے دَ خوشحال خان بابا په مزار، په اول ځل یوه جلسه، او مشاعره شوے وه. په دے غونډه کښے ما دَ خوشحال خان په شخصیت، دَ هغهٔ په فلسفهٔ حیات. او دَ هغهٔ په شاعرئ یوه لنډه شان مقاله لوستے وه. دَ دے مقالے ځنے اقتباسات په دے اوسنی مضمون کښے ځائے په ځائے ورکړے شوی دی.

دا هغه زمانه وه چه دَ فیرنګیانو شهنشاهیت بنهٔ په زور کښے وُو. او دَ فیرنګیانو دَ شهنشاهیت دَ سوری دَ لاندِ هندوانو دَ متحده هندوستان په اساس دَ مهاتما ګاندهی دَ قیادت دَ لاندِ، نهٔ یوازے دَ هندو شهنشاهیت دپاره مزکه تیاره وله، بلکه دَ عدم تشدد دَ فلسفهٔ حیات په نوم هغوئ لکه دَ یونان دَ "کوسلنډانِ قدیم" په شان دَ مسلمان قوم دَ خوئ بوئ بدلولو کوشش هم کولو. او شیرانو ته ئے دا تعلیم ورکولو چه دَ ګډے دَ وند دَ شیر دَ ژوند نه غوره او افضل دے. حالانکه روستو واقعاتو دا ثابته کړه چه دَ عدم تشدد دَ فلسفے لوئے قائد مهاتما ګاندهی خپله فلسفه، دَ هندو قوم دَ حیات دپاره ضروری او مفیده نهٔ ګڼړله، او هندو قوم ئے دَ دے فلسفے په عملی کولو مجبوروَل نهٔ غوښتل. دا صرف دَ فیرنګیانو دَ شهنشاهیت دَ لړے کولو، او دَ هندو شهنشاهیت دَ قائمولو دپارهٔ دَ هغهٔ سیاسی او کلتوری شاطرانه چال وُو. دَ آزادئ نه پس چه دَ هندو قوم اولنئ جګړه دَ مسلمان قوم سره په کشمیر راغله نو دَ عدم تشدد، دَ فلسفهٔ حیات نوی قائد مهاتما ګاندهی خپله فتوی ورکړه چه په کشمیر کښے هندوانو ته دَ مسلمانانو خلاف زور استعمالول ضروری دی.

زمونږ په ادبی مشاهیرو کښے، دَ هغه وخته سره خوشحال خان صرف یوه د سے

هسې تيره شوې وه چه دَ هغهٔ افکار او شاعري موږ دَ انګريز قوم دَ شهنشاهيت او دَ هندو قوم دَسياسي او کلتوري چالبازو خلاف په کاميابئ سره استعمالولې شول. چنانچه ما په خپله مقاله کښې دَ خوشحال خان مردانه او اسلامي فلسفهٔ حيات، دَ مهاتما دَ عدم تشدّد دَ زنانه فلسفهٔ حيات په ضد کښې دَ "پښتو او پښتون" دَ عنوان دَ لاندې په اختصار سره بيان کړه۔ او دَ انګريزي شهنشاهيت او دَ راتلونکي هندو شهنشاهيت دَ مخالفت په خيال، دَ هغهٔ په سياسي افکارو هم يوه لنډه شان تبصره اوکړه۔ او ورسره ورسره مې دَ هغهٔ دَ شاعرئ په عظمت، جامعيّت او تنوّع هم بحث اوکړو۔

دا زما په خوشحال خان په نثر کښې اولنے مضمون وُو۔ او دا هغه وخت ليکلے شوے او چاپ شوے وُو، چه دَ فيرنګيانو شهنشاهيت بنهٔ په زور کښې وُو۔ او دَ برصغير دَ آزادئ جنګ روان وُو۔ دَ آزادئ جنګ په آخر کښې په کاميابئ سره ختم شو۔ خودَ مهاتما ګاندهي دَ متحدهٔ هندوستان او متحده قوميت، سياسي او کلتوري شاطرانه چال ناکامه شو۔ دَ هغهٔ په مقابله کښې يو بل مردِ مجاهد راپاځيد وچه دَ قائد اعظم محمد علي جناح په نامهٔ مشهور دے۔ او دَ پاکستان دَ اسلامي جمهوريت معمار او پلار دے۔ هغه دَ ګاندهي سياست او فلسفه، دَ هندوستان دَ مسلمان ملت دپاره سمِ قاتل اوګڼړل او په آخر کښې ئے دَ زبردست انګريزي شهنشاهيت واکداران او دَ چلباز هندو سياست ليډران په دے مجبوره کړل چه آزاد هند په دوه برخو کښې اوويشي۔ يوه برخه دَ هندو، هندوستان شوه او بله برخه دَ هندوستان دَ مسلمان ملت خان ته يو آزاد او خود مختاره پاکستان شو۔ حقيقت کښې دَ پاکستان اسلامي رياست، دَ هغې زبردست تاريخي کشمکش ما حاصل دے چه په برصغير کښې دَ هندومت او دَ اسلام ترمينځه څهٔ کم وزيات زر کاله روان وُو۔ او په آخر کښې دَ هند دَ مسلمان ملت په فتح تمام شو، يعني پاکستان جوړ شو۔ چه دَ هند دَ مسلمانانو يو مشترکه آزاد، جمهوري اسلامي مملکت دے۔ او دَ برصغير دَ هر اصل او نسل دَ مسلمانانو ورکښې مساوي حيثيت او مساوي برخه ده۔ څوک ورکښې بادشاه او رعيت نشته۔ په دے کښې بنګالے، سندهے، پنجابے، بلوچے، پښتون او مهاجر په يو شان مساوي حقوق او مساوي حيثيت لري۔ او دَ مسلمانانو دَ ورورولئ او اخوت يوه ژوندئ نمونه او ژوندے مثال دے۔

دَ پاکستان دَ جوړيدو نه پس خُنے پښتو ليکونکو په خوشحال خان محققانه او جامع کتابونه ليکلي دي چه په دوئ کښے دَ دوست محمد خان کامل، خوشحال خان خټک اوَ مير عبدالصمد خان، خوشحال او اقبال کافي شهرت حاصل کړے دے. خو خُنے داسے پښتانه ليکوال هم شته، چه هغوئ دَ انګريزي شهنشاهيت په زمانه کښے دَ خوشحال خان نوم قدرے هم په خوله نه اخستو. خو اوس دَ خپلو خودغرضانه او غلط سياسي اغراضو دپاره خوشحال خان په رنګ رنګ ستائي. او نه يوازے دَ هغهٔ اشعار او افکار دَ پاکستان دَ آزاد اسلامي جمهوري رياست په خلاف استعمالوي - بلکه دَ هغهٔ اسلامي تعليمات او شاعري خلقوته په غلطه طريقه وړاندِ کوي. او هغه محض په طور دَ يو نسلي علمبردار او امام پيش کوي. او دَ خهٔ مخصوصو حالاتو په بناچه هغهٔ دَ مغلو دَ نسلي شهنشاهيت خلاف کومه مجاهده کړے ده. هغه تاريخي کشمکش، هغوئ اوس عمدًا دَ خوشحال خان په نوم، دَ پاکستان دَ جمهوري اسلامي سلطنت خلاف دَ نسلي پروپيګنډے په سلسله کښے استعمالوي - او دغه شان دَ پښتنو دَ ګمراه کولو کوشش کوي - او پښتانهٔ دَ خپل وطن او مملکت يعني پاکستان خلاف دَ خپلو ذاتي او خودغرضانه سياسي اغراضو دپاره اودرول او جنګول غواړي.

په دے وجه ما ضروري اوګنړله چه دَ خوشحال خان په شاعرئ بيا خهٔ اوليکم او دَ خوشحال خان دَ مغلو سره کشمکش او دَ هغهٔ تاريخي او ادبي شخصيت او دَ هغهٔ تعليمات، افکار، شاعري او فلسفهٔ حيات په صحيح طريقه لوستونکو ته وړاندِ کړم.

زهٔ دَ خپل دوست مياں فضل منان صاحب، مالک دَ يونيورسټي بک ايجنسي شکريه اداکوم چه هغوئ دَ ''ارمغانِ خوشحال'' دَ مقدمے، ترتيب او شرحے دپاره ما ته اووئيل - او ما ته ئے دا موقع راکړه چه دَ خوشحال خان شخصيت او شاعري يو ځل بيا شائقينو ته پيش کړم.

سيد رسول رَسا
۳۰/ ريس کورس کارټرز
پښاور کينټ

# دَخوشحال خان شخصیت او شاعري

## دَخوشحال علاقه، دَخوشحال زمانه او دَهغې زمانې

## تاریخي پس منظر

دَخوشحال خان ختک دَ اوسیدو ځائے یوه داسے علاقه ده چه دَ وسطِ ایشیا اودَ وسطِ ایشیا دَ خواوُ شا علاقونه چه دَ هند و پاکستان په نیم قارهٔ دَ زمانهٔ قدیم نه کوم حمله کونکي راتلل نو هم په دغه علاقه به تیریدل او هم دغه ئے لار وه - دَخیبر نه تر اټکه پورے چه کومه علاقه پرته ده دا دَ هند و پاکستان دَ براعظمګي دروازه ده. او په دے وجه دے علاقے، اودَ دے علاقے خلقو، دَ هندوستان څهٔ چه دَ ایشیا په تاریخ جوړولو کښے اهم کارکړے دے. دَ وسطِ ایشیا نه آریه په دے لار هندوستان ته راغلي دي - دَ وسطِ ایشیا اودَ وسطِ ایشیا دَ خواوُ شا دَ علاقے نور قومونه لکه کوشانیان، تورانیان، ایرانیان، هُن او منګول وغیره هم په دے لار تیر شوي دي - دَ دُنیا لوئے لوئے فاتحان لکه سکندر، محمودِ غزنوی، شهاب الدین غوري، چنګیز خان، تیمور لنګ، بابر، نادرشاه افشار او احمدشاه ابدالي وغیره هم په دے لار هند ته تلي دي -

دَدے وجه دا وه چه دَ هندوستان دپارهٔ دَ همالیٔ غر په شمال او شمال مشرق کښے دَ یو قدرتي فصیل کار ورکولو - او په همالیه راتیریدل دَ پخوانو حمله کونکو دپاره تقریبًا ناممکن وُو. صرف دَ هندوستان په شمال مغرب کښے خو داسے قدرتي درے وے چه په دغه درو هندوستان ته راتلل آسان وُو - او حمله کونکو به هم دغه درے استعمالولے - اودَ سندهٔ، پنجاب اوګنګا زرخیزے میداني علاقے به ئے په خپل تسلط کښے راوستے او حکومت به ئے پرے کولو - هندوستان دَ سروزرو مرغئ وه - او هرچا به غوښتل چه دا مرغئ په خپله قبضه کښے راولي. اودَ هندوستان دَ زرخیز وطن دَ زرعي او معدني خزانو مالک شي -

دَ مغلو دَ زمانے نه وړاندِ په هندوستان، په سوونو کاله دَ پښتنو حکومت تیر

شوی وُو۔ او دا حکومت صرف دَ پښتنو یو لوئے قبیلے او دَ هغے قبیلے مختلف شاخونو کړے دے۔ غوریان، خلجیان او لودیان ټول غلجیان وُو۔ بلکه په بابر پسے چه څۀ لږه موده سوریانو کوم حکومت کړے دے، دا هم غلجیان وُو۔ په هند څۀ چه په ایران هم چه دَ پښتنو څۀ لږه موده حکومت پاتے شوے دے نو هغه هم هوتکو کړے دے چه دَ غلجیانو یو شاخ دے۔ دَ دے نه علاوه دَ غزنویانو د پاره هم په هر میدان کښے توره غلجیانو کړے ده۔

خوشحال خان خټک دَ ډهلی دَ بادشاهانو یوه ورکوټے تاریخچه په یوه قصیده کښے داسے ورکړے ده۔ دَ دے قصیدے اولنے شعر دا دے:۔

دَ ډهلی دَ شهر ښۀ شان و شوکت وُو
لور په لور ئے ښکلے ښکلے عمارت وُو

په دے قصیده کښے خوشحال وائی چه بابر هم دَ پښتنو په برکت دَ ډهلی تخت اونیوُو۔ یو طرف ته خو دَ بابر په فوځ کښے ډیر پښتانۀ شامل وُو او بل طرف ته بابر دَ پښتنو دَ تربورولئ او جګړو نه فائده واخسته۔ دولت خان لودی ئے دَ ځان سره کړو او دَ هغۀ په امداد ئے ابراهیم لودی ته دَ پانی پت په میدان کښے شکست ورکړو۔ دا جنګ په تاریخ کښے دَ پانی پت دَ اول جنګ په نامۀ یادیږی چه په کال ۱۵۲۷ء کښے شوے دے۔ ابراهیم لودی خپله هم په دے جنګ کښے قتل شو۔ او دغه شان بابر په هند دَ پښتنو دَ حکومت خاتمه اوکړه۔ او دَ مغلو حکومت ئے قائم کړو۔

مغل دَ وسطِ ایشیا خلق وُو۔ او دَ مغلو دَ حکومت دپاره دا لازمی وه چه دَ خپل وطن سره قومی رابطه اوساتی۔ ځکه چه دوئ ته دَ وطن دَ اعتباری لښکرو او فوځیانو هر وخت ضرورت وُو۔ او دوئ ته دا کومک او دا امداد هله رسیدے شو چه دَ هندوستان او خراسان ترمینځه بادشاهی لار ئے خلاصه ساتلے او په دے لار ئے مکمل تسلط وے۔ دا لار دَ زمانهٔ قدیم نه دَ اټک په خواؤ شا کښے تیریدله۔ دَ لنډی او دَ اباسین دَ مقام اتصال نه لر په بره په ژمی کښے په اباسین تیریدل آسان دی۔ په دے وجه دَ شمال مغرب نه چه دَ هندوستان دَ فتح کولو دپاره به فاتحان راتلل نو هغوئ به په ژمی کښے اټک ته ځان رسولو۔ او دَ اټک په خواوشا کښے به دَ اباسین نه پورے وتل او دَ هندوستان په لوری به تلل۔

مغل شهنشاه اکبر چه په اول ځل اټک ته راغے او د اټک په اهمیت پوهـ شو نو دلته ئے د یوے مضبوطے قلا د جوړولو حکم ورکړو چه تراوسه پورے محکمه ولاړه ده- او د اکبر بادشاه د قلا په نوم یادیږی-

د اټک د خواؤ شا علاقه هغه اهمه علاقه ده چرته چه خوشحال خانؒ ختک اوسیدو- او خوشحال خان ختک چه په کومه زمانه کښے اوسیدو، د هغے زمانے یو مختصر تاریخی پس منظر په لنډو کښے ما د تمهید په طور ځکه بیان کړو چه لوستونکو ته د مغلو او د پښتنو د تاریخی کشمکش متعلق څهٔ لږ ډیر معلومات د اول نه حاصل شی- او د دے معلوماتو په رڼړا کښے د خوشحال خان ختک د تاریخی کردار او شخصیت صحیح جائزه واخلی-

# د خوشحال خان ختک خاندان

د کوهاټ ضلع د ختکو کور دے- یعنی د ختکو لویه حصه په کوهاټ پرته ده- په کوهاټ کښے د ختکو دوه لوئے شاخونه دی- یو بولاق او بل تری- د خوشحال ختک د غور نیکهٔ نوم اکوړے ؤو- دے تری ختک ؤو- د ملک اکوړی په زمانه کښے هم د ختکو لویه حصه په کوهاټ پرته وه- خو ملک اکوړے خپله د کوهاټ نه راغلو او د اټک په خواؤشا کښے د هغے بادشاهی لاره په غاړه آباد شو، کومه چه د اټک نه په نوښار پیښور ته تلے ده- او اوس په جرنیلی سړک یادیږی- داسے معلومیږی چه په هغه زمانه کښے هم د نوښار او اټک ترمینځه ختک آباد ؤو- او د دے ختکو او هغه ختکو کوم چه د ملک اکوړی سره د کوهاټ نه راغلی ؤو، اکوړے مشر شو- ملک اکوړی د سرائے په نوم د مغلو د بادشاهی سړک په غاړه یو کلے آباد کړو، چه ترننه پورے آباد دے- او د سرائے اکوړی په نوم مشهور دے- خوشحال خان په بندی خانه کښے د خپل غور نیکهٔ د کلی، یعنی د سرائے اکوړی تعریف داسے کوی:-

رحمت په اکوړی چه ئے اونیوؤ ځائے د سرائے
چه بنهٔ فهم ئے وکړے باور وکړه ځائے دے ځائے
الخ..........

اکبر بادشاه چه په دویم ځل د روه د کوهستاني علاقې په لوري راغلو نو دغهٔ جرنیل مان سنګه او نورو معتمد یو ورسره د ملک اکوړي پېژندګلوي اوکړه. ملک اکوړے د کوهاټ د ټیري نه راغلے ؤو. مان سنګه بادشاه ته اوویل چه دا ملک په دې علاقه کښې یو بارسوخه سړے دے. اوکهٔ بادشاه سلامت دهٔ ته د اټک او پېښور ترمینځه د بادشاهي سړک حفاظت حواله کړي نو دا کار به ډېر په ښه طریقه سرته اورسوي. په دې زمانه کښې یوسفزو به د اټک په بادشاهي لار چاپاؤنه وهل او قافلې به ئې لوټلې. او په سړک امن نهٔ ؤو. بادشاه ته او ویلے شول چه چونکه د ملک اکوړي او د هغهٔ د قبیلې د یوسفزو سره عداوت دے په دے وجه د خپل ذاتي او قبائیلي اغراضو سرته د رسولو دپاره به هم ملک اکوړے په اخلاص سره د سړک حفاظت کوي. بادشاه او منله او ملک اکوړي ته ئې د نوښار او اټک ترمینځه علاقه په طور د جاګیر ورکړه. د دے نه علاوه ملک اکوړي ته په بادشاهي لار د محصول ټولولو حق هم ورکړے شو. په تاریخ کښې د ملک اکوړي د شهرت سره په اول ځل د خټک قبیلې نوم هم یاد شو. ګني ترا وسه پورے دا قبیله دومره په ګمنامۍ کښې پرته وه چه بابر په بابرنامه کښې د پښتنو د ټولولو قبیلو ذکر کړے دے خو خټک ئې ورکښې نهٔ دي یاد کړي.

د ملک اکوړي د ځوئے نوم یحیٰ خان ؤو او د یحیٰ خان ځوئے شهباز خان ؤو. او خوشحال خان د شهباز خان ځوئے ؤو. خوشحال خان خپل پلار او نیکونه په یوه قصیده کښې داسې ستائیلي دي:

پلار مې شهباز خان په سخاوت لکه حاتم ؤو / زړهٔ ئې د زمري په توره تېرؤو تر رستمه
ټینګ ولاړ په شرعه تلې کارؤو په رښتیا کښې / خط سواد ئې نهٔ ؤو نور دانا ؤو له فهمه
خو به نیکهٔ ستایم یحیٰ خان جنت ئې ځائے شه / روغ لکه یوسف ؤو درست تر سره تر قدمه
بل سړے که سور وې دے پیاده سره به سم ؤو / قد قامت ئې هومره د مړانې چار پرے تمه

بل نیکهٔ خو ملک اکوړ چه په خټک کښې
دهٔ راوړه دا بخره د لوئي مقدمه

## د یوسفزو او خټکو ترمینځه د قبائیلي جنګونو بنیاد

داسې معلومیږي چه د ملک اکوړي نه وړاندې د خټکو څوک سر نهٔ ؤو. ملک اکوړي چه سرائے آباد کړو. او په دے علاقه کښې میشته شونو د خټکو تورزن او مدبّر مشر

پیدا شو- دَ خټکو خپله علاقه اوچوبه او غرنیزه ده- دوئ ته ضرورت وُو، او دَ دوئ خواهش دُو چه دَ سیند نه پورے دَ مندړو او یوسفزو نه ځهٔ مزکه رالاندِ کړی. او هلته آباد شی. دَ دے دپاره دَ یوسفزو او دَ خټکو ترمینځه به همیشه خونړی قبائیلی جنګونه کیدل.

ملک اکوړی ته چه بادشاهی حمایت حاصل شو نو دا جنګونه نور هم تیز شول- یوخوا مغلو داغونښتل چه پښتانهٔ سره خپلو کښے په جنګ کړی نو دوئ به ورنه خلاص شی- دَ دے غرض دپارهٔ دوئ دَ خپلو زړو دښمنانو یعنی یوسفزو خلاف خټک استعمالول شروع کړل او بل خوا ته خټکو بادشاهی حمایت دَ یوسفزو سره په قبائیلی جنګونو کښے غنیمت اوګڼلو او دغه شان دَ یوسفزو او دَ خټکو ترمینځه سخته پریوته-

دَ بابر دَ زمانے راسے، بلکه دَ هغهٔ نه وړاندِ هم په پښتنو کښے دَ مغلو قدیمی دښمنان یوسفزی وُو- او په ټولو پښتنو کښے دَ یوسفزو قبیله ډیره سرتیره، آزادی پسنده او بهادرهٔ مشهورهٔ وه- په هند کښے دَ مغلو دَ حکومت بانی مبانی ظهیرالدین بابر په یوسفزو خپلے تنزئ شلولے وے خو دَ دوئ په مطیع کولو کښے نهٔ وُو کامیاب شوے- او اوس دَ هغهٔ دَ نمسی مغل اعظم شهنشاه جلال الدین اکبر چه دَ هند په تخت ئے دَ ۱۵۵۶ئ نه تر ۱۶۰۵ئ پورے حکومت کړے دے دَ اقتدار نه مانه وه- او هغهٔ دا اراده کړے وه چه کوم کار دَ هغهٔ پلار نیکهٔ نه، نهٔ وُو شوے، هغه سرته اورسئ- یعنی یوسفزی خپل رعیت کړی- او دَ یوسف زو آزادی سلب کړی- اکبر په اول ځل اټک ته خپل ناسکه ورور مرزا حکیم چه دَ کابل ګورنر وُو- او دَ اکبر نه باغی شوے وُو، په تعاقب کښے په ۱۵۸۱ئ کښے راغلے وُو-

دا دَ جون میاشت وه- او دَ جون جولائی په میاشت کښے یوخوا ته کهٔ دَ اټک شا وُخوا ته علاقه ګرم تنور شی نو بل خوا ته اباسین هم بنهٔ او خیژی او بورے وتل پرے ګران شی- دَ اکبر فوځونه پنځوس ورځے په اټک معطل شول- اکبر دَ اټک په اهمیت پوه شو او بیربل ته ئے اووئیل چه دلته یوه مضبوطه قلا تعمیر کړه-

اکبر په اول ځل په دے سفر کښے خیبر هم اولیدو او په خیبر کښے په اول ځل ارت، خوشحال سړک ئے هم جوړ کړو-

دَ اکبر جرنیل مان سنګھ دَ مرزا حکیم او دَ هغهٔ دَ ترهٔ فریدون فوځونو ته دَ کابل سره نزدے دوه ځله شکست ورکړو- او اکبر په ۹، اګست کال ۱۵۸۱ئ کښے دَ خپل نیکهٔ بابر

زېږېدو ورتيري ښار کښې داخل شو - خوشحاله لږه موده پس خپله د کابل نه راستون شو. او د کابل تخت ئې خپلې خور بخت النساء ته حواله کړو او هغې بياخپل - ورور مرزا حکيم ته دوباره اوسپارلو -

## په پېښور کښې د روښنيانو تحريک او مغل

د کابل نه په واپسئ کښې اکبر ته په اټک يو ه کچه خوله ږ مځې څلي پيش کړے شو. د دے څلمی عمر په دے وخت کښې صرف څوارلس کاله وُو. اکبر ته او وئيلے شول چه دا څلمے د مغلو د تاج او تخت خطرناک دښمن دے - او په بادشاهی علاقه کښې امن خرابوی. خو اکبر د څلمے معاف کړو - او د بند نه ئې آزاد کړو -

دا څلمے د روښنيه تحريک د باني مباني بايزيد انصاري پنځم ځوئ جلال الدين وُو چه پښتنو کښې په جلاله مشهور دے - بايزيد انصاري څوک وُو؟ دهٔ په پښتنو کښې کوم مذهبی تحريک چلولے دے؟ او دهٔ د مغلو خلاف د آزادئ کوم جنګونه کړی دی؟

د دے سوالونو د جواب دپاره د روښنيه تحريک يو مختصر بيان به دلته بے ځايه نهٔ وی - بايزيد انصاري د مشرقی پنجاب په جالندهر نوم ښار کښې په سنه ۱۵۲۵ء کښې پيدا شوے وُو. د دهٔ مور پلار د کاني ګرم ووچه د محسودو په علاقه کښې يو لوئ او مشهور کلے دے. د بايزيد د پلار نوم عبدالله وُو - د بايزيد د پيدائش نه وروسته د دهٔ مور پلار کاني ګرم ته واپس راغلل - او بايزيد خپله کاني ګرم کښې لوئ شو - کاني ګرم کښې تراوسه زياته آبادی د اورمړو ده - او تراوسه د کاني ګرم ، اورمړ او ورمړی ژبه وائی -

د بايزيد پلار به ځان ته انصاري نهٔ وے خو بايزيد د خپل خاندان د ومبنے سړے وُو چه ځان ئې په انصاري مشهور کړو - شايد دا په دے وجه چه خلقو کښې خپل عزت او وقار زيات کړی چه ګنی د دوئ خاندان د عربو نه راغلے دے - او دوئ د مدينے د مشهور انصارو اولاد دے - له دے قسمه واقعات په مسلمانانو کښې عام دی - د هرے علاقے مسلمانان کوشش کوی چه په څهٔ چل د عربو سره خپله رشته اوجنګوی - ځکه چه عالم اسلام کښې د عربو د مشهور وخاندانونو او قبيلو ډير قدر دے - چونکه هر سړے په خپل ماحول او معاشره کښې عزت او قدر غواړی نو ډير هوښيار خلقو ز ر ځان په سيد شو: قريشيانو، فاروقيانو، صديقيانو او ميان ګانو وغيره مشهور کړی - او خپله شجره

بدله کړی۔ په افغانستان کښے دَ نورستانیا نو پوره قبیله، چه اول په کافرو مشهوره وه اوس ځان ته قریش وائی۔

خیر دا جمله معترضه وه خو معلومیږی داچه بایزید انصاری که پښتون نهٔ وُو نو شاید چه اورمړ خو ضرور وُو۔ او په اورمړو کښے دَ ښهٔ خاندان نه وُو۔ او انصاری خطاب ئے ځان ته ځکه غوره کړو چه په خلقو کښے ئے لږ قدر او عزت زیات شی لکه پښتون چه لږ موړ شی نو بیا ځان دَ مغلو په خطاب "خان" مشهور کړی۔ ځکه چه خان دَ پښتون په مقابله کښے دَ عزت تکے دے۔ دَ بایزید روښنیه تحریک دَ هغهٔ خپل پلار عبدالله هم خوښ نهٔ کړو۔ او دَ پلار او دَ ځوئے خپلو کښے سخت جنګ اوشو۔ چه په دے جنګ کښے بایزید سخت زخمی شو۔ او څهٔ موده پس ئے خپل وطن پریښود و۔ او ننګرهار کښے ئے دَ مهمندو سره پناه واخسته۔ روښنیه تحریک دَ مهمندو نه رو رو خلیلو او دَ هشتنګر په محمد زو کښے خور شو۔

په ابتدا کښے روښنیه تحریک په یوسفزو کښے هم زور نیولے وُو خو دلته دَ پیر بابا مریدانو دَ بایزید سخت مخالفت شروع کړو۔ دَ بایزید په مقابله کښے اخون درویزه بابا اودریدو۔ بایزید ئے دَ پیر روښن په ځائے په پیر تاریک مشهور کړو۔ او په یوسفزو کښے ئے تقریباً دَ بایزید تحریک ختم کړو۔ بایزید اوس دَ تیراه مخه اوکړه۔ تیراه کښے بایزید پیروړ او نیولو۔ آفریدی، بنګش، اورکزی، خلیل او مهمند دَ بایزید دَ جنډے لاندِ جمع شول۔ او دے مذهبی تحریک اوس سیاسی شکل اختیار کړو۔ بایزید دَ پښتنو په علاقه کښے دَ مغلو دَ شهنشاهیت ختمولو دپاره آواز اوچت کړو۔ او دَ پښتنو څو قبیلے دَ بایزید هم خیال شولے۔ اکبر خپله هم په هندوستان کښے دَ یو نوی مذهب علمبردار وُو چه دا مذهب دَ مسلمانانو په نزد دَ الحاد دویم نوم وُو۔ خو اکبر به ورته دینِ الٰهی وے۔ او بایزید چه په زړو عقائدو کښے یو نوے لار ایستے وه۔ او دَ دهٔ دا نوے مذهبی تحریک هم عام مسلمانانو ښهٔ نهٔ ګنړلو، دَ اکبر په مقابله کښے اودریدو۔ او دَ مغلو مقابلے ته تیار شو۔ دَ کابل دَ ګورنر دَ میرزا حکیم تر ځ فریدون بایزید ګرفتار کړو او په هغهٔ ئے دَ مرتد الزام اولګولو۔ خو بایزید دَ خپلے نوے عقیدے نه انکاری شو او دَ زړے مسلمانئ اقرار ئے اوکړو۔ فریدون هغه پریښود۔ شاید چه په دے وجه چه قبائیلو کښے بغاوت اونشی۔ خو بایزید چه تیراه ته واپس شو نو په مغلو ئے اعلانیه چپاوونه شروع کړل او په کامیابئ سره۔ خو آخر په

ننګرهار کښې د اوسنی جلال آباد سره نژدې د مغلو سره په یو خونړۍ جنګ کښې قتل شو. په دې جنګ کښې د مغلو جرنیل محسن خان ؤو. او په دغه جنګ کښې د روښنیه قبائلو ډیر نقصان شوې ؤو. خو دا په حقیقت کښې د شهنشاه اکبر د بابری مغلو خلاف د پښتنو په خپل وطن کښې اولنۍ جنګ ؤو. بایزید او د بایزید د جانشینو تر ډیره پورې د پښتنو په علاقه غرق اثر پاتې شوې دې. بایزید او د هغه جانشین، د پښتنو د یو څو قبیلو منلی شوی مشران پاتې شوی دی. او دوئ د امشری په پیرو مریدۍ، هوښیارۍ او حکمت عملی سره کړې ده. بایزید او د بایزید خاندان همیشه د مغلو مخالفت کړې دې او په پښتنو کښې ئې د مغلو د شهنشاهیت خلاف د آزادۍ روح برقرار ساتلې دې.

د بایزید د نوې عقیدې او د روښنیه تحریک روح روان د وحدت الوجود مسئله وه چه موجد ئې د سپین محی الدّین ثانی ؤو چه په ابن العربی مشهور دې. او هغه دا خیال د افلاطون د نظریهٔ امثال نه اخذ کړې ؤو. خو دا مسئله حقیقت کښې د نظریهٔ امثال نقل نهٔ ؤو البته یو نوې شکل ئې ضرور ؤو. د وحدت الوجود مسئله د عجمی تصرف بنیاد ګ. چه د مسلمانانو په زړهٔ او دماغ ئې د ژوند په ځائې جمود خور کړې دې.

بایزید د وحدت الوجود په مسئله کښې تصرف اوکړو او د دې مسئلې سره ئې د بدهـ د انتقال روح یا تناسخ مسئله ګډه کړه. او خان ئې خالق ته مشیر له پیش کړو.

خپلو مریدانو ته به ئې تلقین کولو چه کوم خلقو ته شما د نوی او صحیح تعلیم تو سره نهٔ ده حاصله، هغه ګمراهان دی. د هغوئ قتل روا دے. او جائداد ئے مال غنیمت دے. لوټل ئے پکار دی. شاید چه په دے وجه او ځنې د مغلو نه د نفرت په وجه ځنې قبائل د بایزید مریدان شول او په مغلو ئے ناتار جوړ کړو.

د بایزید مشهور تصنیف خیرالبیان دے چه اوس ئے پښتو کښې محبت پکوی عجیبه خبره ده چه خوشحال خان خټک د بایزید د عقائدو یا سیاسی تحریک په باره یا مخالفت کښې له هیڅ قسمه، جامع تنقید یا تحسین په نظم یا په نثر کښې نهٔ دے پریښے. حالانکه بایزید د خوشحال خان زمانې ته ډیر نژدې ؤو. د په سیاسی هو د خوشحال خان هم خیال ؤو. خو خوشحال خان د بایزید د عقائدو نه مخالف ؤو. د ګړه په د

دے شعر نه ئے معلومیږی چه

زړهٔ دَ درویزه غونډِ ایمان بنائیم و دهٔ ته
دے دَ پیر روښان غونډِ دَ کفر که تلقین

دَ بایزید دَ وفات نه پس په یوسفزو کښے دَ هغهٔ دَ اولاد خلاف دَ نفرت جذبه تر دے حده خوره شوه چه دَ حمزه ملک دَ سردارئ دَ لانډِ دَ ټوپئ کلی سره نزدے دَ روښنیانو او یوسفزو سخت جنګ اوشو۔ روښنیانو شکست اوخوړو ۔ دَ بایزید درے ځامن شیخ عمر، خیرالدین او نورالدین قتل شول او جلاله په جنګ کښے بدبد زخمی شو۔ یوسفزو ژوندے اونیولو خو دَ هغهٔ دَ کم عمرئ لحاظ ئے اوکړو۔ قتل ئے نکړو۔ البته دَ اکبر بادشاه په حضور کښے ئے لاس نیولے پیش کړو او لکه څنګه چه مونږ وړاندِ عرض کړے دے، اکبر هغه معاف کړو او آزاد ئے کړو۔ اکبر بادشاه چه په کال ۱۵۸۶ء کښے دوباره اټک ته راغے نو بیربل دَ اټک قلا تیاره کړے وه۔ دلته هغه دیره شو او خبر شو چه مان سنګهـ دَ مرزا حکیم ځامن مطیع کړل۔ مرزا حکیم خپله په کال ۱۵۸۵ء کښے وفات شوے ؤو۔ خو دَ مرزا حکیم تره فریدون ئے دَ مطیع کولو نه پس نظربند کړو۔ او بیا څهٔ موده پس ئے مکے ته اولیږلو۔ خو اکبر چه داخل حقیقت کښے دَ کشمیر دَ فتح کولو په خاطر راغلے ؤو هغهٔ ته معلومه شوه چه کشمیر او کابل فتح کول خو آسان دی ځکه چه دا دواړه ځایونه هغهٔ فتح کړل ولے دَ پښتنو سرحدی قبائل فتح کول ګران کار دے۔ په خیبر کښے قبائیل دَ اکبر دَ فوځونو په مقابله کښے جلاله اودرؤلے ؤو۔ هغه جلاله چه اکبر معاف کړے ؤو۔ دَ جلاله په لښکر کښے آفریدی، مهمند او خلیل شامل ؤو۔

دَ بایزید اولاد دَ اکبر او دَ جهانګیر هغه ټولے منصوبے ګډے وډے کړے کومے چه دوئ وخت په وخت دَ قبائیلو دَ مطیع کولو دپاره کړے وے۔ او قبائیل ئے دَ مغلو دَ پنجے نه آزاد اوساتل۔ اکبر چه دَ اټک په قلا ډیره ؤو نو دَ ځنے قبائیلی مشرانو یوه جرګه ورته راغله چه ور کښے خلیل مهمند وغیره شامل ؤو۔ او ورته ئے دَ یوسفزو او مندړو خلاف شکایت اوکړو۔ چه دوئ بادشاهی لاره لوټی۔ او بدنامه ئے مونږ ته راځی۔ تر څو پورے چه دَ یوسفزو ګوشمالی اونشی، په بادشاهی لاره هیڅرے امن نهٔ شی قائمیدے۔

شايد چه دا جرګه دَ اکبر په وينا راغلې وه ځکه چه يوسفزو ته سزا ورکول دا اول سرنه د هغهٔ پروګرام کښې شامل ؤو۔ او هغهٔ په يوسفزو دَ حملې دپاره د محض يوه بانه لټوله۔

اکبر دَ زين خان، بيربل او حکيم ابوالفتح په مشرئ کښې چه د يوسفزو دکوشملئ دپاره کوم بادشاهي لښکرا وليږلو او دَ دې لښکر چه څهٔ حال شو هغه يوه اهمه تاريخي واقعه ده۔ دَ بونير دَ کړ سره نږدې په کړ په کښې بادشاهي فوځ يوسفزو داسې راګير کړو چه دَ مغلو اتهٔ زره فوځ تباه شو۔ بيربل په جنګ کښې قتل شو۔ او حکيم ابوالفتح او زين خان په مشکله، دوه پښې خپلې ۔ دوه پردئ په تيښته ځان خلاص کړو۔ او دَ وهلې زپلې فوځ سره اټک ته راا ووتل۔ او بادشاه ئې دَ شکست نه خبر کړو۔ دا دَ مغلو دَ يوسفزو په علاقه کښې يو تاريخي شکست دے۔ دَ دې شکست په وجه دَ يوسفزو په علاقه کښې دَ مغلو ټول منصوبې نيمګړې پاتې شوې۔

اکبر بيا اراده کړې وه چه يوسفزو ته او جلاله ته سزا ورکړي۔ دَ يوسفزو خوځ نور هيڅ وران نهٔ کړے شول۔ البته په سمه کښې ئې يو څو قلاګانې جوړې کړې او په جلاله پسې ئې ډيرې حملې اوکړې خو هغه ئې بندي نهٔ کړے شو۔۔۔ ويلې شي چه په کال ۱۵۹۲ د کښې بادشاهي فوځونو څوارلس زره تاريکيان اونيول۔ جلاله خپله غزني طرفته وتښتيدهٔ او دَ غزني په ښار ئې حمله اوکړه۔ او ښار ئې اولوټلو او ډير مال درته په لاس ورغلو خو دَ هٔ چه دا مال په غلا را ايستو نو په هزاره دارې مارو باندې پيښ شو او دَ هغوئ سره په جنګ کښې په يوه ګولئ اولګيدو او مړ شو۔ خو دَ روښنيانو دَ مغلو خلاف تحريک دَ جلاله دَ مرګ نه پس هم جاري ؤو۔ او دَ مغل شهنشاه جهانګير دپاره دردِ سر ؤو۔

دَ اکبر بادشاه دَ يوسفزو خلاف په جنګونو کښې خټکو ته دا فائده اورسيدهٔ چه ملک اکوړي او دَ هغهٔ جانشينو دَ مندنړوا و يوسفزو کاني علاقه لاندِ کړه۔ او دَ کا ښتنک دَ غرونو خواؤ شا دَ سوات په سرحد دَ خټکو ډيرکلی آباد شول۔ دا علاقه دَ بائيزو په نامهٔ مشهوره ده۔ او دَ يوسفزو او دَ مندنړو دَ علاقې په مقام اتصال پرته ده، او د مندنړ دَ يوسفزو نه بيلوي۔

دَ خوشحال خان تر زمانې پورې دَ مغلو سره چه دَ يوسفزو، مندنړو او دَ پښتنو نورو قبيلو کوم جنګونه کړي دي په دې جنګونو کښې خټک هميشه دَ مغلو په طرف جنګيدو

دی۔ او دَ یوسفزو خلاف په جنګونو کښے دَ خوشحال خان غور نیکۀ اکوړے ، نیکۀ یحیی خان او پلار شهباز خان په قول دَ خوشحال خان درے واړه شهیدان شوی دی۔ خوشحال خان وائی ـــه

پلار نیکۀ مې شهیدان وګورته تللی
پُښت په پُښت مې هنر دادے آل په آل

دَ یوسفزو سره جنګونه خوشحال خان ته په میراث کښے پاتے شوی وُو۔ دَ خوشحال خان خاندان دَ مغلو دَ لاسه جوړ وُو۔ او پلار په نیکۀ دَ مغلو جاګیرداران راغلی وُو۔ دَ مغلو سره وفاداری او دَ یوسفزو سره دښمنی هغۀ ته په سررشته کښے پاتے وه۔

ځنګه چه وړاندِ ذکر شوے دے دَ خوشحال خان غور نیکۀ ملک اکوړے چه دَ ټیری نه اټک ته راغلے وُو۔ دَ کوهاټ دَ خټکو دَ تری خانګے نه وُو۔ دَ مغل شهنشاه اکبر جاګیردار وُو او دَ باد شاه سره ئے دَ شپاړسمے صدئ په روستئ نیمائی کښے ملاقات شوے وُو هغه وخت چه اکبر په ۱۵۸۶ء کښے په دویم ځل په اټک دیره شوے وُو۔

ملک اکوړے دَ مغلو وفادار او دَ یوسفزو دښمن وُو۔ داسے معلومیږی چه تر څو اکبر ژوندے وُو ملک اکوړے هم ژوندے وُو۔ اکبر په ۱۶۰۵ء کښے وفات شو او هغۀ پسے دَ هغۀ ځوے مغل شهنشاه نورالدین جهانګیر په تخت کښیناستو۔ دَ کال ۱۶۰۵ء نه یعنی دَ اکبر دَ مرګ نه تر ۱۷۰۷ء پورے یعنی دَ اورنګ زیب دَ مرګه پورے تقریبًا څۀ دیا سل کاله کیږی۔ په دے زمانه کښے یو خوا دَ مغلو بادشاهان جهانګیر، شاهجهان او اورنګزیب برسرِاقتدار وُو او بل خوا ته دَ خوشحال خان نیکۀ یحیی خان، پلار شهباز خان او خوشحال خان خپله دَ خټک قبیلے مشران وُو۔ دَ خوشحال خان پلار نیکۀ لکه دَ خوشحال خان دَ غور نیکۀ په شان دَ مغلو وفادار او دَ یوسفزو دښمنان وُو۔ او خوشحال خان خپله هم دَ بند نه وړاندِ دَ مغلو وفادار وُو او دَ یوسفزو دښمن۔ خو دَ بند نه روستو هغه دَ مغلو دښمن او دَ یوسفزو سره دَ روغے خواهان او دَ هغوئ نه دَ امداد طلبګار وُو۔

خوشحال خان دَ جهانګیر بادشاه په زمانه کښے په کال ۱۶۱۳ء کښے په سرائے اکوړی کښے زیږیدلے وُو۔ خوشحال خان لا دَ دیارلسو کالو هلک وُو چه دَ خپل پلار شهباز خان سره ئے دَ یوسفزو خلاف په یو جنګ کښے شمولیت اوکړو۔ په دے جنګ کښے دَ یوسفزو مشر بهاکو خان وُو۔ دا جنګ دَ سرائے اکوړی نه پنځه میله لرے دَ جهانګیری کلی کښے شوے وُو۔

په دې جنګ کښې خټکو ماته کړې وه.

په کال ۱۶۴۰ء کښې شهباز خان په یوسفزو باندې حمله اوکړه. په دې جنګ کښې هم خوشحال خان د پلار سره ؤو. دا جنګ د توروماړ یارو سره نزدې شوې ؤو. په دې جنګ کښې شهباز خان سخت زخمي شو. خوشحال خان هم زخمي شو. خټکو ماتې اوکړه. او شهباز خان د پنځوسو کالو په عمر کښې په ۱۶۴۱ء کښې وفات شو.

خوشحال خان چونکه د پلار مشر ځوئے ؤو نو د پلار د وفات نه پس د خپلې قبيلې په صلاح او مشوره سره، د خټکو سردار او مشر شو. هغه اول کار دا اوکړو چه په یوسفزو ئے د پلار د بدل اخستو په خاطر حمله اوکړه. د طوروماړ یارو په خوا کښې د خټکو او یوسفزو تر مینځه سخت جنګ اوشو. په دې جنګ کښې خټکو برې بیا موندو. او یوسفزو ماتې اوکړه. خوشحال خان د خپل پلار بدل واخستو او یوسفزو ته ئے سخت نقصان اورسولو.

د پلار د وفات نه پس خوشحال خان قام مشر کړے ؤو خو اوس په کال ۱۶۴۱ء شاه جهان بادشاه هم د یو فرمانِ شاهي په ذریعه خوشحال خان د خټک قوم سردار او منلو. او د بادشاهي سړک حفاظت ئے ورته اوسپارلو.

# خوشحال خان او شاهجهان

د جهانګير په زمانه کښې خوشحال خان هلک ؤو. چه جهانګير وفات شو نو د خوشحال خان عمر ایله څوارلس کاله ؤو. په دے وجه د جهانګير متعلق چه خوشحال خان څۀ ویلي دي هغه شاید چه د خپل پلار نه ئے آوریدلي دي. د جهانګير سره د خوشحال خان خپله هیڅ معامله نۀ ده راغلې. د هغۀ د جهانګير سره له هیڅ قسمه تعلقات نۀ ؤو. خو د خلقو نه چه ئے څۀ خبرې آوریدلے دے د هغې په حواله وائي چه د جهانګير په زمانه کښې هند جنت ؤو. لکه چه وائي ے

بیا له پسه جهانګیر د اکبر څو یه
چه د دۀ په دور هند لکه جنت ؤو

خوشاهجهان، خوشحال خان خپله پیژندلو. د شاهجهان سره د هغۀ ملاقاتونه شوي ؤو. او د شاهجهان په ډیرو جنګونو کښې هغۀ خپله حصه اخستې وه او د مغلو د طرفه

دَ مغلو دَ مخالفو سره جنګيدلے وو۔ او بادشاهي خدمات ئے ډير په اخلاص سره کړي وُو۔ هغه شاهجهان ته قدردان وائي۔ او دَ شاهجهان ډير مدّاح دے۔ لکه چه وائي ؎

دَ هغه دور بادشاه وُو قدردان شاهجهان
دَ ښلا ځائے و ما راکړو پرے اوس شومه حکمران

شاهجهان چه خوشحال خان دَ خټکو سردار او منلو، نو خوشحال خان دهلی ته لاړو او دَ اصالت خان او امانت خان په ذريعه چه شاهي دربار کښے محترم اميران وُو۔ خپل خدمات ئے بادشاه ته پيش کړل۔ په دغه ورځو کښے دَ کانګړے راجه جګت سنګهه دَ بادشاه نه باغي شوے وُو۔ بادشاه جګت سنګهه ته دَ سزا ورکولو دپاره دَ خپل کشر ځوئے مراد بخش دَ کمان دَ لاندِ يو قوی فوځ اوليږلو۔

په تاراګړهه دَ حملے کولو دپاره مراد بخش، دَ دربار دوه معتمد اميران يعنی بهادر خان او اصالت خان مقرر کړل۔ خوشحال خان دَ دوئ سره دَ قلا په تسخير کښے حصه واخسته او بنهٔ په بهادرئ سره ئے جنګ اوکړو۔ قلعه فتح شوه۔ او خوشحال خان ته دَ خپلو خدماتو په عوض کښے شاهي خلعت عطا کړے شو۔ او جاګير ئے هم زيات شو۔

په کال ۱۶۴۵ء کښے چه دَ بلخ او بدخشان مهم شروع شو۔ او شهزاده مراد بخش چه دَ يو لوئے فوځ سره دَ بدخشان دَ مهم سرکولو دپاره بادشاهاه را اوليږلو نو خوشحال خان هم په دے مهم کښے شامل شو۔ او لکه دَ تاراګړهه دَ محاذ ئے دَ بهادر خان او اصالت خان په مشرئ کښے دَ ستائينے وړ خدمتونه اوکړل۔

په کال ۱۶۴۹ء کښے چه شاهجهان بادشاه خپله دَ قندهار دَ مهم سرته دَ رسولو دپاره په اټک راپورے وتو او کابل ته تلو نو خوشحال خان ئے استقبال اوکړو۔ او چه بادشاه کابل ته اورسيدو نو خوشحال خان ئے په دربار کښے حاضر شو۔ او دَ يوسفزو دَ کشالے ذکر ئے ورسره اوکړو۔ بادشاه دَ يوسفزو دَ ملک انتظام خوشحال خان ته اوسپارلو او دَ لنډی سيند پورے غاړه قطب طرف ته دَ يوسفزو په علاقه کښے يو خو کلی ئے خوشحال خان ته په جاګير کښے ورکړل۔

يوسفزی په دے جاګير ډير خفه شول او خپل مشر بهاکو خان ئے دهلی ته اوليږلو چه دَ بادشاه په دربار کښے پيش شی۔ او خپل فرياد اوکړی۔ بهاکو خان چه دهلی ته

اورسیدو نو دَ شاهجهان دَ مشرځوئې دارا شکوه حمایت ورته حاصل شو. او هغهٔ خپل پلاد شاه جهان ته خواست اوکړو چه یوسفزی او بخښئ او ورپسې ئې زیاته کړه چه دَ خوشحال خان نه دِ دَ یوسفزو دَ کلو جاګیر واخستې شي. او بهاکو خان ته دِ ورکړې شي. شاه جهان دَ دارا شکوه خبره اومنله. دَ یوسفزو دَ علاقې جاګیرې دَ خوشحال خان نه واخستو، او بهاکو خان ته ئې ورکړو.

دا دَ مغلو په دربار کښې دَ یوسفزو. دَ خټکو خلاف اولنۍ کامیابي وه. حقیقت دا دے چه دَ خوشحال خان خاندان دَ مغلو حمایت خکه کولو چه دوئ دَ خټکو سرداران او مشران وُو. او دَ خټکو دَ یوسفزو سره قبائیلي جګړې چه مونږ ئې دَ لنډی سیند پورې غاړه، دَ یوسفزو په علاقه قبضه کول وُو، دَ ابتدا نه را روانې وې. دَ یوسفزو دَ مغلوسره دَ بابر دَ زمانې راسې جګړې کیدلې خو دَ اکبر په زمانه کښې چه دا جګړې تیزې شوې نو خټکو دَ یوسفزو په مقابله کښې بادشاهي پشتي کتله، چه یوسفزی دَ بادشاهي زور په ذریعه اووهي او دَ سیند پورې علاقه کښې ځان ته ځائې او مزکه پیدا کړي. دَ خوشحال خان غور نیکهٔ ملک اکوړې په دے پالیسۍ کښې کامیاب شوے وُو. او دَ اکبر بادشاه حمایت ورته حاصل شوے وُو. دَ اکبر فوځونو چه دَ غرهٔ دَ یوسفزو دَ لاسه بد بد شکست اوخوړلو او په دے جنګ کښې بیربل قتل شو. نو اکبر دَ سمے یوسفزو ته دَ سزا ورکولو اراده اوکړه. او خټکو دَ بادشاه دَ دے روئیے نه فائده واخسته او دَ لنډی سیند قطب طرف ته په سمه کښې ئې خپل کلی آباد کړل چه اوس دا علاقه دَ بانړو په نوم یادیږي. دَ دے په وجه دَ خټکو او یوسفزو بین القبائیلي جګړې لا نورې تیزې شوې. او دَ دوئ دښمنی پخه شوه. چه دا دښمني پوره سل کاله پاتے شوه. یعنې دَ اکبر دَ زمانې نه دَ اورنګ زیب تر زمانې پورې. او دے دښمنۍ هله اړخ واړولو چه دَ خوشحال خان دَ مغل بادشاه اورنګ زیب سره پس له بندهٔ پریوته. دَ خټکو او یوسفزو په دے جګړو کښې لکه ښکله چه معلومه ده، دَ مغلو دا پالیسي وه چه خټک دَ خپلو دښمنانو یوسفزو خلاف دَ خپلو بادشاهي مفادو دپاره استعمال کړي. او دَ خټکو دا پالیسي وه چه دَ مغلو طاقت او اثر رسوخ، دَ خپلو دښمنانو یوسفزو خلاف دَ خپلو قبائیلي مفادو په حمایت کښې حاصل کړي. دَ اکبر نه تر اورنګ زیب پورې دَ مغلو او دَ خټکو، دَ یوسفزو خلاف یوه پره وه. ځکه چه یوسفزی دَ دواړو دښمنان وُو. او دَ دښمن دښمنان اکثر خپلو کښې دوستان وي. په دے وجه دَ اکبر نه تر اورنګ زیب پورې په پښتنو کښې، دَ

مغلو خلاف چه کومه ډله جنګیدله، دَ دے قیادت دَ یوسفزو په لاس کښے وُو۔ او په پښتنو
کښے دَ مغلو په پره کښے چه کومه ډله جنګیدله دَ دے مشران خټک وُو۔ دَ خوشحال خان غور
نیکهٔ، نیکهٔ او پلار درے واړهٔ دَ یوسفزو سره په جنګونو کښے مړهٔ شوی دی۔ نو له دے کبله دَ
خوشحال خان دَ یوسفزو سرهٔ تاریخی دښمنی وه او یوسفزو دَ مغلو حکومت ته سر نهٔ کښیښو.
خو دَ شاه جهان په زمانه کښے لکه دَ بهاکوخان او دَ دارا شکوه دَ ملاقات نه چه ظاهره وه،
یوسفزی مجبور شول چه خپله پالیسی بدله کړی۔ یوسفزو دَ خټکو سرهٔ خو خپل عداوت بحال
اوساتلو خو کوشش ئے اوکړو چه دَ مغلو سرهٔ صلح اوکړی۔ او په دے صلح کښے دا مصلحت وُو
چه دَ خټکو دَ قبضے نه خپله علاقه بچ کړی۔

دا سے معلومیږی چه مغلو هم په دے زمانه کښے یوسفزو طرفته خپله رویه څهٔ لږه
ډیره بدله کړه۔ او دارا شکوه خیال اوکړو چه دښمن کهٔ په کوره مری نو په نورو ئے څهٔ ته
وژنے۔ کهٔ یوسفزی بغیر دَ جنګ نه، دَ خټکو دَ ویرے تسلیم کیږی، او دَ مغلو متابعت کوی نو دَ
یوسفزو دا رویه دَ مغلو دَ شهنشاهیت په نفع تمامیږی. په دے وجه هغهٔ په بهاکوخان
احسان اوکړو۔ دَ خوشحال خان دَ یوسفزو دَ علاقے جاګیرے ختم کړه او دائے دَ یوسفزو
مشر بهاکوخان ته ورکړو۔ ځکه چه دَ دارا شکوه خیال وُو چه خټک خو هسے هم دَ مغلو په
جیب کښے دی۔ یوسفزی رضا کول پکار دی۔ او دا سے معلومیږی چه خوشحال خان هم
په دے خبره څهٔ بداونهٔ منل۔ هغهٔ دَ شاه جهان خدمت هم هغه شان په راستئ کولو
خو په زړهٔ کښے دَ دارا شکوه دښمن شو۔

خوشحال خان چه دَ جهانګیر او دَ شاه جهان په صفت نهٔ مړیږی نو دَ دے دا مطلب
نهٔ دے چه ګوندِ دَ جهانګیر او شاه جهان په زمانه کښے دَ مغلو رویه، پښتنو طرف ته په
مجموعی حیثیت بدله شوے وه۔ یا دَ پښتنو په رویه کښے من حیث القوم او ملت، مغلو
طرف ته څهٔ فرق راغلے وُو۔ دَ دواړو قومونو تاریخی دښمنی بحال وه۔ صرف دَ مغلو
زور وُو۔ او پښتانهٔ نفاق او خانه جنګیانو کمزوری کړی وُو۔ په دے وجه دَ مغلو
حکومت ئے نهٔ شوا ړولے۔ البته چه کله نا کله موقع بهٔ ورته په لاس ورغله نو دَ مغلو خبر به
ئے واخستو. خوشحال خان دَ جهانګیر او دَ شاه جهان ځکه تعریف کوی چه دوئ دَ خوشحال خان دَ
کورنئ او قبیلے سرهٔ ښهٔ سلوک کولو۔ او دَ یوسفزو په مقابله کښے به ئے دَ خټکو پره کوله۔ په دے

وجه خوشحال خان دَ دوئ نه خوشحال وُو۔

## خوشحال خان او اورنگ زیب!

په کال ۱۶۵۷ء کښې شاه جهان نا روغ شو. او دَ سلطنت دَ کار روزګار نه پاتې شو۔ دَ بادشاه دَ علالت په وجه دَ هغهٔ په ځامنو کښې دَ تخت نشینئ دپاره جنګونه شروع شول۔ دا جنګونه په کال ۱۶۵۸ء کښې ښهٔ تیز شول۔ مشر شهزاده دَ داراشکوه. او شهزاده شجاع ځان ځان ته دَ تخت او تاج حاصلولو دپاره جنګیدل. او اورنګ زیب او کشر شهزاده مراد بخش سره ملګری وُو۔ دَ شاه جهان ټول سلطنت په دې جنګونو کښې برخې برخې شو۔ هرځائې پرې جنګې جوړې شوې خو آخر دَ شهزادګانو په دې جنګونو کښې اورنګ زیب کامیاب شو۔

اورنګ زیب خپل پلار شاه جهان چه دَ مشر ځوئې داراشکوه طرفدار وُو، دَ آګرې په قلا کښې نظربند کړو۔ داراشکوه او مراد بخش ئې اووژل. او شجاع ئې داسې ورک کړو چه هیڅ پته ئې اونهٔ لګیده چه څهٔ شو۔

دَ اورنګ زیب دپاره اوس میدان صفا وُو۔ هغه بادشاه شو او دَ عالمګیر لقب ئې اختیار کړو۔ دا کال ۱۶۵۹ء وُو۔

دَ تخت نشینئ دَ جنګونو په دوران کښې دَ یوسفزو مشر بهاکو خان، دَ شهزاده داراشکوه ملګرې وُو۔ داراشکوه خوشحال هم خپل هم خیال کول غوښتل. خو خوشحال خان اونهٔ منله. او دَ بهاکو خان لښکر چه دَ داراشکوه دَ استقبال دپاره دَ اباسین په غاړه جمع شوې وُو په هغهٔ ئې حمله اوکړه او هغه ئې تس نس کړو۔ دغه شان شهزاده داراشکوه دَ یوسفزو په علاقه کښې په پناه اخستلو کښې کامیاب نهٔ شو۔ دَ تخت نشینئ په جنګونو کښې چه خوشحال خان دَ اورنګ زیب کوم خدمات حاصل کړی وُو۔ دَ دغې خدماتو په بنا اورنګ زیب چه دَ مغلو دَ تاج او تخت مالک شو او دَ دهلی په تخت کیناستو نو خوشحال خان ته ئې لکه دَ خپل پلار شاه جهان په شان دَ ختکو سرداری او دَ بادشاهی لارې حفاظت او سپارلو او یو ځل بیا خوشحال خان دَ یوسفزو په مقابله کښې دَ مغل بادشاه منظور نظر شو۔

په دې زمانه کښې مهابت خان دَ کابل دَ صوبې ګورنر وُو. ....

گورنرئ ډ لاندِ وُو. دا هغه مهابت خان دے چه په پېښور ښار کښې ډ ډهٔ یادګار ډ مهابت خان جماعت دے. اودے ډ علي مردان خان ځوئے وُوچه ډ صفويانو په دربار کښې مشهور اميروُو او ډ صفويانوله طرفه ډ قندهار ګورنر وُو خو صفويانو سره ئے تکي اوکړه او قندهار ئے شاجهان ته حواله کړو.

خوشحال خان ډ مهابت خان منظورِ نظر وُو. خو په کال ۱۶۶۱ء کښې مهابت خان دکن ته بدل کړے شواو ډ هغهٔ په ځائے سيد امير ډ کابل صوبه دار مقرر شو. په پېښور کښې ډ سيد امير نائب عبدالرحيم وُو. ډ دے تبديلو سره ډ خوشحال خان ډ تقدير ستورے هم ګردش کښې راغے، داسے معلومیږی چه ډ سيد امير او عبدالرحيم، ډ ختټکو او ډ يوسفزو په جګړو کښې ډ داراشکوه پاليسي خوښه وه او ډ ختټکو په مقابله کښې ډ يوسفزو امداد ته آماده شول. او ډ بهاکوخان مرسته ئے اوکړه.

ډ اورنګ په تخت نشينئ پسے نوروشاهي فرمان جاری شو. دا فرمان ډ راهدارئ ډ محصول ډ معافئ دپاره وُو. او ډ سرحدي علاقو نه علاوه په درست مملکت حاوی وُو. خو په سرحدي علاقو کښې ډ مخصوص حالاتو په بنا ډ دے فرمان نفاذ نهٔ وُو شوے. عبدالرحيم ډ سيد امير په صلاح او ډ بادشاه په اجازت اوس ډ دے فرمان ډ نفاذ اجازت ډ سرحدي علاقو دپاره هم واخستو. او ډ پلار ډ نيکهٔ ډ وخته چه خوشحال خان ته په اټک ډ راهدارئ ډ محصول اخستو کوم اجازت مغل بادشاهانو ورکړے وُو هغه منسوخ شو. او دغه شان ډ خوشحال خان په وقار او آمدنئ کښې فرق راغلو. ډ خوشحال خان په دے حکم نوره ډير خفه شو. خو په خولهٔ ئے هيڅ اونهٔ وئيل. او هم هغه شان ئے ډ مغل بادشاه خدمت په رښتئ کولو. خو دا حکم په حقيقت کښې ډ يوسازش نتيجه وه. چه په دے کښې ډ خوشحال خان ډ خپل خاندان ځنې افراد هم شامل وُو. او دا ډ خوشحال خان ډ ګرفتارئ دپاره يوه بهانه وه.

بهاکوخان چه په کومه ورځ په ډهلي کښې داراشکوه سره کتلي وُو ډ هغې ورځې نه ډ ډهلي په دربار کښې ډ خوشحال خان وقار کم شوے وُو. او ډ مغلو په ذمه وارو افسرانو کښې دا خيال پيدا شوے وُو چه ختټکو ډيره موده ډ شاهي طاقت نه استفاده اوکړه او ډ شاهي طاقت په زور ئے ډ خپلو دښمنانو يوسفزو نه مزکه هم لاندِ کړه او هغوئ ئے ذليل

هم کړل - او بله دا چه ختکو حقیقت کښې خپل دښمنان بادشاهی دښمنان ګرځولی دی - او ناحق ئے مغل او یوسفزی خپلو کښې اچولی دی - او دوئ په قلار ناست دی مزے کوی - یکار ده چه مغل بادشاهان دا پالیسی بدله کړی - او د هغه قبائیلو سره دوستانه تعلقات جوړ کړی کوم چه د ختکو نه زیات زوردار دی - او د مغلو تاج او تخت دپاره زیات خطرناک دی - که د ختکو په ځائے دغه قبائیل حکومت خپل کړی نو دا د حکومت دپاره زیاته فائده منده خبره ده - داسے معلومیږی چه سید امیر او عبدالرحیم هم د دغه تولی د افسرانو نه وُو -

سید امیر چه د عبدالرحیم په وینا د بادشاه نه دا اجازت واخستو چه د راهدار د محصول د ممانعت دپاره د سختے پالیسئ نه کار اخستل یکار دی - او کوم سردارن چه د دے پالیسئ مخالفت کوی هغوئ سره سخت سلوک کول ضروری دی نو خوشحال پسے په ۱۰۷۴ سنه کښې حکم اولیږلو چه پیښور ته راشه او ما سره اووینه - خوشحال خان د حکم تعمیل اوکړو - پیښور ته راغلو او هلته مغل ګورنر ګرفتار کړو - او په هتکړو او بیړو کښې ئے دهلی ته روان کړو - په دے وخت کښې د خوشحال خان عمر یو پنځوس کاله وُو -

خوشحال خان د راجپوتانے د جے پور ښار سره نزدے د رنتهنبور په قلا کښې قریباً دوه نیم کاله قید تیر کړو - او بیا آګرے ته راوستے شو - او هلته آزاد کړے شو - او بیا د آګرے نه دهلی ته راغلو، خو وطن ته د راتلو اجازت ورته نهٔ وُو - او دهلی کښې هم یو قسم ته بندی وُو چه خانه نشین ورته وائی -

خوشحال خان دا ټول واقعات د یو اوږد ترکیب بند - ذوالقافیتین په شکل کښې په تفصیل سره لیکلی دی - دا ترکیب بند د دے بیت نه شروع کیږی -

خهٔ د بد و خوب ؤو چه م اولید و سحر
ستړے م رنځورے کړے نا قرار شوم په بستر

په دے ترکیب بند کښې خوشحال د خپلو نیولو واقعه، دهلی ته د بوتلو قصه او په قید کښې د مصیبتونو، غمونو او سختو واقعات په تفصیل سره بیان کړی دی - د دے نه علاوه خوشحال خان چه د پیښور نه تر دهلی پورے د بادشاهی لارے کومے نښانے، یعنی د کلو او د ځایونو نومونه ورکړی دی - د هغے نه معلومیږی چه دا بادشاهی لار په هغه زمانه

کښې هم تقریباً دغه وه، کومه چه نن ورځ په جرنیلی سړک یادیږی. دَ دے ترکیب بند نه علاوه دَ هند دَ قید په دوران کښې خوشحال خان نور هم ډیر نظمونه، غزلونه، قطعات او قصیدے لیکلی دی. په دے شعرونو کښې په وطن پسے ارمان، دَ خپلو مصیبتونو حال، دَ دوستانو او خپلوانو په فراق کښې ستا یئنے او دَ مغلونه دَ نفرت اظهار بیا موندے شی. او داسے معلومیږی چه خوشحال خان دَ قید په دوران کښې، دَ مغلوٗ دَ مخالفت او دَ مغلونه دَ انتقام اخستو اراده پخه کړے وه. دا لاندِ اشعار دَ نمونے په طور ملاحظه کړئ.

پس له بنده دے دا عزم — دَ خوشحال دَ خاطر جزم
یا نیولے مخ مکے ته — یا مغلو سره رزم
یا یو کُنج دَ غرهٔ نیولے
نمونځ، روژه دَ لوستو بزم

خوشحال خان دَ اورنګ زیب خلاف چه کوم اشعار لیکلی دی، دا اشعار هم شاید چه دَ قید و بند دَ ورځو یادګار دے. تقریباً په شلو نظمونو، غزلونو، قطعاتو او قصیدو وغیره کښې خوشحال خان، اورنګ زیب ته په شاعرانه طرز کښې بد رد وئیلی دی. او دَ زړهٔ بړاس ئے ویستے دے. دَ دے اشعارو دا نمونے دَ لوستو دی:

تفاوت دَ خپل پردی ورباندِ نشته — کهٔ ئے ګورے اورنګ زیب بادشاه ګمراه دے
دَ اورنګ بادشاه په دور آرام نشته — چا وئیل چه جهان خانے دَ آرام ګاه دے
لکه مخ د پاسه تور سیاه لیدهٔ شی — اندرون ئے هغه هسے تور سیاه دے
کهٔ ئے نیت وته ئے ګورے یو یزید دے
کهٔ طاعت وته ئے ګورے اهل الله دے

را معلوم شو دَ اورنګ عدل و انصاف — دَ دهٔ بنه مسلمانی بنهٔ اعتکاف
سکه رونړه وار په وار واړه وژلی — پلار په بند کښې اچولے په مصاف
کهٔ هزار ځله خوګ سروهی په مزکه — یا په صوم ترشمعٔ وروَلی ناف
خو دِ نیت دَ بنهٔ عمل سره جوړ نهٔ شی — عبادت، طاعت درے واړه دی خلاف
چه دَ ژبے لار یوه دَ زړهٔ ئے بله — په چاړهٔ ئے شو ځیګر شګاف شګاف
ماردَ تن د پاسه بنهٔ بنائسته روغ دے — وے نه اندرون لری ناصاف

مړنے په کرده ډیر وئیل ئے لږ وی　　　　د نامردو لږ عمل وی ډیرئے لاف

که دلے دَخوشحال لاس په غلام نشته
دَ قیامت په ورځ ئے خدائے مکړه معاف

سید امیر تراوۀ کاله پورے دَ کابل دَ صوبے، صوبه دار پاتے شو. خو په دے دوران کښے دَ دے علاقے امن ورځ تر ورځ خرابیدو. او په مغلو به ځائے په ځائے چپے وهلے کیدلے.

دَ خوشحال خان په هند کښے دَ نظربندئ په دوران کښے په کال ۱۶۶۷ء کښے یوسفزی بیا باغی شول. مغلو دا بغاوت په ډیرو مشکلو ختم کړو. خو بادشاه غوښتل چه یو داسے سړے دَ کابل صوبه دار مقرر کړی، چه په حالاتو قابو بیاموی. بادشاه په دے حقله خپله دَ خوشحال خان نه صلاح واخسته او آخر په کال ۱۶۶۸ء کښے بادشاه سید میر لرے کړو. او دَ هغۀ په ځائے ئے مهابت خان په دویم ځل دَ کابل صوبه دار مقرر کړو.

مهابت خان دَ خوشحال خان دپاره هم سفارش اوکړو چه په وطن دِ آزاد شی. بادشاه دَ مهابت خان سفارش اومنلو او خوشحال خان یو ځل بیا وطن ته دَ مهابت خان سره راغے. خو دَ قید نه پس چه کوم خوشحال خان وطن ته راغلے وُو، دا هغه خوشحال خان نۀ وُو کوم چه دَ مغلو دَ قید نه اول مونږ لیدلے وُو. په دے خوشحال خان او هغه خوشحال خان کښے دَ مزکے او دَ آسمان فرق دے. دَ قید نه پس خوشحال خان هغه مشهور، معروف، غیرتی، ننګیالے پښتون سردار او لیډر دے چه پښتانۀ ئے په صفت نۀ مړیږی. او دَ پښتون په تاریخ کښے ئے ځان ته یو مستقل ځائے پیدا کړے دے.

مهابت خان چه په دویم ځل دَ کابل صوبه دار مقرر کړے شو نو بادشاه هغۀ ته اووئیل چه دَ یوسفزو دَ علاقے خاطرخواه انتظام او بندوبست وکړه. مهابت خان په دے سلسله کښے خوشحال خان، دَ یوسفزو خلاف حسبِ معمول استعمالول غوښتل. او ورته ئے اووئیل چه هزاری منصب او دَ یوسفزو سرداری واخله. خو دَ یوسفزو په علاقه کښے په لنګرکوټ کښے چه بادشاه کومه قلاجوړول غواړی، دَ هغے په جوړولو کښے بادشاهی فوځونو سره تعاون او امداد اوکړه. خو خوشحال خان انکار وکړو او مهابت خان ته ئے مشوره ورکړه چه دا قلاجوړول پکار نۀ دی. خوشحال خان مهابت خان ته دا هم ووئے چه ځما دَ قید په دوران کښے بادشاه حکم کړے وُو چه ځما بال بچ دِ هم بندی کړے شی. دَ هغه په دے

طور دِ دهلی ته اولیږلے شی. او څما بال بچ ته چه پته اولګیده چه بادشاه هغوی دهلی ته لیږی، نو خپله علاقه ئے پریښوه او دَ یوسفزو په علاقه کښے ئے پناه واخسته. اوس دَ دښمنئ یوسفزو هغوته پناه ورکړه. او ډیر په قدر او عزت ئے اوساتل. زهٔ دَ یوسفزو دا احسان نهٔ شم هیرولے. مهابت خان پوهٔ شو چه دا هغه خوشحال خان نهٔ دے کوم چه دَ قید نه وړاندِ دَ مغلو خدمتګار او تابعدار وو. نو دَ خوشحال خان دَ امداد نه ئے طمع قطع شوه او دَ خوشحال خان دَ امداد نه بغیر ئے دَ لنګرکوټ قلاجوړه کړه. خوشحال خان په دے حقله وائی: ـ

لنګرکوټ مغلو ساز کړو زهٔ په ننګ بیا دَ افغان شوم

که یوسفزو کهٔ مندړ وُو زهٔ دَ دواړو نګهبان شوم

مهابت خان داخل ډیره موده دَ کابل صوبه دار پاتے نشو. دوه کاله پس یعنی په ۱۶۶۸ء کښے بدل شو. او دَ هغهٔ په ځائے دَ کابل ګورنر محمد امین خان مقرر شو. محمد امین خان دَ دے نه وړاندِ دَ کابل ګورنر پاتے شوے وُو. محمد امین دَ میرجمله ځوئے وُو. میرجمله په دکن کښے دَ ګولکنډے او سید وزیر وُو. او دَ لعلو نو سوداګر وُو. او ډیر مالدار او امیر سړے وُو.

محمد امین خان دَ اورنګ زیب معتمد او منظورِ نظر وُو. دَ اورنګ زیب خیال وُو چه محمد امین خان به دَ پښتنو شورش رفع دفع کړی. او په دے خیال، بادشاه هغه دَ کابل صوبه دار مقرر کړو. محمد امین خان دیانتدار خو مغروره او بدخویه سړے وُو. او هیڅ جرأت نهٔ شو کولے چه دَ هغهٔ دَ رائے مخالفت اوکړی.

دَ قید نه پس خوشحال خان مغلو ته په زړهٔ زړهٔ کښے یشیدلو. خو لاتر اوسه ئے څهٔ عملی قدم دَ مغلو خلاف نهٔ وُو اخستے. البته دَ مغلو دَ ملازمت نه لاس په سر شوے وُو.

## دَ خیبر جنګ او خوشحال خان، ایمل خان او دریا خان

دَ مغلو دَ کابل صوبه دار په اوړی کښے کابل کښے اوسیدو او په ژمی کښے به پېښور ته راکوزیدو. دا کال ۱۶۷۲ء وُو. دَ پسرلی موسم وُو. او دَ روه کوهستانونه دَ پسرلی په زیړو سرو ګلونو ګلزار وُو. دَ مغلو ګورنر محمد امین خان دَ معمول وخت نه لږ وړاندِ، دَ اوړی تیرولو دپاره دَ کابل په طرف روان شو.

قصه داوه چه په کنړ کښے یو څو مغلو سپاهیانو دَ یوے صافئ جینئ سره چیړلی وُو.

صافیانو په دے جینئ غیرت اوکړو او درے مغل سپاهیان ئے اووژل. دمغلو دکونړ حاکم حسین بیګ دَ صافیانو ملکان را وغوښتل، او ورنه ئے مطالبه اوکړه. چه دَ مقتولانو قاتلان سرکار ته حواله کړئ. ملکانو انکار اوکړو. اوس دَخواوشا دَنورو قبیلو ملکانانو ته حسین بیګ اووے چه صافیانو ته سزا ورکړئ. اوددوئ کلی او کورونه اوسیزئ او لوټ ئے کړئ. دَخواوشا دَقبیلو ملکانانو، دَخپلو جاګیرونو په خاطر. په ناخوالئ دَمغلو دَ امداد دپاره لښکر جمع کړو. خو په پټه ئے صافیانو ته خبر ورکړو چه تاسو دَ پښتو او ننګ کار کړے دے، په یو پښتنه ښځه مو غیرت خوړلے دے. زمونږ زړونه تاسو سره دے. مونږ دَمغلو په پره کښے دَمجبورئ نه لښکر جمع کړے دے.

حسین بیګ په صافیانو حمله اوکړه خو شکست ئے اوخوړو. او دَدے واقعے په وجه دَخواوشا ټول قبائل دَصافیانو په پره کښے اودَمغلو خلاف جنګ ته تیار شول.

حسین بیګ دَدے واقعے نه محمد امین خان خبر کړو. محمد امین خان ډیر سخت شو اودَ تاوه، دَوخت نه اول، دَاوړی تیرولو دپاره کابل ته روان شو. خیال ئے داؤو چه په لاره به دَصافیانو خبر هم واخلی. اوداسے سزا به ورکړی چه دَنورو پښتنو دپاره به مثال شی. اودرست پښتون قوم به پرے اوویریږی.

محمد امین خان دَیو لوئے لښکر سره، چه په دے لښکر کښے دَنورو پښتنو نه علاوه دَاورکزو ملکانان، خوشحال خان خټک اودَ مهمندو مستجاب خان ارباب هم شامل وُو. دَخیبر په طرف روان شو.

صافیان هم دَمحمد امین خان دَ ارادے نه خبر شوی وُو. هغوئ دَ مهمندو آفریدو او شینوارو نه دَپښتو او دَپښتون په نوم امداد اوغوښتو. هغوئ ټول دَپښتون دَننګ په نوم راپاسیدل. او مغلوته ئے خیبر اونیولو. دَپښتنو دَدے لښکر په ځامنو مشرک دوه مشهورو ملکانانو ایمل خان او دریاخان کوله. داهغه ایمل خان او دریاخان دی چه خوشحال خان ئے په صفت نه مړیږی. او په دیوان کښے دَدوئ دَ مړانے، شجاعت ننګ رښتونے دوستئ او پښتونولئ بیا بیا ذکر کوی. دَمغلو دَصوبه دَار محمد امین خان لښکر چه جمرود ته اورسیدو نو ورته پته اولګیده چه قبائیلو ورنه خیبر نیولے دے. هغوئ دَ پښتنو مشرانو نه صلاح واخسته چه څه کول پکار دی. خوشحال خان ورته ووے چه

ره پښتنو سره دَ جنګ کولو صلاح نهٔ ورکوم. خو محمد امین خان ورته پېغور ورکړو چه په قيد کښې وے نو ما به دَ خلاصی دپاره سفارشونه دِ کول. نو اوس ته څما مقابله کښې دَ پښتنو سره همدردی لرې. محمد امین خان چه دَ خوشحال خان خټک نه نااُميده شو نو دَ مهمندو مستجاب خان ارباب ئے سره دَ يو ے جرګے قبائيلو ته اوليږلو چه ورته اووائی چه لاره پرېږدی ګنی نتيجه به ئے دَ قبائيلو په حق کښې ښه نهٔ وی. قبائيلو دا دبګه او دا جرګه اونهٔ منله. او محمد امين خان لښکر ته حکم ورکړو چه په زور لار اوکړئ او قبائيلو ته سزا ورکړئ. دَ محمد امين خان لښکر ترعلی مسجده، په خير خيريت اورسيدو او تر لواړګی پورے ورته څهٔ لويه واقعه پيښه نهٔ شوه. خو چه لواړګی ته لښکر لنډی خانے طرف ته روان شو، نو دَ لواړګی او لنډی خانے ترمينځه په تنګی کښې پښتنو قبائيلو دَ مغلو فوځ راګير کړو. سړک ئے ورته دَاول نه بند کړے ؤو. او سړک کښې ئے ورته لوئے لوئے ډبرے او تيرے غورزولے وے. او کندے ئے کنستے وے. دا هغه ځائے دے چه دلته شنوارو او افريدو په ۱۹۳۶ء کښې پنډت نهرو هم راګير کړے ؤو.

محمد امين خان لښکر ته حکم ورکړو چه دَ جنګ دپاره صف آرائی اوکړئ. هاتيان دَ لښکر وړاندِ شول او حمله ئے اوکړه. پښتنو پرے دَ غرهٔ نه دَ کاڼو باران اوورولو. دَ مغلو لښکر ډير وارخطا شو. او ډير خلق ورکښې مړهٔ شول. مغل لښکر پسته نه شو. او قبائيل تورے په لاس دَ غره نه راکوز شول او لاس په لاس جنګ شروع شو. جنګ ټوله ورځ جاری ؤو. خو مغلو خان ته لاره اونهٔ کړے شوه.

اوس محمد امين خان ته چا صلاح ورکړه چه يوه بله لار هم شته په هغے به دَ لښکر پورے وتل آسان وی. دا لار دَ تاترے دَ ولے سره نزدے تيره شويده. او په دے وجه په دغه لار دَاو بوټهٔ کمے نشته. محمد امين خان دا صلاح اومنله، خو دا په حقيقت کښې چل ؤو. دَ محمد امين خان مات ګړ لښکر چه دَ تاترے په لار روان شو، نو لا بنهٔ په جال کښې ګير شو. او پښتنو قبائيلو تباه کړو.

محمد امين خان خپله په بڼه بڼه لار يو معتمد قبائيلی را وايستو. او پيښور ته ئے راورسولو. وئيلے شی چه دَ خيبر په جنګ کښې دَ مغل کلهم لښکر تباه شو. خو صرف محمد امين خان او دَ هغهٔ څلور ملګری دَ دے جنګ نه ژوندی پاتے شو. دا دَ مغل فوځ مکمل

شکست وُو ۔ او دَ پښتنو مکمل فتح ۔ دَ خیبر جنګ د مغلو ملا ماته کړه ۔ د مغلو لښکر، خزانه، اسونه، هاتیان، هرڅه تباه شول ۔ او دَ پښتنو لاس ته راغلل ۔ نور خو نور ۔ خپله د محمد امین خان ښځه، مور، خور او لور پښتنو او نیسولے ۔ او دَ محمد امین خان سره چه په منګر تیا کښے نور مغل افسران وُو ۔ دَ هغوئ زنانه هم پښتنو ته په لاس ورغلے ۔ مغلو ته دَ صافی جینی بے عزتی ګرانه پریوته ۔ او مغل ایله اوس دَ پښتنو دَ غیرت دَ جذبے نه خبر شول ۔ خو وخت تیر ؤ ۔ چه څهٔ کید ونکی وُو ۔ هغه شوی وُو ۔

څهٔ موده پس دَ محمد امین خان لور، خور او مور په رو پو خلاصے شوے خو دَ محمد امین خان ښځه دَ شرم نه واپس رانغله، او باقی ټول عمرئے دَ دُنیا نه کنارهٔ کشی اختیار کړه ۔ او هم په دغه کښے وفات شوه ۔

دَ خوشحال خان دَ اندازے مطابق، دَ خیبر په جنګ کښے دَ مغلو څلویښت زره فوځ تباه شوے وُو ۔ چه په دے کښے دَ محمد امین خان خوئے مرزا عبدالله او دَ خور خاوند مرزا سلطان کربلائی هم شامل وُو ۔ خوشحال خان وائی ؎

اول جنګ دَ لوهے شادَ تاترے وُو
چه څلویښت زره مغل شول تار په تار

خوېندے لونړه ئے په بند دَ پښتنو شوے
اس، اوښان، هاتیان الجه قطار قطار

دلته دا سوال پیدا کیږی چه خوشحال خان خپله دَ خیبر په عظیم جنګ کښے څهٔ کول، آیا هغه دَ مغلو طرفدار وُو که دَ پښتنو؟ یا غیرجانبدار پاتے شوے دے ؟

سر اولف کیرو په خپل مشهور تصنیف "پښتانهٔ" کښے لیکی، چه صحیح سور دا نهٔ معلومیږی چه خوشحال خان په دے جنګ کښے څهٔ کړی دی ۔ خو اغلب ګمان دا دے چه هغه دَ مغل لښکر سره صرف ترجمر وده لاړ دے ۔ او بیا واپس شوے دے ۔

کیرو دَ "خوشحال دَ نظمونو" په نوم چه کوم کتاب لیکلے دے ۔ دَ دے کتاب په دیباچه کښے لیکی چه خوشحال خان دَ خیبر په جنګ کښے چه کومه قصیده لیکلے ده، دَ دے قصیدے نه معلومیږی چه خوشحال خان دَ پښتنو په دے عظیمه فتح نهٔ صرف خوشحالی ښکاره کړے ده بلکه ورسره پښتانهٔ ئے دَ راتلونکی مصیبتونو نه هم خبردار کړی دی او دَ محمد امین خان

تباهي او بدبختي ئې هم په دردناکه طريقه ستائيلې ده.

کيرو په دې کتاب کښې بيا وائي چه دا نهٔ معلوميږي چه خوشحال خپله په دې جنګ کښې څهٔ کړي دي. خو خوشحال خان دَ خيبر فتح، دَ خپل کمان او دَ خپلو دوه افريدو يارانو يعني ايمل خان او دريا خان دَ کمان دَ لاندِ دَ مغلو خلاف دَ پښتنو تولو کښې لويه او اولنئ فتح ګنړي.

کيرو دا هم وائي چه دَ ايمل خان نوم دَ افريدو په زړونو کښې تر اوسه ژوندے دے. او دَ افريدو په علاقه کښې دَ ايمل خان په نوم ډير ځايونه ياديږي. خو دَ ايمل خان په تولو کښې بنهٔ يادګار دَ کوهاټ دَ درے په خُله کښې دَ ايمل چبوتره نوم ځائے دے چه دَ ايمل خان نوم دَ افريدو په علاقه کښې ژوندے ساتي.

خو دوست محمد خان کامل دا نهٔ مني. دوست محمد خان کامل ليکي چه "په دے جنګ کښې خوشحال خان دَ پښتنو په مقابله کښې دَ خپل يو محسن له خاطره شامل شوے وُو. او چه شامل شو نو بنهٔ په کلکه ئے جنګ او کړو کني دَ هغهٔ همدردي خو دَ پښتنو سره وه. او دائے غوښته چه دا جنګ اونشي.

او بيا ليکي چه "مغلو او بادشاهي فوځ کښې چه کوم پښتانهٔ وُو هغوی کښې خوشحال خان هم بنهٔ کوشش دَ مغلو دپاره او کړو، خو پښتنو فتح بيا موندله. او بادشاهي لښکر ماتے او کړه. محمد امين خان دَ يو څو پښتنو جمعدارانو سره دَ على مسجد په لار پيښور ته راغے او نور لښکر چه خوشحال خان هم پکښې وُو دَ تاترے په لار واپس شو."

دوست محمد خان دا هم ليکي چه "دَ دے جنګ نه زر پس خوشحال يوه قصيده ليکلے وه چه مطلع ئے دا وه او په قصيده کښې دَ ر "په پټئ" کښې درج ده.

چه دانا تر نادان لا وژني بـتـر
مګر نهٔ دے دا ژوندون څهٔ معـتـبر

په دے قصيده کښې يو طرف ته دَ محمد امين خان او دَ هغهٔ دَ اهل و عيال په تباهئ باندِ په ډيره دردناکه طريقه افسوس شوے دے او ورسره دَ پښتنو دَ فتحے ذکر هم کوي او پښتنو ته تنبيه او خبردارے هم ورکوي چه هسے نه چه غافل شئ. خوشحال خان ته کهٔ دَ محمد امين خان په بربادئ افسوس وُو نو ورسره دَ مغلو په تباهئ دَ اورنګ زيب وقار ته په صدمے او دَ

پښتون په کامیابۍ خوشحالي هم وه۔ او دغه خوشحالي دده قصیدې او دغې نورو اشعارو (چه دده واقع ذکر یکښې شوے دے) دَلب و لهجې نه هم ښکاره ده۔

په دے باره کښې زهٔ خپله نهٔ دَسرو اولفکیرو دَ رائے سره اتفاق کوم او نهٔ دَ دوست محمد خان کامل دَ رائے سره۔ دَ دوست محمد خان کامل دَ "خوشحال خان خټک" دَ لوستو نه پس سړے مجبوره وی چه په دغه زمانه کښې دَ مغلو نه دَ آزادۍ حاصلولو دپاره چه دَ پښتنو او مغلو ترمینځه کوم کشمکش تیرشوے دے او کوم جنګونه شوی دی چه دے جنګونو کښې دَ پښتون دَ آزادۍ دَ تحریک مشر دَ خوشحال خان په ځائے ایمل خان اوګنړی۔

په دے کښې شک نشته چه دَ مغلو دَ قید او بند نه وړاندې چه کوم خوشحال خان مونږ وینو هغه دَ مغلو یو جاګیردار، طرفدار، نمک خوار او وفادار نواب دے۔ لکه چه دَ فیرنګیانو په زمانه کښې هم ډیر پښتانهٔ نوابان او خان بهادران موجود وُو۔ او دغے نواب خوشحال خان دَ مغلو دپاره پښتنو سره جنګونه کول۔ خو دَ قید نه پس چه کوم خوشحال خان مونږ ته ښکاری هغه بیل سړے دے۔ هغه یو غیرتی پښتون ننګیالے دے چه دَ پښتنو په ننګ دَ مغلو خلاف کربسته ولاړ دے، او دَ پښتنو دَ اتفاق او اتحاد دپاره کوشان او سرګردان دے۔ او پښتانهٔ دَ مغلو خلاف په دے جذبه جنګوی چه دَ مغلو دَ غلامۍ نه ئے خلاص کړی۔

دا سے معلومیږی چه دوست محمد خان کامل دَ قید و بند نه پس دَ نوی کردار خوشحال خان سره نهٔ دے پیژندلے۔ او دغه شان هغه دَ خوشحال خان په صحیح کردار پیش کولو کښې څهٔ لږه ډیره غلطی ضرور کوی۔ کامل صاحب په خپل کتاب "خوشحال خان خټک" کښې دَ خیبرۍ جنګ عنوان "ایمل کی شورش" ایښے دے۔ او په دے خبره ئے ډیر زور ورکړے دے چه دا ایمل افریدے نهٔ وُو مهمند وُو۔ او یو پیدائشی جرنیل وُو۔ او دَ خیبر جنګ دَ ایمل خان دَ کمان دَ لاندې شوے دے۔ او خوشحال خان خټک ئے په دے جنګ کښې هم دَ مغلو طرفدار ښائیلے دے۔ دا سے طرفدار چه دَ مغل او پښتون په دې تاریخی جنګ کښې هم، خوشحال خان دَ پښتون په مقابله کښې، دَ مغل په پره کښې ولاړ دے۔ او ښهٔ دَ زړهٔ دَ اخلاصه۔

په نول کتاب کښې کامل صاحب، صرف دَ ایمل خان کردار په دا سے طریقه پیش کوی چه دَ سړی پرے سودا وشی۔ چه دَ مغلو په مقابله کښې دَ پښتون ولې او حُبّ وطنۍ دَ جذبے په خاطر صرف ایمل خان را او چت شوے وُو۔ او ښهٔ په نره دَ مغلو مقابله ئے نه او دریدے وُو۔ او په

دے تولہ جگړه کښې خوشحال خان محض یوه جملۂ معترضه وه چه کله نا کله به ئې دَ مغلو په مقابله کښې دَ پښتنو طرفداري اوکړه. ګني په حیثیت مجموعي ئې دَ پښتنو خلاف، دَ مغل دپاره هر جائز اوناجائز صرف په دے خیال کړے دے چه هغهٔ ته او دَ هغهٔ خاندان ته او دَ هغهٔ قبیلے ته پکښې څهٔ ذاتي مفاد حاصل شي. او چه دَ مغلو نه دَ ذاتیاتو په بناء، دَ قید و بند نه پس متنفر شو. نو بیا هم دَ خیبر په جنګ کښې ئې دَ محسن محمد امین خان طرفداري، دَ پښتنو په مقابله کښې بنهٔ په سره اوکړه. خوایمل شکست ورکړو. او جنګ ئې بائیلو. او چارو ناچار دَ مغلو سره خوشحال خان هم دَ میدان نه اوتښتید و.

کامل صاحب شاید چه دَ خوشحال خان له دے قسمه کردار په دے خیال پیش کوی چه دَ اورنګ زیب عالمګیر په مقابله کښې ولاړ وُو. او اورنګ زیب عالمګیر یو مُسلمان بادشاه وُو، نو هسے نه چه په خوشحال خان څوک بد اووائي. چه دَ مُسلمان بادشاه او بیا دَ هغې مُسلمان بادشاه مخالفت ئې وے کولو کوم چه دَ هند و پوخ دښمن وُو. او په هندوستان کښې ئې دَ صحیح اسلامي تعلیماتو احیاء غوښته. او دَ چا دَ پالیسئ په بره کښې چه علامه شبلي دَ "عهدِ عالمګیري" په نوم یو غټ کتاب هم لیکلے دے.

شاید چه په دے وجه کامل صاحب کوشش کوی چه دَ خوشحال خان دَ مغلو خلاف دَ جنګونو په حقله دَ جواز څهٔ صورت پیدا کړی. او دا ثابته کړی چه خوشحال خان خود عالمګیر خاندانی تابعدار او خدمتګار وُو. او په مغلو ئې هیڅ بدنهٔ وُو پیرنړو. خو مغلو چه ورباندِ بلا وجه خو خو کرته ظلمونه اوکړل نو مجبوره شو چه دَ اورنګ زیب عالمګیر او دَ مغلو خلاف اودریږی. ګني دَ مغلو خلاف په قامي جذبه کښې جنګونه صرف ایمل خان کړی دی.

کامل صاحب ته دا هم معلومه ده چه ډیرو نامتو مؤرخینو او مستند و تاریخونو ایمل خان آفریدے یاد کړے دے. خو کامل صاحب دا کوشش کوی چه ثابته کړی چه ایمل خان مهمند وُو.

ځما په خیال دا نقطه هډو دومره اهمیت نهٔ لری چه سړے پرے سر خوږ کړی چه ایمل خان مهمند یا آفریدے وُو. ځکه چه دا نقطه په حیثیت مجموعي، نهٔ دَ پښتون قوم څهٔ لاینحله مسئله حل کولے شي او نهٔ دَ خوشحال خان خټک په تاریخي شخصیت څهٔ اثر یا رڼا غورزولے شي. که ایمل خان مهمند وُو، یا آفریدے خو ظاهره ده چه دَ مغلو مخالفت ئې بنهٔ په زړه کړے دے. او خوشحال خان خټک دَ ایمل خان او دریا خان دَ دے قامي خدمت ډیره ډیره ستائنه

کړې ده ـ او تعریف نې کړے دے .

بهرحال نرۀ کامل صاحب سرۀ اتفاق کوم چه ایمل خان مهمند ؤو ـ ځکه چه
خوشحال خان ختټک خپله دوه ځایه هغۀ ته مهمند وئيلے دے ـ هغه دوه ځايونه دا دی :.

دَ ایمل فتور آغاز شو          دَ مهمندو هم عنان شوم

---

افریدیو، شنوارو، زړۀ په اُلجه بنۀ کړو          ایمل خان مهمند په ننګ په اُلجه دواړه
دَ خوشحال ختټک په بخره خو یو ننګ دے
تر نظر یوړے نۀ هیڅ ده دُنیا          واړه
خوشحال خان یو بل ځائے کښې دَ خیبر دَ جنګ په حقله وائی ـــه
دویم دَ محرم ورځ دَ شنبې کال دَ غـــفـج          نۀ غشی ؤو نۀ توره چه مغلو او کړو[۱۳۵] یج
شنوارو، افریدیو، دَ دے خوارو مهمندو
روپئ په خروار یوړے، مغران واړه په یج
او دا هم وائی ـــه
څۀ شنواری، څۀ مهمند، څۀ افریدی ؤو
چه نۀ مات کړو دَ صوبے واړه لښکر
او دَ دے قصیدے خاتمه په دے بیت کوی ـــه
مستجاب مهمند کۀ چرګه دَ مغـــل ده
زۀ خوشحال ختټک خو باز یم ځائے یم غر

کۀ چرے خوشحال خان په دے جنګ کښې رښتیا، دَ زړۀ دَ اخلاصه، دَ پښتون خلاف
دَ مغل په پوره کښې جنګ کړے وے، او بیا دا جنګ نۀ با ئیلے وے نو شاید چه اول خو به نۀ په دے
موضوع هډو قصیده نۀ وه لیکلے ځکه چه دَ دے جنګ با ئیلات لکه څومره چه دَ محمد امین خان دپاره
شرم ؤو، دغسے دَ خوشحال خان دپاره هم شرم ؤو ـ دا دَ دواړو شکست خوړلے ؤو ـ او کۀ نه، قصیده
نې خامخا لیکله نو دَ خوشحال خان ختټک نه دا اُمید کیدے شی چه په قصیده کښې به نې ذکر کړے
وے چه جنګ یم دَ مغل دپاره، دَ پښتون خلاف، دَ یو محسن په خاطر بنۀ په نره او کړو خو
ماتے یم او کړه ـ او شکست یم او خوړو ـ

خو ما ته دا سې معلومیږي چې په دې جنګ کښې خوشحال خان د سیاست نه کار اخستې دې. د قید و بند نه پس، هغه مغلو ته په زړه کښې خوتکید و. او چې د لنګر کوټ د قلا په باره کښې خپل دوست او محسن مهابت خان ورته د تعاون دپاره اووې نو خوشحال خان ورته صفا انکار اوکړو.

کله خوشحال خان خپل محسن مهابت خان ته صفا انکار کولے شو نو هغه خپل محسن امین خان ته هم صفا وئیلے شول چې د پښتنو خلاف، د مغلو دپاره جنګونه نه شم کولے. خو هغه دا سې اونه کړل. نو په دې کښې مصلحت ؤو. خوشحال خان په ظاهره د مغلو سره شو خو پټ راز باز ئې د پښتنو سره ؤو. او د غه وجه ده چې د پښتنو په فتح هغه د خوشحالۍ اظهار کړې دے او خپله فتح ئې ګڼړلے ده. او قصیده ئې پرې لیکلې ده. او وئیلی ئې دي چې زه صرف په دې جنګ کښې د پښتون په ننګ ولاړ ؤم. او محض د پښتنون په ننګ م دا کار کړې دے. او ایمل خان د ننګ او لجه دواړو دپاره جنګ کړې دے.

په قصیده کښې خوشحال خان، مستجاب مهمند ته، چې د زړه نه د مغلو سره ؤو، بد وئیلی دي. هغه وائي چې مستجاب مهمند خو د مغلو چرګه وه. او ورسره ځان ته باز وائي.

په قصیده کښې خوشحال خان دا نه وائي چې دا جنګ محض د ایمل خان مهمند په مشرۍ کښې شوې ؤو. بلکه هغه په یو بل ځائے کښې، ایمل خان او دریا خان دواړه یو شان ستائي.

اوس که مونږ د کامل صاحب او منو چې په دې جنګ کښې لکه د مستجاب مهمند په شان، خوشحال خان هم پټ او آشکاره، د پښتنو خلاف د مغلو ملګرې ؤو، او بیا دا سې کلک ملګرې چې په قول د کامل صاحب "په بادشاهي لښکر کښې چې کوم پښتانه شامل ؤو. د خوشحال خان نه علاوه، نورو تولو د جنګ نه کناره کشي کوله. صرف خوشحال خان او د هغه سړو، د زړه د اخلاصه د مغلو په پړه کښې جنګ کولو. خو هیڅ ئې ترې جوړه نه کړه." نو پس د شکست نه به خوشحال خان په کومه خوله ځان ستائیلو او ځان ته به ئې باز وې. او د کامل صاحب د خیبر د معرکے هیرو، ایمل خان متعلق به ئې وے وئیل چې هغه د ننګ او د اُلجه په خاطر دا جنګ کړې ؤو او صرف خوشحال خان د پښتون د ننګ په خاطر په دې جنګ کښې شامل ؤو. حقیقت دا معلومیږي چې د خیبر په جنګ کښې د پښتنو پټ جرنیل، خوشحال خان خپله ؤو. او ایمل خان او دریا خان د دې جنګ ظاهري مشران ؤو. خوشحال خان ته په دې زور نه ورکوي چې ایمل خان او دریا خان آفریدي ؤو، یا مهمند. خو د دوئ د ملګرتیا، مړانې، شجاعت او ښه ځوانتوب تعریف ضرور کوي.

د خوشحال خان هغه مشهوره قصیده چې سرے د دې مصرعې نه شروع کیږي ـــه

بیا له کومه را پیدا شو دا بهار

مونږ ته د ایمل خان او دریاخان په حقله دا دوه یادګار شعرونه په ګوته کوی ـ

ایمل خان دریاخان دواړه مړګ ئے مړ دوے

هیڅ تقصیر دواړو او نکړو وار په وار

د خیبر دره ئے سره کړله په وینو

په کړاپه ئے هم رووان کړو د هندو کار

په دے پوره تنۍ قصیده کښے، خوشحال خان چه د پښتنو د مغلو خلاف کوم شپږ د برۍ او فتحے جنګونه ستائیلی دی، په دے فهرست کښے د خیبر جنګ اول راځی. او په دے فتح هغهٔ فخر کړے دے. که دا چرته د هغهٔ، د مغلو په پره کښے، او د پښتنو خلاف، چه په قول د کامل صاحب صرف ایمل خان ئے قیادت کولو، خپل شکست وُو. نو دا جنګ به هغهٔ بیا بیا په فخر سره څهٔ ته ستائیلو. او د ایمل خان به ئے دومره تعریفونه څهٔ ته کول، خو حقیقتاً نهٔ وُو.

یا تے شو دا دلیل چه په جمرود کښے، خوشحال خان خپل محسن، محمد امین خان ته صلاح ورکړه چه پښتنو سره جنګ یا سختی نهٔ ده پکار. دا غریب خلق دی. خو چه هغهٔ ورته پیغور ورکړو نو خوشحال خان د زړهٔ د اخلاصه، د پښتنو خلاف او د مغلو په پره کښے جنګ ته تیار شو. او د دوستئ حق ئے ادا کړو. نو دا دلیل ما ته کمزورے ښکاری.

معلومیږی دا چه خوشحال خان چه محمد امین خان ته په روغ نیتئ صلاح ورکړه. او د جنګ نه ئے منع کړو. او محمد امین خان د هغهٔ خبره اونهٔ منله، بلکه بد ئے پرے اوګڼل نو دا د محمد امین خان خپل قصور وُو. خوشحال خان خپله غاړه خلاصه کړه. د دے نه پس، خوشحال خان د پښتو په دے متل عمل اوکړو چه " یار ته پند ورکړه، اوکهٔ پند نهٔ منی نو د شکو پنډ ورکړه " . د خوشحال خان د پند نه پس محمد امین خان ته د شکو پنډ ورکړو. او د پښتنو قبائیلو سره ئے د مغلو د تباهئ د پاره سازش اوکړو، او ښهٔ کامیاب سازش. د انګریزئ متل دے چه په جنګ او مینه کښے هرڅهٔ روا دی. د قید نه پس د مغلو سره د خوشحال خان پټ جنګ شروع شوے وُو. د خیبر جنګ د خوشحال خان د پښتنو د برۍ او فتح د پاره عزم کړے وُو. د خیبر جنګ د خوشحال خان او خوشحال خان د پښتنو د برۍ او فتح د پاره د هغهٔ د تدبر او سیاسی حکمت عملئ نتیجه وه. مغلو خلاف اولنۍ فتح وه. او دا فتح د هغهٔ د تدبر او سیاسی حکمت عملئ نتیجه وه.

# اسلام ـ دَ مغلو شهنشاهیت، خوشحال خان او پښتانهٔ

دلته یوه بله مسئله هم حل کول غواړی. او هغه دا چه دَ خوشحال خان دپاره دَ مغلو دَ شهنشاه اورنګ زیب عالمګیر، چه مُسلمان بادشاه وُو مخالفت جائز وُو او که نهٔ. نو دا یوه باریکه نقطه ده. او دا نقطه لږ وضاحت غواړی.

اسلام دَ شهنشاهیت، بادشاهت او سرمایه دارانه او جاګیردارانه نظام دَ لرے کولو دپاره راغلے وُو. اسلام اصل نسل ته هیڅ وقعت نهٔ ورکولو. په اسلام کښے هر مُسلمان دَ بل مسلمان رور دے. اسلام کښے دَ شرافت معیار، اصل او نسل، مال او دولت نهٔ وُو. بلکه تقوی او اخلاق وُو. اسلام یو اخلاقی نظام دُنیا ته راوړے وُو چه بنیاد ئے توحید وُو. دَ قیصر او کسری شهنشاهیت اسلام دړے وړے اوړے وُو. او سرمایه دار ته اسلام دَ مرګ پیغام وُو. خو دَ خلفائے راشدین نه پس چه کوم اسلامی سلطنتونه جوړ شول هغوئ لکه دَ قیصر او کسرٰی په شان بیا شهنشاهیت قائم کړو. او هم په هغه اصولو روان شول. په کومو سرمایه دارانه اصولو چه دَ قیصر او کسرٰی حکومتونه چلیدل، دا په حقیقت کښے دَ اسلامی طرز دَ حکومت مخالفت وُو. او اسلام چه دَ معاشرے دپاره کوم اصول وضع کړی وُو. دَ هغے اصولو، دَ اسلام په نوم او دَ خدائے تعالیٰ په نوم په جار ماتول وُو. سپین ته تور وئیل وُو او تور ته سپین. ورځ ته شپه وئیل وُو او شپے ته ورځ.

دَ دے مختصر تمهید په رڼا کښے اوس مونږ دَ مغلو دَ شهنشاهیت او دَ مغلو دَ حکومت او دَ مغلو دَ پښتنو سره کشمکش او دَ جنګونو جائزه اخلو.

دَ مغلو نه وړاندِ په هند کښے پښتنو خپل بادشاهت او شهنشاهیت قائم کړے وُو.
مونږ دا نهٔ وایو چه په هند کښے دَ پښتنو شهنشاهیت یا بادشاهت په اسلامی اصولو چلیدو. یعنی په هغه اسلامی اصولو، په کومو چه دَ خلیفه عمرؓ اسلامی خلافت قائم وُو. خو دومره قدرے خبره ضرور وه چه دَ هند دَ پښتنو بادشاهانو په زمانه کښے اسلام په هند کښے په سُرعت سره خوریدو. او دَ هغوئ په زمانه کښے، یا په زور یا په رضا هندوان په یو درز مُسلمانیدل. او هغوئ اسلام دَ هندو مت ضد ګڼړلو. اسلام توحید وُو، او هندو مت شرک وُو. او هغوئ هیچرے دا کوشش نهٔ وُو کړے چه دَ اسلام او کفر ترمینځه محض دَ خپلو سیاسی اغراضو په خاطر صلح او کړی

او د دواړو مذهبونو نه یو مشترک مذهب جوړ کړی او د هندوانو راجپوتو سره د سیاسی اغراضو د پاره د اسے خوږه کړی چه رشتې ورسره اوکړی. او حکومت کښې هغوئ حصه دار او برخه خور کړی. او باقی مُسلمانان د هغوئ په زور غلام او تابع او ساتی۔

خو مغلو چه د پښتنو شهنشاهیت په هند کښې ختم کړو او بابر چه مغل وُو. ابراهیم لودهی ته چه پښتون وُو، د پانی پت په اولنی جنګ کښې شکست ورکړو. نو د پښتنو د نسلی شهنشاهیت په ځائے په هند کښې د مغلو نسلی شهنشاهیت قائم شو. په دے کښې د مُسلمان او د غیرِ مُسلمان سوال نهٔ وُو. پښتانهٔ او مغل دواړهٔ مُسلمانان وُو. خو د دواړو بادشاهی او ملوکانه اغراض بیل وُو. پښتنو په هند خپله بادشاهی غوښتله او مغلو خپله. او په دې وجه دواړه نسلونه د یو بل سره برسرِ پیکار وُو. په دے کشمکش کښې د اسلامی او غیر اسلامی سلطنت سوال نهٔ پیدا کیدو. دا د دوه مُسلمانانو قومونو د هند د بادشاهت حاصلولو دپاره د نړ ورجنګ وُو. او په دے وجه یا دواړه په حق وُو یا دواړه په ناحقه. یا دواړو ناجائز او ناروا کول یا دواړو کول. نهٔ د پښتنو شهنشاهیت د حضرت عمرؓ خلافت وُو او نهٔ د مغلو شهنشاهیت د حضرت عمرؓ د خلافت نمونه وه۔

البته مغلو چه د پښتنو نه حکومت واخستو نو محض د خپلو ملوکانه اغراضو د حاصلولو دپاره او د خپل حکومت د ټینګولو دپاره ئے د اسلام او کفر سره خپلو کښې صلح اوکړه او د اسلام او د کفر نه ئے یو مشترکه دین جوړ کړو چه اکبر یه ورته دینِ الٰهی وے. او دا خالص الحاد وُو.

د مغلو حکومت بحیثیت مجموعی د بنګو او د شرابو دلداره وُو. او هغوئ چه په هند کښې د کوم نوی ثقافت بنیاد کیښودو، د اسلامی ثقافت نهٔ وُو. بلکه د اسلام او د کفر امتزاج وُو. د مغل مُسلمان او د هندو راجپوت د مشترکه ثقافتونو یو معجونِ مرکب وُو۔

د مغلو په زمانه کښې هندوانو ته موقع په لاس ورغله چه د حاکم قوم خوئ بوئ او اخلاق بدل کړی او په خپل خوئ بوئ او اخلاقو ئے راواړوی. پښتنو چه د مغلو د شهنشاهیت مخالفت کولو نو هغوئ په دې کښې حق په جانب وُو. ځکه چه مغل ته هندو راجپوت د مُسلمان پښتون نه زیات نزدے وُو. د هندو راجپوت سره د مغل د وینے رشته او خپلولی وه. او مغل بادشاهانو به اکثر د پښتون مُسلمان د کوشمالئ دپاره یا بیربل را اولیږلو، یا مان سنګهه او یا چرته مها راجه جسونت سنګهه یا راجه رام سنګهه۔

# پښتانهٔ، خوشحال خان او دَ مغل شهنشاه عالمګیر سره کشمکش

دَ پورته بحث په رڼا کښې به اوس موږ دَ خوشحال خان او دَ عالمګیر دَ کشمکش جائزه واخلو. خوشحال خان دَ عالمګیر یو جاګیردار او منصب دار وُو. او ښهٔ په راستیٔ ئے دَ هغهٔ خدمت کولو. لکه چه وائی ـــ

لکه نن وُم په راستیٔ په دوراستیٔ کښې
دَ مغل په خدمت نهٔ وُو بل افغان

خو دَ اورنګ د ښد نه پس هم دغه جاګیردار او منصبدار خوشحال خان دَ اورنګ زیب دَ ذات او دَ اورنګ زیب دَ شهنشاهیت سخت دښمن شو. ځکه چه دهٔ ته معلومه شوه چه دَ مغل په شهنشاهیت کښې دَ پښتون مسلمان هیڅ عزت. هیڅ وقار او هیڅ قدر نشته. مغل، پښتون محض یو مرئے او غلام ګڼړی. او هیچرے مغل پښتون ته دَ ځان سره یو حیثیت نهٔ ورکوی. هغه پوهه شو چه پښتون کهٔ دَ مغل دپاره هرڅهٔ اوکړی خو دَ مغل په نظر کښې دَ پښتون نه هیچرے مغل نهٔ شی جوړیدے. لکه چه وائی ـــ

کهٔ هزار کاندِ پښتون مغل به نهٔ شی
بویه داچه دَ زړهٔ اوباسی دا خیال

او بیا وائی ـــ

اورئے پورے په منصب په نوکریٔ شه
چه ترفهم و تر نظر دَ مغل کک یم

دَ اورنګ زیب عالمګیر متعلق چه دَ قید په دوران کښې او پس له قیده خوشحال خان کومه رائے قائمه کړې وه هغه دَ دے اشعار نه واضحه ده ـــ

څهٔ یوازے په ما نهٔ ده کهٔ ژوندے وی
اورنګ شاه بادشاه به ډیر کاندی پائمال
دهٔ په لاس دَ بخت نصر ظلم واخست
زهٔ دَ دهٔ دَ لاسه بند لکه دانیال
حق ناحق ئے چه څوک راشی په منګل کښے
خواروی ئے غم ئے نهٔ وی، دَ وبال
چه په پلار باندِ ئے نهٔ ده صرفه کړے
په نور چائے څهٔ صرفه، څهٔ ئے اشکال

کهٔ رښتیا وایم دا هسې بادشاه نهٔ وی
واړه کارئے دَ رهزن دے، دَ داړ وال

یو په ظلم، یو په مکر نور څوک نشته
کهٔ حجاج وی کهٔ یزید وی دَ دهٔ سیال

دَ هغهٔ بادشاه به څوک دَ غاړے طوق شی
چه دے نهٔ لری دَ عدل اعتدال

نهٔ انصاف شته، نهٔ تمیز، نهٔ نور دَ عدل
په دربارئے تاریکی ده ، غول و غال

په دوران دَ دے بادشاه هوښیار هغه دے
چه وطن که په فرنګ یه پرتګال

په خوشحال باندِ خو وارد دا دے راغے
خدائے دِ درست جهان ساتی دَ دے جیپال

په یو بل ځائے کښے دَ اورنګ زیب متعلق وائی ـــه

دَ بادشاه دَ بدنیتئ کمے نشته!!!
په بد نیت ئے آزار واخست دَ خپل پلار

څکه اوس دَ چا باور ورباندِ نهٔ شی
هم بدنیت دے هم بد قول هم مکار

بله هیڅ لیدله نهٔ شی په دا مینځ کښے
یا مغل دَ مینځهٔ ورک یا پښتون خوار

دَ خوشحال خان دَ دے پورتنو اشعارو نه معلومیږی چه اورنګ زیب یو خداترس، منصف عادل، صاف زړهٔ او ښیښتلے او سپین څلے مسلمان بادشاه نهٔ ؤ. بلکه هغه یو داسے مسلمان ؤ چه دَ بادشاهئ حاصلولو دپاره ئے خپل پلار قید کړے او خپل رونړه ئے وژلی ؤ. او دَ مذهب په ظاهر یا تو یعنی په مونځ، روژه ئے دَ خلقو دَ غلولو دپاره مخ سپین کړے ؤ. خو لکه کیرو چه وائی په حقیقت کښے دَ هغهٔ زړهٔ دَ مذهبی منافقت نه ډک ؤ. یعنی هغهٔ مذهب دَ خپل ملوکانه اغراضو دَ حاصلولو دپاره یو آلهٔ کار جوړ کړے ؤ. دَ خوشحال خان تر نزده دَ مذهب دَ پردے په شا دَ اورنګ زیب اصلی

کردار، دَ یو ظالم او ناترسه غاصب انسان ؤو۔ چه هر عمل ئے دَ شر نه ډک ؤو۔
مونږ به دَ خوشحال خان دے رائے ته ډیر وقعت نهٔ ؤو ورکړے۔ ځکه چه مونږ ته معلومه ده چه دَ خوشحال خان دَ اورنګ زیب عالمګیر سره ورانه شوے وه او په دے وجه شاید چه دَ خوشحال خان دا رائے په ذاتیاتو مبنی وی۔ خو دَ خوشحال نه علاوه زمونږ درویش او صوفی شاعر عبدالرحمان بابا هم چه خوشحال خان پسے نزدے تیر شوے دے، دَ هغه وخت دَ مغلو حاکمانو دَ لاسه دا سے سر ټکوی ـ

په سبب دَ ظالمانو حاکمانو ∴ کور او کور او پیښور دَ ګور او ړه یو دی

نو دَ دے نه معلومیږی چه دَ خوشحال خان په رائے کښے ضرور څهٔ صداقت شته ـ

خبره دا ده چه عام خلق دَ مذهب دَ روح نه نا واقف وی۔ او هغوئ دَ مذهب په ظاهر یا تو او رسوماتو پسے ځی۔ نو که یو سړے ظاهری شان و شوکت دَ یو مذهبی سړی جوړ کړی نو باطنی عمل کهٔ ئے هر څهٔ وی، خو به خلقو کښے په ښهٔ سړی او په مسلمان سړی مشهور شی۔ دَ اورنګ زیب عالمګیر دَ ښے مسلمانئ چرچه هم په دے وجه شوے وه چه هغهٔ خپل ظاهری شان و شوکت دَ ښهٔ مسلمان جوړ کړو نو خلقو دَ هغهٔ ټولے ګناهانے معاف کړے۔ ځکه چه شرعه هم ظاهر ګوری او خلق هم ظاهر ګوری۔ خو حقیقت څهٔ بل شان ؤو۔

دَ خوشحال خان په زمانه کښے دَ پښتنو او دَ مغلو جګړو ډیر زور نیولے ؤو۔ او خوشحال خان چه دے قامی جنګ کښے دَ مغلو نه راو اوړیدو او دَ پښتنو په ننګ ئے توره او تړله۔ نو هغه په دے کښے حق بجانب ؤو۔ دَ خوشحال خان خیال ؤو چه مغل پښتنو ته دَ حقارت په نظر ګوری۔ او پښتون خپل سیال نهٔ ګڼړی بلکه خپل مرئے او غلام ئے ګڼړی۔ په دے وجه پښتون ته پکار دی چه مغل دَ خپل وطن نه او باسی او دَ مغل دَ غلامئ نه ځان خلاص کړی۔

اول خو لکه چه ما ذکر کړے دے شهنشاهیت او بادشاهت دَ اسلام په ضد کښے ولاړ ؤو، په دے وجه هغه خلق چه دَ مسلمان بادشاه په نوم دَ اورنګ زیب دَ ملوکیت بړه کوی۔ هغه دَ یو غیر اسلامی سیاسی نظام پشتی کوی۔ مسلمان او بادشاه په حقیقت کښے اجتماع ضدین دی۔ بادشاهت دَ مسلمان دپاره نا روا دے۔ په اسلام کښے صرف خلافت روا دے او دَ خلافت دَ یو منتخب شوی امیر پکار دے۔ او دَ امیر انتخاب به هم صرف صاحب الرائے مسلمانان کوی چه تقوی او اسلامی اخلاقی ژوند کښے ثانی نهٔ لری۔ خو خود غرضه خلقو ورو ورو دَ اسلام دَ سیاسی نظام نه بادشاهت او ملوکیت جوړ کړو۔ او هغه هم موروثی ملوکیت، چه په اسلام کښے سروپ نا روا دے۔ او بیا دا نا روا ملوکیت

ئې دَ اسلام جزو اوګرځولو - او دَ مُسلمان بادشاه کلمه داسې عام شوه چه دا دَ مُسلمان دپاره دَ ایمان جزو شو - او څوک چه دَ مُسلمان بادشاه دَ خرافاتو نه ډک حکومت نهٔ منی . دَ هغهٔ قتل روا ګڼړلے شی - په مُسلمانانو کښې دا ذهنیت حقیقت کښې دَ مُسلمانانو دَ زوال سبب ګرځیدلے دے . ؤ مُسلمان ملت ئې ذلیل کړے دے -

خوشحال خان خپله هم دَ قید و بند نه وړاندِ هم له دے قسمه مُسلمان بادشاه تابع ؤو - او د داسې مُسلمانانو بادشاهانو دَ ملوکیت مِنتے وے . کهٔ هغهٔ په ژوند کښې څهٔ غلطی کړے وه نو هغه ئې دَ قید و بند نه وړاندِ کړے ده . چه دَ یو غیراسلامی شهنشاهیت دَ ناروا سیاسی نظام پُشتی ئې کوله . دَ قید و بند نه روستو چه په هغهٔ کښې یو نوے احساس او نوے شعور پیدا شوے دے . دا دَ ستائنے وړ دے . دَ دے نوی سیاسی شعور په برکت هغهٔ دَ مغلو دَ ناروا نسلی شهنشاهیت چه دَ مُسلمان بادشاه دَ پردے لاندِ دَ حیوانی ظلم او زور دویم نوم ؤو خلقو ته عریان او ښائیلو - او خلق دَ مغلو په شهنشاهی منافقت پوهه شول - او دَ مغلو دَ زور ظلم نه ئې دَ ځان خلاصولو دپاره مردانه کوششونه شروع کړل - خوشحال خان دَ اورنګ زیب دَ نسلی شهنشاهیت متعلق وائی ـــ

اطاعت دَ اولوالامر ځکه نهٔ کړم
خلیفه دَ زمانے په زړهٔ کافر دے

پښتون مُسلمان به دَ مغل مُسلمان دَ اسلامی رورولئ او اخوت هله خیال ساتلو . کهٔ چرے دَ اسلام دَ اصولو او تعلیماتو مطابق ، مغل مُسلمان ، پښتون مُسلمان ته دَ ځان سره یو شان اسلامی حیثیت او اقتصادی حیثیت ورکړے دے . خو معلومه ده چه دَ مغلو دَ شهنشاهیت څهٔ نورے تقاضے وے او دا چه نور هر څهٔ وے خو اسلامی نهٔ وے . خوشحال خان دَ مغلو دَ شهنشاهیت په اصولو جوړ ، تش په نوم او جعلی اسلامی حکومت منلو ته تیار نهٔ ؤو . ځکه چه دا صرف دَ مغلو نسلی حکومت ؤو . او په هیڅ رنګ او هیڅ شکل کښې اسلامی نهٔ ؤو . صرف دَ اسلام په مقدس نوم مغلو خپل ملوکانه اغراض حاصلول ، او خپل غاصبانه حکومت ئې په مُسلمانانو چلولو - او هغه هم دَ ذاتی اغراضو دپاره -

په داسې صورت حال کښې خوشحال خان مجبور ؤو چه دَ مغلو مقابله اوکړی - او دَ پښتون مُسلمان ملی شان او قومی حیثیت او ملی سیرت په آزادانه طور برقرار اوساتی - او پښتون کښې په قسما قسم طریقو ، په پیغورونو ، په طعنو ، په تعریفونو او دَ غیرت او پښتو په رد یونو وغیره ملی شعور او حس بیدار کړی . او اتحاد او اتفاق ورکښې راولی . او دَ مغلو مقابلے ته ئې اودروی -

دَخوشحال خان خیال ؤوچه دَمغل هیڅ حق نشته چه دَپښتون په وطن دِ قابض وی. او پښتون دِ په زور ظلم مرئیے او غلام ساتی. خوشحال خان مغل دَ پښتون دَ وطن نه ایستل غوښتل، او په آخری عمر کښے دا دَ هغهٔ یوه عقیده جوړه شوے وه لکه چه وائی ـــ

دا نادره عقیده لکه خُما ده
لا عجب کهٔ بل پیدا هسے افغان شی

دَ نمونے په طور دلته دَخوشحال خان څُنے هغه اشعار وړکوم. دَ کومو نه چه دَخوشحال خان دَ دے نادرے عقیدے وضاحت کیږی. یعنی په دے لاندِ اشعارو کښے هغهٔ دَمغلو اوَ دَ اورنګ زیب نه دَ نفرت اظهار کړے دے. دَ پښتنو بے اتفاقی ئے ستائیلے ده. او په خپل ننګ ئے فخر کړے دے.

چه مغل وته م اوترله توره ۔۔۔ درست پښتون م وعالم وته ښکاره کړو
ختک کله په شماره په حساب یاد ؤو ۔۔۔ ختک ما دَ اولسونو په شماره کړو

اتفاق په پښتنو کښے پیدا نهٔ شو
کنی ما به دَمغل ګریوان پاره کړو

قدیمی دَ پښتنو جهل وخرتوب ؤو ۔۔۔ اوس په طمع دَحرص دردمی لرمیانه

کهٔ ربنتیا وایم شیرشاه دا هسے نهٔ ؤو
لکه مونږ ه یو پیدا له کوهستانه

لا ترا وسه ئے ماز غهٔ په قرار نهٔ دی ۔۔۔ چاچه ماسره وهلے سر په سنګ دے
لا په خوب کښے په لرزه پرېوزی له کټه ۔۔۔ چه دَچا تر غوږ څما دَ تورے شرنګ دے
کهٔ په دا دورم کورے هغه زهٔ یم ۔۔۔ چه م داغ په خاطرا یښے دَ اورنګ دے
درست جهان م ومغل وته خیبر کړو ۔۔۔ ځُلئے په ځائے پښتانهٔ وته قلنګ دے

څُنے زهٔ لوئے دعوی لرم په زړهٔ کښے
ولے څهٔ کړم چه پښتون واړه بے ننګ دے

کهٔ م عمر په شماره تر شپیتهٔ تیر دے ۔۔۔ لا په کارکښے دَ سورئ هسے اُزبک یم

دَ افغان په ننګ م اوترله توره
ننګیالے دَ زمانے خوشحال ختک یم

هرڅه چار دَ پښتانهٔ تر مغل ښه ده ۔۔۔ اتفاق ورځنه نهٔ شته ډیرا رمان

دَ بهلول او دَ شیرشاه خبرې آورم
چه په هند کښې پښتانۀ وو بادشاهان

شپږ اووۀ پیړۍ ئې هسې بادشاهي وه
چه په دوی پورې درست خلق وو حیران

یا هغه پښتانۀ نور وو دا څۀ نور شول
یا نخدائے دے اوس داهسې شان فرمان

کۀ توفیق دَ اتفاق پښتانۀ مومي
زوړ خوشحال به دوباره شي په دا ځوان

ومغل وته چه گورم، هغه هسې مغل نشته
دَ توره وارئې تېر دے اوس دریاتے یو قلم دے

پښتون په نړ رونیسي په فریب په تېتالو نو
په مائے اثر نۀ شي لا یه ما دَ خدائے کرم دے

نۀ مچ یم نۀ قارغۀ یم چه په کړو مړو گرځم
یا باز یم یا شاهین یم په ځپل ښکار م زړۀ خرم دے

کۀ ماغوندې نور هم وے په دے کار به ډېر خوشحال وُم
چه ماغوندې څوک نشته ځکه پروت را باندې غم دے

ایمل خان دریاخان دواړه په ښه رنگ تېر شول په ننگ کښې
دَ دواړو په فراق کښې، څما تل آه و ماتم دے؛

پښتانۀ لکه مگس ور باندې گرځي
ورته ایښې دَ مغل دَ حلوا تال دے

نورې واړه تکیې وار په وار خوړې شوې
اوس په مېنځ کښې یو کرم دَ ذوالجلال دے

ایمل خان دریاخان دواړه خورد بین لاړل
اوس خو پاتې ومغل ته یو خوشحال دے

اورنگ زیب را ته یو کال و شو چه پروت دے
په صورت حیران، پریشان په زړۀ افگار

کال په کال امرایان دي چه پریوځي
چه طوفان شولے لښکرے کوم ئې شمار

خزانے دَ هندوستان دي را خوړې شوې
سرۀ مُهران دي ننوزي په کهسار

پښتانۀ چه نور څۀ فکر کا نابود دي
بے له توره ئې خلاصے نشته په بل کار

ترمغلو پښتانۀ په توره ښۀ دي
کۀ په پوهه پښتانۀ وے څه هوښیار

اولسونه چه سند و بله، او که
بادشاهان ورته سجود کاندي اختیار

نرۀ تنها پکښې په غم دَ نام و ننگ یم
یوسف زئ فراغت په کښت وکار

آفریدي، مهمند، شنواري گوره څۀ کا
دَ مغلو لښکر پروت په ننگرهار

په لښکر لښکر نارے شوم ورته سترے
دا کا نرۀ را ته نۀ مهربک دا ئې نۀ څه د

مرگ څما په پوهه بهتر ترد اژوندون دے
دَ عزت سره چه نۀ وي زیست روزگار

همیشه به په جهان کښې ژوندے نهٔ وی
د خوشحال خټک به پاتے شی رودګار

ومغل وته به هسے کار ښکاره کړم
چه راضی را څخه روح د فرید خان شی

اورنګ زیب بادشاه زړهٔ ډک په لاهور راغے
ګوره کانده به څوک وران څوک ودان شی

په جهان د ننګیالی دی دا دوه کاره
یا به اوخوری ککری یا به کامران شی

د مزریو مړنتوب په ښکر نهٔ دے
مړے ئے هر کله یوازے په خپل ځان شی

آزادی تر بادشاهئ لا تیرے کا
چه د بل د حکم لاندِ شی زندان شی

پښتانهٔ واړه بدخوئ دی
کور په کور کاندِ غوره زئ

یوچه سرکاندی په پورته
بل ئے اووهی مغزئ

هغه زیست چه د عزت له مخه نهٔ وی
چه ئے کا په هغه زیست پورے هک پک یم

په خپل نام وننګ چه راشم لیونے شم
خبردار کله په سود وزیان د لک یم

هر پښتون چه د مغلو نوکری کا
کهٔ دِ زده د هغے واړو بهترک یم

چه منصب م د مغل خوښ ملک ډم
چه منصب د مغل نشته اوس ملک یم

د فرمان د پروانے حکم ئے نشته
شکر دا چه په خپل حکم په خپل وک یم

نه م کار په خاص وعام نهٔ په دیوان شته
نهٔ په در ولاړ د هر یوهٔ مردک یم

آزادی ده په ساده سپینه جامه کښې
خلاص له غمه د زربفت او د میلک یم

د وښوجو ټکړے هسے راته ښے شوے!
وائے ناست په محلونو د آهک یم

کهٔ او ګوره د بتوشته په شلمبو سپینه
د مغلو پلاؤ پاتے ډیر پرے ډک یم

۱- پښتانهٔ په عقل پوهه چه ناکس دی
کوته سپی د قصابانو د جوس دی

۲- بادشاهی ئے د مغل په زړه با ئیله
د مغل د منصبونو په هوس دی

۳- اوښ له باره په خپل کور کښې وره غلے
په اولجه د اوښ د غاړے د جرس دی

۴- د نفرین لائق په تام سړبنی دی
له اوله کهٔ دا نور درپسے پس دی

علامه اقبال په "جاویدنامه" کښې د پښتون د خوئ بوئ د بیان په سلسله کښې د خوشحال خان خټک په پورتنو اشعار و کښې د دې یم نمر شعر ترجمه کړې ده ــ

اشترے یا بد اگر افغانِ حُر      با یراق و ساز و با انبارِ دُر

ہمتِ دونش ازاں انبارِ دُر

میشود خوشنود با زنگِ شتر

داوه مغل او اورنګ زیب طرف ته د خوشحال خان خټک رویه. او هغه دا رویه پس له تجربې او د مغل سره د زیست روزګار اختیار کړې وه. هغه مغل ښه پیژندو. او هغه پښتون هم ښه پیژندو. د مغل سره د هغه د پلار نیکه له وخته معامله وه. او په معامله ئې پیژندلے ؤ. او د پښتون د فطرت نه خو هغه خود واقف ؤ چه خپله پښتون ؤ. او شپه او ورځ په پښتنو کښې اوسید و. او ورسره ئې کار روزګار، جنګ جګړے، جرګے او مرکے وے. ځکه خو علامه اقبال خوشحال خان ته شاعرِ افغان شناس وائی. او صحیح وائی. ځکه چه خوشحال خان که پښتون نه پیژندلو نو بیا هېڅ پښتون تر اوسه چا پیژندلے نه دے.

خوشحال خان به د مغل د مذهب او اسلامی رورولۍ لحاظ هله ساتلو، که چرے مغل په اصلي معنو کښې د اسلام په بنیادی اصولو عمل کولے. یعنی دا چه هر مسلمان د بل مسلمان رور دے. او د بل مسلمان برابر دے. او دا رورولی تشه د خولے رورولی نه ده. بلکه دا رورولی د یوشان سیاسی او اقتصادی حیثیت ده. په دے رورولۍ کښې ټول مسلمانان یوشان دی. نه پکښې څوک مغل شته، نه افغان. نه ترک شته نه ایرانے. نه عرب شته، نه عجم. نه پکښې څوک بادشاه شته نه فقیر. اسلامی رورولی ټولو مسلمانانو ته د یووالی او عالمګیر اخوت سبق ورکوی. او ټول مسلمانان د توحید د حفاظت او اشاعت دپاره په یوصف کښې اودروی. لکه علامه اقبال چه وائی ــ

ایک ہوں مسلم حرم کے پاسبانی کے لئے

نیل کے ساحل سے لے کر تا بخاکِ کاشغر

د اسلام د بے نظیره رورولۍ او برابرۍ مثال دا دے، که د غلام د سورلۍ وار راشی نو هیڅ پرواه نشته، که د ټول عجم شاهان، امیران او نوابان د قیصر او کسرٰی سره د اسلام د خلیفه په انتظار کښې ولاړ وی. خلونه به د خپلے سورلۍ د وار مطابق د سور غلام د اوښ مهار نیولے د قیصر عظیم الشان شاهنشاهی دربار ته بیا ده تلل فخر ګنړی. او ټولے دُنیا ته به د اسلام

علمبردار سبق ورکوی چه دَ اسلام دَ ساده خو دَ ذی شان تمدّن دَ کامیابئ راز دَ مسلمانانو دَ برابرئ او مساواتو او دورولئ او اخوت په اصول کښې تړلے پروت دے. اسلام کښې دَ انسان انسانی حیثیت یو دے. اسلام دَ وقارِ آدم او دَ تکمیلِ اخلاق دپاره راغلے دے.

په پورتنی مثال کښې مونږ په اسلام کښې دَ حیثیت دَ برابرئ ذکر اوکړو. اوس په اسلام کښې دَ معاشی او اقتصادی برابرئ مثال هم واورئ. دَ مسلمانانو خلیفه دَ یمنی څادرونو نه جوړه نوے جُبّه اغوستے ده. دا څادرونه مسلمانانو ته په مالِ غنیمت کښې راغلی دی. او په ممبر ولاړ دے. مسلمانانو ته وعظ او نصیحت کوی. په دے کښې دَ مجمع نه یو مسلمان پاسی او خلیفه ته دَ ټولو مسلمانانو په وړاندې وائی. مونږ نهٔ ستا حکم منو، نهٔ ستا وعظ آورو. خلیفه ورته په حیرت کښې تپوس کوی چه ولے؟ مسلمان ورته وائی ځکه چه تا دَ مسلمانانو په مال غنیمت کښې خیانت کړے دے. یعنی څادرونه چه راغلی ؤو نو ستا هم یو څادر رسیدلے ؤو. او ته دَ نورو نه په قد کښې لوئے هم یې. نو دَ نورو مسلمانانو ورته جُبه جوړه نهٔ شوه. او ستا ورته جُبه جوړه شوه. دا ځکه چه تا خیانت کړے دے. او ځان ته دِ دَ یو په ځائے دوه څادرونه په ویش کښې بیل کړی دی. خلیفه خپل ځوئے ته مخ اړوی، چه جواب ورکړه. دَ خلیفه ځوئے مسلمان ته وائی چه خلیفه خیانت نهٔ دے کړے. خو خلیفه چه دَ جُبے جوړولو اراده اوکړه. ما ورته خپل څادر ورکړو. او دغه شان یو دَ خلیفه خپل څادر شو او یو ځما. نو دَ دواړو څادرونو نه دَ خلیفه جُبه جوړه شوه.

دا حال ؤو دَ اسلام دَ عالمگیر اخوت او مساوات. اوس دَ دے په رڼا کښې اوګورئ چه دَ مغلو شهنشاهیت څهٔ څیز ؤو. آیا دا اسلامی ؤو که غیر اسلامی.

اسلام دَ شاه او ګدا تمیز ورک کړے ؤو او محمود او ایاز ئے په یو صف کښې اودرولی ؤو. غریب او مالدار ته ئے یو شان حیثیت ورکړے ؤو.

دَ اسلامی ژوند دَ اصولو مطابق دَ حیثیت او شرافت معیار تقوی ده. په اسلام کښې چه څوک زیات تقوی دار دے. اخلاقی ژوند تیروی. هغه مالدار دے. هغه لوئے سړے دے. هغه خطاب یافته دے. هغه کرسی نشین دے. هغه خدائے پاک ته نزدے دے. هغه ته خدائے پاک حیثیت ورکړے دے. اسلامی حیثیت په مال او عهده نهٔ دے. اسلامی حیثیت دَ مادی ژوند په آرام او آسائش نهٔ دے. اسلامی ژوند هغه اخلاقی او روحانی ژوند دے چه دَ دُنیا نه کناره کشی نهٔ بنائی. دَ دُنیا دَ کاروبار تلقین ورکوی خو په داسے طریقه چه "دِل به یار، دست

به کار"۔

خلیفه حضرت عمرؓ دَ اسلام دَ دے فلسفهٔ حیات په عمل سره دُنیا ته سبق ورکولو۔ او خوشحال خان خټک، دَخپل هم مذهب مغل، دَ مذهبی قومیت څکه خیال نه ساتلو چه مغل دَ اسلام په بنیادی اصولو هیچرے عمل پیرا نهٔ وُو۔ مغلو لکه دَ نن ورځے دَ مالدارو مُسلمانانو په شان، مذهب په طور دَ یو رائج رواج او مقبول فیشن قبول کړے وُو، خو حقیقت کښے هغوئ مذهب دَخپل کار ایستلو او ملوکانه اغراضو او دُنیاوی مادی حیثیت، او آرام او آسائش دپارهٔ یو آلهٔ کار جوړ کړے وُو۔ مغل هیچرے پښتون مُسلمان ته دَ یو مذهبی رور په سترګه نهٔ کتل۔ او نهٔ ئے دَ مغل په سترګه ورته کتل. بلکه مغلو پښتانهٔ خپل مریان او غلامان ګڼل۔ دَ مغلو په اسلامی حکومت کښے دَ اسلامی رشتے او خپلولۍ په سبب مغل مُسلمان هیچرے پښتون مُسلمان ته یو شان سیاسی حیثیت، مذهبی حیثیت، قومی حیثیت او اقتصادی حیثیت نهٔ ورکولو۔

پښتون مُسلمان دَ مغل مُسلمان لکه دَ غیر مُسلمانانو په شان یو ذلیل او محکوم رعیت وُو. مغل دَ خپلے اسلامی مذهبی عقیدے هیچرے په عملی، دُنیاوی ژوند کښے پابند نهٔ وُو۔ مغل لکه دَ نن ورځے دَ مُسلمانانو، تش په نوم مُسلمان خو وُو۔ لیکن په عملی ژوند کښے مغل صرف په هغے اسلامی اصولو باندے عمل پیرا وُو، کوم اصول چه دَ هغهٔ دَ بادشاهۍ او ذاتی اغراضو دَ مفادو موافق وُو۔ هغه اسلام مغل نهٔ منلو کوم چه دَ هغهٔ دَ دُنیاوی او شاهی مفادو موافق نهٔ وُو۔

مغل مُسلمان ته هغه هِند وبیربل، مان سنګهـ او جسونت سنګهـ ډیر نزدے وُو کوم چه دَ پښتون مُسلمان دَ کوشمالۍ دپارهٔ به دَ هندوستان نه راروان شول او دَ پښتون په سر به سوارهٔ شول۔ او دَ پښتون ټول وطن به ئے تباه برباد او لتاړ کړو۔ دغه دَ مغل مُسلمانی وه او دغه ئے عمل۔

دَ عربو اسلامی حکومت بیشکه چه په ړومبی دور کښے یعنی دَ خلفائے راشدین په زمانه کښے اعتقاداً او عملاً دَ اسلامی اصولو او تعلیماتو پابند وُو۔ او دَ دے دپاره په حقیقی طور اسلامی حکومت وُو۔ دَ عربو اسلامی حکومت په دے دور کښے، تر عربی نسل یا قوم پورے محدود نهٔ وُو۔ بلکه دَ عربو قومیت هغه عالمګیر مذهبی قومیت وُو چه دَ هغے عظیم الشان قومیت ممبر جوړیدو دپارهٔ دَ عرب نسل شرط نهٔ وُو۔ خو صرف اسلام راوړل واحد شرط وُو۔ نو بیا هغه که دَ هر ملک وُو۔ هر څه رنګ به ئے وُو۔ دَ هر نسل نه به وُو۔ پس هغه ټول امتیاز به دَ مینځ نه اووتو۔ هر عجمی به عربی شو او دَ اسلام دَ لوئے مذهبی قومیت فرد به شو۔ دَ هغهٔ به اسلامی حیثیت قائم شو۔ هغه به دَ اسلام

په عالمگیره رور ولئ کښې شامل شو. او په اسلامي حکومت کښې به ئې لکه د نورو مُسلمانانو په شان مساوي حصه او منلې شوه. داسې حصه او داسې حیثیت، څرنګه چه به د وخت د خلیفه وُو.

د عربو د عالمگیر تمدن د کامیابئ هم دغه راز وُو چه د ټولو مُسلمانانو مشترکه قومیت اسلام وُو. یعنی مذهبي قومیت یا لو یه انساني برادري او خپلولي.

نسلي یا وطني قومیت عربو نهٔ پیژندلو. په مُسلمان عرب او په مُسلمان عجم کښې هیڅ فرق نهٔ وُو. په اسلامي حکومت کښې به د دواړو یو شان حیثیت وُو. د واړه به په یو شان د حصې دعویداران وُو. په اصل او نسل فخر، عربو د مُسلمانانو د مشترکه قومیت دپاره یو لعنت ګڼړلو. د اسلامي حکومت حفاظت په هر مُسلمان فرض وُو. ځکه چه هر مُسلمان د هغې حکومت مالک وُو. د هر مُسلمان په هغې کښې یو شان اسلامي او سیاسي حیثیت وُو.

د عربو په اسلامي حکومت کښې یو مُسلمان د بل مُسلمان مرئیے او غلام نهٔ وُو. بلکه هر مُسلمان د بل مُسلمان برابر حیثیت لرلو. هر مُسلمان د بل مُسلمان رور وُو. مُسلماني لکه د نن ورځې په شان د مُسلمانئ په نوم د یو بل سره دهوکه نهٔ وه. او د ذاتي مفادو د حصول دپاره یوه آله نهٔ وه. بلکه مُسلماني یو الهي او روحاني مذهب وُو. یوه روحاني رورولي وه. یوه اسلامي برابري وه. یوه بے مثاله دینداري وه. یوه بے نظیره تقوی وه. د خود غرضئ او د خود غرضه دنیاوي مالدارو خلقو دپاره د غریبو په مرئ چاړهٔ نهٔ وه. د قرآن پاک پیغام د حق پیغام وُو. د غریبو، د خوارو او د ناداره مددګار وُو. او د ظالمانو سرمایه دارو په سر یو مهارت وُو. د خواجه دپاره مرګ وُو. لکه علامه اقبالؒ چه په جاوید نامه کښې ملّت روسیه ته د سید جمال الدین افغاني په خولهٔ پیغام ورکوي ے

چیست قرآن، خواجه را پیغام مرګ
دست گیر بندهٔ بے ساز و برګ

او د دے دپاره هر مُسلمان د اسلام سپاهي وُو. او سپاهي هم د کوم جلیل القدر شان؟ کهٔ مړه شوے دے نو شهید وُو. کهٔ ژوندے او سیدے نو غازي. پس په دین دُنیا جنتي وُو. د اسلام د سپاهي یا غازي دا بے مثاله اعتقاد د مُسلمانانو د دُنیا د ډیرے لوئے حصے په د ژوند نه په مرګ زیات خوشحال وُو. او د چا په ژوند کښې چه لوئے خواهش په اسلامي جنګ دومره لږه موده کښې د فتح کولو راز وُو. د یو داسې فوځ طاقت ته څوک تینګیدے شو؟ څوک چه یا غزا کښې مرګ حاصلول وُو.

دَ مغلو اسلامی حکومت هیچرې په دې رنګ کښې نهٔ وُو. هغه یوقامی. نسلی. ملکی یا ذاتی حکومت وُو چه دَ هغې ټول مفاد دَ مغل قوم ترحلقې پورې محدود وُو. دَ پښتون مُسلمان په هغې کښې هیڅ حصه نهٔ وه. پښتون مُسلمان دَ مغل مُسلمان یوادنیٰ رعیت او محکوم قوم وُو او مغلو به محکوم قومونو ته کهٔ هغه مُسلمانان وُو او کهٔ غیرمُسلمانان دَ حقارت په نظر کتل. او خپل غلامان او مریان به ئې ګڼړل. دَ دې دپاره خوشحال خان حق بجانب وُو چه دَ مغلو دَ شهنشاهیت نه ئې بغاوت اوکړو. او پښتانهٔ ئې دَ مغلو دَ غلامۍ نه خلاصول. په دې جنګ کښې یو خوا ته پښتانهٔ وُو. هغه هم برخې برخې. تار په تار او منتشر. څهٔ دَ مغلو سره ملګری وُو او څهٔ دَ مغلو خلاف. او بل خوا ته مغل او دَ هغوی ملګری هندوان راجپوت وُو. خوشحال خان په داسې حالاتو کښې دَ مغلو دَ زبردست شهنشاهیت مقابلې ته ولاړ وُو. او بیا ئې په ټوله دَ مغلو مقابله کوله. اګرچه په خپل ژوند کښې هغه په دې مقصد کښې کامیاب نهٔ شو چه مغل ئې دَ خپل ملک نه بیخی شړلے وې. او دا ناکامی هغهٔ خپله هم په خپلو اشعارو کښې څو څو کرته ستائیلې ده. خو دَ مغلو نسلی شهنشاهیت هغهٔ داسې کمزورې کړو چه ورو ورو دَ مغلو دَ شهنشاهیت ټول پوخ محل په نړیدو شو. او دَ مغلو او دَ پښتنو دَ دې تاریخی کشمکش نه دُنیا داسبق زده کړو چه هر بادشاه یا هر حکومت چه پښتنو طرف ته دَ مغلو پالیسی، یا دَ اورنګ زیب عالمګیر پالیسی اختیار کړی. یعنی دا چه پښتانهٔ خپل مریان ګڼړی، او دَ مریانو سلوک ورسره کوی. پښتانهٔ به داسې حکومت یا داسې بادشاه ته هیچرې وفادار نهٔ وی.

## دَ خیبر دَ شکست نه پس :-

دَ خیبر شکست دَ محمد امین خان ملا ماته کړه. او دَ هغهٔ لوئی په خپل سر ما ته شوه. په خیبر پسې دَ مغلو دویم لوئے شکست په ګنډهاب وُو. ګنډهاب دَ شبقدر نه قبلې طرف ته دَ مهمند په علاقه کښې پروت دے. دَ ګنډهاب جنګ په کال ۱۶۷۳ء کښې شوے وُو. په دې جنګ کښې دَ پښتنو دَ لښکر مشر ایمل خان وُو. او دَ مغلو دَ فوځ کمان دَ شجاعت خان او جسونت سنګه په لاس کښې وُو. دا جنګ خوشحال خان په خپله مشهوره قصیده "بیا له کومه راپیدا شو دا بهار" کښې په یو بیت کښې داسې ستائیلے دے ؎

بیا له پسته جسونت سنګه، شجاعت خان وُو
چه ایمل ئې په ګنډهاب ویوست دَ مار

په دے جنګ کښے د مغلو د فوځ سرلښکر شجاعت خان قتل شو . او مهاراجه جسونت سنګه په تيښته ځان خلاص کړو . د ګندهاب د جنګ نه وړاندې په دوآبه او په نوښار هم جنګونه شوی ؤو او په دے جنګونو کښے هم مغلو شکست خوړلے ؤو . دا جنګونه په پوره ته ذکر شوے قصيده کښے خوشحال خان داسے ستائيلی دی :-

دويم جنګ مير حسيني په دوابه کښے — چه ئے او تکيده سر لکه د مار

بيا له پسه د نوښار د کوټ جنګ ؤو

چه م او کيښ تر مغلو خپل خمار

د مغلو د نوښار په قلا خوشحال خان او ايمل خان په شريکه حمله کړے وه او فتح کړے ئے وه . څلورم جنګ د مغلو سره په کال ۱۶۷۴ئه کښے په خاپښ شوے ؤو . خاپښ دره، د غره د مهمندو په علاقه کښے، د شبقدر نه قطب قبلے طرف ته پرته ده . دا جنګ خوشحال خان داسے ستائی :-

شپږم جنګ مکرم خان شمشير خان دواړه

چه ايمل کړل په خاپښ کښے تار په تار

د خاپښ په جنګ کښے هم د پښتنو د لښکر مشر ايمل خان ؤو . او دلته هم د مغلو فوځ شکست اوخوړو .

## د مهابت خان په دريم ځل د کابل صوبے صوبه دار مقررېدل

د خيبر په شکست پسے زر اورنګ زيب عالمګير، محمد امين خان د کابل د صوبيدارئ نه لرے کړو . او د هغه په ځائے په دريم ځل مهابت خان د کابل د صوبے صوبه دار مقرر کړو . د اورنګ زيب عالمګير اوس پوخ يقين راغلے ؤو چه د سرحدی علاقے قبائيل بغير د مهابت خان نه نور څوک نۀ شی سمؤلے .

## د اورنګ زيب عالمګير خپله حسن ابدال ته راتلل -

په خيبر، ګندهاب او خاپښ کښے چه مغل فوځونو د پښتنو د لاسه پرله پسے شکستونه اوخوړل، نو د دے شکستونو په وجه اورنګ زيب عالمګير ډير پريشان شو . هغهٔ فيصله اوکړه چه خپله د سرحدی علاقو د قبائيلو د ګوشمالئ د پاره راشی . چنانچه په کال ۱۶۷۴ئه کښے اورنګ زيب خپله راغلو او د سرحدی علاقے د جنګونو د نګرانئ کارئے په خپل لاس کښے واخستو . هغهٔ د خپل غټ نيکهٔ اکبر په لار روان شو . په حسن ابدال ئے پړاو واچولو او د پښتنو د مطيع کولو کارئے شروع کړو .

# مهابت خان او خوشحال خان

مهابت خان چه په دریم ځل د کابل صوبه دار مقرر شو نو بیا ئے خوشحال خان ته د مغلو سره د تعاون او ملګرتیا اووے. خو خوشحال خان د قید نه پس، هغه خوشحال خان نه ؤو. کوم خوشحال خان چه هغهٔ د قید وبند نه وړاندې پیژندو. خوشحال خان خپل دوست مهابت خان ته اووے چه د مغلو نه زړهٔ ستړے نا ستے یم. او د پښتنو خلاف د مغلو هیڅ پروا نه شم کولے سه

کهٔ خوشحال پینځ هزاری که، مه ئے وینه
د مغل د نوکرئ دے اغیـــــــره ے

خوشحال خان اوس د مغلو خلاف پټ، آشکاره جنګیدلو. او د پښتنو په ننګ او دریدے ؤو. د خیبر د معرکے هغه پټ جرنیل ؤو. په نوښارئے د ایمل خان سره د مغلو خلاف په جار حمله کړې وه. په ګندهاب او خاپښ کښے همدردی او صلاح مشورهٔ ئے د ایمل سره وه. اوس د مغلو د منصب او جاګیر دم په خوشحال خان نهٔ چلیدو. خوشحال خان اوس د ختکو سرداری خپل مشر ځوئے اشرف خان ته اوسپارله. هغه اوس په جار د مغلو نه یاغی ؤو. او خپل ژوندئے لکه د یو وطن دوست پښتون سردار اولیډر تیرول شروع کړل. مهابت خان چه پوهٔ شو چه خوشحال خان د مغلو نه باغی دے نو د سیاست نه ئے کار واخستو. په خپل کور کښے ئے ورله خپل ځوئے بهرام دښمن کړو. بهرام د خوشحال خان دریم ځوئے ؤو او د خوشحال خان نه په دے خفه ؤو چه هغهٔ د ختکو سرداری اشرف خان ته ولے حواله کړے ده.

# خوشحال خان او بهرام خان

بهرام خان د خوشحال خان هغه ناخلف ځوئے دے چه په خپل کلیات کښے ورته خوشحال خان ځائے په ځائے ډیر سر ټکولے دے. او ډیر بد ردئے ورته وئیلی دی. په یو ځائے کښے خوشحال خان وائی:. بهرام هغه خنزیر دے :: چه لائق دے د تعنګ
یو بل ځائے کښے بهرام ته داسے وائی سه

تا هُنر د سردارئ نهٔ زده بهرامه ... سرداری دِ په خپل دو کړه بدنامه
هم تمامے خیلخانے لره بلا شوے ... هم خپل ځان لره بلا شوے بد فرجامه
تا طاهر د کم عقلئ په جرګو مړ کړو ... او فارغ شوے د طاهر له انتقامه

تاخپل ځان لره دَمرګ رخنه پیدا کړه | خیلخانه دِ په بدخوئ کړه بے آرامه
په دا هسے بدخوبئ بے بخته نهٔ ئے | چه لانهٔ ئے دَخونی هاتی تر ژامه
مشر رور دِ په زندان کړته خانی کړے | داخانی دِ شه په ځان پورے حرامه
چه خانئ ته دِ هوس دَ زړهٔ په زور کړو | لا خانئ وه ستا دَ زړهٔ اندیښنه خامه

نور دِ نوم ځما دَ ځویو په شمار مهٔ شه
دَخوشحال خټک ویناً په دا تمامه

وائی چه خوشحال خان دَ بهرام متعلق دا وصیت کړے ؤ چه پس له مرګه کهٔ بهرام ځما دَ اولاد په لاس ګیر شی نو په توره دِ ئے دوه ټوټے کړی۔ نیم دِ ځما دَ قبر سرته او سیزی. او نیم دَ قبر پښو ته۔

خوشحال خان ډیر ځایه بهرام او دَ هغهٔ ملګرو مغلو ته شکستونه ورکړل۔ خو دَ بهرام په سازش سره په کال ۱۰۸۳ھ کښے اشرف خان دَ مغلو په لاس بندی شو او دَ بیجاپور (دکن) په قلا کښے لس کاله بندی پاتے شو۔ او هم هلته وفات شو۔ اشرف خان هم لکه دَخپل پلار شاعر ؤ۔ صاحبِ دیوان دے او هجری تخلص لری۔ دَ اشرف خان په بندی کیدو پسے دَ خټکو سرداری مغلو بهرام ته او بخښله۔ دَ بهرام او دَ هغهٔ دَ ځوئے مکرم خان دَ لاسه خوشحال خان تر خپله مرګه ډیر په عذاب پاتے شوے دے۔

## خوشحال خان او بنګش

قبائیلو کښے دَخوشحال خان کهٔ یو طرف ته جنګونه دَ یوسفزو سره پاتے شوی دی نو بل خوا ته دَ بنګښو سره هم دَخوشحال خان ډیر خونړی جنګونه شوی دی۔ دَ یوسفزو سره دَخوشحال خان او دَخوشحال خان دَ خیلخانے دَجنګونو ذکر مونږ کړے دے۔ دلته په اختصار سره دَخوشحال خان دَ بنګښو سره دَجنګونو ذکر کوو۔

شیر محمد خان بنګښ چه دَ بنګښو سردار ؤ۔ هغهٔ دَ تری۔ بولاق محال سودا دَمغلو دَمقامی حاکم مرزا مغل سره او کړه۔ دا کال ۱۰۶۵ھ ؤ۔ چونکه په دے محال دَخوشحال خان دَ کورنئ قدیمی دعوی وه، او چونکه دَ دے محال خلقو هم غوښتل چه دا محال دَخوشحال خان دَ کورنئ سره پاتے شی نو خوشحال خان خپل تره ځا دی خان دَ دے محال دَ سرکولو دَ پاره او لیږلو۔

دَ تری بولاق عالمو ورسره ملا تړاو کړو - او دَ بنګښو سره یې هنګو جنګ اوشو - بنګښو ماتے اوکړه.
خوځه موده پس دَ بنګښو سردار شیر محمد بیا جنګ ته تیار شو. دا کال سنه ۱۰۶۳هـ وو. خوشحال
خان دَ دے جنګ د پاره خپل مشر ځوئے اشرف خان او خپل مشر تره بهادر خان اولیږلو. په دے
جنګ کښے هم بنګښو ماتے اوکړه او خټکو جنګ اوګټلو.

په دے جنګ پسے دریم جنګ دَ خټکو او بنګښو ترمینځه دَ عوړزیو تول سره اوشو. دَ دے
جنګ مشر، دَ خوشحال خان تره خادی خان وُو. دا ځل خټکو دَ بنګښو یو قوی لښکر مات کړو.
ډیر بنګښ ئے اووژل او ډیر مال ورته په ګوتو ورغلو. په دے پسے مشهور جنګ چه دَ خوشحال خان
او دَ بنګښو دَ سردار شیر محمد چه دَ مغلو طرفدار وُو، ترمینځه شوے دے. دا دَ ګنبت جنګ دے.
دا هغه وخت وُو چه اورنګ زیب عالمګیر په حسن ابدال پروت وُو. کال سنه ۱۰۸۲هـ وُو. په دے جنګ
کښے خوشحال خان خپله او دَ هغه ځوئے عبدالقادر خان زخمی شوے وُو. او خټکو دَ بنګښو دَ لاسه
شکست خوړلے وُو. دَ دے جنګ حال خوشحال خان په دردناکو اشعارو کښے بیان کړے دے چه اول
شعر ئے دا دے ؎

دَ بنګښ په توره مات نهٔ یم باور کړه
دَ ګنبت په جنګ یم مات آسمانی دهٔ

دَ ګنبت په جنګ پسے دَ خټکو او بنګښو ترمینځه فیصله کن جنګ په ډوډه اوشو. دا
کال سنه ۱۰۸۰هـ وُو. په دے جنګ کښے خټکو بنګښو ته شکست فاش ورکړو. ډیر بنګښ قتل شول.
او خټکو ته ډیر مال په لاس ورغلو. دَ دے جنګ حال خوشحال خان په هغه مشهوره قصیده
کښے بیان کړے دے چه دَ دے شعر نه شروع کیږی ؎

څو وا نخلی له غنیمه انتقام
مړو نهٔ خوب کا، نهٔ خوراک کا، نهٔ آرام

دا قصیده دَ بیانیه او رزمیه شاعرئ یو شاهکار دے.

دَ خوشحال خان دَ بنګښو او دَ یوسفزو سره چه کوم جنګونه شوی دی، په دے کښے فرق
دا وُو چه یوسف زی دَ مغلو خلاف وُو. او چه خوشحال خان په کومه زمانه کښے دَ یوسفزو
سره جنګونه کول نو خوشحال خان دَ مغلو په طرف وُو. او دَ مغلو منصبدار وُو.
دَ بنګښو سره دَ جنګونو کیفیت بل وُو. دَ بنګښو سره چه دَ خوشحال خان کوم آخری

دوه جنګونه په ګنبت او دودره کړي دي، دَ دے جنګونو په زمانه کښے خوشحال خان دَ مغلو مخالف ؤو او بنګښ دَ مغلو په طرف ؤد۔

## دَ اورنګ زیب عالمګیر دَ زور او دَ زرو پالیسی

اورنګ زیب عالمګیرلکه څنګه چه معلومه ده، اول دَ پښتنو خلاف دَ زور مظاهره اوکړه خو چه په خیبر، ګندهاب او خاپښ مغلو برله پسے شکستونه اوخوړل۔ نو اورنګ زیب خپله راغلو او په حسن ابدال پریوتو۔ او په پښتنو کښے ئے دَ نفاق خورولو په غرض زر خواره کړل۔ معلومه خبره ده چه دَ پښتون خوارخوغیرتی قوم، په آله آسانه زر ورته سرنهٔ ټیټوی، خو زر ورته دَ تینګے نهٔ دی۔ اورنګ زیب چه زر راخوارهٔ کړل نو خوشحال خان پوهٔ شو چه اوس به کامیاب شي. خوشحال خان په چغه اووے ـــه

خزانے دَ هندوستان دی راخورے شوے
سرهٔ مُهران دی ننوزی په کُهسار

خوار پښتون حسبِ عادت زر قبول کړل او بادشاهی ئے دَ مغلو په زرو بائیله۔ اورنګ زیب په عارضی طور تر یوه حده په خپل مقصد کښے کامیاب شو۔

## دَ خوشحال خان آخری عمر

دَ خوشحال خان آخری عمر دَ غمونو او مصیبتونو یو داستان دے۔ یو خوا دَ هغهٔ په خپل خاندان کښے دَ هغهٔ دښمنان پیدا شول۔ خپل خوئے بهرام ئے دښمن شو۔ بل خوا مغل دَ هغهٔ نه خفه ؤو۔ او هغه دَ مغلو دَ سترګو اغزے ؤو۔ هغهٔ کوشش کولو چه دَ پښتنو نه یو قوم جوړ کړی۔ او دَ پښتنو مختلفو قبیلو کښے اتفاق پیدا کړي۔ او په یو مرکزئے راجمع کړی۔ او دَ مغلو سره ئے اوجنګوی۔ خو پښتانهٔ دَ مغلو، زرو، منصبونو، جاګیرونو۔ خطابونو او انعامونو داسے بے خوند کړي ؤو چه دَ خوشحال خان دَ ملی آزادی سندرے ئے نهٔ آوریدے۔ په دے حقله خوشحال خان خپله ناکامیابی داسے ستائی ـــه

کهٔ هرخوئے سموم را نهٔ سمیږی
چه کاږهٔ دی دَ بدبختو ورېوږونه

خوشحال خان دَ یوسفزو دَ علاقے دوره اوکړه. اوکوشش ئے اوکړو چه دَ سمے یوسفزی دَ مغلو خلاف دَ خان سره ملګری کړی. خو هلته ئے هم څۀ کامیابی بیا نه مونده.

دَ سوات په سفر کښے چه خوشحال خان دَ سوات او دَ سواتیا نو متعلق کوم اشعار وئیلی دی دا هم دَ دلچسپئ نه خالی نۀ دی. دَ مثال په طور دا اشعار اولولئ ـــ

دوه کاره دی په سوات کښے کۀ خفی دی کۀ جلی
مخزن دَ درویزه دے یا دفتر دَ شیخ ملی

او بیا وائی ـــ

| | |
|---|---|
| کۀ ژوندے شی افلاطون | په سوات کښے ۇنسی سکون |
| اکوړیو ته بیان کا | کتابونه دَ فنون ! |
| هدایه کفایه دواړه | په پښتو کاندِ موزون |

دوئ به وائی چه دا څۀ دی
مخزن ښۀ دے دَ اخون

خوشحال خان چه دَ یوسفزو دَ امداد نه نا اُمیده شو، نو دَ یوسفزو ئے ډیر بد وئیلی دی. خو دَ انصاف تقاضا دا ده چه دَ یوسفزو خلاف خوشحال خان دَ مغلو دپاره ډیر څۀ کړی ؤو. او اوس چه دَ خوشحال خان زړۀ دَ مغلو نه بد شوے ؤ نو دَ هغۀ نه هیر ؤو چه دَ یوسفزو سره هغۀ دَ مغلو په خاطر څومره بد کړی دی. خو هغۀ او هغے جنګ دَ پښتون دَ ننګ جنګ ګڼړلو. او دَ سوات او دَ سمے یوسفزی ئے دا پاړ ؤل چه دَ هغۀ سره دَ مغلو خلاف ملا تړاو کړی.

آفریدو هغۀ ته ډیر امداد ورکړے ؤو. دَ دریاخان او ایمل خان په مشرئ کښے آفریدو دَ خوشحال خان سره دَ مغلو خلاف ښۀ کومک کړے ؤو. او ترمړکه پورے ورسره تینګ ولاړ ؤو. خو په یوسفزو کښے هغه نا کامیابه شو. او دَ دے نا کامیابئ تاریخی پس منظر مونږ ته معلوم دے.

اول خټک دَ مغلو منظورِ نظر ؤو. او چه یوسفزو دَ مغلو سره جنګونه کول نو دَ مغلو په امداد سره خټکو، دَ یوسفزو ډیره علاقه لاندِ کړے وه. خو اوس په خټکو راغله. او خټک دَ مغلو مقابلے ته اودریدل. نو کۀ یوسفزو دَ هغوئ امداد نۀ کولو، نو یوسفزی په دے کښے حق بجانب ؤو. خو دا سے معلومیږی چه خوشحال خان دا تاریخی پس منظر نۀ لیده. او یوسفزو ته ئے بد رد وے. حالانکه هغه چه دَ یوسفزو سره څۀ کړی ؤو. دَ هغے په دنیا کښے هغۀ ته پکار ؤو چه

په یوسفزو ئے بد نهٔ وئیلے - خو د خوشحال خان په نظر کښے یوسفزی ځکه بد ؤ چه یو خو د هغهٔ پلار په نیکهٔ دښمنان راغلی ؤ او بله دا چه د مغلو خلاف ئے د هغهٔ سره ملا تړ نهٔ کولو.
لکه چه وائی ؎

کهٔ سودا ده، کهٔ خویښی کهٔ نوکری ده
نور پښتون دے له مغلو نه ویزار

په دا دور چه کو تو نه پکښے ساز شول
یوسفزیٔ تر دا دواړو دی مردار

کشمیری به هم دا هسے رنګه نهٔ وی
چه نر ښځے د مغلو خدمتګار

او بیا وائی ؎

د مغل په طباخ ډیر یوسف منډړ دی لکه وږی چې ډیر یړ ی درنګ تو درنګ
کهٔ کعبه، کهٔ ئے قبله ده، خو ننګه ده په پیسه پسے به در ومی تر فرسنګ

کهٔ پیسه د ملنګئ په لباس مومی
مصلے به د ګیدړ کا پسے لنګ

یو بل ځائے کښے وائی ؎

زهٔ تنها پکښے په غم د نام و ننګ یم
یوسفزیٔ فراغت په کښت و کار

خو سره د دے تاریخی دښمنئ بیا هم چه خوشحال خان د سوات نه واپس شو- نو یوسفزو لښکر را ټول کړو- او د خوشحال خان ملګری شول - شهباز ګړهے سره ئے، د مغلو د لښکر سره جنګ او کړو- او د مغلو لښکر ته ئے شکست ورکړو-

دغه شان ځائے په ځائے د مغلو او پښتنو جنګونه لګیدلی ؤو- کله پښتانهٔ بر، مغل لړ- او کله مغل بر، پښتانهٔ لړ- دوه غرونه سره په جنګ ورغلی ؤو- او یو بل ته ئے ډ غرے ورکولے. لکه خوشحال خان چه وائی ؎

سره ورغلل دوه غرونه یو مغل دویم پښتون

خو اورنګ زیب د زور او زرو په برکت د پښتنو په مقابله کښے کامیاب شو- د خیبر دره ئے د مغلو د آمد و رفت دپاره خلاصه کړه- او په کال ۱۶۷۶ئ کښے اورنګ زیب د حسن ابدال نه

واپس دهلی ته ستون شو۔

په دے دوران کښے د پښتنو په علاقه کښے قحط او خشک سالئ هم زور اوکړو۔ مرضونه او وباګانے هم شروع شوے۔ او اوږد جنګ پښتانهٔ اوزبیل۔ او خوشحال نے هم ستړے کړو۔ خوشحال خان بیا هم همت نهٔ بائیلو۔ هغه د مغل په مقابله کښے د پښتنو په ننګ ولاړ وو۔ او په دے ننګ کښے کهٔ یو طرف ته هغهٔ د مغلو مقابله کوله نو بل خواته د خپلے قبیلے او خاندان د ځنے بد بختو افراد و مقابلے ئے هم په غاړه وه۔

د خوشحال خان د ژوند په دوستو خوګالو کښے بهرام د زړهٔ دا خلاصه کوشش کولو چه خپل پلار بندی کړی۔ او مغلو ته ئے حواله کړی۔ او په دے غرض هغهٔ یو ځل خپل ځوئے مکرم خان او لیږلو چه نیکهٔ ګرفتار کړی۔ او په زولنو کښے ئے بندی راولی۔ خوشحال خان چه خبر شو نو په ضعیفئ او پیرئ کښے هم لکه د زمری جنګ ته تیار شو۔ او خپل نمسی ته ئے د مقابلے دعوت ورکړو۔ خو هغهٔ کښے د ومره همت نهٔ وُو چه سپین ګیری شیر ببر ته ئے لاس اچولے وے۔ مکرم خان نا کامیابه پلار ته واپس راغلو۔ بهرام خان ځوئے ته غصه شو۔ ډیر بد ردئے ورته اوویل او حکم ئے ورته ورکړو، چه فوراً خوشحال خان مړ یا ژوندے راونیسه۔ مکرم خان د نیکهٔ د نیولو دپاره دوباره لاړو۔ او بهرام د پیښور د مغلو ګورنر نه امداد او غوښتو چه بوډا شیر مو راګیر کړے دے۔ سړی را اولیږه چه ګرفتار ئے کړو۔ خوشحال خان چه د دے واقعا تو نه خبر شو نو شپه په شپه د آفریدو علاقے ته واوښتو۔ او د مغلو د بند نه ئے ځان خلاص کړو۔

د دے واقعے نه پس، خوشحال خان څهٔ لږ موده نور هم ژوندے وُو خو له دے نه پس ئے په ژوندانهٔ د اکوړی لیدل نصیب نهٔ شو۔

آخر د شپږ او یاؤ کالو په عمر کښے یعنی په کال ۱۶۸۹ء کښے د آفریدو په علاقه کښے وفات شو۔ او د دے غیرتی پښتون سردار د مرګ په وخت کښے خپلو خپلوانو ته دا وصیت پریښودو چه ځما قبر دا سے ځائے کښے جوړ کړئ چه د مغلو د آسونو د ګردونو نه په امان وی۔ علامه اقبال د خوشحال خان دا وصیت په "بالِ جبریل" کښے داسے نظم کړے دے:-

| | |
|---|---|
| قبائل ہوں ملت کی وحدت میں گم | کہ ہو نام افغانیوں کا بلند |
| محبت مجھے ان جوانوں سے ہے | ستاروں پہ جو ڈالتے ہیں کمند |
| مغل سے کسی طرح کمتر نہیں | کہستان کا یہ بچہ ارجمند |

کہوں تجھ سے اے ہمنشین دل کی بات　　وہ مدفن ہے خوشحال خان کو پسند

اُڑا کر نہ لائے جہاں باد کوہ

مغل شہسواروں کی گردِ سمند

# دَ اورنګ زیب عالمګیر وفات او دَ مغلو زوال

په کال ۱۷۰۷ء کښې اورنګ زیب عالمګیر وفات شو۔ او دَ اورنګ زیب دَ وفات سره دَ مغلو دَ حکومت ستورے هم په ډوبید وشو۔ دَ خوشحال خان نمسے او دَ اشرف خان ځوئے افضل خان چه دَ تاریخ مرصّع مصنّف دے لیکی چه دَ اورنګ زیب دَ حکومت په آخر بیولسو کالو کښې دَ کوهاټ او بنو علاقه تقریباً دَ مغلو نه یاغی وه۔ دا دَ خوشحال خان دَ تورے او دَ قلم برکت وُو چه دَ پښتنو په علاقه کښې ئې دَ مغلو نه دومره نفرت پیدا کړو چه پښتنو دا اراده اوکړه چه دَ مغلو نه ځان آزاد کړی۔ دَ اورنګ زیب عالمګیر دَ وفات نه لږه موده پس دَ کابل ولایت یا صوبه تقریباً دَ مغلو دَ ګرفت نه آزاده شوے وه۔ یعنی هسے تش په نوم دَ مغلو دَ حکومت دَ لاندِ وه۔ او په کال ۱۷۳۹ء کښې چه نادر شاه افشار په هند حمله اوکړه نو هغهٔ دَ قبائیلو عداوت دَ دهلی تخت ته منسوب کړو۔ حالانکه حقیقی واقعات دا وُو چه خوشحال خان خټک چه دَ آزادئ کوم تخم کرلے وُو، دَ هغې په وجه دَ پښتنو علاقه دَ مغلو دَ غلامئ نه ډیره مخوا آزاده شوے وه۔ که چرے اورنګ زیب دَ پښتنو سره او دَ پښتنو دَ مشر خوشحال خان سره خپل تعلقات ښهٔ ساتلے وے نو یقیناً چه پښتانهٔ به دَ مغلو دَ حکومت دَ استحکام دپاره همیشه کمر کس، تیار ولاړ وُو۔ او غیر مسلمو به دَ مغلو حکومت هیچرے نهٔ وے کمزورے کړے۔ خو دَ اورنګ زیب غلطے پالیسئ پښتانهٔ دَ مغلو دَ سلطنت دښمنان کړل۔ او نتیجه ئې دا اوخته چه نادر شاه افشار چه په هندوستان حمله اوکړه نو دَ دهٔ خلهٔ لږه ډیره مقابله پښتنو قبائیلو اوکړه۔ ګنی باقی تر دهلی خو میدان صاف وُو۔ که چرے پښتانهٔ به دے موقع دَ مغلو نه خوشحاله وے۔ او دَ مغلو دَ حکومت په تشا دَ زړهٔ نه ولاړ وے نو نادر شاه افشار به هیچرے تر دهلی نهٔ وُو رسیدلے۔ دَ هغهٔ ټول طاقت به دَ پښتنو په علاقه کښې ختم شوے وُو۔ او دَ مغلو هندوستان به دَ هغهٔ دَ حملے نه بچ پاتے شوے وُو۔ خو پښتنو سره وراته دَ مغلو تاریخی غلطی وه۔ چه دَ مغلو په نقصان تمامه شوه۔

# پښتو، پښتون او خوشحال خان

دَ خوشحال خان دَ ژوند په حالاتو او دَ خوشحال خان دَ معلوسره په کشمکش مونږ څهٔ لږه
ډيره رڼړا واچوله - دَ دے نه به لوستونکو خوشحال خان په حيثيت دَ يو سړي پيژندلے وي خو دَ خوشحال
خان په حيثيت دَ يو پښتون يا نمونه، پښتون يا نګيالے . پښتون يا نګيال پيژندلو دپاره مونږ ضروري
ګڼړو چه په پښتو او پښتون بحث اوکړو - او دَ دے الفاظو چه دَ پښتون په معاشره کښے څهٔ مفهوم دے
دَ هغه مفهوم تحليل او تجزيه اوکړو -

دَ پښتو کلمه ذو معنیٰ ده - پښتو پښتانهٔ خپلے ژبے ته وائي - او پښتو پښتانهٔ خپل ملي سيرت
ته وائي - دَ دُنيا په هيڅ قوم کښے ملي ژبه دَ ملي سيرت په معنیٰ کښے نهٔ استعماليږي - دا امتيازي خصوصيت
صرف دَ پښتو په کلمه کښے دے - يعني فارسي وان دا نهٔ وائي چه تا کښے فارسي شته يا نشته - يا عرب
دا نهٔ وائي چه تا کښے عربي شته يا نشته - يا انګريزان دا نهٔ وائي چه تا کښے انګريزي شته يا نشته -
خو صرف پښتانهٔ وائي چه تا کښے پښتو شته يا نشته -

پښتو يوه ډيره پُر معنیٰ او جامع کلمه ده - او دا دَ پښتون قوم دَ حيات په هر اړخ جاري
ده - پښتو دَ پښتنو دَ ملي ژوند، عزت، شرافت، لوړوالي، غيرت او حميت يو داسے معيار دے چه پښتنو
په دے تله پښتون تلي - او کوم پښتون چه دَ پښتونه پريوزي نو دَ پښتنو دَ نظره هم پريوزي .
پښتون په پښتو کښے کهٔ يو خوا ته ننګ، مړانه، شجاعت، ميلمستيا، بدل، سخاوت، غيرت، عفو، استقلال
سخت کوشي، عزم، دَ ارادے پختګي، پت، پخه ملګرتيا، پخه دوستي، ساده ګي، صاف ګوئي، حق ګوئي،
بے باکي، ايثار او قرباني او سيالي وغيره ښهٔ صفات موجود دي، نو بل خوا ته ورکښے فضول دود، دستور
او رواجونه، بے ځايه او بے موجبه ضد، په ذات پات بے ځايه غرور او تکبر، يو ګونه دَ زمانے
جاهليت، جهل، تربورولي او پخه دښمني. کسب ګر او هنرمند او غير پښتانهٔ ته په سپک نظر کتل .
بے ځايه خرڅونه، بے ځايه انفراديت او بے موجبه انتها پسندي وغيره هم شامل دي -

دَ پښتون پښتو دَ اسلام قبلولو نه وړاندِ هم دَ پښتون قوم يوه ضابطهٔ حيات يا
وه . او دَ اسلام قبولولو نه پس هم دَ پښتون پښتو قائمه ده -
يعني
اسلام دَ پښتون په پښتو ضرور خپل رنګ خيژولے دے خو بيخي ئے خپله کړے نهٔ ده .
مونږ دا نهٔ شو وئيلے چه پښتو دَ اسلامي اخلاقو مجموعے ته وائي . ياګني پښتو او اسلام يو څيز دے .
دَ پښتون په پښتو کښے تر اوسه داسے اجزاء شته چه هغه دَ اسلامي، اخلاقي ژوند سره سمے نهٔ خوري -

پښتانهٔ خپله وائي چه پښتو نيم کفر دے. او پښتانهٔ نيم قرآن مني او نيم نهٔ مني. يعني د خپل مطلب قرآن مني، يعني هغه قرآن مني چه د پښتو سره سمون خوري. او هغه قرآن نهٔ مني چه پښتو سره سمون نهٔ خوري. يعني پښتانهٔ رواج مني او شريعت نهٔ مني. او رواج ځکه مني چه رواج په نسبت د شريعت د دوئ پښتو ته زيات نزدے دے.

نو معلومه داشوه چه د پښتون دا پښتو په ځنې خوبيانو او صفتونو کښے اسلامي ده. او په ځنے خاميانو کښے غير اسلامي ده. يعني د اسلام د اثر د لاندې د پښتون پښتو ځنے اسلامي اخلاق منلي دي. يا د هغې سره ئے توارد شوے دے. او په دے وجه اسلام ته را نزدے شوے ده. يا به داسے ووايو چه اسلامي اخلاق د دے قوم مزاج ته نزدے وُو. په دے وجه چه اسلام سره غلو نو دوئ په ابره قبول کړو. او د قوم نه قوم مُسلمان شو. او مسلماني او اسلام د پښتون او پښتو يو جزو اوګرځيدو. خو دا صرف رواجي اسلام دے. هغه ظاهري اسلام چه کوم پښتنو کښے رائج دے. او کوم چه پښتانهٔ حقيقي اسلام ګڼړي. خو زهٔ پښتو او اسلام هم معنیٰ الفاظ نهٔ ګڼړم. په دواړو کښے ډير فرق دے. پښتو د پښتون قوم د ملي خوبيانو او ځنے خو بونو او دود دستورونو د مجموعے نوم دے. يعني دا د پښتون ملي سيرت دے. او اسلام د يو مکمل اخلاقي نظام د ضوابطو نوم دے. چه دا نظام د بنيا دمو د دين دُنيا د نجات دپاره د الله پاک د يو مکمل دين په شکل کښے د خپل محبوب او آخري پيغمبر حضرت محمد صلے الله عليه وسلم په ذريعه رالېږلے دے. او دا د بنيادم دپاره يو رحمت دے. او د خلاصي لار ده.

زمونږ د دور ځنے ليکونکي البته کوشش کوي چه دا دواړه لفظونه هم معنیٰ اوګرځوي او اسلام ته پښتو او وائي. او پښتو ته اسلام. دا بنهٔ کوشش دے. او تعميري کوشش دے. خو په شرط د دے چه پښتانهٔ د پښتو په نوم دا اسلام اخلاقي نظام خپل کړي. او په هغې عمل اوکړي. خو په دے کښے دا ويره هم شته چه هسے نه چه پښتانهٔ خپل روايتي او رواجي پښتو اسلام اوګڼړي. او د اسلام د مکمل اخلاقي نظام نه محرومه پاتے شي.

دلته يوه بله نکته هم د وضاحت غواړي او هغه دا چه زمونږ د دور ځنے پوهان وائي چه پښتون او مُسلمان هم معنیٰ لفظونه دي. يعني چه پښتون وي نو خامخا به مُسلمان وي. دا خبره ترځهٔ حده رښتيا ده ځکه چه رواجي مُسلماني د پښتون مُسلمان د پښتو يو جزو لا ينفک ګرځيدلے دے. پښتون من حيث القوم مُسلمان شوے دے. او دا امتياز صرف پښتون قوم ته حاصل دے چه د قوم نه قوم مُسلمان شوے دے. خپله عربو کښے هم من حيث القوم دا امتياز نشته. عربو کښے هم عيسايان او

يهوديان وغيره شته خو پښتون کلهم مسلمان دے. او د پښتون قوم ژبه هم يعني د مسلمانانو ژبه
ده. او د دے ژبے د نظم او نثر ليکونکی هم، صرف پښتانۀ مسلمانان تيرشوی دی. او س هم پښتانـۀ
مُسلمانان دی. غيرمسلمو د دے ژبے په نثر او نظم کښے هيڅ کار نۀ دے کړے.

نو په دے اعتبار سره که پښتنو کښے څوک مذهب بدل کړی. د مثال په طور عيسائی شی نو هغه
د پښتنو د ميزان نه او غورزيږی. او پښتانۀ ئے هم د پښتون نۀ گڼړی. اگرچه نسلاً هغه بيا هم پښتون
وی. او ژبه ئے هم پښتو وی. خو چونکه مذهباً مُسلمان نۀ وی په دے وجه په پښتون قوم کښے هغه
خپل وقار بائيلی. او د پښتنو د ملی برادرئ نه تقريباً خارج شی.

عن که په مُسلمانئ کښے د څۀ خاص فرقے مُسلمان شی نو بيا د پښتنو د برادرئ نه. نۀ وځی.
پښتانۀ ئے پښتون گڼړی خو په سپک نظر ورته گوری. اکثر پښتانۀ سنيان او حنفی مذهب دی. او د
پښتنو د عزت هم دغه معيار دے. چه پښتون دِ مُسلمان وی. او سُنی دِ وی. خو په پښتنو کښے اهل
تشيّع او احمديان هم شته. او دوئ پښتنو کښے د پښتنو په شان اوسی. او پښتانۀ ئے غيرپښتانۀ نۀ
گڼړی. البته سنيان پښتانۀ ورته په درنه سترگه نۀ گوری. خو دا مذهبی فرق هرځائے شته. دا فرق
صرف د پښتون ترمعاشرے پورے نۀ دے محدود. په مُسلمانانو کښے هرځائے يوه مذهبی فرقه بے مذهبی
فرقے ته د حقارت او نفرت په نظر گوری. دا محض مذهبی تنگ نظری ده.

په دے خو موږ متفق شو چه پښتون وی او د پښتنو په برادرئ او معاشره کښے شامل
پښتون وی نو هغه به مذهباً خامخا مُسلمان وی. خو د پښتون کلمه په يوه بله معنیٰ کښے هم پښتانۀ
استعمالوی. په دے معنیٰ کښے پښتون د پښتو په ځائے استعماليږی.
موږ وړاندِ ذکر کړے دے چه پښتو د پښتنو د ملی سيرت او د ملی کردار نوم دے. دا کردار چه
پښتون په هرچا کښے اووينی که هغه پښتون وی، که غيرپښتون. که مُسلمان وی که غيرمُسلمان نو
پښتانۀ وائی چه ډير پښتون سړے دے. يعنی د پښتون د ملی سيرت يا پښتو حامل دے. لکه چه پښتانۀ
وائی دا پښتون انگريز دے. د دے دا مطلب نۀ وی چه گنی دا انگريز مُسلمان دے. انگريز خو نـۀ
نسلاً پښتون دے او نه عقيدتاً مُسلمان دے. خو د دے دا مطلب وی چه په دے انگريز کښے د
پښتون ملی او طبيعی کردار بيامونده شی. يعنی په خوئ بوئ کښے د يو نمونه پښتون کردار
لری.
په خپلو کښے هم پښتانۀ وائی چه فلانے ډير پښتون سړے دے. د دے دا مطلب نۀ وی

چه فلانے ډیر ښهٔ مُسلمان سړے دے۔ بلکه د دے مطلب دا وی چه په دے سړی کښے پښتو پرته ده۔ کردارئے د نمونه پښتون دے۔ او د پښتو په لاره و چاره روان دے۔

د دے نه دا واضحه شوه چه پښتانهٔ د پښتون او پښتو الفاظ صرف د اسلام او د مُسلمانئ په معنو کښے نهٔ استعمالوی۔ بلکه دا د وئ د خپل مخصوص ملی کردار دپاره استعمالوی۔ چه څنګه خبرے ورکښے اسلامی دی څنګه غیر اسلامی۔ یعنی نسلاً چه کوم سړے پښتون دے۔ یعنی د پښتون سړی په کور کښے پیدا شوے دے، د هغې پښتون په کور کښے، چه د پښتنو په معاشره کښے سیال دے۔ نو هغه به خامخا مُسلمان وی۔ خو ضروری نه ده چه هر پښتون چه مُسلمان وی نو هغه د پښتون هم وی۔ یعنی د پښتو په لاره و چاره د روان وی او د یو نمونه پښتون خوئ بوئ او کردار د لری۔ په دے لحاظ، پښتون او مُسلمان هم معنیٰ لفظونه نهٔ دی۔ په دے کښے فرق دے۔ یعنی دا چه هر پښتون مُسلمان دے۔ خو نهٔ هر مُسلمان پښتون دے۔ او نه هر پښتون، پښتون دے۔

د دے نقطے په مزید وضاحت دا سے او کړو چه یو غیر مُسلم ایرانے، عرب وغیره جوړید ے شی خو هغه پښتون نهٔ شی جوړیدے۔ ځکه چه پښتون به غیر مُسلم نهٔ وی۔ خامخا به مُسلمان وی۔ البته یو غیر مُسلم پښتون عرب، پښتون ایرانے، پښتون انګریز وغیره جوړے شی۔ خو په شرط د دے چه په هغهٔ کښے یو نمونه پښتون کردار موجود وی۔

په یو نمونه پښتون کښے علاوه د پښتو د نورو خوبیانو وخاصیانو نه د دے خوصفتونو موجودګی لازمی ده۔ یعنی دا چه میلمه دوست د وی۔ تورزن د وی۔ د پښتون د ننګ محافظ د وی۔ د حمیت خاوند د وی۔ او د غیرت پاسبان د وی۔ او یو خ دوست او یوخ ملګرے د دی۔ او د پخے او قوی ارادے مالک د وی۔ او ژبه دئے پښتو وی۔ او د پښتنو د یو شریف خاندان او مستند قبیلے سره د تعلق لری۔ اوس نمونه پښتون او د نمونه پښتون پښتو به پریږدو۔ او د یو عام پښتون د کردار تجزیه به او کړو۔ د پښتون کردار اجتماع ضدین دے۔ په پښتون کښے خوبئ هم ډیرے دی او خامیانے هم ډیرے لری۔ پښتون خوار دے او پیسے ډیرے په سختئ، محنت او مشقت ګټی۔ پښتون د خوارئ قیمتئ نه دومره ویریږی چه د پښتون په علیک سلیک او کړه بره کښے هم چه یو ورته وائی "ستړے مشے" نو بل ورته دُعا او کړی "خوار مشے" خو سره د دے چه پښتون په پښتو کښے راشی نو دا په سخته ګټلے پیسے دا سے په بے دردئ سره والوزوی چه سړے ورته حیران پاتے شی د ښادئ۔ غمئ دود دستور، تربے اوګورئ، د فضول او بے ځایه خرڅ یوه مثالی نمونه ده۔

په دکه خوله به او وائی، چه پیسے څه وی، پیسے خو د څوان د لاس خیرے دے۔

پښتون زمینداری، کوډ، چاری او د سرمزدوری د عزت کار گڼړی۔ خوکسب، هنر، تجارت او سوداگری ته په سپک نظر گوری۔

پښتون بهادر، توره زن دے۔ په مړانه او شجاعت فخر کوی۔ پښتون ته ډرن وډیل لیوے کنځل دی۔ دا کنځل پښتون هیڅرے نشی برداشت کولے۔ او ډرن او ویریدونکی ته په سپک نظر گوری۔ پښتون پیدا شوے ننگیالے، جنگیالے او توریالے دے۔ ښه لښکری دے۔ خو ښه سپاهی نهٔ دے۔ پښتون ضابطه نهٔ منی۔ او د ضابطے تر سیورے لاندے آزادول غواړی۔ پښتون ښهٔ فاتح دے۔ خو ښهٔ منتظم نهٔ دے۔ لښکرے او کړی۔ ملکونه فتح کړی۔ خو چه انتظام ته خبره راشی نو بیا ورکښے نهٔ دے۔ چه انتظام ورته په غاړه شی نو دے هرڅهٔ په ځائے پریږدی او خپلو غرونو ته واپس لاړ شی۔ چه څهٔ ورته په لوټ مار کښے په لاس ورغلی وی۔ هغه او خوری او کله په یوه تړه ناست تیر وائی او کله په بله تړه۔

پښتون غصه ناک او تند مزاج دے۔ پښتون جذباتی دے۔ چه په قهر کښے راشی په نهٔ څهٔ خبره مرگ او کړی او خپل ځان، مال حال او خاندان تباه کړی۔ پښتون خپله بے عزتی نهٔ شی برداشت کولے۔ په خپل عزت او د خاندان په عزت هرڅهٔ بائیللو ته تیار دے۔

پښتون په بدل ژوندے دے۔ پښتون خپل بدل هیڅرے نهٔ پریږدی۔ وائی چه د پښتو کانړے په اوبو کښے نهٔ ورستیږی۔ پښتون غیور او حسود دے۔ د ښځے په عزت او عصمت همیشه قتلونه او مرگونه کوی۔

پښتون د رسم و رواج پابند دے۔ په عزیزولئ کښے لاندے راتلل نهٔ خوښوی۔ د رور تربور سره سیالی کوی، چه په هر قیمت وی۔ پښتون جمهوریت پسند دے۔ ځان د بل پښتون او د رور عزیز همیشه برابر گڼړی۔ کهٔ خپله ډیر خوار وی۔ او رور عزیز د قام تیبے و خاندان افراد ئے ډیر مضبوط او مالدار وی، خودے ورنه ځان هیڅرے لاندے نهٔ گڼړی۔ ځان ئے برابر گڼړی۔ خپلے قضیئے، تنازعے او جگړے په جرگه فیصله کوی۔ پښتون ډے ... دے په یره جنبه یوهیږی۔ او دیره جنبه ئے ژوند دے۔
او چه زور پرے راشی نو سرهم ورته کیږدی۔
پښتون نه ورځلوی، او په زور پوهیږی۔
لکه چه وائی، پښتون د رب مسلمان دے۔ پښتون په سندره او موسیقئ مئین دے خودم ئے

بدے شی. اوډ پښتون په معاشره کښے ډم بے عزته بنیادم گنړلے شی۔

پښتون کښے انفرادیت دے۔ په اتحاد او اتفاق کار نهٔ شی کولے۔ ځان ځان ته ئے پرزوی.
دَ پښتون امتیازی نخښه بے اتفاقی ده۔ هر پښتون ځان ته سیر وائی۔ چیرتا کیٔ ورکښے هیڅوک
نشته۔ او هم دغه دَ پښتون دَ بد بختیٔ سبب دے. خو ددے دا مطلب نهٔ دے چه گنی پښتون
مشرکشر نهٔ پیژنی. پښتون دَ بل پښتون سره حسد او ضد کوی۔ پښتانهٔ دَ یو بل پښے راکاږی۔
او دَ یو بل په کمی خوش دی. دَ وور تربور عور زوَل خیل فخر گنړی. پښتون انتها پسند دے۔
درمیانه روی نلری. یا یو کار بشهٔ کول غواړی. یا ئے نهٔ کول غواړی۔

پښتون تربور یعنی خپل دَ ترهٔ زوئ دښمن گنړی. او تربورولی دَ دښمنیٔ دویم نوم
دے۔ دَ پښتون عمر دَ رور تربور سره په جگړو کښے تیریږی. خاندانی جگړے دَ پښتون
امتیازی نښه ده. پښتون چه وهے نو رور تربور ورته اولسوه۔ په رور تربورئے اووهه۔

پښتون کښے ضد، جهل او تکبر دے۔ چه په څهٔ خبره او نښلی کهٔ صحیح وی کهٔ غلط
کهٔ یره وی کهٔ وره خو سرته ئے رسوی. پښتون په اصل نسل او پښتو دیر فخر کوی۔ تردے
پورے چه کلی کښے دوه پښتانهٔ اوسی نو هر یو به وائی چه دا بل دهوبی، نداف، جولا او کسبگر
دے۔ او زهٔ اصیل پښتون یم۔

دَ پښتون مذهب خوش دے خو ملا جوړیدل ورته عار ښکاری. ملا په پښتون کښے سپک
دے۔ پښتون دَ مسلمانیٔ هغه برخه منی یعنی عمل پرے کوی چه دَ دهٔ دَ پښتو سره ئے سمون خوړلے
دے۔ او هغه برخه ئے نهٔ منی یعنی عمل پرے نهٔ کوی کومه چه دَ پښتو سره برابر نهٔ ده۔ او
خپله وائی چه پښتو نیم کفر دے۔ خو بیا هم په پښتو ټینګ دے۔ پښتون شهوتی دے خو
حیادار دے۔ دَ نفس او دَ شهوت په کار تفرق نهٔ کوی. بلکه دا یو سپک کار گنړی۔ او پټ په
پټه ئے کوی۔ دَ شهوت نمود او نمائش ورته شوم او عار ښکاری۔

پښتون پوخ دوست او کلک دښمن دے. په دوستیٔ او دښمنیٔ کښے هر څهٔ روا گنړی.
پښتون منافق نهٔ دے. چه څهٔ ئے په زړهٔ وی هغه ئے په خولهٔ وی. دَ زړهٔ جذبات
یعنی نفرت یا محبت پټولے نهٔ شی۔

پښتون ساده او صاف گو دے. خو حق گو نهٔ دے. په پره جنبه او دوستیٔ دښمنیٔ کښے
همیشه دَ ناحقے گواهی او شاهدی کوی. او په دروغو قسمو نو خو پلو ته هم تیار شی۔

په پښتنو کښې هره قبیله خان نه قام وائي - د پښتون د مشترکه قومیت تصور نه شته - هره قبیله د بلې قبیلې سره په جنګ وي - او هر خاندان، بل خاندان ته لاندې وتې وي.
پښتون د مشر لحاظ - او د سپینو ږیرو او سپینې ږیرې عزت کوي. پښتون د عمر په لحاظ د حفظ مراتب قائل دے مشر کشر پیژني - او کشران د مشرانو عزت کوي. او مخې ته ورته نه راځي.
پښتون سخي خوښوي او په بخیل بد وائي - پښتون کښې خان او سردار هغه دے چه یو خواته کټل، بخښل او خوړل کوي - او بل خواته تل پرانستل، مېلمانه او تورزني کوي.
پښتون خپل دښمن غورزول غواړي، چه په هر چل وي. د دښمن د غورزولو دپاره هر فریب، هره حیله او مکر روا ګڼي - او د کمینه نه کمینه کار کولو ته تیار شي.
پښتون جاه پرست او دولت پرست دے - پښتون خود غرضه او خود پرست دے. خو مطلبي نه دے - یعني دوستي محض د مطلب دپاره نه کوي. پښتون سخت کوش او خواري کش دے. تن آسانه نه دے.
پښتون سوال کول ذلت ګڼي - او سوال ګر ته په بد نظر ګوري. خو خیرات او صدقه ورکولو کښې مړنے دے - پښتون پیر پرست او مزار پرست دے. د پیرانو، سیدانو، میاګانو، او باباګانو معتقد دے - پښتون توهم پرست دے. د توهماتو نه ویریږي - او توهمات مني.
پښتون د تعویذ، کوډو، منتر، جادو قائل دے - پښتون د خپل عزت او ورے دے، چه په پسته خوله ورسره خبرے کوے او په درنه سترګه ورته ګورے نو په خوږه خوږه کښې هر څه کار ترے اخستے شے - خو سخت کلام سړي ته بوندیږي - او کنځل او بے عزتي نشي برداشت کولے -
پښتون غیر پښتون ته په سپک نظر ګوري او په پښتنو کښې هم چه کوم سړے د پښتو د میزانه پریوزي، هغه سپک شي - پښتون په ښځه لاس نه اوچتوي - ښځې سره جنګ کول عار ګڼي - پښتون سره چه زور، ظلم او بے انصافي اوشي نو په هغه کښې ئے ساتي - او چه وار ئے راشي نو بدل ضرور اخلي -
پښتون عفوه او درګذر هم کوي - خو د ننواتي په شکل کښې که ګوره نه د عزت مرګے په شکل کښې ورشي نو د لوئے نه لوئے جرم به درته اوبخښي.

پښتون میلمه دوست او ډوډۍ ماردے. پښتون په اولاد مئین دے خو د خلقو مخکښې ورسره مینه عار ګڼړی. او اولاد په رُعب کښې ساتی.

پښتون په ښځه مئین دے. او د ښځې په عزت خپل سر ورکوی. خو د ښځې نمائش ورته مرګ دے. پښتون دا نی چه د ښځے دپاره یا کور دے او یا ګور دے. البته په ښځې کارکول او سخت کارکول خپل حق ګڼړی. ښځه په زمینداری کښې ورسره امداد کوی. لرګی او وابښهٔ پرے راوړی. او مال پرے څروی.

پښتون د مال ډیر اډرے دے. او د مال حاصلولو دپارهٔ هرڅهٔ ته تیار شی یعنی حرام، رشوت، پړے، دروغ، غلا، داړه، فریب، ټګی او قتل وغیره.

پښتون د علم ډیر شوق نهٔ لری. او په خپل قدیمی جهالت کښې خوښ دے. دا د خپل کلتور یو جز ګڼړی. کهٔ علم حاصل هم کړی خو د جهالت خویونه نهٔ پریږدی.

پښتون د کپړو په نمائش نهٔ دے خوښ. ساده، خړه پړه جامه، دا سے جامه، چه د جسم اندامونه په ښهٔ شان پټوی، د پښتون خوښه ده.

پښتون لونګړے، کفایت شعار نهٔ دے. چه څهٔ ګټی هغه ختمی. د صبا غم نهٔ کوی. پښتون ځان په نفساتی معیار تلی او بل په اخلاقی معیار. د بل په سترګه کښې خسترے ورته شاه تیر ښکاری. او په خپله سترګه کښې شاه تیر خسترے.

پښتون د مذهب د ظاهرپالو پابند دے. خو د مذهب د روح نه ناواقف دے. د پښتون جمعداری او په بل حکم چلول ډیر خوښ وی. خو حکم منل ورته ښهٔ نهٔ ښکاری. په دے وجه ښهٔ افسر دے. خو ښهٔ ماتحت نهٔ دے.

پښتون د نشو شوقین دے. خو نشئی سړے ئے خوښ نهٔ وی. پښتون چه غبِ پښتون ته ډیرلوئے عزت او خطاب ورکوی، نو وائی چه دا ډیر پښتون سړے دے. یعنی ایله د ځان سړه ئے سم کړی.

پښتون د ننګ بنده دے. په پښتونولی او ننګ چه او دریږی نو سر او مال دواړه پرے ډ ډ کړی. د پښتون په کلچر یا ثقافت کښې په حیثیت مجموعی د بنی اسرائیلو د عربو اثر ضرور شته. خو دا خالص اسرائیلی کلچر یا عربی مدنیت هم نهٔ دے. دا د دوی د خپل وطنی کلچر یا پښتو او د عربو د اسرائیلی ثقافت یو معجون مرکب دے.

پښتون دَ عهدے اودَ مال اوږے دے ۔ په خطابونو، منصبونو او جاګیرونو مئین دے، دَ دے دپاره هره ناروا کوی ۔ هم خان په بل خرڅوی ۔ هم قام او دین او ایمان خرڅوی ۔

پښتون سنګدل دے ۔ په ظلم نهٔ شرمیږی خو په زړهٔ چه ئے کله کله راشی نو رحم هم کوی ۔ پښتون جهان ګرد او جهان ګشت دے ۔ خو په وطن هم ډیر مئین دے ۔ په درست جهان کښے اوګرځی خو زړهٔ ئے په وطن کښے وی ۔ بل وطن کښے تل دَ خپل وطن ارمان کوی ۔ او چه موقعه بیا مومی نو دَ مرګ نه وړاندِ خپل وطن ته ځان رسوی ۔

پښتون آزادی پسند دے ۔ او په خپله آزادئ تل فخر کوی ۔ پښتون لور، خور ته په خپل مال او جائداد کښے برخه نهٔ ورکوی ۔ اودَ وادهٔ په وخت کښے په لور، خور پیسے هم اخلی ۔

دَ پښتو او پښتون دَ دے تجزیے او تحلیل نه پس اوس به مونږ دَ خوشحال خان خټک دَ شخصیت جائزه واخلو ۔ اودَ هغهٔ دَ شخصیت په مختلفو اړخونو به بحث اوکړو ۔

# خوشحال خان په حیثیت دَ یو پښتون سردار

دَ خوشحال خان دَ شخصیت دَ مختلفو اړخونو دَ مطالعے نه ظاهره ده چه هغه یو نمونه ننګیالے پښتون سردار ؤو ۔ اودَ پښتنو دَ سردارئ په نازک خومشکل هنر ښه پوهیدلو ۔ دَ هغهٔ په کردار کښے دَ پښتون قوم خوبئ او خامئ دواړه بیا موندے شی ۔ خو خوبئ ورکښے دَ خامیانو په نسبت ډیرے دی ۔ او دا خوبئ صرف په یو ډیر اوچت انسان کښے په نظر راځی ۔ دَ خوشحال خان پیژندل په حقیقت کښے دَ پښتون پیژندل دی ۔ او نهٔ صرف دَ پښتون پیژندل دی بلکه دَ یو پښتون خان یا سردار پیژندل دی ۔ او نهٔ صرف دَ یو پښتون خان یا سردار پیژندل دی، بلکه دَ یو ننګیالی پښتون خان یا سردار پیژندل دی ۔

دَ خوشحال خان په کردار کښے مونږ ته لویه خامی دا ښکاری چه هغه دَ پلار دَ مرګ نه پس لکه دَ پلار نیکهٔ په شان په حیثیت دَ خټکو دَ سردار، دَ مغلو منصبدار او جاګیردار شو ۔ اودَ مغلو دپاره ئے خپل هم قوم یوسفزو سره جنګونه کول ۔ مونږ دا منو چه دا دَ هغهٔ دَ کردار کمزورے ده ۔ خو دا حقیقت کښے دَ هغهٔ کمزوری نهٔ ده ۔ دا دَ هغے قوم کمزوری ده ۔ یعنی دَ پښتون قوم کمزوری ده ۔ دَ کوم قوم چه خوشحال خان نمائنده دے ۔ دَ پښتنو په تاریخ کښے، اودَ پښتنو په معاشره کښے به خومره پښتانهٔ تیرشوی وی ۔ او یا به ژوندی وی ۔ چه هغوئ ته به عهدهٔ منصب

جاگیر، انعام او مال په لاس ورځي۔ او هغوئ به ورنه دَ قام په خاطر مخ واړه وی۔ او یا دَ دُنیاوی مفادو په خاطر به دَ قام مرئ پرے نکړی۔

بله دا چه دَ خوشحال خان په زمانه کښے دَ مشترکه قومیت تصوّر هم نه وو نه۔ هرے قبیلے به خان ته قام وے۔ لکه چه اوس هم هره قبیله خان ته قام وائی۔ او په بین القبائلی جگړو کښے هرے قبیلے به دا کوشش کولو چه په هر چل چه وی، خپله دښمنه قبیله او وهی۔ او مړانه او همت بنهٔ خوانتوب او لوئی په دے کښے وه چه قبائیلی جنګونو کښے خپله قبیله اوچته کړی۔ او دښمنه قبیله او غوبرزوی۔ نو خوشحال خان کهٔ هم دا کوشش کولو چه خټک ئے دَ یوسفزو په مقابله کښے اوچتول۔ عن کهٔ دَ مغلو په امداد سره وُو نو دا په حقیقت کښے دَ هغه قوم کمزوری وه۔ دَ کوم قوم چه خوشحال خان سردار وُو۔ خوشحال خان شاید چه دَ مغلو خدمت هم ځکه په راستهٔ کولو چه هغهٔ خپل خیال کښے خپله قبیله په یوسفزو اوچتوله۔ او دا دَ هغه وخت سره، دومره بے مناسبه کارنهٔ وُو۔ لکه چه وائی سه

زهٔ دَ یوسفزئ په ځان زهر وُم قاتل؛
بل مقصود مِ نهٔ وُو، په خدمت کښے دَ مغل

بله دا چه یو طرف ته خو خوشحال خان دَ مغلو په پره کښے دَ یوسفزو سره جنګونه کول، چه دَ مغلو دښمنان وُو۔ او بل خوا ته خوشحال خان دَ مغلو دَ مرضئ خلاف دَ بنګښو سره جنګونه کول چه دَ مغلو طرفدار وُو۔ نو دَ دے نه معلومیږی چه دَ هغهٔ بین القبائلی جنګونه دومره دَ مغلو په خاطر نهٔ وُو لکه خومره چه دَ خپلے قبیلے یعنی دَ خټکو دَ برترئ او لوئے والی په خاطر وُو۔ او په دے حیثیت دَ خپلے قبیلے دَ سردار، هغهٔ دا جنګونه لکه دَ یو نمونه پښتون په شان بنهٔ په جرأت سره کړی دی۔ او په دے جنګونو کښے ئے بنه مړانه او بهادری ښائیلے ده۔ لکه ځنګه چه یو پښتون سردار ته پکار وه۔

دَ مشترکه قومیت تصور دَ خوشحال خان نه وړاندِ، دا سے معلومیږی چه په دومره منظمه او بنه طریقه هیڅ و بل پښتون پیش کړے نهٔ دے۔ او خوشحال خان خپله هم دے نتیجے ته پس له تلخو تجربو نه رسیدلے وُو۔ دَ مشترکه قومیت تصور، قومی، یا ملی پښتو ده۔ او دا خیز دَ پښتون په فطرت کښے نشته۔ دَ دے خیز دَ پیدا کولو کوشش، په پښتون کښے خوشحال خان په اول ځل کړے دے۔ او هغه هم په دے کښے نا کامیاب شوے دے۔

دَ پښتون دَ پښتو ارتقائی مدارج دا دی چه اول هر پښتون دَ خپل ځوندون دَ حفاظت او عزت خیال ساتی۔ او خپل ژوند دَ پښتنو په معاشره کښې دَ پښتو په لاره چلوی، او تېرول غواړی۔ که ډیر پوهه او اصیل پښتون وی نو هغه دَ ځان سره دَ خپل خاندان دَ حفاظت او عزت خیال هم ساتی۔ او دائے خواهش وی چه دَ هغهٔ خاندان دِ هم په پښتو کښې چا لاندې نهٔ شی۔ او چه ډیر اوچت، پوهه او شریف پښتون خان یا سردار وی نو هغه به دا خواهش لری چه دَ هغهٔ قبیله دِ هم دَ پښتو په لاره چلیږی او کښې دَ نورو قبیلو نه اوچته وی۔ او باعزته ژوند دِ تېروی۔ او دَ قبیلې حفاظت او عزت لکه دَ خپل ځان او خاندان په شان ضروری حفاظت او عزت گڼړی۔

دَ خوشحال خان خټک په زمانه کښې دَ پښتو اوچت نصب العین هم تر دغې پورې وُو۔ او په دغه معیار هغه دَ اول سرنه، یو نمونه پښتون سردار وُو۔

دَ پښتو دَ دریمه ارتقائی درجه یعنی دا چه اصیل او ننګیالے پښتون به دَ خپل ځان، خاندان او قبیلې دَ حفاظت او عزت سره دَ پښتون قوم بحیثیت مجموعی دَ حفاظت او عزت خیال دَ نورو قومونو په مقابله کښې غوره گڼړی۔ او دَ دے ملی پښتو دپاره به خپل ځان، خاندان او قبیله قربانوی۔ دا تصور دَ خوشحال خان دَ زمانے په پښتون کښې نهٔ وُو۔ هغهٔ په اول ځل دَ کوشش اوکړو چه دا مفکوره پښتون ته وړاندې کړی۔ او دَ دے مفکورے دپاره ئے جدوجهد شروع کړو۔ خو چونکه دا خیز دَ پښتون په سوایاتو او فطرت کښې نهٔ وُو۔ دَ دے دپاره هغه په دے کوشش کښې پاتے راغلو۔ دَ قید نه روستو چه کوم خوشحال خان وینو۔ دا خوشحال خان دَ هغې خامئ نه پاک دے دَ کومې خامئ چه مونږ ذکر کړے دے۔ یعنی هغهٔ دَ مغل منصب پرېښو او دَ پښتون په ننګ داسے کلک او درید دچه ترمرګه پورے ئے دغه دَ خپل ژوندمرام او مقصد اوګرځولو۔ دا خوشحال خان دَ ډیرو اوچتو خوبیانو او صفتونو مالک دے۔ او دا نهٔ صرف دَ پښتون دَ یوې قبیلې سردار دے بلکه دَ ټولهم پښتون قوم یو لیډر دے۔ او لیډر هم داسے لیډر لکه نن چه په مغربی قومونو کښې دَ لیډرئ تصور دے۔ دا خوشحال خان پیدا شوے خو دَ مشرق په نا پوهه کهستانی وطن کښې دے خو دَ قومیت سبق ئے دَ مغربه نه یاده کړے دے۔ او دَ قومی پښتو علمبردار دے۔

دَ سردارئ چه په اشعارو کښې خوشحال خان کوم تصور پیش کوی دَ دے تصور او

د دے خوبیا نو نمونه دَخوشحال خان خټک ذات وُو.

خوشحال خان وائی ؎

چه کټل، خوړل، بخښل که خان هغه
چه توره لری دَ توره ځوان هغه

دَخوشحال خان دَ سردارئ ژوند هم دغه شانتې وُو. په دے شعر چه څومره دَ خوشحال خان خپله عمل وُو، بل یو پښتون پرے عمل نهٔ دے کړے. خوشحال خان دَ سردارئ په حقله ډیر څهٔ ویلی دی. او تش ویلی ئے نهٔ دی بلکه عمل ئے هم پرے کړے دے. دا لاندینی اشعار اولولئ ؎

خانی کار دَ هر چا نهٔ دَے دَ هغهٔ دے
چه صرفه ئے نهٔ په زر وی نهٔ په سر
یکباره ئے په نظر کښے شرم ننگ وی
دَ دُنیا په سودا و زیان نهٔ وی خبر

سردار هغه دے چه شرم ننگ لری
مدام دَ شرم توره تر څنگ لری
صرفه په زر نهٔ که، صرفه په سر نهٔ کړه
چه دښمنان له هغو جنگ لری

چه مئین په وسله نهٔ وی
مرد دِ نهٔ وائی ځان ته
لاس دِ سرهٔ کړی سترگے توره
ځان دِ دجوړ وی ځوان ته
یا تکیه دَ یوهٔ خدائے ده یا دَ توره
په جرگو مرکو نهٔ شی کار تمام

چه صرفه کاندِ په سر
یا صرفه کاندِ په زر
نهٔ به خان نهٔ به سلطان شی
نهٔ به خیل کاندی کشور
چه په ځان مړنے نهٔ وی
مړنتوب نهٔ کا لښکر
دَ مړو یو مړنتوب په لښکر نهٔ وی
مړه ئے هر کله یوازے په خپل ځان شی

دَ پښتون سردار دپاره دَ مړانے اوشجاعت نه علاوه سخاوت هم ضروری دے۔ او خوشحال خان دومره ښهٔ خوان ؤو چه سره دَ دے دومره لوئے خانی اوسرداری، هیچرے زکوٰة پرے فرض شوے نهٔ ؤو۔ دَ هغهٔ دَ سخاوت دروازه لکه دحاتم دَ هرچا دپاره هر وخت خلاصه وه۔ خوشحال خان وائی ـــ

کهٔ گنجونه دَ قارون درته انبار شی
په هرلوری ئے غورزوه په سخاوت

دَ خوشحال خان په دے خپله وینا خپله په مکمل طور عمل ؤو۔ او عمل ئے هم په دے رنګ :۔

کهٔ حاتم غوندِ کرم کړے دَ مهرانو
دَ یوے دَمړئ په چا مهٔ بزده منت

خوشحال خان په خپل مال کښے دَ هرغریب پښتون حصه کړله۔ اودسترخوان ئے دَ هرچا دپاره غوړیدلے پروت ؤو۔ انغرے به ئے سړیدو ته نهٔ پریښو۔ دیګ به ئے هر وخت بانډِ ؤو۔ اولنګر به ئے جاری ؤو۔ اوچه وفات شو نوحال ئے دا ؤو۔ لکه چه خپله ئے دُعا غوښتے وه ـــ

چه کالی ئے پاتے نهٔ شی مرده شوے ته
خدا یه ورکړے وخوشحال هسے رحلت

ژوندئے داسے پاک ؤوچه دَ هغے زمانے مشهور ولی پیر شیخ رحمکار یعنی کاکا صاحب علیه الرحمة وصیت کړے ؤوچه چونکه په دے زمانه کښے په شریعت محکم سړے، دَخوشحال خان خټک نه بغیر بل څوک نشی کیدے۔ دَ دے دپاره کهٔ چرے ممکنه وی نوما ته دِ هغه غسل راکړی او قبرته مِ دِ هم هغه کوز کړی۔

دَ همت ئے داحال ؤوچه په پیرئ اوضعیفئ کښے چه بهرام خپل څوئے مکرم خان دَ نیکهٔ دَ ګرفتارئ دپاره اولیږلو نودهٔ توپک په غاړه کړو اودَ مکرم خان سړوته ئے دَ مقابلے دعوت ورکړو، خو دَ هغوئ همت اونهٔ شو۔ اوواپس لاړل۔ خوشحال خان وائی ـــ

کهٔ آسمان دِ دَ مزری په خولهٔ کښے ورکړی
دَ مزری په خولهٔ کښے مهٔ پریږده همت

دَ خوشحال خان خپل همت هم دَ دے شعر ژوندے تصویر ؤو۔ داوه دَ خوشحال خان خټک سرداری، څومره ښهٔ خوان ؤو، څومره نمونه خان ؤو۔ څومره لوئے وطن دوست ؤو۔ څومره لوئے بهادر ؤو۔ څومره لوئے لیډر ؤو۔ څومره بے مثله سخی ؤو۔ څومره په ...

میلمه دوست ؤو۔ خومره لوئے عالم ؤو۔ خومره ښهٔ شاعر ؤو۔ او خومره پاک مُسلمان ؤو۔ دَ خوشحال خان خټک کردار، دَ یو توریالی، ننګیالی، جنګیالی، فرهنګیالی او غیرتمند، سخی، شریف او اصیل پښتون خان دے۔ داسے خان او سردار چه په پښتنو کښے بل داسے او چت نمونه سردار تراوسه نهٔ دے پیدا شوے۔

خپله وائی ؎

۱۔ نهٔ به څما غوندِ بل ننګیالے راشی
نهٔ به څما غوندِ بل جنګیالے راشی

۲۔ خټک لا پریږده په درست افغان کښے
عجب کهٔ هسے فرهنګیالے راشی

## خوشحال خان په حیثیت دَ کردار او دَ ګفتار دَ غازی :-

خوشحال خان په حیثیت دَ یو مردِ شمشیرزن او دَ کردار دَ غازی مونږ څهٔ لږ ډیر او پیژندو۔ خوشحال خان دَ دیارلسو کالو په عمر کښے تورے ته لاس کړو۔ او دَ پلار سره دَ جهانګیری په جنګ کښے په اول ځل شامل شو۔ او دا توره دَ هغهٔ دَ لاس نه هله او غورزیده چه دَ شپږ او یاؤ کالو په عمر کښے دَ آفرید و په علاقه کښے وفات شو۔ یعنی صرف ملک الموت دا مجاز لرلو چه دَ پښتون دَ دے بے نظیره مردِ شمشیرزن دَ لاسه توره او غورزوی۔ او دَ آرام په خوب ئے اوده کړی۔ دَ بل چاڅهٔ مجال ؤو چه دَ خوشحال خان په شان توریالے ئے دَ تورے دَ کاره ایوله وے۔ توره دَ هغهٔ ژوند ؤو۔ توره دَ هغهٔ ننګ ؤو۔ او هغه پیدا شوے تورے ته ؤو۔ خپل حال خپله داسے ستائی ؎

په آبا و په اجدا دخان و سردار یم
کارنامے لرم دَ جنګ و دَ جدال!

کهٔ برے کهٔ هزیمت واړه لیدلی
خوئے خصلت لرم دَ قتل دَ قتال

پلار نیکهٔ م شهیدان ؤ کور ته تلی
پشتا پشت م هُنرداد ے آل په آل

کهٔ دَ جنګ دَ پرهار ونو درته وایم
چه له درده به م تن ؤو لکه نال

یو پرهار به م لا روغ په وجود نهٔ ؤو
بل پرهار به م په تن شو یا په ډال

چه قضا دَ سری نهٔ وی سرے نهٔ مری
کهٔ ئے درست صورت په غشو شی غربال

او یو بل ځائے کښے وائی ؎

بخرۀ ئے دَ تیغ راکړه په اصل کښے پښتون یم
پلار په نیکه نهٔ یم . بے دولته . بے حشمه

خوخوشحال خان تش دَ تورے خاوند نهٔ ؤو . هغه دَ قلم خاوند هم ؤو یعنی دَ گفتار غازی هم ؤو . اودَ پښتون قوم یولوئے مفکر، معلم ، فلاسفر اوشاعرهم تیرشوے دے .
ډاکټر اقبال په جاوید نامه کښے دَ خوشحال خان پیژند گلو داسے کوی .

خوش سرود آن شاعرِ افغان شناس آنچه بیند ، بازگوید . بے هراس
آن حکیم ملتِ افغانیاں آن طبیبِ علتِ افغانیاں

رازِ قومے دید وبے باکانه گفت
حرفِ حق با شوخئ رندانه گفت

په دے کښے هیڅ شک نشته چه خوشحال خان لکه څنګه چه علامه اقبال وائی ، افغان شناس ؤو . حکیم ملت ؤو . اودَ ملت افغانیه ، دَ علتونو طبیب ؤو . دَ هغهٔ کلیات او نور تصنیفونه گواهی ورکوی چه لکه هغهٔ چه پښتون قوم پیژندلے ؤو ، داسے بل هیچا نهٔ دے پیژندلے . لکه چه دَ هغهٔ دَ تورے شرنګا اوخرپا چه دښمن به په خوب کښے هم واورېدهٔ ، نو په لړزه به دَ کټ نه پریوتو . داسے دَ بل پښتون توره به په مشکله پیدا شی . خپله وائی ؎

لا په خوب کښے په لرزه پریوزی له کټ نه
چه دَ چا ترغوږ ، ځما دَ تورے شرنګ دے

دغه شان دَ هغهٔ په قلم کښے هم لکه اقبال چه دَ نطشے په حقله وائی ، دَ تندر غرزا ، ډزا او غرهار ؤو . ډیرے ورداړ قلم ئے لرلو -

در نئے کلکش غریوے تندر است

او خوشحال خان پخپله وائی ؎

په پښتو شعر چه ما علم بلند کړو
دَ خبرو ملک مے فتح په سمند کړو
الخ . . . . . . . . . .

اوپه یوه بله لویه قصیده کښے هغهٔ دَ خپل پیدائشی شاعرانه فطرت و دَ

شعر و شاعرۍ او د شاعر سړي او د خپلې شاعرۍ یو اوږد بیان نظم کړے دے چه سر
ئې د دے شعر نه شروع کیږي ؎

زۀ د شعر په کار هیڅ نۀ یم خوشحال
ولې خدائې م کړو په غاړه دا مقال

د خوشحال خان زړور دار او پښتون قلم لکه د هغۀ د پښتنې تورې په شان هم غوڅه کوي۔ او هم مرهم دے۔ هغه چه د پښتنو په خوئې بوئې او د پښتنو په عادتو او خصلتونو او د مختلفو قبیلو د نرو ښځو متعلق څۀ وئیلي دي، هغه صرف یو افغان شناس شاعر وئیلے شي۔ اګرچه هغۀ رښتیا وئیلي دي، خو رښتیا تراخۀ وي۔ په دے وجه په خلقو بد لګی۔ د مثال په طور دا لاندې شعرونه اولولئ ؎

چه د سړوه په ملک کښې بنۀ پښتون یادیږي
نن مهمند، بنګښ، ورک زی، آفریدی دي
د مهمندو سپي بهتر دي تر بنګښه
کۀ هزار ځله مهمند بد تر ترسپي دي
چوهړي د افریدیو ورک زئ !
آفریدي کۀ همه واړه چوهړي دي
هرچه بنۀ د پښتونخواه دي حال ئې دا دے
هغو بدو ته ئې خوک وائي سړي دي
له ژوندیو پښتنو ښیګړه نۀ شته
هرچه بنۀ دۀ هغه ګل د ګور بندي دي

د خپلو خټکو متعلق وائي :-

د خټکو سپي بهتر یوسفزو دي
کۀ خټک دي هم په خوئې ترسپي بسیار
په زرګونو را ته لاف کړاوس یو نشته    آشنائي د هرچا بنه ده بې خټکه
مروت، یادي ترې مۀ غواړه خوشحاله
هر سړے چه اوبۀ اوڅښي له اټکه

چه یوهم د زړهٔ ساتونے پکښے نشته

توبه،توبه د خټکو د اولسه

د خټکو نه م هومره زړهٔ ناخوښ دے
چه توبه د همکی خټک له نامه

د نعمت په قدرهیڅ خبردار نهٔ دی
نوم خټک به م خلاص نهٔ وی له انعامه

د وفا په ځائے همه واړه جفا ده
چه به ماته رسیده له خپله قامه

خټک واړه د دودام دی،کهٔ ئے ګورے
څوک به څهٔ غواړی خپلوی له ددو دامه

د پښتنو متعلق وائی سه

پښتانهٔ کهٔ آدم زاد دی
په خویونو کښے ځناد دی

نهٔ حکمت لری نهٔ عقل
خوښ هرګوره په فساد دی

یو د بل په کمی ناست دی
څکه تل په بلا یاد دی

دالا شکر کړه خوشحاله
چه بندی نهٔ دی آزاد دی

او یو بل ځائے کښے وائی سه

د عفریت دے کهٔ د دیو دے،کهٔ د دد دے
د آدم له نسله نهٔ ګنړم افغان

کهٔ هرڅو ورته د پند خبرے وائے
د پلار پندے هم بښهٔ نهٔ لګی په ځان

## د خوشحال خان تصانیف

د پښتو ژبے د نثر او نظم دواړو بابا آدم خوشحال خان خټک دے۔ لکه خپله

چه وائی سه
کهٔ د نظم،کهٔ د نثر،کهٔ د خط دے

په پښتو ژبه م حق دے بے حسابه

نهٔ پخوا پکښے کتاب ؤ نهٔ ئے خط ؤ

دا دی ما پکښے تصنیف کړل څو کتابه

خوشحال خان د نظم او نثر د ډیرو کتابونو مصنف دے چه د څنو نوموندو کیږی۔

دی :. ۱۔ کلیات خوشحال خان ۔ ۲۔ دستارنامه ۳۔ فضل نامه ۴۔ بازنامه
۵۔ سوات نامه ۶۔ زنځیری ۷۔ بیاض ۸۔ هدایه ۹۔ آئینه ۱۰۔ فراق نامه
۱۱۔ فرضنامه ۱۲۔ طبّ منظوم

دَخوشحال خان په ټولو تصانیفو کښې چه کوم موږ ته را رسیدلی دی، او موجود دی، په نظم کښې دَخوشحال خان کلیات یو اهم کتاب دے۔ دا نهٔ یوازے په اهمیت کښې دَ پښتو دَ نظم بائیبل دے۔ بلکه دَ مضامینو په تنوّع۔ وسعت او همه ګیرئ کښې هم دَ پښتو شاهنامه ده۔ بغیر دَدے کتاب دَ لوستونه دَ پښتون دَ فطرت په ګوناګون، رنګارنګ او قسما قسم پیچیده ساده ګئ پوهیدل ګران کار دے۔ او لکه څنګه چه موږ وړاندِ وئیلی دی، دَ پښتون دَ پیژندلو دپاره، دَخوشحال خان کلیات لوستل ضروری دی۔

دَخوشحال خان په کلیات کښې دَ انسانی فطرت بالعموم او دَ پښتون دَ فطرت بالخصوص ډیره غرقه مطالعه او مشاهده ده۔ او دَ مضامینو ورکښې دومره فراوانی ده چه دَ پښتو په ادب کښې څهٔ چه دَ دُنیا په ادب کښې، دَ نظم له دے قسمه دیوانونه ډیر کم دی۔

دَ نظم دَ تیکنیک دَ نقطهٔ نګاه نه هم دَخوشحال خان کلیات په پښتو ادب کښې، یو یګانه دُر دے۔ او ډیر اصناف لری۔ مثلاً غزل، رباعی، قطعه، قصیده، مخمس، مسدس، معشر، ترکیب بند، مربع۔ مثنوی او ترجیع بند وغیره۔

لکه چه دَ فارسئ دَ ادب بهترینه سرمایه دَ فردوسی شاهنامه ده، دغه شان دَ پښتو په ادب کښې، دَ هر لحاظ نه لوړ او اوچت ادبی او فنی شاهکار، دَخوشحال خان دیوان دے۔ کهٔ دَ پښتو دَ ادب ټوله سرمایه یو خوا کړے او دَخوشحال خان کلیات بل خوا، نو بیا به هم دَخوشحال خان دیوان پرے دروند وی۔

دَخوشحال خان په کلیات کښې مفید، اخلاقی، ادبی، علمی، تاریخی، نفسیاتی او معاشرتی معلومات بیامونده شی۔ دا کلیات په حقیقت کښې دَ پښتون دَ فطرت دَ هر اړخ یوه پوره انسائیکلو پیډیا ده۔ دَ تاریخی جنګونو حالات په دے کښې دی۔ دَ ډهلی دَ ښار مختصر خو منظوم تاریخ په دے کښې درج دے۔ دَ حکمت اخلاق خبرے، دَ موعظت او سیاست خبرے دَ پښتون دَ تهذیب او تمدن، دَ ننګ مړانے او غیرت خبرے په دے کښې دی۔ دَ نظامِ حکومت او دَ سرداری دَ فن او هنر په خبرو دا دیوان ښائسته دے۔ دَ عقائد و،

فرقو، او دَ مذهب فلسفه دا کتاب لری - دَ پښتنو دَ نرښځو، دَ قبیلو او خیلو نو کردار په دے کښے منظوم پروت دے - دَ انسانی فطرت او نفسیاتو توضیحات او تشریحات دا دیوان په گوته کوی - دَ عشق و محبت دَ نازک او نفیس راز، رموز نه هم دا دیوان ډک ښکاری - دَ مناظرِ قدرت، حسین بیانونه په دے کلیات کښے درج دی - قندِ فارسی په دے کتاب کښے بیاموندے شی - دَ مرکب نظمونو یعنی فارسئ، پښتو، پښتنو هندی مصالحدار، عجیبه او خوندناک شعرونه په دے کښے درج دی - دَ تصوّف نازکے مسئلے په دے دیوان کښے حل شوی دی - غرض دا چه دیوان څهٔ دے یو جامِ جهان نما دے - او دَ دے ادبی جهان په شا دَ خوشحال خان عجیبه کردار سړے هر وخت او په هر شعر کښے محسوسوی - کله سړے دَ روه دَ کوهستانونو دا بے مثله ننګیال لکه دَ شیرِ ببر په شان په قهرا و غرهیا وینی او کله لکه دَ شیراز دَ بلبلِ هزارداستان په شان په شیرینو او زړهٔ سواند غزلو، بدلو گویان او مشغول ښکاری - کله لکه دَ طوفانی او موجزن سمندر په شان په غرهارا وشور کښے او چتیږی او راخلاصیږی - او کله لکه دَ رباب دَ لطیفو او خوږو نغمو په شان په شیرین گفتار مشغول معلومیږی -

دَ کلیات نه علاوه دَ خوشحال خان "دستارنامه" دَ پښتنو په قدیم او جدید نثر دواړو کښے یو ډیر اوچت کتاب دے - دَ دے کتاب نثر لکه دَ خوشحال خان دَ نظم په شان معیاری دے - او نمونه نثر دے - تراوسه پورے څما په خیال په پښتو ژبه کښے دَ دے نه ښهٔ نثر چا نهٔ دے لیکلے -

دَ خوشحال خان شخصیت کښے دَ تورے او دَ قلم داسے حسین امتزاج دے - او داسے ښکلے ملګرتیائے ده چه گمان نهٔ کړم چه دَ دُنیا په ادب کښے له دے قسمه ادبی شخصیت بل پیدا شی - دلته شاعر جرنیل دے - او ډیر دا اوچتے پائے جرنیل - او جرنیل شاعر دے - او ډیر لوړ شاعر دے - دَ یو داسے شخصیت پیدا کیدل ډیره گرانه خبره ده -

کهٔ ئے گورے نو خوشحال خان په میدانِ جنگ کښے پخپله رستم دے - په کمالِ شجاعت او دلاورئ سره دَ فنونِ جنگ په هر پهلو او هر اړخ کښے، خپله بهادری، شجاعت او یکتائی ښائی - اوس به تیرانداز وی - اوس به دَ خدنګ او تفنګ کار ته ورانږدی - اوس به ګرز غورزوی - اوس به شمشیرزن او باتور شهسوار وی - توره به ئے په لاس وی - او دَ مغلو دَ فوځ صفونو کښے به ئے دَ قتل او مقاتلے بازار گرم کړے وی او چه بیائے گورے نو دَ

دے شاہ زورہ بہادر، جنگی سپاہی سردار خوشحال خان نہ بہ، یونا در او صاحب کمال شاعر جوړ شوے وی۔ دَ خپلو جنگی کارنامو واقعه نگاری به داسے په تفصیل، ادبیت او شاعرانه خوبصورتئ سره بیانوی، چه ته به وائے چه گنی دَ ذِ دِ یونان هومر دے۔ یا دَ ایران فردوسی، یا دَ انگلستان بائرن دے۔ دَ خپل رستمیٔ خان رستمی واقعات په صفحه دلاویزه رزمیه شعرونو کښے بیان کړی دی چه فردوسی ورته گوته په خولهٔ حیران او دریږی فردوسی چه دَ عربو ایران ته دَ راتلو او دَ زمانے دَ گردش نه دَ فریاد، خپل نوشته جذبات را الوزوونکی بیان ته فکر اد کړی۔

زشیر شتر خوان او سوسمار — عرب را بجائے رسید است کار
که تخت کیان را کنند آرزو — تفو بر تو، اے چرخ گردان تفو

او بیا دَ خوشحال خان د مغلو دِ پښتون وطن ته دَ راتلو، او دَ زمانے دَ گردش نه، دَ فریاد کولو بیان او لولی نو په زړه کښے لږ شرمنده شان شی ؎

رابنکاره شوے کج فهمئ دَ جهان — دَ جهان دَ کج فهمئ الامان!
داهم ځائے دَ تعجب دے که ئے وینے — په باز ونو چه غوټے دهی زاغان
داهم ځائے دَ تعجب دے که ئے وینے — چه مغل کاندی بازئ په افغان
داهم ځائے دَ تعجب دے که ئے وینے — چه گیدړ په وازدو ډک اُوړی شیران

داهم ځائے دَ تعجب دَ حیرانئ دے
چه لښکرے په خوشحال کړه بهرام خان

که ئے گورے نو یو ساعت پس جنگی خوشحال خان دَ هومر او فردوسی خوا پریږدی۔ دَ حافظ او خیام سره دَ فارس په گلگونه میخانه کښے کښینی، شومه دم شوی وی۔ چُپ چُپیا وی۔ دَ شیراز شنهٔ باغونه او چمنونه وی۔ دَ سپوږمئ شپه وی۔ او ماه جبینی هم۔ یو خوبرو او خوشرو، ساقی ورله سرهٔ شراب په شنه پیالئ کښے نیولی وی۔ او خوشحال خان ورته په مستانه او رندانه آواز کښے دَ عشق او محبت غزلے او بدلے وائی ؎

راله نیسی جانانه، دَ شرابو پیمانه
دَ شرابو پیمانه، راله نیسی جانانه

دَ چنگ رباب زړهٔ راکښونکو نغمو محفل گرم کړے وی۔ هر طرف ته مے وی، میخانے

وی، روئے نګار وی. سبزه زار وی او جوئبار وی، خوشحالی وی. بے هوشی وی، مستی وی شاعر و ساقی ملګرے وی. او د واعظ نه بیزار. او ورته په دکه خوله وائی:.

مست یم مے پرست یم رندی کړمه، کړمه، کړمه!
واوره محتسبه! باده خورمه، خورمه، خورمه

لار د محبت وه، تل به روغ سلامت نهٔ ووم
زهٔ چه په دا هسے لار ئے تلمه. تلمه، تلمه

................ الخ

او بیا وائی ـــ زهٔ خوشرابی یم شیخه څهٔ راسره جنګ کړے
برخے ازلی دی، کاش که ما د خان په رنګ کړے

................ الخ

او واعظ ته په رندانه محفل کښے د دین لاره داسے ښائی ـــ
په څهٔ شان ئے دواړه زلفے کږ په کږ کړے
یکباره ئے د عالم میني په پچ کړے

................ الخ

او کوریٔ په مستانه او رندانه انداز کښے ساقی ته څهٔ رنګ په خوند، خوند خبرے کوی:- آشفته دِ د جمال یم همیشه دِ په دا خیال یم
نورو مینو ته رِ شاکړه مئین ستا په زلف وخال یم

................ الخ

او بیا وائی ـــ په څهٔ چل ئے ځائے نیولے ستا ترخنګ دے؟
د رقیب خبره مهٔ منه بد رنګ دے

................ الخ

یو ساعت پس چه په خود کښے راشی. او د مستانه او رندانه شرابو نشه ئے کوزه شی نو د شیراز د خوب داسے مکمله نقشه راکاږی، چه هیڅوک دا ګمان نهٔ شی کولے چه ګنی خوشحال خان د روه د کوهستان یو جنګی سردار دے. او ټول عمر ئے د جنګ جګړو سره کار دے. بلکه د سړی دا خیال پیداشی چه د ایران یو عیش پسند، د شراب او کباب

ولداده، خوش کلام شاعر دے۔ او ټول عمرئے د فارس د رنګینے شعر و شاعرئ په شغل کښے تېر شوے دے۔ کۀ د مناظرِ فطرت د مشاهدو باریک بین او شاهد باز خوشحال ته فکر اوکړئ نو وائی بےچه ټول عمرئے د انګلستان په پُرفضا سبزه زارونو کښے تیر کړے دے۔ د انګریز شاعر" ورډز ورتهـ" سره هم پیاله وهم نواله او سیدلے دے۔ دوا پړه یوشان لوئے شوی دی۔ یوشان ئے تربیت اخستے دے۔ او یوشان د قدرت د نندارو ولداده دی ـ

چه موسم م د ګلونو د ګلزار شی　　　نرم نرم ترشح په مرغزار شی

د هغۀ لۀ بخته خوک برابری که　　　چه په هسے وخت ئے سیر په ګلزار شی... الخ

او کۀ د علم اخلاق نه واقف، د تصوف په رموزو پوهـ، او کۀ مذهبیاتو او ادبیاتو ماهر صوفی خوشحال خان مو په نظر راشی نو وائے بےچه د مولانائے روم صاحبؒ شاګردی ئے کړے ده او د ـ " بشنو از نے چون حکایت مے کند ÷ وز جدائیها شکایت مے کند " په راز پوهـ دے۔ د عشق د فلسفے رازئے په یو رباعی کښے داسے ستائیلے دے ـ

چاپه وخت د ځنکدن ووے مجنون ته　　　وخت نازک دے په زړۀ یاد و لره خدائے

دۀ ووے زړۀ م د لیلیٰ د مینے پُر دے

پکښے نشته دے د نورو یادو ځائے

او یلےئے د شیخ سعدی صاحبؒ سره سبق وئیلے دے۔ د هغۀ جماعتی پاتے شوے دے۔ دواړو یو ځائے سیاحت کړے دے۔ او دواړو د علمِ اخلاق سبق د یو اُستاذ نه زده کړے دے۔ فرق صرف دومره دے چه سعدی صاحبؒ خپله خولۀ په ایران کښے پرانسته او خوشحال خټک د پښتون په کوهستانی وطن کښے دارنګ ګویان شو ـ

غصب ملوک لره دروغ مُلا لره　　　بُخل غنی لره فحش نساء لره

دا څلور توکه هر ګوره بد دی

فکر چه راغے په زړۀ کښے مالره

غرض داچه خوشحال خان یو داسے بے نظیره صاحبِ سیف، او صاحبِ قلم شاعر تیر شوے دے چه په خپل دیوان کښےئے د هر رنګ د انسانی جذباتو ترجمانی عموماً او د جنګ جذبے د قومی حمیت، عزت، غیرت او ننګ د نادر بیانا تو خصوصاً یوه مکمله، بے نظیره نقشه پیش کړے ده۔ او د خپلو جنګی، رزمیه جذباتو اظهار خوئے په داسے زور دار و الفاظو کښے کړے دے

چه په آورېدو ئے تراوسه پورې دَ هر پښتون خومنه زېږ زېږ شي۔

# خوشحال خان په حیثیت دَ یو مُسلمان

خوشحال خان خټک په مذهبي عقائدو کښے سوچه او پوخ مُسلمان دے۔ په اهل سنة والجماعت کښے حنفي المذهب وُو۔ په یوه قصیده کښے دَ خپلو مذهبي عقائدو متعلق دا وائي

پُشت په پُشت راغلے مُسلمان محمدیٌ یم — چار دَ چار یارانو سره واړه منم سمه

درست په دا پوهېږم چه څلور مذهبه حق دی — خو دَ حنفي مذهب دعویٰ لرم محکمه

مینه ئے په زړه کښے دَ علماؤ راکړه ډېره — مینه ئے دَ دوړ دَ شیخانو راکړه کمه

نهٔ خراباتي، نهٔ قمارباز، نهٔ زناکار یم

نهٔ قاضي مفتي چه ئے نظر په خو درمه

دَ خوشحال خان دَ اشعارو نه معلومېږي چه په هغهٔ کښے حُبّ رسولؐ ډېر وُو۔ او دَ اهل بیتو سره ئے هم ډېر عقیدت وُو۔ او وربانډ مئین وُو۔ دَ خوشحال خان دَ لانډې اشعارو نه دَ هغهٔ دَ عشق رسولؐ اندازه ولګوئ سه

دَ خدائے عرفان م اوشو په عرفان دَ محمدؐ

پاک دے محمدؐ، پاک دے سبحان دَ محمدؐ .......... الخ

خوشحال خان دَ حضرت علی کرم الله وجهه سره هم ډېر عقیدت لرلو۔ او دَ اهل سنة دَ امامانو نه علاوه دَ اثنا عشره، دولس واړه امامان ئے هم دَ هدایت او احترام مستحق ګڼړے۔ دَ حضرت علیؓ په تعریف کښے دَ خوشحال خان دا لانډیني اشعار دَ لوستو دی سه

کهٔ یکار دِ وه دَ خدائے پیژند ګلي

پیروي دَ محمدؐ کړه دَ علیؓ

............... الخ

خوشحال خان په هغې مُسلمانانو بد وائي څوک چه دَ حضرت علیؓ مخالفت کوي۔ یا دَ حضرت عمرؓ۔ دَ خوشحال خټک په عقیده دَ خلفائے اربعه قدر، عزت او احترام دَ مُسلمان دَ مذهبي عقائدو جزو لاینفک دے۔ او څوک چه په دوئ کښے دَ هر یو قدح کوي، دَ هغهٔ په مُسلمانئ کښے خلل دے۔ خوشحال خان دَ مُسلمانانو دَ فرقوا و تنازعونه اوچت وُو۔ او ډېر یو

متوازن او راسخ مُسلمان وُو. هغه دَ عقیدے اظهار دا سے کوی. ے

چه په سب دَ ابوبکرؓ او دَ عُمرؓ دی
چه په خولهٔ کلمه لولی هم کافر دی

............ الخ

رسول کریم صلی الله علیه وسلم دَ حضرت ابوبکر صدیقؓ او دَ حضرت عمرؓ متعلق به وے چه په دے دواړو کښے دَ نبوّت جوهردے. او دَ حضرت ابوبکر صدیقؓ متعلق بہ ئے فرمائیل چه زهٔ او ابوبکرؓ دواړه په مثال دَ اَس زغل دَ آسونو یُو. زهٔ مخکښے شوم او ابوبکر په ما ایمان راوُړو. کهٔ هغه مخکښے شوے وے نوما به پرے ایمان راوړے وُو. او دَ حضرت علی کرم الله وجههٔ متعلق به ئے فرمائیل چه زهٔ دَ علم ښار دیم او علیؓ ئے دروازهٔ دهٔ. دَ علم باطن خاوندان وائی چه ولایت بغیر دَ حضرت علیؓ دَ مهر نه، نهٔ تصدیق کیږی. دَ خوشحال خان چه دَ حضرت علیؓ او دَ هغهٔ دَ آل او اولاد او دَ اصحابو سره کوم محبت وُو. دَ لاندِ اشعارو نه ظاهر دے. ے

انبیاء تر محمدؐ پورے معلوم دی
لکه ستوری تر آفتاب پورے معدوم دی

............ الخ

دلته شاید چه څوک دا سوال اوکړی، چه خوشحال خان، چه دومره ښهٔ مُسلمان وُو نو دَ مغلو سره ئے جګړے ولے کولے. او بیا دَ مُسلمان بادشاه اورنګ زیب عالمګیر سرهٔ ئے ولے دا سے پخه دښمنی وه.

دَ دے سوال جواب ما وړاندِ ورکړے دے. خو دلته بیا په اختصار سره عرض کوم چه دَ اسلام لوئے اتحادی، مذهبی قومیت چه دَ مُسلمانانو دَ خود غرضو، بد عملو، نفاق او خپلو کښے دَ جنګ جګړو وجه دړے وړے لاړو. نو دَ مُسلمانانو، دَ نسل، نسل، ځان ته حکومتونو او بادشاهئ غرض دے. ځان ځانی کښے پښتنو هم کوشش اوکړو چه ځان ته حکومت او بادشاهی جوړه کړی. او په دے کوشش کښے پښتانهٔ کامیاب شول. او په هند کښے ئے خپل نسلی شهنشاهیت قائم کړو. خو مغلو مُسلمانانو دَ پښتنو مُسلمانانو دا شهنشاهیت ختم کړو. او خپل نسلی شهنشاهیت ئے ځان ته قائم کړو. چه دا اسلامی حکومت نهٔ وُو.

بلکه یوه نسلي، مغلي بادشاهي وه ۔ او دے بادشاهئ لکه د ایران د صفویانو په شان پښتنه
نهٔ صرف خپل غلامان جوړول غوښتل بلکه ټیټی د پښتون نسل ته ورکول غوښتل ۔

دَ خوشحال خان دَ مغلو خلاف آواز اوچتول او دَ هغوئی مخالفت کول په حقیقت کښې
دَ مغلو دَ نسلي شهنشاهیت دَ جابرانه او ظالمانه رویئے ردِ عمل ؤو ۔ او خوشحال خان
لکه څنګه چه کیرو وائي اورنګ زیب عالمګیر هم محض یو منافق، ظالم، چه هر مغل
شهنشاه ګڼړلو چه دَ پښتنو نوغے ئے ایستل غوښتل ۔ او په دے وجه دَ مغلو مخالفت
. . . خوشحال خان رواګڼړلو ۔ دَ اورنګ زیب متعلق خوشحال خان خټک وائي ۔

اورنګ زیب بادشاه دَ واړو نظیر      دَ دے دور شیخان ډیر دي لور په لور
په هغه چارهٔ شاه رګ پرے کا دَ رور      په هغه چارهٔ قلم ساز کا قرآن کښے
په رکوع کښے تسبیحات دَ پلار دَ مرګ کا
په سجود کښے زوری خپله مشره خور

په دے کښے شک نشته چه اورنګ زیب سره دَ خوشحال خان ذاتي دښمني هم وه
اورنګ زیب خوشحال خان اوهٔ کاله په هند کښے اسیر او جلاوطن ساتلے ؤ ۔ او هغه هم
بے قصوره ۔ لکه خپله چه وائي ؎

په ناحق دَ اورنګ زیب په بند بندی یم      خدائے خبر دے په تهمت او په بهتان
زهٔ په ځان کښے ګناه نهٔ وینم په خدا ئیګو      ولے نور خلق خبر ے کا شان شان
دَ ګناه یم سر رشته نهٔ ده معلومه
مکر خپل هُنر دَ ځان وینم تاوان

خو دَ اورنګ زیب دَ پلار بندی کول او دَ رونړو، دَ تخت حاصلولو او تینګولو په
خاطر وژل یو حقیقت دے ۔ او خوشحال خان، دَ اورنګ زیب دَ نورو عیبونو سره، دا
حقیقت بیا بیا ستائي ۔ او په دے وجه دَ اورنګ زیب مخالفت ثواب ګڼړی ۔ نو خوشحال
دے، کهٔ څوک په دے وجه خوشحال خان ته بد وائي ۔ یا بنهٔ مُسلمان ورته نهٔ وائي، نو
هغه به په کومه خولهٔ اورنګ زیب ته بنهٔ مُسلمان او وائي ۔
خوشحال خان دَ مذهب په ظاهر یاتو او رسوماتو نهٔ خطا کیدو ۔ هغهٔ دَ مذهب
روح ته کتل ۔ او په دے وجه هغهٔ اورنګ زیب بنهٔ پیژندلو ۔ او په اورنګ زیب ئے

بد وے۔ خوشحال خان دَ مذهب متعلق وائی ـــ

زۀ خو دَ زړۀ درد غواړم په هر یوۀ مذهب کښے
ستا زده دا چلونه، چه نقلونه رنګا رنګ کړے

# دَ خوشحال خان اخلاق او عادات

خوشحال خان دَ اوچتو اخلاقو پښتون سردار وُو۔ په میلمستیا، مروّت، سخاوت کښے ئے خپله ثانی نۀ لرله۔ په ورکړه کښے مشهور وُو۔ او لکه دَ هغې وخت دَ پښتنو خانانو په شان دَ ښکار ډیر شوقی وُو۔ او دَ باز په ښکار ډیر مئین وُو۔ اسونه، بازونه او ښکاری سپی دَ خوشحال خان ډیر خوښ وُو۔ او ډیر په شوق به ئے پالل۔

دَ بازونو دَ مرضونو، دَ بازونو دَ علاج، دَ بازونو دَ عادتونو او ښکار نه ښۀ واقف وُو۔ دَ خوشحال خان مشهور تصنیف بازنامه موبر ته ښائی چه هغه دَ بازونو په علم کښے هم یکتا وُو۔

دَ باز ښکار، دَ خوشحال خان په شاعری عرق اثر غورزولے وُو۔ دَ هغۀ په شاعری کښے دَ مردانه پرندو او ښکاری مرغانو لکه باز، شاهین، عقاب وغیره ډیر ذکر دے۔ او دَ دے پرندو دَ ښکار، او خوئ بوئ نه هغه چه کوم شاعرانه استعارات او تشبیهات اخذ کړی دی هغه دَ پښتو دَ شاعری یوه قابلِ قدر سرمایه ده۔

خوشحال خان خپله یو توره زن، جنګی سردار وُو۔ مړانه، شجاعت، توره زنی دَ هغۀ په وینه کښے اخښلی راغلی وُو۔ هغه په فنونِ جنګ کښے ماهر وُو۔ او لکه دَ بازونو دَ ښکار په شان دَ جنګ مشاهده او تجربه دَ هغۀ ذاتی ده۔ هغۀ خپله جنګونه کړی وُو۔ او جنګونه ئے لیدلی وُو۔ او په دے وجه دَ هغۀ په شاعری دَ جنګونو، دَ قتل قتال او خون خرابے پوهکاره اثر دے۔ هغۀ دَ دے مشاهدے او تجربے نه هم ډیر ښکلی شاعرانه استعارات او تشبیهات پیدا کړی دی۔

خوشحال خان پیدا شوے شاعر، عاشق مزاج او حسن پرست وُو۔ خو عیاش او باش نۀ وُو۔ خپله وائی چه نۀ خراباتی یم۔ نۀ قمارباز یم، نۀ زنا کاریم۔ او دا صحیح وائی۔ په هغۀ کښے له هیڅ قسمه بد عادت نۀ وُو۔ البته جنسی جذبات ئے فراوان او قوی

ؤو۔ او جنسي هيجان ئې ډېر ؤو۔ خوله دې قسمه خواهشاتو دَ تسکين دپاره ئې ناروا، حرام او ناجائز نهٔ کول۔ يعنې دَ زنانه ئې ځان ساتلې دې۔ البته ودونه ئې ډېر کړي ؤو۔ دَ خپلو جنسي تجرباتو او مشاهدو ذکر ئې په کليات کښې ښکاره سره کړې دې. دا هم دَ هغهٔ په صاف ګوئي او حق ګوئي دلالت کوي۔

خوشحال خان عالم ؤو، او علم دوست ؤو، او عالمانو سره ئې ناسته پاسته خوښه وه۔ دَ هغه زمانې په عربۍ او فارسۍ کښې چه څهٔ مروّج علمونه ؤو، دا سې معلوميږي چه دَ دغه علومو ئې غرقه مطالعه کړې وه۔ په فارسۍ ژبه ئې ښهٔ قابو ؤو۔ او په فارسۍ کښې ئې هم شاعري کوله۔ او په کوم کثرت او صحيح طريقه چه هغهٔ په خپل نظم او نثر کښې دَ عربۍ دَ الفاظو او لغتونو استعمال کړې دې، دَ هغې نه معلوميږي چه په عربۍ ژبه ئې هم عبور ؤو۔ دَ کلام نه ئې معلوميږي چه دَ قرآنِ پاک دَ تعليماتو نه ښهٔ خبر ؤو۔ او دَ ديني علومو په زده کولو کښې ئې هم ښه دلچسپي اخستې وه۔ په پښتو کښې ئې دَ اسلامي فقهې مشهور کتاب "هدايه" ترجمه کړې دې۔ په يو بل کتاب فضل نامه کښې ئې فقهي او مذهبي مسائل راجمع کړي دي۔ او دَ وړوکي بحر مثنوي کښې ئې نظم کړي دي۔

جنګ۔ توره۔ باز، کتاب او قلم ئې په ژوند کښې پسنديده مشاغل ؤو۔ او په آخري عمر کښې خو صرف قلم او کتاب ئې شغل ؤو۔ لکه چه وائي ـــه

چه م يار دې، يا قلم دې، يا کتاب دې

اوس دې يارئ پاتې په ابصار شوم

ښکلي مخ تهٔ دَ ټينګې نهٔ ؤو، لکه چه وائي ـــه

څهٔ له راته وائې چه په ښکليو نظر مهٔ کړه    سترګې چه پيدا دي خو ديدار له کنه

او سرود ئې ډېر خوښ ؤو، لکه چه وائي ـــه

دَ خوشحال دَ خوشحالئ وخت هم دا دې

چه رباب سرينده جوړ سره غږيږي

دَ قوي ارادې، خود داره انسان ؤو۔ او دَ پښتون دَ ننګ دَ مقدسې جذبې ژوندې مثال ؤو۔ خپله ننګيالې ؤو۔ او دَ ننګيالو، شاه ځلمو ډېر قدردان ؤو۔ دَ تورو خرپا، شرنګا او پړقا ئې خوښه وه۔ او نيزې په غاړه چه ځوانانو به آسونه په ترپولو کړل،

نو دَ دهٔ زړهٔ به هم په ګړيدو شو. وينه به ئے ګرمه شوه. په سيلئ به سور شو. توره په
لاس نيزه په غاړه به جنګ ته روان شو۔

چه خو پورے دَ مغلو منصبدار وُو، نو بنهٔ په راستئ ئے دَ مغلو خدمت کولو. او چه
دَ مغلو سره ئے ورانه شوه نو بيا تر مرګه مرګه ئے ورسره روغه او نشوه. او مغلو ته ئے
سر تيټ نهٔ کړو. يعنی يو بنهٔ دوست او پوخ دښمن وُو۔

خان سياستدان او مدبّر هم وُو. او دَ خپل بنهٔ تدبّر او سياست نه به ئے په
موقع، موقع بنهٔ کار اخستو. خوشحال خان متديّن وُو. دَ صوم وصلوٰة پابند، او په
شرعه محکم ولاړ وُو. په عقائدو کښے سوچه مُسلمان وُو. طبيعت کښے ئے دَ خانئ سختی
او دُرشتی وه. خو دَ زور او ظلم نه ئے ځان ساتلو. او هميشه به ئے دَ خوارو، نيستمندو
امداد کولو. پيدائشی جرنيل او تجربه کار حاکم وُو. دَ سردارئ او دَ حاکمئ په هُنر بنهٔ
پوهيدو. دَ خپل اولس سره خپل تعلقات به ئے دوستانه او مشفقانه وُو. خو دَ خپل
مټ دَ لاندِ به ئے ساتل. خوړدُل، خوړل او بخښل ئے دَ ژوند اصول وُو. دَ طبابت او
حکمت په کار هم بنهٔ حاوی وُو. دَ حفظانِ صحت دَ اصولو نه واقف وُو. دَ صحت البدن
په نوم ئے پوره رساله هم ليکلے وه۔

يو شفيق خو بارُعبه پلار وُو. ځامنو ته ئے هميشه دَ ننګ، دَ تورزنئ او شجاعت
تعليم او تربيت ورکولو. دَ اشعارو نه ئے سړے اندازه لګولے شی چه يو بنهٔ مينه ناک
خاوند هم وُو. په خبرو کښے ئے سنجيدګی او متانت وُو. خو دَ ظرافت نه به ئے هم کار اخستو۔

په ژوند کښے دَ جد وجهد او سخت کوشش قائل وُو. او دَ زمری، باز او شاهين
ژوند ئے ځان ته نمونه ګرځولے وُو. او هم په دغه ئے عمل وُو۔

خان صاف ګو وُو، حق ګو وُو او دَ حق پرستو مل وُو. يعنی سپينه به ئے کوله۔
سپينه به ئے وئيله. او په زړهٔ سپين خلق ئے خوښ وُو۔

په پيرئ کښے ئے هم ځوان زړهٔ لرلو او په ظريفانه خبرو او اشعارو به ئے زړهٔ
خوشحال ساتلو. لکه چه وائی ؎

خوشحال خټک که زوړ شو — عيب ئے کوم دے ګيدی خرو
دَ آسمان په دَور زوړی — بوئ دَ مښکو دَ عنبرو

چه ډیر کاله پرے تیر شی! بوئ لا بنهٔ شی دَ اګرو
چا پرے ګوته ایښے نهٔ ده دَ ښه ډېروالی په ګوهرو
په هر بازار چه ورشی
قدر نهٔ ځی دَ سرو زرو

دَ خوشحال خان دَ اخلاقو، عاداتو، کارنامو او تصانیفو دَ لوستو نه پس سړے ګمان کوی چه ګنی دَ روه دَ غرونو، دا سپین کته شهباز بشر نهٔ ؤو، بلکه فوق البشر ؤو۔

# دَ خوشحال خان اولاد

خان ډیر کثیر الاولاد بنیادم ؤو۔ محمد نواز خټک دَ ښاغلی پښتون په دیباچه کښے لیکی چه خوشحال خان خټک دَ درے دیرشو لوڼړو او اوهٔ پنځوس ځامنو پلار ؤو۔ په دوئ کښے پینځهٔ ځلوېښت اولاد ئے لوئے شوی او کمال ته رسید لی ؤو۔
دَ یو روایت مطابق دَ خوشحال خان خټک دَ شپیتو نه زیات خوتش ځامن ؤو او دیرش ئے لوڼړه وے۔ دَ ځامنو دَ تعداد او خوئ بوئ په حقله خوشحال خان ډیر ځهٔ ځائے په ځائے په خپل کلّیات کښے وئیلی دی۔ لکه چه وائی ؎

اتهٔ ویشت لرم ځویه نشته یو دَ بل په رنګ
اشرف م لائق ځوئے دے دریغه نهٔ وے په خوئ پړنګ
صدر دَ نور ځهٔ نهٔ دے خوئے غواړی په پالنګ
بهرام هغه خنزیر دے چه لائق دے دَ تفنګ
خانان هغه شاهین دے چه ئے سرهٔ په وینو چنګ
باز په لاس دَ عظیم کار دے یا مزرے دے یا پلنګ
نظام ورېښمین رومال دے پورے غوټه موتے بنګ
یحیٰی خالد دا دواړه بوالعجب لری فرهنګ
په واړو کښے آزاد دے هم دَ ښه دوغے هم دَ جنګ
بخت ناک هغه ځلے دے نشته بل دَ دهٔ په رنګ

مالوجلو دا دواړه ژک ژوندی په مزکه ړنګ
نوَر غشي اغزین دے
سر اغزے دے یا خدنګ

اوَ دَ خپلو لونړو متعلق په کلّیات کښے داسے وائی ـــه

هرڅوک پلار دَ لونړو مۀ شه په ډیر غم شی مبتلا
څو چه لونړه وی په کور کښے په کور وی هومره بلا
څما په کور کښے دیرش دی کۀ تر دیرش دی ډیرے لا
کۀ به غم ؤوهم دَدے ؤو راسره صبا ، بیګاه
هم پخپله خدائے وادۀ کړے
چه له سرا یه شوم جُدا

خوشحال خان ختک په خپل دیوان کښے دَ خپلو څامنو او بالخصوص دَ بهرام دَ لاسه ډیر سر ټکولے دے . او ډیر بد ردئے ورته وئیلی دی . خو دَ نظام په مرګ ئے ډیره دردناکه مرثیه دَ قصیدے په شکل کښے لیکلے ده . دا زړۀ سیزونکے مرثیه دَدے شعرنه شروع کیږی ـــه

څۀ داغونه بږدے په زړۀ باندِ فلکه
چه نظام دِ له ما بیل کړۀ . خوائے دِ که

. . . . . . . . . . . . . . . . . . . . الخ

او په دے مرثیه کښے چه خوشحال خان په کوم انداز سره دَ پښتون دَ ننګ او ورسره دَ خپل ننګ او قومی جذبے اظهار کړے دے ، دا دهغے خلقو په مخ څپیړه ده . څوک چه دَ خوشحال خان په عظیم ، ننګیالی شخصیت کښے تۀ کمے وینی . یا محسوسوی .

کاشکے څوان دَ پښتانۀ په ننګ کښے مړوے نۀ چه کور لره ـــ وان شوله توشکه
چه دَ قام په ننګ کښے ومړ هغه څوبیه
په عالم کښے دَ خپل پلار غاړه کا لکه

اوګوری دَ خوشحال خان خلے څوئے دَ شپږ د او ۀ ویشتو کالو په عمر کښے وفات شوے دے . او پلار ته کۀ دَدے نیازبین او خوانی مرګ څوئے په مرګ څۀ آرمان ورځی . نو

هغه دا چه په کټ پوزی ولے مړشو۔ د پښتون په ننګ کښے ولے مړنۀ شو۔ او په ارمان کښے وائی ؎ کاشکے خوان د پښتانۀ .....

نظیری صرف دومره قدرے وئیلی وُو چه ؎

کسے کہ کُشتہ نہ شد از قبیلۂ ما نیست

او اقبال د نظیری دا مصرعه په دے شاندار طریقه اوستائیله ؎

بہ ملکِ جم نہ دہم ، مصرعۂ نظیری را
کسے کہ کُشتہ نہ شد از قبیلۂ ما نیست

کۀ اقبال د خوشحال خان ختک د مرثیے دا اشعار، چه د خپل نیازبین ځوئے په مرګ ئے وئیلی دی، آوریدلے وے۔ نو کوروئ چه د قامولئ او پښتو نولئ دا نایاب دُر به ئے په کوم قیمت اخستے وے۔ او په کوم اوچت شاعرانه رنګ کښے به ئے ستائیلے وے۔

د خوشحال خان ختک د دے ابیاتو نه په ښۀ شان معلومیږی چه د هغۀ په زړۀ او دماغ او روح صرف یوه مقدسه او پاکه جذبه غالبه وه۔ او هغه د پښتون د ننګ جذبه وه۔ هغۀ هم د دغه جذبے د لاندِ د اورنګ زیب د مغلی حکومت مقابله کړے ده۔ په دے باب کښے نورخیزونه فروعی وُو۔ چه معنوی تخے ورکښے هم دغه د پښتون د ننګ خبره وه۔

په یوه بله قصیده کښے۔ د خپلو ځامنو د لاسه داسے فریاد کوی ؎

یا د خپل اولاد د لاسه شاهجهان نۀ ده
یا خوشحال دے، په فریاد په نارہ سر

او بیا وائی ؎

| | |
|---|---|
| ناخلف م حواله کړۀ په تقدیر | نصیحت وربانِدِ نۀ کا ندی تاثیر |
| بد فرزند دِ خدائے د هیچا بیدا مکړه | په خصلت ئے پلار په ځان دی مور په ویر |
| دریغه یو پکښے شهباز شوئے یا خوشحال شوئے | شل پنځۀ لوم همه صغیر کبیر |
| مشران ئے د دشړئ ګنده پشم | کشران دی په مثال او مۀ حریر |
| نالائق خو په دموره پیدا مۀ شه | دا لا ښۀ کۀ ځئے اوزیږی خنزیر |

یولائق ځوئ تر زرو ځویو بنـهٔ دے
ډیر به څۀ که څوک چه نۀ وی دلپذیر

یوه بله قصیده کښې وائی ـــه
چه م اولیدهٔ دَ خپلو ځویو کار ځو یه واړه جګرخون دی دَخپل پلار
خو ځما کره زړولی دی ډیر ځو یه دَ نور چانۀ دی پیدا په دا دیار
موافق م په خور منځ یو ځویه نشته هګی واړه دَ خپل غرض دی یار
نور تر دا دپاسه شکر کړه خوشحالـه
چه له تا نه خپل بابا نۀ وُو آزار

په یوه قطعه کښې داسے وائی ـــه
ګوبنے ګوبنے ځما ځان لره بلا شول چه پیدا دی هګی ځما له ځا نه
کۀ بنځوس دی کۀ شپیتهٔ دی داغ دَ زړهٔ دی
یو څو لا پکښې آفت شول تر دا میا نه

په بله قطعه کښې داسے وائی ـــه
وعالم تہ خوشحال زوړ ځو یہ ئے ځوانان دی
دَ زاړهٔ بلا په سر دَ دیو ځوانانو !
پلارئے درسته ورځ په بنکار روڼی اَسونه
په پالکئ کښې ځي په رنګ دَ رنځورانو .
کۀ په شمار په حساب ډیر شوته نزدے دی
همه واړه دی په شمار دَ نامردانو
دَخوشحال خان ختک په ځامنو کښې مشهور دا لاندینی دی :-
اشرف خان - سعادت خان - بهرام خان - عابد خان - عبد القادر خان -
صدر خان - ګوهر خان - سکندر خان - او نظام خان - په دوئ کښې لکه دَ پلار په
شان بنهٔ شاعران دا دی :- اشرف خان - عبد القادر خان - سکندر خان - صدر
خان - ګوهر خان -
او په دوئ کښې لکه دَ پلار په شان تورزن عابد خان وُو - دَ دوړه په جنګ کښې

عابد خان ډیره مرانه بنا ئیلے وه. اشرف خان هجری دَ خوشحال خان په ژوند دَ بند
کښے . تولو کښے مشر ؤو . پلار په خپل ژوند دَ خټکو سرداری حوالے کړے وه . خو
مغلو او نیولو . لس کاله دَ بیجاپور په قلا کښے بندی ؤو . او هم هلته وفات شو . دَ ده
ځوئے افضل خان دَ پښتنو تاریخ لیکلے دے چه په تاریخ مرصع مشهور دے .
عبد القادر خان خټک هم دَ پښتو ژبے ډیر لوئے شاعر تیر شوے دے . صاحب
دیوان دے او دَ سعدیؒ گلستان او دَ جامی یوسف زلیخائے پښتو کړی دی .
دَ خوشحال خان خټک په لونړو کښے بی بی حلیمه ، شاعره او فاضله وه .

# خوشحال او اقبالؒ

میر عبدالصمد خان آفریدی چه دَ خوشحال او اقبالؒ په نوم یو جامع کتاب
لیکلے دے . په دے کتاب کښے ځنے خبرے ، هغه ډیرے دَ کار لیکلی دی . او په دے وجه دا یو
ډیر قابلِ قدر کتاب دے . خُما دَ عبدالصمد خان دَ ځنے نظریاتو سره مکمل اتفاق دے
خو دَ هغهٔ دَ ځنے نورو نظریو سره زهٔ متفق نهٔ یم . زهٔ دلته په هغه تولو خبرو بحث
نهٔ شم کولے ، کوم چه میر صاحب په خپل قابلِ قدر کتاب کښے په تفصیل سره لیکلی دی .
البته دَ "خوشحال خان او اقبالؒ" دَ فلسفهٔ حیات ، دَ هغوئ دَ تصور دَ انسان ، دَ
هغوئ مشترکه تعلیمات او پیغام . او دَ ډاکټر اقبال چه دَ خوشحال خان خټک سره کوم
عقیدت ؤو . دَ دے موضوعاتو په سلسله کښے ، په اختصار سره څهٔ عرض کول غواړم .
خُما په خیال دَ خوشحال خان دَ فلسفهٔ حیات مرکز او محور "پښتو" وه . او دَ ډاکټر
اقبال دَ فلسفهٔ حیات محور او مرکز "خودی" وه . خوشحال خان لکه دَ اقبال په شان یو
منظمه فلسفهٔ حیات نهٔ لرله خو دَ پښتون په اسلامی معاشره کښے چه دَ برگزیده او
اعلیٰ ژوند دَ تیرولو دپاره دَ هغهٔ په ذهن کښے کوم مقتدر اقدار ځائے شوی ؤو ، او دَ
دغ اقدارو نه چه دَ هغهٔ په ذهن کښے کومه فلسفهٔ حیات جوړه شوے وه . هغهٔ په
خپلو اشعارو کښے دَ دغ اقدارو بیا بیا ذکر کوی . او دَ دغ اقدارو مدّاح دے . او خپل
قوم ته دَ دغ پیغام ورانډے کوی .
چونکه په اسلامی ملکونو کښے هر خومره لوئے مفکرین ، فلسفیان او شاعران چه

تیرشوی دی، دَدوئ دَ شاعرانه الهام سرچشمه دَاسلام دَمقدس دین تعلیمات وُو۔ دَ دے دپارہ دَ دوئ په شاعرانه تعلیماتو او پیغاماتو کښے مشترک اقدار پیردی۔ او دامستند اسلامی اقداردی۔ یعنی دَاسلام دَ فلسفهٔ اخلاق اقدار دی۔

دَ دے نه علاوه، دَخوشحال خان چه څهٔ مطالعه وه، هغه دَ عربئ او فارسئ تر کتابونو پورے محدوده وه۔ او په عربئ او فارسئ کښے لوئے مفکرین، شعراء او ادیبان اکثر مُسلمانان تیرشوی دی۔ په دے وجه دَخوشحال خان دَ تصنیفاتو ادبی پس منظر هم دَ مُسلمانانو عالمانو او مصنفینو دَکتابونو نه جوړ شوے وُو۔ خو عجیبه خبره ده چه هغه لکه دَاقبال په شان دَ عجمی فلسفے او شاعرئ دَجمودی روح دَ اثر نه بچ پاتے شوے دے۔ او دَهغهٔ دَشاعرئ طرز، رنګ او اظهار عجمی نهٔ دے، بلکه عربی دے یا دَ عربی طرز افغانی دے۔ علامه اقبال دَخوشحال خان خټک دَ شاعرئ متعلق فرمائی:۔

"دَخوشحال خان په شاعرئ کښے دَ ابتدائی عربو دَ شاعرئ روح کارفرما دے۔ چه مونږ دَ هغهٔ دَ شاعرئ مطالعه کوُو نو دَهغهٔ په شاعرئ کښے دَ بیان سادګی او حق ګوئی په واضحه شکل په نظر راځی۔ او دَهغهٔ په شاعرئ کښے دَ عربو دَ شاعرئ په شان، دَ آزادئ، او دَجنګ سره دَ مینے اظهار بیا مونده شی۔ او دَ ژوند په حقله دَهغهٔ دَ نقطهٔ نظر او تنقید رنګ هم، دَعربو په رنګ کښے رنګ دے۔"

اقبال وړاندے لیکی:۔

"دَخوشحال خان خټک دَشاعرئ نمونے زهٔ دَ راوړتی دَخوشحال خان دَ نظمونو دَ لفظی ترجمے نه پیش کوم۔ دَ دے ترجمو نه به، دَپښتو دَ دے عظیم شاعر دَ پُرجوشه حُب الوطنئ، دَهغهٔ دَ ارمانونو او خواهشاتو، او دَهغهٔ دَانسانی فطرت دَ غرتے مطالع علم قارئینو ته اوشی۔ په دے کښے څهٔ شک نشته چه خوشحال خان دَ اورنګ زیب خلاف څهٔ ترخے خبرے هم کړی دی۔ خو دا دَ اورنګ زیب خلاف دَ یو داسے دښمن خیالات دی چه هغه ئے په هند کښے اوهٔ کاله قید ساتلے وُو۔ او هند دَخوشحال خان دپاره یو داسے ملک وُو چه دَ دے ملک متعلق هغه خپله وائی ؎

چه سړے اوبهٔ دَ غرهٔ نشته په هند کښے

ترے توبه، کهٔ واپه ډک وی له نعیمه

قارئین ته به معلومه وي چه په نثر کښې علامه اقبال، سوائے دَخوشحال خان نه
بل ډیوشاعر په تعریف کښې څه نۀ دي لیکلي. او دَخوشحال خان دَ شعروشاعرئ اندازه
هغۀ صرف دَخوشحال خان دَ سلو ترجمه شوي نظمونو نه اخستې وه. او هغه هم په
انګریزئ ژبه کښې لفظي ترجمه وه. او ډیره بے خوندہ ترجمه وه. او مترجم کپتان
راورټي، لکه دَ نورو مستشرقینو په شان دَ خوشحال خان دَکلیات نه هغه نظمونه منتخب
کړي وُو. کوم چه هغۀ دَ مغلو سره دَجنګ وجدل په سلسله کښې لیکلي دي. او یا دَ
منظرکشئ او رومان ومحبت سره تعلق لري. کۀ چرے علامه اقبال دَخوشحال خان
خټک شاعري په پښتو کښې مطالعه کړے وے او دَ ټول کلیات مطالعه ئے کړے وے، او دَ
خوشحال خان هغه اخلاقي، نفسیاتي، معاشرتي، ادبي او دَ علم وحکمت نه ډکه شاعري
ئے لوستې وے، کومه چه دَانسان دَ فطرت په هر اړخ رڼا غورزوي نوګورے چه بیا به ئے لا دَ
خوشحال خان په تعریف او صفت کښې څۀ لیکل. حقیقت دا دے چه دَ اقبال خپل ادبي،
شاعرانه او فلسفیانه مزاج، خوشحال خان ته دومره نزدے وُو چه هغۀ دَ لږ څۀ نه. دَ
خوشحال خان دَشاعرئ او شخصیت اندازه واخسته. او دَ هغۀ مدّاح شو. او دائے
غوښتل چه دَ برصغیر مُسلمانان دَخوشحال خان دَ افکارو او تعلیماتو نه مستفید شي.
ځکه چه هغۀ دَخوشحال خان په شاعرئ کښې دَ ژوند او حیات پیغام لیدو. او دَ هغۀ خپلو
خیالاتو ته دَخوشحال خان شاعري نزدے وه. خو دَدے دا مطلب نۀ دے لکه څنګه چه
ځمونږ دَ دور ځنې پوهان لیکي. چه دَخوشحال خان "پښتو" دَ اقبال "خودي" ده. او په
دواړو کښې هیڅ فرق نشته دے. مونږ دَ "پښتو" دَ کلې تشریح په وضاحت سره کړے ده.
دَ "پښتو" او چت اوښۀ اړخ شجاعت، مړانه، سخاوت، میلمستیا، غیرت، همت، اولوالعزمي
استقلال او دَ ارادے پخنګي وغیره اسلامي صفات دي. خو په "پښتو" کښې ځنې غیراسلامي
عناصر هم شته. برخلاف دَدے دَ اقبال "خودي" دَ یو مکمل اخلاقي نظام دَ لاندې، دَ فرد
او دَ ملت دَ تربیت نوم دے. مونږ دلته دَ اقبال دَخودئ او بیخودئ په فلسفه مختصر
شان بحث کوُو. چه لوستونکو ته دا فرق واضحه شي.

دَ خودئ کلمه، دَخودسرئ او غرور په معنو کښې مستعمل ده. خو اقبال دا کلمه دَ
شخصیت دَ اسلامي اخلاقي تربیت په معنو کښې استعمال کړه. یعني اقبال خودي دَخود شناسي

تربیت دَ تَخَلَّقُوْ بالاخلاق اللّٰه دَ اوخدائے شناسئ په معنو کښې استعمالوی ـ او دَ شخصیت
اصول مطابق کول غواړی چه دا دَ توحید فلسفه ده ـ توحید محض تریوخیاله ـ یایواعتقاده،
یایونظریئے پورے محدود نهٔ دے ـ دَ توحید بے انتها برکات دی په مدعائے تکمیل بشریت دے.
او نائبِ حق جوړیدل دی.

فقراء وائی چه فکر او ذکر دَ قلب وظیفه ده ، عشق دَ روح وظیفه ده ـ او عرفان دَ
سِرّ وظیفه ده ـ دَ توحید په اصولو او تعلیماتو دَ مؤمن فقیر تربیت او دَ هغهٔ دَ شخصیت یا دَ
خودی نشو ونماهم په دغه درے تدریجی مدارجو کیږی ، چه غایت ئے نیابت یا عرفان دے.

اوله مرحله په دے لاره کښے دَ مکمل اطاعت ده ـ یعنی دَ شریعت مکمله پابندی او دَ
هرے لوئے وړے گناه نه ځان ساتل ـ دویمه مرحله ، دَ ضبط نفس او ، طریقت ده ـ په
دے مرحله کښے بنیادم به دَ امراضِ قلب یا دَ سفلی خودئ نه ځان ساتی ـ رذیل او حیوانی
خواهشات به وژنی او په زړهٔ کښے به روحانی او ربّانی او تخلیقی او مطهّر خواهشات پیدا
کوی ـ او دریمه مرحله دَ نیابت ، حقیقت یا دَ خدائے شناسئ یا دَ عرفان ده ـ

ډاکټر اقبال دَ خودئ دَ فلسفے دَ تشکیل دپاره دَ مغرب او مشرق دَ فلسفیانو، عالمانو،
صوفیانو او شاعرانو دَ افکارو نه استفاده کړے ده ـ او دَ خودئ ارتقائی مدارج ئے قائم کړی
دی ـ او دَ خودئ په فلسفه ئے ځان پوهه کړے دے. دَ خودئ دَ تربیت په سلسله کښے اوله
مرحله دَ ځان دَ پیژندلو ده ـ په دے حقله په مغربی فلسفیانو کښے اقبال دَ فشتے دَ ایغو یا
ایگو یا دَ خودئ دَ نظریئے نه متاثر شوے دے. او دَ خودئ دَ ارتقائی نشو ونما قائل شوے دے.
هغهٔ دَ ایگو ترجمه خودی اوکړه ـ او خود به معنیٰ ئے ځان ، او خودی دَ ځان متعیّن کولو یا
پیژندلو په معنو کښے ئے استعمالول شروع کړل.

دَ خودئ دَ پیژندلو په سلسله کښے اول سوال دا پیدا کیږی چه دا "زهٔ" یا ځان دَ
بنیادم څهٔ څیز دے ؟ دویم سوال دا دے چه دا ځان پیژندل څهٔ دی ؟ او دریم دا چه
دا "زهٔ" یا "ځان" ته ارتقائی نشو ونما ورکول څهٔ څیز دے ؟

دَ دے درے واړو سوالونو جواب بنیادم هله بیاموی چه په خپل شخصیت کښے
دَ عمل یو والے پیدا کړی ، یعنی دَ توحید په لار روان شی ـ په ځان کښے دَ عمل یو والے
څهٔ څیز دے ـ نو دا دَ خپل شخصیت دَ توحید دَ اصولو او تعلیماتو مطابق بنا کول یا

تعبیر کول دی . دا دَ شخصیت دَ ظاهر او باطن تعمیر دے . او دَ مُسلمان دپاره دغه تعمیر . دغه عمل ، یعنی دَ توحید په اصولو ، یعنی دَ قرآنِ پاک په تعلیماتو عمل کول اخلاق عمل دے او اخلاق ژوند دے . او اخلاقی ژوند دَ مُسلمان اخلاقی پوهه یا دَ روح پوهه زیاتوی . دَ نتشے دَ فوق البشر دَ خیال نه ، اقبال دَ انسانِ کامل خیال اخذ کړے دے . نتشے دا طاعت او ضبطِ نفس دوه مدارج دَ انسان دَ ارتقائی نشو و نما دپاره مقرر کړی دی . خو دَ دے نه وړاندِ هغهٔ سره څهٔ مثبت فلسفهٔ حیات نهٔ وه . دلته هغه او نښتو . او حیوانی طاقت حاصلولو ئے دَ بنیادم دپاره دَ فوق البشر په شکل کښے دَ ارتقا انتها اوګرځوله . نتشے نهٔ دَ خدائے قائل ؤو ، نهٔ دَ موجوده بنیادم دَ خیر او شر او دَ عُقبیٰ او آخرت . دَ هغهٔ قلب دَ مومن ؤو خو دماغ ئے کافر . یعنی هغهٔ په خپل جذباتِ قلب او افکار دماغ کښے تمیز نهٔ شو کولے .

اقبال دَ توحید په فلسفه پوهیدلو . هغهٔ دَ قرآن پاک دَ تعلیماتو په رنړا کښے . دَ انسانی روح په ارتقائی مدارجو کښے دَ قربتِ الٰهی یا نیابتِ الٰهی مقام آخری او حتمی مقرر کړو . او دَ خپلے ټولے شاعرئ مغز ئے نیابت الٰهی اوګرځولو . دَ نتشے دَ فوق البشر انتها دَ چنګیز او دَ هلاکو په شان دَ حیوانی طاقت مجسمه جوړیدل دی . خو دَ اقبال دَ نائب حق یا مردِ مومن انتها او منتها دَ رسول اکرم صلعم او چت او مقدس شخصیت دے .

دَ " ډارون " نه ډیر وړاندِ " رومی " دَ ارتقا خیال پیش کړے دے . دَ ډارون ارتقا خو صرف دَ امیبا نه ، دَ انسان تر موجوده شکل پورے محدوده ده . دَ رومی ارتقا ، دَ جمادات نه شروع کیږی نباتات ته رسی . او دَ نباتات نه حیوانات ته . او دَ حیوانات نه انسان ته رسی . دَ انسان نه تر فرشتو . او دَ فرشتو نه وړاندِ دَ روح ارتقا . او دَ روح دَ ارتقائی مدارجو معراج ذاتِ پاک او واحد دے .

محی الدین ثانی چه مشهور په العربی دے ، هم دَ انسانی روح دَ ارتقائی مدارجو ذکر کوی . او دَ روح په نشو و نما بحث کوی . او الجیلی هم دَ انسانِ کامل تصور چه پیش کوی ، نو دَ روح په ارتقا ر ور کوی . خو دا اقبال دَ خودئ ارتقائی مدارج دَ متقدمینو په دے سلسله کښے ، هم هغه کاؤش په یوه منظمه او مکمله طریقه پیش کول دی . دَ اقبال خودی دَ ځان پیژندلو ، یعنی دَ خپلو قوتونو نه آګاهی ، یا سیرِ جان نه شروع کیږی . او سیرِ جهان

په لوری ځی ـ اول ځان قابو کول دی اودا په اطاعت اوضبطِ نفس سره ـ چه ځان د فتح کړنو بیا دَجهان تسخیر دے ـ یعنی جهان آګاه به جوړیږے ـ ماهرِنفسیات، دَخود آګاه، جهان آګاه اوخدا آګاه درے مدارج په خپله ژبه کښے داسے بیانوی ـ چه اول شعورِساده دے ـ بیا شعورِ ذات دے ـ اوبیا شعورِ کائنات ـ شعور ساده دَغفلت ژوند دے ـ شعورِ ذات خود آګاهی ده ـ یا دَ بیدارئ ژوند دے ـ اوشعورِ کائنات، ژوند بیا موندل، یا په ژوند حاوی کیدل دی. دَحقیقتِ اشیاء علمِ آخری علم دے ـ اودا دَ علم انتها ده ـ

صوفیاء، لکه څنګه چه ما وړاندِ ذکر کړے دے، دا درے مدارج داسے بنائی ـ ذکر اوفکر دَ قلب وظیفه ده، عشق دَ روح وظیفه ده اوعرفان دَ سِرّ وظیفه ده ـ برګسان وائی چه بنیادم کښے درے بنیادی څیزونه دی ـ اول غریزه، یا شعورِ ساده دے ـ دوئم عقل اودریم عشق یا وجدان ـ عقل ته په شعورِ ساده فوقیت دے ـ اوعشق یا وجدان ته په عقل ـ

اقبال دَخودئ دَ فلسفے په تشکیل کښے، په مشرقی صوفیاؤ کښے، ډیرامداد دَ رومی نه اخستے دے ـ اوپه مغربی مفکرینو کښے دَ فشتے، نتشے اوبرګسان نه، خودَ اقبال دَخودئ فلسفه په حقیقت کښے دَ قرآنی تعلیماتو فلسفه ده چه بنیاد ئے توحید دے ـ اواسلامی، اخلاقی نظام پیش کوی ـ اودَ مومن دَ روحانی اواخلاقی تربیت لاربنائی ـ

دَ بیخودئ معنیٰ بے هوشی، مدهوشی یا لیونتوب دے ـ خو اقبال لکه دَخودئ په شان دَ بیخودئ ټکے هم په یوه نوے معنیٰ کښے استعمالوی ـ دَ اقبال تر نزده بیخودی دا ده، چه سړے دَ معاشرے په خاطر، یا دَخدمتِ خلق په خاطر دَ خود غرضئ، اودَ ځان دَ منفعت ژوند پریږدی ـ یعنی خپله انفرادی خودی، په ملی خودئ کښے مدغم کړی ـ

دَ اقبال خیال دے چه دَ انفرادی خودئ دَ نشو ونما اوتربیت دپاره معاشره پکار ده، یوه داسے صالحه معاشره چه انفرادی خودی ورکښے تربیت بیا مومی ـ اودا اسلامی معاشره ده ـ

دَ مُسلمان دَخودئ تربیت به هله کیږی چه دَخپلے خودئ دَ تربیت سره سره دَ معاشرے تربیت هم کوی ـ او دغه شان اسلامی معاشره به ورځ تر ورځه په اخلاقی ژوند کښے ترقی کوی ـ دَ ملّت اجتماعی ژوند به دَ ترقئ په لور روان وی ـ اودَ ملّت ملی سیرت به،

په اسلامي اخلاقي شروندکښې خپل معراج ته رسي.

دَ اقبال تر نزده په معاشره کښې دَ فرد منفرد حيثيت به قائم وي. قطره به درياب کښې ځان نهٔ فنا کوي. بلکه قطره به په حيثيت دَ يوې مرغلرې قائمه او جاودان وي. اودَ توَل درياب دَ ښائيست باعث به وي. دَ انفرادي شخصيت ختمول اسلام کښې نشته. بلکه اسلام کښې دَ شخصيت قائمول شروند دے. اقبال دَدے قائل هم نهٔ دے چه دَ الله پاک په ذات کښې دَ مومن ذات دِ مدغم او فنا شي. بلکه اقبال وائي چه دَ صالح مومن شخصيت ته فنا نشته. صالح مومن به دَ باري تعالیٰ په آغوشِ شفقت کښې تل تر تله ژوندے وي. او ځان ته يو منفرد شخصيت به لري. دَ قطرے عزت دا دے، چه په ځان کښې قائمه وي. دَ قطرے عزت دا نهٔ دے چه په سمندر کښې فنا شي.

دَ اقبال شاعري او دَ اقبال دَ خودۍ فلسفه په حقيقت کښې دَ قرآنِ پاک دَ تعليماتو، يا دَ توحيد دَ تعليماتو او اصولو او اخلاقي نظام يوه شاعرانه او ادبي شرحه ده.

دَ خوشحال خان شاعري له دے قسمه، هيڅ جامع او منظمه اسلامي فلسفهٔ حيات نهٔ لري. دَ خوشحال په شاعرۍ کښې ځائے په ځائے اسلامي تعليمات بيا موندے شي. او دَ اسلامي اخلاقو، دَ اسلامي مشاهيرو، او دَ اسلامي فلسفهٔ حيات ستائنه کوي. خو په حقيقت کښې دَ خوشحال خان دَ شاعرۍ امتيازي نخښه داده چه دا دَ پښتو او دَ پښتون دَ صفاتو او ژوند شارحه ده. دَ دے نه علاوه دَ خوشحال خان په شاعرۍ کښې دَ انساني فطرت غرقه مطالعه ده. خوشحال خان نهٔ صرف افغان شناس وُو بلکه انسان شناس هم وُو.

اقبال خپل اکثر خيالات او افکار دَ مغرب او مشرق دَ مفکرينو، صوفياؤ، عالمانو، فلسفيانو او شاعرانو دَ کلام نه اخذ کړی دی. او دَ هرچا نه ئے ښکله کړے ده. مثلاً عشق په عقل دَ فضيلت خيال ئے دَ رومي نه، دَ انساني روح دَ ارتقائي مدارجو خيال ئے دَ ابن العربي نه، الجيلي او رومي نه، دَ سختۍ او سخت کوشۍ او دَ فوق البشر يا انسانِ کامل خيال ئے دَ نټشے نه دَ حرکت او تغير خيال ئے دَ برگسان نه، او دَ مردانه پرندو لکه باز، شاهين، عقاب، دَ همت، جرأت او مردانګۍ خيال ئے دَ خوشحال خان او نټشے نه. خو سره دَ دے دَ اقبال خپل فکر او تخيّل ډير اوچت وُو. او هغهٔ چه دَ هر ځائے نه څهٔ خيال

او فکر اخستې دے، په هغې کښې ئې قابلِ قدر اضافه کړے ده. او یو داسې نوے انداز او نوے شاعرانه او ادبي جدت او لذت ئې ورکښې پیدا کړے دے، چه داسې نه ښکاري، چه ګویا هغهٔ زاړهٔ شراب په نوے پیاله کښې پیش کوي. بلکه داسې معلومیږي چه هغه نوي شراب په نوے پیاله کښې پیش کوي. او دَ هغهٔ ټول خیالات او افکار طبعزاد دي. دَ بل چا نه ئې هیڅ نهٔ دي اخذ کړي.

اقبال چه په کومه دلاویزه، ادبي او شاعرانه رنګ کښې اسلامي تعلیمات، زمونږ دَ زمانې مغرب زده مُسلمانانو ته پیش کړي دي، دَ دے په برکت په هغوئ کښې ځهٔ نه ځهٔ اسلامي روح بیدار شوے دے. او دَ اسلام دَ تعلیماتو احیاء شوے ده. او دا بیشکه چه یو ډیر قابلِ قدر خدمت دے. مُسلمان ملت دَ ډاکټر اقبال دا ګران قدر خدمات هیڅکله نهٔ شي هیروَلے. هغه یوازے دَ برِصغیر دَ مسلمانانو مقبول او مشهور شاعر نهٔ دے بلکه هغه شاعرِ اسلام دے. دَ هغهٔ شاعري دَ ټولے دُنیا دَ مُسلمانانو دَ اتحاد، اتفاق او ترقۍ دپاره دَ ژوند پیغام دے.

اقبال دَ خوشحال خان خټک نه تقریباً درے سوه کاله روستو پیدا شوے دے. او ډیره موده ئې دَ مشرق او مغرب په کالجونو او یونیورسټو کښې سبق ایزده کړے او سبق ښودلے دے. په دے وجه دَ اقبال دَ علم وسعت ته خوشحال خان خټک نهٔ رسي.

دَ خوشحال خان خټک ټول علم دَ هغه زمانې تر مکتبونو، یا دَ چا ملا سره په جماعت یا په کور کښې تر څو کتابونو لوستو پورے محدود وُو. خو خوشحال خان پیدا شوے جینئس یا نابغه وُو. هغهٔ ته دَ کالجونو او یونیورسټو دَ علم ضرورت نهٔ وُو. هغهٔ ته په اقبال دا فوقیت دے چه هغه یوازے دَ ګفتار غازي نهٔ دے بلکه دَ کردار غازي هم دے. دَ هغهٔ ټول عمر په جنګونو او قتل و قتال او قیدونو بندونو او دَ کور او دَ بهرخانه جنګیانو کښې تیر شوے دے. او ژوند هغهٔ ته دَ تالیف او تصنیف یا دَ لوستلو او لیکلو دَ کار دپاره ډیر کم فرصت ورکړے دے. خو سره دَ دے هغه دَ یو ضخیم کُلیات خاوند دے. او نهٔ یوازے شاعر دے، بلکه حکیم دے، فلسفي دے، سیاستدان دے. ماهر نفسیات او جنسیات دے. قانون دان دے، حاکم دے، ښکاري دے، لیډر دے. سپاهي دے، جرنیل دے، عالمِ دین دے. مترجم دے. او دَ درځنو کتابونو مصنف دے. او هر یو کتاب ئې تقریباً په نوي موضوع او په نوي مضمون لیکلے دے.

خوشحال خان خټک خپل شاعرانه افکار او خیالات د خپل ژوند د تجرباتو او مشاهداتو نه اخذ کړی دی. هغه د انسانی فطرت بالعموم او د پښتون د ژوند بالخصوص یو ډیرلوئے ترجمان او مُفسّر دے. او د باز و شاهین د ښکار نه چه څومره شاعرانه او ادبی مضامین او تشبیهات او استعارات هغهٔ ایستی دی، دا ټول د هغهٔ په ذاتی تجربه او مشاهده مبنی دی. شاید چه د اقبال نه سوا بل یو شاعر هم د دے مضمون نه دومره تشبیهات او استعارات نهٔ دی اخذ کړی.

خوشحال خان په حیثیت د یو شاعر ډیرلوئے شاعر تیر شوے دے. البته اقبال په حیثیت د یو فلسفی شاعر او د اسلام د فلسفهٔ حیات د مفسر او ترجمان ډیر لوئے مفکر دے. او په دے کښے د خوشحال خان او د اقبال هیڅ مقابله نشی کیدے.

د خوشحال خان په شان همه گیرا و همه دان شخصیت پیدا کول گران دی. دا هغه شخصیت دے چه په پیړو پیړو کښے هم نهٔ پیدا کیږی.

عجیبه خبره ده چه د اقبال او خوشحال خان په شاعرانه افکار و کښے دومره زیات توارد دے چه میر عبدالصمد خان د دے شاعرانه توارد په برکت د دوئ په پیغام او تعلیماتو یو ضخیم کتاب لیکلے دے. او دائے ثابته کړیده چه د پاکستان د دے دواړو لویو شاعرانو بنیادی تعلیمات یو دی. او هغه اسلامی دی. او دا غلط فهمئ ئے لرے کړے ده چه د پښتنو دا عظیم شاعر محض نسل پرست ؤ. او ټوله شاعری ئے محض د نسلی عظمت دپاره کړے ده.

میر عبدالصمد خان په دعوی سره وائی. او څما ورسره اتفاق دے چه د پښتو ژبے دا عظیم شاعر پاک او اوچت مُسلمان ؤ. او د پاکستان شاعر ؤ. او لکه د اقبال په شان د مُسلمان ملّت رهنما ؤ. او د دے خبرے ثبوت د هغهٔ خپل خیالات او افکار دی.

د خوشحال خان خټک نسلی شاعری او د اورنگ زیب مخالفت، محض یو بحث خیز ؤ. او د هغے د جواز دپاره موږ په تفصیل سره وضاحت کړے دے، خو د هغهٔ د شاعرئ عظمت په دے کښے دے چه هغه د انسانی فطرت نباض ؤ. او د هغهٔ فلسفهٔ حیات مردانه ده. او د ژوند د مردانه اقدار و تبلیغ کوی. او په دے صفتو نو کښے د اقبال او خوشحال په شاعرئ کښے ډیر نزدیکت دے.

اوس به موږ د خوشحال او اقبال د څنو هغه موضوعاتو ذکر او کړو کوم چه د دے

دواړه ولويو شاعرانو په شاعرئ کښے مشترک دی۔

## دَ اقبال شاهين او دَخوشحال شاهين

دَ اقبال شاهين دَ مردِ مومن دَ اخلاقی ژوند، او اخلاقی خوئی بوئی او صفاتو نمونه ده۔ دَ مردِ مومن دَ اوچت کردار دَ بیانولو دپاره، هغه دَ باز، شاهين، شهباز او عقاب صفتونه او خوئی بوئی په گوته کړی دی۔ خوشحال هم دَ دے مردانه پرندو صفات، يعنی مړانه، جرأت، بلند پروازی، همت او پاکيزه فطرت، دَ اوچت او اعلیٰ کردار او شخصيت دَ انسان دَ خوئی بوئی او خوبيانو بيانولو دپاره استعمال کړی دی۔

دَ دواړو لويو شاعرانو شاهين، دَ اوچت انسان دَ صفتونو او مردانه خوبيانو مظهر دے۔ يعنی شاهين دَ پرندو او مارغانو دَ دُنيا قلندر دے۔ او قلندرانه خوبئ لری۔ او مردِ خدا يا اوچت اخلاق انسان دَ بنيادمو دَ دُنيا شاهين دے۔

استعارات او تشبيهات چه دَ شاهين او باز دَ خوئی بوئی نه اقبال او خوشحال اخستی دی په هغے کښے فرق صرف دا دے چه خوشحال خپله ښکاری وُو او هغهٔ دَ خپلے مشاهدے او تجربے په بِنا دَ باز او شاهين دَ مردانه، قلندرانه، درويشانه او مجاهدانه خوبيانو نه خبر وُو۔ او دَ اقبال په دے سلسله کښے خپله مشاهده او تجربه نهٔ وه۔ خو هغهٔ دَخوشحال خان او نتشے په شاعرئ کښے دَ دے پرندو دَ مردانه صفاتو دَ ذکر اذکار نه متأثر شوے دے۔ او هغهٔ ته چه دَ مردِ مؤمن دَ مردانه کردار، دَ شاعرانه تشريح ضرورت پيښ شوے دے نو هغهٔ باز او شاهين طرف ته رجوع کړے ده۔ او دَ دے پرندو دَ خوئی او بوئی نه ئے اوچت شاعرانه مضامين پيدا کړی دی۔

## فلسفهٔ ستيز او سخت کوشی

په اقبال او خوشحال دواړو کښے دَ سخت کوشئ او ستيز او جدّ وجهد په فلسفه زور دے۔ او دواړه دَ سخت کوشئ او جفا کشئ صفات او عادتونه دَ ژوند نخښه او دَ ژوندی اوسيدو دپاره لا بُد او لازمی گڼړی۔

دَ اقبال مخاطبه، تن آسانی، تباه شوی، منتشر، پَست او پريوتی مُسلمان قوم طرف

ته وه۔ اودَ هغهٔ ترنږده داتباهي په مُسلمانانو کښې دَعجمي تصوّف، دَبيکاره او جمودګي فلسفې دَ قبلولو په وجه راغلې وه۔ او دا دَ وحدة الوجود دَ مسئلې براهِ راست نتيجه وه۔ په مُسلمانانو هغه وخت راغلې ؤ کوم چه په عيسائي قوم يو وخت کښې تيرشوے ؤ۔ په يوه زمانه کښې عيسايان دا سے بے عمله او تن آسانه شوي ؤ چه په دے بے ځنونه کول چه عيسٰی عليه السلام خنبيره روټۍ خوړله او که نه پټيره۔ او په دے بحث کښې دا سے بوخت ؤ چه په قسطنطنيه کښې دَ ټول يورپ لوئے لوئے عيسايان پادريان جمع شوي ؤ۔ او فوځونه او بادشاهان هم جمع شوي ؤ۔ او دَ پادريانو بحث ئے آوريدلو۔ په دے کښې چا ورته اووے چه دَمُسلمانانو فوځونه راغلل او ساعت ګرئ ته به دَ ښار نه چاپيره شي۔ مقابلے ته تيار شئ. خو پادريانو ورته جواب ورکړو چه دَ دښمن مقابله ضروري نه ده۔ خو دا ضروري ده چه فيصله اوشي چه حضرت عيسٰی عليه السلام به خنبيره ډ ډوډۍ خوړله او که پټيره۔ په دے کښې دَمُسلمانانو فوځونه راغلل او بے دِزه ډوزه ئے ښار واخستو۔ او پادريانئے سره دَ فوځونو بندي کړل۔

په عيسائي دُنيا کښې دَدے ذهنيت خلاف په اول ځل ډير په شدت سره نټشے آواز اوچت کړو۔ او عيسائي دُنيائے دَمرګ دَخوب نه را اولړزوله۔ نټشے خپله لامذهبه ؤ۔ خدائے پاک ئے نه منلو۔ او عيسٰی عليه السلام ته ئے بُزدل، بے ښے او بے عمله وے۔ او دَ مسيحيت خلاف ئے سخت جهاد کړے دے خو عيسائي دُنيائے دَ سخت کوشئ او دَ ستيزه عمل خوا ته را وا ړوله۔ اقبال دَ نټشے متعلق وائي:-

آنکه برطرز حرم بُت خانه ساخت
قلب او مومن دماغش کافر است

اقبال چه يورپ ته لاړ و نو دَ يورپ په دُنيا دَ نټشے او برګسان افکار خواره ؤ۔ اقبال دَ دے دواړو لويو فلسفيانو دَ خيالاتو او افکارونه ډير متأثر شو۔ او هغهٔ چه دَ دُنيائے اسلام جائزه واخسته نو دے نتيجے ته اورسيد چه دَمُسلمانانو دَ جمود او مرګ علاج دَ دے چه مخے ئے دَ ژوند جفاکشئ او سخت کوشئ طرف ته شي۔ او دَ ژوند دَ بے پناه جدوجهد دَپاره ئے خان تيار کړي۔

هغه وخت دَ نټشے دَ فلسفے دَ اثر لاندِ دَ يورپ دا نعره وه چه دَ خطرے او دَ جنګ

وجهد ژوند تیرول پکاردی۔ اقبال داخیالات جذب کړل اومُسلمانانو ته ئې هم دغه سبق ورکول شروع کړل ۔ ؎

به دریا غلط و با موجش در آویز
حیاتِ جاودان اندر ستیز است

دَخوشحال خان خطاب پُښتنې معاشرے ته ؤو۔ پښتانه بے عمله اوتن آسانی خو نهٔ ؤو۔ بے اتفاقه اوخوارهٔ وارهٔ پراتهٔ ؤو۔ اودَ سیاسی نقطهٔ نظر نه وربانڈِ ادبار اوجمود خور ؤو۔ خوشحال خان په هغوئ کښے دَ سیاسی شعور، ننګ، مړانے، جرأت، بهادرئ، همت، حمیت، پت، قومی غیرت، پښتو اوآزادئ تبلیغ شروع کړو۔ اوپه پښتنو کښے ئے دَ اتفاق پیدا کولو اودَملی ننګ راپیدا کولو کوشش اوکړو۔

خوشحال دَ اقبال اودَ یورپ دَ سخت کوشئ او دَ ستیز دَعلمبردارانو مفکرینو نه په سوونو کاله وړاندِ تیرشوے ؤو۔ هغهٔ دَحیات دا فلسفه دَ پښتنو دَ مخصوص ماحول نه جذب کړے وه۔ دا فلسفه په حقیقت کښے دَ پُښتنې معاشرے دَ امروزه ژوند جزولاینفک دے۔ اودا ئیز دَپښتون قوم په رګ و ریشه کښے اخښلے راغلے دے۔ پښتون بغیر دَجفاکشئ، سخت کوشئ اودَخطرے ژوندهم و ترونده پائیدلے نهٔ شی۔ دَپښتون قوم دَ مخصوص ماحول داتقاضاده چه پښتون به دَ جد وجهد ، خطراومړانے ژوند تیروی۔ خودَ مغلو دَ زبردست شهنشاهیت دَاثر لاندِ دَ پښتنو دَملی ننګ جذبه ، څهٔ لږه ډیره سړه شوے وه۔ اوخوشحال خان په پښتنو کښے دَ ژوند ګرمی اوحرارت بیا رالمزول غوښتل ، اودَ پښتون په قومی حمیت اوغیرت کښے ئے ساه اچوله۔

اقبال چه کوم مُسلمان مخاطب کولو ، داکهٔ یو طرف ته دَ عجمی تصوّف ، جمودی فلسفے زیلے ؤو نوبل خواته دَیورپینو اقوامو زبردست شهنشاهیت هم زبلے اوتباه کړے ؤو۔ په نولسمه صدئ کښے دَیورپینو اقوامو دا پالیسی وه چه مُسلمان ملّت برخے برخے اوتار په تار کړی۔ اودَهغوئ نه دَپان اسلامِزم اودَ اسلام دَعالمګیراوبین الاقوامی اخوت، برادرئ او رورولئ جذبه اوباسی ۔ اودَدے په ځائے په هغوئ کښے نسلی قومیت پیدا کړی ۔ اودَ نسلی قومیت په شراو فتنه ئے دَیوبل نه جدا کړی۔

اقبال کوشش کولو چه په تباه شُده ، بے اتفاقه اومفلوک الحال مُسلمان ملّت کښے

اسلامي اخلاق بيا را ژوندي کړي. او هغوئ کښے د اسلام د عالمګير اُخوّت جذبه را ولړزوي. او هغوئ کښے د پان اسلامِزم هغه زور سياسي شعور بيا را بيدار کړي. کوم چه هغوئ د يورپ د سياست د اثرلاندِ هير کړے ؤو.

د اسلامي اخلاقي ژوند د احياء په سلسله کښے هغهٔ د ستيز، جد وجهد او د سخت کوشش په ژوند زور ورکړو. او مُسلمانانو ته ئے همت، شجاعت، حميّت، غيرت او اسلامي فقر وراندِ کړل. او د دے اقدار و د خپلولو د پاره ئے زبردست جهاد او کړو. او مُسلمانانو ته ئے سبق ورکړو چه يو موټے شئ. متفق او متحد شئ او د توحيد د حفاظت او اشاعت د پاره لکه د پخوا نو مُسلمانانو په شان ملا اوتړئ. اقبال د شهنشاهيت، سرمايه دارانه او جاګيردارانه نظام خلاف هم سخت جهاد او کړو. او مُسلمانانو ته ئے اووے چه دا د غيراسلامي طرزِ حکومت شاطرانه چالونه دي. د دے نظام نه ځان اوساتئ. اسلام کښے دين، سياست دے، او سياست دين. دين چه د سياست نه جدا شي نو چنګيزي پاتے شي. او سرمايه دارانه نظام د چنګيزئ مختلف شکلونه دي. هغهٔ غريب، خوار، نادار مُسلمان، يعني مزدور او زميندار ته په چغه اووے چه د دے لعنت او ظلم نه ځان خلاص کړئ. اسلام کښے شهنشاهيت او سرمايه داري نشته.

هغهٔ د وطنيت مخالفت هم او کړو. او په زوردارهٔ الفاظو کښے ئے مُسلمانان خبردار کړل چه نسلي او وطني قوميت غيراسلامي دے. دا د مُسلمانانو د برخ برخ کولو د پاره يورپ يوه حربه رايستي ده. او مُسلمان وطنونه او قومونه ئے په قصد په دے بلا اخته کړي دي.

## په خوشحال خان او اقبال کښے رجائيّت

خوشحال خان خټک ډير مُصيبتونه، تکليفونه، سختئ، کړاوونه، ناکامئ او ناکاميابئ ليدلے وے. خوشا عرئ کښے ئے رجائيت زيات او قنوطيت کم دے. چه په قهرشي نو زړے د زمري او غر ميبرئ. هرچا ته بد رد اووائي. خو لکه د بنځو د غم او ويرډ ژړا او سوزے نه کوي. زيات نه زيات خپلے خپلخانے ته، يعني خپلو ځامنو ته او خپلو وطنيانو ته د غيرت، پښتو، ننګ او پت پيغورونه ورکړي. او د بے همتئ، نفاق او د جمود د نشو خوب نه ئے

د رابیدارولو کوشش اوکړی۔ په پښتو کښے د خوشحال خان د شاعرئ نه زیاته د رجائیت شاعری بله نشته۔

د اقبال نه چارچاپیره د قنوطیت ماحول لکه د یو خول په شان چاپیره ؤ۔ او د شاعرئ او د ادب په کوم ماحول کښے چه هغهٔ ستر گے غړولے وے۔ هغه ټول د قنوطیت نه لبریز ؤ۔

د ولی دکنی نه واخله ترمیر، میرؔدرد، غالبؔ، داغؔ او حالیؔ پورے د اس دوه ټوله شاعری د غم ساندے وے۔ د درد او ښکے وے۔ د جمود او مرګ ساړهٔ ساړهٔ اسویلی ؤ۔ د ښځو انګولا او ژړا وه خود ژوند تانده او ښیرازه پلوشے ورکښے نهٔ وے۔ په دے ټول غم انګیز ماحول کښے حالیؔ غځهٔ لږ ډیرد ژوند آواز اوچت کړے ؤ۔ خود هغهٔ مسدّس هم حقیقت کښے یوه اوږده مرثیه ده چه د ځوانو مُسلمانانو لوئی او شان ژاړی۔ او د اوسنو مُسلمانانو په جمود، مرګ، ادبار او بے همتئ د غم او ښکے توئوی۔

د اقبال شاعری د قنوطیت په دے فرسوده او مرګ آلود ماحول کښے، په حقیقی معنو کښے د ژوند چغه ده۔ د رجائیت آواز دے۔

اقبال په دے کښے د خوشحال خان همنوا ښکاری۔ د اقبال شاعری لکه د خوشحال د شاعرئ په شان د ژوند نه ډکه ده۔ اقبال مُسلمان ملت ته د اسلام ژوندئ فلسفهٔ حیات وړاندِ کړه۔ او په دے وجه د اقبال په شاعرئ کښے لکه د غالب د شاعرئ په شان شو پنهارن نهٔ ځلیږی، بلکه د هغهٔ په شاعرئ کښے، خوشحال ځلیږی او غړمبیږی۔

## د خوشحال او اقبال په شاعرئ کښے آرزو، جُستجو او مُدّعا

ژوند د اُمید دویم نوم دے۔ پښتانهٔ وائی چه ژوند په اُمید خوږے شی۔ په ژوند کښے د رجائیت او تعمیری اُمید قائم ساتلو د پاره بلند خیالی، اوچته مُدعا، او د لوړو آرمانونو او خواهشاتو نه ډک زړهٔ پکار دے۔ چه مدعا او مقصد، هدف او مرام اُوچت وی۔ چه عزائم بلند وی۔ چه طریقِ عمل اوچت او اعلیٰ وی، نو نتائج او حصول به ئے اس و مرو اوچت وی۔ د نظر او خیال بلندی، د مدّعا لوړوالے ئے سه

خیال کښې زور دے بلند خیاله په بلند مقام به اوسی
څهٔ علاج دَ پست خیالۍ کړه. ثریا نظر پیدا کړه

چه مدعا او مطلب اُوچت وی، نو ذیوته دا سے مدعا په حاصلولو، خوښولو او کامیابولو کښې طالب به هر وخت بوخت وی او زُوبه ترقی او مخ په وړاندِ به روان وی. کهٔ اوچته آرزو، کهٔ اوچته مدعا، او کهٔ اوچت آرمان نهٔ وی، نو اوچت عمل به هم نهٔ وی - دَ هر اوچت عمل دپاره دَ بنیاد دم په زړهٔ کښې تاند او اُوچت ارمان او خواهش ضروری دے - چه آرزو اُوچته وی، دَ هغې کامیابی مَدِ نظر وی، نو بنیاد دَ ناکامیانو، بائلاتو او مخالفتونو پرواه نهٔ کوی - خو همیشه نظر دَ مدعا په کامیابۍ ساتی. او دغه شان نا اُمیدی ئے نږدې نهٔ راځی -

دَ اقبال اوچته مدعا، دَ اسلام دَ زړهٔ حجازی شان سر دوباره پیدا کول وُو او پریوتی مُسلمان قوم ته دعوتِ عمل وُو - اقبال دا خپله اوچته مدعا داسے ستائی ے

نگاہِ عشق دلِ زندہ کی تلاش میں ہے
شکارِ مردہ سزا وارِ شاہباز نہیں

او خوشحال خان خټک دا خپل اوچت مقصد داسے ستائی ے

لکه باز په لوئے لوئے ښکار ځما نظر دے
نه چه ګرځی ګونګټ نیسی باد خورک یم

دَ خوشحال خان اوچته آرزو او لوړ آرمان، دَ مغل مقابله کښې، دَ پښتون راوچتول وُو - او پښتون ته سر دوباره دَ هند حکومت ورپه لاس کول وُو - او دَ پښتون دَ مغلو دَ شهنشاهیت نه خلاصول وُو. او دَ دے اوچتے مدعا دَ حصول دپاره هغهٔ ترمرګه کلکه ملا تړلے وه - او ترمرګه ئے دَ مغلو سره جنګ جاری ساتلے دے. او دا لوړ مقصد په زړهٔ کښې ګور ته آرمانی لاړ دے - دغه شان اقبال هم، دَ مُسلمان ملّت دَ زړهٔ حجازی شان، دَ سر دوباره راوستو آرزو او جستجو کښې درست عمر تیر کړے دے - او دَ مُسلمانانو پخوانے کردار او شان ئے ډیر ستائیلے دے. او هم دغه اوچت ارمان به زړهٔ کښې دَ دُنیا نه رخصت شوے دے -

# په خوشحال خان او اقبال کښې حق ګوئي، او بيباکي

دَ ډاکټر اقبال يو شعر دے ؎

آئين جوان مردان حق گوئی و بيباکی
اللہ کے شيروں کو آتی نہيں روباہی

خوشحال خان خټک دَ ډاکټر اقبال دَ دے شعر يوه ژوندئ نمونه وه. دَ هغهٔ حق ګوئي او بيباکي دَ هغهٔ دَ کليات نه واضحه ده. او دَ هغهٔ جوانمردي دَ هغهٔ دَ کردار نه ظاهره ده. دَ خوشحال خان خپل کردار دَ شير او شاهين دے. او دَ هغهٔ شاعري دَ شير او شاهين دَ کردار ترجمانه ده. دَ خوشحال خان په شاعرئ کښې چه څومره حق ګوئي او بيباکي ده، ګمان نکړم چه دَ بل يو شاعر په شاعرئ کښې دا صفت په دے شدت سره بيامونده شي. دغه شان څمونږ په زمانه کښې دَ ډاکټر اقبال شاعري دَ حق ګوئي او بيباکئ يوه داسے نادره نمونه ده، چه دَ خوشحال خان نه علاوه، بل دَ يو شاعر په شاعرئ کښې، دا صفت دومره په شدت سره نهٔ شي بيا موندے.

# دَ خوشحال ننګيال او دَ اقبال مردِ مومن

دَ مثالي او دَ آئيډيل انسان تصور ډيرو مفکرينو پيش کړے دے. په مغرب کښې دَ نټشے دَ فوق البشر تصور په دے باره کښې شهرت لري. خو چونکه نټشے دَ اسلام دَ توحيد دَ فلسفے نه ناخبر وُو. په دے وجه دَ نټشے مثالي انسان کښې خامئ پاتے شوی دی. هغه انسانِ کامل نهٔ دے. دَ نطشے فوق البشر، دَ حيواني طاقت او ابليسي عقل يو قوي هيکل ديو دے. خو دَ عشق نه عاري دے. چونکه دَ مکمل انسان دپاره مکمل جسم، مکمل عقل يا مکمل دماغ او مکمل عشق يا مکمل قلب ضروري دی، دَ دے دپاره دَ نټشے فوق البشر نامکمل پاتے شوے دے.

دَ مکمل جسم، مکمل عقل او مکمل عشق، مکمل او حسين امتزاج به مکمل يا آئيډيل بنيادم وی. خو دا آئيډيل به هميشه آئيډيل وی. دا عملي کيدے نشي. افلاطون په خپل خيالي رياست يا ري پبلک کښې دَ خپل تصور مکمل حاکم، دَ فلاسفر

کنگ یا فلسفي بادشاه په شکل کښې پیش کړے دے. خو فلسفي بادشاه کښې هم دَ عشق دَ عنصر کمے دے.

الجبلي "انسانِ کامل" نومې کتاب لیکلے دے. او په دے کتاب کښې هغهٔ دَ کامل انسان تصوّر پیش کړے دے. دَ الجبلي کامل انسان، دَ اسلامي تعلیماتو په رڼا کښې لیکلے شوے دے. په دے وجه دَ اقبال، انسانِ کامل ته په ځنې صفتونو کښې ډیر نزدے دے. خو دلسے واضحه تصوّر نهٔ لري. لکه څنګه چه اقبال دَ مردِ مومن تصور په وضاحت سره پیش کړے دے.

دَ خوشحال خان خټک دَ ننګیال تصوّر هم، چونکه دَ اسلامي تعلیماتو په رڼا کښې جوړ شوے دے، په دے وجه دَ اقبال انسانِ کامل، یا مردِ مومن ته نزدے دے. دَ خوشحال خان خټک ننګیال دَ مردِ مومن په هغه صفتونو موصوف دے. خو بحیثیت مجموعي، دَ ننګ جذبه پرے غالبه ده. او په دے وجه دَ خوشحال ننګیال دَ ننګ دَ صفت یوه مقتدر ترینه او مثالي نمونه ده.

دَ خوشحال خان دَ ننګیال په تصوّر دَ پوهیدونه اول ضروري ده چه سړے دَ مردِ مومن، مردِ حُر او مردِ قلندر په تصوّر پوه شي.

مردِ مومن دَ اسلامي فلسفهٔ حیات نمونه یا مثالي انسان دے. او دَ اسلامي فلسفهٔ حیات مغز او بُنیادي خیال دَ توحید دے.

توحید څهٔ څیز دے؟ دا صرف په یو خدائے تعالیٰ اعتقاد نهٔ دے بلکه دا دَ باریتعالیٰ عزّ اسمهٔ صفات په قلب کښې جذب کول او پیدا کول دي. او دَ تَخَلَّقُوْا بِالْاَخْلَاقِ اللّٰه په فلسفه عمل کول دي. او دغه شان دَ الله پاک سره صفاتي مشابهت پیدا کول دي. دَ توحید لارې په حقیقت کښې دَ عشقِ الٰهي لارې ده. او حاصل ئے دَ مومن فقیر کردار او شخصیت دے. دَ توحید دَ خیال نه بل بلند خیال ناممکن دے. او هم دغه شان دَ مومن فقیر دَ کردار او شخصیت نه بل بلند کردار او شخصیت ناممکن دے.

کوم بنیادم چه دَ توحید په لارے روان شي نو هغهٔ کښې دَ مردِ مومن صفات وده اوکړي او دا صفات ورکښې ورځ تر ورځه محکم کیږي. او ځلے نیسي. دا صفات په

حقیقت کښې الٰهی صفات دی. دَ مردِ مومن مکمل شکل دَ رسولِ پاکؐ خپل شخصیت دے. هر مُسلمان ته پکار دی چه دَ رسولِ پاکؐ اخلاق ژوند خپل کړی. او دَ رسولِ پاکؐ صفات ځان کښې پیدا کړی.

دَ اقبال دَ مردِ مومن هم دغه تصوّر دے. او هغه په مردِ مومن کښې هم دَ غه صفات گوری. او هم دغه صفات ورکښې پیدا کول غواړی. په دے وجه دَ اقبال مردِ مومن، مردِ آزاد، مردِ قلندر، مردِ کامل، او بندهٔ مولا صفات، لکه دَ نټشے په شان محض یو خیالی انسان نهٔ دے بلکه هغه یو عملی انسان دے. اسلام داسے بنیادم پیدا کړی دی. او همیشه به ئے پیدا کوی. علامه اقبال مردِ مومن داسے ستائی ؎

ہاتھ ہے اللہ کا، بندۂ مومن کا ہاتھ
غالب وکار آفریں، کارکشا، کارساز

خاکی و نوری نہاد بندۂ مولا صفات
ہر دو جہاں سے غنی، اُس کا دل بے نیاز

اُس کی امیدیں قلیل، اس کے مقاصد جلیل
اس کی ادا دل فریب، اس کی نگہ دلنواز

نرم دم گفتگو، گرم دمِ جستجو!
رزم ہو یا بزم ہو پاک دل و پاکباز

او خوشحال خپل ننگیال داسے ستائی :-

مرد هغه چه همت ناک، برکت ناک
دَ عالمه سره خوړ په زیست وژواک

مخ ئے مخ قول ئے قول عهد ئے عهد
نهٔ دروغ نهٔ ئے فریب نهٔ تش تپاک

لږ وئیل ډیر ئے کول په خاموشئ کښې
دَ غنچے غوندِ خولهٔ پوره سینه چاک

چه خبره دَ پستئ دَ بلندئ شی
په لوړئ لکه آسمان په پستئ خاک

په تمکین کښې لکه سرو، په پستئ کښې
په هر لور ځانگے زنگورے لکه تاک

لکه گل شگفته روئے، تازه باغ کښې
همیشه دَ بنو بلبلو پرے بلغاک

او گورئ چه دَ خوشحال ننگیال، دَ اقبال مردِ مومن ته خومره نزدو دے. او دا په دے چه دواړو دَ خپل تصوّرانسان، دَ قرآنِ پاک دَ تعلیماتو او دَ توحید دَ فلسفے نه اخذ کړے دے. او په خپل خپل رنگ کښې ئے رنګ کړے دے.

...
...
...

# خوشحال خان خټک او پاکستان

څمونږ د دور د پښتو ژبے ځنے لیکو نکی د پاکستان جوړید و نه پس د خوشحال خان اشعارا و د خوشحال خان شخصیت په داسے رنګ کښے پیش کوی لکه چه خوشحال خان ته معلومه وه چه د هغهٔ د مرګ نه تقریبا درے سوه کاله پس روستو به د هندوستان د هر نسل کُلهم مُسلمانان په شریکه د هندوانو او فیرنګیانو د متفقه طاقت، د مخالفت باوجود، ځان ته یو خود مختار، آزاد، جمهوری، اسلامی مملکت د پاکستان په نوم جوړوی - او د دغے پاکستان به خوشحال خان هیڅ بے هیڅه دښمن وی -

څما په خیال کهٔ نن خوشحال خان ژوندے وے نو هغه به اولنے سړے وے چه د خپلے تُورے او قلم په ذریعه به، د پاکستان خدمت او حفاظت ته کمرکس ولاړ وے - لکه چه د هغهٔ وطنیان پښتانهٔ نن پاکستان خپل آزاد، جمهوری، اسلامی ریاست ګنړی - او د پاکستان دپاره خپل مال او سر داوُ کولو ته هر وخت تیار دی - او د هغے عملی ثبوت دادے چه د پاکستان د جوړید و سره، چه د پاکستان د هندوانو سره په کشمیر جګړه راغله، نو د پاکستان دا شمشیر زنه مېتے د پاکستان په کار راغلے - او د کشمیر د غزا دپاره پښتانهٔ سر په تلی میدان ته راووتل او خپل مال او سرئے په کشمیر کښے د پاکستان دپاره داوُ کړل - او کهٔ صباته خدا نخواسته بیاهم په کشمیر یا په څهٔ بلے ملّی تنازعے د پاکستان د کوم بیرونی طاقت سره مقابله راغله نو پښتانهٔ به د پاکستان د حفاظت او سالمیّت دپاره د هرځایه نه وړاندِ جنګ ته روان وی - او دا ځکه چه پاکستان د پښتنو خپل ریاست او خپل وطن دے - او د دے وطن ساتل هر پښتون خپل فرض او خپله ملّی وظیفه ګنړی -

پاکستان په حقیقت کښے د خوشحال خان خټک د خوبونو تعبیر دے - او خوشحال خان خټک کهٔ د مغلو د نسلی شهنشاهیت په وړانو لوکښے کامیاب شوے دے - نو هغهٔ به هندوستان کښے د مُسلمانانو یو داسے ریاست قائم کړے وُو، په کومو اصولو چه نن پاکستان قائم شوے دے - یعنی یو داسے ریاست چه په هغے کښے د هر نسل د مُسلمان به یوشان برخه وے - او د ټولو مُسلمانانو به ورکښے یوشان حقوق او یوشان حیثیت وے - هغهٔ چه د مغلو د نسلی شهنشاهیت مخالفت کولو نو د هغے وجه داوه چه هغهٔ محسوسوله چه په مغلی

شهنشاهیت کښې دَ هر مُسلمان نه یوشان برخه ده او نهٔ ئې یوشان حیثیت دے۔ او دا هغهٔ ته غیر اسلامی فعل ښکاریدو۔ او دَ هغهٔ خیال ؤو، خیال څهٔ چه حقیقت ؤو چه دَ پښتون نه هیچرے مغل نهٔ شي جوړیدے۔ یعنې مغل پښتون ته هیچرے دَ خان سره سم حیثیت او برخه په حکومت کښې نهٔ ورکوی۔ او نهٔ ورسره دَ انصاف او دَ انسانیت سلوک کوی۔ خوشحال خان وائی ؎

کهٔ هزار کاندِ پښتون مغل به نشي　　　بو یه داچه دَ زړهٔ او باسی دا خیال

او دَ اورنګ زیب عالمګیر دَ بے انصافئ متعلق لیکی :-

په ناحق دَ اورنګ زیب په بند بندی یم　　　خدائے خبر دے په تهمت او په بهتان
زړهٔ په څان کښې ګناه نهٔ وینم خدائے یو دے　　　ولے نور خلق خبر ے کا شان شان
دَ ګناه یم سر رشته معلومه نهٔ ده　　　مګر خپل هُنر دَ خان وینم تاوان
بادشاهانو سره ترس دَ زړهٔ بائده دے　　　مروّت غور رسی، عدل واحسان

څوک به چا لره په داد، په فریاد ورشی
چه په ظلم راضی مند شول، بادشاهان

دَ دے نه صفا معلومیږی چه هغهٔ دَ مغلو او دَ مغلی اورنګ زیب هیڅ بے هیڅه دښمن نهٔ ؤو۔ او نهٔ ئې په دے خیال دښمن ؤو چه مغل، مغل دی۔ او دَ دے دپاره دَ دوئ مخالفت ضروری دے۔ هغه دَ مغلو دَ حکومت ځکه مخالف شو چه هغهٔ ته معلومه شوه چه مغلی حکومت اسلامی حکومت نهٔ دے۔ دا محض یو نسلی شهنشاهیت دے چه دَ مغل نسل دَ فائدے لپاره قائم دے۔ او په زور ظلم او په بے انصافئ چلی۔ او بغیر دَ مغلونه دَ نورو مسلمانانو ورکښې هیڅ نشته۔ کهٔ چرے دَ پاکستان په شان دَ مغلو په حکومت کښې دَ ټولو مُسلمانانو یو شان حیثیت او یو شان برخه وے۔ او په انصاف او جمهوریت قائم وے نو خوشحال خان به ئې هیچرے مخالفت نهٔ وے کړے۔ بلکه هغهٔ به دَ یو داسے اسلامی حکومت دَ سالمیّت او حفاظت دپاره هر وخت ملا تړلے تیار ولاړ وے۔ کوم خلق چه دَ پاکستان دَ جوړیدو نه پس، خوشحال خان په حیثیت دَ یو نسلی هیرو، په دے خیال پیش کوی چه دَ هغهٔ دَ شخصیت او اشعارو په ذریعه دَ پاکستان سالمیّت ته نقصان اورسئ او دَ پاکستان دَ آزاد، اسلامی جمهوری ریاست دننه، نسلی فرقے او

نسلی جګړې پیدا کړی او په دې چل ول پاکستان کمزورې کړی او بیائې ختم کړی. نو دا خلق نهٔ یوازې دَ پاکستان سرهٔ غداری کوی بلکه دَخوشحال خان سره هم غداری او ظلم کوی. او دَ هغهٔ اسلامی تعلیمات په غلط رنګ خلقو ته پیش کوی. په پاکستان کښې دَ مغل، افغان، پنجابی، بلوچی او بنګالی وغیره یعنی دَ ټولو مُسلمانانو مساوی حقوق دی. او یو شان حیثیت لری. او هم دغه دَخوشحال خان تعلیمات وُو.

عجیبه خبره خو دا ده چه کوم وخت دَ مغلو دَ شهنشاهیت ختمید و پس دویم لوئې شهنشاهیت په دې وطن دَ فیرنګیانو راغلو، او دا وطن فیرنګیانو ونیولو. نو دغه وخت وُو چه دَ فیرنګیانو دَ غیرملکی او غیرمذهبی شهنشاهیت خلاف. دَ خوشحال خان شخصیت او دَ هغهٔ اشعار استعمال شوی دی. خو په دغه وخت کښې زمونږ هغه رونړه چه اوس ئې خوشحال دَخپلو سیاسی اغراضو، سرته دَ رسولو دپاره په پیړ نیولے دے. هغه وخت دَخوشحال خان په باره کښې دا سے خاموشه وُو، چه تا به وے چه ګنی مارچو کړی دی او په خولهٔ ټیپ دی. خو اوس دَ پاکستان دَ جمهوری اسلامی حکومت خلاف، خوشحال خان په غلط رنګ کښې دُنیا ته پیش کوی. او دَخوشحال خان غوندې پاک او پوخ مُسلمان نهٔ ئې محض یو تنګ نظرے نسلی هیرو جوړ کړے دے. او هغه اشعار چه هغهٔ دَ مغلو دَ نسلی شهنشاهیت خلاف په تیره شوی زمانه کښې دَ مخصوص حالاتو په بنا وئیلی وُو. او دَ هغه وخته سره ئې جوازلرلو. هغه نن دَ پاکستان دَ اسلامی حکومت خلاف، بےځایه په غلط رنګ کښې استعمالوی، چه دَ موجوده حالاتو او زمانے سره، دَ دغے اشعارو هیڅ مناسبت نشته. خوشحال خان په دې رنګ کښې پیش کول محض دَخوشحال خان سپکول دی. او هغه دَ اوچت شاعرانه مقام نه لاندې راغورزول دی.

دَ عصرِ حاضر دَ روح جُدا تقاضے دی. زمونږ په زمانه کښې او دَخوشحال خان په زمانه کښې دَ آسمان او دَ مزکے فرق دے. موجوده زمانه دَ نسلی باداشاهئ او نسلی شهنشاهیت نه ده. په موجوده زمانه کښې دَ بنیادم دوه غټ دښمنان دی. یو ایټم بم او دویم نسلی شهنشاهیت. دَ باداشاهانو زمانه لاړه. او س دَ عام خلقو دَ وقار زمانه ده. په دې زمانه کښې وړے وړے نسلی باداشاهئ جوړول، یا خانئ

جوړول دَ بنی نوع انسان توهین دے۔ دا دَ وقارِ آدم زمانه ده۔ اصل نسل په دے زمانه کښے هیڅ معنیٰ نهٔ لری۔ هر بنیادم، کهٔ هغه توردے او کهٔ سپین۔ کهٔ هغه مغل دے او کهٔ افغان، دَ بل برابر دے۔ او دَ بل په شان دے۔ دَ نسل او وینے په وجه ئے په یو بل فوقیت نشته، چه دَ هر نسل نه وی. نن ورځ هر بنیادم با وقاره، اخلاقی، معاشی، روحانی او کلتوری ژوند غواړی۔ او دَ نورو سره ئے سم غواړی۔ او په دے څوک نهٔ غولیږی چه دَ خپل نسل یو بنیادم دِ بادشاه کړی۔ او دَ دُنیا هر څهٔ دِ دَ بادشاه دپاره مخصوص کړی۔ او نور خلق دِ ذلیل، دَ خوارئ، نیستئ او ځناورو په شان، شوندیه دے خیال تیروی چه دَ دوئ دَ نسل یو سړے بادشاه دے او هغه دَ بادشاهئ شوند تیروی. دَ نسل په نوم څهٔ چه دَ غلط او رواجی مذهب په نوم هم دَ تیرو تلو زمانه لاړه۔ په هره زمانه کښے اقدار بدلیږی۔ زمونږ دَ زمانے، دَ نوی اقدارو نوے مطالبات او نوی تقاضے دی۔ دا دَ جمهوریت زمانه ده۔ او یوازے دَ سیاسی جمهوریت زمانه هم نهٔ ده۔ دا فی الحقیقت دَ اقتصادی جمهوریت او آزادئ زمانه ده۔ په دے زمانه کښے محض سیاسی آزادی هم څهٔ خیز نهٔ دے۔ کهٔ سیاسی آزادئ سره اقتصادی آزادی نهٔ وی نو دا سے سیاسی آزادی نن ورځ چلبازی گڼړلے شی۔ او دَ غلامئ دویم نوم دے۔ کوم خلق چه په دے زمانه کښے خوشحال خان په دے خیال بوس بوس کوی، چه دَ خوشحال خان په نوم به دَ پخوانئ زمانے په شان دړے وړے نسلی خانئ او بادشاهئ جوړے کړی۔ او دَ دے عصرِ بیدار پښتانهٔ به دَ ذاتی اغراضو او مفادو په خاطر، دَ نسلی خانئ او بادشاهئ دپاره استعمال کړی۔ نو دا ئے هو دِ په سویره او تړی. هغه زمانه لاړه، هغه تیره هیره زمانه واپس نهٔ راځی۔

وقتِ شعر و شاعری، بگذشت ورفت

# خوشحال خان دَ پاکستان شاعر

دَ ډاکټر اقبال متعلق همیشه وئیلے شی چه هغه دَ پاکستان شاعر دے۔
بے شکه چه ډاکټر اقبال دَ پاکستان شاعر دے. څهٔ خو په دے وجه چه هغهٔ دَ پاکستان تصور پیش کړے وُو۔ او څهٔ په دے وجه هم چه دَ هغهٔ تعلیمات، دَ پاکستان

دَریاست بنیادی اصول دی۔ او دا تعلیمات دَ قرآنِ پاک او دَ اسلام دَ بنیادی خیال توحید نه اخذ شوی دی۔ خوشحال خان خټک ته هم مونږ دَ پاکستان شاعر وئیلے شو. ځکه خو په دے وجه چه هغه دَ پاکستان په خاوره کښے پروت دے۔ او پاکستان دَ هغهٔ وطن دے۔ او ځکه په دے وجه چه دَ پاکستان دَ برصغیر دَ مُسلمانانو هغه واحد اسلامی ریاست دے، دَ کوم قِسم ریاست چه خوشحال خان خټک، په خپله زمانه کښے دَ برصغیر، دَ مُسلمانانو دَپاره غوښتلو۔ او ځکه په دے وجه هم چه دَ خوشحال خان خټک تعلیمات لکه دَ ډاکټر اقبال په شان دَ اسلامی فلسفهٔ حیات ترجمان دی۔ دَ مغلو سره دَ کشمکش په سلسله کښے چه کوم اشعار هغهٔ وئیلی دی۔ کهٔ هغه ورنه یو طرف ته کړو نو په باقی افکارو او خیالاتو کښے دَ خوشحال خان خټک شاعری دَ ډاکټر اقبال شاعری ته ډیره نزدے ده۔

دَ پاکستان په خاوره کښے چه کوم پښتانه یا اوسنی شاعران، ادیبان، بزرگان، فلسفیان او عالمان تیر شوی دی، یا موجود دی، دا ټول بالخصوص، او په باقی عالمِ اسلام کښے چه کوم پښتانه یا اوسنی مُسلمانان شاعران، ادیبان، فلسفیان، بزرگان او عالمان تیر شوی دی یا موجود دی، دا ټول بالعموم، زمونږ دَ ثقافتی، ادبی، کلتوری ګړوند قیمتی سرمایه وه۔ او دوئ زمونږ علمی، ادبی او ثقافتی مشاهیر دی۔ په دوئ کښے په مغربی پاکستان کښے خوشحال خان خټک یو ممتاز حیثیت لری۔

خوشحال خان خټک لکه دَ ډاکټر اقبال په شان دَ پاکستان شاعر دے او دَ هغهٔ اسلامی تعلیمات عام کول پکار دی۔ ځکه چه دَ هغهٔ بلند افکار او خیالات دَ پاکستان دَ آزادئ، سالمیت او حفاظت دپاره کهٔ په صحیح طریقه پیش کړے شی، نو ډیر مفید ثابتیدے شی۔

# دَ خوشحال خان خټک شاعری او دَ خوشحال خان دَ شاعرئ مقام

**ادبی پس منظر:**۔ دَ خوشحال خان خټک دَ نثر او نظم نه معلومیږی چه هغه دَ عربئ او فارسئ ښهٔ عالم ؤ۔ او دَ علمِ دین نه هم ښهٔ واقف ؤ۔ هغه دَ پښتو دَ شاعرئ په هغه دور کښے پیدا شوے ؤ چه پښتو دَ فارسئ دَ شاعرئ رنګ قبول کړے

وُو۔ او دَ فارسئ دَ ادب دَ پښتو په ادب کافی اثر غور زیدلے وُو۔ پښتو دَ دے جوګه وه چه
یو لوئے شاعر، ادیب ورکښے دَ خپلو اُوچتو افکارو او خیالاتو اظهار اوکړے شی۔
مرزا خان انصاری، دَ خوشحال خان خټک نه وړاندِ په پښتو کښے دَ اوچتے پائے غزل ګو
شاعر تیر شوے دے۔ خو دَ هغهٔ په شاعرئ مذهبی رنګ غالب وُو۔ او دَ بایزید انصاری
دَ تصوف دَ نظریاتو ورباندِ غرق اثر وُو۔
دَ خوشحال خان خټک په زمانه کښے فارسی بادشاهی ژبه وه۔ یعنی نهٔ صرف دَ
مغلو دَ دربار او حکومت ژبه وه، بلکه دَ علم او شعر و شاعرئ ژبه هم وه۔ هرچا به کوشش
کولو چه دَ مغلو شاهی دربار ته دَ رسیدلو دپاره دَ فارسئ په لیک او لوست کښے قابلیت
پیدا کړی او په شعر و شاعرئ کښے دَ شهرت حاصلولو دپاره خو په فارسئ کښے شعر وئیل
ډیر ضروری وُو۔
خوشحال خان خټک دَ زمانے دَ ضرورت مطابق په فارسئ کښے اعلیٰ قابلیت حاصل
کړے وُو۔ او په فارسئ کښے ئے شاعری هم کوله۔ خو خوشحال خان محسوسه کړه، چه
شعر و شاعری بغیر دَ خپلے ژبے نه په بله ژبه کښے عبث کار دے۔
دَ پښتو دَ شاعرئ اول دور دَ هجری سن په حساب سره تر اوومے صدئ پورے
رارسی۔ په دے دور کښے دَ پښتو شاعری په خالصه یا سُوچه پښتو ژبه کښے وه۔ او
دَ عربئ او فارسئ دَ الفاظو ورکښے ډیر کم استعمال دے۔
دَ پښتو دَ شاعرئ دویم دور دَ ۷۰۰ هجری نه شروع کیږی۔ په دے دور کښے دَ
پښتو په شاعرئ، دَ عربی او فارسی شاعری پوره پوره حاوی شوے وه۔ دَ عربئ او فارسئ
علوم او افکار، پښتو ته ورو ورو خپلول شروع شوی وُو۔
هم په دے زمانه کښے، دَ پښتو په شاعرئ کښے دَ تصوف رواج هم اوشو۔ او
پښتنو شاعرانو دَ فارسئ دَ مشهورو صوفیانو شاعرانو نقل شروع کړو۔ دَ پښتو دَ
شاعرئ په دے دور کښے ډیر لوئے لوئے شاعران پیدا شول۔ دا دَ پښتو دَ شاعرئ سرهٔ
زری زمانه وه۔ په دے دور کښے دَ پښتنو شاعری خپل معراج ته اورسیده۔
اخون درویزهؒ، بایزید انصاری، مرزا خان انصاری، خوشحال خان خټک، عبدالرحمان
بابا او عبدالحمید مهمند وغیره ټول دَ دے دور یادګار دے۔

په دے دور کښے علاوه د نورو نه، د پښتو د ادب دوه عظیم شاعران یعنی خوشحال خان خټک او عبد الرحمان بابا پیدا شوی دی. او د دے دواړو شاعرانو کلام زمونږ د ادب اصلی سرمایه ده. که یو کوه نور دے نو بل دریائے نور دے. دا دواړه لعلونه د پښتو د ادبی تاج زینت دی.

که ایران او د ایران شاعری سعدیؒ او حافظ پیدا کړی دی. که په انګریزئ کښے شکسپیئر او ملټن دی. که په اټلی کښے ورجل او ډینټے زیږیدلی دی. که یونان په هومر فخر کوی نو مونږ هم په دکه خوله و ئیلے شو چه زمونږ په ادب کښے هم خوک شته. چه مونږ ئے په احترام سره نوم نه اخلو او زمونږ د ادب ځلاندی ستوری دی. دا یو خوشحال خان خټک او بل عبدالرحمان باباؒ دے.

ځما په خیال د خوشحال خان خټک نه وړاندې چه په پښتو کښے هر څومره شاعران او ادیبان تیر شوی دی، د هغوئ مثال د خوشحال خان خټک په وړاندې د هغه ستورو دے چه نمر راوخیژی او ټول د نظر نه فنا شی. په حقیقی معنو کښے خوشحال خان خټک د پښتو د شاعرئ بابا آدم دے. د پښتو په شاعرئ کښے نهٔ د خوشحال خان نه وړاندې او نهٔ د خوشحال نه روستو د خوشحال خان هومره لوئے شاعر پیدا شوے دے. خوشحال خان زمونږ د ادب نمر دے. خوشحال خان زمونږ هومر دے. خوشحال خان زمونږ ملټن دے. خوشحال خان زمونږ ډینټے دے. خوشحال خان زمونږ ګوئٹے دے. خوشحال خان زمونږ فردوسی دے. خوشحال خان زمونږ سعدیؒ دے. خوشحال خان زمونږ ټیګور دے. خوشحال خان زمونږ اقبالؒ دے. د خوشحال خان د شاعرئ د عظمت او جامعیت نه انکار د نمر د رنړا نه انکار کول دی.

## دَخوشحال خان په شاعرئ دَتربیّت او دَماحول اثر

خوشحال خان خټک د یوخان په کور کښے پیدا شوے وُو چه د خټکو د قبیلے سردار وُو. د ورکوټوالی نه ئے د خانئ لارے چارے په کور کښے لیدلے کتلے وے. او د هغه حساس پښتون دماغ د خانئ او د سردارئ ماحول په ښهٔ شان جذب کړے وُو. د دیارلس کالو نه ئے په جنګونو شروع اوکړه او ټول عمر ئے په جنګونو کښے تیر شو. او مرګ ئے هم د خپل

کورکلی نه لرې په آفرید و کښې اوشو۔

خوشحال خان خټک ته په ورکوتوالی کښې بلاګانې او مصیبتونه ورترغاړه شوی وُو، خوډ ژوند اوریشه ئې وه، بچ شو۔ دا تو کالو په عمر کښې دَ خپرَه لاندِ ناست وُو چه کانړے پرے راپریوتو، تندے ئې سخت زخمی شو۔ اووَ اتهٔ ورځې ئې حالت ډیر خراب وُو خو آخرالله پاک ورته شفا ورکړه۔

بیا چې وادهٔ ئې دا تلسو کالو په عمر کښې اوشو۔ دَجنګ په ورځ تبې اونیولو۔ دولس ورځې ناجوړه وُو۔ آخر په دولسمه ورځ ئې تبه اوشلیده، او شفایاب شو۔ دَدې نه معلومیږی چه قدرت هغه دَ ورکوتوالی نه دَ مصیبتونو او تکلیفونو دَ ژوند سره خپله بلَد ولو۔ او دَ ژوند دَجفاکشئ او سخت کوشئ دپاره ئې تیار ولو۔ دَ هغهٔ په شاعرئ، دَ هغهٔ دَ مخصوص تربیت او قسمت غرق اثردے۔ چونکه هغه دَ ورکوتوالی نه بلاګانو ته لاندِ وتے وُو او یا بلاګانې ورته ترغاړه شوې وې۔ په دے وجه په شاعرئ کښې ئې په مړانه، په همت او جفاکشئ ډیر زور ورکړے دے۔ هغه جفاکشی ژوند کنړی۔ او دَ ژوند دَ مصیبتونو سره مردانه وار مقابله، دَ مردانه ژوند یو لازمی جز ګڼړی۔ دَ مثال په طور لاندینی اشعار ئې اولولئ ؎

کهٔ په زر رنګه خوبئ آراسته وی
چه خُلې په بلا برنهٔ وی هم هیڅ
په جهان کښې کهٔ څوانان دی هم هغه دی
چه وسختې و ته ونیسی ځانونه
واړه زړونه فراغت دی په بنادئ کښې
چه په غم کښې مردانه شی زړهٔ هغه

اوس به دَ خوشحال خان خټک دَ پیدائش دَ جغرافیائی ماحول جائزه واخلو۔ ځکه چه دَ ماحول اثر دَ ګرد ونواح دَ فضا او آب و هوا اثر، دَ تربیت اثر او دَ ژوندون دَ واقعاتو اثر دَ هر شاعر په کلام باندِ خپل نمایان اثر غورزوی۔ دَ خوشحال خان شاعری هم دَ دے اثراتو نه خالی نهٔ ده۔

خوشحال خان خټک په سرائے اکوړې کښې پیدا شوے وُو۔ دَ سرائے اکوړې کلے

دَ لنډې سیند جنوبي غاړې ته پروت دے. دا تقریبًا دَ یوسفزو او دَ خټکو دَ علاقې مقام اتصال دے. سرائے کلے دَ هغهٔ غورنیکهٔ ملک اکوړي دَ اکبر بادشاه په زمانه کښے آباد کړے وُو. او دا دَ خراسان او هندوستان دَ بادشاهي لارے په څنډه پروت دے. اکوړې ته اټک په څو میله کښے پروت دے. او دَ اټک سره نزدے اباسین او لنډے سره یو ځائے کیږي دَ سرائے سویلي غاړے ته دَ خټکو بنجرے میرے او سوراړا ګنجي پټي او وچ غرونه دي. خو دَ سیند پورے غاړه ورته دَ یوسفزو آباده او سرسبزه علاقه پرته ده.

دَ خوشحال خان خټک په شاعرۍ دَ دے مخصوص جغرافیائي ماحول ډیر اثر کړي. دَ هغهٔ شاعرانه دماغ دَ دے ماحول نه ډیر شاعرانه مضامین ایستي دي. په قید او بند کښے چه هغهٔ ته کوم وطن یا دیږي. هغه هم دغه سرائے، دغه اباسین. دغه لنډے سیند دغه اټک. دغه دَ خټکو وچ غرونه او په دغه او چو غرونو کښے دَ پلوسو بوټي او دَ پلوسو دَ بوټو ګلونه، دغه خیرآباد او میرکلان، دَ خټکو کلي، او هم په دے کلو او وچ وطن په هوا او اوبو پسے هغه په بندي خانه کښے ارمان کوي. په دے سلسله کښے دَ خوشحال خان لاندیني اشعار دَ نمونے په طور اولولئ.

کهٔ ګذر په خیرآباد اوکړے نسیمه!
یا دِ ګشت وشي دَ سرائے دَ سیند په سیمه

په بار بار سلام څما ورته عرضه کړه
ورسره څما دَ لوریه څو تسلیمه

............ الخ

یو بل ځائے کښے وائي ــه

ګل شوے دَ خوړے دَ بنړ پلوسے          خوشحاله ولے بے ګشته اوسے

ګشت دَ ګلونو، ښکار دَ بازونو کړه
چه کوڼه ډیرے غوښے پوسے

دَ خوشحال خان خټک کړوسے کاظم خان شیدا هم په رامپور (هند) کښے مسافر ناست دَ وطن پلوسے داسے یادوي:

کهٔ دا پیام د نسیمه یوسه　　ګلونه اوګرځي د سروه پلوسه

خوشبو په تاده د وطن سیمه

دا رم دُعا شي چه تازه اوسه

## دَشعروشاعرئ نظریه، اوشعردَخوشحال خان په نظرکښې

دلته دَ شعروشاعرئ په نظریاتو بحث کول به غیرضروري وي خودَخوشحال خان خټک په شاعرئ دَ پوهیدلو دپاره کهٔ یولنډ شان بحث په دے موضوع اوکړے شي نوبه ځایه به نهٔ وي.

لکه څنګه چه ادب دَ فنون لطیفه یو قِسم دے، دغه شان شاعري، دَادب یو قِسم دے. اودَادب تعریف داسے شوے دے چه دَادبي الفاظو په وسیله دَخپلو احساساتو اوجذباتو او ادراکاتو په داسے طرز کښے اظهار اوشي چه دَ اوریدونکي یا لوستونکي په زړهٔ کښے هم هغه شان احساسات را اولړزوي څنګه چه دَ لیکلو په وخت کښے دَ ادیب په زړهٔ کښے را الړزیدلي وُو. یعني ادب محض دَجذباتو، احساساتو، افکارو او روحي حالاتو، دَادبي الفاظو په ذریعه اظهار نهٔ دے بلکه دَ یوذهن نه بل ذهن ته انتقال او ابلاغ هم پکښے ملحوظ اوشرط دے. کهٔ ادیب په دے انتقال او ابلاغ کښے پاتے راشي نو محض اظهار دَهغهٔ مقام په ادب کښے نشي قائمولے. دَهغهٔ دَاظهار مفهوم لکه څنګه چه وئیلے شي په بطنِ شاعر کښے پاتے شي. دَادبي اظهار دپاره دَادبي کلماتو انتخاب اودَ بلاغت او فصاحت دَ مراعاتو په رنړا کښے. دَادبي کلماتو ښکلے ترکیب او بناشسته استعمال هم څنې نقادان ضروري ګڼړي. دَ ژوند هراړخ دَادب دپاره موزون مضمون کیدے شي. خو په شرط دَدے، کهٔ څوک ئے په ادبي رنګ کښے پیش کړے شي.

دَادب دوه لوئے قسمونه دي. یعني یو ادبِ محض اوبل ادب مخلوط. ادبِ محض هغې ادب ته وئیلے شي چه ادب دَادب په خاطر وي. یعني دَلطیفو او نفیسو جذباتو او احساساتو ادبي اظهار او ابلاغ محض دَادب په خاطر شوے وي. دَاحساس دَ ادبي اظهار او انتقال څخه بل مقصد یا بله غایه نهٔ وي لکه عاشقانه غزلے اوبدلے. او هغه نثرچه جذباتي رنګ ورکښے دَمعنوي خوبیانو په نسبت زیات وي.

ادبِ محض هم بے کاره خیز نه دے، بلکه یو قوی افادی اړخ لری - او هغه دا چه په دے ذریعه ادیبان د انسانی، جذباتی مفاهمت او همدردئ رشته خوروی. او بنیاد مو کښے د جذباتی ژوند یو ولے پیدا کوی. او د هغه شان د انسانی همدردئ په خورولو او عام کولو کښے ادیب امداد کوی - او د انسان د فطرت شناسئ په علم کښے اضافه کوی.

مخلوط ادب دے ته وائی چه لیکونکے کوم تاریخی، علمی، اجتماعی او سائنسی مضمون په ادبی پیرایه کښے اولیکی - یعنی په داسے طرز کښے ئے اولیکی چه د معنوی رنګ په نسبت جذباتی رنګ په مضمون کښے غالب راشی. داسے ادب ته، ادب د سبق په خاطر، یا د ژوند په خاطر هم ویلے شی - دلته ادب محض واسطه ده - غایه نه ده. لکه چه په ادبِ محض کښے ادب غایه ده واسطه نۀ ده.

خو په ادیب او شاعر کښے یا ادب او وعظ کښے غټ فرق دا دے چه د ادیب د پوهولو او اظهار طریقه لطیفه او نفیسه وی. او طبیعت ورته خپله رجوع کوی. او په خوشحالئ ئے قبلوی. او د واعظ د پوهولو طریقه درنه او بارِ خاطر وی. طبیعت ئے نۀ منی او ورنه فرار کوی. او د هغے وجه دا وی چه د واعظ خطبه ادبی اظهار نۀ لری. او په وعظ کښے معنوی او د سبق رنګ د جذباتو مقابله کښے غالب وی. لکه څنګه چه په ادب کښے د جذباتو رنګ د معنوی رنګ په مقابله کښے غالب وی.

شاعری، لکه څنګه چه ما وړاندِ ذکر کړے دے، د ادب یو قسم دے. او د ادب د تعریف د لاندِ راځی - د شعر ډیر تعریفونه شوی دی خو لکه د ادب په شان د شعر صحیح تعریف هم دا دے چه انسان د خپلو احساساتو، جذباتو او عواطفو اظهار په داسے رنګ کښے اوکړی چه د آوریدونکی یا لوستونکی احساسات هم په هغه شان را اوپاروی - لکه څنګه چه د شاعر د شاعرانه تجربے او مشاهدے په وخت کښے راپاریدلی وُو. که په داسے کلام کښے وزن او قافیه وی نو هم شعر دے، او که نۀ وی نو هم شعر دے.

لکه د ادب په شان، شاعری هم په دوه قسمه ده - یوه شاعری د ادب په خاطر او بله شاعری د سبق، ژوند یا اصلاح په خاطر. لکه د ادب په شان د شاعرئ دواړه قسمونه د کار خیز دے. او دواړه افادی اړخونه لری. د خوشحال خان

خټک شاعری دَ شاعرئ په دے دواړو لويو برخو يا قسمونو حاوی ده . او موږ به دَ هغهٔ دَ شاعرئ عظمت او جامعيت دَ شاعرئ دَ دے دوه لويو قسمونو په تله تلو . او جاج به ئے اخلو . په حقيقت کښے دَ هغهٔ شاعری په دے دواړو لويو قسمونو کښے دَ کمال جامعيّت او عظمت لری .

## شاعری خپله دَ خوشحال خان په نظر کښے څهٔ څيز دے

نو دا دَ هغهٔ دَ خپلے خولے نه واورئ :-

لکه غشی لره بويه تير انداز  هسے شعر لره بويه سحر ساز
هميشه دَ زړهٔ په لاس تله دَ وزن  زيات و کم دَ وزن يو توره غماز
................ الخ

او په يوه قصيده کښے خوشحال خان دَ خپلے شاعرئ حال بالخصوص او دَ شعر و شاعرئ حال بالعموم په ډير وضاحت سره بيان کړے دے . په دے قصيده کښے خوشحال خان خټک وائی چه دَ هغهٔ شعر آمد دے ، آورد نهٔ دے . يعنی دا چه هغه پيدا شوے شاعر دے او شاعری ئے په سرشت کښے دَ ازل نه ليکلی راغلے ده . لکه چه خپله وائی ؎

طبيعت مِ عطائی ، نهٔ دَ تحصيل دے  کهٔ خبر يم دَ املا په استعمال
نهٔ په فکر نهٔ په ذکر رابرخير شی  ناګهانه لکه ووړے دَ بشکال
تفکر دَ شاعرئ لږمون شين کهٔ
دَ غليم دِ په نصيب شی دا اشغال

او په شاعر چه دَ شعر چپه راشی هغه دا سے بيا نوی :-

سرهوا لکه تپ ژن هسے وټير.ی  دَ خپل ځان سره خولهٔ پټه خواب سوال
خلق بنځ په خوب اوده وی دے بے خوبه  دَ پالنګ د پاسه خوب وی پر محال
پټ په پټه و بله آوری تر صباحه  دَ بنهٔ لفظ دَ بنهٔ مضمون په اتصال
چه دَ شعر فکر ورشو په مجلس کښے  نور عالم خندا هوس کا . دے ملال
چه دَ شعر فکر ورشی په نما نځهٔ کښے  دَ اَعُوذُ ذال بدل کاندِ په دال

چه دشعر فکر ورشي په خوا پڼ کښې سپينې وريژت په مزه شي ورته کال
کله کله ئې مخ پټ شي په ډير فکر چه په دڼ دَ ليو نتوب شي احتمال

داهمه دَ خپلې پوهې نتيجه ده
چه شاعر له فکره نهٔ وي فارغ بال

دَ دے اشعارو په خوند هغه څوک پوهيږي، په چا چه خپله کله کله دا چپې تيريږي دَ شاعرانه تجربے ډير ښکلے بيان دے.

خوشحال خان خټک دَ شاعرانه تجرباتو دَ جنوني جيپو نه سرهم تکوي او وائي:

کاشکے زهٔ بے ژبے ګونګ وے شاعر نهٔ وے
تر دا هسے ګويايئ ښهٔ ووم لال

په دے شعر کښې خوشحال خان خټک دَ يو بل حقيقت اظهار هم اوکړو. هسے خو دَ هر بنيادم جذبات يا شاعرانه جذبات په خاص حالاتو کښې راپيدا کيږي او راپاڅيږي. خو عام خلق دَ خپلو جذباتو او احساساتو شاعرانه يا ادبي اظهار نهٔ شي کولے. او په دے وجه ګونګيان شاعران وي. خو کوم خلق چه دَ خپلو احساساتو او جذباتو شاعرانه يا ادبي اظهار کولے شي هغه ناطق يا ګويان شاعران وي.

خوشحال خان خټک هم وائي چه کاشکے زهٔ هم ګونګ شاعر وے او دَ ګويايئ دَ زحمت نه خلاص وے.

خوشحال خان خټک په دے قصيده کښې شاعرئ ته حيض الرجال هم وئيلي دي او بد ئې نهٔ دي وئيلي ځکه چه دَ شاعرانه فکر او تجربے مثال دَ حيض دے. اګرچه دا يوه مکروه تشبيه ده. خو دَ حقيقت نه ډکه مناسب تشبيه ده ـه

دا خبره بده نهٔ ده چا وئيلے!
په تحقيق چه شعر حيض دے دَ رجال

دَ خوشحال خان خټک شاعرئ دَ تفوق او تعالي نه هم خالي نهٔ ده. ځکه چه هغهٔ په خپل کليات کښې ځائے په ځائے په خپله پښتو او ننګ فخر کوي. دَ غه شان هغه په خپله شاعرئ هم فخر کوي. چونکه په هغه زمانه کښې نمونه ادب او شاعري په فارسئ کښې وه. په دے وجه پښتنو شاعرانو به دَ خپلے شاعرئ موازنه دَ فارسئ دَ

شاعرئ سره کوله - خوشحال خان خټک وائی ــه

چه خوشحال خټک ئے وائی په پښتو ژبه خبرے

په فارسی ژبه به نهٔ وی کهٔ پوهیږے سخن هسے

اوبیا په یو بل ځائے کښے، په قصیده کښے خپله داسے اقرار کوی ــه

په فارسئ ژبه کهٔ نور ترما بهتر دی

په پښتو ژبه م مهٔ غ ا ړه مثال

## دَشاعرئ ژبه، اودَخوشحال خان دَشاعرئ ژبه اومحاوره

دَشاعرئ دَژبے متعلق په انګریزی ادب کښے، دَ دوه لویو شاعرانو یعنی دَ کالرج او ورډز ورتهـ ترمینځهٔ دلچسپه مباحثه تیره شوے ده۔

دَکالرج خیال دٔوچه شاعرانه تجربه، عامیانه تجربه نهٔ ده۔ دا یوه فوق العاده آفاقی اوالهامی تجربه ده۔ په دے وجه دَ شعر ژبه هم عامیانه ژبه نهٔ شی کیدے۔ بلکه شعرته مخصوصه الهامی ژبه بکار ده چه دَعامے ژبے نه ممتازه وی۔

ورډز ورتهـ دَدهٔ سره اتفاق اونهٔ کړو۔ دَهغهٔ خیال دٔوچه دَشعر تجربه بے شکه چه الهامی اوآفاقی وه خو دَدے الهامی او فوق العاده تجربے دَاثر دَلاندِ چه الهامی جذبات په شدّت سره راولړزیږی نو هغه وخت داسے تجربه په الفاظو کښے بندول ګران دی۔ دغه تجربه دَهغه وخت سره دَ انسان په زړهٔ یونهٔ هیریدونکے نقش پریږدی۔ اوجذبات چه سا ړهٔ شی او په قلارشی نوشاعر دغه جذبات، په سړه سینه، په قلاروخت کښے، په ارام، په عامیانه، شائسته ژبه کښے اوتړی۔ چه په عاموخلقودَ اوریدو یالوستو سره اثر اوکړی۔ په مثال کښے ورډز ورتهـ دَخپلے شاعرئ ژبه پیش کړه۔ هغهٔ اووے چه ځما شاعرانه تجربه الهامی اوآفاقی وی۔ خوځما دَشاعرئ ژبه عامیانه ده۔

کالرج پرے اعتراض اوکړو، وے ته چه څهٔ ته عامیانه ژبه وائے، هغه نسبتًا عام فهمه ضرورده خوعامیانه نهٔ ده۔ عام سړے نهٔ داسے ژبه ویلے شی اونهٔ ئے لیکلے شی داسے ژبه صرف یوشاعرلیکلے شی۔

حقیقت دا دے چه دَ شعرد ژبے ، دَ شعرد عناصرو او اصلی اجزاؤ په باب کښے ډیر اختلاف دے - څوک چه په شعر کښے وزن یا بحر، ردیف او قافیه ډیر مهم بولی - څوک ادبی صنعتونه او محسانات دَ شعر روح او ماحصل گنړی - او څوک شعری صنائع او بدائع چه څۀ لفظی دی او څۀ معنوی، دَ شعر سرمایه حسابوی - اودَ شعر قدروقیمت او خوبی په دغه تله تلی - دَ دوئ تر نزده، ښۀ شعر هغه دے چه کوم معنوی صنعت لری. لکه صنعتِ طباق - صنعتِ مقابله - صنعتِ عکس او صنعتِ رجوع وغیره - او یا هغه شعر ښۀ بولی چه ورکښے دَ صنعی صنائعو نه کار اخستے شوے وی - لکه قلب ، اشتقاق ، ذوالقافیتین او متلونه وغیره - خو دا ټول محض دَ شعر رخت او زیور ، لباس او کالی دی - دَ شعر ناوے بلند ، آفاقی ، تخیّل او اُوچت شاعرانه خیال دے - او هم دغه په شعر کښے بنیادی څیز دے - چه شاعرانه خیال دے - او هم دغه په شعر کښے بنیادی څیز دے. چه شاعرانه خیال دَ شاعر کوتته راشی، نو دَ دے خیال ، دَ دے دلبر، دَ دے پری و پیکر اظهار کۀ په ښائسته او ادبی الفاظو کښے اوشی - یعنی کۀ پیکر ته کالی او رخت و زیور بنکلی واچولے شی نو ښائست ئے یو په دوه شی - کاظم خان شیّدا وائی ے

| | |
|---|---|
| مضمون دَ شعر لکه پیکر دے | ښائسته الفاظ ئے رخت و زیور دے |

ورله ضروردی دا دواړه څیزه
پیکر کۀ هر څو دلربا تر دے

دَ خوشحال خان خټک په شاعرئ کښے دا دواړه توکه ، یعنی پیکری خیال او دَ پیکری خیال شاعرانه او دلربانه اظهار په کثرت سره بیاموندے شی - دَ هغۀ دیوان له هر قسمه افکارو، خیالاتو، مضامینو او شاعرانه صفتونو او محاسناتو یوه داسے بنکلے گلدسته ده چه په پښتو ادب کښے دَ دے ثانی نۀ شی بیاموندے - دَ مثال په طور دا شعرونه اوگورئ :

| | |
|---|---|
| په بل ځائے رم پیوند ونه ئے دَ یار غمه | تۀ څما دَ زړۀ دَ مات کودی رغانے |

ستا په زلفو کښے رم خوار خاطر ښاد نۀ شو
دَ مومن په کفرستان کښے څۀ حرمت وی

| | |
|---|---|
| کۀ او ژغوری کبلئ په مرغزار کښے | دَ خوارۀ دربل تر سیوری ستۀ |

دَ خوشحال خان خټک دَ شعر ژبه، ساده خوالهامي او ادبي ژبه ده. عام ژبې ته نزدې، خو عام ژبه نۀ ده. دَ هغۀ په ديوان کښې دَ پښتنو دهرې طبقې او هرې قبيلې دَ مخصوصو الفاظو استعمال شوې دې، او په دې وجه دَ هغۀ دَ شعر ژبه، عالمګير وسعت لري. خو په حيثيت مجموعي په محاوره کښې دَ خټکو ژبه ده.

## دَ خوشحال خان شاعرانه مضامين

دَ شاعرانه مضامينو په حقله کښې لکه پير محمد کاکړ چه وائي، خوشحال خان يو بحر مواج دې. ميجر راورټي رابنسيا وائي چه دَ شاعرانه مضامينو په تنوّع کښې خوشحال خان دَ مشرق په نسبت، دَ مغرب شاعرانو ته نزدې دې. دَ هغۀ دَ شاعرئ ديارَه دَ انساني ژوند هر اړخ يو موزون مضمون دې ځکه چه هغه ئې په قادر الکلامئ سره په شاعرانه او ادبي رنګ کښې پيش کولے شي. په دې صنعت کښې دَ پښتو په ادب کښې يکتا دې.

خوشحال خان خټک ته الله پاک يو ډير زرخيز او مضمون خيز شاعرانه دماغ او قلب ورکړې دې. دَ هغۀ قلب او دماغ دَ شاعرانه تنوّع نه لبريز دې. هغه يو ښکلي او جمالي دماغ او قلب لري. چه دَ ژوند واقعاتو او دَ ماحول اثراتو ورکښې جلال هم پيدا کړې دې. داسې قلب او دماغ لکه چه څنګه خوشحال خان خټک لرلو. يو جليل القدر شاعر ته پيدائشي عطيه ورکيدې شي. دا په تربيت او کسب چلا بيا مومي. خو تربيت يا کسب داسې دماغ پيدا کولے نشي. ځکه خو وائي چه شاعران څوک جوړولے نشي. شاعران پيدا شوي شاعران وي. دا يو عطيه او بخشش دې.

يو ښۀ شاعر دَ بلند قوّتِ تخيّل خاوند وي. دَ هغۀ حسن بينو سترګو ته، په غرونو، ځنګلونو کښې. په ګلونو او ګلزارونو کښې. په شنو چمنونو، او دَ شنو ونو په بنړونو کښې، دَ سيند ونو او ولو دَ اوبو په روانئ کښې او دَ شفق او افق په لاله زارونو کښې، دَ صحرا دَ ماهتابي شپې په چپه چپيا کښې، دَ عشق او حُسن دَ ښاپيرو، دلاويز، رنګين او حسين وطنونه او کورونه ښکاري. هغه دَ حسن دَ پريانو، ښاپيرو ښکلي وطن، سره دَ خپل همه صفتونو په يو دلربا او دلکش رنګ کښې وينې. يو عام سړې دَ شاعر په مقابله

کښې د شاعر په دے زړۀ راکښونکی حسین او دلربا منظرونو کښې ډیر کم رومانی کیفیت محسوسوی. دا مخصوص احساس د شاعر برخه ده. او دا صرف د شاعر د شاعرانه تخیل کرشمه ده. چه هغۀ ته د معمول په امروزه قدرتی منظرونو کښې هغه څۀ ښکاری چه بل خوک ئے نۀ وینی. دا حقیقت دے چه شاعر ته په هر یو قدرتی منظر کښې د خپل جمالی دماغ او قلب د اندرونی بناښت یوه حسینه ننداره او آئینه په نظر راځی. د کائنات د جمال د نورانی تماشے لیدو ته د احساس او جذب نه لبریز زړۀ پکار دے. او هغه د شاعر زړۀ دے.

منطقی د عقل په همسا د حقیقت جمال لټوی. لیکن د شاعر د تیز قوت احساس د ښکاوت او د خیال د رفعت صحیح ترجمان هغه آسمانی او وجدانی کیفیت دے. څۀ ته چه ډاکټر اقبال ضربِ کلیم وائی. او دے ورته په عقل ډیره ترجیح ورکوی. دا د انسان په قلب کښې د حُبّ یا د عشق جذبه ده. او دا د روح وظیفه ده.

شاعر سره د کلیمؑ همساوی، هغه نبّاضِ قدرت وی. او د دے د پاره منطقی، فلسفی او سائنسدان دۀ ته لا ندے. او دے اشرف، افضل او ممتاز وی. د شاعر تیز عقابی نظر د قدرت د حقیقت بربنړه او عُریان تماشه وینی. د فلسفی په دماغ د استدلال د پردو حجاب پروت وی. فلسفی د څیزونو تلاش کوی. خو شاعر څیزونه بیزی شاعر څیزونه وینی، د شاعر نظر لګی، هغۀ ته څیزونه ښکاری.

د فلسفی د پیژندلو طریقه بے ربطه او بے نظمه، منتشر حقیقتونو کښې ربط او نظم پیدا کول دی. او په دے چل حقیقت الحقائق ته ځان رسول دی. او دا د پیوند په تیاره کښې ډُوسه وی. خو شاعر د کائنات روستے حقیقت په خپل پهلو او غیږ کښې نزدے وینی. شاعر ته لکه د فلسفی د لټون او تلاش ضرورت نۀ وی. کاظم خان شیدا د شاعر دا اُوچته مرتبه د خپل دیوان په سرومبی شعر کښې داسے له خدایه غواړی ـــ

الهی د محبت درد و فغان را !
په معصوم کنار د نمر غوندے جانان را

د حسن و عشق د حقیقت الحقائق د پرده نشین، بے نقابه او بے حجابه ننداره چه شاعر او وینی نو هغه ئے نور د خلقو ته هم ښئیل غواړی. لیکن د شاعر د ښئیلو طریقه

فلسفیانه او استدلالی نهٔ دهٔ - وجدانی دهٔ - یعنی شاعری دَ وجدان دویئم نوم دے - دَ شاعر عقابی روح چه دَ وجدان دَ چپے دَ اثر لاندِ دَ عرش بام ته او خیژی نو هغه دَ لامکان او لازمان دَ وطن، دَ مکانی او زمانی نقشے اظهار په یو داسے ژبه کښے اوکړی چه یو خاص آفاقی رفعت خولری، خو په ظاهر دَ عام خلقو دَ روزمره، رنګین دلاویزه، عام فهمه الفاظو یو شسته آسمانی تجرباتو او جذباتو اظهار او دَ نمود جامه زمینی اوګرځی - عاشقانه شاعری چه دَ جانان دَ خط او خال، مئے، نغمے او چنګ ونے او ترنګ تهنګ مضمون پورے محدوده شی - نو هم ځان ته یو افادی پهلولری - خو دَ کم شاعر یا وړوکی شاعر په لاس کښے، په ځائے دَ دے چه دَ آسمانی، وجدانی او مسرت انګیز جذباتو سرچینه شی، دَ مادی او هیجانی او نفسانی خواهشاتو دَ تسکین او لذت سبب اوګرځی - او له دے قسمه شاعری دَ اخلاقی کمزورئ سبب شی - او دَ ناپوهه خلقو دپاره مخرب الاخلاق ثابته شی - انسانی، فولادی رګ وریشه کمزورے کړی - او سړے دَ ژوند دَ سخت حقیقت دَ برداشت کولو نه سترګے پټول شروع کړی -

دَ خوشحال خان خټک شاعری سره دَ صاف ګوئی او دَ هجوو، هزل، دَ انسانی دَ بصیرت دپاره ممد او معاون ده - ځکه چه دَ هغهٔ په هزلیاتو کښے هم دَ انسان دَ نفسیاتی جنسی او سفلی اړخ یوه غرقه مطالعه ده چه بنیادم ورنه سبق اخستے شی - او دَ خپلے سفلی خودئ، تجزیه، تحلیل او اصلاح کولے شی - او دَ هغهٔ صوفیانه کلام یا شاعری بحیثیت مجموعی دَ عشق او حُسن. هغه دلآویز، پاک اوصاف بیان دے چه دَ بنیادم دَ وجدان تسکین کوی - او بنیادم ته دَ ژوند دَ جمالی اړخ یوه حسینه ننداره په ګوته کوی - دَ ژوند دَ رګ او ریښے دَ مضبوطولو دپاره دَ هغهٔ دَ سخت کوشئ او جفاکشئ، شاعری او اخلاقی شاعری لوستل پکار دی - او دَ جد وجهد او خوانمردئ او ننګ دَ جذبے په تحریک کښے دَ راوستو دپاره دَ هغهٔ دَ رزمیه او وطنی شاعرئ نه استفاده کول پکار دی - چه نن هم لکه دَ هومر او فردوسی دَ شاعرئ په شان دَ هغهٔ رزمیه قصیدے او پُرجوشه او ولوله انګیزے غزلے او بدلے زړه رپونکی، وینه تودونکی، زړهٔ کومونکی او جذبات راپارونکی وی - دَ خوشحال خان خټک دَ جنګی اشعارو، استعاراتو او تشبیهاتو په آورید وسره، نن هم دَ هر پښتون خرمن زیږه زیږه شی - او وینه ئے ببرټنی -

خوشحال خان خټک دخپلې رزمیه شاعرئ متعلق وائي:-

خما شه به نهٔ ده اور ده

ګذاروئه دَ ټوپک کا

دَ هغهٔ دَ شاعرئ شاعرانه لب ولهجه څنګه چه دَیو جنګي سردار او شاعر نه اُمید کیدے شي. مردانه او تحکمانه ده. دَ هغهٔ جنګ جویانه او دَ ننګ نه ډک خیالات دَ هغهٔ دَ ژوند تیرولو په حق کښې نظریه او دَ هغهٔ شاعرانه مرصّعات او محاسنات ټول مردانه دي. او بنیادم دَ ژوند دَجهاد دپاره تیار روي. او دَ ژوند رګ وریشه د رکښې مضبوطوي. خما په خیال په ټولو پښتنو شاعرانو کښې صرف دَخوشحال خان خټک دیوان. علاوه دَ نورو خوبیانو نه دَ پښتنو دَ وطني رنګ دَ شاعرئ ښکلې آئینه ده. ځکه چه دَخوشحال خان په کلّیات کښې دَ پښتون دَ ساده ژوندون تیزا و جنګیالی فطرت او ملکي حالت پوره او مکمله نقشه ده. دَ هغهٔ په دیوان کښې دَ پښتون دَ سخت ژوند دَ تیرولو په کور کور کښې دَمُشت ګریوانئ په کلي کلي کښې دَ پرو جنبو په قبیله قبیله کښې دَ جنګ جګړو او دَ مار کټاییئ په خیل خیل کښې دَ ملکئ او خانئ دَ زور زیاتي او ظلمونو، دَ ټپو پرانستلو او دَ رُعب قائمولو، دَ مغلو سره دَ پښتون دَ جګړو. دَ پښتون دَ علاقې دَ بیلو بیلو ټپو او حصو او قبیلو، دَ خلقو دَ خوئ بوئ، دَ بود وباش، دَ خوانمردئ، دَ میلمستیا، او نور تمدن او تهذیب معیار، دَ پښتنو دَ مختلفو قبیلو او علاقو دَ جینکو او ښځو بیان او دَ پښتون په حیثیتِ مجموعي دَ اخلاقو معیار، جنګي خوئ، ننګ او مړانه، سیاسي او اولسي حالت، حُبّ الوطني، دلاورئ، شجاعت، دَ زر او زرخواهش، دَ پښتون دَ جهل او بُغض، حسد او کینه، احمقي او خرتوب، دَ خپلو جنګونو پُرجوش بیانات، خپل خاندانی حالات، دَ خپل زوزاد ذکرمذکور، دَ خپل خوئ بهرام خان دَ ناخلفئ نه سر ټکول، دَ خپل وخت دَ مشهور تاریخي یا جنګي قصو ذکرمذکور. دَ ډهلي دَ ښار مختصر منظوم تاریخ، دَ قحط سالو او وباګانو او دَ نورو آفتونو ذکر، ځائے په ځائے دَ طب، حکمت، رموز مملکت، صحت البدن او فلسفې خبرے. دَ شعرو شاعرئ متعلق نظریات او خیالات، دَ علمِ اخلاق بیانات، دَ خپل مذهبي عقائدو بیان، حمد، نعت او مناقب، هجو و هزل، دَ موسمونو ښکلي شاعرانه بیانات، دَ قدرتي ننداره عرقه شاعرانه مطالعه

دَبانړ ونوَ تربیت او دَ ښکارخبرې، دَعشق ومحبت غزلیات، رباعیات او قطعات، په ړنګارنګ مضامینو ړورداړې قصیدې. په تاریخ ګوئیٔ وغیره کښې شاعرانه زورښتیل، دَ پښتونږې دَ ترقیٔ په حقله ابیات، دَ پښتون تهذیب دَ خوړولو کوشش، دَ نوکریٔ او منصبداریٔ بدوئیل، دَ پښتون قوم دَ مغلو دَ غلامیٔ نه دَ آزادولو کوشش، په خپل ننګ، سرداریٔ او شاعریٔ فخریه اشعار، خپل حال په قید ونو او مسافرو کښې، په قید وبند کښې په وطن پسې ارمان، دَ زمانې دَ ګردش نه ژړا او فریاد، دَ اورنګ زیب دَ عالمګیر سره دَ اوبش فتنه ساتل او دَ هغې بار بار ذکر کول. پښتون ته دَ قومیت تعلیم ورکول، صوفیانه کلام کښې خپل ړورښتیل او دَ نوړو ډیرو مضامینو شاعرانه او ادبي ذکر مذکور بیاموندے شي. عرض دا چه دَ مضامینو دَ تنوّع په لحاظ سره، دَ خوشحال خان دیوان یو بحرِ ذخار دے. او بحرِ مواج دے. او دَ انسان دَ ژوند دَ هر احساس ترجمان او دَ هرے مشاهدے شاهد دے. دَ پښتو ژبے حدائے مکړه کهٔ تموله ادبي ذخیره ضائع شي، او یو دَ خوشحال خان دیوان بچ پاتے شي نو بیا هم څما په خیال، دَ خوشحال خان خټک کلیات په دے بیعه مونږ ته ګران نهٔ پریوځي.

او کهٔ چرے نن هم پښتون دَ خپل نمونه ادب یوه بهترینه ګلدسته او شاهکارینه تحفه یو غیر قوم ته پیش کول غواړي، نو څما په ذهن کښې دَ خوشحال خان خټک دَ کلیات نه بغیر بل کتاب نهٔ راځي.

## دَ خوشحال خان وطني او رزمیّه شاعري :-

دَ خوشحال خان خټک په وطني او رزمیّه شاعریٔ مونږ په ضمني طور، په دے مضمون کښې دومره څهٔ اووے چه بیا دَ دَغے موضوع تکرار او دَ خوشحال خان خټک دَ شاعریٔ دَ دے برخې نمونے ړکول غیرضروري ګنړم. خو په حیثیتِ مجموعي کهٔ مونږ وواېو، چه دَ خوشحال خان وطنیت شاعري ده. او شاعري ئے وطنیت دے. نو څهٔ ډیر بے ځایه به نهٔ وي. ځکه چه هغه دَ خپلې همه ګیرے او عالمګیرے شاعریٔ زور دَ وطنیت په شاعریٔ کښې ښائیلے دے. دَ هغهٔ په ړوح کښې دَ شاعریٔ فن او دَ وطنیت جذبه داسے پیرلي شوي دي چه جدا کول ئے ګران دي. خو دَ دے دا مطلب نهٔ دے چه دَ هغهٔ دَ وطنیت دَ شاعرۍ

نه علاوه نوره شاعري وقعت نهٔ لري. دهغهٔ شاعري دَ انسان دَ فطرت په حیثیت مجموعي
ترجماني کوي او دهغهٔ په افغان فطرت کښې، دَ اسلام تعلیمات داسې اخښلي شوي دي چې
حقیقت کښې دَهغهٔ وطني شاعري هم یوګونه دَهغهٔ دَ اسلامي فطرت یوه برخه ده. خو
دا متوته یا برخهٔ دَ نور فطرت په مقابله کښې لږه زیاته نمایان او ښکاره ده. په دې وجه
ځنې خلق یا قصدًا یا په غلطۍ هغهٔ ته محض دَ نسلي شاعرۍ علمبردار وائي. خو دا تجربه
ښکه چه مونږ وړاندې په تفصیل سره ذکر کړې دے، صحیح نهٔ ده. دَ میر عبدالصمد خان
دَ خوشحال او اقبال دَ جامع او حقیقت افروز کتاب لوستونه پس، خوشحال خان ته محض
دَ نسلي شاعرۍ امام وئیل، دَ حقیقت نه سترګې پټول دي. هغه داسې ښهٔ اسلامي شاعر
دے لکه چه هغه ښهٔ وطني شاعر دے. دَ اقبال خپله شاعري هم په ابتدا کښې دَ وطنیت
دَ جذبې علمبرداره وه. او بیا روستو دَ اسلام په رنګ کښې رنګ شوې ده.

# عجمي تصوّف او دَ خوشحال خان خټک په شاعرۍ کښې حقیقت او مجاز

افلاطون دَ یوناني تصوّف بابا دے. دَ افلاطون نظریهٔ امثال او دَ حُسن محض
نظریه دَ عجمي تصوّف بنیاد ګڼړلے شي. اګرچه په ظاهره دَ وحدت الوجود مسئله دَ عجمي
تصوّف روح ښکاري.

دَ افلاطون خیال ؤ چه کومه دُنیا مونږ ته په نظر راځي، دا حقیقت نهٔ دے.
حقیقي دُنیا بله ده. هغه دَ عالمِ امثال دُنیا ده. زمونږ دُنیا، لکه ځنګه چه مونږ ته
ښکاري دا دَ حقیقي دُنیا محض یو سوری ده. یا دَ حقیقي دُنیا یو عکس دے.

هغهٔ دَ دُنیا دَ څیزونو مثال داسې ورکړے دے چه لکه یو سړے دَ یو لوئے غار په
خوله کښې ناست وي. غار طرف ته ئې مخ کړے وي او دُنیا ته ئې شا وي. دَ غار دَ خولې په
وړاندِ خو دَ بُنیادم په شان قسما قِسم مخلوقات تیریږي او دَ دے مخلوقاتو مخامخ دَ غار دننه
سوریے پریوزي. دَ غار په خوله کښې ناست سړي ته دَ مخلوقاتو صرف سوریے ښکاري.
خو حقیقي مخلوقات ورته نهٔ ښکاري. ځکه چه مخلوقاتو ته دَ هغهٔ شا ده. او غار ته ئې
مخ دے. لکه دَ نن زمانې مثال به دا وي چه سینما هال کښې یو سړے ناست وي. دَ سینما په

پرده هغه تصویرونه وینی کوم چه دَ سینما په شا دَ پټ مشین نه راوزی او دَ عکس په شکل کښې په پرده پریوزی۔ یا ډیره صحیح تشبیه به داوی چه لکه دَ سویرو په ډرامه کښې ایکټران کوم چه په ډرامه کښې اداکاری کوی، هغهٔ ته نهٔ ښکاری خودَ هغوئ دَ اداکارئ یا ایکټنګ سویره په پرده پریوزی۔ او تماشګیر صرف دَ ایکټنګ یا دَ اداکارئ سویره په پرده وینی۔

دَ افلاطون دَ حُسنِ محض نظریه داوه چه دَ جمالِ حقیقی ښکلا اول بنیادم ته په یو حسین مخ کښې خپله جلوه اوښئ او بیا دغه جمال بنیادم ته په هرمخ کښې ښکاری۔ او بیا ټول کائنات ورته په دغه نُور منوّر ښکاری۔ دَ افلاطون دَ حسنِ محض نظریه په دے شعر کښې بنده ده ـــ

اول خوښ م دَ یار حُسن، بیا م خوښ هم حسین ؤو!
اوس په داسے ځائے مقیم یم چه م خوښ دَ خیال دَ حُسن

یعنی دَ بنیادم روح چه دَ عشق دَ جذبے په برکت دَ لطافت یو اوچت مقام حاصل کړی نو بیا لکه دَ سحر خیز عقاب غوندِ، دَحسن په هغه بسیطه فِضا کښې چورلندی خوری، چرته چه دَ کائنات، دَخالق دَ ازلی حُسن لازوال نمود، بے نقابه ښکاری۔ دا دَ افلاطونی دُنیا دَ حسنِ محض دَ نظریے هغه روستے حقیقت دے۔ هغه روستئ درجه ده۔ کوم ځائے چه سړے دَ دُنیا او مافیها نه بے خبره وی۔ دَحُسنِ ازل له نوره معموره، جلوه ګاه کښې ناست غرقه تماشه کوی۔ دا هغه حسین او ننګارین منظر دے۔ چرته چه حُسن فی نفسهٖ، دَ وجود له قیده آزاد یو نورانی نمود حاصل کړی۔ دا یو داسے حالت وی چرته چه سړے دَحُسن دَ خیال شیدائی وی۔ دَ څهٔ خاص حسین څیز سره حُبّ نهٔ لری۔ په هر څهٔ مئین وی۔ او دَ هر څهٔ نه بے نیازوی۔ صوفیاء دے ته دَ حضور شغل یا مقام وائی۔

عبدالقادر خان خټک دَ حقیقت او مجاز دا رشته په یو شعر کښې داسے ستائیلے ده:۔

ـــ
خوخبرنهٔ دے وګړے له دے رازه
ګنی بیل حقیقت نهٔ دے له مجازه

دَ وحدت الوجود دَ خیال باباد سپین محي الدین العربی دے۔ دَ تصوّف دَ دے

مسئلے خلاصه مطلب دا دے چه په عالم کښے په ښار ګونو او لکونو مختلف شیزونو په نظر راځی. دا ظاهری کثرت په حقیقت کښے وحدتِ محض دے. یا د وحدتِ محض مختلف شکلونه یا رنګونه دی. په ټولو شیزونو کښے هغه "یو" هغه احد جاری او ساری دے او په هر شیز کښے، د هغهٔ حسن دے. یا هغه دے، بل څهٔ شیز نشته. موجودات او ممکنات واړه په وحدت کښے د کثرت او په کثرت کښے د وحدت کرشمه ده. چونکه د وحدت الوجود د فلسفے نه چه صوفیاؤ کومه نتیجه اخذ کړے وه، هغه دا ده. چه دُنیا او ما فیها هیڅ وقعت نهٔ لری. ځکه چه د دُنیا هیڅ شیز حقیقی نهٔ دے. د دے دپاره د دُنیا په شیزونو کښے ښړهٔ لګول عبث کار دے. د وحدت الوجود فلسفه، د عجمی تصوف بنیادی خیال او ګرځید و. او د دے فلسفے د اثر لاندِ په عالمِ اسلام جمود خور شو. خو د شاعرئ دپاره چونکه دا مضمون ډیر موزون او رنګین ؤو، په دے وجه د تصوّف دا بنیادی خیال د عجمی شاعرئ نشه شوه. او د عجمی تصوّف او عجمی شاعرئ د اثر لاندِ چه خومره ملکونه راغلل، هغو ټولو دا خیال قبول کړو. او د هغوئ په شاعرئ کښے دا خیال داخل شو.

د وحدت الوجود د فلسفے نه چه کومه نتیجه صوفیاؤ ایستے ده، دا هم هغه د افلاطون خیال دے چه د موجوداتو دُنیا حقیقی نهٔ ده. او د افلاطون د حسنِ محض نظریه په عجمی تصوّف کښے دا سے داخله شوه چه د عجمی شاعرئ روح شو. او په عجمی شاعرئ کښے ئے خوند، رنګینی، لطافت، نزاکت او یو روحانی حرارت او ګرمی پیدا کړل. او د عجم د شاعرئ معیار ئے اوچت کړو.

په تصوّف کښے د وحدت الوجود د مسئلے اصطلاح په هندوستان کښے مجدد الف ثانیؒ کړے ده. هغوئ او فرمائیل چه دا په حقیقی تصوف کښے یو مقام دے. او پکار ده چه سالک د دے مقام نه اوځی. که سالک په دے مقام کښے او نښتو نو لاره ترے خطا شوه او په بلو بلو سر شو. په اسلامی تصوّف کښے د دُنیا ژوند، د آخرت دپاره یوه باړئ ده. یوه توښه ده. دا بیکاره ژوند نهٔ دے. دُنیا حقیقی ده او ښه ده، لکه رحمان بابا چه وائی ۔

بنه ده بنه ده دا دُنیا
چه توښه ده د عقبیٰ

دُنیا پریښودل نشته. مُسلمان دُنیا پریښودل رهبی ده. اسلامی تصوّف کښے دُنیا پریښودل نشته. مُسلمان

په دُنیاوی ژوند دَ اسلام دَ اصولو او تعلیماتو مطابق تیروی۔ او نظر به ئے هر وخت په خدائے تعالیٰ وی۔ یعنی "دست به کار، دِل به یار" په اصول به عمل کوی۔ کهٔ مُسلمان دُنیا پریږدی نو دَ اسلامی تصوّف دَ نقطهٔ نګاه نه۔ دا غیر اسلامی څیز دے۔

خو په شاعرئ کښے دَ حقیقت او مجاز دَ الفاظو سرچشمه تصوّف دے۔ شاعری دَ جذباتو دَ اظهار نوم دے۔ او دَ تصوّف په برکت په جذباتو کښے پاکوالے او شدّت پیدا شو۔ او چونکه دَ تصوف خمیر عشقِ حقیقی یا عشقِ الٰهی دے او عشقِ حقیقی ېښی دَ یو پاک جوش او لوئے مطهرے او مقدسے جذبے نوم دے۔ چه دا جذبه په بنیادم کښے اُوچت اخلاق او روحانی ژوند او پوهه پیدا کوی۔ په دے وجه چه شاعرئ کښے دَ تصوّف مضمون ځائے اونیولو نو دَ عشقِ مجازی خبرو هم خوند پیدا کړو۔ او په عجمی شعر کښے په حیثیتِ مجموعی یو ژوندے ادبی روح اوځلیدو۔ او دَ اهلِ دل او اهلِ هوس، دواړو په اشعارو کښے تاثیر پیدا شو۔ او دَ عجم په شاعرئ کښے دَ یو نوی باب اضافه اوشوه۔ لکه څنګه چه وړاندِ ذکر شوے دے۔ دَ خوشحال خان په زمانه کښے دَ پښتو شاعرئ کښے هم تصوّف داخل شوے ؤ۔ او اګرچه خوشحال خان خپله صوفی مشرب سړے نهٔ ؤ۔ هغه یو فعال ؤ۔ یو جنګی سردار ؤ۔ او شپه او ورځ ئے دَ جنګ سره سروکار ؤ۔ خو دَ هغهٔ دَ صوفیانه کلام دَ لوستونه دا سے معلومیږی چه هغه دَ تصوف دَ باریکو نه خبر ؤ۔ او شاید دَ هغے وجه دا وه چه هغهٔ دَ خپل وخت دَ عالمانو او صوفیاؤ سره ناسته پاسته کوله۔ او دَ هغوئ دَ صحبت او افکارو دَ هغهٔ په خیالاتو اثر ؤ۔ څکه خو دَ هغهٔ په شاعرئ کښے دَ رزم او بزم سره سره دَ تصوف رنړا هم ځلیږی۔ او هغهٔ چه په کوم تصوف عمل کړے ؤ۔ هغه عجمی نهٔ ؤ بلکه اسلامی ؤ۔ یعنی په لاسو پښو ئے دُنیاوی کار کولو۔ په لاس کښے ئے توره وه۔ خو په زړهٔ کښے ئے دَ خدائے تعالیٰ خوف ؤ۔ او زړهٔ ئے مُسلمان ؤ۔ البته دَ هغهٔ په شاعرئ کښے عجمی تصوف اثر کړے ؤ۔ او ځنے اشعار هغهٔ دَ وحدت الوجود دَ مسئلے دَ اثر لاندِ وئیلی دی۔ لکه دَ مثال په طور دا اشعار اوګورئ :۔

په هر څهٔ کښے نندارهٔ دَ هغے مخ کړم
چه له ډیرے پیدائی نه ناپدید شو

خوشحال خان په یو بل شعر کښے وائی سه

دَ درویش په زړهٔ کښې درست کتاب مرقوم دے
کهٔ په خولهٔ ئې دَ عربو لُغت نهٔ زده

دَ دے شعر نه معلومیږی چه هغهٔ دَ اسلامی تعلیماتو او اسلامی تصوف روح په ښهٔ شان جذب کړے وُو۔ حضرت علی کرم الله وجههٔ چه دَ اسلامی تصوف بابا دے خپل ځوئے حسنؓ ته وائی چه اے ځویه تهٔ په حقیقت کښې اُم الکتاب ئې۔ هرڅهٔ چه دی په تا کښې دی۔ دَ تا نه بهرڅهٔ نشته۔ اسلامی فقیر خپله دَ لا اله مظهر شی او په خپل قلب کښې کتاب جذب کړی۔ خوشحال خان خټک په پورته شعر کښې، دَ اسلامی فقر دے طرف ته اشارهٔ کړے ده۔

دَ اسلامی فقیر دَ توکّل دَ ژوند په باره کښې دَ خوشحال خان هغه غزل چه ورکښې دا شعر درج دے۔ ډیر قابلِ تحسین دے۔

کهٔ لړه ده کهٔ ډیره، وارهٔ اوشمیره په تیزه!
په خوئ دَ پیغمبر شه کهٔ شته شته کهٔ نشته نشته

اسلامی تصوف دَ ظاهر او باطن تعمیر دے۔ او دَ ظاهر او باطن تعمیر صرف دَ توحید په اصولو کیدے شی۔ دَ توحید دَ بحر لامبوزن، او شنا ور، په صراطِ مستقیم روان وی۔ دَ موحد نظر دَ باقی دُنیا نه مایوس شوے وی۔ او صرف په یو ذاتِ واحد او احدئے نظر وی۔ دَ عشق دَ تګ دَ یو دا سے لار وی۔ دماغی حالت او روحی کیفیت خوشحال خان دا سے بیانوی۔

هر تشنه چه دَ وحدت په سیند سیراب شهٔ
نور هم جهان ورتهٔ وته سراب شهٔ

او په یو رباعی کښې عارفان دا سے ستائی ے

عارفان دَ سر په سترګو ګوتے کیږدی
دَ خپل زړهٔ په سترګو ګوری تماشا کا

دا عالم لکه طفلان ورته ښکاریږی
دَ طفلانو په بازئ پورے خندا کا

دَ بنیادم دا لیونتوب چه خپل عقل، اختیار او اراده په خپله خوښه او رضا

بیا دَ اللہ پاک دَ عقلِ کل، اختیار، ارادے تابع کړو، او دَ اللہ پاک په رنګ کښے رنګ شي او دَ اللہ پاک عاشق او دیوانه شي، دا یو داسے مبارک فعل دے چه دَ هر عاقل او فرزانه دَ فعل نه افضل دے. یو داسے دیوانه، داسے مجنون او داسے لیونی ته لیونے وئیل هم لیونتوب دے. خوشحال خان خټک دا مطلب په یو شعر کښے په اختصار سره داسے بیانوی. ـ

عاقلانو څه خوړنګه حکمت دے
لیونیو یو دَ عقل حکمت نهٔ ړده

په دے شعر کښے خوشحال خان خټک په ابلیسئ، زیرکئ یا شیطانی عقل باندِ، په عجیبه شاعرانه طرز کښے طنز کړے دے. وائی چه دَ عشق لیونی، هغه عقل نهٔ لری، کوم خرد، دانش یا عقل چه دَ دُنیا او نړی عاقلان لری او هغوئ دے عقل ته حکمت او دانائی وائی. خوشحال خان خټک یو بل ځائے کښے وائی ـ

دَ عشق کار په لیونتوب دے نورڅهٔ نهٔ دے
راشه واوره نهٔ په عقل، نهٔ شعور

عارف دَ عشقِ الٰهی په اور کښے تل عمر سوزی او هم په دغه اور کښے لکه دَ سمندر په شان، نهٔ صرف پائی بلکه ګلعذار هم وی. او په دغه اور کښے لذت هم بیاموی. عشق هغه سوز دے، هغه اور دے، چه دَ دوزخ اور هم ترینه امان غواړی دے. دا اور په هر اور غالب دے. چه خالق اور پیدا کړو نو اور ترے تپوس او کړو چه زهٔ دِ ولے پیدا کړم؟ ورته او وئیلے شول چه ته ذریعه دَ عذاب سازشوے ئے. اور او وئیل چه ماته به په څهٔ عذاب راکیدے شی؟ ورته او وئیلے شول چه په نارِ کبرئ. دَ خپلو عاشقانو دَ زړونو په اور. خوشحال خان خټک وائی ـ

دَ دوزخ لمبے به کار په عاشق نهٔ کا
چه ئے تاؤ دَ دروُنے دے په دا دال

په یو بل ځائے کښے، په یوه رباعی کښے دَ عاشقانو یا عارفانو قلبی کیفیت خوشحال خان خټک داسے بیانوی ـ

جهان کهٔ واړه سره سور اور شی — ګمان او مهٔ کړه چه عارف نور شی

کۀ سمندر غوندِ په اور کښې کا ر نۀ که
عارف ئې منۀ کنړه، مخ دِ ئې تور شي

دا ولا دَ خوشحال خان خټک دَ حقیقت شاعرئ، یا دَ صوفیانه کلام نمونه. او س دَ خوشحال خان خټک دَ عاشقانه کلام یا دَ مجاز دَ شاعرئ نمونه اوګورئ. خوشحال خان خپله په شاعرئ کښې دَ حقیقت او مجاز رشته داسې ستائي ـ

په تورآس دَ حقیقت ناوې سوره که
په سپین مخ پلو نیولې دَ مجاز
سل جلوې، سل کرشمې، سل مکیزونه
په نظر کښې ئې ښکاره دَ سترګو ناز

دَ خوشحال خان خټک عاشقانه کلام دَ تصوف سره داسې پیرلې دے چه په مجاز کښې هم لوستونکے، دَ حقیقي عشق ګرمي محسوسوي - عاشقانه غزلیات چه دَ خوشحال خان خټک ډیر زورور دار دي. او خان ته یو امتیازي نوے رنګ لري. دَ مثال په طور دَ خوشحال خان دا غزل اولولئ:-

په ځان او په جهان کښې ما دوه څیزه دي اوکښلي
په ځان کښې دواړه سترګې په جهان کښې واړه ښکلي

.............. الخ

او بیا دا خوندناک غزل اولولئ:-

توره چه تیریږي خو ګذار لره کنه
زلفې چه ولول شي خو خپل یار لره کنه

.............. الخ

لاندِ درج شوے مسلسل غزل چه خوشحال خان خټک، دَ آدم خیلو آفریدیو په تعریف کښې لیکلے دے. دَ هغهٔ دَ مجازي شاعرئ ښکلے نمونه ده.

آدم خیلې آفریدئ دي سرې او سپینې
پکښې شته دي ښائسته په رنګ رنګینې

.............. الخ

# خوشحال خان په حیثیت د یو غزل گو شاعر

خوشحال خان خټک د پښتو په غزل کښې ساه واچوله - او د غزل لمن ئے د هر قسم مضمون د اظهار دپاره موزونه او تیاره کړه - د هغهٔ په خپلو غزلونو کښې نهٔ صرف د عاشقانه احساساتو، خیالاتو او جذباتو اظهار دے - بلکه هغه غزل د هر قسم مضمون دپاره په کامیابئ سره استعمالوی - تصوف، فلسفه، اخلاق، پند و نصائح، حکمت، وطنیت، حسن وعشق وغیره د هغهٔ د غزلونو مضامین دی - هغهٔ لکه د فارسئ د نورو اصنافو په شان د پښتو د غزل بابا دے - هغهٔ د غزل تنګه او محدوده لمن وسیع کړه - او غزل ته ئے په خپله شاعرئ کښې یو اُوچت مقام ورکړو - د هغهٔ په غزل کښې د مضامینو دومره تنوّع ده چه هغه محض د غزل په ذریعه د خپل زړهٔ او دماغ د هر فکر او هر احساس په مکمل طور اظهار کولے شی - او کړے ئے دے - هغهٔ د فارسئ غزل دا سے پښتون کړو، او د پښتو مزاج ته ئے دا سے نزدے کړو چه سړے وائی چه دا صنف د پښتو په شاعرئ کښے خارجی اثر نهٔ دے - بلکه ځائی دے - کومه روانی، سلاست، انفرادیت او د معنیٰ او د الفاظو رنګینی چه د خوشحال خان په غزل کښے ده، د بل پښتون شاعر په غزل کښے نهٔ شی بیاموندے - د هغهٔ په غزل کښے تخیّلی او واقعی حقائق دومره په ښه طریقه پیرلی شوی دی چه د فارسئ د قادرالکلام او اوچتو شاعرانو سره مقابله کوی - د هغهٔ په غزلو کښے نادر تشبیهات او استعارات چه د خپل ژوند د ذاتی تجربے او د ماحول د وطنی مشاهدے نه اخذ شوی دی، په کثرت سره بیاموندے شی - د مضامینو بلندی هم، د هغهٔ په غزل کښے معراج ته رسیدلے ده - که د خوشحال خان د غزل نه علاوه، اود نور هیڅ هم نهٔ وے وئیلے نو بیا هم د پښتو په شاعرئ کښے به هغهٔ ته یو داسے اوچت مقام حاصل ؤ چه د بل پښتون شاعر رسائی به ورته کرانه وه - دا لاندِ شعرونه په مختلفو مضامینو، د هغهٔ د غزلونو نه پیش کوو چه د هغهٔ د غزل رفعت، تنوّع او جامعیت لوستونکو ته معلوم او ثابت شی ؎

د خوشحال قدر که اوس په هیچا نشته
پس له مرګه به ئے یاد کړه ډیر عالم

جهان یو کتهوړے شو زۀ په مثل د میږی یم حیران پکښې جار وُوزم لاس و پښې پکښې وهمه

دُنیا وته چه ګورم، کاږ وبار ته د وګړی

د ادږکیو تماشے دی زۀ ئے هم ورسره کړمه

... ... ...

لکه څوک چه خواږۀ شهد اوخوری، خوښ شی

هسے خوښ د شکرلبو په کنځل یم

د جمال خوبی دِ زیاته تر آفتاب دۀ د نظر د پاره نوم د ږباندِ ماه بږدم

کۀ مِ چړے لاس د واک دږ ور سپیږی

په سپین مخ به دِ د غابښ نخښے سیاه بږدم

کۀ نیوے زرکه باز پریږدی له چنګه زۀ به هم له لاسه پریږدم شوخ وشنګه

... ... ...

هر ناوک چه د قضاله شسته خیژی نښانه د خوشحال زړۀ ورته آماج که

... ... ...

زړۀ مِ ستا په زلفو بند شو، تا کباب کړو

څوک شهباز هم د کباب د پاره نیسی

نورے واړه تکیئے دی په وار خورے شوے

د خوشحال خټک تکیه په یوۀ خدائے دۀ

د خټک د ننګ جرګه نشته خوشحاله

راوتلی دی له کومو نسبونو

کۀ دِ زړۀ دے چه مِ مینه درښکاره شی

راشه ونیسه و مخ ته آئینه

سر دِ ږدمی، مال دِ درومی، پت دِ نۀ ځی

د سړی د چارے کل خوبیٔ په پت دی

په بنادئ کښے دِ نے شکر سړے کاندی

په غمونو کښے د صبر چاږ فرحت دۀ

چه دروغ ترخولے اوباسی کله خولۀ ده
چه رښتيا ترخولے اوباسی خولۀ هغه

چه له دوسته له دښمنه ښۀ سلوک کا
دَ هغوسړيو ښه ژوندګانی ده!

دَمنت دارو کۀ مرم پکار م نۀ دی
کۀ علاج لره م راشی مسيحا هم

دَ هغۀ قدر لرم ترے به ځار يږم!!!
چه په غم کښے چاره جوړۀ دَ بيچاره دے

طالبان ئے دَ جمال لکه حاجيان دی
چه کعبے لره ورځی په لارو لارو

هوښيارانو ځکه ډيرے انديښنے دی
چه ملنګ دَ مصلے هغه اسند که

دَخانۀ دَ تورے کار رښتيا په عشق کښے
معشوقے وته مرئيے اوسه خوشی اله

پښتنے جونه م اوليدے په سترګو
چه څوک ترکے دَ خطا ستائی خطا دی

زۀ حيران يم په داخلقو نۀ پوهيږم
ترږی مری، ولاړ ترحلقه په دريا کښے

دا هم ظلم دے کۀ ګورے
چه بے مېړو ځی پسرے

چه سړے له غمه خلاص که
هغه څۀ دے قناعت دے

نفس وماته حق ناحق کا، ناحق حق کا
تل دَ دۀ ترفرموده پورے لاچار يم

زۀ چه ستا دغم ته ګورم
زړۀ مې نۀ کیږی ګلزار ته

ونور چا وته وران مۀ وایه خوشحاله — چه په قول وعهد وران شو وران هغه

چه ئې تۀ په ګیډه اوخوری حبطه شی
دَ مجلس سره چه خوری شی خوان هغه

کۀ په اصل پښتنه دَ هندوستان ئې
دا دَ ظلم خوئې دِ زده کړو له مغلو

چرګ دِ خپل چرګ والے کا کۀ ئې رضا ده
چه له بازه بازی کا، دَ دۀ قضا ده

ځما اوښکے دَ توکل په جوش پیدا دی
لکه اور چه له کبابه نم اخراج کا

واړه زړونه فراغت وی خوشحالئ کښے — چه په غم کښے مردانه شی زړۀ هغه

چه په عشق سره ژوندی دی هغه نۀ مری
چه بے عشقه ژوندی ګرځی، مړۀ هغه

ډیرے میئنے آشنائی څۀ یکار نۀ دی
یوۀ زړۀ لره یوه آشنائی بس ده

عاشق یو لکه لیوۀ په شمال پائی
بل په غټو سترګو خوب کا لکه سویه

له اثر له ئې رند رند، زاهد زاهد کړو
زۀ به ډکے پیالے اخلم تۀ تسبیح کړه

دَ عالم ډیرے خبرے لور په لور تورے لښکرے
زړۀ مې نۀ خوږی له ځایه غرخو هسے وی کنه

نشته بانګ دَ مؤذن په درست تیراه
مګر واوړے بانګ دَ چرګ په سحر ګاه

چه په زړه ئې د وحدت ډیوه شوه بله
تجلّی به ئې له مخه ځی ، آفتاب شه

تورې تورې زلفې کبود خال لکه کوتره
راشه که د ګورې پرې بندی یوځه شهباز دی

پښتنې جونه د زلفې باد ته نیسی
چه شمال ئې بوئی راوړی په دشهبور کښې

د پښتوو نه همه پښتوګی زیړی
که ایغرئې د عرب یا د عراق دے

چه د خلقو نیک خواهی لرے په زړه کښې
مبارک شه بادشاهی لرے په زړه کښې

غم ئې بے حکمته نهٔ دے پیدا کړے
د نامرد د مرد په مینځ کښې غم محک دے

د خوشحال کلام شیرین دے تر نباتو
چه په خوند ئې خبر نهٔ دے ورته کروت دے

د راحت په وخت د یار تجربه نهٔ شی
چه محنت د سره واخلی یار دِ دے

جنتی زلفے ئې پاس په سینه ځانګی
یمانی بار رخونے ګل غوندِ نها شی

لکه باد کله ئې مخ کله ئې شا ده
بیهوده غرور د هرچا په دولت شی

که صورت وته دِ ګورم په صورت کښې یوحیوان ئې
که معنو وته دِ ګورم شهزاده د کل جهان ئې

ماخوشحال چه په پښتو شعر بیان کړو
د پښتو ژبه به اوس په آب وتاب شی

... ... ...

کۀ چرګان غرغره دار دی
بیا هم بازوته لاچار دی

آفرین دې په وشلو شه خوشحال له
په بیان د بیا د عجب شعر رنګین دی

د خوشحال سره چه کښيني یو څو کاله
دا د غرۀ ختک به واړه شاعران شي

# د خوشحال خان ختک اخلاقي او فلسفیانه شاعري

د خوشحال خان شاعرۍ لکه څنګه چه مونږ وړاندې ذکر اوکړو د وطنیت سره د تصوّف ئې هم څۀ نه څۀ رنګ قبول کړے دے - او چونکه تصوف د فارسي د شاعرۍ یوجز ولاینفک ګرځیدلے دے، په دے وجه د پښتو په شاعرۍ چه د تصوّف رنګ د فارسۍ د شاعرۍ د اثر د لاندې اوختو - نو د خان سره ئې د تصوّف نور لوازمات هم راغلل.

په فارسۍ کښې د صوفیانه شاعرۍ د ترقۍ یو لوئې سبب دا وو چه د ابتدا نه د تصوّف سره اخلاقي مسائل هم شامل شوی ؤو - چونکه د تصوّف او د اخلاقیاتو خپلو کښې غرق او نۀ شليدونکې تعلق دے - او اخلاق د تصوّف یوجزو ګرځیدلے ؤو د احیاء العلوم د اخلاقو د فن دقیق اسرار عام کړی وو - او محقّق طوسي په اخلاق ناصري کښې، د ارسطو فلسفیانه اخلاق په ښۀ شان ادا کړی ؤو، نو په دے سبب د فارسۍ په شاعرۍ کښې د اخلاقو کافي سرمایه جمع شوے وه - او د اخلاقو دا سرمایه د فارسۍ شاعرۍ د تصوّف په برخه کښې راغلې وه - نو په فارسي شاعرۍ کښې د تصوّف او د اخلاقو سره سره په شپږمه صدۍ کښې د فلسفې هم عام رواج اوشو - او په مذهبي ډله کښې هم د فلسفې کتابونه داسې مقبول شول چه په درسي نصاب کښې شامل شول - او نتیجه ئې دا شوه چه د فارسۍ د شاعرانو په کلام کښې تصوّف، فلسفه او اخلاق درے واړه رائج شول چونکه د تصوّف او د اخلاقو ډیرے مسئلے، د فلسفیانه افکارو سره خلط ملط شي - لکه وجودِ باری، وحدتِ وجود، جبر و اختیار، حقیقتِ روح وغیره - له دے کبله په دے مسئلو کښې د فلسفې نه کار اخستل ضروري شول - نتیجه ئې دا شوه چه

دَ اخلاقو او فلسفې په زور، دَ تصوّف لمنه نوره هم وسیع، دقیقه او عمیقه شوه۔
خوشحال خان خټک چونکه تصوّف په خپلې شاعرۍ کښې، دَ فارسۍ دَ شاعرۍ دَ اثر لاندې قبول کړے ؤو۔ په دے وجه په فارسي شاعرۍ کښې چه دَ تصوف کوم شکل ؤو، هغه دَ خوشحال خان خټک پښتو شاعرۍ کښې هم شامل شو۔ یعنی دَ تصوف سره اخلاق او فلسفه هم راغلل او عدل دَ تدبیر او رموزِ مملکت هم دَ هغهٔ دَ شاعرۍ جزو اوګرځیدل۔ اګرچه عدل وتدبیر په حقیقت کښې دَ سیاست جزو دے۔ خو چونکه دَ سیاست دَ اخلاقو سره هم قوی رشته ده نو خوشحال خان رموزِ مملکت هم په خپلې اخلاقي شاعرۍ کښې شامل کړل۔ او دغه شان دَ هغهٔ شاعرۍ کښې دَ جامعیت او همه ګیرۍ صفت نور هم زیات شو۔ خو دا خبره موږ ته هیرول نهٔ دی پکار چه دَ خوشحال خان په شاعرۍ کښې دَ فارسۍ دَ شاعرۍ مذکوره اجزاء په اصلي شکل کښې پاتے نهٔ شول۔ هغهٔ دا ټول علمونه دَ خپل پښتون طبیعت په زور دَ پښتو په رنګ کښې رنګ کړل او پښتانهٔ ئے کړل او دَ پښتنو دَ طبیعت او مزاج مطابق او موافق ئے اوګرځول۔ او دغه شان دَ هغهٔ اخلاقي او فلسفیانه شاعري دَ پښتون دَ تکمیلِ اخلاق دپاره ډیره مفید ه شوه ځکه چه دا دَ پښتون دَ استعدادي تربیت او طبیعت او مزاج موافقه ده۔ او دَ عجمي تصوف په نسبت اسلامي تصوف ته نږدے ده۔
مړانه، پت، ننګ، همّت، جدوجهد، سخت کوشي، اُمید، عملِ پیهم، مسلسل کوشش او دَ باز شهباز او دَ شاهین عادات او خوئ بوئ، دَ هغهٔ دَ اخلاقي او فلسفیانه شاعرۍ اجزاء دی۔ دَ دے نه علاوه عدل، حکمت، احسان، اخلاص، عشق، قناعت، تواضع، سخاوت، میلمستیا، شکر، توبه، مناجات، حمد و ثناء، همدردي، قول او عهد، حسنِ سلوک، عفوه، خود اعتمادي، توکّل، حق ګوئي او بیباکي، عزم، صبر او شکر، محنت او رښتیا وغیره، دَ هغهٔ دَ اخلاقي شاعرۍ سرمایه ده۔ چه دا ټول اسلامي صفات او اسلامي اخلاق دی۔
خوشحال خان خټک دا مضامین، په ساده خوږ شاعرانه طرز کښې نړلي دی۔ کهٔ له دے قسمه اخلاقي مضامین په ادبي او شاعرانه طرز کښے ادا نهٔ شي نو محض خشکه فلسفه یا دَ واعظ خُطبه پاتے شي۔ خوشحال خان خټک لکه څنګه چه دَ یو

لوئے عظیم شاعر نه اُمید کیدے شی، داخشک مضامین په دلچسپه ادبی اوشاعرانه طرز کښے اوتړل، چه په لوستونکی دَ آورید لو سره اثر کوی۔ دلته دَ خوشحال خان خټک دَ اخلاقی شاعرئ دَ نمونے ورکولو ضرورت نهٔ گنړم۔ ځکه چه دَ مضمون په دوران کښے ځائے په ځائے دَ هغهٔ دَ اخلاقی شاعرئ ډیرے نمونے راغلی دی۔

## خوشحال خان دَ فطرت شاعر

خوشحال خان خټک په فطرت نگارئ کښے هم یو اُوچت مقام لری۔ خوشحال خان دَحسن بنده وُو۔ په حُسن مئین وُو۔ کهٔ داحُسن دَ بنیادم په مخ کښے وُو، یا دَ فطرت په مخکښے، دَ خوشحال خان دَحسن بین نظر نه بچ نهٔ شو تلے۔ هغهٔ دَ خپلے حسن پرستئ ترجمانی په یو شعر کښے داسے کوی ؎

دَ ښکلیو دَجمال په ننداره کښے م خدائے بیاموند
لږ نهٔ دی له مجازه ، حقیقت ته رسیدلی

خوشحال خان خټک هغه سرسبزه شاداب ، گلگون او حسین دماغ او حسن بینے سترگے لرلے، چه صرف یو اوچت شاعر ته پیدائشی بخشش او عطیه ورکیدے شی۔

حسن دَ کائنات په رگ او ریشه کښے چارچاپیره منتشر پروت دے۔ دَ خوشحال خان خټک په شان دَ اُوچت شاعر حسن بینے سترگے لکه دَ مقناطیس، دَ منتشر حسن ذرّات راټولوی۔ جمع کوی ئے۔ او دَ نظم په شکل کښے یو حسین ترتیب ورکوی۔ زمونږ چارچاپیره یو ښکلے کائنات پروت دے، غرونه، ځنگلونه، سیندونه، شین آسمان او په شین آسمان کښے نمر سپوږمئ، او دَ ستورو محفلونه ټول ښائسته دی۔ شنهٔ چمنونه، روان رودونه، گلزارونه، مرغزارونه خومره دلکش ښائست لری۔ رنگ رنگ مارغان او دَ مارغانو ښکلے نغمے او آوازونه، په قسم قسم اوبے پرسل قسمه رنگین گلونه واړه حسین دی۔ دَ موسمونو تبدیلئ او دَ هر موسم ځان ځان له خوئ او ښائست، په آسمان کښے مستے وریځے او دَرے دریځو نه دَ خوندبارانونه، په غرونو سپینے پیغلے واورے، په چمنونو او گلزارونو کښے خرامان ، خرامان نسیم ، داټولے داسے

زړه راکښونکے ننداره دی چه د شاعر حقیقت بین او حسن بین دماغ ورکښے د ښائست یو جهان وینی۔ شاعر د ماحول د بے زبانه، خاموش خوحسین ننداره، د پوشیده رازونو، د طلسمی ژبے نه واقف وی۔ او هغه د قدرت عجیبه نوشت تکی ولاړ ولے شی۔ شاعر د کائنات د حقیقت غوسنځ مزکه په خپل تیز عقابی نظر شلولے شی۔ او د قدرت د حسین شړ وند ګرمه او ښکلے تماشه بے نقابه او بے حجابه لیدے شی۔

د قدرت د عناصرو رنګین مناظر هر وخت د یوے ګرے سینما په شان په رنګ رنګ او په قِسم قِسم ښکلے ننداره ساړ وی۔ خو هغه بنیادم ئے په خوند پوهیږی چه لکه د شاعر غوندِ حسن بین وی۔ او ژور نظرئے لګی۔

خوشحال خان خټک شاعر ؤو۔ او یولوئے شاعر ؤو۔ او حُسن بین شاعر ؤو۔ د هغهٔ کلّیات کښے د فطرت نګارئ داسے ښکلے نمونے شته دے چه سړے ئے په جرأت سره د انګریزئ ژبے د فطرت نګار شاعر ورډز ورتهٔ د اشعارو په مقابله کښے پیش کولے شی۔

د خوشحال خان خټک د فطرت نګارئ د شاعرئ نمونه په دے لاندینو دوو نظمونو کښے اوګورئ۔ یو نظم په "پسرلی" دے او بل په "منی" یا خزان۔

## پسرلے

| | |
|---|---|
| چه موسم د ګلونو د ګلزار شی! | نرم نرم ترشح په مرغزار شی! |
| د هغهٔ له بخته څوک برابری که | چه په هسے وخت ئے سیر په ګلزار شی |

الخ . . . . . . . . . . . .

## خزان

| | |
|---|---|
| چه تحویل شی د میزان | توغ څرګند کا زمستان |
| توغ ئے څهٔ د سهیل ستورے | چه ښکاره شی په آسمان |
| د غارمهٔ په رنځ رنځور وی | بیا تندرست شی دا جهان |

الخ . . . . . . . . . .

## قندِ فارسی

د خوشحال خان خټک د کلّیات یوه برخه د فارسئ د شاعرئ ده۔ هغه خپله وائی چه په فارسئ کښے خما نه بهترا وغوره شاعران موندے شی۔ خو په پښتو کښے خما سیال

نشته - دَ هغهٔ دَ فارسئ دَ کلام نه معلومیږی چه دَ هغهٔ په زمانه کښے، چه کوم قِسم فارسی دَ مغلو په هندی دربار کښے رائج وه په هغه فارسئ خوشحال خان خټک په ښهٔ شان خاوی وُو. خو دَ هغهٔ دَ فارسئ دَ کلام مقابله کهٔ موږ دَ هغهٔ دَ پښتو کلام سره اوکړو نو موږ ته به دا حقیقت په ښهٔ شان واضح شی چه کوم خلق چه شاعری دَ مورنئ ژبے نه په بله ژبه کښے کوی، هغوئ بیشکه چه غلطی کوی. دَ شاعر شاعری صرف په مورنئ ژبه کښے کمال ته رسیدے شی. ځکه چه شاعرئ کښے لکه دَ خیال په شان ژبے ته هم ډیر وقعت حاصل دے. او شاعر چه پردئ ژبه دَ خپل خیال دَ اظهار دپاره استعمالوی. نو بعینه دَ هغے دا مثال دے، لکه سړے چه خپل خوږ او نیازبین خوئے عمداً میرنے مور ته په دے خیال حواله کړی چه دا به ئے لکه دَ خپلے مور په مینه او محبت ساتی. او دغه شان ځان ته خپله دهوکه ورکړی. نو دَ شاعرانه او ادبی اظهار دپاره، پردئ ژبه هم، شاعر هیڅرے په هغه قادر الکلامئ او شیرینئ سره نهٔ شی استعمالولے لکه چه خپله دَ خپلے ژبے استعمال کولے شی.

ښه ده چه خوشحال خان خټک فارسی صرف دَ ژبے دَ ذائقے بدلولو دپاره استعمال کړے ده او څهٔ لږ غزلونه او نظمونه ئے په فارسئ کښے ویلی دی. او دَ خپلے اصلی او اُوچتے شاعرئ دپاره ئے مورنئ ژبه پښتو استعمال کړے ده. کهٔ خدائے مکړه هغهٔ دَ خپلے شاعرئ دپاره دَ پښتو په ځائے فارسی ژبه کړے وے نو ډیره لویه غلطی به ئے کړے وه. او دَ هغهٔ دَ شاعرئ حیثیت به دَ شهباز په ځائے دَ یو تپس پائے شوے وے. او دا دُر او گوهر به سنگریزے جوړ شوے وے.

موږ دَ هغهٔ دَ فارسئ کلام دَ دے جوګه نهٔ گنړو چه په تفخر سره ئے لوستونکو ته پیش کړو. په خپل ځائے ښهٔ دے، خو دَ فارسئ دَ اُستاذانو شاعرانو په مقابله کښے څهٔ خاص حیثیت نهٔ لری.

## دَ خوشحال خان خټک دَ شاعرئ فکر و فن

دَ خوشحال خان خټک دَ شاعرئ په فکر و فن موږ په دے طویل مضمون کښے ځے په ځائے بحث کړے دے. دلته صرف په اختصار سره په دے موضوع څهٔ لیکل به مناسب

وی۔ دَ تفصیل ضرورت نشته۔

دَ خوشحال خان خټک دَ فکر سنګِ بنیاد دَ ننګ او ننګیال فلسفه ده۔ دَ ننګ او ننګیال وضاحت موږ په تفصیل سره کړے دے۔ ننګ دَ نمونه یا مثالی پښتون دَ اخلاقی او غیرتی څروند رده ده۔ او ننګیال هغه نمونه یا مثالی پښتون ته وائی چه دَ هغهٔ په اُوچت اخلاقی ژوند دَ ننګ جذبه حاوی وی۔ یا ننګ دَ هغهٔ دَ اخلاقی ژوند محور او مرکز وی۔ دَ ننګیال په خودئ کښے دَ پښتون دَ پښتو، سفلی خودی یا دَ جهل او ناجائز ضد نه وتی عادتونه او خویونه، نهٔ دی شامل۔ دَ هغهٔ خودی، صرف دَ پښتون دَ ارفع خودئ، یا اوچت اسلامی اخلاقی ژوند مظهر دے۔ یعنی ننګیال یو نمونه یا مثالی شریف پښتون مُسلمان ته وائی۔ او دَ اخلاقی اقدارو یو داسے مثالی انسان دے چه په حیثیتِ مجموعی په مقابله دَ نورو اخلاقی صفتونو دَ هغهٔ په شخصیت، ننګ، مړانه، همت او شجاعت ضریات حاوی وی۔

خوشحال خان خټک په خپلو اشعارو کښے دَ یو داسے مثالی پښتون بیا بیا ذکر کوی او دَ هغهٔ صفتونه او ننګ په رنګ رنګ ستائی۔ یو داسے انسان دَ هغهٔ دَ وطنی، اخلاقی او فلسفیانه شاعرئ ماحصل دے او هغه په خپل ځان کښے او په خپل شخصیت کښے دَ پښتون دَ ننګیال دَ تصوّر یو خړشان تصویر وینی۔ په دے وجه هغه خپل ځان دَ خپلے زمانے دَ نورو پښتنونه غوره او زیات قابلِ عزت ګنړی۔ له دے قسمه تعالی او تفخّر دَ هغهٔ دَ شاعرئ یوه امتیازی نخښه ده۔

اوس به دَ خوشحال خان خټک دَ شاعرئ په فن یو لنډ شان بحث اوکړو۔ دَ هغهٔ دَ کلّیات نه ظاهره ده چه هغهٔ دَ پښتو دَ عوامی شاعرئ مقبول او رائج فن ته هیڅ وقعت نهٔ دے ورکړے۔ یعنی هغهٔ ټپے، لوبے، ټکتئ، نیمکئ، چاربیتے او بدلے وغیره نهٔ دی وئیلی۔ دَ هغهٔ دَ شاعرئ دَ فن تنسته بُوده دَ فارسئ دَ شاعرئ ده۔ شاید دَ دے وجه دا وی چه دَ هغهٔ په زمانه کښے دَ فارسئ شاعری نمونه شاعری وه۔ او دَ فارسئ په طرز کښے شاعری کول دَ عزت خیز ؤ۔ او لویو او شریفو خلقو دَ خپلے شاعرئ دپاره دَ فارسئ دَ شاعرئ طرز او طور طریقے خوښے کړے وے۔ او دَ هغے په مقابله کښے دَ پښتو دَ عوامی شاعرئ فن او طرز سپک ؤ۔ دا صرف دَ عامیانه او ناخواندهٔ کلی والو شاعرانو دپاره مخصوص ؤ۔ چه پښتانهٔ ورته اخونان وائی۔ او په سپک نظر ورته کوری۔

خوشحال خان خټک دَ خپلے شاعرئ دَ فن متعلق په یوه لویه قصیده کښے په تفصیل سره بحث کړے دے۔ هغه وائی چه ځما نه وړاندِ دَ پښتو شاعری بے خوندهٔ وه۔ نهٔ پکښے وزن ؤ، نهٔ بحر

ؤو. او دعوی لري چه په پښتو شاعرئ کښې صرف هغهٔ دَ ژړهٔ په زوراو په ډیر تلاش او محنت یو څو بحرونه راپیدا کړل او پښتو شاعرۍ ئې په اوزانو برابره کړه. دَ متقد مینو متعلق وائي چه دَ هغوئ په شاعرئ کښې هم میزان نهٔ ؤو او بې وزنه وه. خوشحال خان خټک وائي چه دا خوزهٔ یم چه په پښتو کښې بې مثاله قصیدې لیکم. دَ دلبرو دَ زلف وخال، سترګو او ورو څو په تعریفونو کښې غزلونه وایم. او څما رباعیات، قطعات او مثنویانې همه دُر او ګوهر دي. او بیا وائي چه په پښتو کښې ما دَ شاعرئ اهتمام اوکړو ګني دَ پښتو شاعري څما نه وړاندې جامده وه. او دَ شیپا سیاله نهٔ وه. دَ وزن، تقطیع، او عروض نه بې خبره وه. په غزل کښې ئې نهٔ مقطع، نهٔ مطلع، نهٔ صنعت. نهٔ تشبیه، نهٔ مثال، نهٔ استعاره خوچه الله پاک ته دَ پښتو دَ شاعرئ دَ ترقئ او آبیارئ خیال راغلو نو زهٔ ئې شاعر کړم. او س څما نه روستو چه په پښتو کښې څوک شاعري کوي. نو هغه به څما نه په شعر وشاعرئ کښې بنهٔ وي.

خوشحال خان خټک شاعري دَ مدحو وئیلو ذریعه نهٔ ګڼړي. هغه په هغو شاعرانو ډیر بد وائي چه دَ انعام او اکرام په لالچ دَ بادشاهانو او امیرانو په دربار کښې حاضریږي. او دَ هغوئ مدحیه قصیدې وائي.

خوشحال خان خټک ور پسې زیاته کړې ده چه شاعري دَ هر فاسق او فاجر کار نهٔ دې. او نهٔ دا دَ هر او ر سترګی کنګال او قلاش دَ وس خبره ده. شعر ګوئي خو یا دَ سالک کار دې، یا دَ مالک او یا دَ یو دردمند عاشق کار دې. او یا دَ ابدال. هغه وائي چه دَ هغه شاعر به ژبه پولئ اوخیژه چه دَ شاعرئ دُر او ګوهر دَ دُنیا دَ مال او زر په خاطر پیري او پلوري. او بیا وائي چه شاعري خو یا دَ بادشاهانو کار دې، یا دَ هزل ګویانو. دَ شاعرئ عیبونه خو زیات دي. خو فنِ شاعري اقبال منده ده. دَ شعر په ذریعه دَ حسن، بادشاه او دَ کمال، یاد پاتې کیدې شي. دَ شاعرئ په ذریعه په دانایئ، علم او حکمت کښې اضافه کیږي خو په شرط دَ دې چه دَ شعر استعمال په ځائې وي. چه دَ شعر تنسته بودهٔ صحیح وي. نو بیا دَ شعر نه کله اطلس جوړ شي کله شال. او بیا وائي چه شاعر دَ نورو خلقو نه مختلف قلبي کیفیت لري. هغه هر وخت دَ افکارو په تخلیق کښې مشغول وي.

دَ شعر وشاعرئ متعلق، دَ خوشحال خان خټک پورتني افکار، په هغه قصیدې کښې دي چه سرئې دا دې:-

زۀ دَ شعر په کال هیڅ نۀ یم خوشحال
ولې خدائے م کړۀ په غاړه دا مقال

په قصیده کښې هغه خپله اقرار کوی چه دَ هغۀ دَ شاعرئ تیکنیک او فن دَ فارسئ نقل دے او دَ شعر و شاعرئ دپاره ئے حدونه هم مقرر کړی دی یعنی دا چه دَ شعر استعمال څنګه کول پکار دی؟ په کومو مضامینو قلم استعمالول بنۀ دی او په کومو بد؟

حقیقت دا دے چه خوشحال خان ختک دَ فارسئ دَ شاعرئ تیکنیک اخستے دے. خو دا تیکنیک ئے خپل کړے دے۔ او دَ پښتو ژبے مزاج او استعداد ته ئے برابر کړے دے. خو نقل کښې ئے داسے ساه او داسے ژوند پیدا کړے دے چه دَ اصل نه سړی ته زیات مرغوب او ښکلے ښکاری ؎

داځۀ شعر نۀ دے چه خوشحال ختک بیان کړو
وا ړه لعل و دُر دی، دَ بیان په تار پیېلی

میاں سید رسول رسا

نمبر ۲۰ - ریس کورس گارډنز
پشاور کینټ

**نوټ:-** دَ دے مقالے په لیکلو کښې علاوه دَ نورو ډیرو کتابونو، چه په خوشحال خان او دَ هغۀ په شاعرئ لیکلے شوی دی، ما دَ دے لاندِ کتابونو نه ډیر امداد اخستے دے:-

۱- پښتانۀ ("دی پټهانز") - مصنف: سر اولف کیرو
۲- دَ خوشحال خان نظمونه - مصنفین: هاول او کیرو
۳- تاریخ مرصّع مصنف: افضل خان ختک
۴- دَ پښتو ګرائمر مصنف: راورټی
۵- دَ خوشحال خان دَ نظمونو ترجمه. مصنف: بیډلف
۶- دَ افغانانو دَ نولسمے صدئ شاعری - مصنف: راورټی
۷- خوشحال او اقبال مصنف: میر عبدالصمد خان
۸- خوشحال خان ختک مصنف: دوست محمد خان کامل

# دَ عنوانا تو فهرست

## اول توک

### قصیدے

## دويم توک



## دريم توک

# څلورم ټوک



# پنځم ټوک



# شپږم ټوک

# اُوم توک

## بازنامه

# اتم ټوک





کتابت: غلام لطیف "چپرړے" ۱۹۹۸ء ستمبر

# پاک الله ته

زۀ مدد غواړم له تا نه اے يوه خدايه احده
کۀ مدد دِ راسره وی چاربه نۀ شی څما بده

زۀ عاجز مرئيے د ستا يم تا به ستايم ستا په فضل
ستا ثنا صفت به وايم څو نۀ توان لرم بے حده

ستا ثنا دہ تر حد تيره دَ بيابان تر شګو ډيره
هسے څوک دے چه خبر ش دَ ديو شګو له عدده

نۀ ته زوړے نۀ ته ځوان ئے لکه وے هسے يکسان ئے
لکه وے هسے به وينه له ازله تر ابده

مز که سبع سموات ته دواړه کونه کائنات ته
واړه تا کوبنی پيدا کړل بے دَ نورو له مدده

دا همه واړه ملکونه تا زوول له کاف و نونه
هم والد ئے دَ ملکونو هم منکر ئے له ولده

کۀ سپيد دے کۀ سياه دے په وحدت د ستا ګواه دے
ته محيط له هره څيزه له سفيدو له اسوده

د ستا کار واړه خوبئ دے په خوبئ او په نيکئ دے
دا د مومن وته رسيږی کله نيکه کله بده

دا شامت څمونږه خپل دے چه مو کار هسے مشکل دے
ګنړه ته څۀ هسے نۀ ئے چه خپل ور تړے له رده

هرچه نۀ دِ ډو په نغوته تا لبيک ووے هغو ته
چه په يا صنم ويل کښے دا غلط دی يا صمده

تۀ پوښتنه کړې له حاله چه ئې حال ښۀ وو ترقاله
دَ بلالؓ اشهد قبول شۀ دَ دیو نورو له اشهده

دَ خوشحال ویل اومۀ دی لائق ستا دَ صفت نۀ دی
ستا په فضل به پخیږی دا اومۀ ویل احده

# دَ رسول پاکؐ په صفت کښې

دَ خدائے عرفان م وشو په عرفان دَ محمدؐ
پاک دے محمد پاک دے سبحان دَ محمدؐ

راشه نظر وکړه په طٰهٰ په یٰسین بانډ
خدائے دے صفت کړے په قرآن دَ محمدؐ

ډیر خلق پیدا دی انبیاءؑ کۀ اولیاءؒ دی
نشته په خلقت کښې بل په شان دَ محمدؐ

ډیر خلق کۀ یو کړے اِنس وجنس دواړه جهانه
لا تر واړو بۀ دے کوښے ځان دَ محمدؐ

شط دَ رودِ نیل کۀ دَ موسیٰ په حکم وشو
شق دَ قمر وشو په فرمان دَ محمدؐ

خوان خوړ دَ موسیٰؑ مَن وسلوٰی یو لک وکړی
اِنس وجن مړیږی تل په خوان دَ محمدؐ

دور دَ ناقوس کۀ یو څو وخته وو فانی شو
تل به تر قیامته وی آذان دَ محمدؐ

نۀ دی قسیس رهبان قائم په خپل دین مذهب کښې
نۀ زر قسیس رهبان نه یو سلمانؓ دَ محمدؐ

یو لک خلیر یشت زره زیات وکم پیغمبران دی
کل واړه مدام دی ثنا خوان دَ محمدؐ

پیک ئے جبرئیل دَ رفرف جلب نیولے
پاس ئے چه معراج ؤو په آسمان دَ محمدؐ

څۀ دے دا آسمان ولاړ بے ستنے بے شهتیره
دے یو مختصر هلک ایوان دَ محمدؐ

دا جهان هغه جهان کۀ دواړه سره یو کړے
لا تر دا نه لوئے دے بل جهان دَ محمدؐ

واړه جنتونه پکښے خوږ نګ نعمتونه
څۀ دے درته وایم یو بوستان دَ محمدؐ

څۀ دی دوزخونه پکښے هومره عذابونه
جوړ دے و دښنو ته یو زندان دَ محمدؐ

ورځ چه دَ قیامت وی مرسلان به په هیبت وی
هورته به جولان وی په میدان دَ محمدؐ

خواست به نور څوک نۀ کا دَ خسته ؤ عاصیانو
خواست به محمدؐ کا خاندان دَ محمدؐ

سل صلوٰۃ تل له ما په آل تقی نقی شه
سل درود ه تل په چار یاران دَ محمدؐ

لاس دی لګولی ما خوشحال په دواړه کونه
غم اندوه م نشته په دامان دَ محمدؐ

## دَ رسولِ پاکؐ په صِفت کښے

انبیاءؑ تر محمدؐ پورے معلوم دی
لکه ستوری تر آفتاب پورے معدوم دی

مرتبه ئے تر آسمانه ده بلنده
دَ براق ئے دَ آسمان دپاسه سلوم دی

کۀ توریت دے کۀ انجیل دے کۀ زبور دے
دا همه دَ دۀ په نام سره مرقوم دی

محمدؐ ئے دَ غبرا خلقه بولی
کروبی ئے ذاکران دَ احمد نوم دی

په طفیل ئے پیدا شوی دوه جهانه  په ما زاغ ئے وَ نظروَته مذموم دی
په معجزئے دَ قمرکمر دوه نیم کړ  په اعجاز کښے کۀ پولاد وچا ته موم دی
چه دَ عرش ئے په نعلینو بڼائی شوه  چه دَ پښوئے خاورے نۀ شول هغه شوم دی
یکتنهائے دَ جهان مهم آغاز کړ  دَ دښنو فکرئے نۀ ؤو چه هجوم دی
بادشاهان ئے واړه ځان کنړی مریونه  کۀ دَ چین دی کۀ دَ هند دی کۀ دَ روم دی
په افلاس کښے به دَ جهل خوار وزار شی  چه دَ شرع له دولته ئے محروم دی
سرگشته دَ ضلالت په تِه کښے گرځی  چه دښنهٔ ئے دَ خسرانو یا دَ شوم دی
هر اصحابؓ ئے لکه ستورے دَ هُدیٰ دے  دَ هُدیٰ دَ لارښیون کاندِ نجوم دی
کۀ خلاف ئے دَ اصحاب په مینځ کښے وشی  دَ مفهومو کار هغو زده چه مفهوم دی
چه په جنگ کښے دَ علیؓ له لوریه ومړل  په هغو باندِ گواهی له چه مرحوم دی
په یزید باندِ لعنت شه په اعوان ئے  چه په تیغ ئے دَ نبیؐ نمسی مظلوم دی
دَ امت ئے برگزین دی اثنا عشر  په بزرگی کښے دَ همه جهان مخدوم دی
دَ خوشحال ختک دِ حشر له هغو شی
چه دوستدار دَ پنجتن پاک چارده معصوم دی

# په تعریف کښے دَ خپل شعر

په پښتو شعر چه ما علم بلند کړ  دَ خبرو ملک مې فتح په سمند کړ
مدعی دَ تورے شپے اورا ورَکے ؤو  دَ سهیل غوندِ مې ځان باندِ څرگند کړ
راز دَ زړهٔ ننه ساتهٔ نۀ شی په زړهٔ کښے  په ساتهٔ کښے ئے اُستاذ وما ته پند کړ
یو په حال او په ماضی کښے هسے نۀ وه  چه ښکاره ئے دَ خبرو را ته خوند کړ
دَ میرزا دیوان مې وماندۀ په گوډی  مسخرهٔ مې ارزانی خویشکے رمند کړ
کۀ دولت ؤو کۀ واصل ؤو کۀ دانور ؤو  په خبرو مې دَ هر یوهٔ ریشخند کړ
قتلے مې ورته سازے کړے دَ قندو  دَ اور ښشو په پړدو یو چه بیا شخوند کړ

لعل و دُر م ورته و پیبیل دَ نظم
دَ مشکنړو بنجاره م مستمند کړ

هر کلام م واړه دات دی یا الهام دے
چه موزونې م په تقطیع دَ بحر بند کړ

په تشبیه او په تمثیل په نزاکت کښې
عذوبت م دَ خبرے چند در چند کړ

په تازه تازه مضمون دَ پښتو شعر
په معنیٰ م دَ شیراز او دَ خجند کړ

دَ بوستان ونے م واړه پیوندی دی
حقیقت م دَ مجاز سره پیوند کړ

نهٔ اندوه دَ مدح و ذم نهٔ هغه کس یم
چه دَ زړهٔ په زور م شعر چا پسند کړ

په پارسیٔ ژبه م هم ژبه گویا ده
په پښتو ژبه م خلق بهره مند کړ

دَ جاهل په بخره تش سر شوړول وی
آفرین م په خبرو دانشمند کړ

یا به درست په حسد ډک یا به جاهل وی
چا چه زړهٔ په دا خبرو ناخورسند کړ

جاهلان لکه قارغهٔ گندگی خوارهٔ دی
شنو طوطیانو به دَ زړهٔ مهر په قند کړ

نهٔ م سود نهٔ م مقصود شته په دا کار کښې
محبت هما په غاړه دا کمند کړ

کهٔ نور سود له شعره نهٔ لرم دا بس دے
چه حاسد م دَ حسد په اور سپند کړ

چا هما مړوند تینګ نهٔ کړ په دا کار کښې
ما دَ هر سړی نه خلاص په زور مړوند کړ

هم دِ ناردے هم دِ سخ کهٔ فهم وکړے
زړهٔ چه تا دَ شاعریٔ کار پسند کړ

سخ دِ دا چه سخندان دَ زمانے شوے
زار دِ دا چه دِ په فکر زړهٔ نژند کړ

تر قیامته به یادیږی په جهان کښې
هر سړے چه خدائے په فضل ارجمند کړ

عشقه تهٔ ترا ورنګ زیب بادشاه بهتر ئے
چه خوشحال دِ په عالم کښې سربلند کړ

## شعر حیض الرّجال دے

زړهٔ دَ شعر په کار هیڅ نهٔ یم خوشحال
ولے خدائے م کړهٔ په غاړه دا مقال

نهٔ په فکر نهٔ په ذکر سره برسیر شی
ناګهانه لکه ووړے دَ پشکال

رنګ هما دَ شعر هیڅ سره ساز نهٔ دے
لکه سپے را پسے ګرځی په دنبال

ښکاري سپے چه دَ نخچیر په ښکار کښې بنهٔ شی
له خوښئ نے په مخ مړی زوڼال

کۀ دَ شعر وئیل هرڅو دَ صفت وی
بیا په شعر کښے پیدا شی انفعال

داخبره بده نۀ ده چا و ئیلے
په تحقیق چه شعر حیض دے دَ رجال

په جهان ترشاعرئ بد څۀ نشته
خدائے اخته مکړه سړے په دا جنجال

تفکر دَ شاعرئ لړمون شین کا
دَ غلیم دِ په نصیب شی دا اشغال

یوځے زړۀ له واړه خلقو نه جدا شی
بل اخته وی دَ خپل فکر په نکال

بل دَ هیڅ ناخونده پۀ جهان نۀ وړی
بل دَ هرسړی دَ خوئ وی بدسگال

بل کۀ هرڅو دُرگوهر پیئ په شعر
عیب جوئے ئے جاسوسی کا دَ افعال

هرشاعرئے په وئیلو کټ منړی کا
کۀ په شعر کښے تۀ من ئے دے مثقال

بل په هسےشان دروغ پکښے وئیل شی
چه پخپله دروغژن شی دم در حال

دَ یار مخ دَ لاله گل سره نسبت کا
دَ لاله دَ یار له مخه څۀ مثال

دَ هوسئ دَ نافے وینے نابودے
برابری کا دَ یار له خط و خال

دَ یار قد له سرو ونے سره سم کا
سرو ونه ده په باغ کښے نونهال

دَ معشوقے تورے سترگے غمزه کړے
په غزل کا لکه سترگے دَ غزال

سرهوا لکه تبژن هسے وټیری
دَ خپل ځان سره خولۀ یئه خواب سوال

خلق خوښ په خوب اوده وی دے بے خوبه
دَ پالنگ دپاسه خوب وی پرے محال

پټ په پټ وبله اوری ترصباحه
دَ بنۀ لفظ دَ بنۀ مضمون په اتصال

چه دَ شعر فکر ورشی په مجلس کښے
نورعالم خندا هوس کا دے ملال

چه دَ شعر فکر ورشی په نمانځۀ کښے
دَ اَعُوذُ ذال بدل کاندی په دال

چه دَ شعر فکر ورشی په خواړۀ کښے
سپینے دریژے په مزه شی ورته گال

کله کله ئے مخ پټ شی په ډیر فکر
چه په دۀ دَ لیونتوب شی احتمال

داهمه دَ خپلے بوهے نتیجه ده
چه شاعرله فکره نۀ وی فارغبال

فلاکت دَ شاعرئ سره مل دے
کۀ شاعرسړے لری جاه وجلال

دَ دُنیا په مال ئے هیڅ نۀ وی وتنه
راشه وگوره دا مال او دا منال

سمرقند او بخارا څۀ هغه زۀ یم
چه جهان بخښم دَ کبنلی مخ په خال

مادا څوتو کہ چه ولیدل دَ شعر
هئے توبه! دَ شاعرئ له افعال

کشکه زهٔ بې ژبه ګونګ وے شاعر نهٔ وے — تر دا هسے ګويا يئ ښهٔ ؤم لال

کهٔ رښتيا وايم چه غور م پرے وکړه — شعر کار دے د ملوک يا د هزال

کهٔ د شعر مذمت عيبونه ډير دی — دا هُنر د شعر ښهٔ لري اقبال

دُر ګوهر يا د لولئ يا د بی بی دی — ښهٔ قماش يا د بادشاه يا د رذال

چه د شعر په سبب سره ياديږی — کهٔ حَسن دے کهٔ خسرو دے کهٔ کمال

د دوزخ لمبے به کار په عاشق نهٔ کا — چه ئے تاؤ د دروغے دے په دا دال

دانائ علم وحکمت پکښے زيا تيږی — خوک چه ښهٔ وکا د شعر استعمال

د خبرو تنسته چه واو دے شی — خوک اطلس وودی په شعر ځنے شال

د هر بحرے په شمار واړهٔ حرفونه — په تقطيع سره ئے جمع انفصال

د صفت کښلے تکټئ پکښے سرغے — د تجنيس او د ترجيع او د اشکال

په عروض کښے کارستان وکا حيران شے — د خبرو ناوی کښينوی تمثال

کرامت دے يا اعجاز دے يا جادو دے — چه په شعر را پيدا شی له قوال

په هر بيت ئے هسے رنګ شولے ورپاخی — لکه زيږی په ډير درد سره اطفال

د شاعر وئيل اوبو سره نسبت کا — ښورے تلخے اوبهٔ يا خوږے زلال

شعر کار د هر فاسق د فاجر نهٔ دے — نهٔ د هر يوهٔ وږ سترګی د ګنګال

شعر کار يا د سالک يا د مالک دے — د عاشق دے د دردمن دے د ابدال

د هغهٔ شاعردانے وشه په ژبه — چه د شعر دُر دانے پلوری په مال

چه د شعرو شاعرئ مذکور وشو — څهٔ خو غوږ باسه خما په حسبِ حال

قصيدے لرم غرا له هره بابه — په حکمت په نصيحت کښے مالا مال

په تعريف د دلبرانو غزلونه — په صفت د سترګو د روخو زلفو خال

رباعی ده کهٔ قطعه کهٔ مثنوی ده — همګی واړهٔ ګوهر دی در و لال

په فارسئ ژبه کهٔ نور ترما بهتر دی — په پښتو ژبه م مهٔ غواړه مثال

طبيعت م عطائ نهٔ د تحصيل دے — کهٔ خبر يم د املا په استعمال

يو ساعت به م په درس شل م په ښکار ؤو — کله ښکار پريښوم د کسب د کمال

د جهان تحصيل به کل واړه خما ؤو — کهٔ اخته نهٔ وے د ښکار په اشتغال

غابش وتلي بزيره سپينه لا تراوسه | بازيه لاس کړ خم په غرونو په جبال
بند وبست د پښتو شعر ما پيدا کړه | ګنړه شعر د پښتو وُو غير سال
نه ئې وزن نه تقطيع نه ئې عروض وُو | دوه مصراع ئې د خفيف بحر دوه طال
د غزل نه ئې مطلع نه ئې مقطع وه | نه ئې صفت نه ئې تشبيه نه ئې مثال
مګر زه ئې چه ګويا په شاعرئ کړم | پښتانه ئې پوهول ايزد تعال
په دا بند وبست به نور ترما بهتر شي | پس له ما چه کا د شعر قيل و قال
نن خما خويه يو خو دي برخوردار شه | چه په دا هُنر کښے نه لري همال
که د شعر وئيل عيب يا هُنر دے | د ښه مخ له محبته ئې دے حال
محبت د هما ئې سيوره ده که څه دے | که کيميا دے زر کوي سنګ وصلصال
د عاشق له زړګه وبهوي وينے | چه جرّاح د معشوقے وهي قيفال
زړه چه خوږ د کښلي مخ د مينے نه وي | پکښے مات شه د تيره توبرى سفال
عاشقان چه په ښه مخ کا هومره مينه | مګر خدائے ويني د کښليو په جمال
ګلستان خما د مينے شګفته شو | پرے وهي شيدا بلبله پرو بال
ګلدستے ئې لوړ په لوړ په ملک خورے شوے | تر کابله تر کشميره تر بنګال
هر مضمون ته چه د زړه توجه وکړم | طبيعت ئې راکوي په استعمال
شبستان م د ابکارو معنو خانے دے | تل ئې نمو بهم په غدو په آصال
د الهام غُند خبروي چه راد ره وي | چه خما په زړه نزول کا لايزال
درست ديوان م لکه باغ د علم ګنج دے | پکښے هر رنګه ګلونه هر نهال
د ديوان م که بيت بيت سره حساب کړے | ترخلويښت زره به تير شي په سر کال
په غزل په رباعي م زړه متين دے | چه مداح يم د دلبرو د جمال
په هجران کښے ئې بلبل غوندِ فرياد کړم | که ئې نه موم ګلونه د وصال
چه به ماليدل په ستر ګو هغه لاړل | مخ ئې زه په تصوّر وينم په خيال
د هغو دلبرو ښے شوے تورے خاورے | چه په ښنوئے ژړنګيدل راته خلخال
د خړيو به ئې بڼ غ لکه رباب وُو | په آواز به ئې دِما وُو وجد و حال
په ديدن به ئې له درده رغيدل وُو | جدائي ئې لکه درد وُو د اسهال

دَ ځوانۍ په وخت بنۀ سره جوړېږی
کۀ یو دم ئے جدائی و بله اوشی
په نوبت نوبت ئې ولیدے دلبرے
اوس دا نوے بناشته کۀ هر څو یار کړم
کۀ بوسه ورځنې غواړم ورنژدے شم
دَ هغۀ یاری په کار نۀ ده دَ کښلیو
چه دَ کار ړوباره دوزی په زوړ والی
زړ کۀ سپینه ږیره تورد په خضاب کا
نۀ دَ سپینې ږیرے عیب په خضاب ځی
دَ سړی دَ عمر کار راته بنکاره شو
په ځوانی کښې هر کار په سړی زیب کا
دَ زاړۀ نه زړۀ دَ ځوانے ښځې خوړین دے
دَ ځوانۍ وخته کۀ بیا را تلے په بیرته
ما وے ګوره لا به کله زړۀ زړیږم
دا هم بنۀ چه ئې پرے سود دَ خاطر کیږی
په بوسه دَ شکرلبو زړونه ځوا نیږی
باز دَ خپله بنکاره نۀ وزی چه زوړ شی
چه دلبرے ظاهر بېنې شوے بدکار دے
عاشقان په سپین دیښتۀ کله زړیږی
دَ ایمان سلامتی دَ هغه کس ده
چه دَ کښلیو دَ جمال برکت ډیر دے
په محشر به مینه دړمه دَ دل سنګو
زۀ مدّاح دَ هیچا نۀ یم بے دَ کښلیو
زۀ څۀ خدائے په کښلی مخ بانډِ مئین دے
نۀ ئې طمع له چا ده چه مدح ګوئے شوے

ډیرے جونه یو ځلے سره همسال
زړۀ ئے بیا دی دَ وصال دته کښال
یا دَ توره و ویښتو عشق ځو یا دَ خال
دَ ځوانانو څۀ پروا په پیر زال
په خندا خندا ئې غوځ کا په نا خوال
چه په مخ باندِ ئے نۀ وینے تور وال
کوم صفت دَ هغه خرۀ کا خر دلال
ځوانے ښځې وته ځان کا ځوان رجال
نۀ دَ تېز عیب پټیږی په سعال
کله بدر کله سلخ کله هلال
په پیری کښې زشتی لری هر خیال
کۀ ساقی ئے په نعمت او په نوال
ما به ځار کړ ترخپل ځان واړه اموال
پیری مخې ته راتله په استقبال
چه تازه دلبره وینم په دا کال
دا خبره تجربه ده دَ خوشحال
تر زاړۀ مزری ځاریږه ځوان شغال
دَ انصاف رانجۀ ئے وشوے په کحال
لا په ګور کښې به ئے هم نۀ شی احوال
چه بنۀ مخ وینی په وخت دَ ارتحال
مخ ئے خکه مبارک نیسی په فال
کۀ په دا درنیږی تله دَ اعمال
دَ نور ځا په صفت نۀ لرم یو قال
ګوره احسن القصص په استدلال
نۀ ئې ځا سره لباس ښته نۀ ټیټال

کۀ له هجوې له غندنې درته وایم
فردوسي لري ښوبیته له محموده
چه د دور شهنشاه د ذم لائق شو
ما هم هیڅ تقصیر په ذم د چا ونۀ کړه
کۀ محمود بنده زاده وو د خپل پلار وو
چه په رنګ په خوئ خصلت د بابا نۀ وی
درست عالم په خوئ خصلت د خپل بادشاه وی
کۀ له خپله حقیقته درته وایم
په آباؤ په اجداد خان و سردار یم
کۀ برې کۀ هزیمت واړه لیدلی
پلار نیکۀ زم شهیدان و ګور ته تللی
کۀ به ډیر په هزیمت راځغه توئ شول
لکه وُم په خپل همت بیا به هغه وُم
کۀ د جنګ د پرهارونو درته وایم
یو پرهار زم به لاروغ په وجود نۀ وو
چه قضا د سړی نۀ وی سړې نۀ مري
قدردان ځما د کار شاهِ جهان وو
چه نیک خواه بد خواه همه ورته یکسان دی
چه د دۀ د بادشاهۍ دور وشو
په دوران ئې درست جهان سرګرو وشو
چه په خپل بابا ئې نۀ ده صرف کړې
چه د ښو سړیو قدر بانده نشته
لکه دې ځما زوال وته ناظر دې
دا همه ځما د توره صدقه ده
نن به درست د هندوستان دولت د دوئ وو

فردوسي زم په دا کار کښې نۀ دے سیال
زۀ لرم د اورنګ زیب د ذم جوال
د غندنې ګنړه هر یواق سقال
د اورنګ بادشاه په غاړه دا وبال
په زړونه کښې خونۀ وو د بل آل
هغه خویه د بل آل لري مآل
لکه دے وی د عالم وی دا خصال
زۀ ځائی یم د مغل نمک حلال
کارنامې لرم د جنګ او د جدال
خوئ خصلت لرم د قتل د قتال
پښتا پښت زم هنر دا دے آل په آل
وړاندې روستو په یمین او په شمال
په بل جنګ کښې و نصرت ته په آمال
چه له درده زم به تن وو لکه نال
بل پرهار زم به په تن شو یا په ډال
کۀ ئې درست صورت په غشیو شي غربال
د اورنګ بادشاه ښکاره دے خود احوال
نۀ تمیز نۀ ئې د عدل اعتدال
په دوران ئې لور په لور دے اختلال
نۀ به واړې زمانه شوه د دجال
د جفائې په دا نور و څۀ اهمال
ځکه زۀ ورځنې ګرځم په جبال
زۀ لا نۀ غواړم د دۀ هسې زوال
پښتانۀ چه پرې کښې خوری سیورغال
پښتانۀ کۀ کم همت نۀ وې جُهال

يګانه ځوانان که ننګ له ما سره وے — نور ځما وو په پنجاب باندې يرغال
کۀ هر څوئے ساړم لا نۀ سازېږي — پښتانۀ دي د تيږيو کاڼيو ديوال
هومره قام هومره عالم سردار ئے هسے — سرګردان ګرځه په تيښته دا منوال
د دانا سردار د تيښتې شرم نشته — چه علاج کا د غليم د استيصال
چه په مرګ د غليم سخ کا هسے مۀ مره — و سردار و ته هم دا دے استقلال
تراويا ؤ کالونو تير شو ځما عمر — ننګ هغه دے تن پيرئ کړ پائمال
لکه ما به له مغل و هلے توره — دريغه دريغه په ځوانئ وے دا حال
نوے مياشت ده محرم غصه ئے کال دے — په غليم م غصه وريژه دا کال

خدايه هومره مهلت ورکړے په دُنيا کښے
چه کا بدۀ کار ونه سم کاندی خوشحال

## شعر حيض الرّجال دے

په ځان او په جهان کښے ما دوه څيزه دي وکښلي
په ځان کښے دواړه سترګے په جهان کښے واړه کښلي

د ننګ لفو په هوائے بيخودي ځما نصيب شوه
له ځانه له جهانه تل بيخود دی مارخوږلی

د کښليو په جمال په ننداره کښے ما خدائے بيامونډ
لږ نۀ دی له مجازه حقيقت ته رسيدلی

بنۀ مخ و ته چه ګورم په دوه سترګو نۀ مړيږم
د تن وينبتۀ م واړه وازے سترګے دی ختلی

سيه دل د محبت له سوزه سازه خبر نۀ شول
په کار د پتنګانو مچان نۀ دی پوهيدلی

د هغۀ خونی له تيغه د خلاصئ فکر ومۀ کړه
چه دے له ناترسئ ننګه وکاږی د وژلی

دَ خدائے ملامتونه گوښې گوښې تهمتونه
په عشق کښې دَ وګړی ماخهٔ لږ نهٔ دی زغملی

ښئهٔ مخ په مثال گل شو زړهٔ خما لکه بلبل شو
شیدا بلبله هرچرته چه گل دے هورے یلی

مدد وکړه دَ وینو دَ ژړا په وخت اے دِ له
نور اوښکے پاتے نهٔ شوے چه ډیرې ډیرم دی ژړلی

دَ شعرخهٔ ثنا کوم چه دے حیض الرّجال دے
بدکړکا چه له دهٔ نه ډیرې یانونه رسیدلی

کهٔ شعرته نظرکړے په خپل اصل کښې بد نهٔ دے
بد دا چه خوک په شعرکښې ویل کا ناپسندلی

چه چا دے شعرکړے بےمیزانه بے عروضه
دا هیڅ شاعری نهٔ ده یوخوسپی دی تمسیدلی

پارسی شعرم هم نږده سلیقه لرم دَ واړو
پښتو شعرِم خوښ شو هرخوک خپل گنړی ښاغلی

په وزن په مضمون په نزاکت هم په تشبیه کښې
پښتو ویل م عین تر پارسۍ دی رسولی

پښتو ژبه مشکله دَ دے بحر موندهٔ نهٔ شی
هم مالره یوخو بحره په ډیر مښود راغلی

له چا نه په پښتو کښې ما میزان لیدلے نهٔ دے
میرزا په دا زبان کهٔ ویل کړی دی تللی

مخزن م دَ اخوند چه تمامی په نظر کښیوت
په دهٔ کښې نهٔ عروض شته نهٔ ئے بحر ماموندلی

دانا به پرے پوهیږی دَ ناپوهو کار یے نشته
دا دُرچه دَ بیان په تار خوشحال خټک پیئلی

کذاب دے کۀ دا شعر لکه دۀ پښتو بیان کړم
کۀ هسے ویل اوس شی یا پخوا دی چا ویلی
دَ شعر په ویلو ډیر خوښ نۀ یم ولے څۀ کړم
چه نۀ پرېږدۀ م بے اختیاره کله کله وړته زغلی

په شل کاله کښے ډیک څما دَ شعر په اور بار شو
په دا دور م پوخ کړ چه شپیتۀ کاله م تللی
حاسد م کۀ په شعر له حسده ګوته کښیږدی
چه دے مومی له شعره وارۀ دۀ وته بخښلی

دَ شعر په ویل کښے کۀ مقصود لری هم دا دے
په دا بهانه م ګوندِ چرے یا دکا نازولی
په تور کِسوۀ کښے پټه رنګینه معنیٰ وګوره
زر شویو م سرۀ زر له تورو شکو دی ایستلی
دوه بحرۀ دوه مطلع لری کۀ دا قصیدۀ ګورے
زر یو اتیا کالونه په صفر کښے ما وئیلی

# دَ ړوندے جنګ

خو وانخلی له غلیمه انتقام
مرد نۀ خوب کا نۀ خوراک کا نۀ آرام
چه دَ ننګ او دَ ناموس اندوۀ نۀ وی
دَ هغۀ سړی به نۀ وی احترام
کۀ همت او حمیّت غیرت پکښے وی
تر ښښتنه به بهتر ګڼړی غلام
په ورو ورو بړے قدم بړدی ور بانږ خیژی
په یوۀ ځله ځوک نۀ خیژی په بام
په طلب کښے کۀ سستی نۀ وی باور کړه
دَ ژوندون اوبۀ به بیاموے په کام
وارۀ ورځے سرۀ نۀ دی برابرے
کله ډیر کله دارو کاندی ایام
دَ مردئ دَ نامردئ ترمینځ میل نۀ دے
تفاوت ئے په ذرۀ دے یا په ګام

چه دَ بل ترلاسه ورغے دَ بل شو
مرد به خپل لری دَ خپل فکر تمام

چه په ذات ئے پلار نیکهٔ تورے وهلے
پرے جوړیږی کار دَ تورے دَ صمصام

دَ گنبت غصه مِ اووته له دِلـه
خدائے چه راکړ په ډوډه دَ فتحے کام

چه په مخ ئے فتح دروئی عابد خان دے
په هرځائے دَ خپل بابا کا تازه نام

خدائے ئے عمرَ دخیل پلار کړه کام اونام هم
په غلیم دِ ئے لاس براوسی مدام

غلیمان دِ ترے حذر خوری که پوهیږی
تیره تیغ ئے اژدها دے خون آشام

چه داهسے تورزن روړئے خدائے پیدا کړ
پرے دِ فخر کا همه ورونړه مُدام

دَ لښکرو کار ځهٔ هسے آسان نهٔ دے
چه پرے هر سړے به موئی انتظام

چه دَ بخت یوځو ویښتهٔ لری په سر کښے
دَ هغهٔ په مخ ظفر دروئی مُدام

چه رښتینے ترسر تیر بخښل خوښ‌ل کا
دَ هغهٔ دَ وړاندِ سر کښیږدی آنام

دَ مزری بخره ورمیږ دَ نیله گاؤ دے
گیدړ ترویږے ئے مړیږی په لحام

دَ میدان هوسۍ یو یو تازی نیسی
ډوډی غب په کلی ډیر کړئ انعام

دَ ډوډه حصارئے درست په وینو سور کړو
په ډوډه باندِ چه وشو قتل عام

دَ ډوډے حصار ځهٔ هسے آسان نهٔ ؤو
چه ئے فتح تیرید له په اوهام

پاس په غرهٔ باندِ محکم ؤو چا وهلے
دَ کوهاټ ترکوټے ئے بنه ؤو استحکام

دَ خاوند په حکم هسے فتح وشوه
چه ئے کار شو په دوه ورځو سرانجام

دَ اوو کوټو نوکار دَ خدائے په حُکم
وار په وار شو په هفته کښے انصرام

له هیبته په آسمان کښے په لرزه شو
چه دَ تور وخرپا واؤریده بهرام

دَ ټوپکو دَ ویشتلو په لوګیو
بل آسمان اتم پیدا شو کبود فام

دَ ختکو نیزے هسے تلے په غره
لکه ستن په خیمه دروئی دَ خیام

دَ ختکو نیزه باز وسورو توئے کړه
دَ بنگښو دَ سورو فوځ تمام

ډیر ځوانان غاړه غړئ شول په داجنګ کښے
که تقصیر نهٔ ؤو دَ تورو دَ سهام

صدرخان لاچیرے جنګ لیدلے نهٔ ؤو
په داجنګ ئے نیزه سره کړه په خصام

دَ شاهین مرغ چه والوزی له ځالے
په کاته کا نور دِ زانړیو ته پیغام

شجاعت دَ هوښیارانو بنائسته وی
بدجلب حبطه ډُمری بد لغام

دَجهان بنادئ وارہ دَ هغو دی — چه په حکم دَ یوهٔ لری قیام
دَ کُنبت ارمان مِ درست له دِله وُوَت — کهٔ شکست وُوکهٔ پرهار وُوکهٔ دُشنام
په بد بوئ دَ کشتګانو مزکه خسا شوه — چه ریزه ریزه شوهٔ په دوړه کښے په حسام
عنایت سردار چه څهٔ ملک مبرے وُو — دَ دوړے په جنګ شول مالګه دَ طعام
دَ بنګښ بخره دَ پالے دَ چُوکے ده — نورِ دِ ننباسی تُوره په نیام
څوک چه خپل کسب پرېږدی بل کسب نیسی — تر هغهٔ نه به بل نهٔ وی عقل خام
کهٔ ګاوز په جنګ باتور دے جنګ ئے هیر دے — چه په سر وخوری څپیړه دَ ضیغام
کهٔ بنګښ څخه څهٔ ننګ وے پرے به نهٔ کړے — ما دَ دهٔ له ډکه باغه یو بادام
چه بے ننګه چارے کا په واړو ورشه — لکه راغے په بنګښو دا هنګام
چه دَ فکر بدرقه ورځنه نهٔ وی — بخته کار به په لاس نهٔ اخلی یو ګام
دَ بنګښو شامت خپل سزائے دا ده — چه په غوښو ئے مړیږی دَ دو دام
هر کهتر چه دَ مهتر سره ستیزه کا — دَ عمل سزا به مومی په انجام
هسے غم الم ماتم ورباندِ راغے — رنړا ورځ شوه دَ کوهاټ په عالَم شام
دَ کوهاټ په عالَم وارهٔ عالم ډک شو — دَ بنګښو کړه لاړه تر بګرام
بد مذهب رافضی ډیر دی په بنګښ کښے — چه خبر نهٔ دی دَ شرع په احکام
نا سنت په مردګانو کښے هم ډیر وُو — په دا جنګ کښے چه عالم شو انعدام
بنګښ کله پښتانهٔ دی ګوره څوک دی — نهٔ ئے ذات نهٔ ئے مذهب نهٔ ئے امام
دَ بنګښ له بده بویه به خلاص نهٔ وی — کهٔ په ملک کښے سړی ووینے تمام
دَ بنګښ په زړهٔ کښے ډیره شیطانی ده — کهٔ په خولهٔ وتاته شیخ شی دَ بسطام
کهٔ مِ پښه په کُنبت وښوئیده څهٔ شو؟ — په همت مِ ثابتی وه دَ اقدام
دَ دوړه په جنګ کښے بیا دَ میو ډک شو — په کُنبت کښے چه خالی ؤو هغه جام
بښهٔ چه مخ دَ هغه سوبے رابسکارهٔ شو — چه لیدله مِ په خوب او په الهام
هغه کار چه ترسرو رسیږی بخت دے — چه په زړهٔ ګرځی په وینه په منام
دَ سړی مراد هاله ورشی په غیرتِ کښے — چه راضی شی ذوالجلال والاکرام
تل تیره توره وهه کهٔ حکم نهٔ وی — یو وینښتهٔ به کنډؤ نهٔ کا دَ اندام

کهٔ تری دی کهٔ بولاق رحمت پرے باندِ
په سیالئ تورے وهلے وارہ قام

چه اول ئے خپل نشان په غونډئ لک کړ
په رحمت د اترو خیلو ؤو ناکام

د تیری د منډ هنړو بنه تنبه وه
په دا کار کښے د یوسف په اهتمام

شاهی بیگ مرزا دارو یو خوسوارهٔ ؤو
نهٔ ؤو نور د خوترے نمک حرام

په دا هسے وخت یو دوه ایسوړی نهٔ ؤو
نهٔ خورم نهٔ درویش خیل ؤو بد فرجام

شابی خیل کهٔ مکوړی ؤو په اولجه شول
د خوږه مو تنبے بنهٔ وکړ خرام

عالم خان صاحب اولاد جمال الدین دے
په ساغری په بنگی خیل کښے د اکرام

شاهی بیگ ساغری په تن ملک میرے دے
ترشیرا اول د دهٔ کړی کار تمام

په دا جنگ کښے اولجے وشولے بے شمار
د بنو جونو د اسونو د انعام

توره زغره کهٔ لیندے وے کهٔ درستے وے
په وسلو سره معمور شو هر کدام

شپږ اوهٔ زره ختک ؤو په دا جنگ کښے
په اولجه سره خوشنود شو هر کدام

د کنبت جنگ هم په ننگ د پښتانهٔ ؤو
بل غرض هم په منځ نهٔ ؤو نهٔ مُرام

یو په لس درباندِ وشوه یو په شل وه
کهٔ لښکر په دوه کړے وے مقام

د دے جنگ نارے به درومی په ملکونو
پرے خوښیږی به همه پښتون په نام

چه د دے سوبے آواز وشی په هند کښے
بیا به ژغ شی د بادشاه په خاص و عام

چه په نام پښتون غوښیږی پرے خوښیږی
اورنگ زیب هسے بادشاه دے د اسلام

د اسد تحویل نهر یونوی رجب ؤو
په دریم د جنگ آغاز شو دا کلام

په کاغذ کښلی خبرے پا تو کیږی
دا بیان په بیاض ځکه شو ارقام

په غلیم باندِ د هسے فتح تل وه
لکه دا فتح چه وشوه والسلام

# د پښتون نهٔ کِله او د مغل سره پټنه

بیاله کومه راپیدا شو دا بهار
چه په هر لوری ئے ملک کړ یو گلزار

ارغوان دی ضمیران سوسن ریحان دی
یاسمن دی نسترن نرگس گلنار

پسرلی ګلونه ډیر په هر هر رنګ شسته
جونه موتي موتي ګل بڼ دی په ګریوان کښې
مغنی په چغانه لیندۍ کښیږ ده
ساقي راشه ډکې پیالې را کړه
پښتنو ځلمیو بیا لا سونه سره کړه
سپینې تورې ئې ګلګونې کړې په وینو
ایمل خان دریاخان دواړه مرګ ئې نه وے
دَ خیبر دره ئې سره کړله په وینو
ترکړ په ترباجوړه سمے غرونه
په هغه لوری چه کیږی ننګ کال دے
چه په دالوری زړه راغلم حبطه شوم
په لښکر لښکرنا رے شوم ورته ستړے
چه احوال دَ یوسفزیو را معلوم شو
دَ ختکو سپي بهتر تر یوسف زیو
درست پښتون تر قندهاره تر اټکه
ګوره څوجنګونه و شو په هر لوری
اول جنګ دَ لوړے شا دَ تهتر و وُو
خو بندے لونړه ئې په بند دَ پښتنو شوے
دویم جنګ میرحسینی په دوابه کښې
بیا له پسه دَ نوښهر دَ کوټ جنګ وُو
بیاله پسه جسونت سنګه شجاعت خانْ وُو
شپږم جنګ مکرم خان شمشیر خانْ دواړه
چه څما په یاد دی لوئے جنګونه دا دی
همیشه فتح و نصرت دے لا تراوسه
اورنګ زیب راته یو کال اوشو چه پروت دے

ولے سره لاله دی لا پکښې او ښار
دَ ځوانانو ګلدستے دی په دستار
په نغمو په پردو وغواړه هر تار
چه دَ میو په مستئ کښې شم سرشار
لکه بازمنګلے سرے کا په خپل ښکار
په اهار کښې شګفته شو لاله زار
هیڅ تقصیر دواړو ونهٔ کړ وار په وار
په کړپه ئې هم روان کړ دند و کار
په لړزه په زلزله شول په بار بار
هره ورځ دَ سپینو تورو خرپهار
زهٔ مردار یم که دا خلق دی مردار
دا کانړهٔ راته نه مهیرک وائی نهٔ خار
لواغر وماته بنهٔ وُو نهٔ د مغار
کهٔ ختک دی هم په خوئ تر سپی بیکار
سره یو دَ ننګ په کار پټ و آشکار
ولے هیڅ دَ یوسفزیو نشته عار
چه څلویښت زره مغل شول تار په تار
آس او ښان هاتیان اولجه قطار قطار
چه ئې وتکیدهٔ سر لکه دَ مار
چه م وکیښ تر مغلو خپل خمار
چه ایمل ئې په ګندهاب ویوست دُمار
چه ایمل کړل په خاپښ کښې تار په تار
دَ هلکو په هر لوری نشته شمار
پس له دا ده بیا تکیه په کرد ګار
په صورت حیران پریشان په زړهٔ افګار

کال په کال اُمرایان دی چه پریوزی — چه طوفان شولے لښکرے کوم ئے شمار
خزانے دَ هندوستان دی راخورے شوے — سرهٔ مُهران دی نتوزی په کُهسار
دا دَ هیچا په اَتلس فکره نهٔ وُو — چه به دا کار ونه شی په دا دیار
دَ بادشاه دَ بد نیتیٔ کمے نشته — په بد نیت ئے آزار واخست دَ خپل پلار
خکه اوس دَچا باور وربانده نشی — هم بدنیت دے هم بد قول هم مکار
بله هیځ لیدله نهٔ شی په دا مینځ کښے — یا مغل دَ مینځه ورک یا پښتون خوار
کهٔ گردش دَ آسمان دارے چه لیدهٔ شی — کهٔ دَ خدائے رضا په دا وی راغے وار
آسمان هرکله پیرے یک رنگے نهٔ کا — گاه په کام دَ گل جار وُوزی گاه په خار
په دا هسے وخت چه وخت دَ نام وننگ دے — دا بے ننګه پښتانهٔ کا ځهٔ رفتار
پښتانهٔ چه نور ځهٔ فکر کا ناپوه دی — بے دَ تورے خلاصے نشته په بل کار
تر مغلو پښتانهٔ په توره ښهٔ دی — کهٔ په پوهه پښتانهٔ وے ځهٔ هوښیار
اولسونه چه سند و بله وکا — بادشاهان ورته سجود کاندی اختیار
کهٔ نفاق کهٔ اتفاق کهٔ جهل پوهه — دَ هرچا دَ خدائے په لاس ده هره چار
افریدی مهمند شنوارے گوره ځهٔ کا — دَ مغلو لښکر پروت په ننګرهار
زهٔ تنها پکښے په غم دَ نام وننګ یم — یوسف زئے فراغت په کښت و کار
اوس چه هسے بے ننګی بے ناموسی کا — عاقبت به ورښکاره شی خپله چار
مرګ ځما په پوهه ښهٔ تر دا ژوندون دے — دَ عزت سره چه نهٔ وی زیست روزګار
همیشه به په جهان کښے ژوندون نهٔ وی — دَ خوشحال خټک به پاتے شی یادګار

دَ درے خور اول کال دَ غفو وُو
۱۰۸۶ھ
ماچه ووے په برمول کښے دا اشعار

# په خیبر کښے دَ مغل شکست

چه دانا ترنادان لا وژنی بتر — مګر نهٔ دے دا ژوندون ځهٔ معتبر
چه رِ فهم فکر وکړهٔ باور وکړه — په دا باغ کښے ګل له خار دے برابر

چه له کوموغرونو راغے چرته دړومی
اباسین لا په دا هیڅ نۀ دے خبر

دَ شلمان غرونه په دا کله خبر دی
په شلمان کښے چه زړګونه شول ډبر

نۀ آسمان ځنے خبر دے نۀ دا مزکه
چه عالم شو په طوفان زیر و زبر

په یوه ړمان کښے خۀ قدرت ښکاره کا
خۀ قادر دے توانا الله اکبر

مکافات دَ کوم ګناه دَ کوم شامت دے
چه ډبر دَ میرجمله شو درست تبر

چه دا هسے ئے پیرے کړلے بنیادے
دَ فلک په سرکښے شته خۀ شوروشر

نۀ په ډیر ده نۀ په لږ ده خدائے په کړه ده
لږ لښکر په ډیر لښکر مومی ظفر

خه شنواری خۀ مهمند خۀ افریدی ؤو
چه ئے مات کړ دَ صوبے واړه لښکر

دا طوفان چه په مغلو باندِ ساز شو
په کشتن په الجو هیڅ مکړه نظر

کۀ آسونه کۀ فیلان کۀ اسبابونه
په انبار انبار سپین زرؤ یا سرۀ زر

هغه ښے پری پیکرے دَ پالکیو
همګی پرے پورے لال و دُر ګوهر

په زړګونو پښتنو کړے ترځان لاندِ
دا به څوک کا دَ مغل له زړۀ بدر

دا کینه به یو په سله تر اوباسی
کۀ ئے لاس شی په جمله پښتا نۀ بر

پښتنو څخه کۀ شته خۀ عقل پوهه
ایل یاغی دِ ځنے کاندی اوس حذر

دامتل دَ زمانے دے خۀ اوس نۀ دے
چه نامرد خر په پالان وهی نۀ خر

مستجاب مهمند کۀ چرګه دَ مغل ده
زۀ خوشحال خټک خو بازیم ځائے مِ غر

# دَ اورنګ زیب نه فریاد

هغه خدائے چه بندی کړے ئے دَ خوشحال
هم هغه به ئے خلاصے کا په هر حال

مۀ منت دَ خویشکی میشکی باندِ بارشه
نۀ منت دَ باقل زئ دَ بقال

نیستی واړه په نصیب دَ بیګ محمد شوه
بے ننګی واړه په بخره دَ جلال

نام و ننګ ناموس کۀ دا دافغانی وی
چه ښکاره ئے شو په دا دور احوال

اول مور دَ درست غوری په خرۀ غوڅ لے
بیا دَ واړو پښتو شی به دنبال

دا ناسازې چې په ما شوې چې په دوی شوې
که د سمې که دَ غره دي يوسف زي

دَخېل ځان صفت به نهٔ کړم چې زهٔ څهٔ يم
ما دَ دوئ سره دَ ننګ پالنه ښه کړه

دَ حريف قدر حريف وته ښکاره دے
قيمتي دَ قيمتي سره جوړيږي

که ځما دَ دوئ سند وبله يو شي
که خوشحال خټک وار بيا موند په جهان کښې

زهٔ له خپله خدايه خوښ له خپله قومه
هغه خوک چې دَ بدئ دَ معرکې دي

که کفران ئې دَ نعمت په جهان کړے
دغه يو خو کالعدم دے په معنیٰ کښې

خجالت لره ئې خر وهي په ګېډه
خر به هيڅکله دَ آس برابر نهٔ شي

مښکيرک خو مښکيرک دے باز به نشي
دَ اوږدو پيشو خو سازه کړي ميږوڅوک کا

خال وخط پرے حبطه ځان دَ خندا کا
عاقبت هغه چيندخ په خوارئ خوار شي

حبشي دِ نوم په ځان دَ هلال کيږدي
په هند وستر کوړانجهٔ زيبائ نهٔ کا

چې لوئ غواړے هنر دَ لوئ ږده کړه
دَ سړي لوئ په رنګ په پساله نهٔ ده

نهٔ دَ خلقو بدنامي نهٔ جام دَ زړو
په داسې رنګه کار به راضي نهٔ شول

که ئې خوبه نمسي ماوے په کور کړي
دروغژن يم که پرے نهٔ شوې سر و مال

همګي مزري دي مهٔ ئې وے زوال
لړ و بر واړه زړه وباړه دي يا شغال

که مو عمر سره تير دے په قتال
ښيښه ګر په ښيښه ګر زده کلال کلال

په يوهٔ مزي بيئيل شي دُر و لال
څوک دَ مور څويه لري دَ مخ مجال

خود به وويني دَ دے چارے مآل
په عزت دِ لري واړه ذو الجلال

خجالت ورلره بس دَ خپل افعال
خود به بيا مومي جزا دَ خپل اعمال

دغه بل دَ دجال خر دے يا دجال
کله سالې چارے کاندي غير سال

که دَ آس غوندِ پيدا کا سُم او بال
که اوږدهٔ لري ترياز و پر و بال

هو ښيار او ته ښکاره دے دا مثال
چې بد رنګه ښځه کښيږدي په مخ خال

چې واته کاله دريابه په جبال
په دانش ناقه به هيڅ نشي هلال

نا قابل دِ هوس نهٔ کا دَ اقبال
بے زيځه دي په محل خاته محال

په همت ده په هنر ده په خصال
نهٔ دَ خلقو نيکنامي په لاس سفال

که ئې فکر انديښنه وے يو مثقال
دَ عزت مِ به لاهم نهٔ دُو کتيال

که یو ځوکا هم ژوندی وُم په دُنیا کښې — خود به یې واوُرم دَ مدود بابا حال

که ځهٔ حق شته دَ نیکئ په جهان کښې — نا سپاس به ګرفتار شي په نکال

زاوُزاد به یې بنخیږي بے کفنه — په جهان کښې به رسوا ګرځي کنګال

وارہ هسې چارے کا چه بکار نهٔ وي — چه یې پاسي زمانه په استیصال

ما پخپله په ځان کړي دي دا چارے — چه مِ وړکړه ونا اهلو دا منال

چه همیش په یوه حال وي هغه خدائے دے — په سر یو باندِ تل نهٔ وي یو حال

که په نحس طالع بند شوم عیب نشته — کله کله تندر هم نیسي هلال

ځلوبښت کاله مِ خوښه کامراني وکړه — ځهٔ شو چرخ که مخالف شو یو نیم کال

نهٔ پرکیږي نهٔ فریاد کا نهٔ چیچل کا — هر هوښیار مرغهٔ چه لاندِ شي تر جال

وتقدیر وته ځان وسپاري یکباره — راضي نهٔ وي په پرخاش او په جنجال

دَخدائے حکم چارے نهٔ دي بے حکمته — هیڅ دَدے خبرے نشته قیل و قال

خپلو رونړو یوسفٔ واچوهٔ کوهي ته — مشرف شوے په جاه او په جلال

وارہ چارے په قسمت په مشیت شي — باد په لاس دَ منجم دے دَ رمال

دَ هغهٔ چه زړهٔ محکم په توکل دے — نهٔ په خوب باندِ نظر کا نهٔ په فال

ځهٔ یوازے په مانهٔ ده که ژوندے وي — اورنګ شاه بادشاه به ډیر کاندِ پائمال

دهٔ په لاس دَ بخت نصر ظلم واخست — زړهٔ دَدهٔ له لاسه بند لکه دانیال

حق ناحق یې چه ځوک راشي په منګل کښې — خوار وي یې غم یې نهٔ وي دَ وبال

چه په پلار باندِ یې نهٔ ده صرفه کړے — په نورچا یې ځهٔ صرفه ځهٔ یې اشکال

که رښتیا وایم دا هسے بادشاه نهٔ وي — وارہ کارے یې دَ رهزن دے دَ داړوال

یو په ظلم یو په مکر نور ځوک نشته — که حجاج وي که یزید وي دَ دهٔ سیال

دَ هغهٔ بادشاه به مونږ دَ غاړے طوق شي — چه دے نهٔ لري دَ عدل اعتدال

نهٔ انصاف شته نهٔ تمیز نهٔ نور دَ عدل — په دربار یې تاریکي ده غول و غال

امرګان یې همګي دَ دهٔ په رنګ دي — هر حیله دَ خپل کردار کا استعمال

چه په اصل په نسب یې نظر وکړے — لړ په دیو کښې اصیل دي ډیر هزال

دَ ګدائے له لاسه هم یوچک را نیسي — که په کور کښې یې مهران دي په جوال

سیّد میرا و میربابا دواړه حاضر دی
د کابل صوبه خرابه هغه سنګ کړه
په دوران د دے بادشاه هوښیار هغه دے
مقرب ئے فدائی عبدالقوی دے
یوسفیه د ګجرات د دهٔ قاضی دے
په دربار کښے ئے عزت د بل چا نشته
د نیکئ حکم ډیر په تأمل کا
اول دے بیائے د انور د خدائے د پاره
په خوشحال باندِ خوواردے دادے راغے
په دا هسے حال هم شکر کړے بویه
په بل کال م ډیره شي لاړهٔ دِ نهٔ شي
پښتانهٔ لره منصب نهٔ دے غضب دے
کهٔ هزار کاندِ پښتون مغل به نهٔ شي
د هاتی د مزې روغه کهٔ څوک غواړی
پښتانهٔ لره شړئ انډیرے بسهٔ دی
ماوے زهٔ به د مغل په نوکرئ کښے
په ناحق ئے خنځیرونه راپه پښو کړل
امرکان م په دربار کښے ډیر نیکخواه دی
آفرین د میرجمله په خویه باندِ
کهٔ هزار تورے چارے غشي وریږی
کهٔ بادشاه کهٔ امرا خما د پاره
بل میرخان د خلیل خان خویه تلاش کا
چه په نیمه خولهٔ ئے کارکیږی د خلقو
لا تراوسه کار موقوف په اراده دے
چه له بخته یاری نهٔ وی په داخهٔ شي

کهٔ د دے خبرے غواړے استدلال
دا بل سپے په بنارس کاندی دا چال
چه وطن کا په فرنګ به پرتګال
چه تل کاندی د بدئ اشتغال
چه د دهٔ غوندِ به نهٔ وی بل هزال
پیشکاران ئے دی بدذات او بدسګال
د بدئ حکم کا په استعمال
چه په پسه چاړهٔ واړه کړے حلال
خدائے دِ درست جهان ساتی د دے جیپال
کهٔ سږ کال م کړه لاړه تر هنګال
په ملکونو ترشوال او تر توروال
چه تلاش د اضافو کا لا بے دال
بویه داچه له زړهٔ وباسی داخیال
هیڅ د دے خبرے نشته احتمال
نهٔ اغوستے د مغل د مجرے شال
رکیبونه کړم د سرو د سپینو نال
واه واه هسے نوازش هسے آمال
په خاطر د سیّد میر دی دواړه لال
چه نن دے دے میر بخشی په استقلال
دهٔ خما په سر نیولے دے خیل دال
د هرچا سره د دے جواب سوال
بل د نیکو نیت لیدهٔ شي د کوتوال
د خلاصی م همیشه کاندی جدال
ګوره څهٔ دے لا د دے چارے مآل
کهٔ جهان دِ نیک خواهی کا ماه و سال

دَ رنځور رحمت دَ خدائے په حکم درومی — په طبیب باندِ خوسعی ده کمال
مخ دِ تور دَ سیّد شمس شی دواړه لوریه — چه هر کوره بے بدل دے په تهیتال
دَ خلاصئ خلل ده کړه کړ په مینځ کښے — چه ئے کړ په ضامنئ کښے اهمال
کهٔ دَ بند او دَ زندان مشکل آسان شی — وار په وار به خدائے آسان کا کل اشکال
په ځیله پسے ګلونه دَ بهار دی — په اهار پسے رادرومی پشکال
چه په ژمی ښاخ بُری وشی دَ ونے — په بهار کښے ئے لاښهٔ وی پروبال
لا به کله دَ خلاصئ زیرے وشی — چه ښادی م شی په اهل وپه عیال
چه همیش په خوشحالیٔ آموخته وی — هغه زړونه دِ خدائے نهٔ لری ملال
انتظار دَ دے خبرے ډیر عالم کا — ولے خوار ختک به واړهٔ شی نهال
لا به کله هغه وخت هغه ساعت شی — چه به وینم دَ یارانو ښهٔ جمال
دَ هجران محنت به واړه فراموش شی — کهٔ ښادی را باندِ وشی دَ وصال
څوک به خاندی څوک ژړا کا څوک به آه کا — په هر ځائے چه دا بیان بولی قوال

زر پنځه اویا کالونه دَ هجرت ؤو
په آغاز دَ نوی کال شو دا مقال

# دَ اورنګ زیب نه شکایت او دَ خپلے مړانے ستائنه

پرورده کهٔ دَ مغلو په نمک یم — دَ اورنګ له جوره هم له غریوه ډک یم
په ناحق ئے په زندان کړم یو څو کاله — خدائے خبر دے کهٔ په خپل ګناه زهٔ شک یم
ښتنو سره زړهٔ تور دے دَ مغلو — خبردار ئے په نیتونو یک په یک یم
کهٔ سره کهٔ نا سره راته معلوم دی — په دا کار کښے په معنیٰ لکه محک یم
یا زهٔ باز ووم یا شاهین شاه جهان ته — دَ اورنګ وته قارغهٔ یا مښکیرک یم
هغه زیست چه دَ عزت له مخه نهٔ وی — چه ئے کا په هغه زیست پورے هک پک یم
اورئے پورے په منصب په نوکرئ شه — چه ترفهم و ترنظر دَ مغل ګک یم

په خپل نام و ننګ چه راشم ليونے شم
چه په طمع د اوږو زغلي وشست ته
تر قضا پورے د هيڅا حاجت نشته
و بينا وته سوړ مهر يم د زړو
هيڅ له قدره م وګړے خبر نهٔ دے
د چينے تر ګلو ډير دے څما قدر
لکه باز په لوئے لوئے ښکار څما نظر دے
چه په غوښوئے ورزګار هغه مزرے يم
په دا سپينه ږيره شرم عزت ښهٔ دے
کهٔ عالم راته کڼ تاؤ کا غم م نشته
په دانش په شعور نهٔ ده په قسمت ده
هر پښتون چه د مغلو نوکري کا
چه منصب م د مغل خوړ يو ملِک وم
د فرمان د پروانے حکم ئے نشته
نهٔ م کار په خاص و عام نهٔ په ديوان دے
نهٔ تصديق شته نهٔ ياداشت شته نه توجيه
هر کيدي به چه له ما سرکوزي غوښته
کهٔ په بدو باندِ شوم شوم زړئے ښهٔ کړم
هر ساعت را باندِ عيد د استغنا دے
پښتانهٔ لره شړئ انديرے بس دي
آزادي ده په ساده سپينه جامه کښے
د وښو جونګړئ هسے راته ښے شوے
کهٔ اوګره د بتو شته په شلمبو سپينه
چه نيولے م دا هوډ د ننګ و نام دے
په بل غشي ټوپک هيڅ ويشتلے نهٔ يم

خبردار کله په سود و زيان د لک يم
ګمان مکړه چه هغه ناپوهه سمک يم
او کهٔ نه تر زړه د ښپ لا رپيرک يم
په دليل د نابينا لکه پوچک يم
کهٔ ربښتيا وايم د سترګو مردمک يم
و بے شناختو ته ګل د پنيرک يم
نهٔ چه ګرځي ګوګټ نيسي با دخوړک يم
نه چه ولے د وښو خوري هغه مږک يم
څهٔ به نورے چارے کړم مګر خوردک يم
په ربښتيا ويل د ډيرو پوٗل پوٗلک يم
چه دا هسے سرګردان لکه پټک يم
کهٔ دِ زړه ده د هغے واړه و بهترک يم
چه منصب د مغل نشته اوس ملک يم
شکر دا چه په خپل حکم په خپل وک يم
نهٔ په در ولاړ د هر يوهٔ مردک يم
نهٔ په فکر د سند نهٔ د دستک يم
د هغهٔ د سرپا توره يا کوتک يم
لکه ښهٔ ستورے په اصل مبارک يم
کهٔ په نور عالم ژړا زهٔ په خرسک يم
نهٔ په فکر د مسند نهٔ د توشک يم
خلاص له غمه د زربفت او د ميډک يم
وايئے ناست په محلونو د آسک يم
د مغلو پولاؤ يا تو ډير پرے پړک يم
کهٔ له خپله هوډه واړوم کنيزک يم
کهٔ ويشتلے يم خو بيا په خپل ټوپک يم

چه شهپر مې بتې خیل ډو کنډ کړ شول — پروا دار په لنډو پرونو د بارک یم
د کریز بتړے مې توټے لکه باڼه کړے — ګمان مهٔ کړه چه بے پرونو بناپیرک یم
سکه ږونړه مې ترې دی حال ئے دا دے — کهٔ بولا قو نه لا لړے یو ځپک یم
په دروغ دروغ وعدے نِفاق آمیزے — ماغلوی ورته په مثل د کوډک یم
تف په بڼیره د همه واړو بارکو — لا ځما په بڼیره هم کهٔ ږړهٔ بارک یم
کهٔ د واړو پښتنو راته تسلیم دے — ږړهٔ خو بیا د صبا کئ انا خښتک یم
نن خو قام را سره پیره جفا اوکړه — ګانده بیا د خدائے وحکم وته ځک یم
کهٔ خټکو راته شاکړه مخ ئے تور شه — ږړهٔ یوازے په تکیه د خدائے شیرک یم
کهٔ څهٔ حق یاد ورورئ یا د نیکئ شته — وپاداش وته په طمع د هر یک یم
مهمندی ځما د کړے لاس وپښے دی — راضی مند د آفریدیو په کومک یم
ډیر چینے چه تراوش وُکا دریاب شی — چه لیدهٔ شم اوس خودایم یو بولک یم
کولانړی سَرَبنی څو پښتانهٔ دی — ږړهٔ د ننګ په کارله واړو مشترک یم
د هرچا سره چه کښینی هم هغه شی — اوس مې نیمه ژبه خوبنه شوه شیتک یم
چه دا هسے رنګ ځما په سیله ګرځی — منت دار په ګرځید نه د فلک یم
کهٔ مې عمر په شماره ترشیتهٔ تیر دے — لا په کار د سوارئ لکه اوزبک یم

د افغان په ننګ مې وتړله تُوره
ننګیالے د زمانے خوشحال ختک یم

## د مغل په بند کښې د ارمانی زړهٔ فریاد

زمانے له بنو یا رانو نه مهجور کړم — څهٔ بلائے مبتلا په ډیر ضرور کړم
د بنړو اوښکے مې پاسه پرے تاږونه — بیلتانهٔ په تن په مثل د طنبور کړم
اوس په ما د خوشحالئ نوم جوړ نهٔ دے — چه دا هسے زمانے له غمه پُور کړم
ماوے تړق به سره وچوم له غمونو — ولے لا تراوسه پا یم خدائے صبور کړم

نوره وارہ پښتونخوا په ځائے میشته ده ۔۔۔ خو یوځه دے زمانے یکښې منصور کړم
اشرف خان په نایوهۍ په غم کښې ونښت ۔۔۔ زړۀ د دۀ غمبونولا په زړۀ رنځور کړم
جُدائي د صدرخان لکه سُورا ور ؤو ۔۔۔ کۀ د وارۍ فرزندانو غم چُور چُور کړم
سل تنړلے م هر آه سره په زړۀ شي ۔۔۔ په دړون ئے لکه وریے د انګور کړم
هغه وخت مګر د خدائے په وعده راشي ۔۔۔ چه به بیا د خیلخانے سرۀ سرور کړم
د هر مخ خالونه داغ ځما د زړۀ دے ۔۔۔ زړۀ حیران ئے یادول په کوم دستور کړم
دا ارمان م هیڅ ارمان سره سم نۀ دے ۔۔۔ کۀ په زړۀ کښې ارمانونه نامحصور کړم
مرګه هومره مهلت راکړه په جهان کښې ۔۔۔ چه جمدر د مدعي په وینو سُور کړم
چه م اوس له لاسه اووتے آسمان شوے ۔۔۔ د هغو خبر وخۀ لره مذکور کړم
کۀ ئے درست د مېږو زور راته ښکاره کړه ۔۔۔ بیا فلک سره کُشتي په خپل دستور کړم
نۀ به بیا په غاړه کښیږدم د ننګ توره ۔۔۔ نۀ به بیا په قوم کښې کښېنم نۀ به هور کړم
عجب مار م جار وتلے تر دؤو ښبو دے ۔۔۔ مګر لوئے پاړ پیدا شي چه ئے دور کړم
مست هاتیان خوني مزري په زنځیر کیږي ۔۔۔ بویه دا چه ځان فلک وته ترپور کړم
په خپل آه م باورشته اثر به ؤکا ۔۔۔ رقیبان به اور لړوني د تنور کړم
یو دوه سرے مارم پروت په دواړو ښبودے ۔۔۔ په دیدن ئے له نشاطه نه نفور کړم
پاړوګان د پیښور واړه ناقص ؤو ۔۔۔ دایم هند لره روان شوم کۀ ئے دور کړم
چه م فکر د ازل په تورے وشي ۔۔۔ په دا کار کښې خپل پردي واړه معذور کړم
دا بیان م د عقد (۱۰۶۳ھ) په کال ویلے ۔۔۔ په شعبان چه د لاهور په سیند عبور کړم

وارہ خلق د خوشحال په پت ولاړ دي
بخته تا له کومه لوریه راحضور کړم

## مغل د پاره خدمتونه او د مغل په خوشحال ظلمونه

راته درست د دهلي ښار ؤو بوستان ۔۔۔ چه پکښې ؤو باز باقي سعادت خان
په هغۀ زمان چه دوئ له ما روان شول ۔۔۔ بلا سخت یم چه ئے نۀ مرم په هجران

چه د دیو د دیدنه نه محرم شوم
که رښتیا وایم زه اوس شوم په زندان

خیلخانه م لکه باغ زه ئې باغوان وم
څه عجب وبله جوړ ډو باغ باغوان

زمانه چه باغ باغوان وبله بېل کا
دا بیلتون په دواړو توکه دے خریزان

چه یو گل د هغه باغ وینې په سترگو
په باغوان باندې ښادی وی هر زمان

د مجنون څېره تصویر په کاغذ گوره
زه هم هسے هډ و پوست یم ا ستخوان

په جهان کښې هر څوک یو ځله په مرگ مری
زه بے مرگ مرم نه یو ځل زمان زمان

په ناحق د اورنگ زیب په بند بندی یم
خدائے خبر دے په تهمت او په بهتان

زه په ځان کښې گناه نه وینم په خدائیگو
ولے نور خلق خبرے کا شان شان

د گناه م سررشته نه ده معلومه
مگر خپل هنر د ځان وینم تاوان

لکه زه وم په راستئ په درستئ کښې
د مغل په خدمت نه ډو بل افغان

بادشاهانو لره ترس د زړه باید دے
مروت، غوررسی، عدل و احسان

څوک به چا لره په داد او په فریاد ځی
چه په ظلم راضی من شول بادشاهان

چه څما په خیلخانه په ولس وشول
ودِ نه شی په هندو په مسلمان

چه د خپل پردی تمیز ورباندِ ورک شو
بادشاهان د خپل دولت کاندی نقصان

اورنگ شاه بادشاه که تل کا هسے چارې
لکه اوس ئې په لاس ونیوے امان

یا سږ کال یا په بل کال به خلق واوړي
چه جوی و نه شی د سرو وینو روان

زه لا ځه یم نور به هم څما په رنگ کا
څو خانان دی نوم په نوم د کوهستان

چه زړه سوے په پلار په څویه باندِ نه کا
د هغه به څه صرفه وی په جهان

له غروره هسے مست بے خوده لاړ دے
چه نظر ئې هورے پاس دے په آسمان

د داد خواه ځواب کو تئ یا کوتک دے
په دربار چه ئې غوغا کا دادخواهان

وبه نه وائی چه ولے دا دِ څه کړل
که په ملک ئې قتل عام کاندی خانان

نه یو حرف د صوبه دار نه شل محضره
چه رقوم ئې په خپل مهر کا قاضیان

رفتگی بهرے رشوت حمایت بو یه
که څوک غواړی د خپل کار سر و سامان

د هرچا څخه چه دا خو یونه نه وی
په دربار به سرگشته گرځی حیران

طبیبانو ته هیڅ مه وایه خوشحاله
قادر خدائے به وکا ستا د درد درمان

# په قندهار جنګ او نتیجه ئې قحط سالي

بیا دِ څهٔ فتنې آغازې کړې آسمانه
چه عباس دِ راروان کړ له ایرانه

شاه جهان لا په اندوه دَ ترکستان وُو
تا ناګاهه بله چار کړه ورعیانه

منصوبې دِ هومره نهٔ دي چه ئې شمار شي
هغې توبه توبه له تا ستا له دورانه

کله کله ستا فتنې لا په څهٔ رنګ وې
ولې داځلې سو کړې نهٔ کړې ودانه

یو سختي او رنځوري دِ په ملک زور کړه
بل دِ بر برکت واخست له جهانه

در پوهیږم چه هغه دِ لا په یاد دي
چه خلاص شوي وُو دا وار له طوفانه

خوهمه واړه کسکر وبله نهٔ کړې
خوابه ستا نشي سړه په یوځوخانه

دَ کابل میوې خوراک دي دَ طوطیانو
پرې خوارهٔ شول تورقارغان له هندستانه

یو شدت دَ بادشاهانو ترمینځ پریوت
بل دا ملک شو یو ځو کاله بې بارانه

دَ آدي ځښتن دُعا کړي چه نرخ ګران کړې
لمي کار په زړهٔ پریشان مینه ویرانه

غه سړي چه به په زور میلمانهٔ غوښتل
اوس سرېټ کاندي تیریږي ترمېمانه

ما په عمر هسې کار لیدلې نهٔ وُو
نهٔ م کله آوریدلې وُو له چانه

چه پسر له لوږې مري پدر ئې ګوري
دَ پسر اندوه ئې نهٔ وي بې له ځانه

هندوستان به ګوره څهٔ شي ستا له فعله
خدائې دِ ورک کړه رافضي علي مردانه

له هغې ورځې چه راغلې په دا ملک کښې
غم دِ راوړ ترسپاهه تر دهقانه

چه دا هسې شوم قدم دِ په ملک کړ
چه دِ ګورم څهٔ ناپوهې شاه جهانه

کهٔ دا ملک له اولیاؤ نه خالي وې
په دا ملک به نزدکن پښېمانه وه ګرانه

کهٔ دِ حکم دَ عالم دَ ورانۍ نهٔ وي
رزق دَ هر چا ورکوه دَ رزق ضمانه

خوشحال تل شکر وکاږي خوښ له تادَې
تا په دهٔ له هره توکه کړه پریوانه

# دَ فلک ستمونه

## او دَ پښتون دَ بې وفائۍ نه فریادونه

خبر مه شې دَ فلک په ستمونه — په خاطر کښې لرم څو رنګه غمونه

چې همیش به یې سر پروت ځما په پښو وو — اوس هغه ځما په سر ږدي قدمونه

چې به تل ځما کرم ته په اُمید وو — بار وي په ما منت په کرمونه

چې ځما په مرهم روغ په دُنیا پائې — هم هغه خاندي ځما په مرهمونه

زړهٔ ئې چالره وهم قدر ئې چا ږده — په اورو سیزه دا تورې قلمونه

څهٔ یوازې ننګ په ما راغلے نهٔ دے — پښتانهٔ ډېر دي په غزونه په سمونه

یا به واړهٔ دَ مغلو درم پرېږدي — یا به زړهٔ هم په لاس واخلم درمونه

چې پښتو اخوري دَ مغلو واړهٔ سپي دي — دَ سګانو په خولهٔ څهٔ اخلم نومونه

کهٔ خټک دي کهٔ بنګښ دي کهٔ ورکزي دي — وار په وار ئې په کور اوشه ماتمونه

یا م خپل قهرمان ترهر چا وکښې — یا م پرېښوې دا دَ ننګ شیمونه

له پردیو نه به څهٔ لره مانړهٔ کړم — چې خپل هم را باندې باسي اړمونه

ناخلف ځویه دَ چا کره لوئې مهٔ شه — چې و پلار و ته ګندي کا قسمونه

هسې ځویه م نهٔ ولیدل په ډېر کښې — چې په مخ کښې ئې دا ورځې علمونه

چې شاعر په خپل غلط فکر خبر شي — پرې خکوي دَ غلطۍ رقمونه

چې ځما سر ئې کا پورې حیران یم — خپل پردي فن او فنون سحر دمونه

ګور به هم په ژړا سر کړم کهٔ ئې ورومړم

زړهٔ خوشحال دَ زړهٔ دا هومره المونه

## مشران او ځان ستائیل او خیلخانې نه فریاد

راشه واوره دا دستان — نیک وبد پکښې بیان !

هم عبرت هم نصیحت دے — پرے دِ پوهه شی دانایان
زرۀ خوشحال دَ شهباز خان یم — چه تورزن یم کان په کان
شهباز خان دَ یحیی خان وُو — چه بل نه وُو هسے ځوان
یحیی خان دَ اکوړی وُو — چه په توره شو سلطان
هم په توره مړنے وُو — تیرانداز وُو شخ کمان
چه غلیم به ئے پیدا شو — زړئے ځائے وُو کورستان
هم ئے تیغ وُو هم ئے دیگ وُو — هم ئے خُلق وُو هم احسان
په هغه ستوری پیدا وُو — هم پرے زیږی بادشاهان
لا پیدا په جهان نهٔ وُو — پرے خبر وُو درویشان
دَ اکبر بادشاه په دوړ — شو دَ خپل اُولس تورخان
چه له دهٔ سره به ناست وُو — هغه واړه وُو شیران
هت ناک باسل باذل وُو — په هر کار کښے صادقان
گورته رنګ په وینو لاړل — چه همه وُو سرداران
قبیله شوه سره ډیره — اکثر بسهٔ لائق ځوانان
متفق په هره چاره — نوم ناموس په واړو گران
دَ هجرت زر دوه ویشت سن وُو — چه زرهٔ راغلم په جهان
هغه کال پوره پنځوس وُو — چه شهید شو شهباز خان
دَ هغهٔ دور بادشاه وُو — قدردان شاهِ جهان
دَ پلار ځائے ئے وما راکړ — په اولس شوم حکمران
کهٔ دَ تورے کهٔ دَ ورکړے — هیڅ م پرے نهٔ یش ارمان
لکه خرخ م دَ بابا وُو — ځما لا وُو دوچندان
واړه دیرش زره ختک دی — درست ځما وُو په فرمان
په لښکر به ځما خرخ وُو — یا م خرخ وُو په مهمان
کهٔ ځما کره به سل وُو — زر به تلهٔ په خاندان
درست ختک ځما په دور — نامور شو په دوران

که خټک په مزکه پروت دی — پاس مې یو وړ په آسمان
که څۀ عیش که عشرت دی — زړۀ مې سوړ کړ په هر شان
که آسونه که باږونه — ګشت دَ باغ او دَ بوستان
زړ وماته هسې خوار دی — لکه خاوړې دَ بیابان
نۀ زړکوۀ په ما واجب شو — په درست عمر نۀ قربان
چه یې خپل عزت پکار وي — زړ به خوار کا هغه ځوان
تر اورنګ بادشاه مې ویوست — تاؤ دَ بند او دَ زندان
نقش مې کښېناوۀ دَ تورې — په هندو په مُسلمان
دَ خپل ځان صفت به څۀ کړم — مګر نور یې کا بیان
ښې ښې ناوې په کوږ راغلې — پلار نیکۀ خانان میران
دَ اویا کالو نو اوس یم — په دا ماهِ رمضان
کال زر یو نوی هجرت دی — هم تحویل دی دَ میزان
واړۀ دېرش ځویه لرمه — اوس حاضر په دا آوان
چه په عُمر شوم اطلس — دَ شباب په عنفوان
راکړه راغله جینۍ — پلار نیکۀ یې بد ذاتان
بل هُنر کسب یې نۀ دی — سفیهان دي پاده بان
بد سرشت په څو کرسۍ — احمقان په خوئ دَ دان
سَګه پلار په تیغ وژلې — هم دَ زړونو قاتلان
په خپل کور کښې سره وژنه — تل نفاق شدت ترمیان
نۀ په شرم پوهیدلی — نۀ په دین نۀ په ایمان
خپل قسمت کړه راترغاړه — دَ دې هسې خاندان
مشران ځویه مې واړه — خدائې له دې نه کړل حیان
څۀ بلا ده چه راتله به — دا ځما په شبستان
خپل بابا کړه راترغاړه — دَ دې هسې خاندان
دَ دې هسې به څۀ حال وي — چه دا شان لري نیکان

زړه خوږ په یوه نه شو — خوږ د زړه دی خوږ د ځان
واړه یو تربل آخته دی — په خپل کور کښې جنګ جویان
یو و پلار نیکه ته نه شو — همګی د مور په شان
په سپلمئ په ګندیری کښې — که پیوند شی تاک رمان
په میوه به ئې خوږ نه شی — د چا کام د چا دهان
څه بې ځایه تربیت ؤو — چه به ما کاوه ارمان
چه په بد بوټي محنت کا — غرامت دے په باغوان
نه ئې ننګ شته نه ئې شرم — څه نابود دی دا سګان
زړه غلیم د اورنګ زیب یم — سر په غره په بیابان
زه په ننګ د پښتانه یم — دوئ نیولی مغلان
لکه سپی هسے جاروزی — د مغل په آش و نان
د منصب په اضافو دی — تل په ما پسے روان
څما لاس وربانده رسی — را واهه نه شی خپل ځان
په دا هومره رسوایئ — بیا بدمه ګڼړه خپل ځان
چه ئې پلار سره غلیم وی — هم هغه ئې زړه او ځان
چه په واړه وکښې آرشد دے — نن یادیږی اشرف خان
د مور پلار نیکه ته نه دے — دا ناکس دے لا بل شان
په شړوندون م خپل ځلئ ورکړ — بانده زړه شوم مهربان
زړې توا کړل په لکونو — طبیلے ئې عراقیان
لوئې څما په نوم په توره — خوارېږی م فرزندان
د خپل ځان په شیرازئ دی — تار په تار برادران
بد خواهانو سره خاندی — په زړه چوی نیک خواهان
بسه کاروبه چه څما ؤو — یا څما د دود مان
یو په ده کښې پیدا نه شو — ورته خلق دی حیران
که ئې بولم ګلستان ته — بانده اور دے ګلستان

دَ ګونګټ اغندِ جاړ وُوزی     په سرګین او په ګودان
دے نامرد له نامردئ     تل له ړونړو نه ترسان
دَ ګلونو په پټی کښے     ګرځی ځان ته خارستان
بنهٔ لائق خویه م نور دی     ولے خدائے کړل کشران
ړین دَ زړو په خرهٔ پروت دے     په بنهٔ آس باندِ پالان
قسمت کاندی خپلے چارے     نهٔ علاج شته نهٔ درمان
تربیت ځما په دهٔ وُو     په بنوره باندِ باران
کهٔ م ولوستل و دهٔ ته     کتابونه دَ لقمان
نهٔ اثر وربانِدِ وشو     نهٔ ئے ځائے شول په جنان
دَ پنډ اور په سوخته لګی     نهٔ دَ پشم په ریسمان
کهٔ سرود ورته آغاز کړے     سرود څهٔ اوری ګران
آئینه کهٔ ورته کښیږدے     په کښے څهٔ ګوړی کوړان
له قرآنه کهٔ ویل کړے     خو انکار کا کافران
حمیده به پکښے لږ وی     ذمیمه چندان چندان
لکه دے دے په حسد کښے     بل به نهٔ وی هیڅ انسان
سرتر پایه وهم ویره     په خپل خویه بدګمان
دَ مردئ په کاروبار کښے     ترړ نانو شه قربان
تر څلویښت کالو نه تیر شول     باندِ خرخ نهٔ شو پیکان
په هر ځائے چه په جنګ پیښ شی     تل ئے تیښته په میدان
مرصّع توره تر ملا کا     تیزی بنهٔ بنهٔ عراقیان
نهٔ ئے توره چرته سره کړه     نهٔ ئے خوږ شو برګستوان
کهٔ ئے په کور لږی لکونه     ځنے شوم دړومی مهمان
کهٔ څهٔ لږ و ډیرئے خرڅ شته     په هزّال په قلتبان
دَ دُنیا په حساب تللے     همیشه لکه هندوان
ذکر فکرئے دَ ډرو     ټولوی ړوپۍ مهران

شوم منحوس لئیم سفله دے — مصاحب ئے همچنان
ځائے د مرد ورځخه نشته — ورته ناست دی نامردان
ځان ستا یه په ډیروزرو — نادار بوله خپل بزرګان
شوم مکار محیل بے شرم — ډیرویونکی بدزبان
د بزرګئ په کار خبر نه — په زور کړه د بزرګئ شان
برآمد ویل پرے اور دے — خوشامد باندِ ریحان
ځنے زشت کاروونه نور دی — څځهٔ ئے اخلم په زبان
یاخودے مهٔ وے له مانه — یا زهٔ مهٔ وے په جهان
چه څماځخهٔ بندوبست وُو — دهٔ بدبخت کړو واړه وران
هنګامه ده لا په منځ کښے — د مغل او د افغان
زهٔ په نقش د خپل چارے — کهٔ څځهٔ شی سروسامان
دے په وهم په وسواس کښے — تل له ما دے هراسان
خپل شامت د بد فعلئ — ورته ناست په هرمکان
چه څما سره څوک تول شی — د دهٔ زړهٔ شی نور لرزان
چه څما د لښکر غبر شی — او بهٔ کیږی د دهٔ ځان
زهٔ په لویو اندیښنو کښے — دے په کور کښے دے غران
چه دا دوه کاره خونبیږی — دا احمق سفله نادان
چه څما سره څوک نهٔ وی — بل چه سوړئ وی دیګدان
څما څویه له ما نیسی — اقربا ، برادران
ومغلو ته مجرا کا — چه خپل پلار م کړ دا شان
زهٔ د دهٔ په کار خندان یم — دے څما په کار خندان
چه څما له غمه واوری — بے حسابه شی شادان
چه څما سره بدی کا — پرے رحمت کا مغلان
په چمته کښے لوئے غرځائے کا — په کوز ره کښے پڑدی عمان
دے لا هرڅهٔ ورته وائی — ورسره شی فارسی خوان

دَ مغل په زور ئې لاندې  څما ملک کړو درست ترځان
نه ئې مال وماته پرېښو  نه نوکر نه غلامان
نه په ملک یم نه په نور څه  خپل عزت دے په ما ګران
خدائے خوار په دین دُنیا کا  دَ عزت یم کا نقصان
څنې سپي ئې را پسے کړل  په تیری کښې بد دهان
چه ناپوهـ ئې په خپل ځان کا  هسې نه کا دښمنان
رسوائی شوه ترمنځ پېښه  نه څه ورک نه ئې څه زیان
دَ سزا په سنګنے مات کړ  دَ همه وارو دندان
نظام پور لره آس راغلم  دغه ګوئې دغه میدان
چه یم وار وربانډ ساز شي  بیا راوړاندې کا دوستان
وار دَ هرے چارے تیر شو  فکر لوئې دے دا زمان
هرچه وی هغه به وشی  څو لاحول په شیطان
قافیه شوه سره تنګه  دَ زغملو نشته توان
اوس همه چارے ترشا شوے  څو هم دا مهم ترمیان
حماقت ئې لکه اوس شو  څما زړه ئې کړ بریان
چه اساس دَ تُورے کښېږدم  دا نامرد ئې کا غلطان
چه څما کره پیدا شو  څه آفت دے دَ آسمان
نن به هیڅوک هسے نه وی  لکه زه په زړه پریشان
که کښېنم نام و ناموس ځی  که پاڅم پاڅی طوفان
په دے کش مکش کښې تیر شو  په ما عمر رائیګان
پښتنو وکړے ګټنے  څما کور دا هسے وران
دَ یوه سړی شامت دے  چه خوار یږی درست جهان
دَ ګټنے وخت تیریږی  واویلا افغان افغان
ځوانی لاړه پیری راغله  په پسرلی راغے خزان
چه به ما وربانډې مټ کړه  مشکل کار به شو آسان

په دا کار باندې مې ده | که آسان ئې کا سبحان
مفاجات دې ئې نصیب شي | یائې تور مار جانستان
چه هیڅوک پرې بدنام نشي | هسې ګور ته شي روان
لکه عاق دې عاق دې دروي
دین دُنیا دواړه خُسران

# دَ خپلے مړانے ستائنه او ځان ته دا ذکیر نه

چه په خوا په خاطر نه هسې عیان شي | ځنځه چارې پیدا په دا جهان شي
په لاچې په خوتره وکړ ځید لم | اوس مې ګشت دَ افریدیو په میدان شي
لکه باز په یوه غرۀ ګرځي بل ګوری | بیا ځما نظر د سوات په کوهستان شي
دَ مغل منصب مې پریښو هسې خوبش یم | لکه خلاص دَ لویه بنده بندیوان شي
دا نادره عقیده لکه ځما ده | لا عجب که بل پیدا هسې افغان شي
که مې چیرې ننګیالي په لاسو کښیوزي | پرې به لرې دا ځما دَ زړۀ ارمان شي
ومغل وته به هسې کار بنکاره کړم | چه راضي را ځنځه روح دَ فریدخان شي
په اعُوذُ به نې فتح کړم که خدائے کا | په دا کار کښې که څوک ما ته شیطان شي
په هر کار چه همت وتړي له دِ له | که اغزي وي هغه کار وته ریحان شي
که فرښته وي بې بدئ به پاتې نۀ وي | چه قرین ورسره هر کله بدان شي
چه نې خپله پوهه نۀ وي بنۀ هغه دې | چه دَ بل سړي په پند پسې روان شي
هیڅ بهبود خبره وانۀ ورې له چا نه | بیهوده خبرې ډیرې تر دا میان شي
زړۀ به نن غرض دکاندة ته پرې نږدم | که دَکاندة دَ ژوندون سره ضمان شي
چه خندا په خوب کښې ویني وژاړې | دَ نادانو یاري سود کښې دا زیان شي
په یوه بحړي وسوځي درست کلې | په یوه خبره لاړه واړه ایمان شي
ساقي نن ځما په دور جام ګردان کړه | ګوره کاندة به دَ چا دَ وَر ګردان شي
اورنګ زیب بادشاه زړۀ دک په لاهور راغې | ګوره کاندة به څوک وران څوک به ودان شي

که کښت لوه باران او باد پکار دے — دَ عالم ټولے په خلق په احسان شي
درومه هیڅ دَ معیشت دَ کال خبرے مکړه — هره ورځ پیرے خوشانه دَ آسمان شي
ډیر وتاوته نن لاف دَ یارئ کا — کانده ستا و سرته کښیني غلمان شي
په جهان دَ ننګیالی دی دا دوه کاره — یا به او خوری ککرئ یا به کامران شي
دَ بارړونو دَ کارګانو مصاف وینم — تر دا مینځ به ئے دَ وینو رود روان شي
عاقبت به خدائے ظفر کا دَ بارانو — تار په تار به آواره واړه کارګان شي
چه وکارته ئے حیران دی دا خو لږ دی — ډیر عالم به وخوشحال وته حیران شي
چه په داغ بانډئے ږدے څهٔ خوښیږد ګا — نور به کوم دَ لیونی پلے سامان شي
دَ مزریو مړنتوب په لښکر نهٔ وی — متهے ئے هرکله یوازے په خپل ځان شي
آزادی تر بادشاهئ لا تیرے کا — چه دَ بل تر حکم لاندِ شی زندان شي

چه په څهٔ دِ زړهٔ مشغول شی هغه واړه
په سلوک کښے ستا دَ لارے رهزنان شي

# دَ خپلو ځامنو نه فریاد

ناخلف مِ حواله کړه په تقدیر — نصیحت ور باندِ نهٔ کا ندی تاثیر
خوئ خصلت چه ازلی وی نهٔ نوریږی — په ارشاد او په تلقین دَ کامل پیر
بد فرزند دِ خدائے دَ هیچا پیدا نهٔ کا — په خصلت ئے پلار په ځان ګمور په ویر
چه نصیب دَ بولهب ډونو رڅهٔ نهٔ شو — محمدؐ که ئے نصیحت کړه یا تدبیر
عیسیٰؑ یو نادان هوښیار نهٔ کړه په عمر — که پړاندهٔ ئے په نفس شول ډیر بصیر
محمدؐ دَ ابوجهل خوئ نور نهٔ کړ — نهٔ خصلت دَ بولهب بیا موند تغیر
وهوښیار ته دَ ناپوه عقل حنظل دے — و نادان ته خپله پوهه شهد و شیر
چه بد خوئ په چا کښے کښینی نو عادت شی — عادت نهٔ دروی له شخصه په تعزیر
یو زمان به خالی نهٔ وی له عذابه — چه خپل خوئ شی وسړی وته سعیر

کۀ سرائے دَ کاروانو نو تل پائمال وی — په نادان دخپله پوهه غم بهیر
دَ نا اهل سړی کار دَ جاهل کوم دے — چه مهمل ئے عبارت خالی تفسیر
دَ ناقصے پوهے پدل پکار نۀ دے — دَ دانا فکر خطا لوی خطیر
یو جهان هسے کړو وړ ماته بیړئ — چه مغل پښتون په غم وبلا خیر
بل رم خو په نالائق خیلخانه ورانه — زړۀ په زړۀ له زمانے هسے دَ ګیر
درسته موخه تیرانداز سرے خطا کا — دَ ګنګئ په سر دَ اوړی لګی تیر
واړه زړونه په دانش سره سم نۀ دی — دَ چا زړۀ لکه دریاب دَ چا غدیر
په نری آواز په تراه له هر څۀ دړومی — دَ هوښیار سړی په کار وی دَ تغییر
تفاوت دَ هر وجود لکه مرغونه — یو هما ئے شو یو فارغۀ شو بل تجبیر
دَ کوتاه تروني نۀ رسی لاسونه — بیا دَ ونو دَ میوو کا ندی تفسیر
په هُنر دَ هنرمند پیچے ناخوال کا — بے هُنر چه په هُنر نۀ وی خبیر
کشکے دا دعوی عالم کا ندی منظوره — چه سهار پاڅی دَ نمر کا ندی تحقیر
په صابن وللے زړګے دَ هغه کس دے — چه په زړۀ کښے ئے نفاق نۀ وی تزویر
چه په هسے زړۀ به ګرد غبار پرېباسی — مکانات ئے لاس په لاس شی دستګیر
زمانه دَ ربابی دَ لاس رباب ده — هر زمان نوے نغمے دَ بم و زیر
چه په خوا په خاطر نۀ وی را پیدا شی — په لحظه لحظه کښے چارے دَ تاثیر
په لحظه لحظه احوال دَ جهان نور شی — دَ صبا دَ چارے ذکر په ضمیر
هره ورځ دَ زمانے احوال بدلیږی — هره شپه نوی خوبونه نور تعبیر
په ساعت کښے رنګ وخوند دَ چارے نور شی — وینه پخئ شی پئ شلومبے شلومبے پنیر
فراغت دِ مُبارک شی دَ کیدړو — دَ مزری دَ غارے بخره دے زنځیر
باد باران ساړۀ غارمۀ لره پکار شی — عاقلان چه مشقت کا په تعمیر
یائے ځائے په سردړو چه لیدۀ نشی — دَ مزریو یا وژل دی یا زنځیر
چه بلئ دَ دهقان په تول شی سازه — په زړۀ ډیر له دهقانئ شی زهیر
دَ دولت دَ ناوے مهر ککرئ ده — پلو غوته ئے دُنیا ده واړه ځیر
بے دولت چه له دولته نه محروم دے — دائے واړه په همت کښے دَ تقصیر

عاقبت د نا قابل دولت برباد وي — په طالع کۀ یا امیر شي یا وزیر

کله خرڅ د ژرندے آرد د هغه وي کا — چه غنم په ناپوهۍ ګنړي شعیر

مارچوبه دِ تن د مار په شکل ساز کا — په خپل ځان کښے به د مار کښېږي د تاثیر

د کیمخواب وتمۀ مۀ غوره سترګے — په وریښمو کښے چینجي دي د حریر

چه ئے پاس په اوږد واچوي پړانګ پښ شي — په تکی تکی شالونه د کشمیر

د ناکام د پاړۀ پاسه په سر کیږي — لکه زیږ غونډِ په وخت د زمهریر

کله خپل نمود په رنګ د میږو وکا — کله خونه شي د ماشیو حرانجیر

پکښے واړه بیهوده حبطه حشو — لکه فرد د لغمانیو د تقریر

ناهموار دے ناهنجار دے ناپکار دے — بد سیرت دے بد فطرت دے بدخمیر

برامد وربانډِ صوت د غراب دے — خوشامد پرے د بلبلے ښۀ صفیر

قباحت ئے د فاسق د نالائق دے — ظرافت ئے د یاوه دے د شریر

په جهان کښے بے شعوره ذاله طبعه — حمیت غیرت ئے تللے له ضمیر

نۀ د نوم دے نۀ د ننګ دے نۀ د شرم — د بخچے دے د صندوق دے د توفیر

چه پیشو ورته په خو فکرئے نشته — هوسیږي لکه مږک په دنانیر

تربیت بے ځایه واړه حبطه دے — کشیده د زړو نۀ شي په حصیر

زړۀ ئے هیڅ په تربیت نۀ کړم تقصیر — ولے څۀ کړم ناخلف دے بد ضمیر

د نطفے اثرِ لاړ پکښے ضائع شو — واړه پئ د مرجانۍ لري تاثیر

کۀ لوګے د اور فرزند دے په داغۀ شو — چه نۀ تاؤ نۀ لکه اور هسے منیر

سررشته دِ ما د چارے هغه خط شوۀ — چه بے فکره د انشا بنګلے تقریر

په مقدار د حیلے چارے فکر غم کا — په دنیا کښے کۀ غني دے کۀ فقیر

دریغه یو پکښے شهباز شوے یا خوشحال شوے — شل پینځه لرم همه صغیر کبیر

مشران ئے د شړئ ګنده پشم — کشران دي په مثال اومۀ حریر

زمانه دِ ئے په قصد په کینه نۀ شي — چه یو خو پکښے ګوهر دي بے نظیر

سیم وزر مس وتانبه ترے پیدا کیږي — د مورنس لکه بوته دے د اکسیر

چه قابل دي هغه خویه پائنده شه — نا قابل دِ لاهلاک شي سر و تیر

نالائق ځویه دَ مورۀ پیدا مهٔ شه — دا لا ښهٔ کهٔ ځنې وزیږی خنزیر
یو لائق ځویه تر زرو ځویو ښهٔ دے — ډیر به څهٔ کا ځوک چه نهٔ وی دلپذیر
دَ شوال وروستئ ورځ کال دَ غفا دے — ما چه دا شپیتهٔ بیتونه کړل تحریر
خپل تدبیر دَ لاسه مهٔ پریږده خوشحاله
کهٔ کارونه حواله دی په تقدیر

# دَ خپل ناخلف ځوئے بهرام نه سر ټکول

ښهٔ کهٔ وزیږی دَ ډکے ښځے مار — نهٔ زروولے ځنې ځویه ناهموار
یا دَ چرګ غونډِ چا پیر ګرځی تر چرګو — یا بلبلے توت خورے دی بهتی خوار
سرائے هر ګورۀ بد ولد دے چه م وکوت — له بانړونو نه پیداشی مږک مار
کهٔ په سلو کښے یو ښهٔ شو غنیمت دے — چه په سرائے کښے ښځه سورکاندِ شلوار
دَ محنت دَ مشقت دَ صبر نهٔ دی — دَ راحت دَ فراغت دی دَ تلوار
نهٔ ئے شرم نهٔ ئے ننګ شته دَ میړونو — ځما ځویه دَ بل ورنهٔ ئ غمخوار
نهٔ یو باز دَ سرد ونهٔ ډیرے چرګے — دَ ځنګلو نو مزرے یو ګیدړ هزار
اکوړے یحیٰی شهباز واړه سرهٔ زر ؤُو — په خپل دور واړهٔ ښهٔ تیر کړو خپل وار
هم په ورکړه هم په توره هم په عدل — په دا درے توکه درے واړه ډوا وځار
په بهرام باندِ چه وار راغے اوس ګوره — چهٔ ئے څهٔ رنګه بدنام کړهٔ دا نامدار
کهٔ زهٔ دیو غونډِ نهٔ یم بارے شکر — چه په ما باندِ بدنام نهٔ شو تبار
هغه پلار بے بختهٔ نهٔ وی په جهان کښے — چه خلف ورځنې پاتے شی یادګار
اوس فاسده زمانه ده له زړنا نو — ناخلف نااهل زیږی بدکردار
اکوړے یحیٰی شهباز واړه مزری ؤُو — زهٔ هم نهٔ یم دَ ګیدړو په قطار
واړهٔ تیر په مزری توب کښے شو په توره
په خپل دور واړو ښهٔ تیر کړ خپل وار

# دَ خپلو ځامنو نه بیزاري

چه مِ ولیدهٔ دَ خپلو ځویو کار — ځویه واړهٔ ځګر خون دی دَ خپل پلار

خو چه وزیږي دَ پلار دَ ځان بلا شي — په خدمت په تربیت ئے شي ګرفتار

چه تندرست نزوتازه وي پړے خوښیږي — دَ زړهٔ نول ئے شي چه لږ ئے شي بیمار

ځوئے بزیره بریت لا نهٔ وي هومره ګل وي — دَ ویښتو سره ئے مخ پیدا کا خار

چه دَ خپل قوت ځښتن شي دماغ واخلي — دَ ځواني له خیاله سم نهٔ ځي په لار

په هزار رنګه هوا په زړهٔ کښې ورشي — ورځ او شپه سره شوریږي ناقرار

له خودئ هسے مست بے خوده لاړ شي — خو یو زهٔ یم چه پیدا شم په دا دار

وخت ئے هیڅ دَ هلکوالي په یاد نهٔ وي — چه به پروت ؤو په اوږي کښې خوار و زار

کرنګ په خولهٔ باندِ راغلے تن لړے — په ګندګئ کښے په بدبوئ ګنده مردار

توان طاقت دَ مځ شړل ورځخه نهٔ ؤو — په ساتنه به ئے مور کا وهٔ تیمار

کهٔ ئے غُل دَ مور په غیږ کښے کړل متیازے — په دا کار به ئے نهٔ عیب ؤو نه ئے عار

کهٔ مور پلار ئے وښو چارو دَته بولي — نصیحت دَ مور او پلار روي ورته نار

نورے چارے ورته واړه حبطه وي — هم هغه کا چه په زړهٔ ئے خپله چار

یکباره دَ خود رائي په سیند کښے ډوب وي — چه واته ئے ځنې نهٔ وي په کنار

چه دَ زیست او دَ روزګار شعور پیدا کا — کاروبار ئے په خو رنګه شي اظهار

ځوک بهرام غوندِ منحوس بدبخت بخیل شي — په شامت ئے خیلخانه شي تار په تار

منافق لئیم مردود دَ زمانے شي — دَ خپل پلار سره آغاز کاندي کارزار

ځوک یحیٰی غوندِ اوده غافل پیدا شي — چه هیڅ کار نیولے نهٔ شي اُستوار

ځوک سدو غوندِ نامرد عبد الزّوجه شي — په تنګسه له خپله پلاره شي ویزار

ځوک مالو غوندِ جلو غوندِ پیدا شي — سراسر واړه نابود او ناپکار

خو ځما کره زوولي دي پیر ځویه — دَ نور چا نهٔ دي پیدا په دا دیار

ځو دَ واړو کاروبار وتا ته شمارم — کهٔ ئے شمارم درمانده به شم په شمار

موافق م په خورمنځ یوځویه نشته — همګی واړه دَخپل غرض دی یار
کهٔ ما زده وے چه دَځویو هسے کار دے — ما به نړنا کاوهٔ نهٔ کور دَ کوروزګار
حال ځما دَ اولاد دا دے چه م دوے — په اولاد دَ نورو نهٔ یم خبردار
اورنګ زیب بادشاه هم ځوئے دشاهجهان دے — خبردار به ئے دَ دهٔ په کاروبار
مال اولاد دواړهٔ فتنه دی په جهان کښے — په دا دواړه به زړهٔ نهٔ تړی هوښیار
یا په دا زمانه خوئ دَخلقو نور شو — یا خو ؤو دا جهان هسے ؤو مکار
نورتر دا د پاسه شکر کړه خوشحاله — چه له تا نه خپل بابا نهٔ ؤو آزار
کهٔ دَ درست جهان دولت دَے ستا په لاس کښے — په اخلاص به دِ دَ پلار ترسرکړ ځار
اوس تا هسے ځویه راوړهٔ هم بد تهٔ ئے — چه ترسربه دِ ځار نهٔ کا یو دینار
نورلاهم وئیلے نهٔ شم ګوندِ ښهٔ وی — سرشته دَ دواړو بده کړه سردار
دَ هجرت زرکالونه نه ترے کم دی — چه نړئ کښے م آغاز کړ دا اشعار
عابد خان په دا محنت راسره مل دے — چه ګانړهٔ شی پرے ځما دَ زړهٔ پرهار
خالدخان نجوشاکر طاهر دا هم دی — مجاهد کامران همه شه برخوردار

دَ بهرام لښکرے پروتے په تیری دی
اُمید دے چه خدائے ئے زرکا شرمسار

# بهرام ته

ځما زړهٔ له چانه روغ نهٔ دَے بهرامه — دَ هرچا سره م زیست دے له ناکامه
نوکری ځوانی دا دواړه لکه بام دی — په پیرئ کښے له ما لاړل دواړه بامه
اوس دا دواړه بامه ستا دی ننداره کړه — غافل مهٔ شه یو زمان ترصبح وشامه
په دا اوښ باندِ چه ستا ګجاوه اېښے — رسوه ئے چه پرے نهٔ وزے تر مقامه
خودِ دا ننداره شی شکر وکاږه — په چا نهٔ وی دا خوښی علی الدوامه
تَولّا تَبرّا بویه په اسلام کښے — چه ئے نهٔ وی هغه نهٔ دے له اسلامه

اهل شرته دَ شاهين منګل پيدا کړه
څو دِ توان توفيق رسيږي بيرون مهٔ شه
په فرمان دَ بادشاهانو څهٔ باور دے
دَ مغلو دولت خواه اوسه څو ژوے
دَ هغهٔ به فيروزي په جهان نهٔ وي
کهٔ دِ زړهٔ وي چه به پائے لکه خضرٴ
تهٔ دَ چا وجام ته هيله اُميد مهٔ کړه
دَ ګنګاش دَ پرخاش ښهٔ ځوانان پيدا کړه
خوړه خوَروه غوټه ساته دَ کار د پاره
ښهٔ سردارو ته دَ نوم خزانه بويه
ورکول ټوَرے وهل دا دواړه بويه
يا تکيه دَ يوهٔ خدائے ده يا دَ ټوَرے
کهٔ سردار دَ خلقو زړ لري هُنره
رخنه کړ دَ ملک په خونه کښے ماران دي
کهٔ دِ نقش دَ ټوَرے کښيني راته غوږ کړه
رعايت له رعيته سره ښهٔ دے
چه خلاف دَ حاکم کا خلاصے ئے نهٔ وي
دَ ختکو نهٔ م هومره زړهٔ ناخوښ دے
دَ نعمت په قدر هيڅ خبردار نهٔ دي
دَ وفا په ځائے همه واړه جفا ده
ختک واړه دَ دودام دي کهٔ ئے ګورے
چه ئے خوښ کړے يائے دوست کړے لا بلا شي
کهٔ زمونږه خانه نهٔ وے ختک ورک ؤو
کهٔ په ټوره ختک خپل کړے ګُندِ خپل کړے
اول خپلے خيلخانے وَته نظر کړه

اهلِ خير وته حليم شه ترحمامه
په هردم دَ پښتانهٔ له ننګ و نامه
چه بتر دے دَ قاضيانو تر اعلامه
ونفرو ته ئے هم کړهٔ سل سلامه
چه ئے وخوري دَ چا مالګه کا حرامه
دَ نيکئ نوم ژوندے دے تل مدامه
حريفان دِ باده نوش وي ستا له جامه
چه پرے چار دَ ملک ومال شي انتظامه
کامراني شي دَ دُنيا له سر انجامه
کهٔ نور هيڅ ورځخه نهٔ وي بے له نامه
چه پرے چار دَ سردارئ شي انصرامه
په جرګو مرګو به نهٔ شي کار تمامه
بند وبست دَ عالم نهٔ شي بے صمصامه
چه ماران دَ خونے شته خوبے کدامه
کام روا به شے هالهٔ له هره کامه
دا هاله چه بيرون نهٔ وي له احکامه
رعيت په لږ ګناه له قتلِ عامه
چه توبه دَ همګي ختک له نامه
نوم ختک به م خلاص نهٔ وي له انعامه
چه به ما ته رسيده له خپله قامه
څوک به څهٔ غواړي خپلوي له ددودامه
دَ ددانو څهٔ غرض له احترامه
دَ خواجه په نوم اصيل دي څوغلامه
ګنږه هيڅ به ئے خپل نهٔ کړے له اکرامه
چه په لاس واړه ونيولے ده څهٔ خامه

اتفاق دَ خیلخانے عجب دولت دے — په نفاق ئے واړه وُوزی له آرامه
همگی شهد و شکر قند و نبات دی — هیڅ برهم مهٔ شه دَ رونړو له دشنامه
چه په شرم نام و ننگ سره شریک وی — په هرکار وبله نهٔ وی بے آلامه
خو جفا دَ خپلو وړے هومره به بناد شے — کهٔ دَ خپلو جفا سخته وی مدامه
دَ گلاب دَ گلو هومره اغزی یاد وی — خوئے بوئ راغلے نهٔ وی ترمشامه
بنهٔ خوانان به خپل هو دبڅ نږدی له لاسه — کهٔ ئے سرشی دَ خونی مزری تر ژامه
کهٔ تل تورے غشی خوری ملاتے دَ جنگ وړی — مرد به سوړ نهٔ شی په زړهٔ له انتقامه
کلیله دمنه به خوکړے راشه گوره — چه خهٔ دُرم درته توئ کړهٔ له کلامه

چه دَ زړهٔ هغه گوهر به پکښے مومے
کهٔ پرے پوهٔ شے له آغازه له انجامه

# دَ دُنیا حال

اے چه خیال کړے په دُنیا — دُنیا څهٔ ده بے وفا
کهٔ دِ یو زمان زړهٔ بنهٔ کا — بیا دِ زړ کا په ژړا
راحت نشته په دُنیا کښے — اَلدُّنیَا دَارُ البَلا
دُنیا مهٔ گڼره څهٔ نور څهٔ — دا ده ځائے دَ استنجا
زهٔ چه تاگورم حیران شم — اے ابله مشتِ گیا
هر زمان نوی خیالونه — هر ساعت نوے هوا
یو دِ زړهٔ زړ دِ یارئ — یو دِ سر سل دِ سودا
کله مست دَ مال وملک شے — کله مست شے دَ صهبا
دَ مسند دپاسه کښینے — لور په لور دِ متکا
په یوهٔ لوری غلطان شے — چا ته مخ وچا ته شا
خوک وتاوته ولاړ وی — په تسلیم په سل جفا
خوک له تا سره مجلس کا — واړه هزل مشغولا

څوک له ورایه درته ناست وي　　ژغوي چنګ و سرنا
څوک په ور دره ته للیږي　　په نمط ستا د بقا
حاجبانو ته وئیل کا　　کۀ مو ورسي دعا
تۀ په ځائې بې خوده پروت يې　　نۀ د غم نۀ د پروا
هېڅ فریاد له تا نه　　هېڅ توبه توبه له تا
نۀ د غوږ د آوریدو شته　　نۀ د سترګې شته بینا
بې هوده په ځان غره يې　　حبطه يې په رښتیا
فلک ډیر زیر و زبر کړل　　چه تر تا وو هم والا
تۀ په مثل د دانې يې　　دا فلک لکه آسیا
ډیرې تا غونډې میده کړل　　اوس يې وار دې هم په تا
کۀ باد شاه د درست جهان يې　　خو د بیا تشه غوغا
څۀ دعوی يې د جهان کړې　　نور به هم وو ستا پخوا
نۀ سلیمان وو نۀ يې تخت وو　　نۀ آصف د برخیا
نۀ بهرام وو نۀ يې ګور وو　　نۀ سکندر وو نۀ دارا
نۀ جمشید وو نۀ يې جام وو　　نۀ قباد وو نۀ کسرا
په شمار کښې به مانده شم　　زیات يې خوشمار تر دا
کۀ هزار کۀ سل هزار وو　　کۀ لږ دا وو هم ډیر لا
واړه لاړه له دې جهانه　　جهان واچول ستر شا
غه شاهان چه ذی شوکت وو　　څۀ يې هم شته هویدا
ساماني په جهان هم وو　　سلجوقي وو هم پیدا
غزنوي وو په غزني کښې　　چه يې کړې هم غزا
څۀ نشان يې موندۀ نشي　　د برک نه د یحیی
کروفر د عباسیو　　مکر ډوب شو په دریا
د فلک فریب پټ نۀ دې　　چه يې تل کاندِ له تا
کله زر وتا ته بښۀ کا　　کله آس او غیلي غوا

کله څوک یه درته ښه کا — کله خویش او اقرب
نهٔ به زر وتا ته پریږدی — نهٔ مالونه نهٔ اشیا
په شدادئ فساد کړے — په قارونئ وکړ لا
نهٔ ته پلارئ دَ ځامنو — نهٔ ځامن دی خویه ستا
په خپل ځان دَ هرچا کار دے — کهٔ پسر دے کهٔ بابا
حلق په خپلو لاړو لوند دے — دَ ګدا هم دَ بادشاه
نهٔ دَ ځان ئے زهٔ دَ ځان یم — تهٔ جدائے زهٔ جدا
غم ښادی دَ هغو برخه — چه لری ژړها خندا
کهٔ حشم دِ شی بے شماره — خزانے دی بے احصا
چه اجل درله راشی — نهٔ هغه پکار نهٔ دا
لکه هسے رنګه کار دے — راشه واوره اے فتا
مهیا و مرګ ته کښینه — سرانجام کړه دَ عقبا
کهٔ دِ توان وشی تقوی کړه — کهٔ تقوی نهٔ وی فتوا
بهشت ځائے دَ نورچا نهٔ دے — خدائے یاد کړی اتقیا
کهٔ بخیله پارسا نهٔ ئے — خاکِ پائے شه دَ پارسا
هرچه شته شریک له واړو — مشترک دی هدایا
کهٔ غنی ئے سخاوت کړه — بل به نهٔ وی مبتلا
یوچه خلاص وی له حسابه — په همت لکه عنقا
په شوکت لکه شهباز شه — نهٔ ئے رنګ نهٔ ئے معنا
خوره خوره له خپلو لیچو — غضنفر شه نهٔ روبا
سخاوت کړه څو یه تا شی — اسراف نشته دَ سخا
په سرتورے پرے نارے کړه — چه تالا دُنیا تالا
چه ئے قطع غرائق کړل — په آسمان کښیناست عیسیٰ
دَ عسل په دود شیرین شه — نهٔ حنظل نهٔ ګندنا
مهٔ لړم شه مهٔ افعی شه — غم فزا راحت زدا

بار دَ نورو په ګردن وړه — خپل بار مهٔ کښیږدهٔ په چا
جهان ځائے دَ مکافات دے — بد به مومی چه بد کا
دَ بدئ جزا بدی ده — دَ نیکئ نیکی سزا
چه به کیږی تورے خاورے — خپسر خاورے کړه پخوا
کهٔ په حسن لکه ګل شے — یا تر ګل شے هم زیبا
بیا دِ ځائے دے تورے خاورے — تار په تار واړه اعضا
داځهٔ تورے خاورے نهٔ دی — چه پرے ځے صبا بیګا
همګی جونه ځلمی دی — خاورے شوی دَ بیدیا
چه په سترګو باندِ پښے ږدے — بارے رو ږده ځهٔ خو پیا
دَ پسرلی ګلونه بنهٔ دی — که ئے تل درلے بقا
مزکه سبزه زرغونه شی — دَ حمل په ابتدا
رنګارنګ ګلونه واشی — هم په باغ هم په صحرا
نهٔ یو ګل دَ بل په رنګ وی — نهٔ ئے بوئ سره همتا
یو خو ورځے شګفته شی — زر فنا شی په جوړا
تر بلبلے نا پوه څوک دے — یا کم عقله ستر بوړا
چه په هسے خیز ئے مینه — چه ئے څو ورځے بقا
هغه خیز چه بے وفا وی — زړهٔ پرے نهٔ تړی دانا
په جهان کښے مینه هم وه — دَ یوسف دَ زلیخا
کهٔ ویسه وه کهٔ رامین وُو — کهٔ مجنون وُو کهٔ لیلا
کهٔ فرهاد وُو کهٔ شیرینه — کهٔ وامق وُو کهٔ عذرا
اوس ئے نخښے لیدے نهٔ شی — دے جهان کړل فوفنا
نهٔ به ګل دَ چمن پریږدی — نهٔ بلبله نهٔ طوطا
نهٔ به طفل ځنے خلاص شی — نهٔ سپین ږیرے نهٔ برنا
نهٔ به پاتے عشق دَ ځوان شی — نهٔ بنهٔ حسن دَ خوبا
ګاه دَ څویه لور په غم شی — ګاه دَ یار او دَ آشنا

چه پس له ما دا څـه کا — حال به څه شي د دې دنيا
غم د څو يو کړې د لونړو — هم د سور هم د بيا
ولې هسې فکر نه کړې — چه په دا څه دي پيدا
بخرې ادس نه دي اول دي — چه نه ارض وو نه سما
خپل قسمت به هر څوک مومي — که افلاس وي که غنا
څه اندوه د يو نفس کړې — اې د نفس په غم شيدا
خو د نفس ځله دِ ومرې — که کشکاب وي که حلوا
غرض تن دے تن دِ پټ وي — که خاصه وي که خامتا
که د نفس په نغوته دروې — تا به زر کاندې رسوا
نفس په دا راغلې نه دے — چه روا بيا ناروا
چه ارواح پرے خوښي مومي — هغه چار گڼره اعلا
مټ په علم کړه چه علم — اژدها دے هم عصا
يا په علم کښې لذت دے — يا په عشق کښې د مولا
نور همه چارے عبث دي — که اعلى دي که ادنا
که ته تريو کښينې خوشحاله — د فلک ترو څه پروا
انديښنو ته زړه ورمه کړه — څو حيات ئې په دنيا
که تل خوښ اوسے تل خاندِ — ئې اِسم بامسمّا
تر هغه نادان څوک نشته — چه نن غم خوري د صبا
غم غيرت په يوه لور کړه — خاطر صاف شه د هر چا
د صبا اندوه نن مه کړه — گوره څه وشي فردا
واړه وسپاره و خدائے ته — که دوستان دي که اعدا
که لقمان شي په حکمت کښې — يا که بوعلي سينا
نه به لاره د مرگي بند کړے — نه به خلاص شي له قضا
د قضا سره جنگ نه شي — وقضا ورو دړه رضا
که رضا په قضا ورکړے — نور خوشحال ئې په رښتيا

# دانا او نادان

که دروغ کا که رښتیا | هرڅهٔ ښهٔ دی دَ دانا
تر دانا دِ زهٔ ځاریږم | نادانان وایړه تر ما
مړهٔ ئے پاخول له ګوره | نابینائے کړل بینا
یو نادان ئے دانا نهٔ کړ | په درست عمر مسیحا
نادان ځان لره بلا ئے | هم جهان لره بلا
چه نادان وکا داورانه | هسے نهٔ کا اژدها
نادانان دی ناپوهان دی | نن څُما کره پیدا
لکه دوئ کاندی دا چارے | دا مِ نهٔ وے په آبا
دَ ناجنسو نه پیدا شول | کهٔ دود نور شو دَ دُنیا
دَیوهٔ پلاره زوولی | سره تل شور او غوغا
کهٔ ځلویښت دی کهٔ پنځوس دی | سره وایړه شا په شا
مال وملک دولت مِ زغوره | په دا حال کښے ږبنا
اتفاق پکښے باقی شه | دا نفاق ئے شه فنا
نفس شیطان دواړهٔ بلا دی | راشه ګوره دا بلا
چه په دے بلا پائمال دی | شهیدان دَ کربلا
خدایه تهٔ ئے چه خیل کړهٔ کړے | دا بلا پیدا کړه تا
له حکمته خالی نهٔ دی | کړهٔ دِ وایړه دی زیبا

زهٔ خوشحال دَ دهٔ له لاسه
دا فریاد کوم په چا

# دَ غواص دَ کال وبا

دَغواص دَ کال وبا | خدائے ئے مهٔ راوله بیا

اکوړخیل م پکښې ومړل ... لوئے هلک مرد و نسا
بخت ناک خان م پکښې ومړ ... مورئے هم بوته قضا
یو هلک ئے ؤو راپاتے ... ورپسے شۀ ژر فنا
چا ته ژاړم له دے غمه ... سود م کوم دے دَ ژړا
لور په لور په دا لمبو کښې ... عالم پروت په واویلا
تر دکنه تر کابله ... راخوره شوه دا بلا
په لکونو عالم ومړ ... چه ښهرونه شول صحرا
اول قحط بیا وبا وه ... په هر لوری وه غوغا
سرفراز دَ سعادت ؤو ... ښځے نمسے م ؤو ژیبا
هم حافظ دَ درست قرآن ؤو ... هم په خط ؤو بے همتا
دَ ښکار سپےئے ؤو ساتلے ... لیونے شو بے غوغا
لاس ئے وژوړ بے خبره ... چه کانړۀ ئے خپل آشنا
دے ئے وچیچۀ په لاسو ... لاعلاج شو لا دوا
په دا کال له ما قضا کړ ... په ارمان ارمان جدا
کال حصغ شو وبا لاړه ... هم عسرت کړه راته شا
بارانونه دی وریږی ... ودانی شوه په دُنیا
نۀ تل غم وی نۀ ښادی وی ... وار په وار وی هغه دا
په هر حال شکر بائده دَے ... چه بد تره نۀ شی لا
اوس څۀ غم دَ عالمگیر دے ... چه عالم ئے کړ رسوا
دَ وبا غونډ ژور ورک شوے ... بل یو ښۀ شوے راپیدا
یو خوشحال دا دُعا نۀ کړه ... درست جهان کا دا دُعا

اِجابت به ئے ژر روشی
کۀ دَ خدائے وی پرِ رضا

... ✱ ...

# دَ دُنیا بے وفائی

زړهٔ سفر له دے دُنیا ‌ ‌ ‌ په تحقیق دے په رښتیا
کهٔ څهٔ زر کاله پائیږے ‌ ‌ ‌ هم دِ نهٔ وینم احیا
راشه اوګوره همزولی ‌ ‌ ‌ چه ئے ځائے دے په بیدیا
بانډِ جوړ دَ خاورو خلی ‌ ‌ ‌ زرغونه بانډِ ګیا
کهٔ ئے ګور کړے سره بیرته ‌ ‌ ‌ هیڅ به نهٔ وی مهیّا
کهٔ نارے ورباندِ وکړے ‌ ‌ ‌ هیڅ به نهٔ شی درګویا
چه داحال وینے په سترګو ‌ ‌ ‌ ولے هسے ئے عمیا
چه بیړئ پکښے زر وځی ‌ ‌ ‌ څهٔ خونی دے دا دریا
تورےخاورے شول په ګور کښے ‌ ‌ ‌ چه دَ سترګو وُو توتیا
داجهان فنا پذیر دے ‌ ‌ ‌ تر ثرٰی تر ثریّا
دَ دُنیا راحت محنت دے ‌ ‌ ‌ تاریکی ئے دہ ضیا
کهٔ دَ عیش طلبګار ئے ‌ ‌ ‌ دَ جنجال نه ئے جویا
تراطلس بنه دہ شړئ ‌ ‌ ‌ ترګلیم بنه دہ بوریا
زړهٔ تړل په دُنیا مهٔ کړه ‌ ‌ ‌ بُود ئے نشته دَ اشیا
مونږ په مثل دَ دانے یُو ‌ ‌ ‌ پاس په مونږ ګرځی آسیا
چه خپل ګور لره راحت وړی ‌ ‌ ‌ هغه څوک دی اَتقیا
چه خپل ګور لره زحمت وړی ‌ ‌ ‌ هغه څوک دی اَشقیا
بانډِ پریوزی موتےخاورے ‌ ‌ ‌ په مرګ نهٔ مری اولیا
اولیا دی په جهان کښے ‌ ‌ ‌ په مثال لکه کیمیا
دَ باطن خیرے ورکیږی ‌ ‌ ‌ په صحبت دَ اَصفیا
یوسجود په اخلاص بنهٔ دے ‌ ‌ ‌ نهٔ سل زره په ریا
همګی دَ بنو خویونو ‌ ‌ ‌ وابسته دی په حیا

دَ خوشحال ژوندون په خدلئ دے
نهٔ شهباز دے سنهٔ یحیا

# په خوئ بوئ دَ اَصل او دَ کم اَصل

چه یو ځل ښیګړه وویني له چا
په یوهٔ شل بدئ کړه ترشا

دروغژن سړے د عفوے لائق نهٔ دے
په رښتیا بانډ عفوه ده روا

غلطي دَ یګانه غلطي نهٔ ده
په خطا د یګانه بویه عطا

کهٔ له یاره نه ترخې خبرے واوړے
خوږ شیرین ځواب ئے وکړهٔ په خندا

دَ کم ذات سره یاري آشنائي مهٔ کړه
له کم ذاته به بیا نهٔ مومے وفا

رخنه ګر دَ ملک هرګز دَ پریښو نهٔ دے
کهٔ هرڅو ئے شفاعت کا شیخ مُلا

مرد به خپله وینا ژغوري څو ژوندے دے
دَ نامرد وینا نن شته نشته صبا

دَ خاروېو په حساب دی سړي نهٔ دی
غوبانهٔ شپانهٔ چه بیائي غیلے غوا

چه ستا عیب تا ته وائي یار هغه دے
نهٔ چه نور و و ته وائي عیب ستا

بازاري سړے بهتر تر روستائي دے
کهٔ هرڅو دَ بازاري نشته حیا

کهٔ سړے پیرے دِ وژني وبه نهٔ مرے
څو چه نهٔ وي رسیدلی ستا قضا

بند څما په رضا یو نشته یاران م
په یارئ یارئ کښے کا خپله رضا

چه څما دَ مرګ مشتاق وُو هغه ومړل
نرهٔ لا دائم ژوندے پایم په دُنیا

مړني په خپله تُوره نظر نهٔ کا
ښائسته په خپل جمال دی نا بینا

مست او ښان م هسے شان وي مست یارو نه
چه په لوړ په ژدر نهٔ اوري سپرزا

شناخت اَدب شرم سړیو لره بویه
په دا درے توکه خاروے نهٔ دي آشنا

چه ئے مور وپلار سُچي سُچي زدولي
په هغهٔ کښے به خطا نهٔ شي پیدا

چه دَ سپي په پښولو ئے کاڅوک ورغوے
لکه سپي هسے ورغومے کا غَبا

دا خبره وهرچا وته ښکاره ده
چه دَ ښو غو ښونه ښه کیږي ښورو

عاقل ډیر عیب دَ ځان په عقل پټ کا
نادان لږ په ناپوهئ کا رسوا

پہ ویل ښیل بہ هیڅکلہ ښۀ نشی چہ بد بخت لہ مورہ پلارہ شی پیدا
چہ خپل بار پہ هیڅ نۀ ږدی بار دَ بل وړی هم هغہ سړے لائق دے دَ ثنا
چہ پہ زړۀ کښې ئے چراغ دَ عقل بل شی ورځ و شپہ دہ پہ هغۀ باندِ رڼا
سجنجل دَ خپل استاد لری پہ زړۀ کښې
چہ گویا شو دَ خوشحال دَ زړۀ طوطا

# پہ تعریف دَ شرعے شریفے

کۀ لہ کورہ توښہ نۀ واخلی غریب پہ خوارئ بہ دئ بہ مومی خپل نصیب
چہ وخواست وتہ ولاړ وی یا حرص تہ لہ ژوندون نہ بہ ویزارشی عنقریب
دَ چا زخم دَ چا حد دَ چا تعزیر دے هر سړے پہ خپل انداز مومی تأدیب
کۀ انصاف وعدل داد سیاست نۀ وے شک بہ نۀ وُو دَ وګړی پہ تخریب
عالمان دَ شریعت لکہ چراغ دی لور پہ لور دَ اشنا یئ اسالیب
دا دَ مزکے مخ ئے واړہ پہ حساب دے بیرونہ تر شرعے نشتہ یو جریب
پہ دانہ دانہ غلے واړہ حساب دی پہ حساب کښې هم مویز دی هم زبیب
دَ دریاب اوبۀ دَ شرعے پہ حساب دی وهر څۀ تہ ئے وړکړے دے ترتیب
دا همہ واړہ دَ شرعے خدمتګار دی محتسب، قاضی، مفتی، ملا، خطیب
عاقبت مرید دَ شرعے دَ اُمی شو کۀ خبرے بوعلی کړے عندلیب
پہ جهان کښې بل رقیب دَ شرعے نشتہ کۀ رقیب دے یو شیطان ئے دے رقیب
مخالف دَ شرعے واړہ شیطانی دہ مخ ئے تور شہ چہ عمل کا پہ تکذیب
چہ غم خور دِ دَ هر کار نۀ دے پہ دین کښې نہ دِ یار دے نۀ محب دے نۀ حبیب
دَ عنصر دَ صنائع فکرونہ پریږدہ کۀ پوهیږے شرعہ نور لری ترکیب
فلاسفہ معتزلہ واړہ ګمراہ دی چہ بے شرعے پہ خپل رائے کاندِ ترغیب
دوہ اویا ملتہ واړہ آلودہ دی پکښې یو ملت دَ شرعے دے نجیب
رنځ زحمت دِ خدائے درنۀ کاندِ خوشحالہ ګنړہ کړہ دارو دَ شرعے پہ طبیب

# پند و نصائح

درته وبښیم کیمیا د سعادت
مه بدګوئې مه بدآموزمه بداندیش شه
که لوئي غواړې ځان کم ګڼره تر بله
په دوستانو تلطف کړه ځو په تا شي
د نیک خواه خبره نغوږه پرې عمل کړه
د نمانځه تر قضا ګرانه دا قضا ده
نوراني کا هغه ځائې چه سره کښیني
په اخلاص چه په دعا لاس نه هسک کا
بې ګنګاشه به هیڅ کار په لاس وانخلي
چه په تشه تواضع کښې ګټه کیږي
که ګنجونه د قارون درته انبار شي
ناپوهان به ئې پریږدي روستو بل ته
ناپوهان که ئې شدت وته تیار دي
خو دوستئ د دنیا ډیرې وي په زړه کښې
شور غوغا جنګ وجدل به تر مینځ نه وي د
که حاتم غوندې کرم کړې د مهرانو
خو بدانو سره بد شې هومره ښه وي
د نابوده دنیا هیڅ متاعه نه ده
که د سر ځي که د مال ځي که د نور ځه
په ظاهر باطن کفران د نعمت مه کړه
که راحت غواړې په ځان محنت قبول کړه
که دارد په خواست موندل شي مه ئې اخله

د بدانو سره مه کوه صحبت
که د زړه ذوي چه درنه رسي آفت
بل تر دا د پاسه نشته نصیحت
د دشمن سره هم ښه کوه خلقت
نانعمانو ته تیار دي ندامت
چه قضا شي د خلوره و مصلحت
دیرینه خلور هوښیار په مشورت
ورته پرانت شي د فتحې د نصرت
چه خبردي د ګنګاش په برکت
هومره سود نشته د نیک طباخ دست
په هر لوري غوریږه په سخاوت
عاقلان به وړاندې بیا د خپل دولت
لا ئې نه دي خبر دار په حقیقت
هغه هومره ډیر فساد دې قباحت
که هر څوک سره راضي وي په قسمت
دیوه مړي په ځا مه بږده منت
ولې عفوه کرم ډیر لري لذت
چه به کاندي عاقلان باندې شدت
استوار اوسه په کار د رفاقت
هواخواه اوسه د خپل ولي نعمت
بې محنته هیڅوک نه موندي راحت
که د مرګ وته نږدې کاندې زحمت

کهٔ آسمان دِ دَ مزری په خوله کښېوړ کا
دَ مزرې په خوله کښې مهٔ پرېږده همت

دَ عمل ذخيره واستوه دَ وړاندِ
دا يوڅو ورځې ژوندون دے غنيمت

په اوبو چه ورانه دی شړنږې مړ زړه
په ورځ ئې رخونونه کړه په شريعت

کهٔ ژوندون دے هم دغه دے په جهان کښې
چه يا ديرې دَ سړی دَ خو خصلت

دا راحت لکه دَ فقر دَ پوزی دے
دا راحت نشته په تخت دَ سلطنت

چه کالی ئې پاتې نهٔ شی مرده شوئې ته
خدايه ورکړے وخوشحال هسے رحلت

# دَ حکمت او دَ صحت خبرے

دَ حکمت ويل به وايم مختصر
په معنیٰ کښې قيمتی لکه گوهر

په هفته کښې صحبت يو ځلې بايدهٔ دے
کهٔ هرڅو وربانډِ عشق وی زورور

دَ صحبت په کار کښې ډېر فکر بايدهٔ دے
خورب آس شی په يوهٔ گذار ډنگر

دا دَ ملا او به ئې وايه دُر گوهر دی
کهٔ سړے ئې شی دَ قدر نه خبر

دُر گوهر به هغه څوک لونی بے ځايه
چه په پوهه کښې ابله وی کيدی خر

په ډېر رنگه دخول کيږی بهتر دا دے
چه ترنا وی ښځه لاندِ تهٔ زبر

چه دِ عمر دَ پنځوسو کالو تېر شی
په دخول کښې يا وه ډېرمهٔ کړه ذکر

کهٔ قوت زيات وے تل خوره شودے پئ
چه تر دا نه دا ورو نشته معتبر

په مړه گيډهٔ صحبت په شومه مکړه
پس له خوبه ئې پرے جوړ کړه په سحر

چه حاجت دَ غسل وشی زر ولامبه
پس له لامبو لږ څهٔ وخوره گرم و تر

دَ شهوت چه ضعيفی لږ شه کوينه
په بادام او په پسته طا نفے څر

دا څلور توکه نفاخ او مبهی دی
يو چنړه، نوبيا، کاځره، بل ټيپر

کهٔ دَ غرهٔ دَ مرهٔ په ترنځبان لکه کړے
دَ جماع لذت به بيا مومے بيشتر

دَ ناړے ښځے صحبت دے لکه زهر
هر سړے دِ ځنې وکاندی حذر

دَ هغے ښځے صحبت لکه دا رو دے
چه ئې لور نهٔ وی نر ووله يا پسر

کهٔ دِ لاس په بکره برشي پړنې مړ پرېږده
دَ مغز رنګ تازه کوي صحبت دَ بکرې
تر زعفرانو تر عنبرو لرې ډيره
زعفران خوره کهٔ دِ دَ زړهٔ تازګي غواړې
په تودو اوبو چه اوږے ژمے لامبې
مستکي مستکي وخوره درته وايم
کهٔ دَ غرهٔ دَ برزو په ترېخې ئې علاج کړې
کهٔ تو برے له زخمه نهٔ خيژي خرچنګم
کهٔ اوبهٔ دَ پيازو شهد و سره وخورې
په خوراک دَ ياسمين دروني څو رنځه وي
ناست و نماست دِ دَ سړي په اعتدال
په هغه کلي کښې خونه مېشته مهٔ کړه
ګرد غبار غار مهٔ چيقړ هوا بدبويه
په څلور فصله کښې بنهٔ فصل بهار دے
ډير زحمت په وخت دَ مني پيدا کيږي
رنځ زحمت دَ ژمستان په فصل لږ وي
چه په شپه له خوبه وينښ شے اوبهٔ مهٔ څښه
دَ چند نړو مبنل خوراک دواړه بهتر دي
خدائے دِ توخي دَ سيارے دَ چا ونهٔ کا
دَ مولئ پانړے بنے دي بيخ ئې بد دے
دَ مولئ په خوراک کښې دي دوه ګټې
چه دَ مېښې ماستے خورے زحمت به مومے
کهٔ ماستهٔ پئ به خورے خوئے دَ برزو خورهٔ
کهٔ دَ غوا دَ برزو شلومبے خورے زيان ئې نشته
کهٔ به پئ څښې شودے پئ دَ برزو څښه

کهٔ دِ خانې شي په هغهٔ جهان سقر
وسهٔ کوي سستي دَ تن درد و کمر
په خوراک او په بخور نفع اکثر
ولے لا تر زعفرانو بنهٔ عنبر
په دا کار کښې تندرستي دهٔ دَ بشر
چه خوراک ئې په مثال دے لکه زر
رنځوري به دِ پورے نږدي دَ بصر
باندِ وتړه هاله به شي بدر
دَ فاسدو وينو نهٔ پريږدي اثر
ترسيرت، نقره، فالج هم درد سر
په ساړهٔ په غارمه مهٔ بويه سفر
چه درياب ئې په جنوب په شمال غر
رنځ علت وبا پيدا کيږي اکثر
تابستان سړے کم خوراکا ندي لاغر
لکه سِل، نقره، قولنج بلا بتر
دَ ساړهٔ نه ځان ساته په اور په نهر
په نهاره هم اوبهٔ لږي ضرر
په بدن کهٔ ئې ځرور وړي بهتر
اوکهٔ نه ورته ډاسرو دي شير خر
مګر ريګ دَ مثانے ته دے په چېر
بدهضمي ريګک مثانهٔ کاندي بتر
ترخواږهٔ ئې تر تروهٔ کيږه بهتر
هم هغه چه ئې مېله کړے شيرين تر
اشتها دَ سړي زياته کا په خوړ
کهٔ غوښې خوړے څو ګوري خوړ دَ بقر

دَ تمغری دَ حلوان غوښے اعلیٰ دی
کۀ دَ پیازو په خوړو شهوت زیا تیزی
کۀ هزار رنګه طعام دے په جهان کښے
کۀ یخنی اوړه وړی موے نورخۀ مۀ خوره
کله کله هوکه خوره چه سودے ډیر دے
خوترشی په جهان شته واړه زحمت ده
کۀ ئے موے اوړے ژمے کبینه خوره
خوږ او تریو انار همه واړۀ دارو دی
په سابو کښے د سوے سابۀ مفید دے
کۀ اوبۀ دی دَ باران یا دَ چینے دی
ښے سړے خوړے اوبۀ دَ سړی ځان دے
چه تودے اوبۀ څوک څښی غارمه وهلے
تود کچړے دَ غوا غوړی په وخت دَ ژمی
دَ صحرا ویلنے خوره پرے به ورکیږی
دَ باغی ویلنی سود دَ خوراک ډیر دے
په خوراک توره بنګره زاړهٔ ځلمی کا
لیونی ګلاب داړلی لره ښـهٔ دے
کۀ دَ نغن سره ئے خوړے خټکے ښۀ دے
حرارت لره کاسنی چه خدائے پیدا کړه
وریتۀ کړی ښک هم ورک کاندی نسخوږے
دَ تازه پنیر خوړل سړے فربه کا
په کماله ځوانئ قصد دَ قیفال بویه
خو چه ډیر طلب کا رنۀ شے خوارۀ مۀ خوره
دَ طبیب دارو هاله خوره چه حاذق وی
خوشبوئی څو لګوے هومره فائده ده

لا تر خوږ مرغی ښۀ دے دَ کوتر
ولے ډیر خواړۀ ئے زیان دے دَ بصر
تر ډوډئ نه بل خوارۀ نشته بهتر
چه بهتر نۀ دی تر دا شیر و شکر
په سفر به ئے همیش خوری دانشور
دَ صفرا علاج په دے شی مـقرر
خو په سودے ئے خبر مۀ کړه خیل پدر
فوائد دَ خوارۀ لا دی افزون تر
ولے بویه چه محرور ئے خوری کمتر
دَ کوهی اوبۀ ضرر دے دَ بشر
ولے تود خوارۀ سړے اوبۀ ضرر
پرے نقصان دَ اشتها شی رنګ اصفر
تر حلوا تر سلوا زیات لری هنر
کۀ دَ نس موړه لرے اوکړه باور
په وجود کښے دَ باد نۀ پریږدی اثر
کۀ خوراک ئے څوک یو کال کا مقرر
کۀ پرهار کا دَ هلک په بولو تر
په نهاره ئے خوړل دی تنها شر
نور دارو په خولهٔ یا دمۀ کړه خشک و تر
ورسره شربت نبات بویه شکر
ولے بویه چه دانا ئے خوری کم تر
ګونا ګون زحمت ورکیږی په داچر
هر زمان په شغوند کښے مۀ شه لکه شتر
دَ ناقص طبیب دارو لری خطر
تندرستی ده هم سنت دَ پیغمبر

دَصفرا زحمت به دروُمی لهٔ هغهٔ نه          چه ښهٔ خُسن وته کاندی تل نظر
دَ بلغم زحمت به درومی له هغهٔ نه
چه غثیان په هره میاشت کا مقرر

## دَ بوس وکنار رموز او اسرار

اول زړهٔ ښهٔ کړه دَ یار          ښهٔ په بوس و په کنار
بیا له پسه کهٔ پوهیږے          وصحبت ته شه تیار
په وړو وړو لذت آخله          ښوریدهٔ کړه په وار وار
دَ شهوت په توښیدهٔ کښے          په تعجیل شه په تلوار
چه فارغ شے له شهوته          په سینه ئے شه قرار
دَ خپل یار مقصود پوره کړه          دَخپل یار اوسه غم خوار
خولهٔ ئے پاس کښیږده په شونډو          کښلوَه ئے ګل عذار
په هفته کښےیو صحبت کړه          کهٔ هرڅوئے قوت دار
مکرر صحبت بلا دے          ستا به وباسی دمار
سرِیتوب بویه په کار کښے          عادت مهٔ کړه دَ حمار
دغه ځائے لکه کوهے دے          پکښے مهٔ شه نګونسار
کهٔ شهوت په امساک بند کړے          په سوزاک به شے بیمار
تل شودهٔ پیۀ دَ بزو خوره          یا دَغوا ښخبه په بهار
ورسره میده لونګ کړه          له شودو پیو شه ځار
مهٔ معجون خوره مهٔ څهٔ نورڅهٔ          دَځان مهٔ غواړه آزار
تل شرید خوره دَ ښو پسونو          ورسره څهٔ خو اَچار
دو پیازه دَ چرګو هم خوره
نور به څهٔ وائیم بسیار

# صرف اصیل ښځه اصیل اولاد راوړی

هر سړے چه لیونے کا خپل ذکر … په هر ځائے کښې ئے منډی خاورے په سر
د صحبت په کار کښې ډیر فکر بائیده دے … له صحبته پیدا کیږی خیر و شر
چه سیپئ د دریاب نه وی اصیله … کله ښه ترے پیدا کیږی دُر گوهر
په دا کار په توره ږیره خبر نه ؤم … دا یم اوس په سپینه ږیره شوم خبر
ښځه کښې ښائسته پاکیزه بویه … چه ئے پلار نیکه له ځایه معتبر
شرمناکه پرده پوښه دلاوره … آراسته په عقل وهوش په ښه هُنر
نه وهمی نه وسواسی نه بدمعاشه … نه ئے مینه په دُنیا نه زر زیور
که دا هسے محبوبه په لاس کښیوزی … له وجوده ئے پیدا شی ښه پسر
چه ئے مور و پلار تفچاق وی خدائے دِ نه کا … چه بها نرخ ئے پیدا شی لکه خر
ترمیرمنے وینځه ښه ده په ښه خوئ کښې … نه میرمن چه نه ئے خوئ وی نه بشر
آدم زاد په اصل واړه آدم زاد دی … ښه هغه چه ښه ئے خوئ لکه سره زر
طالعمن قابل پو خویه د پلار بس دے … نه نابود خویه په کور کښې جوړ لښکر
چه حیا شرم لری فرزند هغه دے … د فرزند خو دِ ربښتیا غواړی پدر
چه ئے شرم حیا نه وی نه راست گو وی … پلار دِ کاله هغه خویه نه حذر
چه نیک خواه د بابا نه وی هغه خویه … گوره دے د ځه بلا لری اثر
خپل وجود د خپل وجود په بدئ نه وی … بل وجود د بل وجود غواړی ضرر
که د خپل خویه په سود پلار ښه کیږی … ښه فرزند به څنې نه ساتی خپل سر
ابراهیمؑ چه اسماعیلؑ ته تیغ تیار کړ … اسماعیلؑ ابا و نه کړه په دا چر
اوس د دے زمانے خویه خویه نه دی … مار لړم زیږی که لا تر دا بتر

یا د خپل اولاد د لاسه شاه جهان زده
یا خوشحال دے په فریاد په ناره سر

# دَ نظام په وفات

ځـه دا غونـه بـږدے پـه زړۀ بانـدِ فلکـه      چـه نظام دِ لـه مـا بيل کړخوائے ډکـه

خدايه تۀ خو ستمګر نۀ ئے داځۀ کړے      خانقه دِ په دا کار کړه هکه پکه

په لحد کښے هغه مخ خورے په چينجيو      چه دَ هيچا پرے پيرزونۀ وه څوانکه

په غمونو کښے دِ ورِ په دُنيا پائے      کۀ دَ زړۀ په ارمان تۀ ومرے کودکه

کشکے څوان دَ پښتانۀ په ننګ کښے مړوے      نه چه ګور لره روان شوله تولتکه

چه دَ قام په ننګ کښے ومړ هغه خُويه      په عالم کښے دَخپل پلار غاړه کا لکه

رنګ دَ او ښکو سره ويوست خُما سترګو      نور به نۀ راشي خُما دَ مردُمکه

لاس و دست دِ سره درست درهم برهم کړې      دريغه دريغه لاس درنۀ رسي فلکه

نظام لس مياشتے بيمار زۀ په شل کړوهه      دا شل کړوهه راته لا ډير شول ترلکه

هغه وخت به بيرته نۀ راشي نظامه      چه به نۀ وتے دَخپل بابا له وَکه

کۀ حيا وه کۀ وفا وه کۀ صفا وه      ښايسته ستا په وجود وه هره يکه

اسماعيل غوندِ به دے راته تسليم وُو      کۀ په حلق مِ دَ نظام کښيښوه ګزلکه

کۀ دَ پلار په رضا څوئ دروِمی جنت ته      سکه نظام ورلره ورغے بے شکه

خدائے مِ نور ګلونه جوړلره په باغ کښے      کۀ يو ګل ورځنې پريوت له خونکه

زۀ به ولے هسے ژاړم يا به نۀ خوړم      کۀ په نۀ ژړا مِ مل شے زړۀ به ځکه

خو ژوندے په دُنيا پايم خدائے دِ نۀ کا      ستا خُهره خُما دَ زړۀ له تخته حکه

دَ نظام دَ غشي يو برابر نۀ دے      کۀ خوشحال په زړۀ خوړلې ډير ناوکه

مګر زړۀ ئے دَ هاتي وي چه زغمي ئے      دا شيتئ چه دَخوشحال په زړۀ شوه لکه

* ... * ... *

# دَ دُنیا بے ثباتي او بے وفائي

همراهانو دِ کوچ وکړ واړه لاړل تر منزلـه
تۀ لا کلک په خوب اوده ئے اے خُما دِله غافله

له نیستئ وهستئ ته، له هستئ و نیستئ ته
کاروانونه دی چلیږی، قوافـلـه قوافله

لاړم واړه ګِل ولاړ دے، تۀ په سهل تپوسور ئے
بشۀ سواران دی پکښے تللی، واوره تښته له دے ګِله

دَ دُنیا په دریاب ډوبه، دَ پایاب طمع ومۀ کړه
دا پایاب دے ډیرو غوښتے، خبر نۀ شول له ساحله

وکنارته به ونۀ وزے، له دے هسے شان دریا بـه
په ساحل ئے خبر نۀ دی، بے له اهلِ سواحله

دَ دُنیا حاصل ئے واړه، ناکامی او رنځوری ده
کۀ دَ چا پکښے حاصل شی، هم ئے مۀ ګڼړه حاصله

له قسمته به نه کم نه به څۀ زیات په ډیر کوشش کړے
هم هغه به در رسیږی چه دِ بخره ا واټله

دُنیا خو وبله آسپے چه مقصود دے په دُنیا کښے
خو یو نغن یوه شړئ، نوره واړه ده فاضله

په قضائے رضا در وړه هر چه ستا په باب ئے کړی
په هیڅ رنګ به دفع نۀ شی، په تعویذ په حمائله

خپلو لا سو خپلو پښو وته وګوره نظر وکړه
دا همه واړه دَ خدائے په، معرفت دی دلائله

همیشه وائے چه خدائے م، پیژندلے په یکی دے
کۀ دِ خدائے وُو پیژندلے، مینه مۀ کړه په باطله

بے له خدا يه راته وايه. بل يو کوم ځے چه پيدا کا
آدمی له تورو خاورو، په دا شکل وشمائله

په خوردن او په خفتن کښے له چارپائے برابر مۀ شه
دَ عمل په کاروبار کښے مۀ شه کم تر عوامله

دَ دُنيا په کاروبار کښے په خوبے حده بيدار ئے
دَ ښۀ دين په کار کښے څۀ رنګه اوده ئے سُست کاهله

په خپل حسن غره مۀ شه کۀ په حُسن لکه ګل شے
زمانه به دِ څهره په. يو څو ورځے کا زائله

په دولت کښے په حشمت کښے، کۀ سنجر شے يا طغول شے
يوه غښنه راښکاره کړه له سنجره له طغرله

دَ بدانو نه دِ هيڅوک دَ نيکئ اُميد ونۀ کا
دَ عسل خوارۀ به نۀ موے له زهرِ هلاهله

دَ هغۀ عالم خبره چه عمل په دۀ کښے نۀ وی
په مثال لکه براق دے چه جدا ځی له عامله

غه عالِم چه عمل نۀ لری په مثل لکه خر دے
باندِ څو کتابه کښلی مشقت ئے بے حاصله

چه ګفتار کردار ئے واړه موافق سره يو رنګ شی
هاله هر رنګه خبره، اثر کاندی له قائله

په زيبا ګفتار دِ هيڅ تقصير ونۀ کړے خوشحاله
کۀ کردار دِ هم زيبا وے چار به ولے وه مشکله

## په پيرئ کښے عشق بازی څۀ پکار نۀ ده

پارينه چارے چه سږ نشته خوشحاله
دا دَ سږ چارے به هم نۀ وی تر کاله

دا سږ کال چه دَ غصبځ چه غصد شی
اُميد وار اوسه له بخته له اقباله

بخت اقبال کۀ وتا درکا هسے ناوے
چه مهتاب ئے منفعل دے ترجماله

ستا به دوه کالونه وی دَ عمر
سود فائده ئے راته وایه له وصاله

دوه اویا به دِ هاله دَ زړۀ په کام ؤو
کۀ ځوانی ورسره هم وے اِتصاله

دَ پیرئ په وخت کښے هرهوس گنده دی
لا په تیره عشق بازی ده غیرِساله

دَ دلبرو مینه چا داهو مره راکړه
چه ئے هیڅکله خالی نۀ یم له خیاله

# دَ خپلے عقیدے، مشرانو او مړانے په باب کښے

دَ خدائ منت را بانِدِ چه ئے هست کړم له عدمه
بل خلقت ئے نۀ کړم راپیدا شوم له آدمهٔ

پښت په پښت راغلے مسلمان محمدیٔ یم
چار دَ چاریارانو سره واړه منم سمه

درست په دا پوهیږم چه څلور مذهبه حق دی
زۀ هم دَ حنفی مذهب دعوی لرم محکمه

مینه ئے په زړۀ کښے دَ علماؤ راکړه ډیره
مینه ئے دَ دور دَ شیخانو راکړه کمه

نۀ خراباتی نۀ قمار باز نۀ زنا کار یم
نۀ قاضی مفتی چه ئے نظر په څو دِرمه

بخره ئے دَ تیغ راکړه په اصل کښے پښتون یم
پلار په نیکۀ نۀ یم بے دولته بے حشمه

پلار م سورکفن وکورته لاړ نیکو ده واړه
ډیر خلق پرے ومر خون ئے لاړ شو ازعالمه

پلار م شهباز خان په بیرون لکه حاتم ؤو
زړۀ ئے دَ مزری په توره تیر ؤو تر رستمه

تینگ ولاړ په شرعَ تل ئے کارؤو په ربنتیا کښے
خط سواد ئے نهٔ ؤو نور دانا ؤو له فهمه

خوبه نیکهٔ ستایم یحیٰی خان جنت ئے ځائے شه
ړوغ لکه یوسف ؤو درست ترسره ترقدمه

بل سړے کهٔ سور وے دے پیاده سره برسم وو
قد قامت ئے هومره دَ مړانے چار یَڅ تمه

بل نیکهٔ خُماملک اکوچه په خټک کښے
دهٔ راوړه دا بخره دَ لویئ مقدمه

ډیرش کالونه وشول چه مِ پلار دے شهید شوے
مړکړ یوسف زیو ماهم اورکړه باندِ سَمه

نور پښتانهٔ ډیری خو یوزهٔ پکښے توره یم
واخلم ، ورکړم ، بندکړم ، پریږدم ، دوزم تر دَمه

ډیرو ولسونوغلیمی را سره وکړه
سرئے راته کوز کړ هاله خلاص شول له ماتمه

یو یوسف زیٔ دے چه په ما ئے منت بار کړ
لا په اکوزیو دَ ننګ چار دهٔ مُسلَّمَه

ځکهٔ چه دَ غدد په کال بندی دَ اورنګ زیب شوم
کوراوخیلخانه مِ پکښے ډیره وه له دَمه

خوکاله بندی کړم اورنګ زیب په هندوستاکښے
ړوغ راغلم ترکوره بیائے خلاص شوم له سِتمه

هرچه زهٔ ئے وژلم په زندان کښے هغه واړه
ومړل خوارشول ورک شول خالی نهٔ دی اَلمه

زهٔ لکه یوسفؑ له بنده خلاص شوم کامرانی کړم
پاک پاکیزه زړ ؤم اورم نهٔ کړه بهاکمه

ځوئے م اشرف خان دےچه خورشید کور پرتول دے
زهٔ چه په بند لاهم خیلخانه م شوه برهمه

خلیر بشت ځویه نور لرم یو دے یکښې چه لوئے دے
واړه برخوردار شه خدائے وساته له غمه

اوس پنځه نمسی لرم افضل د اشرف خان دے
خدائے برخوردار کړه په دهٔ ډیره لرم تمه

یو م سکه رور دے چه لار د حق نیولے
دوه رونړه م نور دی یو په نم دویم بے نمه

ځائے م ملک پور دے چه سرائے بولی وګړے
قام اولس م پروت دے ترلکئ په غرهٔ په سمه

شل زره ځوانان لرم همه له یوهٔ ذاته
واړه یکانه شا په خدمت کښے راته خمه

څهٔ شو شمشیر خان ترین که پوخ پنجهزاری دے
ماوته هیڅ نهٔ دے مکر بے اومهٔ شلغمه

ځو به د منصب په زور ځما برابری کا
څهٔ مجال د ګړے چه سیالی کا له ضیغمه

خوار شه یوسف زئ چه ترین ئے حاکمي کا
اوس که بښکار د باز کاندی هیلئ نهٔ ده کرمه

زړهٔ د شاهجهان بادشاه دننه د زړهٔ سروم
چارم اورنګ زیب په نادانئ کړه برهمه

دم وهلے نهٔ شم خوک م داد د لاسه نهٔ کا
داغ لرم په زړهٔ کښے بے طبیبه بے مرهمه

خوز ره سواره دی سرګردانه په ځو کاله
زړهٔ که په زړهٔ روغ وے چار به ولے وه درهمه

سل کاله که تیرشي دا مهم به فیصل نشي
دا رنګه چه کیږي کوره خله وشي له همه

خوچه په خوکاله شمشیرخان ترین کارکړې
مابه په خومیاشتې واړه چارکړه مستحکمه

دا مکر فریب چه دَ حیات ترین هُنر دے
کله دا د مرد دے ؟ دا دَ ښځے دے عالمه

پوهه تمیز نشته دا فلک په سترګو ړوند دے
ښځه دَ خانئ په خطاب کا مکرَّمه

دا اِنشا اِملا واړه چه دے دَ شیطانئ کا
تل بانِدِ نفرین اوری له لوحه له قلمه

حال حقیقت وایم چه هرچا وته معلوم شي
زهٔ خهٔ شاعر نهٔ یم هئ توبه له مدح، ذمه

# خپل حال

چه قانع دَ زمانے په خشک و تر یم
نهٔ مِ تخت نهٔ مِ اَفسر نهٔ مِ سپاه شته
په درون کښے مِ پراته دي ډیر ګنجونه
کهٔ مِ لاس لکه دریاب خالي لیدهٔ شي
دَ طالع په سود وزیان مِ نظر نشته
کهٔ مِ حلق له تندے وچ شي په همت کښے
لا یو شور را خخنے لاس نڼوی بل را شي
کهٔ لوئی مِ دَ آسمان سره سیالي کا
په سپین والی کهٔ مِ زړهٔ تردادے سپین دے
څوک مِ پرے مهٔ وزه دَ قهر تر کمرو

کهٔ مِ پیژنے بادشاه دَ بحرو بر یم
په تسخیر دَ درست جهان ختلے نمر یم
په معنیٰ کښے لکه کان دَ سیم و زر یم
دَ تهتر دننه ډک په دُر ګوهر یم
سرتر پایه درست وجود واړه هُنر یم
ږروا دارکله په حوض دَ کوثر یم
مګر زهٔ پیدا په ورځ دَ شور وشر یم
په پستئ تر تور وخاورو نه بتر یم
په تورزوالي دَ دوزخ دَ اور شرر یم
کهٔ په حکم په سکون لکه تورغر یم

د باطن وته م کوره که دانا ئې — په ظاهر صورت که هر څو محقر یم
د حاتم غوندې م خیل وحشم نشته — په عطا که له حاتمه برابر یم
سخاوت م په تقلید په رسم نه دے — زه له ځایه د سخي بابا پسر یم
نه دا یو عیب ځما نه ډیر هنره — چه بهرام ځما پسر زه ئې پدر یم
په وګړي م خبرے د مردۍ دي — په همت کښے په هر لوړي نامَور یم
د یاقوت د ادبو غم نشته له اوره — که دا یم د زمانے په اور کښے دَر یم
خپل پردي سره ډیر حلم هم ښه نه دے — زه داهسے درمانده په درګذر یم
خوک دِ هیڅ ګمان په ما د دروغونه کا — چه په ملک کښے لیوني دي زه ئے سر یم
لا پردي راسره برګرندے وکا — زه د خپلو په سلام کله په چړ یم
خوک دِ لاف د خپلوالي راته نه کا — چه په حال د نیک وبدو ښه خبر یم

زیست روزګار به م د خلقو سره نه شي
زه خوشحال له واړه خلقه مرور یم

## د شپے او ورځے مباحثه

حجت د ورځو شپو دے ته ئے ونغوږه همدمه!
که ښه فهم پرے اوکړے زړه به خلاص کړے له اَلَمه

چه ورځ د شپے حجت کړو یو د بله ئے صفت کړو
ویل ئے منتشر شول هم له مدح هم له ذمه

شپے ووے چه اے ورځے ځما فضل تر تا زیات دے
په دا سبب چه زه یم په ازل تر تا قدمه

دوستان د خدائے طاعت او بندګي ډیره په شپه کا
د شپے سجده په قدر وي د ورځے له قیمه

موسیٰ وکوه طور ته له قومه تلل په شپه کړل
هم لوط په شپه جدا شو له بیداد او له ستمه

احمدؐ له آسمانه په شپه کړه میاشت راکوزه
معراج وته ئے تلنه هم په شپه وه له حرمه

یو ښو وخته په تاکښے دی چه مونځ دے پکښے منع
نوره درسته په طاعت په عبادت یم مکرمه

ترزرو میاشتو بهه ده په فضل و په شرف کښے
یوه شپه دَ شبقدر خبر واخله له عالمه

آسمان وته چه ګورے په ورځ یو شین ګنبت دے
په شپه چه ورته ګورے بنائسته دے تر ارمه

زهٔ شپه یم ستر پوشه عیب فاشه تهٔ ورځ ئے
راحت مومی له مانه تهٔ دکه ئے له غمه

چه ورځےؐ دَ شپے نه دا دَ مدح ویل غوبز کړهٔ
په ورځے ورته اووے چه خوله پټه کړه له ضمه

لرز وار وماته راکړه چه زهٔ هم درته ووایم
څو تهٔ هسے کډیږے په خبرو نا محکمه

روژه چه مؤمنان سرې لری واړه په ورځ ده
مجمع په عرفات باندِ په ورځ دے له اُممه

اختر دے کهٔ جمعه ده کهٔ عمره کهٔ عاشوره ده
همه واړه په ورځ دی دا له عقله له فَهَمه

په وقت دَ قیامت به دَ عالم حشر په ورځ وی
ایجاد دَ واړه وخلقو هم په ورځ وُو له عَدَمه

په ما سترګے رڼاشی دَ عالم په تا تاریکے
یادیږم په ویل کښے رڼا ورځ له توره تمه

خما خهره ګونه ده له اسلامه ستا دَ کُفر
دَ عید جامه خما ده ستا جامه ده له ماتمه

تهٔ په مثل دَ بادشاه ئے میاشت و ستوری دِ لښکر ئے
لښکر دِ تار په تار شی چه ورځ وخیژی له همه
کهٔ پټ وی په ورځ کښے هم تر میاشتے نمر تیر ئے کا
همه عالم خبرد ئے چه زر بښهٔ دی له دِرمه

چه سیر دَ ګلونو دَ ګلزار کا یا څوک ښکار کا
هغو ته په قطعَ نهٔ ده شپه له ورځے سَمه
په ماکښے فریضه نمونځ نه ډیر په تاکښے لږ دی
په تاکښے څکه کم شو چه تهٔ ئے له ما نه کمه

# دَ خپلو ګناهونو نه توبه ګار او دَ خپلے عقیدے اقرار

زهٔ په خپلو ګناهونو توبه ګار یم
په دا سپینه ږیره ما فضیحت مکړه
اوس وماته توان توفیق دَ طاعت راکړه
ستا له لوریه همګی فضل و کرم دے
نور عالم م په کردار خبردار نهٔ دے
په عمل به هسے کبر و جهود نهٔ وی
هندو هم په نیمه شپه پاڅی خپل جپ کا
زهٔ په سلو فتنو لاړ په سجده سر ږدم
نهٔ ثواب دَ جماعت نه سود دَ نفل
کهٔ حلال وی کهٔ حرام مزه ئے بو یه
خلقے خما په فعل ګور ته لاړے
نفس وماته حق ناحق کا ناحق حق کا
راکښے خوئی خصلت دَ دوه اویا فرقودے

چه م کړی دی په واړو شرمسار یم
کهٔ په توره ږیره هر څو بزه ګار یم
ستا و فضل او کرم ته اُمید وار یم
زهٔ دَ خپلو شامتونو نه په ډار یم
زهٔ پخپله خبردار په خپل کردار یم
لکه زهٔ په خپل عمل کښے خوار و زار یم
تر هندو نه دَ عمل په کار لا خوار یم
همګی عمر دا هسے مونځ ګذار یم
دَ قضا نمونځونو هم لا تاوان دار یم
په مزه دَ لُقمے کله پروادار یم
لا دَ نورو و وژو ته په تلوار یم
تل دَ دهٔ په فرموده پورے ناچار یم
په ظاهر دَ مومنانو په قطار یم

د هوا په دریابونو کښې غوټې خور یم
د حرص په حصارونو کښې حصار یم

که په رسم په تقلید مسلماني شي
سنځ څما مسلمانانو سره شمار یم

نفس شیطان راته په هره ساه په خودي
تر وستني ساهې زه څنې په دار یم

حمیده یم لکه زر ذمیمه شکې
تورې خاورې یم په سر دي که زردار یم

اعتقاد دې د خاصانو وما راکړ
که زه هر څو په عمل کښې خوار و زار یم

د کونینو پیدا کړونی لاشریک دې
په دا هومره اعتقاد کښې استوار یم

که فرشتې که کتابونه د آسمان دي
په همه پیغمبرانو په اقرار یم

د قیامت په ورځ قایل یم بې ګمانه
نیک و بد واړه له تا دي خبردار یم

پس له مرګه به ژوندون د خلایق دي
په دا واړو کښې له شرکه نه ویزار یم

پیغامبر یم محمدؐ د عبدالله دې
مینه دار یم په اصحاب په چهار یار یم

امامان یې د اولاد واړه برحق دي
تر مهدیؑ پورې د واړو خدمتګار یم

چه د ښځه یې د اولادؓ او د اصحابؓ دي
په وکښنه یې د بیخ او د تبار یم

د مذهب څښتن څلور دي پنځه نه دي
حنفي سني مذهب د دین په کار یم

د عذاب طاقت یم هیڅ نشته بخښنه یم
و درګاه لره یې د رغلم طیار یم

چه هم ډک له ګناهونو هم مغرور وي
نه خوشحال هغه بنده د خپل غفار یم

# د بهار ننداره
# او د خپلې خودداری اظهار

د نوروز منت په باغ دې په صحرا هم
نوراني یې شي له فیضه هغه، دا هم

چه په باغ کښې رنګارنګ ګلونه واشي
غنیمت ده د ګلونو تماشا هم

لخلخې د نوبهار په هر مشام ځي
ګلدستې یې خندوي پیر و برنا هم

د ګلونو هار په غاړه د دلبرو
شرموي لعل و یاقوت لولو لالا هم

د معشوقو په زلفینو کښې ځای دوکا
بنا نشته ګلونه پاس په ورېل لا هم

اَرغوان کهٔ بنفشه کهٔ شقائق دی — زیبائی لری یوځائے جدا جدا هم

په هرګل باندِ تهتر مـرزی بلبلے — بیاله شوقه په هوا کاندی نوا هم

دَ هرګل په مخ چه سرکښیږ دی بلبله — پرے غلطان غلطان راځی بادِصبا هم

په ګلزار پسے بلبله دل کباب ده — په ارمان ئے ځګرخون دے دَ مینا هم

ځوک په عیش په عشرت کښے ځوک په غم کښے — ځنے څهٔ چارے لیدهٔ شی په دُنیا هم

دَ قفس بلبله ژاړی ګریانی کا — چه به چیرے په ګلګشت والوزو بیا هم

په هغو څما سلام ماتهِ هم یاد کا — په ګلزار کښے چه نګار لری صهبا هم

ځوبهاره م بے میو معشوقـه ځی — داخود راتهٔ فلک څهٔ چارے کا په ما هم

ماوے زربه ځرخ څما په کام راوخوری — ولے ډیر تعطیل ئے وکړ لائے کا هم

چه وخیلے کامرانئ ته م شا کړه — غم اندوه دَ فلک نهٔ لرم پروا هم

دَ سفله منت به هیڅ دانا وانخلی — چه خبرئ په خصلت شی په عطا هم

دَ منت دارو کهٔ مرم پکار م نهٔ دی — کهٔ علاج لره م راشی مسیحا هم

دَ فرښتو آمین منت دے په دُعا کښے — لاجرم ورځنے پته کړم دُعا هم

دَ جهان غمونه واړه پکښے ځائے شول — شکر دا چه زړهٔ ئے لوئے راکړو وما هم

چه لیدلے دِ وفا دَ هغه یار وی — په دوه سترګو قبلوه دَ دهٔ جفا هم

ښاپیرئ مخ په خوب کښے رابښکاره کړ — لیونتوب م ورسره موندهٔ سودا هم

کهٔ خوشحال دَ یاروصال په دُنیا مومی
تمامی دُنیا ترے ځار شه مافیها هم

# ژمی ته هرکلے

چه تحویل شی دَ میزان — توغ خزګند کا زمستان

توغ ئے څهٔ دَ سهیل ستورے — چه ښکاره شی په آسمان

دَ غارمهٔ په رنځ رنځور وی — بیا تندرست شی دا جهان

دَ خوړو لذت پیدا شی — اُبه ولګی په ځان

غیږ په غیږ سره نماستے
لب په لب شی مشتاقان

دَ جامے قدر خرگند شی
زین قبول کا عراقیان

نۀ په زغره ځوان خبروی
نۀ آس دروند په ترکستان

چه دَ ښکار هوس ناکی کا
پرے ښادی شی دَ اَوان

دَ شمال مرغونه واړه
په جنوب شی سراروان

نوی باز راشی له سواته
لکه ښۀ سیلی جوګیان

دَ سپوږمۍ په شغله یون کا
ژغ کا زاڼرے په آسمان

قاز او بطے زاسورے شی
هم هیلۍ صد چندان

زرگے کوزے شی وَشم ته
په دانه دَ دهقانان

تغدری لکه دړونی
ځان خرگند کا په میدان

کۀ شاهین کۀ خرخ کۀ بازوی
راځۀ واخلی میر ښکاران

دَ صدبرگ گلونه واشی
په رنګ ښۀ وی تر زعفران

خوک دَ ښکار په هوس گرځی
خوک په سیل دَ بوستان

عباسی په دوه درے رنګه
سپین او زیړ وی ارغوان

دَ چنبے دَ گلو بوئ ځی
دَ هر بوټی تر گریوان

دَ سبزے ئے تماشا شی
لا په تیره دَ ریحان

په تنکی تنکی ښاخونه
هره ونه شی شان شان

کۀ بلبلے کۀ طوطیان دی
لور په لور کاندی فغان

ددے هسے وخت هوا به
مکر موړے په جنان

کۀ رښتیا وایم دا وخت دم
په پسرلی لری زړۀ جهان

ددے وخت په مخ خلاصے وی
دَ پسرلی په مخ زندان

په خوشحال دِ قدر ډیر دے
یمانی ستوریه جان جان

چه دیدن دِ ورښکاره شی
نور په دۀ کړے خط پریوان

# دَ استاذ دَ خولے پندونه

خپل استاد وماته دوه څو پندونه — هر یو پند ئے مرغلرے دی لالونه
وئے هره بدی کړه هغه بد مهٔ کړه — چه له لاسه دِ آزار شی دَ چا زړونه
کهٔ دِ زړهٔ دے چه بد نهٔ موے له چانه — اول تهٔ پرېږده دَ بدو خصلتونه
دَ شهوت په نغوته مهٔ ځه شهوت اور دے — په دا اور دَ ډیرو سوی دی کورونه
تهٔ کینه زخه حسد له هیڅ مهٔ کړه — دَ ازل په ورځ مقسوم دی قسمتونه
دَ هرچا سره دَ ښو سلوک بایدهٔ دے — په بدئ کښے څهٔ فائده ده څهٔ سودونه
دَ دُنیا په مال دَ نیکو نوم حاصل کړه — ټول جهان وچاته نهٔ پرېږدی سودونه
دَ هرچا سره نرمی ملائمت کړه — گُندِ وی چه په داخپل کړے دَ چا زړونه
خپل پردی ته دَ زړهٔ راز خبرے مکړه — دَ بُغچے دننه ښهٔ دی خپل رختونه
خوش خوئی هرگوره ښه ده نهٔ داهومره — چه په باغ کښے دِ خرتیزے وهی خرونه
هغه کار چه په نرمی ترسره کیږی — څهٔ حاجت چه رساوهٔ شی ترجنگونه
وهغو ته کهٔ قهر کړے روا دے — چه لری دَ بدو فعل بد خویونه
دُ هغو په مرگ ثواب گڼلے بویه — چه ئے سیزی له شومته غاړے غړونه
کهٔ دشمن دِ ډیر زبون ته څخےدار کړه — په یوهٔ بخړی و سوزی ښهرونه
دَ دشمن په تملق غلطی مهٔ کړه — دَ رُستم غوندِ هم مړهٔ دی په مکرونه
عاقبت به خپل ورغوے په غابش پرے کا — هرچه کار کا دَ دشمن په درمونه
چه دِ لاس په دشمن برشی پرینږده — عاقلان به ژوندی نهٔ پرېږدی مارونه
کهٔ پخپله دَ خپل خان په بدئ نهٔ ئے — دَ مارونو په غار مهٔ منډه لاسونه
په خپلوانو باندِ دومره خشم مهٔ کړه — چه پردی درځنے تښتی په ملکونه
دَ بادشاه په مهر مینه غره مهٔ شه — زورور په لږ گناه وهی سرونه
بادشاهان چه په چا مخ کا دَ بدئ — وسیندونه ته ترل نهٔ شی بندونه
په هغے معشوقے څهٔ باور دَ کړو دے — چه په هرلوری یاران لری زرگونه

همیشه اوسه خولهٔ پټه لکه ناوے
چه ضرور شی هاله وکړه دوه حرفونه

ترهغهٔ به نامعقول په جهان ځوک وی
چه همیش په خندا سپین لری غاښونه

کهٔ خبره کهٔ خندا کړے ځکی ځکی
هره چار ترحساب مهٔ کوه بیرونه

کهٔ دِ زړهٔ دے چه دِ عیب ښکاره نشی
چا ته مهٔ شماره دَ خلقو پټ عیبونه

کهٔ ترتانه په قوت دَ مټو زیات وی
دَ هغهٔ سره حجت مهٔ کړه بحثونه

چه توانیږے دَ هغ خبرے لاف کړه
اوکهٔ نهٔ په دروغ مهٔ وهه لافونه

په دښمنو کښے چه دَ جنګو خرخشے وی
تهٔ بے غمه خپل هوس کړه خپل کارونه

کهٔ دِ واؤریدل چه بیا وبله دروغ شول
نور په خپله وسله ووهه لاسونه

چه دَ ښځو نه بتر دے هغه ځوک دے
چه دَ ښځو سره کا مصلحتونه

په جهان کښے چه پرے ننګ ونام کا ټهٔ شی
کهٔ پوهیږے خاربهٔ مړ و نړ ګی آسونه

خدائے هغه په دواړو کونه دی نمنځلی
چه په ورځ ئے عدل وداد په شپه مونځونه

چه په زړهٔ په تامئین دَ هغو ناز وړه
تل نیازمنو سره وړی دی نیازونه

دَ اصیل ښیوه خپل اصل نه لباس دے
په زربانو کښے بیا ډم وی یا مریونه

# دَ دهلی دَ ښار مختصر تاریخ او بیان

دَ دهلی دَ ښهر ښهٔ شان وشوکت ؤو
لور په لورئے کښلے کښلے عمارت ؤو

ښائسته ئے بازارونه ؤو دَ ښهر
مهیّائے په بازار کښے هر نعمت ؤو

دَ شاهٔ نهر فوارے دی په هر کور کښے
دَ بازار به ئے څهٔ کم بیګه وسعت ؤو

په دهلی باندِ ګواهی دَ جنت وله
کهٔ راغلے په دُنیا چیرے جنت ؤو

دَ بادشاه دَ خاص وعام به څهٔ تعریف کړم
وخوابګاه وته ئے عقل به حیرت ؤو

چه بهٔ جوړ دَ شاهجهان بادشاه دربار شو
په دربار کښے به ئے دوه او یا ملت ؤو

کهٔ هوائے دَ عراق دَ خراسان وے
دَ جنت به د دهلی سره غیرت ؤو

دا زینت چه شاهجهان و دهلی ورکړ
بل بادشاه کله ورکړے دا زینت ؤو

دَ دهلی بنا دَچا په لاس ده شوے
همګی به نوم په نوم درته بیان کړم
دَ دهلی بنا اول اوکړه خو هانړو
دَ اسلام بادشاه اول معزالدین ؤو
چه دهلے ئے رانیوه له پتهو ړا یه
چه ئے سر دَ پتهورا پریکړ له تنه
بیا له پسه قطب الدین دَ ده مرئیے ؤو
بیا له پسه شمس الدین دَ ده پالک ؤو
بیا له پسه فیروز شاه دَ شمس الدین ؤو
بیا له پسه رضی لور دَ شمس الدین وه
بیا له پسه معزالدین دَ شمس الدین ؤو
بیا له پسه ناصرالدین دَ شمس الدین ؤو
بیا سلطان معزالدین کیقباد ؤو
بیا سلطان جلال الدین په سریر کښیناست
بیا نمسے دَ فیروز شاه علاوالدین ؤو
بیا له پسه قطب الدین دَ علائی ؤو
بیا له پسه تغلق شاه چه اُمراء ؤو
بیا سلطان محمد شاه دَ تغلق شاه ؤو
بیا له پسه فیروز شاه چه دَ ده تره ؤو
بیا سلطان محمد شاه دَ فیروز شاه ؤو
بیا سلطان غیاث الدین دَ فیروز شاه ؤو
بیا له پسه آبابکر په تخت کښیناست
بیا له پسه سکندر شاه دَ محمد شاه ؤو
بیائے رور ناصرالدین په سریر کښیناست
بیا له پسه چه تیمور په هند راکښیوت

په نوبت نوبت دَچا پړے سلطنت ؤو
چه دهریوډ ځه خوئی ځه خاصیت ؤو
پړے دَ دیو تیر خو کاله سلطنت ؤو
چه یو کال ئے په دهلی کښے اقامت ؤو
په دا کار کښے ئے ډیر کړے مشقت ؤو
شپږ سو دولس کاله کم سن دَ هجرت ؤو
چه پریښے ئے په هند په نیابت ؤو
چه په خلقو ئے آواز دَ عدالت ؤو
چه په هند کښے بے نظیر په سخاوت ؤو
چه راضی ځنے سپاه او رعیت ؤو
چه هر کوره دَ غلیم ځنے هیبت ؤو
چه مشهور په عدالت په عبادت ؤو
ورځخه چه هم صورت او هم سیرت ؤو
چه په اصل کښے غلجے دَ ولایت ؤو
چه په خلق او په کرم دَ ده شهرت ؤو
چه همیش ئے مخ په عیش او په عشرت ؤو
پرورش ئے دَ غلجیو په دولت ؤو
چه دَ ده په عصر خلق فراغت ؤو
چه په هند دَ ده دَ چارے خاتمت ؤو
چه دَ پلار په زندګئی ئے سلطنت ؤو
چه بیولے ئے له ړوره مملکت ؤو
چه دے هم دَ فیروز شاه له ذُریت ؤو
چه په تخت ئے یوه نیمه میاشت مهلت ؤو
چه په ده دَ ښو خوانانو ډیر قیمت ؤو
خضر خان ته ئے ورکړے سلطنت ؤو

بیا سلطان مبارک شاه د خضرخان ؤو — چه ښکاره ئے له جبینه سیادت ؤو
بیا سلطان محمد شاه د دهٔ ورارهٔ ؤو — چه پښتون د دهٔ په عهد په عزت ؤو
بیا سلطان علاوالدین ؤو د دهٔ ځویه — چه اکثر ئے د نساء سره صحبت ؤو
بیا بهلول لودین بادشاه شو د دهلی — چه په تخت ئے نهه ویشت کاله سکونت ؤو
بیا له پسه د بهلول ځوئے سکندر ؤو — چه عمل ئے موافق په شریعت ؤو
بیا له پسه ابراهیم ؤو د دهٔ ځویه — چه بابر سره ئے جنګ په پانی پت ؤو
بیا له پسه د دهلی بادشاه بابر شو — چه ئے کار د پښتانهٔ په برکت ؤو
بیا له پسه د بابر ځوئے همایون ؤو — چه بے حده ئے لښکر ډیرئے دولت ؤو
بیا له پسه شاه عالم د حسن سور ؤو — چه همایون د دهٔ د لاسه هزیمت ؤو
بیا له پسه اسلام شاه د شاه عالم ؤو — چه له پلاره نه هم زیات د دهٔ جرأت ؤو
بیا له پسه عادل شاه د دهٔ تربور ؤو — چه پښتون د دهٔ په دور فضیحت ؤو
بیا له پسه د همایون ځویه اکبر شو — چه وهرلوری ته مل د دهٔ نصرت ؤو
بیا له پسه جهانګیر د اکبر ځویه — چه د دهٔ په دور هند لکه جنت ؤو
اوس بادشاه شاهِ جهان د جهانګیر دے — چه په بلخ په بدخشان د دهٔ نوبت ؤو
زهٔ خوشحال چه دا شمار کړم شاعرنهٔ یم — په دا کار م آزمیلے طبیعت ؤو
که م شعر شاعری خوکندؤلے — مابه کړے ډیر د خیل بادشاه صفت ؤو
چه د هند سیر م وکړ اوس م ووے — ګنړه دا تاریخ لا رغهٔ ځما په نیت ؤو
که د دے ویلو کال غواړے له مانه — په حساب کښے دا وره کال د قرشت ؤو

ابتدا د دے بیان په نماز پښین وه
د ماښام په وخت ئے شوے نهایت ؤو

# لنډئ بازنامه

که هوس د باز د ښکار لرے پسره — خبر دار شه له عیبه له هنره
ځو د باز وزرې مهین باریک دی — درونده په وزن هومره چارئے ده بهتره

. رنګ ترکیب و ته ئې مهٔ غروره سترګې
دَ هر باز چه سترګې سرې وی ژبه توره
څو ډیرا وږد غاړه اوږده اوږې هم پلنې
ترسپین باز نه قدر ډیر دَ ښین باز دې
سپینه ژبه په شاتور اوږې بار یکې
دَ میزان نیولې بنهٔ دے یا دَ قوس
خپله مینه ئې په دام په جال بندی کا
میزانی نیولې دم درحال ښکار ه کړه
په درست ژمی ئې ساته په تاوده ځائې کښې
دَ بازونو هُنر هسې آسان نهٔ دے
نوے باز چه اول بنهٔ په چرګ تیار شی
چه یو خو باؤلی وخوری ستا له لاسه
چه ښکه ئې سیر کړه څلوېښت لاسه
نوے باز دِ دَ صبا په وخت الوزی
خوئ خصلت دَ ښودَ بد وخهٔ پکښې دے
هر یو باز کو ښې خپل خوئ لری خپل فعل
چوز هالهٔ صاف کړے بویه چه فربه وی
دَ صافئ داوهٔ حبه نبات دی
کهٔ سره نبات دِ ورکړ عیب نشته
چه دَ باز په هر علت زحمت خبر شی
باز چه ترګُریز وباسی میرشکار دے
باز چه دوزی له کریزه هالهٔ پوخ شی
دَ چا باز دِ په دارو آموخته نهٔ شی
سیه چشم لره ډیره پهره بویه
لږ خوراک دَ باز صحت ډیرئې زحمت دے

چه څهٔ لوئې وی هغه باز نیسه په غوره
هغه نهٔ وی بې مړانې بې سیره
دَ ترکیب وینائې دا ده مختصره
چه دَ پا سه شائې شنه سینه احمره
خورند لم لکیور ګران دے په کا څُره
په عقرب نیولې نهٔ وی بې ضرره
کهٔ دَ باز په ځان بلا شوله کوتره
دَ عقرب نیولې پرانزه په ویره
تماغه ئې په بهار واخله له سره
چه ئې طمع سرې کاله یوهٔ هره
بیا باولی ورلره بویه هنر وره
بیائې ښکار لره روان کړه برادره
نور به ښکار ته غاړه کښیږدی برابره
یا چه پا توشی پنځه کړئې له نمره
همګی دَ باز ښکار یږی له بصره
خبردار ئې شه له اصله له جوهره
دَ صافئ تکلیف واخله له لاغره
تریوهٔ دِ مالګه نهٔ وی افزون تره
دا هالهٔ کهٔ ئې پیدا کړه لره بره
میرشکاری دَ هغه کس ده معتبره
کنه وارهٔ دَ دهٔ چارګنړه ابتره
په چوزئ کښې اومه خښته ده نیمتره
دست کشی ورته بس ده هُنر وره
کلال چشم لره بس ده دوه دوه پهره
یک خوره طعمه ئې نهٔ ده بې خطره

دارچینی دَ پرمهرے سره لازم دی ۔۔۔ دَ سپیږ مو نسوارئے یوسی رنځ له سره
دَ ساړهٔ داروئے مښک او مومیائیٔ دی ۔۔۔ هم دیږے ترېځے باز ساتی بے ضره
کهٔ دارو دَ خوشخوئی خوری په ژمی ۔۔۔ دَ بد باز به بدخوئی ووځی له سره
دَ اغیږ داروئے دا دی نورځهٔ نهٔ دی ۔۔۔ چه یو دوه ورځے ئے منع کړے له خوره
کهٔ تازه طمع ئے رد کړه په داخهٔ شی ۔۔۔ چه دَ کیږے طعمه وجار باسی ویره
په ساړهٔ ژمی دَ باد دپاره ورکړه ۔۔۔ دَ کوکری طعمه درے ورځے مکرره
دَ حلوان غوښے دِ خوری دَ وړے چړے ۔۔۔ دَ تارو تمځری یا دَ کور کوتره
چه دَ زړکے غوښه تل خوری کوریزنهٔ کا ۔۔۔ مرغاویٔ ده وکُریز وته بهتره
په ساړهٔ دِ چکس نغښتے په نمد وی ۔۔۔ چه فارغ وی دَ ساړهٔ له هره شره
باز چه موړ په چکس واچوے له ورایه ۔۔۔ په دا کار به پاتو نهٔ شی بے ضرره
ډک تغار دَ اوبو تل کیږده وباز ته ۔۔۔ په ساړهٔ غارمهٔ داچار کړه مقرره
دَ مژکوری غوښے ښے دی په کوریز کښے ۔۔۔ یا هالهٔ چه باز با ښه شی کلنجره
چه په شپه په ورځ فریاد په هرساعت کا ۔۔۔ دَ هغهٔ علاج خربښت دے له لاغره
هغه باز به دَ باښے نه لا تیز پر وی ۔۔۔ چه مهین دَ تکئیٔ بال نری شهپره
هغه باز چه ساړی نهٔ نیسی ناقص دے ۔۔۔ کهٔ هیلئیٔ یا سرخاب نیسی بے مره
کهٔ دَ ژمی په وخت ښے نیسی بنهیرے ۔۔۔ تر باښے نه هغه باز کَنړه تیز پره
تری ناک بُزم تولک ترځوز کم نهٔ دی ۔۔۔ په وهنه ترچوز لا دی افزون تره
دَ شاهین په ښکار به کاندی هغه ښه ۔۔۔ چه ساتی په هر شاهین پنځهٔ نفره
دَ مرغونو زمرے چرغ دے کهٔ ئے کوے ۔۔۔ خومیرشکار ورلره ښهٔ بویه پسره

کهٔ دَ باز مینه په ښه جُره ماتیږی
ولے ښه باښه ترے لا کنړه بهتره

## پاکه ربه تا ته سوال دے

خدایه تهٔ خپا بږده مهٔ کړه پیاره ۔۔۔ بدیم مهٔ کړه وعالم وته ښکاره
هغه لار چه دَ نیکئ دَ نیکنا مئ ده ۔۔۔ په هغه لاره م بیا یه هموار ه

چه دَ دین دَ دُنیا نیے چارے پکښے دی
همیشه م په هغه چارو کماره

په دُنیا کښے م همیش لره زړهٔ جمع
پریشانی دِ ځنې اوسی کناره

نفس شیطان دواړه قرین دی په شماره کښے
رابنکاره لره دَ دواړو مکاره

مالره په مُلهمه په لوّامه کښے
ته م وژغوره له نفس اَمّاره

کهٔ هر څو م لوے گناه له لاسه وشی
په توبه سره ئے تهٔ کړه آواره

په توبه کښے هسے رنگه ثبات راکړه
چه توبه م ماته نهٔ شی دوباره

کبیره راته گنده غوښے دَخوک کړه
صغیره کړه راته غوښے دَ فاره

ذمیمه م وار په وار له دِله واخله
چه په زړهٔ کښے ضمیمه کې خونخواره

دَ بد بخته ستاره م اَمان اوکړه
رامسره لره نیک بخته ستاره

توان توفیق دَ عبادت دَ طاعت راکړه
زهٔ خاکی بنده عاجز یم بے چاره

په حساب کتاب م رنگ دَ خلاصی نشته
ما یک لخته خپل کرم ته وسپاره

چه اروا م له قالبه نه جدا شی
نور م بیا یه دَ جنت په ننداره

چه کراماً کاتبین راځخه خوښ ځی
هسے رنگ م گورستان ته وسپاره

مخ م سور لره همیش په استغنا کښے
په طمع م زیړه مهٔ کړه رخساره

تر ایمان چه م چا پیر دَ یقین کوټ دے
سلامت ئے وساته برج وباره

په دُنیا کښے م عزیز لره تر تلو
آل اولاد م بیدا مهٔ کړه هیڅ کاره

وخت آخر شو غافل مهٔ اوسه خوشحاله
یو څو ورځے شپے باقی دی په شماره

## په دُنیا پورے زړهٔ مهٔ تړه

عاقلان چه په دُنیا نهٔ کا وتنه
دَ یقین په سترګو وینی ترِ وتنه

په دُنیا وتنه دانهٔ ده هوښیاره
چه دَ هیڅ په دُنیا مال نهٔ دی وتنه

دَ دُنیا مالونه واړه سره آسپه
دَ دُنیا په مال دَ زړهٔ نهٔ وی ترنه

دَ سلیمانؑ غوندِ ئے پاسه په سر کښیږده
نهٔ قارون غوندِ ئے بِرده دَ زړهٔ دننه

زیست روزګار دَ چارپایانو غوندِ وکړه
په روزګار دَ هر یوهٔ وکړه پوښتنه

ابا بکرؓ ځخه هیڅ نهٔ وُو بادشاه وُو
کهٔ عمرؓ دَ خزانو وُو په ساتنه

دَ عثمانؓ تونګري غنا ځائ وه ‌‌‌‌ دَ عليؓ به خرڅيده واړه ګټنه

ډېر اصحابؓ دَ پيغمبرؐ غني مالدار وُو ‌‌‌‌ آمّا هيڅ ئے په دُنيا نهٔ وه وتنه

مؤمنان دِ پيروي کا دَ اصحابوؓ ‌‌‌‌ دَ اصحابو وه دَ شرعے په لار تلنه

په هر کار کښې چه بې شرعې سړے پل بږدي ‌‌‌‌ هغه پل به ئے سر يږي په بوښتنه

شريعت وائي چه بڼهٔ خوره بڼهٔ اغونده ‌‌‌‌ په حلال او په حرام کوه پوښتنه

چه دَ چا په باغ کښې کړ شے فهم اوکړه ‌‌‌‌ ناروا نظر ئے مهٔ وکړه په ونه

ښے محبوبے لوبوه په پالنګ خوب کړه ‌‌‌‌ ناروا مهٔ کړه دَ سترګو اړونه

کهٔ دَ تخت دپاسه کښېنې مُبارک شه ‌‌‌‌ خو ثابت په شريعت اوسه مئينه

سل خونونه په فتوىٰ په روايت کړه ‌‌‌‌ خو له شرعے نه بيرون مهٔ شړمومنه

دَ باغوان په اذن ټولے ونے ستا دي ‌‌‌‌ چه ناروا نهٔ وي نظر مکړه په وُنه

کهٔ دِ چيرے ناروا له لاسه وشي ‌‌‌‌ په توبه وکړه وحق ته جاړوتنه

څوک به هسې پاک معصوم لکه فرښته شي ‌‌‌‌ دَ سړي جامه کهٔ سپينه کهٔ ريمنه

دَ توبې صابون به هيڅ باندِ برے نږدي ‌‌‌‌ کهٔ دَ ځان جامه دِ هر څو وي خيرنه

په هر کار کښې هسې کار کړه جګي جګي ‌‌‌‌ چه څوک نهٔ وائي وتا ته دروغژنه

دَ سړي خو اعتقاد او ترس دَ خدائے دے ‌‌‌‌ يا چه هر زمان دَ مرګ کا يادونه

چه دا درے توکي لري اتکلم نهٔ شي ‌‌‌‌ چه به خدائےتعالیٰ رسولؐ راضي وي لږ دهٔ نه

دانايان به غافل نهٔ اوسي له مرګه ‌‌‌‌ دَ مرګي دَ فوځ ناځاپه دهٔ وهنه

مرګ به تا پسې دائم هسې طلب کا ‌‌‌‌ لکه څوک دَ ورک کالي کاندي مرستنه

کهٔ دَ اوسپنو په کوټ کښې ځان خوندي کړے ‌‌‌‌ عزرائيلؑ به دِ خبر واخلي دننه

زيات وکم به دِ يو دم دَ ژوندون نهٔ وي ‌‌‌‌ هغه دم چه دِ پوره شي دَ مرګ ژمنه

بار تړه تکل په تلو کوه خوشحاله ‌‌‌‌ همرهانو دِ غوغا وکړه په لښنه

لرے ملک وته سفر دے فکر وکړه ‌‌‌‌ بيا په بيا رته دَ چا مهٔ ګڼړه راتلنه

چه سفر بے توښے کا ارمان به يوسي
ګورستان لره له دے ځايه دهٔ وړنه

# خپل یار ته

یارم ذوق د تماشې کا له اغیاره
د خاطر طمع م هسې رنګه نه وه
چه یک لخته م وباسي له خاطره
مګر خون ځما په شرع کښې روا شو
زه حیران وم په دا کار نه پوهیدلم
هو دا یو ګناه لرم زه ګناهګار یم
که دا ستا مینه ګناه زه ګناهګار یم
ګنړه بل ګناه زه نه وینم په ځان کښې
زه سنګار د صورت وکړم په امید شم
ته پیره په ما ونکړې دلداره شم
لکه بند بلبله تا زخوړم په قفس کښې
په وګړي ځما ستا مینه ښکاره ده
دا چه اوس په ما جفا جور همیش کړې
د وګړي د پیغوره به م خلاص کړې
که ته وګورې دا شرط د مینې نه دې
د لیلی او د مجنون مینه په یاد کړه
چه فصاد د په لیلی نشترګذار کړ
په معنی کښې سره دوه تنه یو تن کا
معشوقې م و عاشق وته ویل کړه

زه فریاد ناري وهم چه یاره یاره
چه به هسې رنګه ظلم کا یکباره
فراغت به شي ځما د زړه له زاره
چه جلاد م ویرد نه کا له آزاره
چه ګناه م ثابت نه زه ګناهګاره
چه په تا باندې خاوند کړم مینه داره
که دا ستا مینه بدکاره ده زه بدکاره
نور ستم را باندې مه کړه ستمګاره
چه به ته په ما پیره راوړې دلداره
و شرمیږم د همه خپله سنګاره
چه جدا یم ستا د وصل له بهاره
چه مئین دې په فلانئ فلانه بې شماره
تر وګړي پورې زه یم شرمساره
که له خپله وصله ما کړې دلقراره
چه په مینه کښې ته روغ زه بیماره
مګر نه ده دا خبره د اظهاره
د مجنون د رګه تله د وینو داره
محبت هسې اثر لري اې یاره
دا د دوی له حاله وشول خوګفتاره

ما خوشحال خټه دا اشعار ویلي نه دي
یوا سرار م هویدا کړه له اشعاره

# نصیحت

مخ دَ هغو تور شه چه ئے مینے نفسانی دی
یوه مینه باقی ده نورے کل مینے فانی دی

نَس یو کوټه سپے دے نور ځۀ نۀ کاندی خو غواړی
هرچه ورکول کا هغه خیر په سګبانی دی

مۀ کړه دَ نس نغوته دَ هوئ په لوری مۀ ځه
واړه دَ نس چارے شیطانی نه رحمانی دی

زړۀ په چا بنۀ مۀ کړه کۀ دِ ځویه کۀ دِ رونړه
ملۀ دَ تنګسے نشته هیڅوک واړه ځان ځانی دی

رنګ دَ دُنیا وړک شه څو ډیر جمع کړے مالونه
هومره ډیر پریشان شے جمع نۀ دی پریشانی دی

غم دَ هغو نشته چه هیڅ نۀ لری په کور کښے
غم کاندی هغه چه دَ دُنیا په ودانی دی

مانۀ دی ویلی له کتابه دی ختلی
غوږ دِ باسی خلق دا خبرے حقانی دی

کړ دَ بدو مۀ کړه بدکاران دَ بدو کړ کا
هرچه نیکوکار دی دَ نیکئ په دهقانی دی

هرچه نیکی وکا بیا بدی ورباندِ کاندی
کور دَ عمل روغ کا بیائے خیر په ویرانی دی

نشته هسے زړونه چه اخلاص لری په زړۀ کښے
وخت دَ آخر راغے آشنایئ زبانی دی

نۀ په چا کمیږی نۀئے کار دَ زیاتید وشته
نور بهٔ ئے نۀ کا هرچه بخرے آسمانی دی

لږ عبادت اوکړی نور شپه ګوره په غفلت خوب شي
هرچه ډیر طاعت کا شغله لا په حیرانی دی

درست تحصیل تمام کړه په داکله دانشمند ئے
حرف ورلره بس دے چه عالم ربانی دی

ګانده به په ګورکښې وي [illegible]
نن دِ سرترپایه کۀ جامے زرفشانی دی

ما قرآن منلےچه نازل دے له آسمانه
نور وته بخښلے چه خبرے یُونانی دی

وخورے خملے پاڅے نۀ دِ فکر [illegible]
تۀ څۀ سړے نۀ ئے داخوبونه حیوانی دی

مۀ اوسه بے ذکره همیشه اوسه په فکر
ذکر و فکر واړه دَ زړۀ کار دے روحانی دی

راغلم په دا عمرچه م سپین دَ سر ویښته شو
لام دَ زړۀ توری هغه هسے شیطانی دی

ډیر همزولی لاړل تورے خاورے شول په ګورکښے
لاړل کاروانونه یوځو پاتے کاروانی دی

ډیرشاهان خانان چه دعوےئے دجهان کړے
راشه کۀ ئے ګورے اوس په ګورکښے زندانی دی

روغ کړه محلونه پکښے کښینوه بنے جونه
مرګ به دِ ترے بیل کا نۀچه داجاودانی دی

پروت به ئے په خاورو ترسرلاندِ اُومرخښته
اوس کۀ دِ سرویږدی نهالئ کاشانی دی

ډیرخلق نایوه دی چه ئے ډار نۀ شی له مرګه
خاندی هوسیږی په خوخوښ په نادانی دی

ډیر مبسوط ئے وکړ دَ دُنیا په ودانئ
تش لاسونه لاړل نور ئے نا ست په ودانی دی

دا فکر ومهٔ کړه چه زهٔ خوان یم مرګ مِ نشته
ډیر تنکی ځلمی وګورته تللی په ځوانی دی
مرګ لکه یو باز دے په هوا وهی کوتره
فهم فکر وکړه چه دِ بلبنی طولانی دی

چا وته ویل کړم ترجمان نشته په مینځ کښے
زهٔ سمرقندے یم یاران وا ړه ملتانی دی
امر کړه خوشحاله پستنه اوسه له نهی
هرچه نهی کا ندی هغه زر په پښیمانی دی

# خورے ورے مرغلرے

چه په وخت ئے دَ بهار عشرت پرے دَے
په دا باغ کښے ډیر ګلونه شګفته شی
چه په کور کښے ئے جا رووزی یو خو کښلی
مجنون غاړه په عشق کښے وکړه زهٔ خاموش یم
هغه هوډ هغه دماغ را پاتے نهٔ شو
خط دے ستا په مخ کهٔ پښے په مښک کړے
په یوسف باندِ دا هومره غوغا نهٔ وه
خدایه تهٔ چه بنا نُسته له دُنیا بیائے
دم، دُعا، توری، تعویذ، ستانے، رویونه
دا خپل ځان مِ چه پیشکش کړو وخپل یار ته
همیشه دَ هغه سخ چه باندِ وشی
سپینه خوله ئے وما را کړه ګرم مو ړ شوم

بادشاهی ئے مبارک شه لکه کے دے
دَ لاله غوندِ دَ چا په زړهٔ کښے کے دے
دَ هغهٔ په انګړ هر کله سپرلے دے
کهٔ انصاف وی تر مجنون مِ لا تیرے دے
کهٔ زړهٔ سوے را باندِ کړے ځانئے د زړهٔ سوے دے
دَ چنبے دَ ګل په پانړے ولاړ میږے دے
خریدار ئے په لکونو، یو ځلے دے
مګر ستا هورے دَ حورو ځهٔ کمے دے
چه په هیڅ کښے موندهٔ نشی هسے شے دے
وسلیمان ته دَ میږی په لاس ملخے دے
تش نظر ئے په معنیٰ وهمائے پے دے
وے ئے خواره وړیه دا خو نیمر یخے دے

یادم هسې رنګه ځائې وکړه په سترګو
کۀ هرڅو شیرینۍ آشنا وی چه جدا شی
حسن، ناز، مهرنیاز، فتنې، جنګونه
شکر دا چه نۀ م یو سر کړ نۀ بل سر
کۀ فرښتې دی کۀ پیری دی غم ئې نشته
دَ غافل په سپینه ږیره غلط مۀ شه
ماچه ستا دَ مرېئې والی لافه وکړه
دا لوئی رالره بس ده په عالم کښې
دَ هغۀ یاری په نۀ یاری شمارلې
یا دا درست خلق هوښیار زۀ لیونې یم
وا په مینه ده پوهیږم چه ئې زیر کړم
کۀ هرڅو ئې پوهوم پرې نۀ پوهیږی
یوه ورځ به نوبهار راشی بلبلې
چه چا دم وهلې نۀ شو وهغۀ ته
زمانې دَ خلقو حال راته څرګند کړ
کۀ جزا سزا ورنۀ کړې په ځان خاندې
خوچه والوزی له ځلې منګل سرې کا
مزری توب بویه دَ توره په میدان کښې
کۀ دَ جنګ په کار کښې ډیر دی حکمتونه
هغه سر چه زیب ورکړې وافسر ژو
ځان دَ ست دیاره سیزی هندو ګنې
په طلب ئې سرګشته په کلیو کرځم
چه ګُندئ جنبې وشوې غم پیدا شو
جال مرغونو لره پټ په وښو ښې
بند په بند ئې نظر کړه خوند ئې آخله

چه وهر لوری ته ګورم واړه دې دې
په هجران ئې نور څۀ هیڅ نشته یو هې دې
په دا څو نو که دِ کوم سړې مخې دې
کۀ په دوو سترګو م ښې یار تلې دې
چه ئې غم لره پیدا کړ دا سړې دې
دَ هلک غوندې ئې لا په خوله کښې تې دې
دَ اورنګ غوندِ بادشاه خما مرېئې دې
کۀ دِ ووې چه حیران عاشق م سپې دې
چه ئې نن له تا خندا کانده ما نړې دې
یا یو زۀ هوښیار دا خلق لیونې دې
عام عالم راته ویل دا ستا زیړې دې
زیست روزګار دورسره مۀ وشه خاروې دې
هومره پیره اندوه مۀ کوه کۀ دې دې
راشه ګوره چه دَ چا باندِ غورځې دې
په یوۀ زمان دِ خپل په بل پردې دې
چه له را یه دَ بل رالئې کا کۀ دِ خوې دې
په وهلو آموخته دَ باغ مرغې دې
په خالی میدان هر یو کید ږ مزرې دې
چه دَ سر صرفه ونۀ کړی نور برې دې
• اوس ئې ګوره چه دَ کوم پالیز کودې دې
چه ئې هومره همت نۀ وی نور سوړې دې
کۀ ئې خدائې رالره راکا یو کالې دې
هغه ځائې دَ اور لمبې شی چه لوګې دې
په سوګند ئې باور مۀ کړه تښونې دې
دَ دانا دَ خولې کلام لکه ګنې دې

لوئے وادۂ لویہ خوړه لوئے ئے خونے دے
خاص وعام دِ طمع کا بخره به موسی
نهٔ یم هیڅ کابه خالی له یوے میینے
ما خوشحال چه پیژندلے کینډا وبنے دے

# دَ کوک شاستر یو باب

تر وُختهٔ تر پریوتهٔ څو ښځے پیدا کیږی
خودی په جهان واړه څلور ذاته حسابیږی
کل فامے، نیک فرجامے، دَ دودامے، فیل اندامے
هم دادی چه م ووے پرے دِ هرڅوک وپوهیږی

کل فامے دی هغه چه نیلو فرغوندِ ئے تن وی
له تنه ئے ښهٔ بوئی د روحی بورا باندِ خرخیږی
ښے غتے تورے سترگے لوئے بانړهٔ نرئی ئے وروځے
کهٔ پان خوری کهٔ شراب خوری ترمرئی ئے ښکاره کیږی

غنچه غوندِ ئے خولهٔ ننگه سرئے گرد نرئی پوزه
بارخونے لکه کل دَ چنبے سپین نازک ځلیږی
پلن وچولے، سرے شونډے، هلک چاه ئے په زنخ کښے
واړهٔ هموار غاښونه په خندا کښے سپین بریښیږی

ښے سپینے د کے لیچے گرد ورغوی اوږدے گوتے
هرځائے ته چه ئے گورے هیڅ لقب پرے نهٔ جوړیږی
د تیو سرئے تورتی ئے هلک سینه کشاده
په قد سمه ثابته سم الف شی چه ودریږی

دَ سر ویښتهٔ ئے تور نرئی اوږدے دلول ئے زلفے
په ځان لکه باغکه چه ویښتهٔ پرے نهٔ نمائیږی

د سپوږمۍ ویښتۀ نې هم نرۍ په نښت شمارلی
ورنو نه کوناتې نې بنۀ لیدل شي چه خونریږي

ډیر خوب لږ نې خوراک کیږه نې ناسته ملا نرۍ
آلت پکښې نامه ګڅه په کوته ځر کندیږي

لږ قهره عقلمنده کم دخوله مهربانه
ساده لږ د خندا خو هم په شونډو کښې موسیږي

ګل فامه خوږ ووې، نیک فرجامه درته ستا یم
په حسن په ښائست کښې وګلفا موته رسیږي

دا دوه دوه توکډې نۀ وي چه بورا بانډ خرخیږي
یا پان خوري یا شراب خوري ترمرۍ نې ظاهریږي

ویښته نې په وجود بانډ هم لږ وډیر لیدل شي
نۀ ځکه وي نۀ بد رنګه په وجود نې بنۀ جوړیږي

خوراک په اندازه خوري خوشبوئي نې لګېدلان وي
لږ خوب کا ډیره لامبي تل په سحر سحر ویښیږي

مئینه په هوس وي خنده رویه شیوه نا که
په لوبو په سندرو په سرودې زړۀ خوښیږي

نۀ غم نۀ دلګیري کا همیشه تروتازه وي
په خپلو سهیلیو مینه کا بانډ خوږیږي

دخپل میړۀ په بد په بنۀ په هرچاره نازیږي
کۀ بل سړې سرۀ زړ وي ورته خاورې ځر کندیږي

په نیت جوړه په پټ جوړې ظاهر باطن یو رنګه
د یارد پت دپاره د کباب غونډې وسیتیږي

رښتیا خبره هم په ډیر ضرور په ډیر ناکام کا
دروغ خوې هرګز په خولۀ په ژبه نۀ جوړیږي

په خولۀ پاکه په زړۀ پاکه بې ویرے بې وسواسه
په غولي په جرس نۀ هيڅ ناپاکه نۀ تيرېږي

له ځانه ئې خوږ بوئ د کبينۀ غوندې خوږ دروي
دخول وته ئې نږه د خپل ميړۀ په رضا کيږي

تعريف د ددو داسو درته وکړم راته غوږ کړه
په نږۀ کلپه ناغسه په خبره نۀ شرميږي

بدګويه بد زبانه پېروي لږه خبره
ځان تود بوئ ئې له ځانه د ليوۀ غوندې بهيږي

مېنه په چيچل وي په سکونډل وي په داړل وي
له تاوه ئې هم هرکله خښتګ مښتګ لمديږي

ويښتۀ ئې د سوځېږۀ د تن هم ځږه ګرلنډ بدونګي
يکدله کېږ وړه په خوړلو نۀ مړيږي

ميوه لونګ جائفل لاچي په دائې غرض نۀ وي
تروۀ ترخۀ سونډ مونډ بلا بترنه ئې زړۀ کيږي

چه تاؤ خاربښت ورپاڅي ناقراره شي شوريږي
کۀ لوئې وي کۀ هلک وي وهرچا وته ګهريږي

نۀ پت ګوري نۀ شرم نه ئې حق وته نظر وي
د خپل ميړۀ په غيږ کښې زړۀ ئې نوروته پړقيږي

د کلي د محلت ناپاکې ښځې ورته ناستې
د بدو بدکارو تو قصې وائي مشغوليږي

چه خپل ميړۀ ئې بولي ورته ځان کالکه حيزه
بل ځائې چه بدکاري کا په شل ځله نۀ سړيږي

زيارت ميارت بانه کا د رنځور منځور پوښتنه
چه لاړه په هرلورشي د هرچا سره خواريږي

اوس ښوېږ باسه ومانه مخ ئے تور دَ دود اسو
بيان دَ فيل اندامو هم ضرور دے بيانېږى
کتهٔ مخ بدکولکونه وروځے پلنے ورے سترگے
لوئے سر وينبتهٔ ئے خُرهٔ تيرهٔ سرونه سرهٔ خليږى

درست خان کتهٔ، لاس پښے کتهٔ، کتهٔ دَ لاسوگوتے
بد شونډے داسے ورے چه سپے ځنے ويرېږى
يو دروند آواز هم دروند په زړهٔ هم سخته ناشولته
کم مِهره قهرژنه چه بل خاندى دا پخسيږى
هاتى غوندِ خوراک کا دَ هاتى غوندِ ترے بوئ ځى
په عشق په محبت په مهر مينه نهٔ پوهيږى
خواږهٔ ماړهٔ چه وخورى اررمى په وازه خولهٔ کا
لاس پښے په بيا رته بيا رته هرځائے پريوزى وغزيږى
دَ چين او دَ ماچين په ملک کښے ډيرے دى کل فامے
دَ هند په لته هم خال خال په چرته څرگنديږى
کشمير فرخار کا بل قندهار خو چه خراسان دے
په دا کښے نيک فرجامے ډيرے ډيرے مونډے کيږى
هيڅ ملک کشور اقليم له نيک فرجامو خالى نهٔ دے
په هرلورى نوبت دَ ور دَ دوئ دے چه ژغيږى
آسمان چه ورځ او شپه قرارے نهٔ کا هسے گرځى
ترسر دَ نيک فرجامو زهٔ خوشحال وايم ځاريږى

## دَ بهار منظرونه

چه موسم م دَ گلونو دَ گلزار شى
نرم نرم ترشح په مرغزار شى
دَ هغهٔ له بخته خوک برابرى کا
چه په هسے وخت ئے سير په گلزار شى

نن ځما طالع له ما سره مدد کا
بخت دِ هر کله داهسې مددګار شي

چه م ناسته دَ صورت په هسې ځائې ده
چه ثنائې په لته دَ هندوبار شي

په داځائې چه دَ ابدالو نظر وشو
عاقبت به په همه جهان اوښار شي

په چمن کښې ئې اوبۀ دَ رومي روانې
په سبزه باندِ نارې دَ جوئبار شي

په داهسې پاکیزه اوبو سلسالو
شماتت ئې دَ کشمیر په شاله مار شي

دَ سړي سترګې روښانې زړۀ خوشحال کا
چه اوبۀ دَ فوارو سره تار تار شي

چه له پاسه نه اوبۀ راځي په کښته
وائې سپینې مرغلرې دي نثار شي

هغه ځائې چه دَ مرمرو فوارې دي
ترغه ځائې دِ دَ ارم تماشه ځار شي

تۀ به وائې دَ آسمان تناغوزار شوه
چه اوبۀ ئې رارواني دَ آبشار شي

چه په سر ئې دَ حوضونو څوک ګذر کا
وائې پاس په آئینو باندِ رفتار شي

مرغاوۍ په حوضونو کښې غوټې کي
دَ محل په مخکښې ناست دَ بازو ښکار شي

تۀ به وائې دَ نمرود دَ اور لمبې دي
سرۀ لاله چه په چمن کښې انتشار شي

سه برګه ئې عجائب سره وودلي
فرق ئې لا دَ یراقونو تر کنار شي

په اطراف دَ هر چمن شګفته شوي
دَ زنبقو، دَ سوسنو هم دیدار شي

په داباغ کښې دَ ګلو کمې نشته
دَ همه وارو دَ چا په ژبه شمار شي

کۀ سل برګ کۀ بنفشه کۀ ارغوان دې
دَ هر ګل په نندارو خاطر قرار شي

دَ هغۀ صانع ترصنعه صدقه شم
چه ئې هسې دَ قدرت په لاس نګار شي

وارۀ ونې ئې آسمان سره سيالي کا
ولې فرق پکښې دَ ونې دَ چنار شي

په هزار رنګه نوا شي دَ مرغونو
هغه دم چه په چنار وکښې چغار شي

دَ مرغونو دِ نوا له موجه شوري
نۀ له باده شوریدۀ نۀ دَ اشجار شي

عمارت ئې کچ وهلې پکښې کړې
په هر کور کښې دَ جویونو شرهار شي

دوه سوتیر سو رهروان دي پکښې طرح
دَ سپین والي ئې تیرې په سپین چوتار شي

لطافت ئې دَ هوا ترحده تیر دے
پکښې روغ به دَ اتیا کالو بیمار شي

کۀ زاړۀ په دۀ کښې کښېناستې ځلمي شوي
په هوائې ځما هسې اعتبار شي

دامکان به دَ بهشت سره داخل کا
کۀ رضوان ئې له نشاطه خبردار شي

همگی صفتونے تیر دے ترحسابه
له همه وُکه وئیل کوم طومار شی
دا بنا د آصف خان له لاسه شوے
او په حکم د خورم پکښے دا کار شی
زړا انهٔ پنځوس کالونه د هجرت وُو
د نوروز په دولسم چه دا گفتار شی
په خوشحال وُو هم دا هومره چه وئیل شول
نور د عقل حکم نهٔ دے چه تکرار شی

# د هجران ناامیدئ کښے

معطر م دغه گل په بوئ مشام دے
چه جمال ئے د بلبل د زړه آرام دے
د گلونو حسن ښهٔ دے بلا دا شوه
چه ئے وصل په آغاز پورے انجام دے
دا د گلو خوئ خصلت دے په چمن کښے
چه راتلهٔ ئے ډیر لا دغهٔ لږ ئے مقام دے
گله ته چه له بلبله مخ جاړ باسے
مگر ستا په خیل بنائست امید مدام دے
د بهار د سرو گلونو صفت څو کړم
ولے بے یاره هر گل د زهرو جام دے
د اجل ساعت کهٔ هر څو گران یا دیږی
نهٔ چه سخت د جدائئ ترهنگام دے
جدائی م به هرگز قبوله نهٔ کړه
ولے څو کړم د قضا په لاس زمام دے
چه هوس م د وصال په وخت وُو کړے
هجر خیر په هغه هومره انتقام دے
ظاهری صورت په تن سړے لیدهٔ شی
ځان او زړهٔ م د هغو چه دلارام دے
خوب خندا م له خاطره فراموش شهٔ
په ویشتلو باندِ خوب خندا حرام دے
هغه خاورے ترعنبر و لا تیرے کا
چه خو با پرے قدم ایښے په حرام دے
گرفتارئے څو ځان کا دی لا تینگیږی
د شهئ د زلفو لا د بلا دام دے
زړهٔ م بے د عشق له کاره نهٔ خونبیږی
د دنیا روزگار م واړه په ناکام دے
د زړهٔ دردا و محبت زړهٔ لره بس دے
د آتش م یو بخرے هم تمام دے
عندلیب م په قفس کښے گریانی کا
زاغ په څهٔ په زیړو گلو کښے انعام دے
دوه منئین چه سره وړینی په سترگو
هم د سترگو په کا ته کښے ئے اکرام دے
نور عالم سره په خولهٔ سلام علیک کا
د یارانو هم په زړهٔ سره سلام دے

اے چه طمعٔ دَ تورسترګو له یارئ کړے — دَ صحرا آهو هم کله چا ته رام دے
چه په قند د په ګلابوئ پیغور شی — یوئ بنے خوږے بښکنځل بلۓ پیغام دے
طبل ځۀ لره پنهان وهی له خلقه — دَ مغوچه پریوتلے طشت تر بام دے
نور چه تل ډکے پیالے تشوی ښۀ دی
په یوه پیاله خوشحال ختک بدنام دے

# دَ معشوقے په صفت کښے

تورکیسو دِ په چندنړ باندِ ښامار دی — تورے زلفے دَ سنبل دَ نوبهار دی
تورے سترګے دِ هوسئ دَ خطا شوی — چه وخروته پرتے په سنبل زار دی
تورے وروځے دِ لینده با نړۀ دِ غشی — عاشقان ئے زخمی شوی په ګذار دی
مصفّا تندے دِ ښۀ دے تر بلوره — بیدلان ئے په سرونو خریدار دی
دغه خال چه دِ دَ وړوځو په پیوند دے — دَ خطا دَ ملک اصلی نافے ترے زار دی
سپینه پوزه دِ غوټئ دَ زنبق ده — چه چاپیر ترے نور ګلونه دَ ګلزار دی
ښاګوش دِ نسترن دے غوړیدلے — دَ چنبے ترګلو بِه دواړه رُخسار دی
سپینه خولۀ که دِ غنچے سره نسبت کړم — دَ غنچے غوټئ کله شکربار دی
دواړه سرے شونډے دِ ښے دی تر سرو لالو — سپین غاښونه بے بها درشهوار دی
ښانسته زنه دِ سیب دَ سمرقند ده — چه خواږۀ ئے ترنبا تونه بسیار دی
صراحی دَ سپینو زرو سپینه غاړه — سیم آسا اوږے دِ هم په دغه شمار دی
واړه تن دِ دَ حلب تر ښیښے صاف دے — چه رازونه دَ دوون ترے نمودار دی
سپینے لیچے دِ مصریٔ تورے تیرے کړے — چه خونونه ئے په غاړه سل هزار دی
دَ یاقوتو نګینے دِ سرۀ نوکونه — ځلئ په ځائے دِ په اوږ دوګوتو قرار دی
چه مِ ستا دَ تیو ښه نندارہ وکړه — هغه کلک په لذت ډک خوارۀ انار دی
دَ نامۀ غوټئ دِ ګل دے دَ ګلابو — کینړا وښی دَ ګلو پا نړے پړے انبار دی
دَ نامۀ دِ کښته دم وهلے نۀ شم — هم مغوزده چه خبر په دا اسرار دی

چه وملا وکوناتیو دې ګوړم ... آویزاندې پاغوندې په نرې تار دی
د پنړیو تر صفت دې نه رسیږم ... ولې سپینې په سپینوالي تر چوتار دی
سپینې پښې دې د زنیق د ګلو پاڼړې ... د پښو ګوتې دې کلۍ د انار دی
تمام قد دې په مثال د صبر ونه ... ولې سم ولاړ دې عین د چنار دی
سر تر پایه ننداره ئې ځان دې جوړ کړ ... تر تا ځار واړه رانیۍ د هندوبار دی
ستا مثال په هندوبار کښې را ښکاره شو ... د لوبیا دانه یوه مټر خرواړ دی
د ټیکۍ د ډکډکۍ لعل او دُر دې ... ګوبنې ګوبنې واړه کیل ونه تیار دی

تهٔ خو ډیر مهر کوې عمر دې ډیر شه
د خوشحال خټک دې تش مهر پکار دې

# د روغ صورت ستائنه
# او په هند کښې د خپل قید حال

چه بهتر تر هر نعمت دے ... کهٔ نعمت دے روغ صورت دے
چه ئې دا نعمت روزی دے ... سر تر پایه عنایت دے
کهٔ ئې پیژنې تهٔ قدر ... روغ صورت لوئې نعمت دے
ستا د ګوبنې ځان یوازې ... تر جهانه زیات قیمت دے
کهٔ دې ځان نهٔ وی جهان وی ... په عدم ئې اشارت دے
دا جهان لکه معنیٰ شو ... ستا وجود ئې عبارت دے
چه په ځائې ئې عبارت وی ... د معنو هومره قوّت دے
د صورت د خوشحالۍ ... مدار واړه په صحت دے
چه صحت د صورت نهٔ وی ... ورته خس مال و دولت دے
رنځ په کور کښې هم بلا وی ... لا څهٔ نور څهٔ په غربت دے
اَس چه روو درومی په لارے ... بریوتهٔ څنې آفت دے
پښه م هسې رنګ په درد شوه ... چه تیربږی یو ساعت دے

چه دَ سر بلا په پښو شوه
په دا هم شکر بائدهٔ دے
ما وے تیر شو ولے پوه شوم
ما وے اوس خو مهربان شو
هند په ما بانډ دوزخ شو
بندیوان وړلو ږاغلم
هغه شان لکه بندی وُم
هره ورځ ورتلهٔ دربار ته
دَ بل حکم پرے زندان شی
نهٔ شیرین خوارهٔ یاران شته
نهٔ خپل ورکړل را نیول شته
نهٔ دَ ښکار هوا هوس شته
یو په بل پوښتنه نهٔ کا
په شماره یو څو سړی دی
یو اکبر په غم شریک وُو
کهٔ بادشاه دے کهٔ خانان دی
دَ هیڅ‌ا برکت نشته
ماچه دا قصیده ووئه
څلورمه دَ رجب وه
نورڅهٔ مهٔ وایه خوشحاله

دا لا خیر خیریت دے
یو بتر تر بل زحمت دے
لا څهٔ پاتے مصیبت دے
لا ئے ما سره شدت دے
کهٔ په نور عالم جنت دے
دا یو څو میاشتے فرصت دے
ترے ړم لا بتر محنت دے
گوره دا څهٔ مشقت دے
چه په خپل حکم عادت دے
نهٔ دَ چا سره صحبت دے
نهٔ خپل حکم حکومت دے
نهٔ دَ نورو مصلحت دے
هسے ښهر بدخصلت دے
چه ئے جوړ را سره نیت دے
هغه هم په خپل عشرت دے
را ښکاره ئے حال حالت دے
ځان ځانی شوه قیامت دے
په دهلی ړم اِقامت دے
زر اوهٔ اَویا هجرت دے
کهٔ څهٔ وائے قباحت دے

# لعل او دُر په تار پیئیلی

تور ویښته ئے نهٔ دی په وړوکوټو اودلی
واړه ښاماران دی په چندنړ بانډ ختلی

ستر کے وروځے نهٔ دی نهٔ مژګان نهٔ ئے زلفینې
دانے د دعوے وته فوځونه دی تړلی

سپین بارخوۓ نهٔ دی نهٔ خولے پرے بریښیدلی
ګل دی دَ ګلابو دَ صبا پرخې وهلی

تنګه خوله ئے نهٔ ده چه ئے نهٔ وینې په سترګو
دُرج دے دَ ګوهرو لعل ودُر پکښې ساتلی

هیڅ په مینځ کښې نشته چه ئے دم ګڼړے یا سحر
واهه ئے دَ سترګو په جادو تړونه وکښلی

دوه سترګے ئے هسے چه څو مینے پرے تاراج شوے
خدائګو چه آخرله مابه لوټ کا ندی ګټلی

وګوره وماته دَ شهسوار روش دا دے
نخښتے ته نظر کا بیا له پسه نخښه ولی

څیرچه وجمال ته کتے نهٔ شم سبب دا دے
څیرم هیڅ نهٔ دی وآفتاب وته کتلی

ستا دَ در احرام م ستا دَ مخ په نیت تړلے
نهٔ دی بے مقصوده وکعبې وته خوک تللی

تل کهٔ دودسته تندے وهے څهٔ فائده د ه
ستا دَ عشق په غم کښې عاشقان په زړهٔ نتلی

داخبره مکړه چه څماله لوریه واوړه
هرچه راته وائے نورم واړه دی منلی

څهٔ به دِ په یاد کړم څهٔ منت به په چابار کړے
ووایه چه څوک دِ په ښکنځل هم دی نمنځلی

پند وایم وتاته ګله نهٔ کرمه دا ښهٔ کړے
ستا په سرچه لوری هغه تا له وَر ساتلی

ما سره دِ نیت کهٔ دَ اخلاص او یارئ نهٔ دے
تش لباس خوشته دے تاخهٔ لړنهٔ دی غلولی

تل کهٔ هسے مینه په اغیار کړے لکه اوس دی
تل به دِ په کوروی دَ خپل یار مغل ختلی

ما سره کهٔ تل جنګ و غوغا کوے پرے خوښ یم
مرم چه رقیبان به دِ او رَبل کاندی په کلی

مړهٔ مے دَ غمزے په تیرهٔ تیغ څهٔ هو مره نهٔ دی
یائے چه څوک ښخ کا یائے دروغ کاندی څوک خلی

کوک په کوک کهٔ ژاړم ستا په کوئے کښے عیب مکړه
درد چه بے دوا شی خو نارے وهی ویشتلی

خال دَ نیلو کښیږده چه په ګلو باندِ پیر کړے
او ردی ډیرے سترګے لور په لور په یوهٔ کښلی

یو دِ ستا دَ مخ غوندِ هم څوک راته ښکاره کا
هر چرته په باغ کښے کهٔ ډیر ګل دی غوړیدلی

خدائګوره به هیڅ بلا و تا وته پرے نږدم
چیرے په جهان کهٔ یو دَ بل بلا اخلی

ځارئے ترهمت شم چه ئے ستا دیدن اولجه کړه
ستا په درچه ناست دی په سپیرو ایرو لړلی

سترګے دِ ګواهی په نوی خون لی دَ خوارانو
په دروغه بهانه کړے چه شراب مے دی نوشلی

نهٔ زړهٔ لرم نهٔ دین لرم نهٔ صبر شته نهٔ عقل
دا کل واړه لا کله په ښهٔ مخ دی ما خندلی

خوبا چه دَ رنځو په بانه میل وهی په سترګو
امداد کاندی دَ سترګو چه کهٔ ښے له زړونو ښبلی

خوبا په آئینه ګښې چه خپل ځان وته نظر کړ
حساب غواړي له محبه چه د زړه ښندنې نوکښی
دَ شونډو په ارمان ئې څما ځان په شونډو وراغې
چه مرګ کا دَحیات او به چاهم دی آفریدلی
دا څهٔ شعر نهٔ دے چه خوشحال خټک بیان کړ
واړه لعل و دُر دی دَ بیان په تار پیئیلی

# دَ مملکت او دَ معاشرے رموز

هر احمق چه په دُنیا خاوند دَجاه شی
په ویل دَ مرسلانو نهٔ ګروهیږی
دَ دُنیا دَ مال او ملک هغه لائق دے
خو کهٔ ډیر عیب لری عیب ئے پټ شی
سپین چوتار دِ ځان ساتی له توره تیکیه
دَ عسل خواږهٔ مچئ زده نه چه مچ نړده
بدان سل بدئ کا پرواه ئے نهٔ وی
دَ نیکانو په خطا عفوه لازم ده
پند هوښیار وته پکار دے و نادان ته
درست جهان ئے کهٔ نیکخواه شی سود ئے کوم دے
دَ کلاه لائق یا باز دے یا شاهین دے
هر جولاه په تنسته کښینی څهٔ وو ئے
په زرګونو پکښې کښینا ستل ترے لاړل
دَ یوسف غوندې په خوب بنده عزیز کا
سببونه ئے په غم کښې اندوخته شته
رنځ محنت چه په سړی باندې ورد رومی

نور و تلے ځنے نهٔ شی جاه ئے چاه شی
دَ فرعون او دَ نمرود غوندې ګمراه شی
چه سلیمان غوندې ئے خوئ شی چه بادشاه شی
اَس کهٔ لږ عیب پیدا کا دَ پائیګاه شی
دَ ماش رنګو عیب کوم دے که سیاه شی
چه عسل وته نږدے شی نور تباه شی
په یوه خطا نیکان په غم په آه شی
دَ بدانو چه ګناه بخښې ګناه شی
چه دَ نیکو نصیحت کړے لا بدراه شی
دَ هر چا چه خپل خصلت دَ ځان بدخواه شی
په داخهٔ کهٔ دَ کارګه په سر کلاه شی
نه خاصه وُو دل په هر یوهٔ جولاه شی
ګوره ځلئے به لا دَ خو وُو داخر ګاه شی
محمدٌ وته دَ غمزے تار پناه شی
مبتلا دِ دَ اندوه په دا آګاه شی
دا په دا چه او دهٔ نهٔ وی اِنتباه شی

دَ عاقل صحبت عاقل لره راحت دے
دَ جاهل سره ئے ناسته په اِکراه شي

دَ هغې مزې نه لرے لرے گرځه
په هغه مزه چه تل زهر کياه شي

اعتماد په رفيقانو پاتے نهٔ شو
يو دِ مال و ملک تالاکه نور گواه شي

دا مستي دَ خرابات په مينځ کښے نشته
دا مستي لکه په مينځ دَ خانقاه شي

دا کوتاهے پا ښخے هاله پکار دي
کهٔ ئے لاس دَ بد و چارو نه کوتاه شي

شپه دَ هر چا عيب پټ کا چه بېگاه شي
تور و سپين هالهٔ څرگند کا چه پگاه شي

دَ سړي قدر قيمت په اعتبار شي
چه خوارهٔ ورځے لا هل گنے کاه شي

دا غرغر فکر چه تهٔ لرے خوشحاله
ستا به کومه چاره سره په بېگاه شي

# دَ شهاد وصال ارمان

کهٔ په زړهٔ کښے مِ دَ يار مهر وفا وے
کله دا رنگ به نصيب خواري ځما وے

نهٔ چه هو مره پسے ژاړم خلق خاندي
دريغه مخ ځما دَ يار ليدلے چا وے

چه مِ ووينې غرځهٔ غونډِ ترهيږي
کهٔ په خوئ راسره لږ غونډِ آشنا وے

دَ هجران شپه مِ يلدا شوه نهٔ تيريږي
يا په خوب ځهٔ خاودهٔ شوے يا صبا وے

دَ دورئ انديښنے له مينځه لاړے
بيا دَ يار په مخ مِ ذوق او تماشا وے

دَ قصد منو په ويل له ما مانړے کا
ما به حال ورته عرضه کړ کهٔ پخلا وے

تر نقاب ئے مخ ښکاره کړلے و ماته
دين دُنيا مِ ورته واړهٔ رونما وے

هوښياري دَ دُنيا مال دولت دَ نورو
چه ملنګ دَ مصلے شوم خو هم دا وے

اے چه وائے ښيښه ماته کړه پارسا شه
ښهٔ ويل کړے دَ بهار په وخت پارسا وے

دَ شرابو جام په لاس توبه په شونډو
يا يک لخته لا يعقل وے يا تقوىٰ وے

دا کشور له سر تر پايه کفرستان شو
يا مِ ځلئے کړے غارے غرونه يا غزا وے

نهٔ به سپک نهٔ به بد نام نهٔ به بد بوئ وو
کهٔ بورا غونډِ گونگټ په گل شيدا وے

دَ رقيب دَ مرگ آواز او شو په کلي
سخ په دا ساعت کهٔ دا ويل رښتيا وے

خوږه خوله ئې د خوږو شکرو خوان ده
په دا خوان باندې زه ورته يک تنها وې
سونتي م به د نورو هومره نۀ کړه
کۀ په ما باندې نظر مهر دِ تا وې
د کاکلو تر نافې به ئې خجل شوه
کۀ حاضره اوس هوسئ د خط وې
د شندی د نرګس فرق به سره نۀ وُو
کۀ ګلونه د چمن وا بره نېيا وې

همیشه دِ مخامخ ورته ښکنځل کړې
دخوشحال خټک و تا وته دُعا وې

# دَ دیرشو بیتونو بازنامه

تجربه شوه راته چار د بازدارۍ
سررشته ده د تمامې ميربنکارۍ
په سرو وږې مزې لرې کړه له سترګو
چه ونۀ پرکيږی باز په هوښيارۍ
په صبا بيګائې تل په غوښه بوله
هم په غوښه ئې کار کړه د تيارۍ
په تاوده منی اول چه په لاس راشی
هغه باز ته ورکړه خوشې بيدارۍ
چه تمام تناب په غوښه بنۀ تيار شی
بيا د چرګ سره ئې کار کړه د يارۍ
درې څلور چرګان چه وخوری نور بيا ښکار کړه
يو يو لاس ئې سيروه په دلدارۍ
په طلب په ښکارئې هسې رنګ تيار کړه
چه ئې نۀ وی کج خلقئ ناهموارۍ
کۀ خلويښت لاسه يکه يکه ښکار وخوری
هغه باز لره به ورنشی خوارۍ
په ساړۀ ژمی کۀ باز راشی په لاس کښې
فکر مه کړه د هغۀ د تيارۍ
تمام ژمې ئې ساتۀ په تماغه کښې
په هنر کړه په پسرلی د بازدارۍ
باز کۀ دې خانه کريز دې په ساړۀ
کله چوزيږی د ژمی د شوارۍ
ګرم ځائې ساته باز ونه چوز په ژمی
په ساړۀ مومی په ژمی بيمارۍ
له لوګی نه له ساړۀ نه له غارمۀ نه
خو په تا شی باز ساته په بې شمارۍ
هر باز دار چه باز حيران کړ د سزا دے
په سزائې کوتک مار وکړه زارۍ
باز چه بنۀ وی بنۀ باز دار ورلره بويه
جګی جګی په بدکس ئې مۀ سپارۍ
تغدرې د باز معراج دے چه پرې سير شی
په کلنګ په قازئې هيڅ مۀ ګزارۍ

د چوزباز صافي ضرور ده صاف ئے مکړه
د انار اوبۀ پرې خوره په نهارئ

پرمهره د دارچيني سره ضرور ده
هم دِ تل کيږي د باز طعمه دارئ

بازنه خورب نه دِ نګر په مقدار بشۀ دے
کړ خلقي واخلي د ګوشت په بسيارئ

باز چه بنکار خطا کوي ګناه ئے نۀ وي
دا ګناه دے د بازدار د بدکارئ

بشۀ بازدار به بشۀ کريزو باز ته ورکا
بد بازدار لرې څورنګه بدکارئ

دارچيني زعفران چه دوئ ه ه ياخۀ کا
په کريز کښے د غواغوږ دارو شمارئ

باز چه صاف کړے په کريز کښے بيا ئے واخله
بے پروا مۀ شه د باز د غمخوارئ

دستکشي طعمه داري شب بيداري ده
دا درے توکه دي د باز د هموارئ

هميشه دِ ئے له حاله خبردار وي
چه باز ونو سره کاندي څوک يارئ

بنځه باز په يوۀ خوئ سره پيدا دي
ځنے مۀ غواړه هرګز وفادارئ

د باز بنکار دِ ملوک کله کله کاندي
هره ورځ ئے دے خلل د سردارئ

مخ په بنځو يا شراب يا چه ډير بنکار کا
دا درے توکه دي د مرد هرزه کارئ

څۀ خو صبر سقوطري د وخته ورکړه
که خطا کا باز طعمه په بدخوارئ

د دومے علاج ئے تريخے دے د پرے
خو همدا دارو وباز وته خارئ

نه تمامه بازنامه نه دا ډيرش بيته
که ئے ياد کړے د خوشحال د يادګارئ

# د کاسيرئ په باره کښے

مخ تور د کاسيرئ چه دا کار دے شيطاني
خوبنې د يوۀ درنګ د همه عمر پښيماني

کاسير سړے هغه وي چه ئے نۀ وي عقل پوهه
يا دے په ذات په اصل کښے پيدا وي نقصاني

شهوت بده بلا ده چه په دا بلا قادر شي
هم دا ده که ئے ګورے د سړي پهلواني

د بدو همراهانو په صحبت کښې سړے خوار شي
یا غل شي یا رهزن شي یا بنګي قمار زانی
په ملک ورځنې تښتنه بد همراه دِ هغه کس دے
چه ستا تر فهم بنے کا بد چارے نفساني

دا دوه سرې علیم دي د هرچا په حقیقت کښې
که فهم فکر او کړے جګي بد تر غلهٔ زاني
چه نهٔ پسندے په خپل ځان هغه مهٔ پسند په بل ځان
هم دا ده که ئے ګورے په صحیح مسلماني
چه بل وته نظر کا یا آواز دَ بل غوږ باسي
دَ ښځے زنا هم دا ده نور پرے کړه بدګماني
سپیٔ چه سپیے شي سپے خپل ځان لره پیدا کا
څهٔ سُود که بده ښځه په دیوال کړے زنداني
چه ئے مور بدکاره نهٔ وي لورئے کله ورانکاري کا
دَ مور له ځانه راوړي لُور دَ خوئے ویراني
که ګدره په بازار شي په کوڅه کوڅه جارُوزي
دَ پاکو پاکدامنو ستر جوړ دے رباني
چه پاکه پاکدامنه په حیا په دین مینه
دَ مرد په کور کښې کښیني مرد دِ کاندي کامراني
چه بے خپله حلاله ځان وبل وته برمنډ کا
دَ مرګ ده هغه ښځه نورئے څهٔ زندګاني
خوشحال خټک زوئے دیرله کتابه
زحمت دَ مولیسئ، بوئ دَ تحرک، قُلتبانی
که هر خو خطا وینے بیا خوښه پرده پوښي ده
عطا په خطا بویه سهوه کیږي اِنساني

نیکانو سره زیست روزګار په مینه محبت کړه
بدانو سره زیست روزګار رهم بویه لِسانی
چه عقل شعور راغی بده چارشوه راته بده
اَفسوس په هغه چارو چه به شوې په نادانی
خوشحال که نبی نهٔ دے نصیحت خوئے خوار مکړه
اِلهام دے چه ئے وائی دا کلام په افغانی

## لاړے دی بیشماره هر دیار لره ورد رومی

لاړے دی بے شماره هر دیار لره ورد رومی
تلے په هغه لاړے چه خپل یار لره ورد رومی
خوک ئے بے ریباره په خپل بخت کا ورکناره
خوک په زړهٔ ورژلی و ریبار لره ورد رومی
سل جشنه نوروزه تر هغه ساعت ځاریږه
هرچه دلداده عاشق خپل یار لره ورد رومی
خورنګه نافے ئے په هرچین کښے دی ذخیرو
خلق په ناحقه چین تاتار لره ورد رومی
نورعالم ئے واړه وار په وار په ځان مئین کړ
اوس په شین شین پرهیزګار لره ورد رومی
زړهٔ م دَ دلبرو توروزلفو ته هوس کا
ګوره دا ځان خونی تورمار لره ورد رومی
مرم دَ خدائے دپاره په شتاب شتاب رادرومه
چرے هم طبیب رو رو بیمار لره ورد رومی
ځم دَ یار په لوری په هوا هوس خوښی کړم
ذوق کاندی بلبلے چه ګلزار لره ورد رومی

سخ دَ هغو لاسو چه په سپین مړوند ستم کا
سخ دَ هغو غابنو چه رخسار لره وړ درومي

مخ ئې وربنکاره کړ دَ زاهد زُهد ئې یوړ
بیائې ځنې تاؤ کړ بل ناتار لره وردرومي

سخ دَ ناپوهانو چه هیڅ غم اندوه ئې نشته
هرچه ځهٔ غمونه وی هوښیار لره وردرومي

تش لاسونه ووزی دَ بازار له نعمتونو
هرچه کیسه تشه و بازار لره وړ درومي

هرڅوک چه طلب کا پته نهٔ ده دا خبره
هر کله مطلوب وطلبګار لره وړ درومي

وائې چه هردم په خوږو زړو کا پرهارونه
زخم دَ زخمک چه وهرتار لره وردرومي

نورجهانِ سفر شو باندِ سرائې دارالقرار دے
کله به خوشحال دارالقرار لره وردرومي

سل فکرونه وکړه تردا نشته بل بنهٔ فکر
چارے واړه خدائې کا کاراختیار لره وردرومي

ویښ اوسه خوشحاله مالیدلی دی ډیرغلونه
کور دَ اودو ړونډ کا بیا بیدار لره وردرومي

# لیونے خویوخوشحال دے

نشته هیڅ یو تش جنجال دے په دا مینځ کښے — خالی بحث اوقیل وقال دے په دا مینځ کښے
چه په مکر دَ ویښته د پاسه دردمي — شل په دوا ړو پښو یو زال دے په دا مینځ کښے
دَ یزید دَ شمر نه نه دَ حجاج دی — دور دور دَ دجال دے په دا مینځ کښے

نهٔ شراب شته نهٔ گلاب شته ښيښه ډکه
قاروره کهٔ څهٔ تمثال دے په دا مينځ کښے

دښمنى له واړه سروهى له ډاکه
دَ آشتئ کار محال دے په دا مينځ کښے

گوره څوک به پريوزى دواړه لوړ يه
زيد و عمر اختلال دے په دا مينځ کښے

سررشته دَچارے هيڅ نهٔ ده معلومه
خوهم هسے غول وغال دے په دا مينځ کښے

يوڅلورينځهٔ خوشول خوبه وشى
يويوکوټه په هرکال دے په دا مينځ کښے

چه ئے کاندى چه ئے وينم چه ئے آودم
دَ هرچا مکر تيتال دے په دا مينځ کښے

دا واړهٔ واړهٔ خو ډيرم دى ليدلى
دَ کمتوکمتو زاوال دے په دا مينځ کښے

دروغژن چه هومره نهٔ دى په دُنيا کښے
دَ رښتنو څهٔ مجال دے په دا مينځ کښے

آواره نوره گټنه تلف مهٔ شه
چه گټلے ملک ومال دے په دا مينځ کښے

چه ئے هرچرته څکوى وريسے درومى
يو عجب شترمثال دے په دا مينځ کښے

خرئے ياسه دَسړيو په سر گرځى
شل په دواړو پښو دجال دے په دا مينځ کښے

دَ تتوانو بيعه ښه کا تر آسونو
نا ديده گندهٔ دلال دے په دا مينځ کښے

يو به سله سل به هيڅ کا يو سړے وى
کومه گران کومه اِشکال دے په دا مينځ کښے

چه په چاڎ نصيحت وينا تکيرى
دا يوخوب دے يوخيال دے په دا مينځ کښے

ښښتانهٔ مغل هند کى واړه هوښيار دى
ليونے خو يو خوشحال دے په دا مينځ کښے

که واړه خلق ثنا د خدائے کا — نور هر څه پریږدی خود هائے هائے کا
ثنائے ډیره ده تر حساب تیره — څوک به ئے کومه ثنا په ځائے کا

د باغ ګلونه عجب نمائے کا — ځنې غوړیږی ځنې آئے آئے کا
سوسن ته ګوره په هومره ژبه — بے حرف وصوت ثنا د خدائے کا

ته قهقهه خانده عاشق که غم کا — غم کا بے تا نه تل تل ماتم کا
یوسف که هرڅو څه ښه نومیږی — بِه به ئے چیرے له تا عالم کا

فلک کج رودے کاږه ونه کج کا — دانا په غم کښیے نادان فرج کا
د صافو میو پیالے دړه وڅښنوی — بیا پکښیے هومره خمار مزج کا

لقمه حرامه نُطفه ناپاک کا — فرزند چه وشی چارے بے باک کا
تقوی په دواړه ګونه لوئے کار لری — په هر هر کار کښیے خوا فرحناک کا

یوموتے خاورے زیبا صورت کا — زړه ئے ګښوړه د معرفت کا
ګویائے ژبه په خپل صفت کا — بیائے له خاورو سره لت پت کا

زردی چه زیرمه د ننګ وشرم کا — صحبت د هرچا وبله ګرم کا
ډیر ګران کار ونه په زر آسان شی — زر په فولاد کښیږدے فولاد هم نرم کا

ژاړه خوشحاله که تل دا دود کا — چه بچمے ستا په مینه مبنود کا
چه را ښکاره شی په خوب وخیال کښیے — دا بخښن زړه ئه رم په دا هم سود کا

شیخان چه هسې اوړ دۀ نمونځونه کلی
پکښې رنګین ګنبدې وریښمین سکنې
پکښې باغونه اَسونه جُونه کا
پکښې دَ سپینو دَ سرو ګنجونه کا

شودۀ چه رغاندی ثنا دَ دروغ کا
فرق دَ خبرو ویلو ډیر دے
هر څوک پوهیږی چه دا دروغ کا
وکیل چه بد وی روغ کا ناروغ کا

که بد خواهان دِ بنیرے غوغا کا
خوشحاله غم دَ بنیرو هیڅ مه کړه
لا دِ ډیرے په هر صبا کا
سل که بنیرے کا دوه سوه دُعا کا

ورځ [illegible] کړه شي خدائے دِ اَمان کا
چه [illegible] وه بیا هسې سمه شي
دا هسې فضل مګر سبحان کا
فکر دِ هر څوک سره په ځان کا

چه کښینی ستا نه دَ زلفو راز کا
که هر څو نازکړے ناز به دِ زۀ وړم
هغه دِ فکر دور و دراز کا
دَ کښلیو دود دے په عاشق ناز کا

چه طبیب ئے دَ زړۀ په زور کا
دَ ور ځۀ نورشۀ که ځۀ بلا شوه
دا روئے درد شي ځان دَ بیغور کا
دَ شهسوارئ لاف خرسور کا

هوښیار پخپله ورته ځان پړ کا
که دولت من چه ناانصاف وی
نادان ورځی په قاضی غرپړ کا
په وړاندِ روستو ځان دَ کیږ کا

مردان نن جنګ کا آشتی صبا کا
خوئے ئې ړا وی هومره خندا وی
چه سره کښینی صلح و صفا کا
خوئے جفاوی هومره وفا کا

ځنې یوه کا ځنې دوې درې کا
په انځورونو کشیدې سرې کا
دَ دُنیا خلق یاری یاری کړی
چه سُودئې نهٔ وی یاری ئې پرې کا

ما دیر لیدلی چه شطرنج کا
ځنې شطرنج کا ځنې صدرنج کا
ځنې وتلی دَ دو و یک وی
ځنې ذوقونه په شش و پنج کا

څو دِ زړهٔ خاندی خولهٔ دِ خندا کا
چه زړهٔ دِ ژاړی سترګې ژړا کا
مدار دَ هرې چارې په زړهٔ دے
زړهٔ دِ مفتي دے هره فتوی کا

هندو دَ قندو وزن په تلو کا
خوشحال ئې ګوره ترلب وتلو کا
شکرې وخوری مزه ئې لاړه شی
خوږې خبرې لذت ترتلو کا

ورځ دَ قیامت ده حذر له هر چا
پریکړه خوشحاله باور له هر چا
ورورنړه که څویه دَ خپل غرض دی
په کار کښې یشی تښتر له هر چا

دا پند دِ هر څوک سره سند کا
هوښیار به نهٔ وی چه څوک حسد کا
همراه چه ښهٔ وی بد سړے ښهٔ کا
همراه چه بد وی ښهٔ سړے بد کا

چه له حرامه سړے نفرت کا
خدائې به ئې اَرت حلال نعمت کا
هومره به لوئې مرتبې مومی
چه دَ نیکانو سره صحبت کا

خوشحال چه تشه مینه په بل کا
ترحلق به پورته خالی وبیل کا
خدائې ئې وریږی ده یو هسې یار لری
په قهر راشی ورته ښکنځل کا

په باغ کښې خلق په میوه شخوند کا
ترخه هم بنه دی په دا جهان کښې

په خوله کښې هره میوه خیل خوند کا
د خوږ و قدر ترخه خرګند کا

لوئی هغه ده چه لوئی خدائے ورکا
لوئی له خدایه ده نه له همایه ده

لوئی هغه ده چه کتخدائے ور کا
د خدائے په حکم سورے همائے ورکا

په ګل چه هومره مینه بلبل کا
د بنا ئسته ؤ عاشقان ډیر دی

سیل د بلبلو باندِ غلغل کا
عالم به ولے احداد د ګل کا

ډیر ډیر فکرونه چه آدم زاد کا
چه ډیر دروغ وائی فسق فساد کا

عقل ئے لاړ شی جنون بنیاد کا
خپل ځان پخپله په بلا یاد کا

قابل که تښتی دولت ته شا کا
بدر هلال شی هلال شی بدر

دولت ئے مخے و ته راتلۀ بیابیا کا
په کم وکاست کښې کله پروا کا

خاص به له عامه اِختلاط کم کا
پړانګ چه ګیدړو سره جارو زی

که ئے کا بدکار کا په ځان ستم کا
خپل ځان پخپله له ګیدړو سم کا

څوک چه له خلقه شور وغوغا کا
چه عاقلان دی چه صابران دی

نا پوهه حریص دے هغه چه دا کا
سوده به کله جنجال له چا کا

هوښیار به مینه په ورمونو زیاته کا
محتاج د نورو نورو نغریو شی

ورسونه دایم که څوک مخ راته کا
سړے چه خپله کتوه ماته کا

ځنې چه په پسول سره وتا ته زیب کا
ګنړه یو تک وی مکر فریب کا
ځنې هم هغه ګنړه چه پسول ئې نهٔ وی
تاخت دِ په دین وپه دل شکیب کا

عاشق دِ هیڅوک ملامت نهٔ کا
زړهٔ ئې خپل نهٔ دے ویل ئې څهٔ کا
اورے دَ عقل په خونه وُلګی
چه دَ دلبرے سترګے ترڼ ړهٔ کا

قاضی چه اوم وی بے علمه کار کا
هم خپل ځان خوار کا هم خلق خوار کا
غلط غلط لولی خطا وائی
وسل لعنت ته خپل ځان تیار کا

شیخان چه مومره بندګی طاعت کا
کهٔ اجر غواړی څهٔ قباحت کا
هغه بنده به نابود بنده وی
چه به په طمع دَ څښتن خدمت کا

احمق چه بو بنتے خپل زړهٔ زبان کا
په ویل ګړ شی ویل شان شان کا
هرچه په زړهٔ کښے څهٔ نیک وبد لری
هغه به واړه درته بیان کا

ګل چه په باغ کښے جامه رنګینه کا
څوچه تازه وی بلبل پرے مینه کا
په بنهٔ صورت سره په بنهٔ نکهت سره
ګل دَ بلبلے مینه متینه کا

وګړی واړهٔ کاروبه خپل کا
مردان هغه دی چه کار دَ بل کا
خوک چه آرام ګټی دَ نیکو نام ګټی
دَ خوبنو زړونو دارو به تل کا

ځنې په تلم ګردن دراز کا
ځنې په زهد په شیخئ ناز کا
ما سرنیولے دَ عشق په کار دے
ما دِ په دا کښے خدائے سرفراز کا

سیلاب په خوشحالي غوبل پیدا کا
چه لوئے وي نو رئے صفت ثنا کا

بنیاد ئے نشته غوبل په دا کا
دریاب چه لوئے وي کله غوغا کا

چه خاندي نو رو وته کتل کا
سترګے ئے نهٔ دي دواړه قصاب دي

ژاړه خوشحاله داخوئي کهٔ تل کا
چړے په لاس کښے واړه کتل کا

بے له بندګئ دِ بنده نور هیڅ نهٔ کا
کهٔ ئے ومرګ ته په قهر وکاږي

په لوړه دیر دِ له ښتن یې نهٔ کا
بنده دِ تینګه دښتن له تلپه نهٔ کا

چه طبیبان م د رنځ درمان نهٔ کا
کفر کهٔ کوړے فرمان د نفس دے

رنځ م کهٔ دیرشي بیا دِ ارمان نهٔ کا
مومن به ځیږے د نفس فرمان نهٔ کا

کهٔ ښوک پیداشي چه عدل وداد کا
چه مقرب دي عرض ئے لګیږي

غوږ د دردمنو په داد فریاد کا
عمرئے دیرشه خوشحال دِ یاد کا

توره چه بیا مومي غازي غزا کا
توفیق له تا نه تقوي له مانه

توره چه نهٔ وي غزا ته شا کا
توفیق چه نهٔ وي ښوک به تقوي کا

یوچه رښتیا کا دوییم دروغ کا
رښتیا غوړي دي دروغ متیاز دے

عجب کهٔ کار به دروغو رڼغ کا
چراغ په غوړو سره فروغ کا

ځان به په قدر هغه فرزند کا
روښ ئے واړه د پلار روښ دي

چه چارے واړه د پلار پسند کا
خپل نوم تر پلاره ترنیکهٔ بلند کا

چه ډېر دخول کا يا ډېر خوراک کا
دخول ډېر خر کا خوراک ډېر ستور کا

چه ډېر ويل کا ځان به هلاک کا
په سړي هوښ کښې دِ سړے خپل ژواک کا

لينده هغه ځکوه چه مټ دِ خوږ نهٔ کا
دَ هغې غوښې کباب په خولهٔ مهٔ کړه

ښځه هغه کوه چه زور دِ لړ نهٔ کا
چه په سکروټے قطره څڅېږ نهٔ کا

څوک چه بدذات ته علم هُنر ورکا
دَ ځان غليم به دَ ګرګ بچړے ساتي

خوني رهزن ته تُوره خنجر ورکا
خپل به ئے نهٔ شي کهٔ خپل ځيګر ورکا

ګنے بند بند کا وتا شکر در کا
بتر تر کانړي مهٔ شه خوشحاله

سر دَ صدف پريکړه وتا ګوهر در کا
کانړے چه وسيزے وتا ته زر در کا

نهٔ سرداري ورکا نهٔ زرکاري ورکا
چه له ازله خدائے څوک نمځلي دي

نهٔ لوئے ملکونه او بهٔ جاري ورکا
هغه سړيو ته خدائے هوښياري ورکا

چه نوکري کا څوک ډېر ګنده کا
تر آزادئ نه بهتر هيڅ نشته

سړے آزاد وي خپل ځان بنده کا
چه څوک په کور کښې خپله دنده کا

اولاد چه ښهٔ شي راحت دَ زړهٔ کا
اولاد چه ښهٔ شي بد مور پلار ښهٔ کا

اولاد چه بد شي ښهٔ پلار مور پړهٔ کا
اولاد چه بد شي رنځور دِ زړهٔ کا

ماوے نن شپه به راسره تيره کا
سنګين مِ بخت دُو چه درسته شپه ئے

را نه به شمع دَ مخ برسيره کا
وعده دَ وصل له دل وهيره کا

هوښیار به هیچرې بې ځایه کار نۀ کا
په خوله په لاس به هیڅوک آزار نۀ کا

هم به بې وخته دَ خولې ګفتار نۀ کا
چه بدکرداردې هغه به یار نۀ کا

سړے آزاد وي آزادې بنده کا
هومره خوارېږي څو آزاد زړۀ لري

بنده لايېږي ده لاځے ګنده کا
په څوخوړنکه ئې بیا شرمنده کا

هوښیار به هیڅکله ویل باطل نۀ کا
دَ خپل راز ځلئے به ئے نه پېرزه کښې وي

هم هریوچاته دراز ویل نۀ کا
دَ زړۀ بې حکمه به خبره تل نۀ کا

طمع بلاده اصیل بنده کا
ما ډیر لیدلی دي چه طمع نۀ لري

ښۀ ښۀ سړي وي دائے ګنده کا
په بادشاهانو پورې خنده کا

سړے دَ نیکو عمل ارشد کا
چه بخت ئے ښۀ شي عمل هم ښۀ کا

دائے هالۀ وي چه بخت مدد کا
چه بخت ئے بد شي عمل هم بد کا

ډیردي چه تا ته خپل ځان ملک کا
نَعُوذُ بِاللهِ چه ښۀ ئے خیر کړے

په ښو خبرو ځان په فلک کا
شیطان ترځان پورے لکه کودک کا

چه عاشقئ ته هوا هوس کا
چه عشق م ولیدۀ پرے خندا راشي

خپل ځان دِ وژاړي خپل ځان دِ خس کا
چه عاشقئ ته هوا هر کس کا

سفله بخیله خپل ځان رسوا کا
سفله قاضي مۀ شه شراب روا کا

چه دولت مند شي غیرے هوا کا
سفله طبیب مۀ شه رنځ لا دوا کا

چه په ځوانئ کښې پرهيز دَ کک کا
پرهيز پيرئ لره پکار دے
کهٔ آدم زاد وی کار دَ مَلک کا
تش دِ په وخت دَ ځوانئ زړهٔ ډک کا

ژوندی کهٔ هرڅو شہ پا غوغا کا
سکه لکه دود دَ ژوندیو څهٔ دے
مړهٔ کله بيا رته راتلنه بيا کا
دے دِ په صبر کښې کار دَ دُنيا کا

دَ اور دَ تيغ سره سړے بازئ نهٔ کا
چه نهٔ تدبير لرى نه جود نهٔ توره
له مار لړم سره مهم سازئ نهٔ کا
هغه سړے به سر فرازئ نهٔ کا

زردی چه هرچا ته اعجاز معلوم کا
وينځهٔ ميرمن کا خادم مخدوم کا
معدوم موجود کا موجود معدوم کا
زر په سندان کښېږدے سندان هم موم کا

مغرور په چرخ مهٔ شه کهٔ دِ سلطان کا
خوارهٔ ترخهٔ ئے بقا هيڅ نهٔ لرى
زبون دَ چرخ مهٔ شه کهٔ دِ چوپان کا
نوى نقشونه په هر زمان کا

خيز چه کم ياب شى عزت پيدا کا
حلوا چه موړ خوری لذت ئے وى
زنکى په هند کښې قيمت پيدا کا
ډوډئ په وږى لذت پيدا کا

نورى نورى سره موافقت کا
طوطى طوطى سره موانست کا
نارى نارى سره مواصلت کا
زاغ دَ زاغانو سره الفت کا

کهٔ هرڅو سعى کوشش څوک وکا
وائى چه ځوئے م هوښيار قابل شى
نهٔ به بنهٔ بد کا نهٔ به بد بنهٔ کا
چه خدائے ئے نهٔ کا خوشحال به څهٔ کا

مرد به د تیرو چارو ارمان نۀ کا　　رنځور چه ومری ځوک ئے درمان نۀ کا
مردان هغه دی چه شرم ننګ لری　　لاف دِ د شرم دا بے شرمان نۀ کا

غنی کۀ هرڅو د زرو ویش کا　　پروا پرے نۀ لری صبر درویش کا
دا صبر بنۀ دے د غنی تر ورکړو　　صبر به نور نور نعمت درپیش کا

نامرد هغه دے چه وچا ته څۀ ورکا　　منت دِ پاسه ورباندِ زبر کا
په رنځ کښے ومره هغه دارومۀ خوره　　چه په منت ئے ونا ځوک درکا

پلو کۀ کښلے له مخه لرے کا　　راته په مهر خندا خبرے کا
ما به تو انګرکه د لعلو ډېرو　　هم را به تو ئے تر خولے شکرے کا

پایښت ئے لنډ وی چه څوک لباس کا　　مخ به ئے تور شی چه کوز اوباس کا
په شان شان خولے دی شان شان خبرے　　نادان چه وائی هوښیار قیاس کا

هغه باز چه په عصفور غوټے کا　　کۀ دے څۀ باز دے کار د بانبے کا
د بزرګانو همت بلند بویه　　کار دِ په قدر د مرتبے کا

فولادی توره وی له لویه تبه　　ترلا بده ده بدګویه ژبه
ډیرے بلا به درځنه واوړی　　ژبه کۀ بند کړے د پند طالبه

په واک چه نۀ لری په کام کښے ژبه　　کۀ ګونګ شی بنۀ دے په لویه تبه
په بده ژبه ځان ځی جهان ځی　　ایمان لا هم ځی واوره طالبه

طالع که ډک لرم له هره عیبه — یو کار م ښه دے بے شک و ریبه
چه خوک م پاتې په غلیمئ — وربانږ پریوزی بلا له غیبه

چه ډیر ویل که به ډیره ژبه — خوږے چه ژبه هومره سے ئے تببه
دَ باغ بلبلو و ته نظر کا — په خپله ژبه دَ قفس طالبه

دَ میو مسته هغه محبوبه — درسته په مشکو په ګلابو ډوبه
سر تورہ راغله خوږے ئے لفیینې — بوسه ئے راکړه ترقند و خوبه

چه زړهٔ فارغ اری له مکره ریبه — هغه به مومی نصرت له غیبه
دَ بل په عیب هاله نظر لره — که ځان دِ خلاص وی له هره عیبه

ښځه چه خلاصه وی له هره عیبه — زړهٔ ئے خالی وی له مکره ریبه
په مصلحت به ئے چرته بیا مومے — مګر پیدا شی چیرے له غیبه

خوښو نکرونه خوښو آشوبه — زړهٔ م په غم کښې ستړګے بے خوبه
داخل م وشوه په مخکښې سوبه — نور توبه توبه له مئین توبه

لنډئ به وانهٔ وړی له لنډی نوبه — لولئ به وانوړی له لولی توبه
که همه عمر سپے حلوا خور وی — منع به نهٔ شی سپے له سپی توبه

خوبزه نمړئ ده که خوبزه ژبه — چه خوک پرے خپل کړے ځما صاحبه
هنر هم دا دے که دا هنر لرے — چار به دِ تل وی ترسیال غالبه

چه رَو یو نهٔ وی دَ زړهٔ دَ ژبې
چه بد بوئ لری ډیره ترېخې لری
تل به نیولے وی هغه په تبې
خُکه غوخیږی سر دَ شُربې

سری خالی شول له سړیتوبه
په بل کښې شل دی په خپل کښې سل دی
دَ چا چه کورم فتنې آشوبه
بل وی که خپل وی ترې توبه توبه

تیراه م ولیده راغلم تر سواته
عقل همت م دَ چا و نهٔ لیدهٔ
پښتون م ولیدهٔ دا لوئے لوئے ذاته
په بیارته راغلم ناستے یم ملاماته

چه په وار وارئے له مانه بوته
پیرئ وکړے رابانډِ چارے
حُما خوبی ئے په چرته بوته
فولادی تُوره یم خوړلے پروته

په چرته لاړے دَ لوبو وخته
پرے خبر نهٔ یم یو اوهٔ غلهٔ وُو
تهٔ چا تالا کړے دَ خوانئ رخته
راته په خُو وُوشیه ورځ یکی لخته

نیکان له خپل خو یه خصلته
عفوه بدا نو لره پیدا دهٔ
خلاص وی له هره عیبه علته
نومیدی مهٔ کړه تهٔ د رحمته

نهٔ ننګ نهٔ شرم نهٔ حمیت شته
خُویه چه لوئے شی زوال دَ پلار غواړی
نهٔ مهر مینه نهٔ عدالت شته
نن په دا دور دَ شیطنت شته

کهٔ دِ په تن کښې دَ نس هوا شته
کهٔ کار په حکم دَ روح آغاز کړے
بالغ لا نهٔ ئے نهٔ دِ صفا نشته
فیروز مندی دِ په دین دُنیا شته

کهٔ هر څو کاندي څهٔ کمے نهٔ یاتے — میخوري ښیے کا د ځنو ماتے
کهٔ ئے خلل په ایمان کښے نهٔ وي — مومن به نهٔ شي په دوزخ پاتے

مخ د ساقي ګوره څو لا بهار شته — غوږ په رباب لره څو ئے لا تار شته
شیخان دِ ژاړي ته خانده رند اوسه — غم د ګناه مهٔ کړه چه استغفار شته

کهٔ مردئے مهٔ پرېږده مردي له دسته — مرد دے د پاسه ښځه د ده پسته
مرد چه تر ښځه پورے زبون شي — مردي ئے نیست شوه ښځه شوه هسته

هُنر م جوړ کا و تخت و تاج ته — طالع م ناست دے تاخت و تاراج ته
بل ارمان نهٔ لرم ارمان م دا دے — چه پیري راغله حُما علاج ته

چه ئے کاسه کړه د مجنون ماته — مینه ئے لا شوه په لیلیٰ زیاته
جور د ښکلیو په معنیٰ مهر دے — ښکنځل ئے ښهٔ دي تر ښهٔ نباته

چه پکښے لوئے شي بے مصلحته — خونه خالي شي له برکته
تر بد بخت ځویه نیک بخته لور ښه ده — فرزند دِ نهٔ وي بے سعادته

لکه چه شوي دي حُما له دسته — شوي به نهٔ وي له مے پرسته
شهوت بلا دے سړے ګمراه کا — ددهٔ مستي ده تر هر څهٔ مسته

د چا په مرګ شي خونه میراته — حُما بے مرګه شوه لا ته پاته
ښه چه دا هسے شوه زهٔ هم پر ځوېش یم — چه لا را نهٔ شوه دا بلا زیاته

چه بدې چارې ښې شي و چا ته — هغه سازیږي بدې بلا شته
چه کار د کړلو وي پکښې کاهل شي — تر دنیا بې خوږي نشته دویم ماته

که د ګلابو د ګل خاروونه شته — بیائې په ګل کښې ډیر ډیر کارونه شته
اول ئې روئ ګوره بیائې بنه بوئ ګوره — بیائې پسولو کښې هم ګڼ کارونه شته

که د برې کښلې په صورت بزرګي شته — لکه مهروده د کیسې برګې شته
هرچا چه ولیده زړه ئې پرې بائیلو — خوشحال ویریږي د دې هم سوګې شته

ښکار د توپک نشته نه ښکار د باز شته — که م په زړه کښې د دوا یو راز شته
کتاب قلم لرم اوس پرې ویریږم — دا د پیرئ ناز او نیاز شته

چه برهٔ ئې وروستم نردې د ګورته — بیائې چه راوستم د دنیا کور ته
له سختې رنځه ئې تندرستي راکړه — ګوره ساقي م بیا کوم شرشورته

ستا تر چشمانو خمار د مُل کښیناست — ستا تر خبرو زغ د بلبل کښیناست
چه دِ رخساره ورته ښکاره کړه — څکه په سپینو خولو کښې ګل کښیناست

څو دِ دولت شته هومره عزت شته — څو دِ صحت شته هومره راحت شته
چه پیری راشي دواړه په مخ ورځي — که دِ دولت شته که دِ صحت شته

هر څوک په کار کا بې مصلحته — هیڅ به ونه خوري بر له دولته
که بخت نه هر څو کارونه ساز کا — خالي به نه وي له [illegible]

چه کارئے بیائ فلک په کښته چارے به کاندې بے مصلحته
نجیر کۀ څېردے چه بے تدبیر دے په خزه بند شی له دے شامته

مهر په زړهٔ کښے څما دَیار نشته څما په زړهٔ کښے صبر قرار نشته
نهٔ خوږ غمخور لرم نهٔ زر نهٔ زور لرم وچا ته دم وهم ځائے دَګفتار نشته

ژبه مې نهٔ دَری بے نصیحته وایم دَ عمر له حلاوته
اول ځوانی ده بیا تندرستی ده بیا ئے خوبی ده له بنه دولته

چه مستغنی وی له نصیحته هغه به نهٔ وی بے قباحته
یا به احمق وی یا به بدذات وی یا به محروم وی له بنهٔ دولته

چا ته به راز وایم چه مې رازدار نشته غم مې به خوږ اخلی چه غمګسار نشته
کیمیا به بیاموے وفا به نهٔ موے هزار یاران لرم یو وفادار نشته

چه باز دِ لاسه شی چیرے له دسته په غرهٔ په سمه کړي وریسے مرسته
هُنر هم هسے یو یاغی باز دے طلب ئے نهٔ کړے په همت پسته

تیراه مې وغوښت رسم مې وکوت رنځ مې دوا شو ځایونو والوت
پم دے کهٔ غم دے په برمول کښے په ګرولو مې پوستکے وخوت

کامل چه وګوری وکائنات ته نظر ئے وشی وهر ذرات ته
په هر ذرات کښے هستی دَحق وینی دلیل ئے وړولی دَحق وذات ته

پرهار په دهٔ باندِ کهٔ دَ سوزن نشته
دَ شهیدانو جنازه بویه

عاشق شهید دے په دا کښے ظن نشته
دَ شهیدانو غسل کفن نشته

غم دے کهٔ غر دے راباندِ پریوت
راباندِ تل تل دَ غم تاختونه دی

کهٔ سرے لمبے دی زړهٔ مے پرے کښیوت
زبون ئے بیا مونده خوار پسے ووت

درته پښتو وایم صافه سلیسه
ذات ئے خبیث دے هندکیٔ هرګز مکړه

بهره کهٔ واخلے له دے حدیثه
چه ترے پیدا نشی یو خو خبیثه

کهٔ مِ په سر شے دَ مینے تاجه
بیدرد دِ تا دَ قدر خبر نهٔ دے

نو به مِ خلاص کړے دَ غم له باجه
ماته رادرومه دَ غم تاراجه

ښځه چه ورشی تر چل و پنچه
کهٔ خان ترے موے ترے پستنه اوسه

خوبی ئے لاړه مارده سے ګنجه
خلاص ئے له رنځ شه خلاص ئے ترګنجه

اے چه دِ نول دے حُما له مخه
په عشق کښے مرد اوسه پروائے مکړه

دَ رقیبانو به بده رخه
زهٔ به دِ نهٔ کړم دَ چا په سخه

خلق په ما کا کینه هم رخه
بیل شوم له یاره ژوندے لا یم

کهٔ خدائے مِ نهٔ کا دَ چا په سخه
خو به یر شرمیږم دَ یار له مخه

زمانه اورده تهٔ لکه سپانده
هم به لوګے شے هم به ایرے شے

کهٔ نن ونهٔ سوے په اور کښے کانده
کهٔ ژاړے ژاړه کهٔ خاندے خانده

باران چه وشي په پټي باندِ — هاله تازه شي خوبۍ کاندي
زړهٔ مې پټي دې باران دَ مهر — پرې تازه کيږم څوراته کاندي

سړې څهٔ خيز دې چه څهٔ به کاندي — خالي تش نوم دې اختيار پرې باندِ
کهٔ بادشاهان دي کهٔ لوئې خانان دي — ځورولې هيڅ نهٔ دې دَ قضا په وړاندِ

ترږې چه سخت وي ساعت پرې باندِ — خوږې اوبهٔ ورشي سړې ورباندِ
وخت دَ اَهاړ وي تهٔ راته ووايه — چه څوخوښي به حاصله کاندِ

اوښ مې تيار دې کجاوه باندِ — ياران مې لاړل واړه دَ وړاندِ
دايم ځوان يم ورپسې درومم — جرس فرياد کا خبر راکاندِ

وماته څوستائې شيخه نابوده — دَ جنت حورې نور نور مقصوده
نن به ګلرنګه معشوقه ګورم — ځما توبه ده له نسيه سوده

کهٔ هرڅو دُورې درازې بليږدې — په مړګ به واړه په مزکه کښيږدې
حاصل دَ عمر څو دا دوه توکه دي — چه وړاندِ ورو ورو دروستو پريږدې

مرد دَ ميدان دې ښځه دَ کټ ده — نهٔ دا خبره دَ غش د وټ ده
دَ اوښ باړونه په تاڅوک نهٔ ليږدي — مردي کهٔ کورې څهٔ دوپاړ مټ ده

هم مې خيالونه هم مې ښيوه زده — هم مې په عشق کښې دَ راز پرده زده
چه يار مې نشته دا واړه هيڅ دي — کهٔ يار مې وشي ياري مې ښه زده

چه گل دَ باغ کا خندا بنیاده
بلبلے ژاړی په ډیر فریاده
خوک په خندا کړے خوک په ژړا کړے
دا چارے ستا دی دَ صبا باده

واوړه دوه پنده ځما فرزنده
طمع حرص لری خواری ځوګنده
دولت دَ صبر دَ قناعت دے
هما ئے چه خلاص دے له هر بنده

که ئے دَ خضرؑ پیاله خوړلے ده
دا نا هستی د ژوندون ژوړلے ده
هرچه کمال لری هغه زوال لری
هستی نیستی ئے سره تړلے ده

چرګان بے وخته بانګونه کاندِ
بیا ځهٔ بلا دی بانذِ هړانذِ
زهٔ ئے بے وخته له یاره بیل کړم
چارهٔ ئے سازه شه په ستونی بانذِ

هواهوس کړے په قهقهه خاندے
بے غمه خوب کړے پالنګ دړانذِ
بنهٔ مُبارک شه بنادی دربانذِ
غمونه ئے لوے دَ ګور دَ وړاندِ

په کوهِ قاف کښے که رهبر دَ وړاندِ
کهٔ درومی نهٔ به وی سختی دربانذِ
کهٔ بے رهبره په سم میدان دروے
خوځو بلا به شی په تنا هړانذِ

قافلے لاړے ترما دَ وړاندِ
زهٔ ګوډ بارګیر کته [illegible]
وړپسے دروسم سره شوریږم
پریوزم ځار شکی بازی [illegible]

چه زغلونه دَ آسونو کاندِ
نظر دِ کوړ لری په مزړے بانذِ
چه آس په لوړو ژوړو زغلی
آس ئے پریوزی ترځان دَ [illegible]

ځوک چه خبر نهٔ شی دَ خط له خونده
قلم به نهٔ ږدی په حرف بے بنده
شماره دَ نورو حرفونو څو کړم
چه یو اَلف دے په درے پیونده

زمانه اور ده اے نانغتا ننده
ته وچ لرگے نهٔ لښته تانده
دا اور به تا وته په منډه درشی
کهٔ ژړا بهے ژاړه کهٔ خاندے خانده

ته دا دنیا کړه له ما نه یاده
بهره آخله دَ بهار له باده
لکه دا بادے په واښو ونو کا
هسے به ستا کا دَ ژونه بنیاده

وښے چه نغن مومی شکر دِ کاندِ
غوښی کهٔ نهٔ مومی پاسه ورباندِ
ستړے دِ شکر کا کهٔ اَس ئے نهٔ وی
په لاره کهٔ خروینی ترڅان دَ لاندِ

چه سختے چارے لرے دَ وړاندِ
په څهٔ بے غمه په قهقهه خاندے
هسے په زړهٔ کښے فکر ونهٔ کړے
چه هومره څوک دی ترخاوړو لاندے

کهٔ ئے ترسپینو سرو کړه لاندِ
دا واړه هیڅ دی په بدرنگه باندِ
کهٔ ئے دَ پوزے لونګ هم نهٔ وی
ښهٔ مخ بے پسوله زیبائی کاندِ

دُنیا چه هسے وبله بلیږدی
چه څهٔ ترے آخلے ورباندِ ریږدی
خبر لا نهٔ ئے په دا خبره
نامرده واوُره چه کښیږدی پریږدی

هغه چه عار کړی دَ خوشحال له پنده
بلا پرے روسته آسمان ځرګنده
ورته زرګونه بلا خُولے وازے کا
سرے چه وُوزی دَ نیک خواه له پنده

په جنګ کښې مه کړه تربل د وراندِ
ژوندے کۀ پاتے شې ځان دِ عزیز کړه
نور به خبرے د رخنې کا ندِ
کړۀ ومرے ومرے رحمت دربانِد

خزان وهلے دِ له نابنادره
وخت دَ بهار شو بیا به ارمان کړے
غافل م مۀ شه له دے اِرشاده
بهره نن اخله دَ بهار له باده

عاشقه خانده نن خوچه خاندے
طالع کۀ هرکله هسے مدد کا
بنۀ مخ ترتا شو لاندِ تۀ باندِ
تل تل به هسے ترماشی لاندِ

تل که بنیګړه له آدم زاده
درته به خیر شی په سل بدۍ
نۀ بنۀ کۀ وکړے ځۀ کمی زیاده
هیڅ به دِ نۀ کا بنسیګړه یاده

زړۀ کے چه هسے په قهقهه خاندِ
هرڅوک چه خاندی بناد ئ کاندِ
هم دا خندا دِ کړه دَ باز د وړاندِ
غمونه ورشی په هغو باندِ

خلق چه هومره یاری کاندِ
مرګے له ډیرو غمونو خلاص کا
ځان کا پخپله ترغمونو لاندِ
منت دَ مرګ دے په هرچا باندِ

لؤلؤ دِ غابښ دی یاقوت دِ شونډے
چه تاڅوک وینی په تا مئین نشی
دَ ډیرو خونے درپسے ډوبیږے
په زړۀ دا نۀ دی یا سیزے پوډیږے

هومره بلا دی وتاته پنډے
ګوره په کومه بلا به سر شی
چه شمارئے نشته پتے برمنډے
چه پکښے تۀ ګرځے په هنډے منډے

دَحسن نام لرے عاشق غلام لرے
خیال به تهٔ نهٔ کړے خیال به نورخوک کا
باده په جام لرے دَ زړهٔ هرکام لرے
چه دَخوبئ اسباب تمام لرے

دهن دِ میم دے زلفینے دام لرے
خیال به تهٔ نهٔ کړے خیال به نورخوک کا
ذقن دِ سیم دے سترګے بادام لرے
چه په دا دور دَ حسن نام لرے

تن یو غلاف دَے زړهٔ پکښے تُوره
مدار په تُوره دے په غلاف نهٔ ده
دَ تور دَ سپین نهٔ ده وینا منظوره
چارئ په هرچا ده مشهوره

په زلفو کفر په زړهٔ اسلام لرے
خیال به تهٔ نهٔ کړے خیال به نورخوک کا
دَ سترګو سحر په زړونو عام لرے
چه نن څهٔ خان ګنړے هغه غلام لرے

کهٔ ځلئ دَامن خوراک پوشاک لرے
مه په طاعت کړه خلوت ګزین اوسه
شکر وکا زړه نورخهٔ بلغاک لرے
خضر دَ وخت ئے کهٔ نفس هلاک لرے

کهٔ خپسر خوار کړے ترتورے خاورے
جفا دَ خلقو په مخ په شا وړے
په هرچا سوړشے ترسړے واوړے
رنګ رنګ ګلونه به له تنه راوړے

ارمان دے دریغه دا یو خو کاره
تل تل به وار دَ ځوانئ نهٔ وی
تل تل به نهٔ وی تازه بهاره
تل تل به نهٔ موے مهرله یاره

چوز باز چه ووینی دجال کوتره
لګړ کهٔ هرڅو غوته تیره لری
پرواه ئے نهٔ وی له خپله سره
نه برابره بیا لره برَه

خبرچه نهٔ وی دَ عشق له کاره
بے یاره عمر څهٔ عمر نهٔ دے
په هغه کس وی یاری دشواره
زړه په ګور شی سړے بے یاره

په ما څهٔ کار لرے دروهه هوښیاره
نهٔ څوک ادیب لرم نه څوک طبیب لرم
زهٔ لیونے یم مینه شُده یاره
درد م له یاردے دارو له یاره

ګل دَ ګلابو شوے چه رنګ وبوئ لرے
دریغه دا کاردِ په ذات کښے نهٔ وے
شیدا بلبله په هر هر سوئ لرے
وفا دِ نشته دا خوئ بدخوئ لرے

په ځان خبرشه چه چرته ځائے لرے
ځائے دِ په پورته ترملکوت دے
چه تخت نشین ئے څه هوئے وهائے لرے
چه ناسوتی شوے خوئے دَ ګدائے لرے

هومره بدلے هومره سندرے
فهم م وکړ دَ عشق په کار کښے
تماے نهٔ شوے دَ عشق خبرے
لرے نزدے دی نزدے دی لرے

څوک چه یادیږی په نزدے لرے
څنے خبرے لکه مشکنرے دی
ترهرچا ښے دی دَ یار خبرے
څنے خبرے دی مرغلرے

کهٔ رنګ ماهی خورے کهٔ مره پاره خورے
څوانی چه لاړه هوښیار هیڅ نهٔ ئے
څوانی چه لاړه دا آواره خورے
غم دَ څوانئ چه دوباره خورے

توړے زلفینے په مخ شان شان لرے
دَ نوړو کودو حاجت هیڅ نشته
اُوربل په وچولی پریشان پریشان دے
دَ سترګو سرے جهان جهان لرے

هرګوره بنه ئے دَ زرګر هُنره
تردا دپاسه کبوتر باز دے

چه سپین جدا کړے له سیم وزره
دَ نښځے ها کا جدا له نره

تورغرونه سپین کړے په سپینے واوره
رنګ رنګ ګلونه چمن ته ورکړے

په سبزه شنے کړے دا تورے خاورے
باده دا ته ئے چه داخۀ راوړے

چه رابنکاره شی په خوښو طوره
بل فکرمۀ کړه بل ګمان مۀ کړه

ښوښو فتنے لری ښو هوره زوره
فریاد م واوره دے دَیار له جوره

کۀ قایمُ اللّیل ئے کۀ صائم الدَّهَر
دَ مخلصانو خطر لا ډیر دے

غم به لا ډیر کړے دَخدائے دَ قهر
سړے شکرے خوری پکښے وی زهر

باغ ونے وچے لری هم ترے
په سایه ګورے په میوه ډکے

هم ئے بهتر شته هم ئے کهترے
ته هغه ونے ګنړه بهترے

راشه بنیګره دَ ونے ګوره
په سنګ ئے وول میوه درواچوی

خپل ځان په نمر کا بل که ترسیوره
خصلت له ونے واخله اے وروره

کۀ تل تل نوموی په خوله شکرے
مزه به هله دَ شکرو بیاموی

خوند به ورنۀ کا په دا خبرے
چه خوله پرے ووهے چه ئے ونغرے

ته یو طلسم ئے بے اعتباره
اول هم هیڅ وے بیا به هم هیڅ شے

له خاوره باده له آب و ناره
په ځان خبرشه دَ خدائے دپاره

لکه زه غوښتنه هغه نګاره
په سخ زه مه کړه دَ رقیبانو

غا ښه غمی ده راسره یاره
دُعا زما داده پروردګاره

حیران یم پاکه پروردګاره
محتاج هیڅ نهٔ ئے دَ خپلهٔ دیاره

تا چه پیدا کړل دا دواړه داره
دا هومره نقش هومره نګاره

کهٔ ئے وفا درلے ښے دی دلبرے
دَ تورو زلفو دَ مهربوئ نښته

ولے هیڅ نهٔ دی په دا خبرے
کهٔ په نمود دی لکه عنبرے

کهٔ لعل و دُر دی دَ خوشحال خبرے
بخرے دَ هرچا جدا جدا دی

چه تهٔ ئے نهٔ منے له تا دی لرے
کارګان ګندګی خوری طوطیان شکرے

له لارے مهٔ غرېږه خوځه په لارے
بے لارے واړه غولان دَ دان دی

کهٔ پرېوزے پاخه خوځه په لارے
غولان دَ دان نښته خوځه په لارے

تل دَ کمزوری وی دا یو خو کاره
بنځه کمزورے ده ځکه اِنکار کا

مکر دروغ کا په خو اِنکاره
په دا سبب ده هومره مکاره

په خولهٔ خبرے له کردګاره
فریاد فریاد دے په هسے زیست کښے

په زړهٔ خبرے له کښت وکاره
توبه توبه ده له هسے کاره

چه بنځهٔ مردان دی دَ دین دَ لارے
اوبهٔ چه نهٔ وی روا په شرع

پټے به نهٔ وی دَ دیو چارے
هغه اوبهٔ به ګنړی مردارے

دَمور په نس کښې فرښتې اے یاره
رزق او فعلونه عمربهٔ بد بخت

دَ سړی وکښې دا یو څو کاره
داوسوے دی دَ څهٔ دپاره

کهٔ زرځنوه په هرویښتهٔ لرے
خوشحاله یو نشته چه زړهٔ پوے بنهٔ کړے

بیا به په کار کښې توکل تهٔ لرے
نن ورځ کهٔ څویه نمسی شپیتهٔ لرے

کهٔ چار دَ عقل لرے بسیاره
تهٔ خاموشی زده کړه له چارپایانو

چارپائے به نهٔ کړے گویا هوښیاره
چه خاموشی لری فائده تیاره

پورکهٔ دَ مرے دے تښتته له پوره
دښمن کهٔ سهل زحمت کهٔ لږ دے

اورکهٔ لوګے دے تښتته له اوره
بے غم ترے مهٔ اوسه اے څما روره

دَ مارکهٔ نهٔ وی په تن کښې زهر
دا دواړه توکه به څما په پوهه

سردارکهٔ نهٔ لری خنجر دَ قهر
نهٔ یاد په کلی وی نه یاد په ښهر

دَ بابا څویه دَ بابا سپلاره
یوسفؑ کهٔ هرڅو ښائسته روغ ؤو

په زلفو لیله په مخ نهاره
گویا سمن ؤو ستا له گلزاره

بے عیبه یار نشته په ملک هوښیاره
کهٔ گرځې واړه با غونه وگورے

په عیب مکړه زړهٔ بدله یاره
گل به بیا نهٔ مومے خالی له خاره

په زړهٔ مِ هومره نهٔ دی انبارے
یا بیا نیږی څما په ژبه

چه ئے قلم کا په کاغذ نګارے
یا ئے قاصد کا درته تکرارے

سړے چه کښینی تر سرو سیورے
رضائے نهٔ شی وپاخیدو ته

غارمهٔ پړے تیروی کهٔ ته ئے گورے
که ئے لمبه کړے په لمن پورے

ثنا صفت کا عالم له میوره
نظرچه وکا وخپلو ښښو ته

نقش ونگار لری په خوخو طوره
زړهٔ ئے اخته شی په ډیرډیرخوره

خوشحاله خوبه غمونه نغرے
سترگے ږم وختے ذ آسمان ویرته

غم به دِ کله شی له دِله لرے
که چیرے وارراشی هاله خبرے

خوک دے چه واوړی له بده کاره
توبه هاله ښه ده له توبه کاره

خوئے وانهٔ ړوے پروردگاره
چه ته ئے ټینگ کړے پروردگاره

ذ هوښیارانو خوږے خبرے
نادان په مثل غل خواره خردے

قند دی نبات دی شهدو شکرے
ذ خوږ وخوند دے ورځنے لرے

خپل بند وبست دے ذ هرے چارے
پاکے اوبهٔ بویه زیست اوروزگارلره

پاکے مشکوکے شته اوبهٔ مردارے
مردارے کله دی سزاوارے

هرخوک چه لاف وهی ذ عشق له کاره
په مړو ایروکښے بخرے چیرے وی

عاشقی چیرے ده لاهسے خواره
عاشقان مړهٔ دی ذ یار دپاره

شراب خوښی لری په خبنل بسیاره
هرچه دولت لری نکبت ذ یار لری

خوښی ئے نهٔ وی بیابے له خماره
غره دِ نهٔ شی په ځان یکباره

چه یادؤلے شی ګذشته چارے
ګوندِ ښوک بند واخلی ځائے دَحذرده

فائده نشته شته څهٔ خو بارے
غلط نورنهٔ درومی په غلط لارے

منت دَچا مهٔ وړه دَ یوے تورے
نور ښوک لا پرېږده که خویه زور وی

شونډے کښے مهٔ ږده په غوړے سپورے
اورکړه دَدوئ په خپلوئ پورے

آسمان پیږے لوی ځما پسره!
په غم کښے طمع دَ ښادمانئ کړه

مهٔ ډیرغافل شه مهٔ ډیرے سره
په ښادمانئ کښے له غمه ویره

کال دَ غغم ۱۸۳۰ دو په خیبر کښے هورے
مهمند شینواری خو آفریدی ؤو

مغلے بند شوے هم کنډے بورے
واړهٔ وهلے دَ یادو تورے

چه بادشاهانو ته واخلی تورے
که بیا باورکا په بادشاهانو

دَدوئ خبرے شی په ملک مشهورے
هغه به میندے په ځان کا بورے

ښځے م ولیدے ډیرے بے شمارے
چه نهٔ کا نهٔ کا چه کا خو وکا

پاکے نیک زنے بدے بدکارے
دَ مرد په غیر کښے ناپاکے چارے

په لاس چه واخلی مردارے چارے
که نڼے مرګ وی نهٔ ئے طلاق وی

نوم شی دَ ښځے دَ زناکارے
په مردئے بند شی دَ جنت لارے

ځویه بد بخت شی په دا دوه کاره
بدبخت چه کښینی په ګلستان کښے

عاصی له خدایه عاصی له پلاره
ګل به ئے نهٔ شی نصیب بے خاره

هغه مفلس ئے که ځهٔ غنا لرے
کهٔ حق دَ چارے یا دَ آشنا لرے

کهٔ ځهٔ غنالرے ولے غنا لرے
ورځئے ولے ځان ناآشنا لرے

په چاچه وشی دَ همائے سیوره
مهر دَ خاصو دَ همائے سیورے دے

دولت وردرومی له هره لوره
په چاچه وشی دا سیوره گوره

کاتهٔ دَ سترګو دَ خولے خبرے
داچارے واړه په لاس دَ زړهٔ دی

وچرته تلنه نزدے بیا لرے
بادشاه ئے زړهٔ دے وجود لښکرے

بے قدره نهٔ دی دَ راز خبرے
ځائے دننه دَ زړهٔ صندوق دے

دَ راز خبرے دی مرغلرے
وربه ئے نهٔ کړے همدم تهٔ لرے

دا سحر گره دُنیا مکاره
چه ئے له موره پلاره ویزار کا

ځویه ویزاره کاله موره پلاره
هسے داهم شی ځنے ویزاره

پاکان به درومی په پاکے لارے
چه سترګے نهٔ لری وته به ځهٔ بنیمٔ

ناپاک به کاندی ناپاکے چارے
دَ هرهر باغ دی میوے تیارے

چه رابنکاره شوے دَ دُنیا چارے
فکرم سترے په بیارته راشی

فکرم لاړشی په لارے لارے
دَ وراندِ راشی لاړے حصارے

خلق چه غواړی لوړے ژورے
په پټے سترګے به ننداره کرم

له مانه مهٔ غواړه تهٔ دا خبرے
چه راته یودی نزدے هم لرے

کۀ ډېر مونځونه روژه تل تل لرې
کۀ دوزخی ئې دوزخ به مومې
هغه به مومې قسمت چه خپل لرې
کۀ جنتی ئې څۀ غم و دل لرې

سخ دِ په کور دے چه دا خو چارے
بنۀ بنۀ ځایونه بنۀ بنۀ بویونه
لرې په کور کښې بنې بنې نګارے
حمام په عطرو جامې بوئیدارے

چه بنۀ ښوولی دی له موره پلاره
کۀ باندِ خیرے یا تکے پریوزی
بنه تنسته لری سپینه چوتاره
پاکیزګی ده ورته تیاره

ځار تر هوښیار شم دَ هوښیار خبرے
دَ نادانانو رښتیا څۀ سود لری
دروغ رښتیائې دی واړه شکرے
چه ئې خبرے دی له خیره لرے

اَرمان دے دریغه ځما ګلزاره
مزکې ظاهر م درلره درغے
غنچه ریژیږی اُوس له شاخساره
بد رنګ ئې مۀ کړه دَ خدائې دپاره

دَ احمقانو بے ځایه چارے
ښیګړه دا ده چه رنګ ئې مۀ کوه
څۀ هومره نۀ دی چه ته ئې شمارے
ورسره مۀ ږده قدم په لارے

نن په نظر راغله یوه وزیره
زلفې ئې بنې وے دَ تیبت ترمښکو
بنه ترتیبت وه هم ترکشمیره
په نورو سترګو وه دَ کشمیر میره

ځوک چه مردود شی له پیره میره
نرونه چه زېږونه دی لکه ماران دی
خالی به نۀ وی له غمه ویره
زهر و مهره لری په ځان خبیره

هندی تورسکا نړدی له موره پلاره
تاثیر کهٔ تخم آب وهوا لری
پښتانهٔ واړهٔ سرهٔ سپین اے یاره
تهٔ واړهٔ وګنړه له کسرد کاره

نافے دَ مشکو دی دَ دانا خبرے
دَ نادانانو خبرے هوښے دی
څوئے پرانزے نکهت ئے نغرے
دَ مښکو بوئ شی په هوښ ونږے

دین دے کهٔ دل دے کهٔ عقل صبر
اوس راته پاتے دا یونفس دے
له مائے یوړل واړهٔ یے جبر
دا به هم یوسی بچئی دَ ګبر

شته ستا خبرے پنډ پنډ شکرے
په هر سپی نغرے په څو شکرے
پنډ پنډ شکرے شته ستا خبرے
په څو شکرے په هر سپی نغرے

څما توبه دهٔ له نادان یاره
دے به دِ ښهٔ غواړی تاته به بد شی
چه ئے یاری دهٔ میرځی تیاره
غم به پیداشی دَ دهٔ له پیاره

پیریٔ رانیول له ما څو کاره
چه مهر مینه یاری ترے غواړم
لاړم دَ غشی دَ توپک له ښکاره
راپورے خاندی څوانه نکاره

خواږهٔ دَ مهر وی خواږهٔ دَ زهر
څنے وریځ واوُرے اوبهٔ وی
وریځ دَ رحم وی وریځ دَ قهر
څنے برلئ تندر دَ دهر

وفا به نهٔ موے له هره یاره
دا اوس یاریٔ دَ وښو خونے دی
یاریٔ مهٔ کړه له چا هوښیاره
واورته خونه دَ وښو تیاره

واړه فاني دي دَ دُنيا چارے
چه ښېرۀ ئے وتارۀ باندِ يک لخته
په ځائے تل نۀ وي سره قرارے
دَ هغو سر يو دي بخرے خوارے

تورے زلفينے لکه سنبل لرے
چه دَ سريو په ښرونو ګرځي
خو بئ دَ حُسن زياتے ترګل لرے
تۀ هغه هومره ښيبائي ګُل لرے

ښے دي ترمښکو دَ وطن خاورے
ښېرۀ تاخسرے دَ لوئے درياب کرم
تودے اوبۀ دي دَ وطن واوُرے
اوس به په کومو موجونو ماوُرے

دَ ګل ترپاڼيو نازک اندام لرے
خيال به تۀ نۀ کړے نور بهٔ ئے څوک کا
شيرين ترقند و دَ خولے دشنام لرے
چه په خپل حسن دماغ مدام لرے

هوښيار چه واوُري دَ پند خبرے
نادان دَ خرونو په شمار حساب دے
ورباندِ لګي لکه شکرے
دَ پند شکرے په خرونو غرے

ښېرۀ چه ښوان شي په لارے لاړے
څو پسے درومے اندوه به موے
فائده ئے وايه وماته بارے
تولے به نۀ کړے پريشانے چارے

چه راته غوټه دَ ورخيو ميان لرے
ناحق دَ بدو ګمان بښۀ نۀ دے
په زړۀ دِ څۀ دي بيا کوم ګمان لرے
کافره نۀ ئے تۀ هم ايمان لرے

په ځاچه نۀ پسندے ګرانے دشوارے
په خدائګو واړه جزا سزا لرے
په تا به نۀ درځي دشوارے چارے
ترپښو کۀ لاندِ کړے ميرۀ په لارے

یاری له بده بدخویه یاره
که بنائسته وی جور و جفائے وړه
شلولی بنه ده په خو اعتباره
ګلونه کله وی د باغ بے خاره

په روم په شام شی د لیلی خبرے
عشق م په مثل نافه د مشک شو
په هند په سند شی د مجنون سندرے
چه بوئی ئے خور شی په نژدے په لرے

که چیرے وو وینے عیب له یاره
عیب پوشی بنه ده که عیب جوئی بنه د
بنکاره ئے مه کړه د خدائے دپاره
فکر د دواړو وکړه هوښیاره

په حق ولاړ اوسه اے ناصبوره
چه څوک په لاس کا ما امتحان کړ
صبر کړه صبر ده صبر توره
فتح دائم ده ورته حضوره

چه پاک زوولی دی له موره پلاره
دین و دُنیا لره پاکی بکار ده
ناپاک ئے مه کړه پروردګاره
ناپاک به خوار وی په دواړو داره

درویشی دا ده که تل حلال خورے
کښینے وعدے کړے مخ د خدائے تور کړه
که تل حلال خورے بیا د خپل مال خورے
پردی مالونه په دا تیهال خورے

عاشق ویزار دے له موره پلاره
وځان ته شا کا تر ایمان تیرشی
پرواه ئے نه شی له نوره ناره
کفر قبول کا د یار دپاره

بنځه ئے پسند لے عقل تمیز لرے
موسیٰ د خضر په پیروئ ته
څو وائے هومره هنر هرخیز لرے
د دے خبرے خبر که نیز لرے

کۀ زور دَ فیل لرے زړۀ دَ ضیغم لرے
علاج ئے وکړہ لہ پسہ خوب کړہ

لہ تاچہ غم لری څُنے بہ غم لرے
پہ خپلہ خونہ کښې چہ مار لړم لرے

تۀ لاړے درنگ تہ خپل ځائے دِ درنگ کړہ
ستا پہ فراق کښې لکہ نارنج شوم

پہ درنگ دِ ولے دا هومرہ درنگ کړہ
غم دِ هم چیرے حُما دَ رنگ کړہ

چہ عیب نۀ لری کۀ هسے یار غواړے
بے عیبہ یار بہ چرے بیا نۀ مومے

دا هسے یار بہ پہ کوم دیار غواړے
کۀ گرځے گرځے جهان بسیار غواړے

خدایہ چہ پاک دی ناپاک ئے مۀ کړہ
چہ پہ مخ سرونړی وگور تہ درومی

دَ ناپاکانو صابون توبہ کړہ
کرم دِ ډیر دے ما هم هغہ کړہ

چہ آئینے تہ ښکارہ دیدار کړے
چہ شونډے کښیږدے دَجام پہ مورگو

آئینہ درستہ سرہ گلزار کړے
اوبۀ پہ جام کښې رُبِّ انار کړے

اورکۀ بخرے وی څُنے بہ ویرہ کړے
نور نور رنځونہ بہ تاتہ څۀ وائیم

علیم کۀ خړے وی څُنے بہ ویرہ کړے
بنځے کۀ خرے وی څُنے بہ ویرہ کړے

دَ هرسړی سرہ چہ آشنائی کړے
دَ آشنائیٔ سرہ غمونہ دی

نۀ چہ پہ طمع ترے روښنائی کړے
ځان بہ ترے شرغورے کۀ دانائی کړے

پلارئے پہ بند کړہ ورئے بند بند کړہ
اوس بہ غزا کښې خپل ځان غازی بولی

ځان ئے هم شیخ کړہ هم دانشمند کړہ
پہ خوشو رنگ ئے خپل ځان خرگند کړہ

چه هومره قهر دَ کوتو مرور کړے
چه اوس دِ نوے په لاس نيولے دے
په دا پوهيږم نن پرۀ به راسوړ کړے
بے بختہ نۀ ئے کۀ دا اکبر زور کړے

نادان پخپله دَ ځان غم ډير کړ
هغه چه هير بويه هغه ئے ياد دى
نابودے پوهے سره تير بسير کړ
هغه چه ياد بويه هغه ئے هير کړ

له خپله ياره چه بدګوئ کړے
حق شته انصاف شته عذاب ثواب شته
دَ اغيارانو چه دلجوئ کړے
ولے دا هسے ناپير ځوئ کړے

له تا چه ويره کا ځنے به ويره کړے
کۀ ئے دَ ويرے علاج درونۀ شى
يا به ئے ويره له زړۀ بدره کړے
مت کړه چه زړۀ ئے مهم ترسره کړے

عزت په دا کښے چه هيڅ دروغ نکړے
کۀ زړۀ دَ يار ساتے دَ يار په رائے درومه
دَ چاله غوږه خوانه آروغ نۀ کړے
خپل زړۀ چه بد نکړے بل زړۀ به روغ نکړے

تعليم دَ زاغ و زغن کۀ ډير وکړے
دَ ترخے او سپينے تُوره کړه سازه
ښکار به پرے کله دَ باز په خير وکړے
غزا به کله په هغۀ شمشير کړے

مردے کۀ هيڅ يے ويره له چا نۀ کړے
کۀ لوئے منصب لرے خاص دَ بادشاوی
طمع له چا نۀ کړے غم دَ دُنيا نکړے
له ميره پيره به خوف ورجا نکړے

ربه وماته دولت اقبال راکړے
حرام کۀ شبه دکار دپاره
په لون لون دَ دُنيا مال راکړے
چه زۀ ترسيتونى ځئ هغه حلال راکړے

غافل خوب عمر په ځان کښې هیر کړ
نه ئې څۀ ورکړه نه ئې څۀ واخستل

امیدئې لږ شو حسرت ئې ډیر کړ
عمرئې هسې حبطه تیر کړ

په مارچه وارجوع کړې کۀ ګذار پرېنکړې
کۀ غول توب دے کۀ بښاغل توب دے

خپل زړۀ خو وپوښته چه زړۀ داخۀ کړې
خود په زړۀ کښې ننداره وکړې

خپل ځان ئې روغ کړ یار ئې بیمار کړ
لا یو ناترس دے یا ئې یاری نۀ زده

یو څۀ بښۀ یار دې خوشحال چه یار کړې
یا ئې پکار نۀ دے ترځان ئې ځار کړې

ښو یو م خوئ د خټکو نور کړ
وخت د ګټېنې د نام وننګ ؤو

ځما په نقش ئې پورې سورا ور کړ
بدو ځامنو را تخته خور کړ

کۀ څوک دِ وښکنځی غیرت پیدا نۀ کړې
نه حمیت لرے نه شرم ننګ لرے

د دۀ وسرته توره ترملا نۀ کړې
مردی دِ نشته غیرت په دا نۀ کړې

له دے دُنیا نه به آخر سفر وکړې
عمل د نیکو د وړاندِ وا ستوه

پاتے به نۀ شی کۀ ډیر هُنر وکړې
بښۀ نام دلے پریږده کۀ هومره چړو کړې

وخت د بهار دے خوشحاله څۀ کړې
سترګے م تتے شوے ګل ته په څۀ ګورم

ولے ګلګشت د ګلونو نۀ کړې
پیری چارے را باندِ وکړې

ماچه دا هسے درپسے ځان کړ
د زړۀ په حال م وارۀ پوهیږے

د دُنیا کور م درپسے وران کړ
کۀ ډیر هوښیار ئې ځان دِ نادان کړ

یو موټے خاورے وی هومره دماغ ورکړے
دَ ملک دَ بند و بست خبرے

ننه په زړهٔ کښے دَ عقل چراغ ورکړے
فکر دَ کښت و دَ کور دَ باغ ورکړے

خوشحاله خوبه فکر تد بیر کړے
چه نیکی بدی درته رسیږی

غم به دِ ورک شی دا کار کهٔ خُیر کړے
کهٔ حواله ئے تهٔ په تقدیر کړے

ځوانی چه لاړه وړ سره لاړے
بیا به په بیارته ځوانی رانهٔ شی

ډیرے خوبئ کهٔ ژاړے ژاړے
کهٔ ئے له پیره له طبیبه غواړے

چه چاته ورکړے بیائے پرے زباد کړے
کهٔ تُوره ماته کړے په جنګ کښے هیڅ ئے

خپل ورکړه ګوره واړه برباد کړے
کار دَ مړانے چه چا ته یاد کړے

درخو هوښیاره وه ځان ئے نادان کړ
تل ئے دَ مورا و دَ پلار پیغور تاړهٔ

نوم ئے بد اصل دَ آدم خان کړ
په زړهٔ مئینه کارئے دا شان کړ

دم واههٔ نهٔ شی دا چه خدائی کړے
چه دواړه توکه دِ یو رنګ پیدا نکړل

څوک فرعونی کړے څوک موسائی کړے
کبریائی کړے کهٔ دانائی کړے

څوړکے خونے وی چه مرګی لُوټ کړے
مرګ یو تریخ جام دے درته نیولے

خوخلقِ ئے سره کُوټ کُوټ کړے
څوبه ترے خولهٔ نیسے دا جام به کُوټ کړے

اے چه له مانه علم مکتب غواړے
روغ ئے کهٔ روغ نهٔ ئے راته وایه

دود دَ عجم غواړے دود دَ عرب غواړے
له عاشقانو چه تهٔ مذهب غواړے

خپل دِ پردی کړل پردی به خپل نهٔ کړے
غم دِ په بخزه شو بنادی به تل نهٔ کړے
خصلت دِ بد شو خصلت به بل نکړے
چه ناقابل ئے ځان به قابل نهٔ کړے

چه کنګه پیغله شوے کبر دِ ډیر کړ
چه سپینه خولهٔ دِ ورته نومړے وه
خصلت دِ واړه په بل بل پیر کړ
هغه دِ ولے له دِله هیر کړ

اے چه یاری کړے به څو څو غاړے
یار دِ دَخپله لاسه په ګور کړ
په تله ورکړے په خروار غواړے
بیائے په هائے هائے په ورت ژاړے

کهٔ زهٔ دِ ژاړم چه تهٔ مِ نهٔ ژاړے
کوشش به واړه ځما برباد شی
کهٔ زهٔ دِ غواړم چه تهٔ مِ نهٔ غواړے
ما به دَ غم په مزریو و داړے

مخ دِ له ورایه راته عیان کړ
نظر دِ هوړے په بل بل شان کړ
اور دِ راپورے په خانمان کړ
آشنا مِ نهٔ ګڼړے ځان دِ نادان کړ

څو به دِ تل وی دا آدړے پا وړے
څوئے ونهٔ خوړے کله به آوړے
چه دِ په زړهٔ وی په خولهٔ ئے راوړے
چه بلا غواړے په بلا واوړے

په درسته ورځه چه تلا توب کړے
خوشحاله پاسه دا سړیتوب کړے
دَ دُنیا چارے په څهٔ آشوب کړے
چه چړګ به ویښ وی تهٔ به لاخوب کړے

چه خیال مکیز کړے هومره خونریز کړے
رانجهٔ چه پورے کړے په برندو سترګو
چه خپل عاشق سره خیال ومکیز کړے
خنجر دَ جنګ او فتنے تیز کړے

خوار زړه م واخست په تام باندې کړه
سترګے د بازدی زړه م تمزرے دے

تر ډېرو ډېرو اندېښنو م لاندې کړه
خلاصے ئې نشته اوس ئې د وړاندې کړه

خدایه دردمن کړے بے دردان واړه
خوشحاله ملک د بے دردو ډک شو

چه واړه ژاړی دې ما په غاړه
دردمن په نورو ملکونو غواړه

چا ته چه چاه کنے په چاه کښے پرېوزے
په خوبه روغ اوسے دا فکر وکړه

بلا چه غواړے په بلا کښېوزے
په پړانګ پرهار وکړے بیا ورپسېوزے

د چا چه ډک وی زړګے له رازه
یائې د خولے نه څۀ بوئې روان شی

کۀ په ویل ئې نۀ کا خولۀ وازه
یا به ئې رنګ وی د مخ غمازه

کۀ په یجوز لایجوز پسے وُزے
راشه په دین د قلندرانو شه

واړه کوهے دے پکښې به پرېوزے
چه بے وسوسه په هرڅۀ کښېوزے

درته به وایم دا دوه رموزه
خوچه د خپل وے خپل به د بل وے

کۀ پوهېږے نۀ شے لېمۀ دِ وُوزه
ترسیال به نۀ وړے خبره کُوزه

ترغرونو پرېوزه ترزړونو پرے مۀ وُزه
چه خوک ئې نۀ پسندی هرچا ته بد وی

د سرو مزریو په ډکه کښے مۀ وُزه
په هغو هسے چارو پسے مۀ [وُزه?]

په غرونو مۀ څه ترغرونو پرے مۀ وُزه
زړونو څۀ واړه برابر نۀ دی

ترغرونو پرېوځے ترزړونو پرے مۀ وُزه
درومه ترنړونو د مړونو پرے مۀ وُزه

سردار ته بویه دا یو څو خیزه
چه مرنے وی څما عزیزه
داد و دهش لري دین و دانش لري
نهٔ بے رښتیا وی نهٔ بے تمیزه

نیستي هستي ده که ته پوهیږے
لوئي پستي ده که ته پوهیږے
بده ترهرڅهٔ په دا جهان کښے
خود پرستي ده که ته پوهیږے

زړکے دَ ښکار رخورم بره دَ میږے
دَ سرو اوبو بیم دَ تودے غیږے
تنګ لنډم مهٔ کړه په دا خوتوکه
بے نیازه خدایه که دُعام نغویږے

هوښیار ته ګول شه که ډیر پوهیږے
خوخاموشي کړے نهٔ به ستوهیږے
مګے چه ډک وی کله آواز کا
څهٔ ښهٔ دلیل دے که پرے ګروهیږے

خوچه توانیږے هومره نافع وسه
تل تل دَ نیکو دَ خصلت واضع وُسه
سودئے ترجود ترکرم دپاسه دے
دَ خدائے دپاره متواضع وُسه

که ته بادشاه ئے دَ تخت دپاسه
خدائے ته ګدائے شه خبر شناسه
عارف په ځان شه دوست دَ سبحان شه
غیر فکرونه له زړهٔ وباسه

څویه زړه ډیر دی واړه عزیز وسه
په هره چاره کښے صاحب تمیز وُسه
خو یو بهرام دے په خوئ ناخیز دے
لکه ناخیز دے هسے ناخیز وُسه

په زړهٔ دَ واړه وخلقو نیکخواه وسه
هدایت کړونے دَ هرګمراه وسه
طمع له چا مهٔ کړه سخا په هرچا کړه
بے تخت وتاجه لکه بادشاه وسه

خوئ دَ خوشحال را اوړه په زړهٔ خوشحال وسه — په زړهٔ حلال اوسه په خوله حلال اوسه
مښین په شرم دشمن دَ مال وسه — دَ نور چا مهٔ شه دَ ذوالجلال وسه

کهٔ هر څو ډیره ده دُنیا تر قیاسه — خاۓ دَ دُنیا کړه تر زړهٔ دپاسه
زهٔ به فتویٰ درکړم چه باک ئے نشته — دُنیا سودمنه وی وتا ته ناسه

په عدل و داد کښے په هرچا سم وسه — وقار هم دا دے په توره کښے کم وسه
کهٔ تهٔ په کبر دَ خان لوئی غواړے — کیدی دَ وژلوۓ یو مار لړم وسه

طباخ چه ووزی تر یو خو لاسه — ورځنے وخوری دپاسه پاسه
پاتے خوراک ئے دَ سپیو دے — په دا خبر شه سخن شناسه

په شرم ننګ کښے دَ دُنیا ولاړ وسه — دَ دین په کار کښے دَ دُنیا لاړ وسه
په خپلو باغ شه رود رودبار شه — وبیګانه ؤ ته سخت لکه کاړ وسه

آسمان کهٔ نهٔ کا خِسَّت دپاسه — لکونه راشی دَ خوشحال تر لاسه
چه تار په تارۓ په خلق نهٔ کا — تهٔ دا خبره له زړهٔ وباسه

دولت چه موے دَ چا له لاسه — نکبت هم موے له هغه ناسه
دے دِ په مثل پروردګار شهٔ — بدکړے کهٔ نهٔ ئے ترے بے هراسه

اندیښنے مهٔ کړه ډیرے درویشه — دُنیا به نهٔ موے تر قسمت بیشه
شکر غنی لره صبر درویش لره — کهٔ کا هم دا دِکا هرچه شی پیښنه

چه ئې لړزه وه په ملک له جیشه
ګوره په ګور کښې هغه شاهان دي

زړه ئې ښاد کام ؤوله هره بمیشه
چه زغ ئې نۀ شي دَ مرګ له طیشه

مادَ دانا کړه دا وینا خوښه
طمع مرغونه په دام بندي کا

راندۀ دِ نۀ ځي بې عصا کښه
سرې خوار یږي له خپله آشه

دَ ښو خبره ده په هر چا فرضه
دَ بدخواه ومنه دَ ښځو مۀ منه

درته به وکړم پوره دوه عرضه
له مرګه مۀ تښته تښته له قرضه

وخدائې ته خواردي بهتر دَ خلق
کۀ خپل دَ خدائې ئې په حقیقت کښې

له ځانه پرې کړه باور دَ خلق
مومن دَ خدائې شه کافر دَ خلق

له زاغه زده کړه دا دوه درې توکه
بل چه دخول کا مخفي له خلقو

یو چه رزق نۀ ږدي ګاندۀ تۀ روکه
بل چه په تراه وي له واړه لوکه

بارک مئین دې په دا دوه توکه
بولاق دَ وینځې په خوئ خصلت دې

په سپینه وازده په سپینه روکه
ورلره بویه لویه متروکه

کۀ پند مِ نغورې مکړه دوه توکه
دروغ خبره په خولۀ رامۀ وړه

خواست دَ خسنړي له خپله روکه
په کاروبار کښې له واړه لوکه

خومره دِ خواده وماته ړکه
هم دِ پیری کړه په ما تعینه

چه تشوې ئې په ما فلکه
هم دِ میرخې کړه دَ مغل رالکه

په نیلي سورئ کرکره لکه
کۀ فهم وکړې چینجې د غلوئ
دعوی د کبر په زړۀ کښې کښکښه
هومره لوئ کړې د غلو د

تل ئې خبرې له بنۀ خوراکه
خپل کسب هیڅ نه واړه له ظلمه
ذکر مذکورئ له بنۀ پوښاکه
هے توبه توبه له هسې ژواکه

جن په حجاب کښې د مور له ښنګه
کۀ په صحرا ګرځي کۀ کوځه ګرده شي
مګر ځان ژغورې د مرد له چنګه
شنده به وکا په خپله تنګه

هر کوره بنۀ ئې د باغ سل برګه
ستا په دیدار یم سترګې خوږ یږي
سر د راوکیښ د شیر له تخرګه
زړۀ م راووت د غم له درګه

کۀ زړۀ د خلاص وی د شک له زنګه
برستن د خوب ده کۀ صف د جنګ ئے
اندوه به نۀ کړې د غلیم له جنګه
دا دواړه توکه نۀ دی دوه رنګه

کۀ سره توله کړې د کلي چرګې
نۀ دوه سو کښلې جونه بے باکې
نۀ واړه چرګې نۀ د باز سترګې
نۀ یوه کښلې د پاکې پېرګې

مغل بے قدره پښتون بے ننګه
تسبیح په لاس کښې په نظام پوه کښې
توبه له تورې توبه له جنګه
ناست په مسجد کښې جمدر ترخنګه

غلیم م زړدې په دا دوه رنګه
بل په آسانه رالړه نۀ ساځي
لکه چه راشي ځي م له چنګه
بے سپینې تورې بے ډېره جنګه

دَځان مِ ولیدل آخوان مِ ولیدل
چه بنهٔ مِ خیر ګړل واړه سړی نهٔ دی

یاران مِ ولیدل دوستان مِ ولیدل
سکان مِ ولیدل ددان مِ ولیدل

چه ئې مخموږې وې سترګې بې مُله
وګوره لاسهل هغه مخونه

سنبل ئې هیڅ وُو تر بنهٔ کاکله
چه بنائسته وُو دَباغ تر ګله

راشه که ګورې اهل نا اهل
په ابوبکرؓ محمّدؐ نمر وُو

یو ابوبکرؓ وُو بل ابوجهل
په ابوجهل تر سهاسهل

دا سرِ کلونه ګوره خوشحاله
لکه چه ګل دے هسے ستا عمر دے

ګوره چه څهٔ شی تربله کاله
راشه خبر شه له دے مثاله

که ډیر اغزی لرے په خنګ کښے ګله
چه پرے مئین وی عیب ئې نهٔ وینی

اغزی دِ نهٔ وینی شیدا بلبله
هر څهٔ ئې اَخلی بے تامله

یاران مِ لاسهل تر خاوړو لاندِ شول
په ګورئې ورشم سپاندې پرے وو وینم

مونږه ئې پریښو ترمونږ دَ وړاندِ شول
مګر زمونږه دپاره سپاندے شول

چه دَ لیدلو وُو هغه مِ ولیدل
آخر که ګورے دا واړه هیڅ دی

چه دَخوړلو وُو هغه مِ وخوړل
لکه مِ وویل هسے مِ ومنل

دایم زهٔ تیر شوم تر اَویا کاله
داغم مِ نهٔ دے له اعداء لیدلے

تهٔ راخبر ئې یا ذوالجلاله
لکه ئې وینم له خپله خیاله

کۀ لوئے ملا شی پہ لوستل لوستل
ځنے لوستل کا ځنے لوستن کا
آدم کۀ نۀ شی لوستن دی لوستل
پہ شان شان کیږی سبق اَخستل

وخت دَ پیرئ راغے خوشحالہ
خیال دَ ننګونو خیال دَ جنګونو
لاړِ پہ ځ‌ړۀ دی دا یوځو خیالہ
خیال دَ دلبرو لہ خط و خالہ

دَ مرد دَ علم دَ هنر لہ حالہ
دَ نفس لہ حالہ هالۀ خبر شی
زر خبردار شی لہ قیل و قالہ
چہ ورسرہ وی پہ یوځو کالہ

خبر هیڅ نۀ یم لہ خپلہ حالہ
تکیہ مِ ستا دہ ستا دَ کرم دہ
حال بہ مِ څۀ کړے یا ذوالجلالہ
دایم درتلونے شوم ډک لہ وبالہ

کۀ بښانستہ ئے پہ مخ تر ګُلہ
ګُل کۀ زیبا دے چہ بے وفا دے
بوئ دَ جفاځی ستا تر کاګُلہ
ځکہ فریاد کا ځنے بلبلہ

ګُل تہ ګویا شوہ دَ باغ بلبلہ
ګُل وے پہ بخرہ دَ کښلیو ناز دے
چہ ناز ډیر مۀ کړہ دَ چمن ګُلہ
خبرے مۀ کړہ بے تأملہ

ګُل ئے پہ شونډو پہ مخ منګُلِ
کۀ یو لک کښلے وبلہ تولے شی
سترګے دَ باز دی بانړۀ منګُلِ
یو لک من تۀ ئے نورے من ګُلِ

غریب یم بولم دَ غربت بدلہ
نا بود بولاق دی کۀ بروړے دی
رنځور شو دواړہ دَ بابا دِلہ
راغلے مۀ وے ستر برمَوَلہ

زړۀ هيڅ خبر نۀ يم له خپله حاله
وږے شم وژاړم موړ شم خندا کړم

هغه جنين يم بے قيل و قاله
هومره پوهيږم په څو اَشکاله

دايم کۀ زړۀ له دلبرو ونيسم
څوړم ژوندون دے په دا دُنيا کښے

پسے ګرځيږم زړۀ به په څۀ نيسم
زړۀ به له کښليه مخه ونۀ نيسم

ماوے چه تا به دَ ځان په رنګ کړم
سر دَ وهين شوم تر بله کاله

لکه ملنګ وے زۀ دِ ملنګ کړم
دَ ځان به لويه مصلّی لنګ کړم

نۀ مرد دَ کفر نۀ مرد دَ دين يم
په دواړه توکه مذبذبين يم

نۀ دَ ګمان يم نۀ دَ يقين يم
هم په زړۀ تور يم هم په زړۀ سپين يم

قرآن دَ وړاندِ په لاس کښے جام لرم
عمل مِ ترخ دے کۀ خوږ کلام لرم

په لون لون حلال حرام لرم
نه درست کافر يم نۀ درست اسلام لرم

لينده چه نۀ وی په غوږ يوسمه
نۀ به دَ نخښے ګذار پرے وکړے

غشے چه کوږ وی پر خانه کمه
نه به په غشی کړے غرځۀ بے دمه

داتۀ ئے يارہ کۀ دا زۀ خواب وينم
چه ستا دَ زلفو نکهت مِ وليدۀ

داتۀ ئے يارہ کۀ په شپه آفتاب وينم
مۀ تور عنبر وينم مۀ مشکناب وينم

چه جدا شوی ياران ترخ زړۀ کړم
کښينم بيا صبر دَ خدائے په کړۀ کړم

ليمۀ په ډيرو ژړلو سره کړم
چه صبر نۀ کړم وايه بيا څۀ کړم

دا ډیر فکرونه چه صبح وشام لرم
خلق په مینځ کښې دَ اختیار خبرې کا
چه فکر وکړم واړه ئې خام لرم
فکر مې وکړ د اختیار نام لرم

دَ چرخ له څرخه وڅرخ ته ساز شوم
لکه په لاس دَ بې شناختو کښېوزی
نیازمن دَ هر هر ناکس د ناز شوم
هسې بې قدره پَر ماتې باز شوم

په زړۀ کښې ستا دَ کوڅې غبار لرم
پریشان دَ زلفو بیمار دَ سترګو یم
په سر کښې ستا دَ پیالې خمار لرم
زړۀ دا دوه توکه له تا یادګار لرم

په غم دِ سوې لوغړن زړۀ یم
دَ عشق سوار زړۀ دِ په ما هراند کړه
صبا بیګا دِ په اوښکو اوبۀ یم
په رنګ زبېښلې شوې په زړۀ یم

مست یم په سر کښې مستی دَمے لرم
رقص مې په تار دَ هغه رباب دے
چه په نشائې کے کے کے لرم
چه په نغمه ئې هے هے هے لرم

پیری په ما راغله زړۀ ئې خراب کړم
هر هر اسباب ئې له ما نه بیوړه
په پیچ وتاب ئې دَ هر اسباب کړم
فائده مې کُمه چه پیچ وتاب کړم

یار مې کافر دے زړۀ مُسلمان یم
زړۀ ئې ځما له ګوګله وکیښ
دَ دۀ له بده خویه په ځان یم
ځئې په ویره دَ خپل ایمان یم

ځارشم بلهار شم دَ یار ترنامۀ
بادچه راوالوزی دَیار له لوریه
دَیار ترخطه ترښۀ پیغامه
ورسره راوړی خوښی تمامه

سبخ خو ځما دے چه هسے یار لرم
کۀ راته کښینې په تا ډیر کار لرم
چه ئې له لاسه دا زړۀ خوار زار لرم
در به ئې پرانزم دَ کیلو بار لرم

تا چه پیدا کړۀ هومره اَقوامه
تا چه پیدا کړل حکمت ئې تا زده
حکمت دِ څۀ دے یا ذوالاِکرامه
مونږه هیڅ نۀ زده په دا تمامه

چه ځان ته ګورم لا هسے ښه نۀ یم
چه غابښ مِ پریوتل فساد را وشو
چه ځنو ځنو چارو ته جوړ نۀ یم
کۀ هر څو غوښے خورم په غوښے موړ نۀ یم

نه زړه په کور کښے نه کښت وکار لرم
رازق دَ خلق ئې په دا اِقرار لرم
دا بست له ځان سره تل سل بسیار لرم
څۀ غم چه تا غوندِ پروردګار لرم

له خپله بخته وچا ته ښار کړم
نور مِ توبه ده کۀ اکوړے راشی
زړۀ مِ اغیار شی چه زۀ ئې یار کړم
نۀ به ئې یار کړم نۀ به ئې پلار کړم

زۀ کۀ مے خور یم یا شاهد باز یم
اَندوه مِ نشته خبر په راز یم
فسق وفجور کړم ګنده په نماز یم
په وَلَا تَقْنَطُوْا وکرم ته ساز یم

ښۀ تا پیدا کړم په تا قائل یم
ولے چه بیا به دَ بل ژوندون وی
کۀ بیا مِ وژنے دلګیر په دِل یم
هرچه ته ئې وائې زۀ په منل یم

دَ کوب وچوب دی دا خو اَقوامه
اَسونه خرونه مریونه ورکی
اول عورته واوره اے خامه
بل رعیت دے په دا تمامه

خالق ځمائے په دا پوهیږم
چه دِ ظلوم او جهول پیدا کړم
حکم دِ حق دے منم ګروهیږم
په بد رم نیسے دا آندوهیږم

پیری په ما راغله زۀ ئے تاراج کړم
رنځ دَ پیریٔ دے بتر بتر شی
زۀ ئے محتاجو وته محتاج کړم
فائده ئے نۀ کړه چه ئے علاج کړم

منصور چه مست وُو له هغه جامه
منصور په دار شو زۀ به لا نور څۀ شم
جرعه ئے راغله ځما تر کامه
کۀ راز م ورشی تر خاص و عامه

کۀ وینے ژاړم ګریوان چاک کړم
په دا به تللی یاران رانۀ شی
په غولی ګرځم غوغا بلغاک کړم
سکه بائده دادی چه ځان بے باک کړم

خواره حیرانه بنی آدمه
خاندِے وژاړے وژاړے خاندے
په هیڅ غمژنه په هیڅ بے غمه
دا چار دِ تل دہ له عمره سمه

ترعین تیر شوم دا هسے زۀ وینم
ترف کۀ درشم غفد ۱۰۹۳ سږ کال دے
احول یو دوه وینی زۀ یواځۀ وینم
اوۀ به شل وینم دا کار نۀ ښۀ وینم

کۀ هر څو مست ئے اے دُرد آشامه
تۀ لا خبر ئے له ننګ و نامه
مستی دِ هیڅ دہ ځما تر جامه
ځما مستی دہ علی الدوامه

اولاد م ډیر دے منت دَ خدائے لرم
یو څو بد بخت دی زوال ئے زر وشه
دواړو مهر په زړۀ کښے ځائے لرم
دَ دوئ له بده خویه هلے ځلے لرم

مرګ رانژدې راغې پيرۍ کړ کړم
وخت دَ آرام ؤو دَ زړهٔ دَ کام ؤو

غابنونه لاړل غم دَ بصر کړم
قسمت په غاړې په غروونو سر کړم

تل به شړلې لېږلې تا يم
چه ستا په نهٔ ديدن دَ ځنکدن شوم

بيا په دا کار کښې کړلې تا يم
کهٔ مِ ته نهٔ وژنې وژلې تا يم

چه ځان ته وګورم ځان ګنهګار لرم
حال مِ به څهٔ وې کهٔ استغفار نهٔ وې

دَ نفس له لاسه فرياد چيغار لرم
شکر چه ژبه دَ استغفار لرم

دَ مرد چه نهٔ وی وينا محکمه
چه يوځې زړهٔ وی يوه خبره

په دهٔ به نهٔ شی درغله سمه
خلاص وی له همه خلاص وی له غمه

خبر دَ دهر په مکر دَ سروه شوم
نهٔ ئې ښادی شته نهٔ ئې اندوه شته

دا زهٔ چه ښاد شم يا په اندوه شوم
دواړه فساد دی چه ښهٔ پرې پوه شوم

مرګ رانژدې راغې نرهٔ لا غافل يم
په تور ويښتهٔ مِ سل ګناهونه

په شور و شر کښې دَ دُنيا تل يم
په سپينه ږيره لا ډير خجل يم

کهٔ ته جفا کړې زهٔ به وفا کړم
خودا جهان دے هومره دِ تهٔ وے

کهٔ ته ښيرې کړې زهٔ به دُعا کړم
کهٔ تهٔ مِ نهٔ وې نياز به په چا کړم

ځويه کهٔ هسې وی لکه چه زهٔ لرم
يو يحيیٰ خان نهٔ شو يوا کوړے نهٔ شو

کهٔ هر څو ډير دی يو ځويه نهٔ لرم
چنجو منجو دی پټ به ئې څهٔ لرم

د ښکار په کار کښې که هر ښو ښه یم
په باز که هر څو قازاو کلنګ نیسم
چه باز مِ ځان دے هغه یو زړه یم
ږیره مِ سپینه شوه میرشکار لا نه یم

دا آزمینت ګوره په ما چه زوړ شوم
را پاتې مینه د ښو دلبرو ده
له نوړو چارو په زړه کښې سوړ شوم
چه زوړ شوم لا ئې په عشق کښې جوش شوم

خلق چه هوښیار دی زړه لیونے یم
هغه چه لاړ ئې د هوښیارئ کا
نه اوسنے یم لا لرغونے یم
تښے دُرے دی پکښې ګنے یم

هومره خطا لرم څو چه عاقل یم
تسپې په لاس کښې زړه په وسواس کښې
هومره هوا لرم څو چه فاضل یم
ولاړ په باطلو کارونو تل یم

اوس زه په خپلې چارے خورسند یم
خو دا عالم مِ وربسے نه پرېږدی
مال ملک مِ نشته زاهد خرګند یم
لا ځئے نهٔ شلېږم په قسمت بند یم

توبه مِ وکړه له میو پییر شوم
د ګل په مخ مِ باده را واخسته
پسرلے چه راغے په زړه دلګیر شوم
بیا د ځوانئ وکارته خیر شوم

مرګ د نا اهل صبا بیګا غواړم
ځما توبه ده د بهرام له خیره
دُعا مِ دا ده الله الله غواړم
د ده له شره امان پناه غواړم

لکه ملنګ وے زه دِ ملنګ کړم
څوک ئې خبر دِ د ذاته نهٔ یم
لکه بے ننګ وے زه دِ بے ننګ کړم
په څهٔ خیلوئ دِ د خان د خټک کړم

په سردارئ چه پوهیدلے یم
ورځئ وتښتم په غاړے غرونو
سرداری غم ده ترے ترهیدلے یم
لاړئ تر اوسه په غم نیولے یم

چه خپل عمل یادکړم خاورے په سر لړم
وخت دَ حساب راغے بله تکیه نشته
ډک له ګناهه تمام دفتر لړم
تکیه دَ خدائے لړم دَ پیغمبرؐ لړم

کهٔ نور په نوړو چارو جلی ستائیم
وړور دَ رسولؐ دے وربانډِ بنائی
زهٔ به دَ توړو په کار علیؓ ستائیم
کهٔ ئے له فرقه بیا ترتلی ستائیم

دَچا چه نهٔ وی دَ سترګو شرم
ځئے امان غواړه کهٔ دِ پسر وی
درته به نهٔ وی په پندونو نرم
پلار والے پریکړه دَ بے آزرم

کهٔ دِ له خویه چا ته فریاد کړم
په دواړه توکه ځما پروا نکړے
یا هیڅ دم نهٔ وهم صبر بنیاد کړم
یو ځهٔ ناترس ئے ځهٔ به دِ یاد کړم

په غم کښے شوخه بنے آدمه
شیرین یاران دِ په مرګ جدا شی
دربانډِ راشی خو خو ماتمه
سخت ئے چه نهٔ چوے له ډیره غمه

زهٔ په خپل ملک کښے خودا دوه دم لړم
یوه مِ توره دویم مِ ډال کے
بنا ئے سته پردے نصرت قدم لړم
په دا خو توکه عرب عجم لړم

په خوب کښے هر کله بوئ دَ دُنیا وینم
مګر یک لخته دَ دُنیا سرے یم
جرګے جنګونه هوس هوا وینم
چه نهٔ یو شیخ وینم نهٔ یوملا وینم

خبر هیڅ نهٔ وم چه ورځ وه که مه
غمه په چرته غلط غلط درومے

چه زووم سعد وه کهٔ نحس شومه
غرض په مالوے دلے رادرومه

شهره په وارهٔ عالم مدام بنهٔ یم
شیخه تهٔ شیخ ئے زهٔ رند هیڅ مهٔ وایه

پرېږده په خولهٔ کښې دخاص وعام بدیم
تهٔ دِ نیک نام اوسے زهٔ خو بدنام بنهٔ یم

مرګ را نزدے شو زهٔ دا ارمان لرم
ارمان یم جُونه دی دَ نام جنګونه دی

کهٔ نور لیدهٔ شم اختیار دَ خوان لرم
مقصود یم بنکار دے غم دَ ایمان لرم

نور کړم غمونو دَ آشنا زور کړم
خوځو تاوُونه راباندِ تیر شوهٔ

له کل هوسه ئے دَ دُنیا سور کړم
کوّمے یم وچ کړم هجران رنځور کړم

پریشان په ځان کښې په دیر حیرت یم
چه تل یم ځائے شول غرونه رغونه

ځهٔ وم دا ځهٔ شوم په ځهٔ حالت یم
زهٔ دا په چا پسے مجنون صفت یم

چه سر دِ خوږ شی آمان آمان کړم
خو داجهان وی هومرهٔ دِ تهٔ وے

وایم چه رنځ دِ وارهٔ په ځان کړم
کهٔ نهٔ اورَبه پورے په درست جهان کړم

دَ بنکار په کار کښې زړهٔ دځوانئ لرم
سترګے هغه نهٔ دی قوت هغه نهٔ دے

غم دَ پیرئ دَ ناتوانئ لرم
چه باز په لاس کړم خو حیرانئ لرم

ولے جنت لرم حور او قصور لرم
چه وائے هسے دی وارهٔ منلی

بل دار تر دانه په نعمت پور لرم
ما ته دا پریږده چه دا حضور لرم

کۀ د ا ګناه دے چه په تا ځور ځور یم
سکه سرتر پایه له ګناه پوُر یم
دَ تورو زلفو په مار دِ وخوړم
ګونه مِ زیړه په زړۀ رنځور یم

په غم غمژن وُم په خوب کړمن وُم
خلاص له غمو نوستا په دیدن وُم
په خوب په هسے رنګه اوده شوم
چه خلق وینښ وی زۀ په خفتن وُم

خوارۀ حیرانه بنی آدمه
چه دِ خمیردے خاورے له غمه
یو دم کۀ وخاندِ په دا دُنیا کښے
بیا دِ ژړاوی په څو څو دمه

کله دَ خاصو نصیحتونه
کله دَ عامو ملامتونه
لا دَ اوله په عشق کښے دا دی
بیا پسے نور نور فضیحتونه

نادان په سر لری خیرہ زرینه
هوښیار دوه ګزه پینکے لرینه
ترهرڅۀ ګوره دا بد ترینه
نادان چه پائی هوښیارچه مرینه

دَ مرد چه نۀ وی لمن خیرنه
پاک وی په ژبه پاک وی په ژمنه
کۀ زر بلا وی اندوه دِ نۀ کا
فرښتے به وائی وی بلاله دۀ نه

ځوانی مِ لاړه په غفلتونه
په عسرتونه په شدّتونه
لولئ چه زاله شی تسپے پہ لاس واخلی
هسے مِ اوس دی دا طاعتونه

وچا ته وایم دا بنۀ پندونه
چه دَ منلو مات شول بندونه
پلار دَ خپل رائے شو ځوئے دَ خپل رائے شو
جُدا جُدا دی سره سندونه

چه غم ئې نهٔ وي له ناحقه خونه
نیست ونابود به شي په دا دُنیا کښې
او ربه ئې ولګي په درسته خونه
هوره به پا سي تور تور نغوښه

پند دے سودمند ګې واوره تُورنه
مصلحت مهٔ پریږده دَ خپله لاسه
آسانه نهٔ ده دَ سوښنده
هم به خپل راز لوے دَ زړهٔ دننه

کار چه خفه شي په اَفکارونه
ځنې کارونه نن لکه ګل دي
وارهٔ ابترشي هغه کارونه
ګاندهٔ هغه شي لکه خارونه

تا ته چه شمار کا دَ چا عیبونه
دَ سخن چینو مخونه تور شه
چا ته به شمار کا دستا عیبونه
په مخ ثنا کا تر شا عیبونه

اے چه خبرے کړے خوږے شیرینے
ګفتار سور ګل دے دَ انار دَ ونے
ولے دِ وُوتے په عمل کښے سپینے
کردار اَنار دے کهٔ تهٔ ئې وینې

هومره ثواب دے ځومفسدان وژنے
وبال ئې وارهٔ ځما په غاړه
ځو مفسدان وژنے ګنړهٔ دَدان وژنے
فتوٰی دَ عدل ده ځو چه بدان وژنے

کهٔ کا نړهٔ نهٔ وے دَ چا غوږونه
کهٔ ړندے نهٔ وے دَ خلقو سترګے
مونږه به وړے دَ سُود پندونه
مونږه به وښئیل ورته ملکونه

کښلی ځوانان دي کهٔ کښلي ځونه
سخ دَ هغو دے چه لمن پاک وي
پرےږم سلام دے مونږه به ځونه
قضائې نهٔ وي روږے مونځونه

آخست چه نهٔ شي په غاړے غرونه
مست مست باړونه به مست مست اوښاوړي
ورے دَ عشق دے مونږ ۓ وړونه
غرض پرے څهٔ لري غوايهٔ ياخرونه

تاچه پيدا کړل هومره ملکونه
کهٔ تا پرے نهٔ کړے دا بارانونه
ربه په تا شي دا قدرتونه
واړه به هيڅ ؤو داسے غرونه

ربه چه مات کړے دا صورتونه
دَ نورچا نهٔ دي دا صنعتونه
بيا به ئے ساز کړے په حکمتونه
ربه په تا بنائي دا قدرتونه

دروغ کهٔ اَوړي بلا له تا نه
راستي پرے مهٔ ده له خپله لاسه
دروغ خوئ مهٔ کړه اے خماجانه
خدائے به په تا کاګرانه آسانه

دَ شيخ شاب سره تل طربانے
هغه به ولے غم دَ پيرئ کا
دلبرے ښے دي بے اَدبانے
چه تل ترخنګ لري شکر لبانے

نهٔ سره سم دي واړه مړونه
زړهٔ هم هغه ګنړه چه لکه غرشي
نهٔ سره سم دي دَ هرچا زړونه
کهٔ باندِ راشي هزار غمونه

چه تجلے ؤو هغه مخونه
دَ صورت ونه نابوده ونه ده
سپيرے ايرے شول دَ ګور په خونه
هم ئے بنا خونځي هم ئے ويخونه

نه اوس خپلوي شته نه پيوندونه
خوشحاله بس کړه خاموشي ښه ده
ګړ سره نهٔ دي دَ چا سندونه
وچاته واۓ دَ سود پندونه

دین چه خالی شی له ښهٔ یقینه — کفر بهتر دے تر هغه دینه
چا دا خبره څهٔ ښه ویلې ده — ماته لینده ده ناقصه مینه

کهٔ دِ هر وګړ دَ دُنیا عیشونه — کوټونه مات کړے په خپل جیشونه
عمر دِ ډیر شی له جم دَ عمره — په تابه وشی دَ مرګ طیشونه

نهٔ اوربشینه دَ خپلې خونے — نه چه غنمینه دَ بلې خونے
ځنو بے ځایه خونے تالا کړے — په ځائے مردانو خوروِلے خونے

دَ مرد پیغور ده جامه وریښمینه — نهٔ دِ مهینه وی نهٔ لا رنګینه
دا کِسوتونه دَ ښځو بو یه — ښیوه دَ مرد ده په جامه سپینه

نفس په آرام دے زړهٔ په خوندونه — دا د واړه زده کړه واوره پندونه
نفس په لونده په وچه آرام وکا — زړهٔ په خوندونو مات کا بندونه

قرآن چه لوست شی په هغه خونه — ځنے به دیو کا خیمه بیرونه
خوچه ښادئ دَ دواړو کونو وی — پرے به دَ دهٔ شی خونه مشحونه

دُنیا مِ ولیده دَ دُنیا کارونه — ښادی ئے غم دے ګل ئے خارونه
خو درته پریوزی په انبارونه — په زړهٔ دِ پریوزی هومره بارونه

زړهٔ تا پیدا کړم له ما وُطینه — بخره دِ را کړه دَ دین متینه
دین مِ منلے دَ پاک رسولؐ دے — ځما توبه ده له غیره دینه

خهٔ بنهٔ بادشاه دے شاهِ جهانه
چه تهٔ ئے بندکړے ځویه دِ نهٔ دے

هم غور رسه هم قدر دانه
یوه بلا دے پیدا له تا نه

هوښیار هغه دے چه سخت جنګونه
نادان هغه دے چه په کار دَ صُلحے

ترخیره راولی په فرهنګونه
ګډ کا دَ شر دَ فساد رنګونه

په فتنو ډکه توره آسمانه
چه بل یو نوے جهان پیدا شی

لا به دِ کله شی دا خونه ورانه
ګوندِ ځوک بیا مومی خلاصے له تا نه

ما ډیر نیزلی دی بدخوئ آسونه
تکه هیچرے په متروکه نهٔ ځی

چه غلا دَ زړهٔ لری بد وسواسونه
کهٔ په وهلو سرهٔ کا لاسونه

هم م دولت شته هم م ملکونه
دا واړهٔ هیڅ دی په کوم حساب دی

هم م ځوانان دی هم لوئے لوئے غرونه
چه پکښے نشته بنهٔ بنهٔ مړونه

چه عاشقی کا پریږدی ننګونه
خپل سرهٔ خالی کا دَ یار ومینے ته

قبول کا تورے توبری جنګونه
له زړهٔ نه واخلی نور نور رنګونه

کهٔ هرڅو تیرئے تر صحبتونه
لا به په خپله ژبه ډیر فهم کړے

علم اَدب لرے فصاحتونه
دَ ژبے ډیر دی قباحتونه

بلبلے خهٔ غواړے له ګلستانه
لکه خوښی دَ ګل دَ وصل وی

ګل به بیا نهٔ مومے بے له خزانه
غم به ئے هومره وی بیا له هجرانه

ترسر ترپا یه کښلې مخونه
هر مخ چه وو یني زړهٔ دې پرې خوښ شي
دا یو یوسف ؤو دَ پلار په خونه
مخ هم هغه ګنړه کړه پرې سخونه

ونه تل نهٔ وي سره یکسانه
خوشحاله مهٔ کړه مانړه له چانه
لښته وي ونه شي ستهه شي جانه
تهٔ هم آسمان کړې په څو څوشانه

هغه مِ سترګې وې چه په ملکونه
پیری چه سراغله چه رانږدې راشي
غرڅهٔ به مالیدل په لړې غرونه
هالهٔ ښهٔ څیر کړم آشنا مخونه

کهٔ عقل ورک شي له دې جهانه
هیڅوک به نهٔ وائي چه زهٔ نادان یم
هیڅ پاتې نهٔ شي اے ځما جانه
هریو به ښهٔ ګڼړي ځان له لقمانه

دولت خیمه ده ځو یه میغونه
غم دَ مور پلار دَ دولت ناتاروی
ښهٔ ځویه زیری دَ پلار په خونه
تورشه دَ بدو ځویو مخونه

خوشحاله چاته وائې پندونه
کهٔ زړهٔ دِ وار کا شه به قرار کړه
خلق خوشحال دي په خپل سندونه
مات دي دَ پند دَ باړې بندونه

نظر مِ وکړ په کتابونه
نورې به نهٔ شي اَزلي چارې
ډیرۍ ښئیل دي ډیرۍ بابونه
کهٔ ثوابونه دي کهٔ عذابونه

هغه مِ سترګې دي چه په ښکارونه
اوس چه باز واچوم غوټه ئې نهٔ وینم
غرڅهٔ به مالیدل په کوهسارونه
آه دَ پیرئ دي دا آثارونه

مرهم په زړه پرده په پرهارونه
په هره هره سوړه لاس مهٔ منډه
دانا به گل کړی نادان خارونه
پکښې به خوب کا خونی مارونه

چه درسره کښېني یوځو شیطانه
سود به دِ نهٔ وی بیا به اَرمان کړې
یاران به لرې کړې له خپله ځانه
ارمان به یوسې تر گورستانه

چه خبردار شوم له دے جهانه
هوښیار لا هومره په ځان خوښېږی
خهٔ مسخرے کا په هرچا ځانه
لکه نادان کا خوښی له ځانه

خوشحاله مهٔ کړه مانړه له چانه
په تا چه کیږی دا هومره چارے
فکر په زړهٔ کښې وکړه اے ځانه
بلا دِ واړه ده له خپله ځانه

هغه چه نهٔ لری په نام و تنه
کهٔ سکه ځوئ دے یوسکڼے وکنړه
ومخ ته مهٔ کړه دَ هغهٔ کتنه
په ښهٔ په بدنے مهٔ کړه پوښتنه

ښځه چه پاکه وی او پاکدامنه
پل دَ ناپاکے لکه اوربل وی
دَدے به نور وی خونه روښنه
په خونه بل شی دَدے له تنه

درته به ووایم دَ ښکار رازونه
ترمینځ به خلاصه شی دَ ښکار هیلئ
چه سره ونښلی دَ ښکار بازونه
آسمان ته درومی په پروازونه

دا منصبونه دا انعامونه
پښتون مغل به سره دوستان نشی
واړه زندئ دی واړه دامونه
خوشحال ئے مهٔ وینه دا اِکرامونه

دا اِکرامونه دا اِنعامونه — دَ چاپه یاد دی هسې کامونه
په بوئ دَ میو مست شم صوفي یم — ساقي را سر کړل ډک ډک جامونه

عثمانؓ دِ ووژنهٔ خوني آسمانه — عليؓ دِ هم کړ په تیغ بے ځانه
حسنؓ حسینؓ دِ دواړه شهیدان کړل — اوس به ته واړوے تورهٔ له چانه

دَ نیک خواهانو تربیتونه — دَ بد خواهانو سیاستونه
چه دائے نهٔ وی ملوک ئے مهٔ بوله — کهٔ هرڅو ښهٔ وی په خصلتونه

کهٔ کښلے ټولے شي سره لکونه — را باندِ پریوزي دا فلکونه
خپل یار به هیچرے پکښے غلط نکړم — کهٔ دام سترګے وی دا کولکونه

کهٔ ډیر ښکارونه ؤو کهٔ ډیر بازونه — واړه م ولیدل نور نور رازونه
چه خبردار شوم په انجام دَ چارے — یا ژغ دَ تورے دے یا نمازونه

لاړے دشوارے غابنی غاړونه — اوښان پرے بیائی په قطارونه
کهٔ روځ دَ غرهٔ په سربه ځے — دَ غرهٔ په سربه ځي کښلي بارونه

چه دَ شیخئ نمط لرینه — شیخي دِ کاندي په ښیره سپینه
ځواني به ولے حبطه ځئینه؟ — ښهٔ مخ دِ ګوري [illegible]راب دِ ځښینه

په باغ کښے ګوره لاله ګلونه — یا قوت پیالے دی غواړي ملونه
ساقي راپاسه تردا دپاسه — بے میو نشته تحملونه

پنډ پنډ شکرے هسے شیرینے
مئین ستا هسے په غم کښې کسی

په هر سپی نغرے په مخ نسرینے
تلی خبرے ستا شکرینے

ډوډئ غنمینه وی کۀ اوربشینه
موړ دَ نباتو حلوا ته نۀ ګوری

په وخت دَ لوږے خوږه لګینه
هوښیار به پوهه شی په دا رازونه

کۀ باوری شی دَ ښکار بازونه
ښځے هم هسے دَ ښکار بازونه دی

بیائے نظر وی په پروانونه
هوښیار به پوهه شی په دا رازونه

چه بدئے ژواک وی بدئے رنګونه
نۀ ډیر دولت لری نه ډیر عزت لری

نۀ مصلحت لری نۀ آهنګونه
له هغوځۀ غواړے شرم ننګونه

کۀ تۀ وفا غواړے له مانه جانه
وفا به بیا مومے په بل جهان کښے

وفا به نۀ مومے له دے جهانه
چه غرضونه ووزی له میانه

په تاکۀ راشی ډیر محنتونه
تۀ ئے په نورچا حواله مۀ کړه

یا راحتونه فراغتونه
چه ازلی دی دا قسمتونه

دَ ملوکانو دَ قرب بامونه
کۀ ناګهانه ورځنے ورغړے

لوړ دی پرے مۀ خیژه په ډیر کامونه
روغ به بیا نۀ مومے خپل اندامونه

خدلئے دِ اضغاث کا دا وران خوبونه
دَ روم لښکرے په هندوستان راغلے

چه اوس ئے وینم په آشوبونه
نسکور دَ شاه دَ خیمے چوبونه

ترسرترپایه ککړ په غُلو
کښنینه مستانو ته صفت دَمیُوکړه

په لاس نیولې دسته دَ گُلو
نوم اوریدلے چیرے دَ مُلو

داکارسرېو زده نهٔ دَ دَدانو
عشاچه وُدری په سردَ قطب

نظرچه کاندِ په فرقدانو
جوزا نور تیر شی اے بخردانو

جهان په کام دے دَ وفا کیشو
عمل دَ ښوکانړئ بلا ترېښوکانړئ

قصد ئے له چا دے له بداندیشو
اے بد عملو په بدو پیشو

شکر په داچه له نیسته هست شو
رُتبه به کاندہ په عمل مونده شی

عقل ئے سا کړ خدائے پرست شو
عمل کړئ ولے په همت پست شو

سوگند مِ ستانه په سترگو تورو
پریږدہ له هرچا سره یو مخ وړم

په زړهٔ دستایم په خولهٔ دَنورو
له ما به څهٔ وړئ په کیسو سپورو

خاندم په زُهد دَ فاسقانو
چه نهٔ ئے دین شونهٔ ئے دُنیا شوه

خاندم په بدل دَ احمقانو
چارے به ئے نهٔ وی دَ لائقانو

یا بد ترېښو کړه دَ پردیو خپلو
دَ دواړو توکو سُود زیان خپل گورم

یا غم تهٔ واخله توښه تر تلو
حاجت هیڅ نشته نور دَ ویلو

یارئ ښےوی دَ ښو بخردو
دَ ناکسانو یارئ دَ دو دی

چه پکښے نشته وهم دَ بدو
سود مے نهٔ دی یارئ دَ دَدو

راپاتې یو نهٔ شو دولس زم ترونه ؤو
څهٔ بادشاهان لاړل څهٔ څهٔ خانان لاړل

لاړل فنا شول چه اولسونه ؤو
چه په دربارئې ولاړ زرګونه ؤو

کښلې دلبره دَ څوارلس کالو
راغله زر لاړه څما زړګے ئې

خوله ئې خوش رنګه حقه دَ لالو
یو وړ په دواړو سترګو ملالو

واورے چه ووری په سپیرو خاورو
په مینځ دَ دلو په مینځ تیری کښې

خاورے سپین زر شی په سپینو واوړو
سمه غر سپین شو په سپینو واوړو

بنهٔ وصیت دے دَ بخردا نو
بدان دِ ځان وړی هم دِ ایمان وړی

یارِ دَ ددانو شه نه دَ بدا نو
ایمان خو خلاص کړه خپل لهٔ ددانو

ګلی زم ولیدل دَ نا کسا نو
ګوتے په هیڅا پسے دَ وړو نهٔ دی

واړه په خوئ کښې دَ ګرګسانو
خپل ګذران بویه هم نفسانو

پیغمبران وو شاهان خانان ؤو
له دے جهانه هسے روان شو!

ډیر خوښ له ځانه بنهٔ بنهٔ ځوانان ؤو
وائے چه کله په دا جهان ؤو

کهٔ چیرے وار راغے بیا به خبرے کړو
دا ډیر زنګونه چه پراتهٔ په زړهٔ دی

خلق به ویر کا مونږ به سندرے کړو
طمعَ امید لرو غوندِ ئے لرے کړو

پیرئ پرے یُستم له تالا شونو
هغه خوړل نشته هغه لیدل نشته

هائے کښلیو سترګو کښلیو غا شُونو
لاړم له نوړو بنهٔ معا شو نو

مونږه میږی یو په مزکه ګرځو     دَ نس له غمه و بله غوږ زو
بنه ځو په مزکه بلا را سازه شی     چه پر پیدا کړو آسمان ته ورزو

نښترکهٔ لوئے دے له نورو ونو     چنارکهٔ پلن دے په پانړو پلنو
لکه کمال لری هسے زوال لری     نظر پرے کانړئ دَ کمال خښتنو

خښتن دَ مزکے ئے دَ آسمانو نو     دَ عرش وفرش او دَ جهانونو
هاتی کهٔ ماشے کړے ماشے هاتی کړے     توانیږے رب ئے دَ دیو توانونو

سوارے دَ جونو ده کهٔ دَ آسونو     لازم ترے رسی توان دَ لاسونو
ښکار دَ ټوپک نشته کهٔ ښکار دَ بازشته     دا هم پیرئ کړے په وسواسونو

چه چا ته پیښ شی غم دَ خوړلو     یا غم دَ څښلو دَ آغوستلو
نور نور غمونه واړه ترشا شی     کهٔ دَ سندرو وی کهٔ دَ بدلو

مونږه به ومرو هسے پوهیږو     یاران مولاړل لانهٔ ګروهیږو
خاندو وخوښی کړو هوا هوس کړو     نهٔ موژړل شته نهٔ اندوهیږو

چه په مړوندئے باهو دَ خیال وُو     ګوتے دَ زړو غمی ئے لال وُو
وګور ته لاړل هغه لاسونه     چه په حنا به لاله مثال وُو

دَ خپلے خونے نغن دَ خمچو     نهٔ چه غنمینه دَ بل دَ کچو
نهٔ اور دَ خپل نغری دَ لوندو پچو     نهٔ اور دَ بل دَ نغری دَ درد دچو

که شور غوغا کا سره تل تر تلو | پا زه په نه ځي سره د خپلو
بدی د خپلو د بل تر ښو ښه ده | که خوک پوهیږی په دا ویلو

ښه ښه یاران ډو ښه آشنایان ډو | چه په دولت کښې را سره ځان ډو
دولت چه لاړ شو را ته ئې شا کړه | جدا له مانه په یوه نان ډو

د خپلې کیږې په خدمت خم یو | په نوړو نورو فکرونو کم یو
صبا شی وخوړو بیګا شی وخورو | آدم صورت یو د واب شکم یو

که مونږه وایو داړه هیڅ نه یو | یو موټی خاورې یو چونک او به یو
که دا مجاز دے تحقیق به بل وی | سکه زړه به ښه کړو هر کوره ښه یو

ژبه عادت کړه په ښو ویلو | چه دِ عادت شی هغه تر تلو
که ئې عادت کړې په بد ګویئ | مخ به دِ تور کا تر پردیو خپلو

چه دا د ساهے خښتن همه یو | که فهم وکړې لکه رمه یو
مرګ لکه شرمخ را باندِ زغلی | د رب و فضل ته چه په سمه یو

پندم په یاد شو د حکیما نو | یاری به نه موے له غلیما نو
ښه ئې په بند کښې د کریما نو | نه په بوستان کښې د لئیما نو

فلک په قصد دے د بے دردا نو | ولے وکاږے د دل سردا نو
د موړ په نس کښې مرد لا علقه وی | تل پرے پیرے وی د ښو مردا نو

نخښې خو درې دي د عاشقانو | خوب کا په مثل د غریقانو
ویل کا په مثل د ویر ژړلیو | خوراک په مثل د رنځورانو

شکر چه زړونه په غم کښې بناد لرو | غم څۀ غم دے چه پیر اُستاد لرو
وائې چه ځان ساته له غمه غم راغے | مونږ خو غمونه دا هسې یاد لرو

په نظام پُور کښې په سُوسُوسُوسُو | قُمری نارے وهی چه کُوکُو کُوکُو
تل به د خوږې په بنړ کښې نۀ وُو | وائی دا هسے چه خُوخُو خُوخُو

ښیره دِ سپینه شوه ځوانی دِ لاړه | وګوره ته لاړل همزولی واړه
اوس دِ د غمه سره ژوندون دے | ژاړه خوشحاله ختکه شاړه

چه خوشے زړۀ م له تا آشنا شۀ | له واړه خلق نه به بے پروا شۀ
نۀ ئے څوک یاد دی نه ئے څوک هیر دی | په بوئ ځما ژو په خوئ د تا شۀ

د ملوکانو د رازه خبر مۀ شه | کۀ پرے خبر شے د ځان خطر مۀ شه
رازئے د زړۀ په صندوق کښې وساته | په ښکارول ئے چا ته لربر مۀ شه

دشمن چه وائی درته دا مۀ کړه | کۀ ته هوښیار ئے واړه هغه کړه
شیطان دِ نۀ پریږدی د خدائے اطاعت | خو ډیر بهبود دے پکښې دا زده کړه

وچاته مۀ کړه د راز خبره | خو چه توانیږے رازونه نغره
د راز خبره ده یا تیره توره | یا دُر ګوهر ده یا مرغلره

خوئ ئے دَ ښو شو بې بې زاهده شوه — تل په تسبیح په اودس ساجده شوه
دَ لاس په وللو مڑک دَ تهلیل شو — دَ مخ په وللو پیشو عابده شوه

خوشحاله مخ کړه و ښوکسانو ته — شاکړه نااهلو بوالهوسانو ته
شکرے توئ کړه وشنوطیانو ته — مرداره واچوه وګرګسانو ته

هم مِ خیالونه هم مِ ښیوه نہ ده — هم مِ په عشق کښے دَ راز پرده زده
چه یار مِ نشته دا واړه هیڅ دی — کۀ یار مِ وشی یاری مِ ښه زده

نۀ ننګ نۀ شرم نۀ حمیت شته — نۀ مهر مینه نۀ محبت شته
څویه چه لوئے شی زوال دَ پلار غواړی — نۀ په دا دور دا قباحت شته

چه ورته ګرځی په اوده ډوډه — باغکه ورشی آخر تر کوډه
لوئے په مکان دَ هوړے ځان بیائی — خوشحاله ما وړه له خپله هوډه

هرچه وفا لری اهل هغه ګنړه — چه بے وفا وی سهل هغه ګنړه
چه تۀ ئے اَہوے وښوته نۀ اَوړی — څما په پوهه جهل هغه ګنړه

کۀ تازی ژبه هر ګوره ښه ده — فارسی هم ډیره په خوندخوږه ده
چائے پلو دَ جمال وانۀ خست — پښتو لا هسے بکره پرته ده

چه زړۀ مِ وتښے په طنازئ ښۀ — په خوخوړ نګه په عشق بازئ ښۀ
چه تۀ مِ غوره کړے په هوړ ګښلیو کښے — رحمت څما په نظر بازئ ښۀ

که خبردارئ بې شکره نان مخوره
پیوند د عمر په ویښتو تړلې دې
د تیرې چارې په زړهٔ ارمان مخوره
غم د خپل ځان خوره غم د جهان مخوره

شپه د برات وه یو خوب مې ولیدهٔ
دوه تورې ماتې شوې یوه مې روغه شوه
کال ئې غصه [۱۰۹۵] دې هرکوره مې بنهٔ لیدهٔ
دویم صمصام مې په رغیدهٔ لیدهٔ

د خلقو ځکه د پیرئ ویره ده
درد چه په ځان راشي هاله پرې پوهٔ شي
پیری ترمرګه په ژوندون تیره ده
په درد مې خپله سینه خیره ده

دولت چه ستا وی موجود ئې وګڼړه
حسد په مال مکړه حرص د مال مکړه
چه په نورچاوی نابود ئې وګڼړه
هغه چه داکا مردود ئې وګڼړه

په تا که راشي حادثه لویه
تهٔ به ئې دفع په صبر وکړې
تیښته تسلیم وصبر ته بویه
نهٔ په لښکرو په زړو ځویه

که ئې د خضرٔ پیاله خوړلې ده
هرچه کمال لری هغه زوال لری
دانا هستي، د ژوندون ژړلې ده
هستي نیستئ سره تړلې ده

په باغ په راغ کښې ګلونه واړه
هستي دا هسې نیستي دا هسې
یو ګل به نهٔ وی بیا تر اهاړه
ژاړه حیرانه بلبله ژاړه

ماچه میدان د دروغو ولیدهٔ
خو ملک ئې واړه کندې کودرې دي
بل یو میدان مې تردا لوئې نهٔ لیدهٔ
مار ولړم مې پکښې پراتهٔ لیدهٔ

دَ مرد دَ عمر خوبی تر چل ده — تر شپیته پورے لا دَ اوربل ده
تردا دپاسه وخت دَ پیرئ شی — کهٔ م دَ عمر بقا ترسل ده

کهٔ پند ځما منے نمک حرام مهٔ شه — تر ډیرو پاتے جوړه طعام مهٔ شه
جوړه طعام م خوراک دَ سپیو دے — غصه په زړهٔ کښېږه دا کلام مهٔ شه

کهٔ تل به پائے غم دَ جهان خوره — دَ جهان غم مهٔ خوره غم دخپل ځان خوره
دا نقد په لاس کښې حبطه مهٔ کړه — دَ ضائع شوی عمر ارمان خوره

چه لعل آسا دی په دواړه لب دِ وه — چه سمن سادے په سپین غبغب دِ وه
وخت دَ صبا شو په بورجل زر راځه — ځما په هومره یا رب یا رب دِ وه

نادان پخپله پریوزی و اور ته — بلا پخپله راوړی خپل کور ته
مهٔ نصیحت وایه و ناپوهانو ته — مهٔ آئینه نیسه چیرے وکور ته

دَ خپل غلیم سره په توره جنګ کړه — نه چه بښکنځلے دَ بنځو رنګ کړه
پرهار په زړونو دَ ژبے مهٔ بردهٔ — دَ نامردئ له کاره ننګ کړه

تن دِ په مثل دَ روح قبا ده — لکه آغوستے چه قبا تا ده
دا واړه توکه فنا پذیر دی — فنائے نشته کَ روح بقا ده

ګمراه م مکړه تل م په لار لره — دُعا به دا کړم ما پرهیزګار لره
دَ نیک مردانو سره م شمار لره — خدایه لائق م دَ خپل دیدار لره

صبر دَ زړهٔ راؤړه ربنتیا دا دواړه
کهٔ کامِ دَ فتح وظفر بیانهٔ مومې

همت په کار کښې له خدا یه غواړه
تاوان د واړه ځما په غاړه

نامردي بنه ده دَ چا تر پوره
څهٔ بنهٔ متل دې دَ پښتنو کړې

خاني میري کړه نه چه تر کوره
چه غل شا ړهٔ شي نه چه تر کوره

چه بل خبر کړې دَ زړهٔ له رایه
هر چه هوښیار وي هنرئې دا دې

هوښیار په څهٔ ئې وماته وایه
خبره نهٔ کا چاته بې ځایه

ساقي راپاځه ډیوټ هوا ده
څو لا یو ګل شته په باغ وراغ کښې

دا رضائي لا تر جوزا ده
اَیاغ رانوشه ځما رضا ده

اے چه سرې ئې په یوه ساه دَ
هسې به پروت وې لکه مرداره

کهٔ دِ دا ساه نهٔ وي ناګاهٔ
په ځان خبر شه دَ ځان ګمراهٔ

تازه خبرې تازه بهار کښې ړه
رنګ رنګ خبرې رنګ رنګ ګلونه

چه پرې مئین دي هغه هزار کښې ړه
ګل دَ ګلابو ځما اَشعار کښې ړه

خوبي دَ عمر دَ چل وینځ ده
کهٔ غابښ دِ نهٔ وي سترګې دِ تیتې شي

کهٔ غابښ کهٔ عشق وي تر شصت پنځهٔ
نور مره کهٔ نهٔ مرې پیري دِ رنځ ده

دَ صاحبانو حکم په ځائې لره
کهٔ ئې له حکمه خلاف عدول کړې

نظر دَ دوئ په حکم رائې سره
زیرمه دَ کور کړه یا ځان کدئې سره

ځنګل ته اور راوړه حکم ته زدر راوړه
داد و دهش کړه غریب نواز شه
لښکر څو ډیر لوړے لاهو مړه نور راوړه
چه مفسدان دی پرے شروشوَ راوړه

کار دَ بیچون او دَ بیچګون ګوره
په سر د پاسه دا شین سیحون ګوره
دَ مرګے مرګ ګوره بیلئے ژوندون ګوره
پکښے دَ ستورو دَ ماهیو یُون ګوره

نیکان عزیز دی له خپله رویه
نیکان به بیا کا ګډون له بدو
بدان خوار زار دی له بده خویه
کهٔ تیښته ښه ده دَدے له بویه

دا فانی چارے فانی دی واړه
مولیٰ په یاد لره زړهٔ په دا ښاد لره
یوه باقی ده باقی وغواړه
په دا ښادئ کښے همیشه ژاړه

ژبه په تن کښے څهٔ عجائبه ده
چه ښهٔ مِ خیر کړښهٔ پرے خبرشوم
صحت هم ژبه ده ژبه هم تبه ده
جنت هم ژبه ده دوزخ هم ژبه ده

ترسر تریایه لیلیٰ ښاغلے ده
مینهٔ څهٔ هسے آسانه نهٔ ده
سینهٔ ځکه دَ مجنون داغلے ده
چه دا بیځایه په چا راغلے ده

له تا چه بیم کا ورځنے بیم کړه
په زور که هر څو دَدهٔ دپاسه ئے
مهٔ ئے محروم کړه مهٔ ئے ندیم کړه
حذر ترے بویه کار دَ حکیم کړه

خوچه توانیږے خوخاموشی کوه
په زړهٔ زاهد اوسه تنها عابد اوسه
عیب جوئی مهٔ کړه پرده پوشی کوه
فتویٰ مِ واخله باده نوشی کوه

پہ سفاھت دَ سفیہ آزار مۂ شہ
سپی و مزیرو تہ غپیږی
ومکافات تہ دَ دۂ تیار مۂ شہ
کم تر مزری نۂ پہ خپل وقار مۂ شہ

دَ مہوشانو مینہ مشکلہ دہ
خو ورتہ نیاز کړے دربانډِ ناز کا
غم نۂ دیار وی ښادی نۂ خیلہ دہ
دَ جدائیٔ بلا نۂ بلہ دہ

پند دے کۂ آورے خُما پسرہ
څو دِ شراب شتہ پہ قرابہ کښے
پکښے فائدہ وینم زۂ سراسرہ
ښبنہ نۂ ښبنوہ نۂ کار کړہ تر سرہ

دَ چا ناحقہ دَ پیریٔ ویرہ دہ
شکر وکاښرہ څولا ځوانی لرے
پیری ایمان دے ځوانی کافرہ دہ
کۂ درتہ ناستہ نوے دلبرہ دہ

کۂ سروری غواړے آوارہ کړونے شہ
چہ بدلہ تا وکا پہ خرخ نے وسپارہ
پارہ روزی کوہ نہ پارہ کړونے شہ
تۂ نے وکارتہ نندارہ کړونے شہ

ساقی راپاځہ پہ ویږی راشہ
یوڅو لبریزے پیمانے ساکړہ
دَ تا دَ سترګو بلا پہ ما شہ
دَ اُوری مریم تۂ رِم عیسیٰ شہ

کۂ تۂ رنځور نے طبیب طلب کړہ
کۂ روغ نے واہ واہ خوبنی طرب کړہ
ورتہ زاری ژړا شغب کړہ
چہ تل تندرست اوسے ھسے سبب کړہ

څو دِ پہ مخ دی تسلسلونہ
دَ عاشقانو نرمرګ بہتر دی
ساړہ و ناساز دی واړہ ګلونہ
د مہوشانو تغافلونہ

تروږي په مکرمزري په زور زده
ملا خبرې په سپين په تور زده

غازي په توره د شپه په لور زده
د ګنګو ژبه د ګنګو مور زده

چه ستا په دين نه دي معدوم ئې وګڼه
حرص شو مې لرې څوک چه حرص کا

چه ته ترې زده کړې مخدوم ئې وګڼه
حضرتؒ ويلي دي محروم ئې وګڼه

چرګان نارې وهي سحر صبا شه
غم ئې هيچرې په عشق کښې نشته

يار په ارمان کښې له ما جدا شه
د عشق په کار کښې رقيب بلا شه

ځواني دِ راکړه له کامرانۍ سره
بيا مِ به څه کړې په دا خبر نه يم

پيري دِ راکړه له پريشانۍ سره
چه مِ ژوندے ساتے له حيرانۍ سره

مئين مِ راغے د ملنګ په څير شه
چه سره نه شوو غاړه غړئ

خبر پرے نه شوم را باندِ تير شه
افسوس افسوس دے ارمان مِ ډير شه

که مهتري غواړے د هرچا وړونے شه
د زړهٔ په کور کښے ځائے د رحمان وکړه

آواره کړونے شه آواره کړونے شه
د زړهٔ له کوره شيطان شړونے شه

زرغورزونے شه ځوانان ساتونے شه
له هرچا وړونے شه سرداري کړونے شه

ځوانان ساتونے شه زرغورزونے شه
سرداري کړونے شه د هرچا وړنے شه

پرده پوشي کوه لکه پړونے شه
د حلم خوئ واخله له بارداره ونے

آواره کړونے شه د هرچا وړنے شه
چه څوک دِ وُلي ميوه ورکړونے شه

ویښتو تلوار وکړه زړیږه مې سپینه شوه
په غم دَ زړیږے شوم غاښونه لاړل
راځئ توره دَ ګښلیو مینه شوه
اوس مې په سترګو پیری تعینه شوه

خوشحاله زوړ شوے نوره ځوانی مکړه
چه درسره دی دام او دَدان دی
بے زراو زور وره حکمرانی مهٔ کړه
له دام او دَده زندګانی مهٔ کړه

حق دَ خپلوئ دَ خپل په زړهٔ کړه
په هر سلوک چه پردی خپلیږی
کهٔ هر څو بد کا ورسره ښهٔ کړه
سلوک هم هسے ورسره وکړه

چا ته به راز وایم چه مې رازدار نشته
کیمیا به بیاموے وفا به نهٔ موے
غم مې به څوک اخلی چه غمګسار نشته
هزار یاران لرم یو وفادار نشته

ستا تر لبانو خوند دَ شکر ورک شهٔ
ستا تر چشمانو دَ ملو خمر ورک شهٔ
ستا تر دندانو نرخ دَ ګوهر ورک شهٔ
ستا تر مژګانو تیرهٔ خنجر ورک شهٔ

کهٔ ډیر ماړهٔ وی دَ ښکار بازونه
نازے دَ وهودے وربانذِ ښائی
په زړهٔ دَ زرکو لری رازونه
کهٔ ښایسته کا هومره نازونه

په څو غافل ئے غفلت نتلیه
هیڅ دِ له مرګه اندیښنه نهٔ شی
له کاره تولہ اَمل یستنیه
کهٔ جنازه ورزی له هره کمیه

چه لړے باسی تا له دا داره
دوستی دَ خلقو ده ځلو رمه
نفس دِ شیطان دے دُنیا دے یاره
دَ ځان دِ بلا دی واړه هوښیاره

ښوک چه قانع دے مخدوم ئے وګڼړه
کۀ روږدۀ ځویه کۀ خویښ کۀ دوست دے

ښوک چه حریص دے محروم ئے وګڼړه
چه ستا په رائے نۀ دے معدوم ئے وګڼړه

سر په زانو کښیږدۀ خوشحاله راشه
لعل پیدا کا له سخته کاڼړی

قدرت ئے ګوره په تماشا شه
خلیل پیدا کا له بُت تراشه

نۀ په خپل رائے راغلم و دے عالم ته
په څۀ شان راغلم په څۀ شان درومم

نۀ په رضا درومم بیا وعدم ته
قطره چه بیله شی درومی بیا یم ته

له بدے اُوسپنے کړه تُوره سازه
کۀ ئے په مشک په عنبر ځائے ورکړے

په غوڅول شی بیا بد آوازه
بد بوئ به بیا ځی له بده پیازه

د لیلٰی سترګه یوه ګلداره وه
چه پرے مئین وی عیب ئے نۀ وینی

مجنون ته پاکه له عیب وعاره وه
مینه له ځا یه مکر مکاره وه

خوشحاله مۀ ئے په خوئ والی ویاړه
هرچه زوولی دی د توتیا له نسه

هم ځنے مهر وفا مۀ غواړه
د پدرکُشو په بوئ دی واړه

درپسے واؤښتم مۀ کړه پوښتنه
بارخو دِګل دے ومائے راکړه

هسے به نۀ وی د چا لوښتنه
مذمومه نۀ ده د ګل غوښتنه

وخت د تلاش دے په ما پیری راغله
ځویه م ډیردی چه نا قابل دی

په زړۀ خوښه بیا فقیری راغله
خکه په خونه دا دلګیری راغله

چه ته وینې په سترګو واړه
هغه چه تا وینی هغه باقی دے

بقائے نشته باندِ مخ ویاړه
فانی به څه کړے باقی وغواړه

څو نعمتونه ترسر ترپا یه
په هره ساه ئے شکر وکاږه

چه تا موندلی دی له یوډ خدایه
کۀ غافل نۀ ئے ثنائے وایه

کۀ وی هوښیار دِ وی نادان دِ یار مۀ شه
وخت دَ فساد دے سړے لونډ بنۀ دے

تۀ به ئے ګل کښېږے د رباندِ خار مۀ شه
کۀ ښخه وکا دَ څویه پښیمانه شه

هرڅوک چه جن کا په سپینه ږیره
دَ هغې جنے دے ترش ږۀ وتلے

هر سپین ویښتۀ ئے د تیرۀ ترتیره
درته م ووے واوره په خبره

کۀ ته آدم ئے کار دَ آدم کړه
دَ دُنیا خلق سپی دی ددان دی

کړے به څوکړے کارونه سم کړه
صحبت له سپیو له دَ دانو کم کړه

وخت دَ پیرئ راغے ځوانی م لاړه
دا هم پوهیږم چه قدر نۀ لرے

په کام م شوه پیری په غاړه
کۀ خاندے خاندہ کۀ ژاړے ژاړه

خدائے په خدائی ښائی چه هومره مینه
په هسے شان ئے وبل مئین کا

دَ دوُو په مینځ کښې هسے کینه دینه
چه ځبله ځان د جهان ښمندینه

ربه دردمن کړه بے دردان واړه
خوشحاله ملک له بے دردو ډک شو

چه واړه ژاړی ځما په غاړه
دردمن په نورو ملکونو غواړه

خدایه دا کارم تر انجام سراوله
نیولے بازم له دامه دُوت
تللے مئین م ترمقام سراوله
بیائے په بیارته تر دام راوله

نوم م د بدو په خلق خور شهٔ
هیداد د ماشی د هغهٔ نهٔ شی
کهٔ صاف صوفی یم وائی میخور شهٔ
چه له مستئ هراند په خور شهٔ

خزان بد باد دے حذر ترے بویه
فائده آخله د بهار له باده
پاڼے د هرے وُنے کا تویه
تا به د وُنے په رنګ کا څُویه

کهٔ ته لوئی غواړے څما پسره
صرفه د زرمهٔ کړه ویره دسرمکړه
لوئی به نهٔ مومے بے درد سره
مګر په دا کړے لوئی تر سره

ماوے څما غوندِ میخور بل نشته
هسے مستان م په نظر کښیوتل
چه ئے بے میئو شر وشور بل نشته
چه ئے بے میئو بیور بل نشته

دَ خپل بد خواه سره په تیغ بازی کوه
ژبه خوندی لره د بد ګویئ
نهٔ چه بښکنځلے یا غمازی کوه
په حق راضی اوسه سرفرازی کوه

درته به څهٔ وایم کارد خلیل کوره
سبطی ئے پورے یست قبطی ئے ډوب کړ
په خوئے وساتهٔ دا ور دلیل کوره
دا عقل پوهه د رود نیل کوره

څما دایمه خدایه موجوده
معبود بل نهٔ لرم معبودم ته ئے
وجود د هرچا دے دستاله جُوده
معبود م بل مهٔ کړه څما معبوده

خما دایمه قایمه خدایه
تا مُسلمان کړم تا زهٔ کامران کړم

په خپل صفت کښې قدرت نمایه
عزیز دِ راوستم عزیز م بیا یه

کهٔ راته غوږ کړې بنه دلسوزی ده
مټ کړه زخمونه خوره ظفر کهٔ مومې

کهٔ مرګ قبول کړې فتح روزی ده
کهٔ نهٔ ستا تیښته هم فیروزی ده

یوځهٔ فراق دے چه رابرسیر شهٔ
بیا به ئې دور دَ ځوانئ رانهٔ شی

اَرمان افسوس دے دا یوځهٔ پیر شهٔ
وار دَ دلبرے دَ زلفو تیر شهٔ

کهٔ ډیر هوښیار ئې خپسر نادان کړه
هرڅوک پوره دی دَ خپلې چارے

له ښو له بدو سلوک یکسان کړه
خوشحاله جانه غم دَ خپل ځان کړه

کهٔ هرڅو لږه ده په ډیرئې ونیسه
چه نوم دِ شوم کا کار دِ مذموم کا

دُنیا به تیره شی په تیره ئې ونیسه
واوره په زهر په ګندیرئې ونیسه

خوشحاله مهٔ کړه دَ دُنیا ګله
نهٔ به زیاتیږی نهٔ به کمیږی

زهٔ درته وایم په څو څو ځله
هرچا موند وَیش له اَزله

دَ کریږ ونه ترخه هم زړه ده
اثر دَ اصل هر څیز پیدا کا

میوه ئې وَلې ته خوږه ده
په خوله خوږه ده په زړهٔ کړوه ده

زهٔ چه پیدا یم وهغه کار ته
یا ننګ یا تُوره یا دل آرامے

چارم ښکاره ده وګرد کار ته
یا زړهٔ تل تللې وعمر ښکار ته

چارئ په هرچا باندِ ښکاره ده　　دَ ګل یا بوئ دے یا نندار ده
چه نهٔ ئے بوئ وی نهٔ ئے ښهٔ رنګ وی　　ګل به ئے نهٔ بولم دَ چار پائے چاره ده

دَ غرهٔ په کانړیو کښے کهٔ چا کیمیا مونده　　درته به وایم باور کړه ما مونده
په نولس توکه ښائسته روغه　　لکه مِ غوښته هغه مِ بیا مونده

توغی ج وکړ په سدوم په شام شهٔ　　کورته چه راغے په احترام شهٔ
شیطان ګمراه کړ کوځه ئے ونیوه　　په هومره چارے رسوا بدنام شهٔ

بل دِ یوځائے غوندِ راته پیدا کړه　　هاله له ما ځه وما ته شا کړه
ګنړه داکومه یاری خپلوی ده　　ما غم ته پریږ ده تهٔ ځان جدا کړه

ښځه چه ځوانه ده هومره صحت ده　　خو چه زړه ده هومره زحمت ده
اولاد چه بد راوړی میرمن ومهٔ وینے　　اولاد چه ښهٔ راوړی وینځهٔ نعمت ده

ساقی وماته دکے پیالے راکړه　　شراب په خم کښے دَ دنبالے راکړه
بل به ځما غوندِ میخور پیدا نشی　　کوزے په ځائے کښے دَ سنبھالے راکړه

دلبرے سازے دی سحر سازئ ته　　له خود رایئ وبے نیازئ ته
کهٔ زور کهٔ زر لرے توان دَ شور وشر لرے　　هاله هوس کړه شاهد بازئ ته

کهٔ بادشاهی ده کهٔ وزیری ده　　کهٔ خواجګی ده کهٔ آمیری ده
زوال دَ واړو دَ تاته ووایم　　چرخ دَ فلک دے مرګ دے پیری ده

په طورطور پیدا یو موږه
شهد شکرے زهر زقوم یو

مشک یو عنبر یو بصل یو هوږه
رونین یو نیل یو نسیال یو شوږه

باد شاه سنی دے خلق حیران شهٔ
کهٔ ښوک په ملک کښے یو شاه ځلے دے

د رافضیانو دور آوان شهٔ
توره ترملا کا وخت د افغان شهٔ

کهٔ سرداری غواړے خپل زړهٔ د شیر راوړه
ضرب المثل دے د هوښیارانو

صرفه په ځان مکړه حملے په ډیر راوړه
ملک ته شمشیر راوړه ښځے ته کیږ وړه

صحبت چه نهٔ وی له ښهٔ احباب سره
هوښیار به هیچرے بے غلطی نهٔ وی

عمر تیریږی له ډیر عذاب سره
خطا ترے ده اهل ثواب سره

مرګ د میدان را په بستر م مهٔ وژنه
چه په میراث م حساب کتاب شی

مومن م وژنه کافرم مهٔ وژنه
هسے غولے تونګر م مهٔ وژنه

د عارفانو د زړهٔ مردوده
کهٔ هر ښو ګرځے ترشرقه غربه

لاړے د دین او دُنیا له سوده
سعی د دینم واړه نابوده

د بادشاهانو نمنځلی واړه
کهٔ اصل نهٔ لرے اصل پیدا کا

ترهر چا هسکه کا خپله غاړه
کهٔ عقل نهٔ لرے عقل ترے ځوړه

د مرد وقار ګوره د مرد تمکین ګوره
بیائے له پسه دین و آئین ګوره

مهر له دوسته له اعد کین ګوره
هغه چه دا لری بخت ئے قرین ګوره

ښوچه توانیږې له هیڅا بد مهٔ کړه
کۀ ئې اوبۀ وړې کۀ ئې لمبې سوځی

ښوک چه بنۀ کیږی بانډِ حسد مکړه
ځړۀ شوے په مار په لړم په دد مکړه

کۀ نور څۀ نۀ وی دا هومره زده کړه
ښوچه یارئ هومره غمونه

چه زړهٔ دِ یو دے یاری یوه کړه
ډیرے یارئ له هیڅا مهٔ کړه

کۀ خپل خدائې پیژنې را ته اووایه
خدائې مِ هغهٔ چه نیست ؤم هست ئې کړم

درته به ووایم اے رهنمایه
څما توبه ده له بله خدایه

خبر هیڅ نۀ ؤم چه دا افعال شته
لکه عابد وکړهٔ یا بد فرجام وکړهٔ

دَ پلار له ځویه سره دا حال شته
دا حال په هرچا دے کۀ په خوشحال شته

قدر دَ گل و دمل مستانو ځه ده
هغه چه نۀ خوری په مے څۀ کار لری

نۀ تیره دلو نۀ تنگد ستانو زده
راز مِ دَ میٔو مے پرستانو زده

کۀ غوږ کۀ سترگے کۀ خولهٔ کۀ پوزه
کار چه دَ سمع دے بصرئې کله کا

هر یو خپل کار لری تر بلے ئې کوزه
دَ خولے په کار نۀ پوزه فیروزه

چار دَ مرگوتی معائنه ده
پش تیشه ماته کا آئینه سازه کا

بنه ترژوندونه هر آئینه ده
چه تر تیشه نۀ بنۀ آئینه ده

دَ یار وفا کوره راستی دا دواړه
کۀ بنائسته وی ادب هنر لری

هغه چه دا لری ور باندِ ویاړه
یار دِ هم دا دے بل یار مهٔ غواړه

چرته غره ولاړ ئې په باد مغروره
نیستي هستي ئې فنا کیدل دي

حباب ته ګوره بلا دِ دوره
واړه ستا چار ده درته حضوره

رورچه دَ خان شو ژوندئ وژاړه
کمین چه مست شي ځنې پناه غواړه

کهٔ هوخوښهٔ دې په ښهٔ مهٔ وياړه
خوشحاله خان په سکانو مهٔ داړه

باغبان چه کیږدي په باغ کښې وُنه
کهٔ برئ ښهٔ شي زړهٔ ئې پرې ښهٔ شي

تپاک پرې ځوګا تل په ساتنه
کهٔ بد شي نهٔ کا بانډِ وتنه

خسیس دِ پریږدي په دوه پشیزه
کهٔ نهٔ دانائې زړهٔ به پرې نهٔ تړې

هلک دِ پریږدي په دوه مویزه
باري دَ دواړو کنړه ناخیزه

زړهٔ ډیر مئین یم په ښَه خبره
چه ښَه خبره له چا نه واورم

نَه ښَه خبره نه مرغلره
وایم چه ځار کړم ترې مهران خوزره

دَخپل پدر سره دَ خپل پسر سره
خپلوي کهٔ مینه کهٔ محبت کا

دَ پیر اُستاد سره دَ یوهٔ هر سره
په سود نظر لري نهٔ دَ ضرر سره

دُنیا پیاله ده یا سپینه تُوره ده
چه دِ رضا ده هغه په لاس واخله

نیکي بدي ئې درته حضوره ده
په هره چار کښې راستي منظوره ده

ځویه چه ووت دَ پلار له رایه
توبه کهٔ نهٔ کا سزا به مومي

توبه دِ وکا کم بخت ته وایه
په دواړه کونه لهٔ یوهٔ خدایه

تهٔ معشوقه ئے پروا دِ کُمه ده
بے تا کباب دے په اور وُرتیږی
زار دَ عاشق دے چه چارئے شومه ده
چار دِ دَ هجر دَ اور معلومه ده

خوشحال ته مهٔ گوره گوگل ئے گوره
کهٔ شین مزرے ئے کهٔ مست هاتی ئے
ډک دے دَ بلولمبو دَ اوره
خپل ځان دَ بلو لمبونه ژغوره

خوراک پوشاک دَسړی دا دواړه
بنهٔ بنهٔ ځایونه بنهٔ بنهٔ باغونه
خوبنی ئے گوبنے خپل ځان ته غواړه
په داچه وشی شریک دی واړه

قاضی مجنون یم عمر دِ ډیر شه
خولهٔ دَ لیلیٰ ده دَ عشق په شرع
وعشق ته گوره ترعقل تیر شه
په موزی گیو زهر گنډیر شه

مهٔ سلطنت غواړه مهٔ ډیر دولت غواړه
توفیق له خدایه دَ عبادت غواړه
ښځے ته وایه عصمت عفت غواړه
خدمت دَ شوئے کړه دَځان صحت غواړه

عطا دَخدائے دی دا یو څو خیزه
یو بنهٔ جمال دے یو بنهٔ خصال دے
تردا بِه نشته نورځهٔ عزیزه
چار دَ قوت ده ورسره نیزه

کهٔ جود په ما وکړے بهتر دے تالره
دَ جود په کړهٔ به منت په ما بار کړے
کهٔ جود په ما نهٔ کړے بهتر دے مالره
منت چه نهٔ وی بنهٔ دے دا نالره

وماته بنه ده هوښیاره کنډه
هغه به زیست وروزگار په عقل کا
تر پیغلے ځنے کم عقله تنډه
دا به روزگار کا په خپله هنډه

خانان ئے وارہ تلاوت خوان کړۀ
وخت دَ اورنګ دے عمل هیڅ نشته

دَ هند هندوان ئے دانشمندان کړۀ
خوکتا بونه ئے په عالم ګران کړۀ

چه بخیل کیږے هسے ساتل مکړه
خپل خوان په هرچا خوره منت په بل مکړه

چه مسرفیږی دا هسے تل مکړه
دَ بل وخوان ته خالی کتل مکړه

دَچا وخوان ته خالی کتل مۀ کړه
چه پړے باورځی هسے ویل مۀ کړه

کۀ تل دِ خوری منت په بل مکړه
چه مال دَ بل شی هسے ساتل مکړه

راته بنکارۀ شو وګړے واړه
وفا به نۀ موے له آدم زاده

دوه به وُ نۀ وینې په یوه غاړه
له تاچه وزیږی باندِمۀ ویاړه

غضب ملوک لره دروغ ملا لره
دا خلور توکه هرګوره بد دی

بخل غنی لره فحش نسا لره
فکرچه راغے په زړۀ کښے مالره

په درست وجود کښے بنۀ دی دوه خیزه
زړۀ بنۀ همت لره بنۀ خوئ خصلت لره

یو زړۀ بیا ژبه ځما عزیزه
ژبه فصیحه ربنتینې نیزه

اوس بے وفا شول دا یاران واړه
کۀ نیک کۀ بد دی په دا دستور دی

دَ پلار په رائے نۀ ځی فرزندان واړه
سره خپلوی نۀ کا آقربان واړه

درته به وایم خپل حال په خیره
په غوره ږیره م کۀ څۀ پکار ؤو

دَ آزاده ؤ په حال خبیره
په تیرم وینوۀ په سینه زیره

وخت دَ بهار راغې خزان اوس کم شۀ
شراب له خُمه راغلۀ بښیښو لره

مطرب په زیرمه دَ زیر وبم شۀ
کونړې کاسې راوړه خوشحاله دِ کخم شۀ

دُنیا ناخیزه ده بې دُنیا ژوه
اهل به نۀ مومې نا اهل ډیر دی

دُنیا کۀ خیزوې دَ نادان به نۀ وه
له خلقو کرځۀ جُدا په سیوه

خُما له دِله دَ بدو خواست بیایه
ظلوم جهول یم په کړو لاړو ځم

وښو کاړ ونو ته ئې په زغابنت بیایه
الله ته م په راهِ راست بیایه

لافې دَ عقل وعلم وهوش هومره
دَ سود په لوری هرچا ته کوش هومره

دَ کام دپاره جوش وخروش هومره
دَ زیان دپاره دَ خاطر جوش هومره

چه بادشاهان دی خانان دی روره
کۀ سور مزرې ئې کۀ تورهاتی ئې

نور ځۀ ئې مۀ کنړه بې بَله اوړه
خپل ځان له بَله اوره نه ژغوړه

ځویه کۀ وُوزی دَ پلاړ له رایه
ترفیل کۀ لاندِ شی اندوه ئې مۀ کړه

ځویه دَ چا دې کم بخت ته وایه
په فیل کۀ پاس کښینې هم ئې مۀ ستایه

رنځ ئې په غاړې په غرونو کښیږده
سعادتمند شه دَ پلار په خونه

کوهر کوهر دې خدائې ئې راپریږده
میندې داسې ځویه تل بلیږده

چار دَ ځوانۍ دَ فسق فجوړه
اوس م دا زُهد چه دَ پیرئ دے

له لاسه لاړهٔ لکه بښه تُوره
کشکې ئې چار وې هورې منظوره

فرښته که کښیني چیرے له دیوه
چه سره کړشي خوندبه ئے نورنشي
څۀ به ترے زده نۀ کا بے مکرو ریوه
کۀ مې غوښے کښیږدے له سیوه

کۀ راست ګوئی لری پاکه عفیفه ده
کۀ لوړ دَپیر ده کۀ دائے نۀ وی
کۀ زرخریده ده په ذات شریفه ده
بده کښیغه ده ګند د خفیفه دده

چه مستغني شے له شاه و میره
کۀ هیڅ پروا دِ وربانډِ نۀ وی
کۀ درته بدوائی کۀ بنۀ په خیره
مردئے رحمت دِ په ولی بزیره

نیکان عزیزدی له خپله سرویه
په باغ کښے هره وُنه اوبۀ مومی
بنۀ کړه له بدو سره خوش خویه
تروه ترخه دی خوږه خوشبویه

دَ سرود په غاړه کښینه نظرکړه
لکه سروانے اوبۀ چه درومی
غافل کۀ نۀ ئے په دا باور کړه
رخصت خپل عمرته هم هسے وزکړه

کۀ کارپه بزیره دے یا په غابښونه
کۀ کارپه نورځۀ دے خواجه خضریم
له مانه پاتې شوے ګلګونے ځونه
لابه دَجُونو ګړم مخسونه

مستي دَ میُو مِکیال مِکیال ده
کۀ دا مستي دواړه سره کړے
بیا دَ ځوانئ جوال جوال ده
ورځئے دِ پیره دَ مال دماں دۀ

عجب سودا ده دَ کابین غوټه
فرزندچه بنۀ راوړی سودئے بیشماره
چه بنۀ وی بنه شی وسره بوټه
کۀ نه دَ دُرد [illegible] [illegible] تروه ترو ټه

ښوک چه توانګر شي په قناعت سره
حرص ډیر شوم دے حریص محروم دے

افلاس ئے نشته په روایت سره
نظر کړهٔ وګړے په حدیث آیت سره

داچار دَ نمره لا مشهوره ده
دَ مرد تر توره دا ښځه ښه ده

نور ښځهٔ ئے مهٔ ګوره دَ مرد چه توره ده
کهٔ ستر پوښه پاکه مستوره ده

ساقي تحویل دِ وکړه و تهٔ
چه ما به تا سره پیاپے وښبنهٔ

پاسه راواخله هغه تهٔ تهٔ
هغه زهٔ زهٔ یم هغه تهٔ تهٔ

له خپله یاره غواړه خوښیزه
تینګ دِ په شرع تینګ دِ په دین وی

تش دِ ئے نهٔ وی زړهٔ له تمیزه
دُنیا دِ نهٔ وی ورته عزیزه

په درست جهان کښے م آشنا بیا نهٔ موندهٔ
عمر م تیر شو په آشنایئ کښے

ښوک به ئے څهٔ غواړی چه ما بیا نهٔ موندهٔ
له چا م بوئ دَ وفا بیا نهٔ موندهٔ

مردی دا مهٔ وایه چه په ده
کهٔ شرم ننګ لرے دَ سر پروا نهٔ کړے

یا په دُنیا ده یا په مال زر ده
مردی هم دا ده کهٔ دِ په خبر ده

ځوانی کهٔ ګورے لکه سرهٔ زر ده
کهٔ هر څو ښهٔ ئے عیبونه نهٔ لرے

تر سر تر پایه واړه هُنر ده
پیری دَ واړو عیبونو سر ده

شرم یوسف دے ارزان ئے مهٔ پلوره
نړئ وُنه په نری باد شوری

غته پکار ده وړه وته مهٔ ګوره
کهٔ لویه ونه ئے په لړ باد مهٔ شوره

خپل خپل فعلونه دَ سړی رهبر ګنړه
چه خیر غواړی خیر به بیاموی

په خپله پوهه کښے قابل پوهـ ګنړه
چه شرطلب وی بخردے شر ګنړه

ځوانی که هرڅو یو نوبهار دے
په اوړکښے وسیزه دَګلابوګل شے

چه درومی تله کا بیاځه پکار دے
چه بوئ دِ پاتے شی داچار په چاردے

ګوره دا فکر عبث نه مونړه
عمرپه لهو په لعب تیرېږی

هسے په بادځی نفس نه مونړه
مونږ دَهوس یو هوس زمونږه

صوفی دا هومره له مانه زده کړه
مستانو مستے پیالے نوشلے دی

نورڅهٔ پوهیږے واړه هغه کړه
هرڅهٔ چه وائی غرض مه کړه

جن هم بنه ده چه مهرداره ده
چه دَجن والی دفترے خورشو

دَ بلاړ په کورکښے ناسته قراره ده
کهٔ صاحبی کا بیاخدمتګاره ده

دُنیا مرداره ده ګنده بد بُویه
واړه سګان دی ګرګان ددان دی

چه پرے تولیږی له دره سُویه
باندِ غوغا کا دَ نفس په خُویه

لقمه طیّبه صلوٰة دا دواړه
کهٔ دِ په دا کښے خلل پیدا شی

کهٔ ستا په ځائے وی بندی ګړدویږه
غم دِ په کوردے کم بخته تړیږه

سړے کهٔ توردے کهٔ سپین په دامشه
تن یو غلاف دے زړهٔ پکښے توره

دَ مرد په کارکښے عقل خط مشه
مدار په توره دے غلاف نه مشه

چه عاشقانو دَ حق دیدار لیدهٔ
جلوه ئے وکړه په بایزید کښے

موسیٰ په وُنه منصور په دار لیدهٔ
دَ تیرے تُورے په مخ عطار لیدهٔ

کهٔ سرداری غواړے بلا دِ دُوره
لکه آسمان وَته ختنه گرانه ده

عقل همت راوړه بیاجود بیا تُوره
سرداری لا ده گرانه منظوره

کهٔ تهٔ خبر شے له دے ساموره
نتاج ئے واړه نابود پیدا شی

سپیئ چه لنګه شی له ګرګه یُوزه
وحشی صفت وی مرتبه ګوره

یو بخت بل عقل دا دواړه ځیزه
کهٔ دَ خښتن دی کهٔ دَ مرئ دی

دَ مور له بطنه ځما عزیزه
کهٔ ئے میرمن لری کهٔ ئے کنیزه

خوبی دَ عمر تر ځلویښت کاله ده
حواس کهٔ درست لرے شکر وکاږه

چه په ځوانئ کښے مالا ماله ده
ځو دِ ودانه دَ عمر ځاله ده

یا واړه وینے فاسدے لرے کړه
یا دَ کوږ سرے در بلے پرېږده

یا دَ زړهٔ لرے دَ قصد خبرے کړه
یا واړه لرے له کوږ سرے کړه

له بنو سړیو یکا نکی بنه ده
په هوښیارئ کښے چه خلاصے نهٔ موے

له بده خلقه بیکا نکی بنه ده
ځان دیوانه کړه دیوانګی بنه ده

دَ عقل بخره عنایتی ده
قابل به هیڅرے کم عقله نهٔ وی

لا له مثاله هدایتی ده
ځما خبره دا آیتی ده

عشق دَ ځوانئ وکښلے ټوره
چه مې نیولے دَ پیرئ په دَور دے
ځارئ تر فسق هم تر فجوره
اوس مې دا زهد دے نه ضروره

نهٔ دِ څهٔ مهر دَ زړهٔ په ما شته
هیښ یم که مستیم که لیونے یم
نهٔ دِ دَ ژبے دروغ رښتیا شته
چه لا مې طمع دَ یارئ په تا شته

خپله خبره ده مرغلره
پند مې په یاد لره که مې نیکخواه ګنړے
بے فکره مهٔ وایه خپله خبره
خو چه توانیږے خبره نغره

یا ترس دَ خدائے دے یا هوښیاری ده
هغه چه دا لری پرے مې سلام وایه
دین و دُنیا لره چه کامګاری ده
په دواړه کونه ئے رستګاری ده

مهر نیکانو سره جاوید لره
بدان که هر څو لائق دَ بدو دی
تل زړهٔ له دیو سره سعید لره
نهٔ چه یک لخت ئے محروم نومید کړه

پورے په خونه دَ ایمل خان شهٔ
دا اورکهٔ ونهٔ مړ دایم نارے وهم
په سول دَ خوئے دَ خان خانان شهٔ
په واړه وار پورے په درست جهان شهٔ

غرق په نعمت کښے یم سر تر پایه
شکر سپاس به ئے په څو په ځائے کړم
زړهٔ دا نعمت لرم له خپله خدایه
چه پیدا شوے یم ضعیف له ځایه

څو تجربه نهٔ کړے خپل خویه رونړه
خویه هغه دی چه ځان څرګند کا
هو مره د دیو په کارمهٔ هُونړه
ګنړه بهتر دی له خویه لونړه

چه سل په زړهٔ لری یوه په ژبه
چه زړهٔ او ژبه سره یکرنګ لری

هغه دِ پریوزی په لویه تبه
هغه به خلاص شی له معائبه

کهٔ دا خو دا ده بیدی بیدیا ده
کهٔ دا فنا ده بلـه بقا ده

چه دا خما ده کله خما ده
عجب غوغا ده عجب سودا ده

اے چه دَ نول ده خما له مخه
په عشق کښے مرد اوسه پروائے مکړه

دَ رقیبانو په بد ده سخه
زهٔ به دِ نهٔ کړم دَ چا په سخه

نن رهٔ م دِ روغ کړ دلبری واه واه
وخت دَ ګلونو شو تازه بهاردے

کهٔ زرئے راکړے په غیر کښے آه آه
بنهٔ مخ تل تل ګوره باده هم ګاه ګاه

زاغ و زغنو خالی غلغل نن ده
هغه چه نهٔ لری مستی دَ میو

دَ ګلو قدر شیدا بلبل زده
هغو مِ کله په ګل و مل زده

دوستان دِ ژوه بدخواه دِ ومره
چه هومره مهر تهٔ په اغیار وکړے

زهٔ بر له تا وخورم تهٔ بر له عمره
یار به دِ پائی له هسے عمره

دُنیا کهٔ دا ده چه رابنکاره شوه
خوار بهٔ خپل خوئی ؤ وخوار هٔ خپل رونړه

بنه چه له وخته لا آواره شوه
خما له دیونه سینه پاره شوه

هغه چه شوی دی دَ دهٔ له لوریه
کهٔ دِ دوستان دی کهٔ دشمنان دی

هغه به کیږی له بخته ستوریه
وتلی نهٔ دی دَ ازل له توریه

احمق په کلی کښې پیدا خدلئ مکړه — کۀ دِ په کور کښې پیدا شی زده کړه
لاړۓ په لرے ملکونو وشړه — یائے له تورو خاورو سره کړه

کۀ هرڅو پوهے خوشحاله راشه — خضرؑ پیدا کړه پسے موسیٰؑ شه
سخ دَ هغۀ دے چه بنۀ پیشوا لری — غم به دِ نۀ وی خبرپه دا شه

بنځه کۀ هرڅو په مخ ښیبا ده — په هرهنر کښې پسندلی دا ده
ظاهرے مۀ گوره باطن ئے گوره — هالۀ ئے ستا یه کۀ دا پارسا ده

ځوانی ئے لاړه ځنے مایوس شۀ — با زدے عالَم ته خوشحال تپوس شۀ
شاه شطرنج دے نږدے ومات ته — ورته اوس پاتے یو فیل منحوس شۀ

گمان دَ نیکو تل په دوستانو کړه — گمان دَ بدو په دشمنانو کړه
دَ جاهلانو سره قرین مۀ شه — صحبت یک لحظه له عاقلانو کړه

دروغ په ځان باندِ خونِ خنزیر کړه — کۀ دارو کیږی روایت ځیر کړه
طبیب چه وائی هسے تدبیر کړه — دارو دَ وینے سره خمیر کړه

یاری ئے نۀ ده دا سرابی ده — کۀ ودانی ده هم خرابی ده
چه زړۀ پرے بنۀ کا هوښیار به نۀ وی — هستی نیستی ئے په شتابی ده

بل ترخپل دست لره دَ چاتردست مشه — شرم پرست اوسه شهوت پرست مشه
چه کار دَ دین دَ دُنیا خراب پریږدے — هسے بے خوده دَ میو مست مشه

چه زړهٔ ژوندے لری دَ عشق په مینه
فرهاد کهٔ مړ دے مجنون کهٔ مړ دے
هغه کهٔ ومری کنړه تهٔ مرینه
نوم به ئے هر کله په جهان وینه

کهٔ چا ته وکړے دَ زړهٔ خبره
کهٔ دِ خپل خوئے دے ګمان پرے مکره
تاکید پرے وکړے چه وئے نغره
چه به ئے نهٔ کا چا ته ظاهره

کهٔ دین دُنیا غواړے پرده پوشی کړه
کهٔ نهٔ خاموش ئے نهٔ پرده پوش ئے
فتنے له خولے پاسی خو خاموشی کړه
بے خوده پریوزه باده نوشی کړه

چه دِ په زړهٔ دی هغه په خولهٔ لره
دا دواړه توکه لکه مرئ
چه دِ په خولهٔ دی هغه په زړهٔ لره
په یوهٔ تارئے پییئلے تهٔ لره

بله لمبه دِ دَ وصل ژمنه ده
کهٔ داد دَ خولے دے کهٔ نور دادونه
بله م عین دَ زړهٔ دننه ده
چه کښلیو نهٔ زده کومه تمځنه ده

خوږم له تا نه درنه سینه ده
چه ورته وګورے فتنے په لاس واخلے
هومره م دے سره ډیره کینه ده
چه تهٔ ئے مسته کړے ستا آئینه ده

کهٔ دِ په غولی ولاړه ونه ده
یا به میوه لری یا به سایه لری
هومره پرے ویاړه خولو یه پلنه ده
جوړه په ونه بانډِ ستاینه ده

دپاسه نهٔ شوه داچه دَ لاندِ ده
مهٔ ترے حیا غواړه مهٔ ترے وفا غواړه
بل ګل به نهٔ کیدهٔ چه دا دسپاندِ دهٔ
هغه لنډئ ده لکه دَ وړاندِ ده

جفا چه ووینې له چا وفا وکړه
که آدم زاده ئې خوی د آدم راوړه

که څوک بشکنځل وکا ورته دعا وکړه
غمژن چه ووینې ورته ژړا وکړه

خوا نمرد که نه ئې له مانه نن زده کړه
چه را غله را غله چه لاړه لاړه

بخښل د جرم خو هرول د نغن زده کړه
خوئ د ښاد منونه د غمژن زده کړه

چه عاشقي کړې بېغور قبول کړه
که څوک دِ اچوي و سرو لمبو ته

د واړه خلقو شرشور قبول کړه
د یار د پاره د سور اور قبول کړه

غم او غلیم ته له دله دور کړه
که مخ دِ زیړ وي په دلګیرئ کښې

خانده هوس کړه ښادي سرور کړه
ته ئې په دواړه وخیړو سور کړه

ډیرو لیدلې د لیلی رخت ؤو
زه یار مشفق لرم ده یار بدخوئ درلۀ

شویه پرصوف وو نادیده وخت ؤو
زه بختور یم مجنون بد بخت ؤو

دا سحر کړه دنیا مکاره
چه ئې ویزار کا له موره پلاره

ځویه ویزار کا له موره پلاره
هسې دا هم شي ځنې ویزاره

که سرو ونه په قد درانه ده
ځما حذر شي دستا له ستر ګو

نه چه ترتا نه هم سرفرازه ده
که د کوترې ویره له بازه ده

څۀ شي مې بیا مونده معنی له جاه
په جاه به هیڅوک غلطي نۀ کا

که جاه بالۀ شي بد دې ترچاه
بې له احمقه بې له ګمراه

کۀ په دیدن ده دیدن هم ډیر وشۀ
کۀ په خوردن ده خوردن هم ډیروشۀ
خوشحاله بس کړه وخت دَعمل دے
لوستن هم ډیروشۀ گفتن هم ډیروشۀ

سحرم خوب لیدۀ اندوهِم زیاته شوه
مےچهِ م وخښل پیالهِ م ماته شوه
سمندِم پاسه په بام جولان کړ
له بامه پریوت شائے غبراته شوه

یونیمګړے ده دُنیا نیمګړے ده
نوعاقلانو په هیڅ نومړی ده
چه یلئے وخوړه یائے چا ورکړه
دُنیاخوهغوله ځانه وُړی ده

ژاړه غافله په بار بار ژاړه
دَځان بلا شوے په خپله واړه
کۀ داجهان دےکۀ بل جهان دے
درځنه لاړل په غفلت دواړه

تۀ قهقهه خاندے غم تم په بل شۀ
غم تم په بل شۀ بل چه تل تل شۀ
قاتله ځله په کابو بویه
پرے باندِ پاسه غرخۀ غافل شۀ

دَچاناحقه له مرګه ویره ده
داچارکۀ ګوړے هرګوره غوره ده
نرګر وبنی مات کا اوړئ سازه کا
لاتر وبنی نۀ اوړئ بهتره ده

کۀ هرڅو بنه ده چه تیرید ونی ده
دُنیا په پڅه نۀ پیرید ونی ده
کۀ بنۀ کړے بنۀ کړه کۀ بد کړے بد کړه
کرده دَهیڅا نۀ هیرید ونی ده

جفا دَ خلقو هرګوره ډیره شوه
وفا دَ هرچا له دِله هیره شوه
وخت دَ قیامت شوکۀ نورآفت دے
یوه بلا ده چه رابرسیره شوه

زر دِ ورنهٔ شی دَ نادان ترکوره
په بدۀ خرخ کا قدر نهٔ لری

په زر دولت دِ عزت دے ګوره
کاسه نۀ زره شی په ډاک نسکوره

سخا تر هرڅه په خپلو لا ښه ده
دَ ښو دلبرو سره خندا ښه ده

په ښهٔ ویلو ژبه ګویا ښه ده
خوشحال خټک ته دُنیا په دا ښه ده

په قد چه نوم لری سَروَ په څو لکه
خولهٔ دِ حقه ده دَ سرو یاقوتو

په مخ چه نوم لری تمام د وږمه
په سپینو دُرو ګوهرو ډکه

دا چار څرګنده په هر دیار ده
دَ زړهٔ دِیار م خالی نه غیر دے

بدی ښیګړه دیار دیار ده
یکښې دلبره دیار دیار ده

دُنیا بوډۍ ده دَ کالو ډیره
دَ ډیرو مړونو ماغزهٔ ئے وخوړل

ترسلو زرو مړنو تیره
لا به ئے ښځې پرے نهٔ ده سیره

ترباز کهٔ لاندِ کړے دَ کارګه هویه
کهٔ دَ مزری سره یاری آغازه کا

باز به را نهٔ وړی کارګه ترے بویه
کوم خوئ به واخلی دَ مزري سویه

کهٔ څوئ دَ پلار ئے دَ پلار هُنر واخله
بهرام کهٔ څوئ دَ خوشحال خټک وُو

نهٔ چه ئے مال و ملک ویا زر واخله
هُنر ئے نهٔ وُو څُنے خبر واخله

دَ لُور عفت غواړه دَ څویه تُوره
چه دا ئے نهٔ وی مرګ ئے مبلمه شه

هغه چه دا لری بلا ئے دُوره
مور دِ دَ وخته شی په دواړو بُوره

تل شی ساله وے دَ خدائے د پاره
دَ ښو ښوجونوجمال تل تل لیدے

ګل ولاله وے دَ خدائے د پاره
په لاس پیاله وے دَ خدائے د پاره

ښځه خوش خویه غواړه خوش رویه
مینه ئے ډیره نوړنګ په بوئ شی

کۀ نه بدرویه ښه ده خوش خویه
څوک چه خبردی دَ ګل له بویه

له قامه لاړ شوم لوے په کروهه
په تیرو چاړو پسے آرمان کړم

خالی آرمان دے روستنئ پوهه
اوس م څۀ سود دے له دے اندوهه

ساقی بیا مهر کړه دَ میو مهر شۀ
پکښې به ډیرے ډیرے خوښئ وی

دَ مینځ دَ تلے مقام دَ مهر شۀ
بیا را برسیره دَ فلک مهر شۀ

دَ نَو دولتو دُنیا کۀ ډیره ده
څوک دِ ئے ګرم او ملامت نۀ کا

دَ جُود وینائے له دِله هیره ده
یوه بلائے ترتندی تیره ده

دَ رقیبانو په ډیره ړخه
شوم یم چه بایم په دا ډیر غم کښې

دایم جُدا شوم دَ یار له مخه
یو جدائی شوه دویمه سخه

درپیښه مۀ شه دَ بخت کږوه
دَ باز شړلی زړکه م ولیده

خونی مزرے کا په تا ببروه
دَ باد خورکو باندِ خوږه وه

زړۀ ئے خبر یم له زیانه سوده
حسد دَ چا دے دَ نامردانو

حسد مذموم دے غبطه محموده
غبطه را پاسی دَ مرد له جوده

چه علم وکړې عزیزه خو یه
کمکیه ونه بارداره ښه ده

فهم په علم په عمل بو یه
نهٔ پلنه ونه بے باره لویه

کهٔ یار دِ سپین دے تاته تورمشه
نیک بد به واړه په دا پوهیږی

کهٔ د صفت دم دَ بیغور مهٔ شه
کهٔ ته هغه نے خوئ دِ اوس نورمهٔ شه

په شیخ رحمکار م تازه توبه وکړه
زړهٔ م هرکوړه په اندیښنو شو

هغې نګارے راته ښیوه وکړه
توبه م بده ده کهٔ توبه م ښهٔ وکړه

زړهٔ دِ کباب کړم خدائے دِ کباب کړه
نهٔ دِ وفا شته نهٔ دِ جفا شته

غلیم خونهٔ یم خهٔ خو حساب کړه
ناکسه زړه مه خدائے دِ خراب کړه

کهٔ سروری غواړے دهرچا ورونے شه
کهٔ بد گفتار دے کهٔ بدکردار دے

پرده پوښی کوه لکه پړونے شه
چه عذرخواه شی آواره کړونے شه

وفا ترے مهٔ غواړه دا دوه درخیزه
یو آس بل ښځه کهٔ هرخوښهٔ وی

چه بے وفا دی خما عزیزه
دریمه توره درسره نیزه

دریغه ښهٔ خویه دریغه ښهٔ زړونړه
چه دواړه توکه لائق قابل لری

چاړے ترلعلو تر دُرو چونړه
هغهٔ ته وایه کهٔ مونږے مونږه

سر په زانو کښیږه دا چارحاشا بنه ده
خوکام ترے مومے په غم کښے درومے

ترباغه راغه دا تماشا بنه ده
دُنیا کهٔ دا ده دُنیا ته شا بنه ده

تخم ضائع کا بد اصله مزکه
هغه چه کرکا یا پئ شاربی
بنهٔ پئ خسا کا بده غرکه
هغه دِ نهٔ کا داپوهه ورکه

دَ دُنیا مینے یارئ واړه
چه به ئے ژاړے په جدایئ
بقا هیڅ نهٔ لری باندِ مهٔ ویاړه
جُدا چه نهٔ دی واړه وژاړه

چه په قرآن کښے دی منلی واړه
نفس دِ په دا کښے کهٔ فضولی کا
مشکوٰة مصباح ته نیولی غاړه
شیطان خوار کړے بدبخته ژاړه

چه هر زمان م په زړهٔ میشتهٔ ده
خدائے خودِ صبر له دِ را نهٔ کا
هغه مهرو یه دَ زړهٔ دمه ده
دَ صبر بخره کهٔ هرڅو بنه ده

نهٔ به دا مزکے وی نهٔ آسمانونه
باقی به بل یو جهان پیدا شی
واړه به واوړی دا دیوالونه
مولا لر نهٔ لری خپل جهانونه

داخاورے نهٔ دی چه مونږ پرے ځونه
گوره له کوموخاورو به گډ شو
دَ خیال خُلمی دی گُل گونے جُونه
په هر زمان دی دَ مرگ پیچونه

اے چه دولت لرے بد دِ خصلت دے
بازچه له بده بازداره لاړ شی
دولت به بایلے بنهٔ نصیحت دے
وبه نهٔ نیسی دا تجربت دے

آهن دَ خانانو دی دَ بنو کسانو دی
ماړهٔ خاریهٔ بنهٔ دی وږی گنده دی
نهٔ دَ نادارو مفلسانو دی
دِ نگر دَ چا دی دَ گرکسانو دی

آزار دَ خولې دے آزار دَ لاس دے — له دوا ووخلاص دے هغه چه ناس دے
سړے به نهٔ وی هغه به دَد وی — چه په دا وانهٔ توکه الماس دے

اور وړل ندهٔ ته په تاؤ مفهوم شی — وسترګه ور ته څرګند معلوم شی
هغه چه پرېوزی واورته رنګ واخلی — هرڅوک خبردے چه اورئے نوم شی

اَبله هغه دے په ورځ چه چراغ ګنبیږدی — یا چه بے درده په صورت داغ ګنبیږدی
یاچه دَ شګو عمارتونه کا — یاچه په بده مزکه کښې باغ ګنبیږدی

اهل کیمیا دی کیمیا به څوک مومی — اهل وفا دی وفا به څوک مومی
نوم دَ عنقا شته په دا جهان کښې — اهل عنقا دی عنقا به څوک مومی

اصیل چه نهٔ لری اَدب هم هیڅ دے — جمیل چه نهٔ لری نسب هم هیڅ دے
چه دانشمند دے حکمت هُنر لری — که دَ بادشاه لری منصب هم هیڅ دے

اندوه هیڅ مهٔ کړه خوشحاله سخ دے — خواری دِ لاړه دولت ته مخ دے
هغه چه تاوته خوروئے سپے ؤو — په لړے لړے ملکونو ښخ دے

اُمید که ګورے بهتر تر بیم دے — عطا پرے مهٔ نیسه که دِ غلیم دے
چه له اَعدا سره په مدارا وی — داکار دَ چادے کار دَ حکیم دے

اے چه بے مثل په کړهٔ او وړهٔ ئے — ګل رنګه روغه دَخدائے په کړهٔ ئے
دا هسے ولے دَ زړهٔ په وړهٔ ئے — په هیڅ نهٔ ئے خو به خیل زړهٔ ئے

آتش قبول کا گنے چه قند شی
ادب دَ څویه دَ زور بانډه دے

په هر دیارے صفت دَ خوند شی
جوهر دَ تورے په صیقل ځرګند شی

آسمان چه هومره لوئی رفعت لری
دا به خدائے واړه سره فنا کا

مزکه چه هومره ستر وی وسعت لری
چه لوئے عظیم دے عظیم ساعت لری

آفت کهٔ ګورے په بے ننګئی کښے دے
ماله دو رنګو فائده ونهٔ لیده

نکبت دَ دهر په دل تنګئی کښے دے
کهٔ سود دے سودخو په یکرنګئی کښے دے

احمق دروښئیم کهٔ احمق ګورے
تور وته سپین وائی سپینوته تور وائی

احمق ړاندهٔ دی په سترګو تورے
په غوږ ونو آوری خبرے نوړے

اے چه په ړوکښے ګذارته سازئے
غازی غرڅهٔ دے درباندِ درغے

سترګے دِ لګی غوږ په آوازئے
په تخرګ ئے وُوله کهٔ تیراندازئے

اے دَ چشمانو په غمزه الماس ئے
ترسرترپایه راته ووایه

داڅهٔ هنردے له عاشق ستاسے
ترے دِ یستلے یم لاړم وباسے

اے نفسِ فضول از فضولی بازآئے
هیچی واز هیچ چه خیزد هیهات

چوں مردمِ جو فروش گندم نمائے
بیهوده مگوے وبرزمان ژاژ مخائے

اوس له دیو ښځو کله مردم زیږی
دخول کهٔ نهٔ کړے ورسره ځائے لری

ورځنے واړه مار ولړم زیږی
چه ځنے واړه په عقل کم زیږی

اے چه حکیم و علیم دِ نوم دے
شیرین ژوندون دِ وربانډِ ترخ کړه

ورکړے آخلے کار دِ معلوم دے
خوشحال چه نهٔ وړے حکمت دِ کوم دے

احمق کهٔ هرڅو دُنیا دولت لری
کهٔ ډیرنادار وی شکر دِ کاندی

دولت به بائی کاچه حماقت لری
کهٔ خوئے ئے ښهٔ وی علم حکمت لری

اصیل به شرم حیا وفا لری
کهٔ شاهزاده وی چه دائے نهٔ وی

اصیل ئے وګنړه هغه چه دا لری
اصیل ئے مهٔ ګنړه یو بلا لری

ایمان دَ سرو زرو تر غرونو ښهٔ دے
لال دُرچه پیژنی هغوئے قدر زده

منافقانو وته هیڅ نهٔ دے
چه شناخت ئے نهٔ لری سوبے تر نهٔ

اے چه پری وما ته ستائے
هرچا چه ولیده بانډِ بلبل شو

کهٔ یارم ووینے بیا به وو ائے
مخ دِ دکهٔ ګل دے دَ دلربائے

اَدب چه نهٔ وی په سپین په تور کښے
دولت به درومی له هغه خلقه

عزت به نهٔ وی په هغه کور کښے
چه سره تل وی په شر وشور کښے

اوهٔ آسمانه اوهٔ ئے ستوری
غمژن دِ طمع دَ ښادئی کاندی

دولس برجونه دی چه پکښے شوری
دَ شپے خښتن دِ سحر ته ګوری

اَسپے اَسونو وته ساتلے شی
ټټوان یا خرونه بانډِ ختلے شی

ټټوے خرونه سره شړلے شی
خښے نابودے ګلے حاصلے شی

آزار دَ اهل وماته جهل دے
دوزخ دربنسئیم په دا دُنیا کښې

خپل ځان که ځار کړم تر اهل سهل دے
دوزخ صحبت دَ سفله نا اهل دے

اے چه رحمان او رحیم دِ نوم دے
نادان په تاج کړے دانا محتاج کړے

عظیم بادشاه ئے کار دِ معلوم دے
ما پرے خبر کړه حکمت دِ کوم دے

آسمان روغ زړونه نۀ دی پرینږی
خوټے دا ستوری په سترګو وینے

دۀ دی په هرچا چاپونه ایښی
واړه دا غونه دی ګوښی ګوښی

بنیاد دَ چارے په مصلحت دے
چه سره یوشی دا دواړه توکه

بیا دَ مردانو په ښنۀ همت دے
واړه دولت دے عزت حرمت دے

بدخواه دِ کوم دے چه دِ په بدُ ویاړی
کۀ هرخو خوئ دَ فرښتو حاصل کړے

نیکخواه دِ کوم دے چه دِ بهبود غواړی
له چا به تۀ ژاړے خوک به له تا ژاړی

باغ په خوبئ لکه مخمل دے
ساقی راپاسه مینا راواخله

راسره ګوره یوځۀ مخ مل دے
پرخه وریږی ګل دے حمل دے

باورکۀ وکړے په جُز او کُل کښې
دا ډیرے غاړے نغمه صوتونه

مردان به تل وی په توکل کښې
نشته په باز کښې دی په بلبل کښې

بله به نۀ وی په حق شناس کښې
چه ئے جار باسی هوړے جار وزی

تل به په حمد وی تل به سپاس کښې
زړونه تسخیر دی دَ خدائے په لاس کښې

باغ وي سرود وي نُقل وشراب وي
مجلس دَ خاصو کتاب په مينځ کښې
ښې ښې دلبرې بنهٔ بنهٔ احباب وي
نقل دَ تورو وخت دَ شباب وي

بارئ ئې نهٔ دي ګل دَ ګلاب دي
راشه کهٔ دواړه شونډې ئې ګورې
زلفې ئې طعن دَ مشکناب دي
چه پرې مستيږي هغه شراب دي

بطه تل لامبي اوبهٔ تل مومي
بد بوئ ئې ځکه دروي له تنه
بد بوئ ئې ولې له تنه دروي
هره بلاځې دَ دې تر کومي

بلا بلا وائي بلا هم تهٔ ئې
تُوره دَ ژبې تُوره دَ اوسپنې
خپل بنهٔ هم ياد کړه کهٔ بلا نهٔ ئې
څهٔ غوخول کا خبر لا نهٔ ئې

بخت و دولت دَ سرې له ځايه وي
هُنر هاله راشي همائې هاله راشي
نهٔ له هنره نهٔ له همايه وي
چه باندِ حُکم په چا له خدايه وي

باز په ديدن دَ طاؤس وياړي
په خپل خپل ښکار پسې هرڅوک تلاش کا
سر پښې ئې هرڅهٔ سره ونغاړي
مزرې کهٔ زور شي غوا بزې وغوړي

باغ دَ ګلونو کنج او کتاب وي
ښې ښې محبوبې بنهٔ بنهٔ احباب وي
رود و سرود و نُقل و شراب وي
خوبي دَ عمر وخت دَ شباب وي

بادشاهان بنهٔ دي چه په ځوانانو زر بښندي
زر سر دا دواړه توکه ډېر ګران دي
ځوانان پرې بنهٔ کا چه ورته سر بښندي
يو يوئې و بښندي نهٔ ئې يوهر بښندي

بهانړ دَ آسپو کله یکسان دی
ځنې دَ باردی دَ زیست روزګار دی

ځنې ټټوان دی ځنې آسان دی
ځنې دَ توري دَ برګستوان دی

بے غمه خوب کاچه روغ په تن وی
موړ دَ شکرو حلوا ته نۀ ګوری

خوب به په څۀ کاچه خوګ غمژن وی
وږي دَ سپوږے روټئ کا زمن وی

بازونه واړه بهادران دی
چه په آسونو کښے خم چم پیدا شی

چه بد شے نیسی بد بازداران دی
آسونه ساز کاچه شهسواران دی

بلبل دَ ګل دے ګل دَ بلبل دے
مینه په پټه دَ هیچا نۀ شی

بلبل هورې غواړه هورے چه ګل دے
خپل بوئ دَ مښکو په ځان چغل دے

بدخواه دِ خوار وُسه تۀ ورته غټ وُسے
خوچه ښا دئ دی خوچه غمونه دی

خپل نیت دِ زغره تۀ پکښے پټ اوسے
و دواړو توکو ته په مخ په څټ اوسے

بدمخ ناحقه په زر پسالۀ شی
کۀ هر څو رنګ لری سرسپینے پانړ دی

ښۀ مخ چه بیا موی پسول دِ هالۀ شی
شندے به چیرے نرګس بالۀ شی

بدی په لاس واخلی چه ګنهګار شی
چه خوګ له خپله شامته خوار شی

چه ګنهګار شی هغه دَ دار شی
خپل پردی واړه ځنے ویزار شی

بزرګی په تا ښائی کۀ تۀ ستارے
چه پرے حاجت دَ محتاج پوره نشی

ستار کۀ نۀ ئے کله بزرګوار ئے
کۀ مال دِ ډیر ډیر دے کره مالدار ئے

بار دَ اوښانو په خرونو یُبَن نهٔ شی
دَ ویښ له حاله او دهٔ خبر نهٔ دے

جام دَ مستانو په صوفیانو خیښن نشی
څوچه له خپله خوبه نه ویښ نشی

بدی له خپلو چه آوارہ نهٔ شی
کهٔ ښهٔ دے ښهٔ خو هغه سړے دے

خپلوی دَ خپلو په چا ښکاره نشی
چه ئے په خپلو کښے گریوان پاره نشی

بخت دَ مغلو پښتانهٔ نهٔ پریږدی
کنړه کهٔ څهٔ هومره پښتانهٔ نهٔ دی

چه اتفاق وکا په تُوره زړهٔ کښیږدی
چه ئے په یادکا دَ مغلو زړهٔ ریږدی

بانړهٔ کهٔ هرڅو دَ سترګو زیب لری
څویه کهٔ ښهٔ دے نور دے دَ سترګو

چه ورکارهٔ نشی بلا آسیب لری
څویه کهٔ بدشی ماران دَ جیب لری

بیا مِ له بخته مدد شرکند دے
چه خوب مِ نهٔ وُو دَ دهٔ له غمه

خوب کړم خوښی کړم زړهٔ مِ خورسند دے
ترسرمِ لاندِ هغه مړوند دے

بوئ دِ له نطقه دَ کبر وآز ځی
په مانځهٔ ودرے فکرونه نورکړے

لکه دَ خولے نه چه بوئ دَ پیاز ځی
عمر دِ هسے کنده ناساز ځی

عابد بے بند دے هم بے پیوند دے
سړے لیدهٔ شی کهٔ خوئ ئے کوړے

مور پلار ئے نشته پیدا له شخوند دے
لکه چه دد وی هسے بے سند دے

پکار هیڅ نهٔ دی خالی مستی
هستی تمامه په مستی کښے وبا زهٔ

څولا په زړهٔ لرے دَ غم هستی
کهٔ مانه زده کړه مے پرستی

په ننګ خبر نهٔ دی بې ننګه کلی دی
کهٔ مونځ اودس کا په پنځه وخته
وفائې نشته له عقله پلی دی
هم بې صلوٰةَ هم مخ ناولی دی

په غم دَ نورو وغم ته ساز مهٔ شې
سړې په طمع دَ بل بنده شی
سپک وعالم ته په خپل آوازمهٔ شې
دُعا به داکړم اَخته په آزمهٔ شې

په رنګ رنګینه ئې په مخ نسرینه ئې
درسته ګلزارئې ترسرتر پایه
په لب شیرینه ئې په تن سیمینه ئې
عیب دِ دا دې په زړهٔ سنګینه ئې

په ځان مِ لړ ډیر ځایونه مبتلی دی
ستا تر بنا نشته چه نا بناغلی دی
څونړ څون مِ کبنلی کبنلی کتلی دی
دَ خلخ کبنلی کشمیری کبنلی دی

پلار دَ خپل [illegible] ډیر وياړی
چه خوئې ئې بد شی نصیحت نهٔ منی
په هره چارئې بهتری غواړی
دَ دهٔ له خویه په اوښکو ژاړی

په کاغذو کښې خوانائې ولولی
هسې مردان شته په دا دُنیا کښې
چه کبنلی نهٔ وی هغه شوک څهٔ لولی
تختې دَ وچولی تختې دَ [illegible] لولی

پند دې سودمند دې کهٔ شوک ئې نغوږی
څوئې ئې مهٔ بوله حذر ترې بویه
وخت دَ فساد دې له تاچه وزیږی
چه دِ له حکمه له رایه وغړیږی

په تار دَ غنږی ذباب بند کیږی
پند وعاشق ته بند دَ خسریو دې
نهٔ په دالومه عقاب بند کیږی
په دا به کله سیلاب بند کیږی

یو نړه په اورکښې گونه گونه شي — کا نړے په اورکښې پخ یا چونه شي
عادت به هیچرې د ناکس نور نشي — که اورے پورے په درونه شي

په خپل مقصود پسے په څه مجنون ئې — په خپل مطلب پسے یوڅه مفتون ئې
په خوخوشحال شے چه په کام کامیاب شے — د کام په نه موندلو هردم محزون ئې

په رنگ امتیازے لکه اوبه دی — په خوند په بوئې کښې د اوبو نه دی
لکه چه مخ وینې څوک په اوبو کښې — هسے په دے کښې د مخ لیدۀ دی

په خصلتونو کښې عدل انصاف بنۀ دے — له بنوله بدو سره زړۀ صاف بنۀ دے
چه څوک دِ غابښ مات کا ته ئې هم غابښ مات کړه — که عذرخواه شي غابښ ئې معاف بنۀ دے

په پوهه ړک دے هریو زوړلے — وځان ته نۀ وائي هیڅوک غوړلے
هغه چه خرپیائي یا چه حکمت وائي — هریو فلک دے سره رسوے

په تن هډونه رگ وریشه ئې — په دا که کورے یو دوه پښه ئې
خوئې د ددانو د حیوانو پرېږده — که ته سړے ئې په اندیشه ئې

پند د سړي دے سړے د پند دے — پرے به پوهیږي چه دانشمند دے
سړے په پند نیسي خاروے په بند نیسي — و هر سړي ته دا کار خرسند دے

پښتون په اصل سَرَ بنے دے — یا غور غښتے دے با بسیتنے دے
لودي غلجے دے د بیټني له لوره — په سره بن پورے بیا کړلے دے

په دا خبر شه چه سړے څۀ دے
چه بے اُستاد وی لا غشے نۀ دے

سړے دَ غشی کږه دُرمه دے
چه بنۀ ئے ساز کا سړے هالۀ دے

په رنګ په حُسن په خو نادره ئے
له خپله یاره خو زورَوره ئے

بنیوه غمزے لرے ځوجلوه ګره ئے
خوچه پخلاشے بیا مَـرورہ ئے

په عطرو ډوبه هغه خوش رویه
تمامه شپه ئے را سره تیره کړه

راغله ناګاه له یوۀ سـویه
سپیره مے م ډکے دی دَدے له بویه

په ډیره پوهه کۀ بو علی دے
کۀ کلمه لولی عقل ئے مۀ ګوره

چه جود ئے نشته احمق جلی دے
چه ځوک ئے نغن خوری هغه ولی دے

په قد دَ سروِ تر ونے بوک ئے
کمے دِ نشته په شش وپنج کښے

په رنګ په اصل په خوئ ملوک ئے
په چار په هرڅۀ دَ زړه کی ځوک ئے

په دا به پوهـ شی هغه چه کس وی
چه یو بخرے دَ اور پیدا شی

ډیرے رے لره یو شرمخ بس وی
په مخ ئے وهے انبار دَ خس وی

په دا دُنیا کښے بنے خوږے میـنے
نورڅۀ ئے مۀ ګنړه واړه مقصود دے

بد رنګے ترخے شی کۀ ته ئے وینے
ترخولۀ وباسی ترخے شیرینے

په استخفاف دَ بادشاه دولت بائلی
په استخفاف دَ چهار یارانو

په استخفاف دَ مُلاجنت بائلی
هم موُدت بائلی هم مروت بائلی

په سپین ویښته ؤم په زړه سرور راشي
غم د زړه وړوالي په زړه هاله راشي
زړه چه سپینه شي په مخ کښې نور راشي
چه په غابښونو په لیمو فتور راشي

په خپله پوهه که ذو فنون وي
دولت ته ورسي تینګ ئے وڼه نیسي
وښیل چه نه مني یکښې جنون وي
قابل ئے مه ګڼړه چه په راۓ زبون وي

په کار د علم عالمان موندي
دا واړه هیڅ دي ځما په پوهه
شیخان په کار د شیخئ ځان چوڼړي
ګوره ځوک ورشي په مخ مخ رونړي

په عاشقانو خوځو خبرے شي
چه عاشقان دي چه صادقان دي
ورته لښکرے شي تورے شي زغرے شي
عشق به ئے کله له دله لرے شي

په باغ چه ګرځ شي چه ترے وتوني دي
که هرڅو وخوري ګلونه بوئ کړي
که لون لون میوے خوږونی وي
خوعاقبت به ورځنے تلوني وي

په ښایسته ؤ چه مبتلا وي
بے مینے مه شے مئین هم مه شے
بے فکره کله خلا مـلا وي
دا دواړه توکه آلا بلا وي

پاکی چه راشي په هغه کور کښے
یوسف ؑ چه پاک ؤ ځکه بادشاه شو
بلا ئے وُسیړي نوره په اور کښے
ځکه شو که بند ؤ و ناحق په تور کښے

په شپه آرام شي په ورځ هرکام شي
په شپه په ورځ دي د عشق غمونه
په ما دا کله په صبح وشام شي
آه و ژړا م سره مُدام شي

په مخ که هر څو صاحب جمال وی
که زر تسبیح لولی با ورپرے مه کړه

نه په زړه کښے اَفعی افعال وی
نښتے م واړه دَ مکر جال وی

پلار مور که هر څو نِکو فرجام وی
فرزند که ښه وی خدائے ئے کامران لره

په بد فرزند پورے خجل بدنام وی
دَ بد فرزند دِ زهر په کام وی

پیرین که ښه وی په کاروبار کښے
زرغه نامرد کا له کاره پاتے شی

نه ډیر فکرونه نه زړغه په کار کښے
مرد تمول اختیار وی په زیست روزګار کښے

په رنګ په خوئ کښے سره پرخے وی
یو سیند بل پورے لکه لښتے وی

په مرتبو کښے سره نیرے وی
یو غر تر بل پورے لکه غونډے وی

پیوند دَ زړونو عجب پیوند دے
خوچه وفا وی هومره ټینګیږی

په قطره غوښه وبله بند دے
جفائے پرے کا کارئے څرګند دے

په باغ په راغ کښے کرل هر څه شی
که لوبول ئے په شودو پئ وی

په خپل خپل اصل بیا واړه وشی
مولئ مولئ ده نور څه به نه شی

په باغ کښے ډیرے ونے ولاړے وی
پلنے نرئ کوږے ناکوږے

چه ښه ئے حئیر کړے په خوخوغاړے وی
ځنے په پورته ښائسته ولاړے وی

په دا جهان کښے چه څو غمونه دی
واړه په بخره دَ عاشقانو شول

څوڅو خوارئ څوڅو ستمونه دی
بخرے له ځایه په قلمونه دی

پاداش د هرے چارے تیار وی
کۀ نیک کردار وی کۀ بدکردار وی
چه ترس د زړۀ لری داکاربه ښۀ لری
خو بے پروا وی هومره ئے زار وی

په زړۀ کښے خبریکه د ښکاری لاړه شی
هسے نارے وهی بوره ئے غاړه شی
چه سره ونښلی د ښکار بازونه
زرکه د دواړو له منګولو لاړه شی

پرے م سلام دے جرګے چه پنډے شی
زړۀ م هورے ځی هورے چه هندے شی
خوشحاله زوړ شوے قرار ناست اوسه
پښتون چه زوړ شی د نغری تخته شی

پند د نیکخواه دے خدائے دِئے ښۀ لری
ورمون د نیکو نیکان په زړۀ لری
هوښیار لازم دے چه خطائے وله
نادان معذور دے چه عقل نۀ لری

پیوند د مینے هم ټینګ هم سست دے
جفائے پرے کا په وفا درست دے
ډیرو ومانه په جفا پرے کړ
اوس خو د لږو خمه آمست دے

په سرپیتوب کښے واړه یکسان دی
کۀ مومنان دی کۀ کافران دی
ایمان د چا دے د مومنانو دے
ایمان ئے نشته چه کافران دی

په چا چه عدل یا ستم کیږی
هرځائے چه بیش و یا خۀ کم کیږی
بے ځایه هیڅ نۀ دی واړه په ځائے دی
یو آزمیښت دے په عالم کیږی

په هره چار چه همت بسته شی
تیرۀ خارونه هم ګلدسته شی
کۀ بے همتی ئے په لاس واخسته
د هغو برخه خواره خسته شی

پښتانهٔ وایه لکه مارونه دی
چه په ماردنو کښې لوئے مار پیدا شی

مغل دم کړی په خپل کارونه دی
پسے ئے غواړی کهٔ په غارونه دی

پسرلے چه راشی ، یا پشکال شی
شکرانے اخلی دَ باران وعدے لی

دَ ختک زونی شیخان خوشحال شی
په دروغژنو وعدو نهال شی

په دا جهان کښې کهٔ خرابئ دی
یوه به نهٔ وی دَ هوښیار له لاسه

یا ناحقئ بے حجابئ دی
دَ نادانانو دَ شتابئ دی

پرے م سلام دے هغه چه مے خوری
اول خلوت بویه بیا بنهٔ صحبت شه

خدائے ئے داروکړه کهٔ په دودئے دَ خوری
مئے په صوت دَ چنګ وئے خوری

په خو دَ ځان په بنیوه بیدار ئے
فکر دَ ګور دَ خوارئ نهٔ کړے

ویښته دِ کوز شی هم پرے آزارئے
بند بند به پروت وے ناپروا دارئے

پریږده پرے ستر کے دَ وړیو ووځی
لوئے نمرئ دَ یک طباخ وی

باندِ پراته وسی وبزی سرکوزی
دوئ دی خورلی دَ طباخ ټخنوزی

په خو ولئے وائے لرے چه لږ بیمار شے
هیڅ ئے نابود ئے چه بنهٔ م ولید ے

پروا دِ نهٔ وی چه چاق تیار شے
غفلت خوار کړے کهٔ خبردار شے

په هره ژبه سخن سنجان دی
په خولهٔ ئے ذکر په زړهٔ نور فکر

دَ ځان په فخر پاک دَ سبحان دی
فساد دَ دور دانا شیخان دی

په شمار ږم څویه ترشپیتهٔ زیات دی
نیمګی به مړهٔ وی نیمګی حیات دی
چه راځرګند شول په کاروبار کښې
تردې ژوندیو بهتر اَموات دی

په رنګ په شکل بنائسته میوړې
په زړهٔ سنګینه نا ترسه ګوړې
یاران ډیرخوبښ کړې بیلئے ډیرخوار کړې
دارو دَ زړونو دَ زړونو زوړې

پښځه دِ ګوتے دی کهٔ یوه نهٔ وی
دَ نورو ګوتو چار به دِ څهٔ وی
دَ لاس خوبی ده په پنځه ګوتے
چه سره جوړے وی کار به دِ بنهٔ وی

په رنګ په حسن تازه بلوخه ئے
په تن کښې سپینه ترتازی پوځه ئے
ترسر تر پایه کښے دِ نشته
په بنو خبرو څهٔ خبرلوخه ئے

په خپلو او بنکو کښې سړے شنا بنهٔ دَے
له هره هرسړی سره آشنا بنهٔ دے
کهٔ ګل له نورو دی اغزی له یاره دی
منت ترهرڅهٔ دَخپل آشنا بنهٔ دے

په ما دا عدل کهٔ دا ستم دے
چه غم په ما باندِ په هرهر دم دے
واړه ږم خپل دی پردی څوک نهٔ دی
چه ئے له ما سره دا هومره غم دے

په سوات وریږی په سمه شین دے
ترغرهٔ به کوز شی لا نمازبښین دے
بتپ دَ تالی دَ عبدل لښکرے
خوشحاله زړهٔ دِ له واړوشین دے

په رنګ کهٔ حوره ده پرے ګرفتار مهٔ شے
چه خوئ ئے بد دی دَ ښځے یار مهٔ شے
خوشحال ته ګوره چه یوځهٔ یار لری
له بده خویه ئے ته خبردار مهٔ شے

صحبت په سرطان کښې په مزرې په وړې
لینده وړغومې صحبت هم زیان لری
مرد به خپل ځان ژغوری ځاله نغوړی
په دا منزل دِ په بهار کوږی

په عاشقانو آرام حرام دے
په عشق کښې شرم په ننګ کارنهٔ لری
عاشق ئے مهٔ بوله چه په آرام دے
دَ دواړو توکو یو خالی جام دے

په دا خبره هر څوک خبر دی
تا غوندِ کله هوسئ دَ مښکو دی
تراوریدلو لیدل بهتر دی
مښک دِ دَ زلفوکهٔ برابر دی

په تن سیمینه ئے په رنګ رنګینه ئے
زهٔ دِ مجنون یم کهٔ تهٔ لیلیٰ ئے
په لب شیرینه ئے په مومشکینه ئے
زهٔ دِ فرهاد یم کهٔ تهٔ شیرینه ئے

په هرچا کوټه غمونه خپل دی
دور دَ چا دے دَ عالمګیر دے
څوک دی چه نن م په غم دَ بل دی
لاس به په غوړ لری چه څوک عاقل دی

پښتهٔ بارونه دی بردن ئے غم دے
پښتهٔ په نوړو دی په تادوه کم دی
ورمیږ دَ خلقو ترلاندِ خم دے
خوشحاله شکر کړه چه بار دِ کم دے

په دواړو زلفوکهٔ عنبر بیزه ئے
دا څهٔ لا نورے خوبئ دِ ډیرے دی
په دواړو شونډوکهٔ شکر ریزه ئے
با با دِ ومره بلا سرتیزه ئے

په لار چه دروم په مخ دلبر راشی
هسے دَ کښلیو په دیدن خوښ یم
یا ښهٔ څهٔ بیامومم یا ښهٔ خبر راشی
لکه په خوارهٔ باندِ اختر راشی

پا سه یا کوزے دا کارسازئ په خوخوږنکه دلنوازئ
آسمان ته کوږه مزکے ته کوږه دا چارے نۀ دی لوبے بازئ

ښبنتن دَ خونے چه بے تدبیر وی وینځے مریونه وتیښت ته ځیروی
یائے دیرمست کا هوائے نوره شی یائے دیرخوار کا لکه آسیر وی

تازی چه نۀ نیسی کوته چه نیسی خلق په بنۀ نظر کوته ته کسی
توږزن پخپله خپل ځان په قدر کا چه توږے غشی به ځان رانیسی

توږے دِ زلفے دی توردِ اوربل دے مخ م دِ ولیدۀ لکه اوربل دے
هم تور لوګے دے هم سرے لمبے دی دَ غوښبوښ پرهٔ م پکښے قبل دے

تل خاموشی کړه چه تل بے غم وے طمع له چا مکړه چه به ترجم وے
خوښ په هُنراوسه خوښی په مال مکړه هسے کاروونه کړه چه بے ندم وے

ترباز نه نور نور مرغونه کټ دی هُنرچه نۀ لری ځکه خوهټ دی
خپل کارځکند کا په دا دوه ځایه مردان دَ کوږتے بنځے دَ کټ دی

ترلعلو دُرو عقل تمیز بنۀ دے دَ بل ترمُهر خپل یو پشیز بنۀ دے
چه خبردار دی دَ صحبت په علم تربے ادبے خبرے تیز بنۀ دے

توبه هالۀ بنه دهٔ په ګناه چه لاس رسی چه لاس په هرچرته په کوزویاس رسی
چه لاس ونۀ رسی توبه ځۀ سود لری خالی خبرے په خولۀ دَ پاس رسی

ته چه بادشاه دَ سمن رویو ئې — غوره دلخواهه دَ سنبل مویو ئې
تر سر تر پا یه گل ئې سنبل ئې — بد چه په نغوته دَ خوبد خویو ئې

تَهمو به هیچرې دَ آس په یون نشی — په تُوره هیڅوک لکه پښتون نشی
اصل په هرڅهٔ کښې خپل ځان څرګند کا — خوند دَ مَتړو به گندم گون نشی

تل تل تل م ورپسې غم دے — مینه ئې ډیره راحت ئې کم دے
چه نهٔ ئې وینم په سترګو تورو — داجهان واړه په ما تورتم دے

تری کهٔ بد دی خو بیا همجد دی — هرچه همجد دی هغه امجد دی
بولاق کهٔ هرڅو خټک یا دیړی — دَ سباکئ د لوریه بد دی

ته اوم سبوئے تر څرخ وتلے — دَ اور ترتاوه نهٔ ئې خَتلے
کهٔ چیرې وُوزې دَ اور له تاوه — نوم به دَ اُوم وی له تانه تللے

تر سر تر پا یه چه سرې ساز دے — فهم کهٔ وکړې درست سره راز دے
سرې هغه گنړه چه خپل ځان پیژنی — چه بے خبر دے یوتش طراز دے

تازی چه زور شی په قدر خر شی — مزرې چه زوړ شی ترشغال بتر شی
زوړ دِ دماغ دَ ځوانئ نهٔ کا — په دا وئیل دِ هرڅوک خبر شی

ترظل کښیمنې دَ هغې وُنے — چه ئې نهٔ ستهه نهٔ پانړې ونے
نهٔ یوه وُنه باغی په غولی — نه ډیرې وُنې پلوسے غنې

تاچه پیدا کړۀ دا اوۀ ستوري چه ستا په حکم ولاړ شوري
په شوریدۀ کښې ئې ډیرډیر کارونه شته ړاندۀ ئې نۀ وینې بینائې ګوري

توانګرهغه دے چه قناعت لري نۀ چه بار ونه یا بضاعت لري
چه خوئ خصلت ئې د سړي نۀ وي یو ذد ئې وګنړه که شجاعت لري

تل تل چه غورزي دا سعد ستوري د هنرمندو په طلب شوري
که چیرے ورشي په بے هنرو ځنې د تللو دروازه ګوري

ثابت په ماکړه ګناه مهروئې لاله عذارے عنبرین موئې
له هغه پسه تُوره راواخله وینې څما د ګردن کړه توئې

جنت دَچادے دَ صادقانو دے دوزخ دَ چادے دَ کاذبانو دے
قرآن چه لولی کذاب عذاب مومی ثواب بے حده کۀ دَ قرآن خوانو دے

جنت دَچادے دَحق شناس دے دوزخ دَچادے دَ ناسپاس دے
ګانده به نورے فتنے پیدا شي کارکړه کۀ کارکړے چه نن دِلاس دے

جنګ دَهاتی دَ مزری آسان دے دَ خپلے ژبے آفت لا ګران دے
چه خپله ژبه ئې په خپل فرمان کړه هم ئې رستم ګڼړه هم لا لقمان دے

جنت په څۀ کښې دے په خوشخویئ کښې دوزخ په څۀ کښې دے په بدګویئ کښې
چه نیت ئې لوئې دے هغه خدائے لوئې کا کم ئې نۀ وی په دا لویئ کښې

جهان کمر دے دَ څڅلے
لکه چه ژغ کړے هغه به واؤرے

فعل دِ ژغ دے ژغکړونے تهٔ ئے
راشه خبر شه کهٔ خبرنهٔ ئے

جهان کهٔ واړه سره سور اور شی
کهٔ سمندر غوندِ په اورکښے کارنهٔ کا

ګمان ومهٔ کړه چه عارف نور شی
عارف ئے مهٔ ګڼړه مخ دِ ئے تور شی

جهان کهٔ واړه سره اوبهٔ شی
یوه بیړئ چه څوک ربنتونے وی

دا دوه بیړئ به ډوبے نهٔ شی
بله چه وبڼی په چا ماړهٔ شی

جهان درست ډک شو دَ ناحقئ
چه ځائے پرے نهٔ نیسی شوری بنوئیږی

لکه پیمدلے اوبڼے به مئے
دَ سردا نه ئے خوشحاله تهٔ ئے

جونه چه نهٔ وی وادهٔ لاحُورِ وی
چه سرئے سپین شی مخ ئے بےنُور شی

اولاد چه راوړی آدم دستورِ وی
یوه پیریٔ درته حضورِ وی

جدا چه نهٔ شی ترے اوسپن خرے
په څهٔ به سازه شی ترے تیره تُوره

ترے پاتے نهٔ کا دَ پونړے زړے
فکر دِ بنهٔ وُکا اُستاذ څوئ مرے

جهان دَچا دے چه څوک تورزن وی
ناستے دِ دے دَ علم ترسیوره کا

دا دو دهش کا په نوم مئین وی
چه څوک دَعلم دَ ورع څښتن وی

ځوانی ډک جام دے په پیریٔ آوړی
پیری یوازے په هیڅ نهٔ راځی

بقائے نشته په وار وار واوړی
څوڅو عیبونه ورسره راوړی

ځان وجهان لره پکار سلوک دے
ملوک دِ بنهٔ وائی یوچ پوچ دِ نهٔ وائی
ملوک چه بنهٔ لری سخن د مملوک دے
دَ ملوکانو کلام ملوک دے

ځائے او مسکن دِ دَ کارګهٔ ګلشن نشی
حسن هغه دے چه اصل ذات لری
کمذات سړے دِ دَ جاه ځښتن نشی
دَ سپاندِ ګل به ګل د سمن نشی

ځنے خبرے په تکلف کیږی
ځنے خبرے په بله ژبه
ځنے خبرے په تأسف کیږی
لکه یعقوبؑ ته قال دَ یوسفؑ کیږی

ځنے په علم په دُنیا مستی لری
ځنے په تُوره په غزا مستی لری
ځنے په زهد په تقوی مستی لری
خوشحال په کوم توکی دا مستی لری

ځنے کهٔ وښځے وی لکه میرمنے وی
عقل هُنر بویه په آدمزاد کښے
ځنے میرمنے د وښځو کنے وی
میوه چه بنه لری قدر دَ وُنے وی

ځنے په عقل په هُنر دولت مومی
یو په دارُو دَ طبیب رغیږی
ځوک ئے په جهل په حماقت مومی
بل بے طبیبه شفا صحت مومی

ځنے خپل جیش لښکر حشم کسی
ځنے خپل علم هُنر قلم کسی
ځنے خپل لعل وګهر نعم کسی
ځنے ختکه هغه صنم کسی

چه سړے خوږ نشی سړے چه داغ کښیږدی
له چاچه جنګ کړے روغه په زړهٔ لره
هر ځوک پرهیږی ځان ته بلا بلیږدی
هوښیار به جنګ کښے دَ روغے ځائے پریږدی

چه نهٔ دَ دین دے نهٔ دَ دُنیا دے
پریږده چه ؤمری جهان ترے خلاص شی

هغه کهٔ گرځی پکار دَ چا دے
په دا جهان کښے یوه بلا ده

چه نن دِ یار دی گا نده اغیار دی
خدائے دے چه دا زړهٔ نه سره جار باسی

گا نده اغیار دی چه نن دِ یار دی
دا زړونه کله په اختیار دی

چه نهٔ طالع لری نهٔ مصلحت لری
چه شکر نهٔ لری کله نعمت لری

دولت به بائلی کهٔ ډیر دولت لری
چه صبر نهٔ لری کله حکمت لری

چه قدر نهٔ لری دَ بادشاه دَ میني
هغه نوکر دِ بنادی ونهٔ کا

تورے به ئے نهٔ کا په خدمت کښے وینے
هرڅهٔ به بائلی کهٔ تهٔ ئے وینے

چه ځوک ئے سمه گنړی کږه شی
دخل دَ چا دے دَ خدائے په کږهٔ کښے

چه ئے کږه گنړی سمه هغه شی
په حال خبر شه چه څهٔ دِ زده شی

چه غم ئے نهٔ وی دَ نیکنامئ
نهٔ به ئے دین وی مهٔ ترے وفا غواړه

واړه ئے مخ وی په خود کامئ
هرڅهٔ ئے هیڅ وی په دا خامئ

چه ئے په کور کښے لائق فرزند وشی
قابل چه نهٔ وی په هغه کور کښے

کرم له خدایه په سری څرگند وشی
دولت ئے هیڅ دے کهٔ چند در چند وشی

چه زړهٔ له تانه دَ چا بنهٔ کیږی
آزار دَ هیچا دَ اخستو نهٔ دے

بنهٔ کړه دُعا گټه دُعا قبلیږی
بنیرے دَ خوږو زړونو لگیږی

چه دم ئے نۀ زده دَ اوښکئ
نادان دے پرېږه ده ورباندِ مۀ ږده

دَ اژدها نيسي لوبيه لکئ
دنصيحت د صابون چکئ

چه رابښکاره شوه يوه سرئ
دَ زړۀ ښند نه آسانه نۀ ده

زړه د م پرے باښلو هغه کړئ
بے ځا په څوک ښندي يوه دمړئ

چه نۀ ادب لري نه عقل راۓ لري
چه بے ادب وي آدم ئے مۀ گڼره

دوپاۓ ليدۀ شي څوئي دچارپاۓ لري
څۀ شوکۀ شکل آدم نماۓ لري

چه درست گلزار دے دَ اتفاق دے
خارِ په بخره دَ خارکشانو شي

چه درست خارخار شي گنده نفاق دے
هوښيار د گلو دَ گلزار مشتاق دے

چه رنګ و بوئ لري گل گل هالۀ شي
چه نه ئے رنګ وي نۀ ئے ښۀ بوئ وي

پرے دَ بلبلو غلغل هالۀ شي
ورځنے پاتے بلبل هالۀ شي

چه تا څوک ويني مهربه څۀ ويني
عاشق څۀ ويني چه تاونۀ ويني

مهربه څۀ ويني چه تا څوک ويني
چه تاونۀ ويني عاشق څۀ نه ويني

چه ذات ئے بد وي اصل ناپاک لري
زاغ وزغن گوره بلبل طوطي گوره

گنده په فعل گنده په توک لري
خپل خپل پرواز کا خپل خپل خوراک لري

چه جنګيالئ لري ښځه په کور کښے
ښځه حليمه ښه ده خوش خويه

دهغه کس وي ژوندون په ورکښے
بده به تل وي په شر وشور کښے

چه زړۀ ونیسی زړۀ بیا پریږدی — خو یو نامرد به وی زړۀ به ئے ریږدی
یا دِ ئے زلفے په لاس کښے نۀ نیسی — یا دِ ئے ونیسی سر دِ پرے کښیږدی

چا ته چه چاه کنے په چاه کښے پریوزے — بلا چه غواړے په بلا کښیوزے
په خوبه سوغ وُسے دا فکر ښۀ وکړه — په پړانګ پرهار وکړے بیا ورپسے وزے

چه خوک ئے کاندی کله یارئ دی — یا خود کامئ دی یا عیارئ دی
چه ښے م خیر کړے دا بهترئ — یا ویزارئ دی یا اغیارئ دی

چه نادانان دی چه فاسقان دی — یو دم کار وکا بیا زر پښیمان دی
چه ئے په کار کښے پښیمانی نشته — یا عاقلان دی یا صالحان دی

په هر سیرت په وجود غالب دے — په هغه رنګ ئے حشر واجب دے
حریص به خوک وی حاسد به کوک وی — په رنګ دَ دواړو خبر طالب دے

چه کاهلان دی چه احمقان دی — دولت به بائیلی کۀ بادشاهان دی
دولت دَ دین دَ دُنیا دَ چا دے — چه هوښیاران دی په کار چسپان دی

چه تنګه خولۀ لری اوږدۀ بانړۀ لری — تورے ئے وروځے ملال کاتۀ لری
نورخۀ ئے مۀ کړه خما په پوهه — تر سر تر پایه به صورت ښۀ لری

چه کښینی آوری فریاد د ښیرے لری — دَ زړۀ دَ آه تورے تیارے لری
پیر به په هر چا په وار وار راشی — اندوه دِ نۀ کا آسمان پیرے لری

چینه جیحون نهٔ ده غونډئ به غر نشي
کهٔ اوبنکئ په رنګ دَ مار ده
شمع قمر نهٔ ده سها به نمر نشي
بیا اوبنکئ ده بیا به اژدر نشي

چه جنګیالی دی دولت هغه مومي
دا دواړه توکه سره تړلي دي
چه ننګیالی دی عزت هغه مومي
څوک چه محنت کا راحت هغه مومي

چه نهٔ طالع لري نهٔ مصلحت لري
دولت هغه دے چه درپسے درومي
دولت کهٔ غواړے چه بدخصلت لري
چه ورپسے زغلي بلا آفت لري

چه ئے دروغ نهٔ دي چیرے وئیلي
هغه به هیچرے خواري بیا نهٔ مومي
چا ته ئے نهٔ وي په بد کتلي
عزت دولت به ورپسے زغلي

چه ئے رښتیا نهٔ وي بل ئے اخلاص نهٔ وي
دولت دَ دین دے کهٔ دَ دُنیا دے
هغه به هیچرے له غمه خلاص نهٔ وي
بیا به ئے نهٔ مومي چه خاص لخاص نهٔ وي

چه خوئ ئے نهٔ وي جمال زیبا لري
ښهٔ مخ په مثل لوښے دَ زرو دے
لکه ښهٔ لوښے خالي غوغا لري
ښهٔ خوئ په لوښي کښے خوږ حلوا لري

چه نهٔ ئے ننګ وي نهٔ ئے فرهنګ وي
زر دِ په تور وخاورو کښے پټ شي
نهٔ ئے ښهٔ اصل نهٔ ئے ښهٔ رنګ وي
ژوندون ئے مهٔ وه چه خلئ ئے پرے تنګ وي

چه نهٔ ئے دین وي نهٔ ئے دولت وي
سړے ئے مهٔ بوله یو ګاؤ خر دے
نهٔ ئے په علم ښهٔ خوئ خصلت وي
دَ ګاؤ خر به په څهٔ برکت وي

چه دَ بدانو سره مقیم شی
ضرب المثل دے دَ دانایانو
کهٔ بیم ئے نهٔ وی هغه په بیم شی
دشمن چه دوست کړے دوست دِ غلیم شی

چه قبول زړهٔ ته دَ چا چار بدٔ شی
روپئ چه قلبه شی یوهٔ صراف ته
چارئے نور بده تل ترابده شی
هغه روپئ په هرچا رده شی

چه دَ بزرګانو خفت آسان ګڼی
لږے بلا به ورباندِ ورنهٔ شی
هغه خفت دِ آفت دَ ځان ګڼی
جوړ دِ زړګونو بلا ته ځان ګڼی

چه مِ په غیرِ کښے ئے ساعت هم دا دے
پاسه ور درومه په سر دِ ویره کړم
بیلتون دِ بَلے لمبے په ما دے
زړهٔ ئے صبا ګڼم وخت دَ صبا دے

چه غر دَ سرو زرو دَ سړی خپل شی
چه بادشاهانو سره ناستے په تخت کا
مُهر ماسے ته ئے کله کتل شی
دا نور ځایونه ورته خجل شی

چه بد بنیاد وی چه بد نهاد وی
دَ نیکئ چارے الف ئے نهٔ زده
په هره چار کښے ئے مایه فساد وی
په بده چار کښے کامل اُستاد وی

چه خوند دِ راغے دَ آشنایئ
دُعا به دا کړم په پنځه وخته
ګران ئے دَ سترګو تر رڼا و بینائی
چه درد دِ نهٔ وی دَ جدائی

چه دَ تازی سره دَ تهتو رګ وی
رنګ ته ئے مهٔ ګوره عمل ئے ګوره
کله تازی غوندِ په لاړے تګ وی
کهٔ سپین کهٔ سور وی کهٔ تور کهٔ برګ وی

چه يې ښکلې د مغلو مزې دي
په ښکار د چا دي د پښتنو دي
د دې په غاړه د پيرې بزې دي
نور ښځې مه ګڼره لکه خزې دي

چه پوزه نه لري غوږونه نه لري
رنګ يې ومه وينې سترې بنه دې
شرم اندوه به له بيانه [illegible]
که رنګ بې غوږ و بې پوزښه لري

چه د کهترو جفا په ځان وړي
سزا د وخته د کهتر بو يه
کهتر به کله د مهتر فرمان وړي
که نه مهتر به په زړه آرمان وړي

چه را په ياد شي د نفس بدئ
ځواني لا پرېږده په سپينه ږيره
لا يې تراوسه د غم غدئ
فرياد فرياد دې هومره بدئ

چه ورکول کا چه کرم کرد وي
هغه درويش نه دې چه دنيا نه ساتي
اسراف که نه لري هاله درست مړوي
درويش هغه دې چه تر دل سود وي

چه زر د غم شي هسې زردار مشي
په دالاس راشه په دالاس درومه
چه زر د هيڅ نه وي هغه بيشکه ړند شي
د لږو ډير په حساب په شمار مه شي

چه يې له چا کښې لاته ولي نه يې
احوال يې وګوره په تواريخ کښې
کامل د خدائې په پېژندګلو نه يې
خوشحاله صبر کړه په ترعلي نه يې

چه کښت او به غواړي او به بيانه موي
د هرې چارې يو وخت يو وار دې
له هغه کښته به کښته څوک څه موي
کل په تموز کښې که تل او به موي

چه بخت ئې تور شي عقل ئې نور شي
دَ بدخواهانو ويل پرې ښهٔ لګي

مخ ئې په بدو په شر و شور شي
دَ نيک خواهانو ويل پرې اور شي

چه رښتيا نهٔ لري نهٔ ئې اخلاص وي
چه دې خوږ ږهٔ دې په درست وجود کښې

زړهٔ دِ له هسې ياره زر خلاص وي
ورکړې بويه وچا چه خاص وي

چه ترس دَ خدائې لري مرګ ئې په ياد وي
تل به ئې مټ وي په ښو ښو چارو

زړهٔ به ئې کله په ظلم ښاد وي
مخ به ئې هر کله په عدل و داد وي

چه درپسې زغلي هغه دولت وي
قابل هغه دے چه دَ چا منت نهٔ وړي

چه ورپسې زغلې هغه زحمت وي
په ناقابل باندِ ويل منت وي

چه لاس مِ نهٔ رسي غليم مِ يار دے
داپند به نهٔ مومې په شاهنامه کښې

چه لاس مِ ور رسي غليم مِ پلار دے
په شاهنامه کښې کهٔ ډير اسرار دے

چه عاشقي کا خوشحال دِ وپوښتي
ترمال دِ تير شي ترسر دِ تير شي

له شرم وننګ دِ په کړوهونو تښتي
چه عاشقان دي ترلوئې کمر رغښتي

چه نهٔ ادب لري نهٔ اهل رائې دے
سړے په خوئې سړه سړے ليدل شي

دوپائې ليدل شي په خوئې چارپائې دے
په رنګ په شکل سړے دَ خدائې دے

چه رباعي دَ خوشحال خان دي
تير کړ کهٔ هر څو غښے ښهٔ روغ کا

دَ لاجوردو غشيو په شان دي
پروازئې بويه کهٔ پرې ئې وران دي

چه خپل نسرخرخ کا بهائے واخلی
کۀ ئے صاحب وته بلا پیدا شی
چه ئے مداروی مولائے واخلی
نمک حلال دے کۀ بلائے واخلی

چه درست په مشک په عنبر کښے ډوب وی
قرآن چه لولی هرګوره بد کا
چه په ګندګئ ککړ شی خوب وی
چه بیا په فسق وفساد معیوب وی

چه عالمان ئے په تور و سپین وینی
دَ عارفانو علم څۀ نور دے
چه درویشان ئے په علیّین وینی
ترعرشه فرشه په خپل یقین وینی

چه کاریګرے پیښ شی په جز په کل کښے
په باغ کښے نور نور مرغی میوے خوری
مردان به تل وی په توکّل کښے
بلبل نظر لری دَ باغ په ګل کښے

چه ستا خوبی غواړی دغه دِ یار دے
چه ستا په غم خوښ شی صرفه پرے مکړه
چه ستا خواری غواړی هغه اغیار دے
بیا به ارمان کړے کۀ دِ خپل وار دے

چه څان غواص کا ګوهر هغه مومی
داکار دِم خوشحال په څان راغلے دے
چه بے ننګی واخلی دلبر هغه مومی
ترسرچه تیر شی ظفر هغه مومی

چه هره چارئے په روایت وی
بیهوده نۀ آوری بیهوده نۀ وائی
دَ هغۀ برخه دَ ولایت وی
غوږئے دَ نیکو په هدایت وی

چه عقل ئے کم وی کله آدم وی
چه عقل ئے کم وی تل باندِ غم وی
کله آدم وی چه عقل ئے کم وی
تل باندِ غم وی چه عقل ئے کم وی

چه ذر وکاری ویره دِ پریږدی
یا به راوکاری ګوهر له یمه
خالی به ووزی کهٔ زړهٔ ئے ریږدی
یا به داخپله کله پرے کښیږدی

چه خپل حرم ساتی خدم حشم ساتی
ادب دِ ډیر کا دَخوږو سړونړو
بویه چه واړه دِ محترم ساتی
چه بے ادب شی وځان ته غم ساتی

چه ډیرے وے لبنتی کم آب لری
نصیب زهٔ هسے په پیچ وتاب کړم
ځنبتن دَ ونوځهٔ پیچ وتاب لری
ما به ترکومه په دا عذاب لری

چه بد بنیاد وی چه بد نهاد وی
هرچه زوولی دی دَ فساد دپاره
دَ موریه نس کښے په بلا یاد وی
ځوچه ژوندے هم دَ فساد وی

چه رابنکاره شوے یوځهٔ نکارے
ځوږم په تا باندِ مینه زیا تیری
ځهٔ جفا کارے کهٔ پری وارے
تهٔ راته غابښ چیچے هسے خونخوارے

چه بدا ندیش وی چه بدآموز وی
کهٔ تهٔ لولی غواړے لوئی په چامهٔ کړه
چه بدګوئی لری واړه بدروز وی
نیکان په دواړه کونه فیروز وی

چه دین دُنیا ګتي دانا فرزند وی
اوبهٔ به نهٔ ښبنی دَ پلار بے حکمه
غوږ به ئے هرکله دَ پلار په پند وی
تهٔ به ئے پورته شونډے په قند دی

چه نهٔ ځوانان لری نهٔ زر نهٔ شولے
کهٔ دلے واړه وی کهٔ ئے ځوانی نهٔ وی
هغه به ولے زوَرور بولے
زَړه بوډئ وچاته پسولے

چه سپینې پېئ سره غنم وي
چه شکر نهٔ کا په خپله بخره
حرم حشم لري آرام ئې هم وي
د هغهٔ بخره د مار لړم وي

چه حرص ناک وي یا ترسنده وي
دا به دِ پرېږدي په تنګسه بلا ته
یاري له دواړو سره ګنده وي
بتر تر دانه شکم بنده وي

چه غم ئې نهٔ وي د بدنامۍ
دا رنګ سړے کهٔ دِ خوئې رور دي
واړه ئې مخ وي په خود کامۍ
څنې ویزار شې په دا خامۍ

چه ښهٔ صورت لري شرم عفت لري
چه ښائسته وي عفت ئې نهٔ وي
واړه د دین د دُنیا دولت لري
څهٔ قباحت لري څهٔ قباحت لري

چه ښکار په کور کښې ورته تیار وي
په باغ و راغ کښې د بهار ګل څهٔ کا
د چا به ولے د صحرا ښکار وي
چه ئې په کور کښې تازه بهار وي

چه خوک دُنیا لري په ځان ئې نهٔ خوري
چه مال ئې پاتے شي وېل حریف ته
د ګور رغه تورے خاورے دِ وخوري
چه ئې له خپلو یارانو ښهٔ خوري

چه اصل بد لري ځائې بدخو وي
دا دواړه توکه به هیڅوک ښهٔ نهٔ کا
یا رنګ ښهٔ نهٔ لري ځائې بدرو وي
کهٔ کرامت دے کهٔ ئې جادو وي

چه فهم درست لري هوښیار هغه دے
او بهٔ چه لړے وي آبدست پرې نهٔ کېږي
چه فهم سست وي حمار هغه دے
چه پرے پاکی موې رودبار هغه دے

چه دانسته درومی چه آهسته درومی
چه کاهلي کا یا ډیر تلوار کا

فتح هغه مومی نصرت هغه مومی
نامرد هغه نومی ناکس هغه نومی

چه ډیر یاران ئې تر نظر تیر وی
په مخ کۀ هرڅو مهر خندا کا

اخلاص ترې مۀ غواړه لباس ئې پیروی
چه درته شاکا واړه ئې هیر وی

چه پکښې بانګ دَ مسجد امام نۀ وی
په هغه کلی کښې قتل روا دے

په هغه کلی کښې میشتې مقام نۀ وی
چه هغه کلے به دَ اسلام نۀ وی

چه مور ئې بنه وی بابا ئې بنۀ وی
چه اصل بد لری بد به ولد لری

بد به ئې خُویه لُونړه په څۀ وی
تَل به هیچرې بې فتنې نۀ وی

چارې دَ دهر په هغه دستور دی
لا هم هغه دی چه پکښې وُرکے

لکه په تورو په سپین مسطور دی
هومره لښکرې دَ سلم تور دی

چه شرم نۀ لری عیب ته نۀ ګوری
هغه چه پاکې دی شرم حیا لری

لوئی بې شرمې دی خکه خپل ځان پلوری
زړۀ ئې فساد ته په لکونو نۀ شوری

چه بنۀ لذت غواړې نیش وآفت غواړې
چه محبت غواړې غم دَ فرقت غواړې

نیش وآفت غواړې چه بنۀ لذت غواړې
غم دَ فرقت غواړې چه محبت غواړې

چه څۀ پکار دی ختک ترې دی
ډیرې پیښې لری حیلې مکرونه

تر میری خیلو برکویټ بری دی
پښتون ئې مۀ بوله بولاق هندکی دی

چه ورځ دِ بنه وی دولت دِ یار وی
چه ورځ دِ بده شی دولت پیر وُکا
واړه وګړے دِ خدمتګار وی
خپل ځویه رونړه له تا ویزار وی

چه نهٔ تدبیرلری نهٔ ځوانمردی لری
پوندے ته اورساوړه هنرچه ټوره شی
تل به په کارکښے دَ مخ زردی لری
هغه سړے نهٔ وی چه دل سردی لری

چه نه لنګیږی نهٔ ئے ځوانی وی
ښځه محبوبه ځوانه دینی بویه
دَ هغے ښځے روزګار فانی وی
چه زیست روزګار کا په ښادمانی وی

څهٔ ئے حیرانه سړیه څهٔ ئے
کهٔ یو دِ نهٔ وی په دا ځلور کښے
خاورے ئے بادئے اورئے اوبهٔ ئے
نور دَ ژوندیو په شماره نهٔ ئے

څوک چه ختلے په ملکوت وی
فرقان ناطق دے په امر نهی
دَ هغهٔ کله په کار ناسوت وی
چه نهی نهٔ کا ځلئے لاهوت وی

ښبتن دَ خونے دَ خوړوخوند غواړی
نادان په بند دَ چارے نظر نهٔ کا
ویښځے مړیونه دَ خوړ و شخوند غواړی
هوښیار په هرے چارے کښے بند غواړی

څوغم غیرت کړے چه غلیم م نهٔ مری
نهٔ به تهٔ پاتوشے نهٔ به دِ پاتو شی
قضا چه نهٔ وی سړے په څهٔ مری
هیڅ بیړه مهٔ کړه هرڅوک به وُمری

څوآزموده نهٔ شی په کاروبار کښے
هومره په ځویه په رور باور مکړه
په صحبتونو په جنګ په ښکار کښے
ورانے به دِ دړولی په لوئے لوئے کار کښے

چه سره لوئے ؤو په یوهٔ غولی
خهٔ په دا دواړو غوښه ونو آوسم
وګورته لاړل هغه همځولی
نارے دَ دیوچه ما هم بولی

چه څوک دِ ښهٔ یشی ورځنے ښهٔ وائے
چه دَ زړهٔ مهر ورځنے مات شی
کهٔ دے بلاوی ورته لیمهٔ وائے
کهٔ هرڅو ښهٔ وی ورته ښهٔ نهٔ وائے

څوک چه دُنیا غواړی هغه رنځور دے
هرچه مولیٰ غواړی ترهغو زار شم
هرچه عقبا غواړی هغه مزدور دے
هغه په دواړو کونو مسرور دے

چه پرے مئین وے کهٔ بد وګوری
ورته دُعا کړه کهٔ دے بنیرے کا
پرے دِ وُوزی دَ سترګو توری
ورته خندا کړه کهٔ دے دِ زوری

چه پس له مرګه سړے ښهٔ یاد شی
چه خوئے نهٔ وی دَ نیکنا مئ
کهٔ مسے خوئے کا په دادِ ښاد شی
ژوندون نے هیڅ وی ژوندون نے بادشی

چه څوک سوګند کا کارئے څرګند وی
سوګند به نهٔ خوری چه راستګویان وی
سرِ دَ دروغو زر زر سوګند وی
دَ دروغژنو سوګند کمند وی

څوک چه ړوډئ دَ دهقانئ خوری
چه ئے په ظلم خورے وارهٔ دِ زهر شه
خوارهٔ دَ خورو دَ مهمانئ خوری
کهٔ شولانونه دَ سلطانئ خوری

چه ئے وهلے قلم مطلق دے
په چا سحر شو پرے روښنائی شوه
ایمان کهٔ حق دے په کافرنا حق دے
په چا شپه راغله با ندِ شفق دے

ښوک چه قمریاد کا روڼے دِ رایاد شی
ښوک چه عنبر یاد کا موږے د رایاد شی
ښوک چه مقر یاد کا کوڼے دِ رایاد شی
ښوک چه سقر یاد کا ځوږې دِ رایا د شی

څۀ نعمتونه دی تر سر تر پایه
چه دِ موندلی دی د یوۀ خدایه
په هره ساه کښے شکر وکاږه
کۀ غافل نۀ ئے ثنائے وایه

ښوک دَ هوا دَ هوس نتلی دی
ښوک رِم په بُغض په حسد تللی دی
پلار دَ خپل ځان ئے ځوئے دَخپل ځان دے
په خپل خپل جور هر ښوک نیولی دی

ښوک چه آشتی غواړی کۀ دِ غلیم دے
"والصلح خیر" ځائے دَ تسلیم دے
عفوه بهتره تر انتقام ده
نیکی په بدو کار دَ کریم دے

ښوک چه خیرے ستا دَ بنایئست وائی
بنۀ خوئ خصلت به دِ راته پۀ ښُځُستائی
زۀ درته ژاړم تۀ راته خاندے
دا هسے کبر به هیڅ نۀ بنائی

ښوک چه په خوئ کښے پاکیزه پاک وی
سنځ په کوردے پاکیزه ژواک وی
سلوک چه بد لری زارے دَ ځان دے
کۀ هر ښو بنۀ وی هغه هلاک وی

ښودا جهان دے دا هسے تل شی
خپل دِ پردی شی پردی دِ خپل شی
دَ بل وی ستا شی په یوۀ دم کښے
هغه چه ستا وی هغه دَ بل شی

ښوک به په ځاکرم وی په ځانا کرم وی
ځنے بد فعل په هر ځا کرم وی
تۀ خپل خوئ بنۀ کړه په ځا کرم مۀ شه
خود به شرمیږی چه تر تا کرم وی

خو دِ دَ تورو زلفو خمونه دی
دَ خپلو تورو سترګو غمزې پوښته
هومره په ما باندِ پراته غمونه دی
چه ئې په ما باندِ دا ستمونه دی

خو به بریتونه دَ ځوانئ ځوانان یوسی
مرګ شته پیری شته دواړه راتلونی دي
خوبی ئې دا ده که خبردار اوسی
سړے یا مرګ یوسی یائې پیری یوسی

خوځو قرنونه به وربانِدِ تیر شی
لکه چه هیرے دی پخوا پیرئ
شیرین صورت ئې په بل بل خیر شی
خوشحال به هسے له دِله هیر شی

خو به په لویه غاړه دَ دهٔ بولے
زړهٔ در پوهیږم زړهٔ دِ زخمی دے
دَ غریبئ بدلے بولے
دَ رغیدلو طبیب دے بولے

خوئې غیرت وی خوئې همت وی
مرغهٔ چه نهٔ لری تندرست دوه ځانګے
دَ مرد به هومره قدر قیمت وی
پرش ئې کله په رفعت وی

خوځو ښادئ دی په دا آفاق کښې
خوځو غمونه یا محنتونه دی
واړه به بیاموے په اتفاق کښې
یا به دروغ کښې دی یا په نفاق کښې

خوک دِ غم نهٔ کا دَ نامرادئ
دَ فلک عدل انصاف ښکاره دے
نهٔ به تل غم وی نهٔ تل ښادئ
کارئې کړ ظلم دَ بیدادئ

خو به سودونه کورته راوړے
خو به خوبونه دَ خوبئ کانړے
خو به خوانونه دَ خوږو خوانړے
آخر به پریوزی درباندِ کانړے

خوږ ئے همت دے هومره قوت لری
خلیلؑ آسا دے لکه موسیٰؑ دے

هر مروت لری هر فتوت لری
ابدال په اور په اوبه نصرت لری

حب دَ دُنیا دے چه څهٔ بلا دے
هومره رسوا دے داحب چه څومره

چه څهٔ بلا دے حب دَ دُنیا دے
داحب چه څومره هومره رسوا دے

خدائے چه بندهٔ کړی په دے جهان دی
چه سره یو شی دا دواړه توکه

کهٔ پرے پوهیږے انسان اَسان دے
مشکل کارونه ورته آسان دی

خوشحاله زوړ شوے سړے چه زوړ شی
تهٔ څو زړیږے لا مټین کیږے

دَ مهوشانو له مینے موړ شی
زړهٔ به دِ کله ترے موړ یا سوړ شی

خیال دَ هغے دے چه شوخ وشنګه وی
چه دائے هیڅ نهٔ وی نازبه په څهٔ کا

شونډے ئے شهد په مخ ګلرنګه وی
کهٔ نازکا نازبه ئے بتر ترجنګه وی

څُټ څټ دَ دیګ دے سرود دَ ډُوډی
چه ئے کش کش شی پرتوګ وُکاږی

غږ دَ اوبو دے ژوندون دَ تږی
هغه آواز دے چه زړونه کوږی

خار دِ بخره دَ خارکشانو شی
قند دِ په بخره دَ شنو طوطیانو شی

ګل دِ بخره دَ ګلرخانو شی
سوز دِ په بخره دَ پتنګانو شی

خبرے ګرانے دی آسانے چرے دی
په دا دُنیا کښے چه ئے بهتر کړنے

دَ چا مشکلے دَ چا ګوهرے دی
ښے ښے خبرے ترے لا بهترے دی

خپل مال په ترس په صرفه په بیم خوړے
دَ بل غم نهٔ کړے کهٔ درست کهٔ نیم خوړے
په کور دَ کُنډے رنډے یتیم خوړے
مُلا دا وړلے اور دَ جحیم خوړے

خواری ئے نشته چه ځوک هوښیار وی
هوښیار چه نهٔ وی په خوارئ خوار وی
نراد چه ښهٔ وی دَ نرد گټنه کا
بد باز په بده بازی ناتار وی

خوشحال کهٔ هر ځو فاجر فاسق دے
عیب ئے مهٔ کړه شیخه عاشق دے
چه پارسایان دی په خپل خدمت به ځي
دَ خدائے په فضل فاجر لائق دے

خوب م دروغ دے نهٔ دَ ناروغ دے
خوب دَ دردمنو نړونو دروغ دے
لکه په ویښه وی هسے په خوب وی
چه چا موندلے دَ زړهٔ فروغ دے

خزان بهار دے بهار خزان دے
هجران وصال دے وصال هجران دے
شپه شی بیا ورځ شی دود دَ جهان دے
غم چه ښادی لری کار ئے آسان دے

خبر لا نهٔ یم چه لا به کله شی
چه م به کسی سره وبله شی
تهٔ آئینه گورے نهٔ م سینه گورے
چه دِ دَ هجر په لمبه سوله شی

خصلت ئے داوی چه لئیمان وی
نن چه ځهٔ ورکاکا ندهٔ پښیمان وی
کهٔ هر ځو ډیر ورکه خپل ورکړه کم گنړی
دا شان ئے دود وی چه کریمان وی

خوشحاله بس کړه شان شان دِ ډیر ووے
پیشور دُوے اوښان دِ ډیر ووے
سود دَ سکونت دے مشغول په دم اوسه
ژبه خوندی لره پریشان دِ ډیر ووے

خال دِ دَ زړه و نو په داغل راغلے دے
چه ښهٔ جمال لری هغه ښهٔ خال لری
دننه زړهٔ دِ خما داغلے دے
مخ دِ ښاغلے دے خال دِ ښاغلے دے

خسیس کهٔ مال لری پرے ښاد به نشی
چه همت ناک دے هغه آزاد دے
بنده بنده دے آزاد به نهٔ شی
آزاد آزاد دے عباد به نهٔ شی

خوشحال کهٔ تور دے دَ گناه به توری
خپل دین محکم لری خدائے ډیر کرم لری
خلق حیران شی چه ورته گوری
مخ به ئے رونړ کړه تر صبا تر ستوری

خوشحاله خو دِ جوش و خروش دے
هومره تهٔ نهٔ ئے په ځان غره مشه
نهٔ دِ څهٔ عقل شته نهٔ دِ څهٔ هوش دے
دَ خدائے کرم دِ لا پرده پوش دے

خوا بزهٔ دَ مینے نهٔ سرا پټیږی
مینه په مثل نافه دَ مښکو ده
واړه په مینه سره غټیږی
نافه دَ مښکو چرته پټیږی

خوږ تر شکرو بحر شگرف دے
کاسے خُمونه کوزه څه حرف دے
خوشبوئ تر مښکو صفا تر برف دے
راوړه آخله مدار په ظرف دے

خوب دَ سحر کهٔ هر څو محبوب دے
دُنیا به پاتے شی دَ دُنیا عیشونه
سړے چه ویښ شی سحر لا خوب دے
هغه جهان لره طاعت مطلوب دے

خوش رنگ تر بازه مرغ زرین دے
څهٔ شو کهٔ لوئے لوئے وزر پرے پورے وی
باز م په قدر کښے ترے صد چندین دے
کرگس کرگس دے شاهین شاهین دے

خانان هغه دی چه په خپل نام دی
چه په کوم توکی دَ نام بشیګړه وی
نهٔ په دُنیا دی نهٔ په خپل کام دی
په هغه فکر کښے په صبح وشام دی

خصلت به دا لری چه منافق وی
یو به ځ زړهٔ وی یوه ځ ژبه
دَ هر مذهب سره به موافق وی
یو به مذهب لری چه څوک صادق وی

خونه چه پاکه وی برکت وورے
پاکی چه نهٔ وی په هغه خونه کښے
ورباندِ هر کله عزت دولت وورے
ورباندِ واړه بلا آفت وورے

خلق چه بد شی بادشاه ځ بد شی
خوبی په دور دَ عالمګیر نشته
په هره چار کښے حیران بخرد شی
دَ چا به ولے له چا حسد شی

خوږه نمړئ کهٔ بشه مزه لری
همائے مرغهٔ م خکه هډ ونه خوری
ترےم توبه ده کهٔ دا بزه لری
آسمان له غوبنو سره خزه لری

خوشحال کهٔ هر څو په رنځ کښے ژاړی
ژړائے واړه په دا سبب ده
نامردے وکړه کهٔ په مردنهٔ ویاړی
دَ خدایه خیر دَ خپل ایمان غواړی

خان دَ وګړی چه شمشیرزن نهٔ وی
لکه نامرد میږهٔ چه وادهٔ وکا
دَدهٔ بنهٔ ورکړل دَدهٔ بنهٔ نغن نهٔ وی
خوار زار روزګار کا حال ځ دَزن نهٔ وی

خوئ چه دَبدو دَ چا عادت شی
طبیب ځ څوک دے ملک الموت دے
په پند په زجر لا زیادت شی
چه مشرف ځ په شهادت شی

خپل بد خویونه بد خوئ هُنر ګڼړی
په خپل ځان چه څۀ وی بل هم هغه ګڼړی
په ځان کۀ خاوړې وی خاوړې هم زر ګڼړی
یوچه کافر وی بل هم کافر ګڼړی

خپل حکم مۀ کړه چه کم یا ستر وی
دَ کشید کړې په لاس کښې ستن شه
دا فکر مۀ کړه چه لس یا زر وی
دَ خط وهونی په لاس کښې در وی

خوشحال غریب دے درویش ګدائے دے
چه چرته حکم هورے به درومی
خپل حکم نۀ لری دَ یار په رائے دے
چه کښېنوے ئے هغه ئے ځائے دے

خوشحاله عمر دِ تر شپیتۀ تیر دے
دفتر دِ ډک دے دَ ګناهونو
نیکی دِ لږه ګناه دِ دیر دے
درته به یاد شی کۀ دِ تا هیر دے

خواره خربه خو هومره بنۀ ئے
چه دواړه توکه درخخه نۀ وی
چه روغ په تن ئے چه روغ په زړۀ ئے
په تخت کۀ کښېنې وایه تر وخۀ ئے

خو بوه ساه ئے بود دِ هم دا دے
نور سود دِ نۀ وینم په دا دُنیا کښې
یو موبهے خاورے جود دِ هم دا دے
کۀ څۀ نیکی وکړې سود دِ هم دا دے

خیر په دا کښې دے چه دِ یر مالدار نۀ ئے
لکه دِ دخل دے هسے دِ خرخ دے
په غم دَ عُشر دَ زکوٰۃ ګرفتار نۀ ئے
محتاج وچا ته په لږ بسیار نۀ ئے

خوشحاله پاسه روغے دِ پښے دی
ځویه کۀ رونړه کۀ بنۀ یاران دی
ملکے ته درومه څۀ خرخشے دی
واړه دِ ولین دَ خپلے بنے دی

دُنیا خو ډیره هومره ئے غم ډیر وی
هستي نیستي ئے دواړه بلا دي
چه نهٔ وی نهٔ خوری هم ئے الم ډیر وی
خوبي ئے داده چه درته کم ډیر وی

دَخان دښمن دَے دښمن چه یار کنړی
هوښیار به خان دَ نادان په شمار کنړی
دښمن چه یار کنړی مرګ دِ تیار کنړی
نادان هغه دے چه ځان هوښیار کنړی

دَ ښړو تیر دِ په څو تیرهٔ دی
دا دَ نکریزو نګار پرے نهٔ دے
واړه لک شوی ځما په زړهٔ دی
دَ خوار په وینو ئے ورغوی سرهٔ دی

د تن خولے دِ بوئ دَ ګلاب لری
عتاب نور مهٔ کړه دَ خدائے دپاره
زلفے دِ طعن په مشکناب لری
خَوشحال دِ کله دَ عتاب تاب لری

دریغه ښه ومبیه عمره روستے وے
هغه بیا نهٔ راځی په دا هیڅ کارنشی
دریغه روستیه عقل ښه ومبے وے
په دا به پوهه شے که ښهٔ سړے وے

دریغه له ځا یه هسے هوښیار دے
راته ښکاره شوه یاری دَ خلقو
لکه چه اوس یم خپل م اختیار وے
نهٔ دَچا یار وے نهٔ مِ څوک یار وے

دَ مانړی خوړئے هر کوړه کران دے
په څو پخپله ساغله پخلا شوه
خوړئے دَ تورے پرهار په شان دے
خَوشحال که زور دے باطن ئے ځوان دے

دا تورے ښیرے چه ایماندارے دی
صدق وفا بویه چه دائے نه وی
سپینے ناپاکے ښیرے ترے خارے دی
ښیرے دَ ځوانو دَ زړه ومردارے دی

دَچا په کور کښې سره وپېڅ مُهران وي
کهٔ ته هيڅ نهٔ لرې ګمان دا مهٔ کړه
دَچا په کور کښې دُر و مرجان وي
چه به دستا غونډِ واړه ناتوان وي

دَ مرد چه صبر چه استقبال نهٔ وي
مردي ئې هيڅ ده حُما په پوهه
چه غم پرې راشي پکښې خوشحال نهٔ وي
کهٔ ئې په جاه و دولت څوک سيال نهٔ وي

د ننه زړهٔ م وږيسے سرېږ دي
زوړ شوم نارې وهم توبه له عشقه
چه زلفې تاؤ کا دړئ پرې ګښېږ دي
کهٔ م دلبرې وږيسے پرېږ دي

دَ شاه پالنګ دِ دَ موذي مسکن نشي
ګل دَ بلبل دے بلبل دَ ګل دے
ګلزار دِ ځائې دَ زاغ و زغن نشي
په ښهٔ جمال به غافل مئين نشي

دَ مرګ قتال دے په هرهر کلي
چه م په سترګو هغه ياران ليدل
غشي په ګرت کښې نيازمن پرې وُلي
اوس ئې ليدل شي په سترګو څلي

دولت په مثل مرغهٔ دَ ښکار دے
له لاسه تللي مرغونه څوک نيسي
باز دے شاهين دے چرخ دے شنقار دے
دَ ښکار مرغهٔ م دَ ښهٔ مير شکار دے

درد چه په بل وي خبر پرې نهٔ وے
سود زيان دَ هرچا جدا جدا دے
چه دِ په ځان شي له درده چوے
کله دَ بل په خوراک موړ تهٔ وے

دا يو خو توکه دَ وقوف دار دي
کتاب دَ چا دے دَ دانشمند دے
باز دَ مير شکار دے زر دَ تجار دي
ښځه دَ مرد ده مښک دَ عطار دي

دَ پند پروا لری خاورے خوړونی
بد دِ دَهيچا تر فهم بنهٔ نهٔ شی

ورباندِ بد لګی نصيحت کړونی
نهٔ وی دَ پلار دَ خبرو وړونی

دَخپلے خونے ديوال کهٔ کوږ وی
زيست و روز ګارے پکښے خوندی وی

دَ خپلے خونے پهٔ خښتن خوږ وی
لوبنی کالی ئے پهٔ دهٔ کښے بوږ وی

دولت دَ خلقو پهٔ اتفاق کښے دے
نړوړشوم يويار مِ يکرنګ ونهٔ ليدهٔ

هغه بهٔ خوارشی چه پهٔ نفاق کښے دے
زړهٔ مِ تراوسه پهٔ اشتياق کښے دے

چه تل ئے مټ وی پهٔ خود کامئ
درست ناسپاس وی حق ناشناس وی

اندوه ئے نهٔ وی دَ بدنامئ
هرڅهٔ بهٔ بايلی پهٔ دا خامئ

ډيرڅهٔ مِ وکړل مادے کهٔ يار شی
چاوے چه صبرکړه صبرمِ هم وکړ

ديدن ئے ووينم زړهٔ مِ قرار شی
سيکنړيم کله پهٔ صبر کار شی

ډيوټ هواده نن پهٔ شاخزار کښے
پهٔ زړغ ئے ذوق کا څما بانړونه

نړرکے فرياد کا پهٔ مرغزار کښے
پرخه وريږی ګرڅم پهٔ بنکار کښے

داچه وتا ته شيخان پيران دی
علم عمل بويه مرشد دَ لاره

بدخواه دَ خلقو بدخواه دَځان دی
چه دائی نهٔ وی واړه سګان دی

دَ يار دَظلم دَ غشی پېروکی
دَور دَ سپيو سرهٔ ئے مل شوم

څما پهٔ زړهٔ کښے پراتهٔ دی اوکی
تو ئے ونهٔ وے راته پهٔ وردکی

درته رښتیا وایم کهٔ مې ښهٔ یار ئے
کله مې یار ئے کله اغیار ئے

څهٔ خوئ خصلت لرے څهٔ ناقرار ئے
هم وفادار ئے هم جفاکار ئے

دَ یار عتاب مې قبول په ځان دے
هم ئے وصال شته هم ئے هجران دے

په عاشقانو دا دود روان دے
جنګ چه آشتی لری کار ئے آسان دے

دروغ دَ چا دی دَ کم ذات دَ وېړی
چه دا ئے نهٔ وی دروغ به نهٔ کا

یا دَ کمزوری په قوت لړی
دروغ چه کاندی خوږ وی په سړی

دَ چا چه نهٔ وی دوس اندیشئ
دَ هغې وُنے ګلونه مهٔ وینے

مهٔ ئے یاری وینے مهٔ ئے خویشئ
چه ئے اغزی وی دَ دلریشئ

درته به وایم خو کړے پوښتنے
ځائے دِ هم دا دے بل ځائے دِ نهٔ دے

کهٔ دِ بائلنے دی کهٔ دِ ګټنے
کهٔ منګلے وی کهٔ په لمنے

دَ بل په عیب په خو ویښتهٔ چوے
خپل سل زناره درته ښکاره نهٔ دی

دَ ځان په عیب نظر هیڅ نهٔ کوے
هندو خو یو لری هغه ئے هم شلوے

دَ چا چه دننه سینه په درد وی
کهٔ مرد دَ لاندِ وی ښځه دَ پاسه

دمه ئے عین په آهِ سرد وی
په دواړه توکه ظفر دَ مرد وی

دادِ بارخودی خولهٔ نیولی
دا دِ سرے شونډے دی کهٔ سپین غاښونه

کهٔ لاله ګل دی پرخے وهلی
کهٔ لعل و دُر دی سره پیئیلی

دَ غځ په رنګ ئې تر ګل ښا غلي
لاله په خپله سينه کښې داغ لري

دَ باغ لاله ئې راته را غلي
تا ده سينه دَ عاشق داغلي

ډيرې مرغئ په زړهٔ دلکښې دي
ډير نعمتونه مِ په جهان کښې وُليدل

سحر چه زاغ کا هغه مِ خوښې دي
چه لوئې نعمت دے نعمت خوښي دي

دَ خپله لاسه چه ستمونه دي
دَ خپله لاسه لکه ښا دئ دي

کښې په مانهٔ دي په عالمونه دي
دَ خپله لاسه هومره غمونه دي

دَ بيم په ځائې کښې سړے ملال وي
هغه په خړو اوبو نظر نهٔ کا

چه ئې اُميد وي هر ته خوشحال وي
چه تل ئې بحره آب زلال وي

دَ چا به څهٔ لره مانړه له بله شي
هغه چه وکړے هغه به وړيبې

چه نيکه بد ه په خپل عمل موندله شي
له خپله لاسه هره کړله شي

دَ وړاندِ ايښې درته يو خوان دے
تهٔ به ترے پاسے بل به پرے کښيني

نعمت ئې کوره الوان الوان دے
له واړه و پاتے داشان داخوان دے

دَ خرخ له لاسه زړهٔ کوټے ريږدي
هرڅوک چه ووينې چه داغ په زړهٔ لري

داخوئ به چيرے له لاسه پريږدي
دَ داغ دپاسه بل داغ پرے کښيږدي

داچه وتاته دَ دين اخص دي
په نورو حکم دَ لَن تنا کا

کهٔ پرے خبر شے کافر دَ نص دي
دَ لکنُوْد دَ آيت مختص دي

دَ شپې ښبتن دِ سحر ته ګوری
هیڅوک دِ طمع امید پرے نهٔ کا

ګوندِ پرے وخیژی دَ صبا ستوری
باران په تږیو کښېتو نو ووری

دریغه ځوانئ ستا کامرانئ
زوړ شوم ناتوان شوم خیال مِ دَ تورے

ژغ مِ دَ تورو ژغ دَ خانئ
کهٔ بیا رته راشے ځما ځوانئ

دریغه جاویده ځوانی بقا وے
ډک ډک جامونه تږیو ته تل نیوے

دَ ښو دلبرو دیدن لقا وے
دَ مهر خضر دَ اوبو سقا وے

دریاب چه لوئے دے هومره هوار دروی
سیلاب په شوغا خکی غوړږ پیدا کا

شور و غوغا نهٔ کا په خوقرار دروی
بقائے نهٔ وی په ډیر تلوار دروی

ځما په باغ کښے ګلونه ډیر دی
داغ مِ په زړهٔ باندِ دَ معظم دے

خدائے ئے راپریږده په هرخیر دی
دا داغ چه راغی نور مِ پرے هیر دی

دا نمر په ورځے په شپه دا ستوری
دَ ډیرو سترګے پرے لګیدلے دی

چه ناقرار دی وبله شوری
لاهېل لا ډیر به ئے په سترګو ګوری

دَ وطن وُنے چند نمر اکر دی
کهٔ سرائے ونورو وته سنګیر دی

خاورے ئے واړه مشک وعنبر دی
کانړی ئے واړه ماته سرهٔ زر دی

دَ تن تیرسو شپیتهٔ ساګونه دی
جداله تانه چه یو نفس دروی

ستانه غمونه پکښے زرګونه دی
څو نفسونه هومره مرګونه دی

دا جام چه چا چیښن هسے لا چیښن شی
حال ئے و هیچا وته معلوم نهٔ شهٔ
مستان ئے خوب کا کله به ویښ شی
آه دے له دِله هردم وکیښ شی

دَ خولے ویُل دِ واړه نبات دی
خوک ئے چه کښل کا سخ دَ هغو دے
خوابڼهٔ دِ لا دَ بسکنځلو ښایات دی
شونډے دِ دواړه آبِ حیات دی

دَ بخت په مخکښے زر ودانئ دی
بخت دے دَ شاه دَ گدایانو هیڅ نشته
دَ بخت په شا کښے زر ویرانئ دی
په بخت خوارئ هم کامرانئ دی

دَ ملوکانو صحبت بَل اور دے
کهٔ تور هاتی ئے کهٔ تور زمرے ئے
دَ اور سکروته دَ دے بیور دے
ستا مِ له اوره سره ځهٔ زور دے

دروغ چه فاش وبے صرفه وائی
تردا هغه بد چه شیطانی لری
خپل ځان پخپله خوارئ ته بیائی
مکر فریب کا په نفاق پائی

دَ ملک سردار دِ هوښیار قلاش وی
ځائے دَ آشتئ پریښے بو یه
تل دِ له ښو سره په ښهٔ معاش وی
چه ئے له چا سره جنگ و پرخاش وی

درویش هغه دے چه ترس دَ خدائے لری
طمعه له چا نهٔ کا لقمه حلاله خوری
دَ نیکو فعل دَ نیکو سرائے لری
جدا له خلقه دَ آسودگئ ځائے لری

دا خوار خاطر چه په قمر نهال دے
میږے چه واخلی دانه وغارته ځی
دَ سمند نال ئے په دا مثال دے
ستا مِ اخستے وکورته خال دے

دا د دَ آسمان دے داد دَ مزکئ
څو دِ په پورته آسمان ته بو تلل

چه دَ خوشبے لرے دُنیا ته څهٔ ئے
بیا دِ ئے خاورے کړے کپرئ

دَ ذرهٔ په حکم بالا پستی شی
نهٔ تل بهار وی نهٔ تل خزان وی

مستی خمار شی خمار مستی شی
هستی نیستی لری نیستی هستی شی

ډیردی چه ږیرے دَ شیخئ پوسی
بنده دَچا یم دَ هغه کَس یم

ډیردی چه مے خوری په رندئ کښے اوسی
چه ئے نیولی تر سره یوسی

دَ عقل زانړے چه تا لیدلی دی
کهٔ هرڅو ښ ورلری یا تیزپری لری

دَ صبر قازے چه تا کتلی دی
دَ شاه دَ سترکو شاهین وهلی دی

دَ بادشاهئ په تخت چه ناست وی
دولت دولت دَ سحر خیزئ دے

دا کارئے هیڅ دے سحر چه نماست وی
مردان دَ هسے دولت په خواست وی

ډیره خوش رنګه صاحب جماله ئے
عیب دِ دا دے درد دِ ومهٔ وینم

ترسر ترپایه پری مثاله ئے
په مرد حرامه په نامرد حلاله ئے

دَ سرداری چه څوک هوس لری
غم دَ وسلو دَ جنګ هیڅ نهٔ کا

خپل ځان دِ خاورے خپل مال دِ خس لری
کهٔ دَ خپل ځان سره یکانه لس لری

دعوی دَ چارے په یوهٔ هرکښے وی
چه بیهوده درومی بلا هغه مومی

عقل هم بویه چه ئے په چرکښے وی
سرپه هغهٔ کښیږی چه په هُنرکښے وی

دَ کور پریښبونه شرم بیغور دے
هرهرکال ئے په جاله تاخت کیږی

هرځائے چه وزیرے هغه دِ کور دے
هغه شاهین دے هغه ئے کور دے

درزی لاکز لری مقراض سوزن لری
کوچ ئے آسان دے مشکل هیڅ نهٔ دے

یو جمدر کوټے خوشحال خیرن لری
غم دَ یارانو درد دَ وطن لری

دَ هوښیارانو ورمونه زر دی
چه دَ هوښیارانو ورمونه نهٔ منی

دا دَ هغو دی چه پرے خبر دی
دَ هغو هرکله خاورے په سر دی

داچه خانان دی یا امرکان دی
غوښے هډونه دَ مظلومانو خوری

په هند کښے گرځی په هرمکان دی
ځما ترفهمه واړه ددان دی

دَ بادشاهانو چه بنهٔ خانان دی
کهٔ ئے آشنا شے ځنے حذر بویه

کارکشائی کا مقربان دی
اوردی اوبهٔ دی درد دی درمان دی

دَ باغ گلونه چه ننداره شی
چا ته په خوبو وسترگو هیڅ مهٔ گوره

خوشخوکارونه پکښے بنکاره شی
ډیر ناگلی دی چه په شماره شی

درته به وایم کهٔ تهٔ عاقل ئے
دولت کهٔ نهٔ لرے خپل دِ پردی دی

ناحق په نورو چارو خوشدل ئے
کهٔ بخت دولت لرے دَ هرچا خپل ئے

دَ خولے خبرے دِ خوږے ترمن دی
ترخهٔ وئیل دِ دَ خولے هرگز نهٔ وُو

وبختورو وته من من دی
داچه ترخهٔ وائے دارو دَ من دی

دَ سردارئ چارے دشوارے دی
براق دَعقل دَ همت پیدا کړه
ځوځو کمرے ځوځوئے لارے دی
پکښے بیشماره بلا تیارے دی

دَ باغ خښتن ته یو سیب پیشکش وړی
هغه به څوک وی عاقل نا اهله
دَ دهٔ له باغه بیائے په اش راوړی
دَ زړهٔ فکرونه چه مشوش راوړی

دَ یار په عیب چه یار خبر شی
دَ یار دِ عیب هُنر دَ ځان گنړی
یاری ئے لاړه که پرده در شی
پوهه دِ په عیب هم په هُنر شی

دَ بادشاهانو چه امرکان دی
والهٔ که لویه وی که کم لښتے وی
دَ دیو بخرے ولے شان شان دی
آبدست پاکئ لره واړه یکسان دی

دریغه په باد لاړے ځهٔ شوے ځوانئ
ویښ شوم بیدار شوم په پیرئ واوښتم
یوه شپه خوب وو ستا کامرانئ
نهٔ ژغ دَ تُورے شته نهٔ دَ خانئ

دَ سرغلیم دِ که دانائی لری
توان یا دَ زړو یا دَ ځوانانو دے
بهتر تر دوسته چه کانائی لری
لاپے دِ هغه کاچه توانائی لری

ځما دَ یار په یارئ کار دے
که مهر مینه وفا رښتیا لری
که مُسلمان دے که زنار دار دے
نور ځهٔ ئے مهٔ گوره چه پوره یار دے

دَ دهٔ په ذکر واړه گویا دی
دَ دهٔ له حکمه وتلی نهٔ دی
که دَ خشکئ دی که دَ دریا دی
که ناست په تخت دی که په بوریا دی

دَ دولت ستورے کرځی قابل غواړی
کهٔ چیرے مل شی دَ ناقابل سره

قابل چه بیا مومی نهٔ پسے بل غواړی
تکاوُئے نهٔ وی رخصت ترے تل غواړی

دروغ وعده دِ په ما رښتیا لگی
دَ ښڼو ناوک دِ په نورونهٔ پسند م

ترخهٔ دَ کښلیو لکه حلوا لگی
پریږده چه واړه په زړهٔ ځما لگی

داوے مِ خوښ دے چه چا وئیلے دے
بدخواه دِ خوښ کا په ښو خبرو

ډیرم په زړهٔ باندِ ښهٔ لگیدلے دے
نیکخواه په بدو خپل ژړوُلے دے

دا مخ چه تهٔ لرے دَ بُورے نُورے
یوه به تاغوندِ ښایُسته نهٔ وی

مگر دا مخ لری ښے حُورے هُورے
چه اوریدهٔ شی دا هُورے دُورے

دانائے مهٔ کنړه چه صبر نهٔ لری
سړے دَ صبر په کار کښیے وازمیه

چه صبر نهٔ لری حکمت به څهٔ لری
چه صبر ناک وی هرڅهٔ به ښهٔ لری

دَ یارِ م واړه دَ سترگو تور دی
چه دَ معشوقے تر سپی ځان ځارنهٔ کا

چه سپین و تورئے دَ چم دَ کور دی
مئین ئے مهٔ بوله هغه څهٔ نور دی

دَ آسمان دَور خالی رونق دے
لکه ئے راکړل هسے ئے واخستل

ورکا بیا واخلی دائے نسق دے
اوس راته پاتے دایو رمق دے

دَ غم فکرونه په زړهٔ کښے باز دی
خدائے به ئے ښکار دَ ښادئ ساز کا

تل دَ ښادئ و ښکار ته ساز دی
بازونه کله خالی پرواز وی

دریغه سړیه چه څهٔ بلا ئے
تا به دَ پلار سره خپلوی ونهٔ کړه

واېړه دَ ځان ئے نهٔ دَ بل چا ئے
مقصود دِ خپل دَچه دَ بابا ئے

دا دود ښندن دے په دا عالم کښې
جهان یو باغ دے نوے خبرے

نادان بے غمه دانا په غم کښې
گل دے غوړیږی په هرهر دم کښې

دَ هرچا قدر په خپل همت دے
دَ نیکو فعل دَ ځان راحت گنړه

دَ هرے چارے مدار په نیت دے
دَ بدو فعل دَ ځان زحمت دے

دا آسمان نهٔ دے یو خونی پړانگ دے
خولهٔ ئے سره کړے دَ دارا په وینو ده

راته غرمبا[illegible]ل تل په [illegible]نگ دے
شفق ته گوره دا ووی په پانگ دے

دَ غرونو کانړی ترحساب تیر دی
کهٔ اهل ووینم زهٔ به ترے زار شم

چه واېړه کانړی دَ لعل په څیر دی
اهل ښوک نشته نااهل ډیر دی

دَ عشق غمونه ترعمره سم دی
دَ نامردانو ورسره کار نشته

په هرده ساه په هرهر دم دی
غم دَ مردانو دے مردان دَ غم دی

دَ خپلے چارے هُنر یو هر لری
مزری گاوز دَ ځنګل په ښو نیسی

مغزنے په سر کښې هومره ښوسر لری
گیدړ دَ شلانړو دَ ښکار هُنر لری

دَ عشق په کار کښې یو هر گډیږی
دا دواړه توکه په عشق کښې یاد دی

یا پکښې قهر ستر کے [illegible]ږیږی
سرے ناحقه په باد [illegible]ږیږی

راغله په وخت د ګلونو کښېنلې — ماوه له میو توبه وکښلې
وے ئے چه تا ده توبه وکښلې — باده ئے بیا وه په زور راخښلې

رنګ د طوطیانو لری شین کوسی — هُنرچه نهٔ لری بے قدره اوسی
چه اصالت لری چه بنهٔ خصلت لری — هغه په بخره له میانه یوسی

روغه کټوه په نغری سمه وی — ماته کټوه په نغری خمه وی
جن چه ځان خوار کا ملته روپئ شی — ملته روپئ په قدر کمه وی

ندیم ځرګندے دی ځما بدئ — چه راته یو دی خپلے پردئ
پیغور ځما مکړه شیخه خپل زړهٔ ګوره — چه پکښے پټه دی د عشق غدئ

روژه د خدائے له ویرے در تله شی — کهٔ نه په هرچرته روژه خوړله شی
په آشنا یئ کښے مهر اخلاص بویه — ګوند په درنګ اکښے آشنائی بله شی

راشه کهٔ ګورے دا خونړئ — سرے ورئ په سر دړئ
تل تل سرونه د عاشقانو — وحلق ته اچوی لکه نمړئ

زړهٔ دِ مڅین وی په تورے سپینے — خالی دِ نهٔ وی له یوے مینے
دا وایهٔ رښتیا دی عاشقان نهٔ مری — مجنون ژوندے دے کهٔ تهٔ ئے وینے

رنګ رنګ ګلونه په باغ کښے واشی — لکه چه واشی هسے فنا شی
ګرمے هیڅ نهٔ دی د باغ بلبلے — چهٔ ئے دا هومره فریاد ژړا شی

راغلهٔ اختر او نوروز همغاړی
ساقی دا وخت دے چه توبه نغاړی
مینا خندا کا چغانه شراړی
وماتهٔ راکړه زړهٔ م مئے غواړی

زوړ که باداشاه وی که اولیا وی
زوړنے که هرڅو د ځان مزدور شی
د ځوانے نښځے ځنے بلا وی
د ځوانے نښځے نوره هوا وی

زلفے چه تاؤ کا په مخ ئے پریږدی
زړهٔ م بلبل شی ورباندِ راشی
کښلی ګلونه په بار خو کښیږدی
له ډیره شوقه ورباندِ ریږدی

ځویه هغه دے چه خوئ د باز لری
نهٔ خوئ د چرګے نهٔ خوئ د زاغ لری
لوئ لوئ ښکار نه لوئ لوئ پرواز لری
چه ځان د غلو خوراک نه ساز لری

زړهٔ وهغهٔ ورکړه چه زړهٔ دِ وساتی
زړهٔ یو ښهٔ خیز دے وسپی ئے ورکړه
که دوه درے وی چه زړهٔ دِ ښهٔ ساتی
نه وهغهٔ ته چه زړهٔ دِ نهٔ ساتی

زړهٔ م زخمی دے وینے ترے څاڅی
تیرئے خوړلے د هسے لیندے دے
ژاړم له درده څړیکے ترے پاسی
چه په آوازئے د ژئ ناسی

زړ شوے د زړو په حال خبروی
زربه په سپینو شګو کښینهٔ موے
چه چرته خیژی په کوم مقر وی
شګے ئے تورے ترخاکستر وی

زړهٔ دِ د هرچا سره صفا وی
که څوک ناحقه له تا پرخاش کا
په چا کرم مهٔ شه که دِ رضا وی
اندوهٔ ئے مهٔ کړه ظفر به ستاوی

زه ئې میلمه یم زړهٔ م میزبان دے
په هر زمان ئې راته صلا ده

را باندِ هر کله دَ دهٔ احسان دے
راته ئې ایښے دَ معنو خوان دے

زړهٔ م په تن کښے لکه بار ساده دے
سترګے غوږونه ژبه دا درے دی

لاړ په فکرونو صبا بیګاه دے
خانان نور واړه خودی سپاه دے

زړهٔ چه نسکور وی غم ئې په کور وی
تل به یرے پورے دَ سیال پیغور وی

کهٔ ډیرے زر وی کهٔ ډیرے زور وی
مخ ئې کهٔ وینځے هم به ئې تور وی

زاغ و زغن دی په باغ کښے ورزی
خوشحال وچاته خپل کار ښکاره کا

چینجی مینجی خوری په ښانګو ګرځی
بلبلے نښته چه باندِ غوږ نږی

ځوئیه هغه دے چه قد وی دَ پلار وی
چه دائے نهٔ وی زر دِ په کور شی

دَ پلار تر هرے خبرے ځار وی
پیدا دَ پلار نه دے یو عیب عار دی

زر دَ خانانو دَ بادشاهانو دی
خوری دِ ګټی دِ عیش و عشرت دِ کا

دَ نوکرانو دولت خواهانو دی
نور خوک چه زر ساتی دَ ګمراهانو دی

ږیره دِ کله دَ پښتانهٔ شی
مغل کمزورے غلیم په رحم دے

چه دَ مغل په منصب ئې زړهٔ شی
کله ئې زړهٔ وی چه پښتون بنهٔ شی

زرکه دِ لوړے دَ بازو ګرزی
کهٔ نهٔ بنړے به ئې په پورته غورزی

سروزه دِ لوړے له پړانګه غورزی
په ځوکهٔ کښیوزی نوره به پرزی

زاړۀ وارۀ غوايۀ په غابنی څوان وېهی
خوشحال پرېږد د خپل بار په خرومۀ وره

چه توان قوت لری خپل بار په توان وړی
مست مست بارونه مست مست اوښان وړی

نن زۀ م ډیرښۀ شوچه تۀ م یار شوے
چه بے وفا وے حال م دِ وليدۀ

نن زۀ دِ بلبل شوم تۀ م ګلزار شوے
څما په زړۀ کښے یو تیرۀ خار شوے

څويه رورمۀ شه چه څوانمردنۀ وی
میړۀ ئے مۀ بوله ښځه پرے نوم کښېږدہ

مرد دَ تيکلے مرد دَ نبرد نۀ وی
چه دَ جنګ غشے ورباندِ ورد نۀ وی

څويه هغه دے چه په رائے دَ اَب وی
کۀ هرخوبنۀ وی چه ستا پسند نۀ وی

کۀ نۀ له څانه پيدا غضب وی
غافل ترے مۀ شه اقرب عقرب وی

څويه هغه نۀ دے چه هواپرست وی
عهد وفا لری سخا عطا لری

څويه هغه دے چه حياپرست وی
طاعت تقوٰی لری خداپرست وی

ژوندے کۀ کرځی خان ئے ژړلے دے
چه صبر نۀ لری ظفربه نۀ مومی

تورزن دَ سرپه وینو لړلے دے
ظفرله صبره سره تړلے دے

زار دَ هغۀ دے چه آزحاجت لری
هغه به ولے دَ آسمان منت وړی

نۀ ډیردولت لری نۀ ډیر همت لری
چه مستغنی وی عیش وعشرت لری

بڼیره غابنونه م جدا جدا وائی
چه چاته وګورم یا چاته وخاندم

څوانی دِ لاړه راته هم دا وائی
راته دا دا وائی کاکا بابا وائی

زړهٔ مې له کښلیو سره بیا بیور غواړی
زلفې ښکاره کړه خوشحال خټک ته

ګوره وخان ته بلا په زور غواړی
جنون پرې زور شو بیا رتنهبور غواړی

زړهٔ مې په تن کښې په ډیر آشوب شی
زور شوم لا خیال لرم دَ مهوشانو

چه کښلی یاد کړم کله مې خوب شی
په سپینه ږیره هم عاشق توب شی

سړی په مثل کانړی دَ کوه دی
چه جواهر دی پکښې کم کم شسته

په خوخورنګه ګروه ګروه دی
نابود بد رنګ ئې انبوه انبوه دی

سړے کهٔ ښهٔ دے په ښهٔ ګفتار ښهٔ دے
ګفتار صورت ګڼړه کردار معنیٰ دے

ګفتار کهٔ ښهٔ دے په ښهٔ کردار ښهٔ دے
چه سره یو شی دا دواړه کار ښهٔ دے

سړے چه وړے شی کچکول په لاس واخلی
خدایه په خیل کښې خوشحال معمور لره

شهوت پرے زور کا نور نور وسواس واخلی
چه بل له لاړ ے نه کوز وپاس واخلی

سړے کهٔ وړونے شی آواره کړونے شی
راشه په خپلو ستر ګو ئے وګوره

دَ لویو لویو بخرو په وړونے شی
فائده ئې کومه ده سپے چه خوړونے شی

سهیل چه وخیژی او ړے تمام شی
په اته میاشتے هسے هوا وی

زیرمه دَ ژمی دَ سرانجام شی
چه دَ خوانانو پکښې هر کام شی

سړے چه خوان وی دَ جونو ځان وی
زاړهٔ کهٔ ښهٔ کا جونه یې نهٔ کا

زوړ ئې په خټک کښې لکه سوهان وی
جن دِ هالهٔ کا کهٔ دے سلطان وی

سړي په اصل سره يکسان وي
فرق ئې په فعل په خوئ هُنر وشـهٔ
کهٔ چوهړي دي کهٔ بادشاهان دي
ځکه دوئ هسې سره شان شان دي

سردار هغه دے چه شرم ننگ لري
صرفه په زرنهٔ کا صرفه په سرنهٔ کا
مُدام دَ شرم تُوره ترخنگ لري
چه دشمنان وي له هغو جنگ لري

سترګې دِ نهٔ دي ستوري دَ بخت دي
دَ ناز په غشيو هغه شيخان وُوله
چه ورته ګوري خبستن دَ تخت دي
چه لاف دَ زهد کا په زړهٔ پير سخت دي

ساقي باقي دَ روژے خو وسځي
تحويل دَ تلے اختر يو ځائے راغلهٔ
زړهٔ په خندا يم ژاړي وريځې
حاضر په ميوشه په خرته خوځې

سړے ښاروے دے کهٔ تهٔ ئې وينې
فرق له ښاروي لري په ګويايئ کښې
په تن په غوبنې په هډ په وينې
په رائے په عقل په شناخت په مينې

سحر چه پاسې په استغفار کښې
دا وخت نور مهٔ ګڼړه ځما په پوهـه
په يادولو دَ خپل غفار کښې
ګڼړه په باغ کښې دارالقرار کښې

سړے هغه دے چه ترس دَ خدائے لري
حق دَ حقدار و آشنا په ځائے لري
خپل ځان عالم ته آدم نمائے لري
خوبي دَ عقل خوبي دَ رائے لري

سخ دَ هغو دے چه پاک پيدا دي
خلاص دي دَ نفس دَ شيطان له شره
کهٔ انبياء دي کهٔ اولياء دي
په ښو په بدو ځائي دانا دي

سحر صبا شو وخت دَ بامداد دے
خوشبوئے راوړه دَ یار له لوریه

را الوتلے دَ صبا باد دے
په خوشبوئ نګه م خاطر پرے ښاد دے

سخ دَ هغهٔ دے چه ښهٔ ئے نیت دے
تل ئے په علم په طاعت مټ دے

نیکخواه دَ خلق په ښهٔ خصلت دے
حاصل دَ عمر، علم ، طاعت دے

سخی کهٔ لک ورکا و دهٔ ته کک وی
دَ هغو ورکړه په ورکړه مهٔ نیسه

بخیل کهٔ کک ورکا و دهٔ ته لک وی
چه ورکا زړهٔ ئے له غمه ډک وی

سړے عزیز ښهٔ دے په دا دُنیا کښے
چه ومری غم نهٔ وی غصه الم نهٔ وی

کهٔ نهٔ فائده ئے ده زر په فنا کښے
نهٔ ئے سیالی وی دَ سیال په خوا کښے

سوزم بے تا نه په لمبو کوښے
غم راعیان کړے بیائے پنهان کړے

خوب و آرام دے را ځنے تښے
تا یم دا هسے په لمبو ایښے

سفله په مثل لکه ویران دے
باران چه نهٔ وی بوټئے دربلے دے

دولت په مثل باند باران دے
باران چه وشی بوټئے روان دے

ساقی غوریږی سل برګ په منی
دَ چا په بخره دَ میو جام شو

دلبرے خیال کهٔ د دهٔ په مینی
دَ چا په بخره یو پمنی

سړے کهٔ ښهٔ دے چه دیندارنهٔ دے
توښه طاعت دے له دے جهانه

کهٔ ډیر په کار دے هم ښکاره نهٔ دے
جهان به هیڅ باند باندنهٔ دے

سړے چه ولاړ بې په ازبوپاک شي
احمق چه ولولي خو کتابونه
چه زبد بون شي چه تومتال شي
په خه خولوسته یاوه ناراک شي

سړے چه زور شي زبور په تن شي
لطیف خواږهٔ دِ خوری دَ خول دِ لبر کا
خواس ئے نورشي په زرهٔ هیرژن شي
کهٔ کانړ خیزه چه پرے مټین شي

ساقي راپا سه چه بیا نوروز راغے
غم دِ په بخره دَ دښمنانو شي
گل به گلشن کښے جهان افروز راغے
فال دَ دوستانو عجب فیروز راغے

سړی په خپلو سره بے غمه وی
دَ چاچه وی خپل خویه رونړه
وُنه به خپلو ولیو محکمه وی
سبالي ئے کله له سباله سمه وی

سرشوے په غاړه وغرونو شړلے
دَ آشنا یئ پیوند م ولیدهٔ
دَ ونو پا نړے مانړے خوړلے
نابه پیوند دے په ویښتهٔ تړلے

سترگے چه نهٔ وی مخ په پسالهٔ نشي
فهم کهٔ وکړے داحال به ووینے
خوئی ئے بد شي دَ خپل کالهٔ نهٔ شي
عیب چه ډیرشي عیب بالهٔ نهٔ شي

سړے کهٔ زوړ وی بښهٔ خویه ځوان لری
دَ پلار بښهٔ خویه دوباره عمر دے
ځهٔ به اندوه لری ځهٔ به ارمان لری
بد خویه پلار لره بلاشان شان لری

سړے هغه دے چه نوش ونیش وی
په هره چار کښے همت په ځائے لری
نهٔ بدگوئی لری نهٔ بداندیش وی
کهٔ مال وملک لری کهٔ خوار درویش وی

سړے چه زوړشي و رنځ ته جوړ شي
چه بے ایمان وي حرص ئے زيات وي
کۀ ډیرهوښیار دے په عقل بوړ شي
کۀ ایماندار وي له هرڅۀ موړ شي

سوارۀ دَعقل په براق ښاغلي دي
بدري دَعقل دَ براق هم بد ه ده
له عقله پلي په غم نیولي دي
سوارۀ ئے سرپه ښتې لویدلي دي

سفله دِ هیڅ ړے دَ مال څښتن نشي
شمله چه پریږدي کتوه بشخه کا
دَ ښو جامو دِ په اغوستن نۀ شي
له کبره خیاله ورته گفتن نۀ شي

سفله چه زر ټول کا دَمال څښتن شي
دَنیک خواهانو په پند پروا نۀ کا
ورانے په لاس واخلي دَ ځان دښمن شي
دَ بدخواهانو په صحبت مئین شي

صبا به تل وي مسا به تل راځي
یو به خوشحال غونډِ پیدا څوک نشي
چه یو تیریږي باندِ به بل سرځي
په شپه په ورځ کښے خوشحاله کۀ سل راځي

سردار دَعفو دَ کرم څښتن ښۀ دے
ډیرهنرونه دَ سردارئ دي
دَجنگ تر کار په آشتي مئین ښۀ دے
چه وارۀ تیر شي تیغ میرهن ښۀ دے

ساقي راپاسه پسرلے تیریږي
گوره لا کله به سهیل راخیژي
اهاړا دروهي غارمۀ ډیریږي
چه درد وغم به دَغارمۀ کمیږي

ساقي راپاسه گل او گلاب دي
په دواړو سترگو په انتظار کښے
په باغ وراغ کښے لاله سیراب دي
هم دَ رباب دي هم دَ شراب دي

سرے په مثل دَ ګبینهٔ دے
خوا ږهٔ چه نهٔ وی په ګبینهٔ کښے
شرم په ده کښے لکه خواږهٔ دے
قدر دَ ژاولے بے خوږ وخهٔ دے

سږ کال چه کال دَ رحمت تم دے
پس له شپږ میاشتو چه چنګا بن شروع شو
باران په هر چرته په غره په سم دے
په هره ورځے ترنیم ضیغم دے

سلخپلوان لږ دی یو دښمن بد دے
په بنهٔ سلوک سره پردی خپلیږی
چه ډیر دښنهٔ لری ځانے ئے لحد دے
چه خپل پردے کا کله بخرد دے

سکان دَ بدر له نوره جنګ لری
سرهٔ زرخهٔ نورخهٔ دی زرنیخ خهٔ نورخهٔ کَ
کونګټ دَ مښکو له بویه ننګ لری
خهٔ شوکهٔ بریښی دَ زرو رنګ لری

سخی ئے مهٔ ګڼره چه نغن ئے خوارنهٔ وی
کهٔ دانشمند وی تفسیر په یاد لولی
باتور ئے مهٔ بوله چه یئے پرهار نهٔ وی
چه ډیر ویل کا دے به هوښیار نهٔ وی

سخ دَ هغو دے چه بے خبر دی
خاوزګار په غم دے دَ خبردار و
بے غمه خوب کا په خوب وخور دی
چه په زړګونو فکرونو سر دی

شرم ئے نشته څاوے خوډار لری
فرق له سره له څارویو هومره دے
نهٔ هومره مهر په مور وپلار لری
چه شرم مهر په خپل مقدار لری

شونډے دِ نهٔ دی آبِ حیات دی
مخ دِ بهتر تر نسترن دَ باغ دے
زلفے دِ نهٔ دی مښک هبات دی
سنان سنان دِ بانړهٔ یکذات دی

شاهین کۀ پرلری سردارکۀ زر لری
مُهم به سرلری کام به دربر لری

سردارکۀ زرلری شاهین کۀ پرلری
کام به دربرلری مُهم به سر لری

شرم دےکۀ ننګ دےکۀ دارد سر دے
پښتانۀ واړه دَمغل بشوروا خوری

سمه م پرېښوه ځائےم تل غر دے
ماته ئے پاتے داشور وشر دے

شیطان هرګوره ښائسته روغ دے
بدرنګ په دا شوچه بد رسوا شو

چه بدرنګ بولی دا وے دروغ دے
پرے دریدلے دَ لعن توغ دے

شمع کۀ هرڅو سوز اوګداز لری
دا کارئے واړه ځاخوښ نۀ شو

ژاړی په اوښکو چهره طراز لری
چه خپله ژبه اوږده په راز لری

شاهان بل اور دی په هرڅۀ نغری
چه یو بخرے ځان ته پرے سړ دے

اعوان سکروټے دَ اور بخری
هوښیار به تل وی و اور ته ځری

ښځے دَ هیڅ په رګ ریشه نۀ دی
په خپل مقصود دی په غرض سوډ ګی

ځرګنده چرده وفا پیشه نۀ دی
په نوروچار وکښے دِ همیشه نۀ دی

ښځے له ځایه په عقل کمے دی
وفا ترے مۀ غواړه په یارئ ئے مۀ ویاړه

سمے به نۀ شی پیدا نا سمے دی
کۀ دِ محرمے کۀ نامحرمے دی

ښځے په اصل کږے نا سمے دی
شومتئے اور دے چه چرته ولګی

په عقل کمے په دین هم کمے دی
په دم پیرئ په دم آدمے دی

بنځو ته ډیرې بلا تعینې دی
چه بې ادبه بې نمازې لوئې وی
ښو ستر پوښې هومره مهينې دی
ورته نظر مکره که مخ نسرینې وی

ښځه به ترې څه غواړې هغه چه تل بدوی
د بل علاج وشی د خپل علاج نشی
هم په بازل بد وی هم په ساتل بدوی
چه دِ بد خواه شی تر بل نه خپل بدوی

ښځه خو هغه دی چه د چا په چرنه دی
ځان په ژوندینې د مړو په شمار کړه
که د وګړی په شور وشرنه دی
نیستی هستی ده څوک پرې خبرنه دی

ښځې طرارې ښځې مکارې دی
که هر څو يارې ښځې اغيارې دی
ښځې مکارې دی ښځې طرارې دی
ښځې اغيارې دی که هر څو يارې دی

ښځه خو هغه دی چه په هیڅ خبرنه دی
جُدا له خلقه په کُنج کښې اوسی
په غم په فکر د سیم وزرنه دی
څوک ئې چاکرنشته د چا چاکرنه دی

ښې ښې دلبرې د دین يارانې دی
په خوله ئې ښکل کړې زړه ئې ډیر ښه شی
په دا دُنيا کښې غمګسارانې دی
په دواړو شوندو شکر بارانې دی

ښيرې دِ واړه په ما دُعا لګی
که ته ئې وُلې په سکروټو
ښکنځل دِ واړه په ما حلوا لګی
واړه به ګل د لاله په ما لګی

ښې ښې څهرې شته په دا جهان کښې
که هر کښلی مخ نه تل ګورم
کمې ئې نشته په هر مکان کښې
بیا به ترې لاړ شم په ډیر اَرمان کښې

ښې ښې چين ختنړې پښتنې جنې
نن نغتې نهٔ شي تشې پښتنې
په شين شين خټې شين ژړنې
تشې پوښتنې نتنې شي ځنې

ښکاره په هرڅهٔ دَ چارې بند دے
ځنې سړي دي چه ږيره بريت لري
قدر له ښځې دَ مرد دوچند دے
جوړے له ښځې سره پيوند دے

شيکره چوړے نيسي زاڼړے شنقر نيسي
ولوڼے ميلمه ته سړے ساغر نيسي
شرمخ بيها ړ وهي مږے ايغر نيسي
مفلس ميلمه ته ساغر لاغر نيسي

ښځې ښهٔ خيزدي کهٔ په مخ کښلي وي
کهٔ دائے نهٔ وي زړ دِ په کور شي
له موړهٔ پلاره پاکے زوولے وي
چه نهٔ ليدلے نهٔ چاکتلے وي

ښائست دَ ښځے دَ مار يکسان دے
ښځه په ښړهٔ کښے خوځو بلا لري
ظاهرے مهٔ گوره باطن ئے وران دے
کهٔ مار په خولهٔ کښے دَ زهرو کان دے

ښهٔ ښهٔ ځوانان دي دَ ننگ يک دلي
ډير زر دولت وے باندِ خوړولے
حاضر په کار کښے سوارهٔ هم پلي
وړ ته بخښلي هرڅهٔ بخښلي

ښهٔ خوئ بد يږي بد خوئ ښهٔ کيږي
نافه دَ هوسۍ په بوئ خوشبوئ نشي
په صحبتونو کهٔ ځوک پوهيږي
حنظل شکر وَ سره خوږيږي

ښځه چه ډکه شي کهٔ کښيني مار را وړي
گل چه نهٔ رنگ لري نهٔ بوئ ښهٔ کاندي
مار ښهٔ نهٔ ځويه چه ناهموار راوړي
ښهٔ دا چه وُنه بوټے خاردار راوړي

بنهٔ مخ چه ووینې په زړهٔ سخ سخ وائي
کهٔ دَ خوشحال غوندِ مئین په مخ شي

بد مخ چه ووینې په زړهٔ چخ چخ وائي
تل به مخ مخ وائي تل به مخ مخ وائي

ښځې به نهٔ شي دَ هیچا یارې
زړهٔ دننه په اندرون کښې

په خولهٔ دې یارې په زړهٔ اغیارې
دَ پاسه کښلې ښائسته مارې

صحبت له جنسه لکه ګلاب دې
کَس به ناکَس شي ناکَس به کَس شي

دَ ناجنسانو صحبت عذاب دې
طوطي طوطي دې غراب دې

صبي کهٔ هرڅو مُرسل نبي وي
یعقوبؑ چه ړوند شو یوسف هیڅ نهٔ شو

دَ پلار دَ مینې بیا اجنبي وي
په غم کښې ستړي نهٔ چه صبي وي

عقل دَ مزکې یا دَ آسمان دې
عقل دَ مزکې دَ مور دَ نسه دې

چه دواړه نهٔ لري هغه حیوان دې
چه دَ آسمان دې دَ دبستان دې

عشقه ستا واړه چارې اوترې دي
ترمرګه پورې سره نظر لري

چه زوروَر نې واړه بهترې دي
خُلمې بازونه جونه کوترې دي

عشق چه په خپلو موجونو سرشي
بلائې لرې هرڅهٔ چه مخ ورې

ترا باسینده لا زوَرور شي
چه کانړي بوتي په مخه ورشي

عادت چه بد لري ځان نې زړلې دې
عادت په پند نهٔ ځي عادت په بند نهٔ ځي

عادت چه بد لري سرېٔ خوړلې دې
عادت له سره سره ترلې دې

عجب کار و نه صبا بیګاه شي
زړونه دَ خلقو دَ خدائے په لاس ګنړه

نیکخواه بدخواه شي بدخواه نیکخواه شي
تبدیل دَ خلقو په هره ساه شي

عزت دَ زړه ډیر دے عزیز دی
کۀ هر څو بنۀ دی په حقیقت کښې

هغه چه زړه ساتي صاحب تمیز دی
زړه عاقلانو وته ناڅیز دی

عالم پرے وُنے تلے کپ ګوری
نظر دا نۀ کا چه افلاکونه

دورونه خدائے کا نۀ ئے دا ستوری
دَ چا دپاره سره تل بښوری

عاشق په وخت دَ وصال سلطان وی
چه یافت ئے څومره خوښي ئے هومره

هالۀ ئے مۀ وینے چه پرے هجران وی
څو چه کالے وی هسے ئے زیان وی

عاشق خپل کار کا شرم بیغور څۀ دے
زنبق ته ګوره سوسن ته ګوره

چه پرے مئین شوے دلبر سپین تور څۀ دے
ګرۀ ورۀ څۀ نور څۀ دی نمک څۀ نور څۀ دے

عفو کرم دِ په هر چا عام نۀ وی
کَس چه خطا وکا باندِ عطا بویه

په کس ناکس دِ دا کار مدام نۀ وی
ناکس لا بد شي چه انتقام نۀ وی

عرب هم ډیر دی عجم هم ډیر دی
نور ګښلي واړه غټ واړه ستوری

شماره ئے نشته تر حساب تیر دی
تا غوندِ کله دَ نمر په څیر دی

عیب ئے مۀ ګوره چه ډیر هُنر لری
سر چه دَ تاج دَ خولئ لائق وی

څۀ شو په مخ کۀ تیر سرے نمر لری
څۀ شو کۀ څۀ خو بخے دَ سر لری

عام دِ دَ خاصو په مجالس نهٔ شي
دَ ناسو کار دَ نسناسو مهٔ غواړه
يار دَ فرښتو سره پيرے ناغس نهٔ شي
دَ پيازو بوټے ګل دَ نرګس نهٔ شي

عمر کهٔ ډير شي بيا دِ هفتاد شي
چه دَ ځوانئ ساعت راياد شي
تردا دپاسه کله رماد شي
په هرزمان م پسے فرياد شي

غم دَ ګناه مهٔ کړه ګناه قربت دے
کهٔ سل ناسازے په نار معشوق کا
ګناه هغه بد دے چه قطيعت دے
څهٔ شو په کارئ ستر عفت دے

غليم هوښيار ښهٔ دے کهٔ مرګ دِ غواړي
هوښيار چه نهٔ دے غليم ئے مهٔ ګڼړه
ډير به ترجنګه په آشتي وياړي
پريږده پخپله به خپل ځان وژاړي

غم کهٔ په زړهٔ کښے دَ دلارام لري
چه يار ئے څهٔ وي هسے دَ دے وي
ګرم دے کهٔ فکر دَ ننګ ونام لري
کهٔ دين دَ کفر کهٔ دَ اسلام لري

غابن چه دِ وشوري مرئې دِ غل شي
چه آواره شي هاله ترے خلاص شي
بدخويه ښځه سر دِ ئے ګل شي
ګڼړه وتاته واړه خلل شي

غم به دَ دين خوري چه مومنان دي
چه دين ئے نهٔ وي کهٔ په تخت کښيني
دا نورغمونه واړه آسان دي
ښادي ئے غم ده کهٔ بادشاهان دي

غشے چه کوږ وي يا عيب ژن وي
يا علاج وکړه چه باوري شي
ځائے ئے په کيش کښے کله سودمن وي
يا دِ ئے فکر دَ دور کودن وي

غښے چه راشی په واړه تن لګی
بدهٔ خبره ترغشی بده ده
ګوره رسا لګی کهٔ برسیون لګی
دَ ژبې په سربانډِ دَ مرد وزن لګی

غښے دَ ټینګے لیندے خطا شی
بنه تیره تُوره په لاس کښے واوړی
دَ نرمے سستے ګذار رسا شی
دَ ښځے تُورے ګذار بلا شی

غشی چه ډیر وُولی بنهٔ تیرانداز شی
کارد محنت دے دَ مشقت دے
چه مشق دَ خط کړی وخط ته ساز شی
سړو رو په هرهر هُنر ممتاز شی

غښے چه سم وی ګذار پرے بنهٔ کیږی
ربښتیا په هرځهٔ کښےلکه سرهٔ زر دی
چه بنهٔ سم نهٔ وی ګذار پرے نهٔ کیږی
په لاس کښے زرلری په زرهرځهٔ کیږی

غوټئ دَ باغ دی تل تل غوړیږی
خدائے دِ تازه لری دَ باغ ګلونه
پرے وُښے سترګے دَ بلبل مړیږی
چه وړته سترګے دَ بلبل غړیږی

فرښتے له نُوره پیرے له ناره دے
ځکه دا هسے ډیرے فتنے لری
کهٔ پرےخبرئے سړے له چاره دے
له بادوخاکه له آب وناره دے

فصل په فصل کندو ډکیږی
چه دا آسمان شته په سرخریږی
لکه ډکیږی هسے تشیږی
یوفصل دړومی بل رارسیږی

فلک یو سترګے کهنه تیر ګردے
ژیات په دا دورچه رغوی سۓ
دَدهٔ په هرهر لرګی نظر دے
دَ سراغزیو په غشوسر دے

فرزند هغه دے چه متقي وي — نهٔ بدګمانه بدخوئي شقي وي
خبرچه نهٔ وي دَ خدائے له حقه — دا نورُ حقونه پرېے ناحقي وي

فرزند يو پېروکے دَ پلار له ځانه دے — دَ پلار دَغوښو دَ استخوانه دے
دَ پلار په خوښ وچه پروا دار نهٔ وي — له پلاره نهٔ دے ګوښه له ځانه دے

فرزند چه وُوزي دَ پلار له رايه — ښادي دې ګومه ده بدبخت ته وايه
دا نه کهٔ وُوزي دَ پلار له حُکمه — خووار به مومي بدي له خدايه

فرزند هغه دے چه شرمناک وي — له بدو چارو په زړهٔ کښې پاک وي
چه شرم نهٔ لري خبره نهٔ مني — چه لا هلک وي زر دِ هلاک وي

فرزند چه عاق وي کهٔ تهٔ ئے وينے — بدے او بهٔ دي مردارے وينے
مينے دَ پاکو پاکان پيدا کا — ناپاک پيدا کا ناپاکے مينے

فرق دَ سړيو سره بسيار وي — سړے هغه دے چه څهٔ هوښيار وي
چه څهٔ ترے تيروي څهٔ ئے ليدلي وي — علم ادب لري په صحبت تيار وي

فتنے دَ ښځو هرګوره ډيرے دي — په شيطانئ ترشيطانه تيرے دي
لکه لټکه هسے ټکي لري — زهر په خوا کښې کُښلے برسيرے دي

فرزند کهٔ هرڅو دَ پلار عاصي شي — چه پلار ته پرېوزي بيا په خلاصي شي
خدائے په بنده بانډِ لا ډيرمئين دے — له هرګناهه په توبه خلاصي شي

فرزند کۀ ښۀ شی دَ سترگو نُور شی
فرزند کۀ بد شی غاښ دِ دنغُوړ شی
دَ سترگو نُور شی دَ زړۀ سرور شی
غاښ چه رنغُوړ شی نور دَ انبور شی

فکر م وکړ چه دا انسان دی
څُنے سړی دی په خوئ خصلت کښے
څُنے فرښتے دی څُنے شیطان دی
څُنے بے شکه لکه ددان دی

فانی دی واړۀ دا نوړے مینے
خبر کۀ نۀ شوے په باقی مینه
یوه باقی ده کۀ تۀ ئے وینے
ژاړه کۀ ژاړے په اوښکے وینے

قلبه روپیه ښانُسته روغه دی
هیڅوک دَ خپلو شوبو بد نۀ وائی
خو چه سوراخه شی نور بے فروغه وی
صفت دَ هر چا له خپله دوغه وی

قاضی په وخت دَ قضا په یاد شی
طبیب په وخت دَ دوا په یاد شی
غازی په وخت دَ غزا په یاد شی
زاهد په وخت دَ دُعا په یاد شی

قوت م لږ شو نفس م لنډ دے
منزل م اُوږد دے کۀ روغ ترے وُرسم
وتے ترے نۀ شم دَ سریښو ډنډ دے
په سر م ایښے دَ سریښو پنډ دے

قام ته م کله لوئی ښکاره وی
لاس م نیولی وی په دواړو غوږو
په وړه وچا رو کښے آواره وی
ترے توبه توبه چه هیڅکاره وی

قابل هغه دے چه درست طلا شی
نۀ ئے زکوٰة وی نۀ ئے قربان وی
کۀ زر و سیمه په استغنا شی
هسے ترے دروُمه لکه چه راشی

قرآن چه لوست شي په هغه کور کښې
که ئې ګناه وي هسې به سوزي
غم به ئې نۀ وي په سپین په تور کښې
لکه خزله سوزي په اور کښې

قرار په دا لرم حال مې عیان دے
نۀ مې ژړکوټه شته نۀ سرسایه لرم
نوم مې د خان دے کار مې بل شان دے
نۀ مې اختر شته نۀ مې قربان دے

قابل که نۀ وي دولت که بیامومي
باور په بخت مکړه باور په تخت مکړه
لکه ئې بیامومي هسې ترې بیا درومي
آسمان ئې ونغاړي که شاهنشاه دروي

قربان تر خاصو چه خاص الخاص دي
که ډیر غمونه ورباندې راشي
په ژړه ئې له نور د فکرونو خلاص دي
تسلیم قضا ته په ډیر اخلاص دي

که څوک په خیر څیر وئیل ویرېږي
هوښیار به واړۀ په دا پوهېږي
خوشحال نۀ ویره کا نۀ شرمېږي
چه کا ښۀ زېږي کا بدۀ لوئېږي

که هغه یار مې راضي په مرګ دے
غشے دې بښۀ په سوهان تېرۀ کا
دا دے نیولے مې ورته تخرګ دے
چیرے به بند شي توبرے ئې بغرګ دے

کله یار غواړے کله یار درشي
آسمان په ډول ډول پیرے کا
کله کار غواړے کله کار درشي
خوشحاله ګوره ګوندې وار درشي

که مې په ډیره ژړا لیمۀ وُوزي
ګلګونے اوښکے ساړۀ آهونه
یار مې ناترس دے په دا ئې څۀ وُوزي
څۀ مې له سترګو څۀ مې له زړۀ وُوزي

کۀ پیر والا شې په پارسایئ کښې
سیال دِ خوک نۀ وی په ملایئ کښې
غافل هیڅ مۀ شه دَ نفس له مکره
بلا پرې وزی په آشنایئ کښې

ژاته کۀ غور کړې یو نصیحت دے
نۀ دِ بدخواه یم نۀ خدیعت دے
باس دَ فکرونو په زړۀ هیڅ مۀ بړده
هغه به موے چه دِ قسمت دے

کۀ زړۀ خوک تینګ کاچه نے قضا نۀ وی
کۀ تل جنګونه کا مرګ ئے روانۀ وی
قضاچه ورشی بلا پرے سازه شی
کۀ په ملکونو چیرے بلا نۀ وی

کوم دے چه واړه خوبئ دَګل لری
خمار دِ مل شته خارونه ګل لری
یار کۀ نور بښۀ یو خوئ مۀ کوره
اکثر کۀ ګورے حکم دَ کُل لری

کۀ بد ویونے بد لمسونے ئے
په ځان بخپله اور لګونے ئے
کۀ نیت دِ سوغ دے اندوه هیڅ مکره
جهان کۀ غم شی تۀ بښادی کړونے ئے

کۀ خوک دِ وُلید په استکبار کښې
په قول فعل په کار وبار کښې
په لار کۀ درشی سلام ئے مۀ له
پاتے چه پل بږدے دَ دۀ په لار کښې

کۀ بخت م یار شی یار م به یار شی
بوسه به راکا را به کنار شی
چه م نیکخواه دی زړۀ به ئے بښۀ شی
چه م بدخواه دی هغه به خوار شی

کۀ تۀ په قدر دَ ځان خبر ئے
تۀ سرتر پایه واړه سرۀ زر ئے
زر دِ بخپله ترمس بستر کړۀ
چه ناسوتی ئے په بدو سر ئے

کهٔ رنګ دِ سپین ګَ کهٔ رنګ دِ تور دے
بوئ په نافه کښې وینې په قدر کا

په داخهٔ نهٔ شی مطلب خهٔ نور دے
شمشاد بے بویه دَ چند نرِ پیغور دے

کریم هغه دے چه خوش معاش وی
چه ورکا خوښ شی چه ډیر ورکړه لږ ګڼړی

هم خطا پوش وی هم خطا پاش وی
باندِ دَ هرچا شاباش شاباش وی

مرګ دَ لونړو دشوار فرقت دے
چه کورے لوئے وی شرشورے لوئے وی

ژوندون دَ دویو هم یو مصیبت دے
چه کورے کم وی یو لوئے نعمت دے

کهٔ بادشاهی غواړے کارئے آسان دے
لښکر چه وشو طالع دِ ملے شوے

تسخیر دَ زړونو خُلق دَ احسان دے
داد او دهش کړه خپل دِ جهان دے

کړے په رنګ دَ طوطا نمود دے
اصل پیدا کړه هُنر خصلت راوړه

په رنګ مدار نهٔ دے هُنر مقصود دے
چه اصل نهٔ لری هغه مردود دے

کهٔ نور خهٔ نهٔ وی سړے چه زور شی
خُوانان چه نهٔ منی دَ زړو بد کا

دَ کنګا شونو په کار کښې جوړ شی
دَ بد خواهانو زړهٔ به پرے سور شی

کهٔ ډکه بنځه کښینی یو دَد راوړی
دا خُلئے حیرت دے څوک به خهٔ دم وهی

بهتر تر دا دے چه بد ولد راوړی
بدان چه بنهٔ سړی وړی نیکا چه بد راوړی

کا بنړهٔ کارونه ناپوهه ته سم وی
فرق دَ هوښیار دَ ناپوهه په دا دُشهٔ

بنهٔ سم کارونه ناپوهه ته غم وی
په دا خبره به خبر اعلم وی

کۀ سخاوت دے کۀ شجاعت دے
زمونږ په کور کښې ځانې خصلت دے
چه دا ئے نۀ وی له مونږ ئے مۀ ګڼړه
ګوره ځان کښې ئے یوځۀ علت دے

کۀ په رښتیا کښې دَ زړو تله شي
تۀ به په قدر په قیمت تر تله شي
خوبي دِ هومره ده په خولۀ کښې ژبے
خوله دې وغوهومره ساتله شي

ګنج دَ خوانئ تر چل د پنج دے
بهتر دَ سیم و زر تر ګنج دے
ځوان په افلاس کښې دَ خوانئ خوښ وی
زوړ کۀ بادشاه وی زړۀ ئے تر رنج دے

ګناه کۀ هر څو دَ سرې ډیر شي
په شمار دَ ونو تر پاڼو تیر شي
نومید دِ نۀ شي دَ خدائے له فضله
ګوندِ دَ فضل په ډکه ویر شي

کۀ بد ئے بنۀ به شے په بنۀ خصلت کښې
کۀ کم ئے لوئے به شے په لوئے همت کښې
وفا له هرچا کړه جفا له هرچا وړه
دین او دُنیا غواړې په بنۀ صحبت کښې

ګل دی وتیل دی دواړه آوان لری
چه وخت ئے تیر شي افسوس ارمان لری
چه کار دَ نن ورځې پرېږدی صبا ته
هوښیار به نۀ وی داخوئ نادان لری

کښلی هغه ده صفت ئے ښائی
په هر هر ځائے ئے وکړے ستائی
هغه دَ کښلیو په شماره نۀ ده
چه دَ کور د مه ئے ستاینه وائی

کۀ خولۀ م پټه پرېږدے هیڅ نۀ ئے
کۀ باز دِ بند شي وایه چه څۀ ئے
په هره ساه شکر وُکاږه
چه تند رستی لرې هم هومره بنۀ ئے

کهٔ په ګناه کښې صبا بېګاه وی
کهٔ هيڅ ګناه نهٔ کا په غفلت کښې اوسی

ګناه ئې نشته چه څوک آګاه وی
هم دا غفلت دَ غافل ګناه وی

کنګاش په مثل دَ سودا کار دے
اهمال پرے نهٔ بويه سودا سودمنه ده

کهٔ په سودا کښې فائده دينار دے
چه پرے اهمال کا کله هوښيار دے

کهٔ دَ نبا تو حلوا پخه شی
نور دَ سرېيو له کاره وُوځی

په ناګهانه په سپی جوته شی
جوته دَ سپيو په سپی خوره شی

کهٔ پرے پوهيږے دا کار څرګند دے
په دا خبره کار دَ نادان نشته

پند دَ سړی دے سړے دَ پند دے
پرے به پوهيږی چه دانشمند دے

کهٔ يار ځما دے درست به ځما شی
نوره به وزګار کا له غيره فکره

سستی به پرېږدی چست به ځما شی
په شپه په ورځ به په لوست ځما شی

کهٔ مېندے لنګے دَ آفريدو دی
دَ دين په کار کښې لهٔ آراسته دے

دويو دَ تُورے تُورے دَ ديو دی
عزت دَ خيلو هم دَ پرديو دی

کهٔ ژاړے ژاړه په ژړا خهٔ شی
هغه چه لاړل له دے جهانه

کهٔ په ژړا دِ ليمهٔ ړاندهٔ شی
کهٔ ته باور کړے بيا رته رانهٔ شی

ګندګی چه پروت وی ګونګټ پرے ګرځی
دَ دُنيا خلق اکثر ګونګټ دی

چه نهٔ وی پاسی ځنے وورزی
خوچه ځهٔ مومی درباندِ غورزی

کفر په بخره دَ کافرانو دے
چه هیڅ په کفر په اسلام خبرنهٔ دی
اسلام په بخره دَ مومنانو دے
عشق هم په بخره دَ عاشقانو دے

کهٔ ښے ښے جُونه کهٔ لباسونه دی
خوشحاله زوړ شوے اوس دا هوس مکړه
کهٔ ښهٔ بازونه کهٔ ښهٔ آسونه دی
دَ ښو ځوانانو دا هوسونه دی

گلزارته راغله گلونه چُونړی
چه گورته دروړمی له گلستانه
ترمخ ئے نهٔ دی لاله مخ رونړی
گل ئے لمن شی لاله لستونړی

کهٔ ئے له حاله خوشحال پوښتیٔ
کوړے پښتنیٔ به درسے نهٔ شی
ښځے همه دی کوړے پښتنیٔ
کهٔ په هُنر کښے نامے پښتنیٔ

کهٔ دِ دَ یار په یارئ زړهٔ وی
قدیم بے مثله دے عیب ئے نشته
دَ یار به هرڅهٔ وتاته ښهٔ وی
حادث به هیچرے بے عیبه نهٔ وی

کښلی کهٔ ډیردی په قندهار کښے
لکه دا کښلی دَ پیښور دی
یا په کشمیر کښے یا په فرخار کښے
هسے به نهٔ وی په هیڅ دیار کښے

گل شوے دَ خوړے دَ ښنړ پلوسے
کشت دَ گلونو ښکار دَ بازونو کړه
خوشحاله ولے بے گشته اوسے
چه گورته ډیرے خوښئ یوسے

کهٔ څوک نیکان دی کهٔ څوک بدان دی
مهٔ ئے ستائنه کړه مهٔ ئے غندنه
په دا دُنیا کښے چه په هرشان دی
نهٔ به ئے څهٔ کړے چه دَ خپل ځان دی

کهٔ یار خمانځ سکه دُرد دَ آشام به شي
زهٔ اوس قلاش یم رندیم او باش یم

کهٔ صاف صوفي ځې په خپل فرجام به شي
راسره مهٔ کښینه ګنړه بدنام به شي

ګران تر ایمان دے کهٔ ته ئې وینے
سل کبیره کړے ایمان په ځائے وي

کار دَ ښے مینے جګر کا وینے
په صغیره ځي دا ښے ښے مینے

کهٔ مړنے ځې مغفر شګاف سځې
تر دا دواړه بهتر دا کار دے

دَ بادشاهانو دَ لوئې مصاف ځې
په عهد قول کهٔ سینه صاف ځې

کهٔ دَ مردانو په دین آئین ځې
کهٔ نهٔ دِ تخت شته نهٔ دِ افسر شته

نهٔ بند په سرهٔ ځې نهٔ بند په سپین ځې
قیصر دَ روم ځې فغفور دَ چین ځې

کهٔ مخنوړن دي خو دروغژن دي
په صف یم مهٔ کړه دَ دروغژنو

رښتیني کله په مخ خیرن دي
کهٔ دَ ګنجونو دولت خښتن دي

کهٔ ناسپاس ځې ناسَ نسناس ځې
کهٔ حق شناس ځې هاله ته ناس ځې

هاله تهٔ ناس ځې کهٔ ناسپاس ځې
هاله تهٔ ناس ځې کهٔ حق شناس ځې

کهٔ دِ نیت ساز دے عمل دِ ساز دے
مدار په نیت راغے مراد په نیت راغے

کهٔ دِ روژے دي کهٔ دِ نماز دے
دین او دُنیا لره په نیت کښے راز دے

ګیدړے زړهٔ دے وهم وسواس لري
هغه مزرے نهٔ دے هغه ګیدړ دے

مزرے زړور دے کله هراس لري
په کاروبار کښے چه زړهٔ کوز پاس لري

که پلار که خوېه که دور که یار دے — په دا دُنیا کښے سره یو کار دے
که سودے نهٔ رسی په دا دُنیا کښے — ژوندون م مهٔ وه عمر ئے خوار دے

که هیڅ نهٔ وُو په ذوالفقار کښے — دَ روم دَ جیش په کاروبار کښے
چه تیغ برش کا فتنے جنبش کا — و ئیل هیڅ نهٔ شی په هسے کار کښے

که یاری دواړه وبله راځے شی — دروی له ژبے په زړهٔ کښے ځائے شی
چه دا باریکے معنیٰ ئے بیا مونده — په هغه کس دِ رحمت دَ خدائے شی

که زړهٔ سخی لری چه مال ئے نهٔ وی — په ځان م ولیدهٔ څهٔ حال ئے نهٔ وی
که باز دِ واړه هُنر دَ ښکار لری — ښکاربه په څهٔ کا چه بال ئے نهٔ وی

که سترگے نهٔ لرم چه هسے گوری — بے دَ عینکو دَ کتاب توری
پیرئ تتے کړے شکر وُکاږم — چه لا پرے وینم دَ آسمان ستوری

که بادئے یوسی په هوا خس خس دے — که شکرخورشی مگس مگس دے
که ئے دولت وشی که دانشمند وی — دائے هیڅ مهٔ گوره ناکس ناکس دے

که سحر دَ سترگو غمزے ئے دا دی — لکه چه ستا دی بلادی دا دی
خوږے خبرے دِ خوږے شکرے شوے — مشک و گلاب دِ پکښے ادا دی

گل دَ گلابو نیست و موجود شی — لکه موجود دی هسے نابود شی
که بوئ ئے پاتے شی په آبگینه کښے — په هغه بوئ ئے هرڅوک خوشنود شی

کنا س کۀ واغوندی وریښمینې ږنجې
کۀ ئې د مښکو په نافه کښې واچوې

بل څۀ به نۀ شی په تنخې پنجې
خپل بوئ ښکاره کا په هر ځائې هنجې

کۀ بادشاهان دی کۀ درویشان دی
کۀ په زرګونو کالونو پاتې

کۀ په دا مینځ کښې ښۀ ښۀ ځوانان دی
عاقبت واړه د کورستان دی

کبلې چه پریوزی مور ورته وُدَری
کۀ پرورش دے د کبلی کۀ څله ده

په دوه درے میاشتې په پیئو ولری
خوک ئې په ښاره کښې د هوسیو کړی

کۀ روړ ناکس دے په خوئ کښې کس دے
د مشر ږوربه آب په ځائې لری

داخوئ به دے لری ورلره بس دے
نازبه د کشر وری خوئې دسترس دے

کارئې ښکاره شی ونه چه برواخلی
فرزند هم هسې د وُنې کار لری

یاخوږ ثمر واخلی یا ترېخ ثمر واخلی
یا ښۀ هُنر واخلی یا بدهُنر واخلی

کۀ سر د ښځې سپینې وړئ شی
سړئ نۀ دی لکه پیریه دی

زړۀ ئې و غو ته هره کړئ شی
چه غین پرے ولاړ شی هاله سړی شی

کۀ نادانان دی کۀ هوښیاران دی
خوانۀ ترخۀ ئې واړه په کار کنړه

کمان دا مکړه چه بیکاران دی
چه پیدا شوی په دا باران دی

کمال د کفر ناقص دین ښۀ دے
چه کله داشی کله هغه شی

یا درست کمان ښۀ دے یا درست یقین ښۀ دے
دانا ته کله مذبذبین ښۀ دے

کهٔ لوئ نعمت دے دَ دوغ صورت کې
چه دائ نهٔ وی مزه ئے مهٔ غواړے
کهٔ لوئ دولت دے دَ نیکونیت دے
کهٔ بادشاهی ده کهٔ سلطنت دے

که ځان دِ وپیژاندهٔ هاله سړے ئے
اول هم هیڅ وے بیا به هم هیڅ شے
کنه وماته دَ خرهٔ خرے ئے
کهٔ سړوغ وی مات شی هغه کړے ئے

ګریوان ئے تل تل له کله عاس لری
چه ئے ځما غوندِ دلبره بیاموندہ
مژګان ئے تل تل کشته بسیار لری
هغه له نوسرو سره څهٔ کار لری

ګوړه پرے غبرګوه شپیلئ څهٔ وائ
سینه ئے ګوسه خوځایه سوے ده
بیلتون پرے ورغے هرکوره بنهٔ وائ
زار دَ فراق کا نور څهٔ هیڅ نهٔ وائ

کهٔ سُود دے سود دَ سحر سجود دے
نهٔ به تل ته وے نهٔ به دِ سر وی
بهتر تر درستے دُنیا دا سُود دے
سجود له سره سره موجود دے

کدوچه هسے په منډه دا ننګے
دا کار دِ بد نهٔ دے بلادِ دا شوه
پاسه دِ لاس شی په بهار ښانګے
په ساسهٔ وچ شے حبطه زانګے

کهٔ ډیر هوښیار ئے یا مړنے ئے
مدار په بخت دے چه بخت مددنهٔ کا
په خوشخوئ کښے شکرګئے ئے
هم هیڅکاره ئے هم لیونے ئے

کهٔ ورته وائے کله پوهیږی
دَ پلاس په پندئے وتنه نهٔ وی
قرآن کهٔ لولی کله ګروهیږی
بدان په خپلو بدو ستوهیږی

کهٔ لعل و دُر او یاقوت الماس دی
چه ناس دِ نهٔ وی په سیند کښې پریوزه
واهره دا ناس دی واړه داناس دی
کهٔ جواهر دِ بیرون تر قیاس دی

کهٔ شیر مردان دی هغه ځوانان دی
تل خوش له دیو یاران دوستان دی
چه دوست دښمن سره په خوئ شادان دی
تل ترې په طمع لا دښمنان دی

کهٔ دَ غند نې کهٔ دَ صفت ئې
غند نه هومره چه دَ دوزخ ئې
کمې دِ نشته هسې صورت ئې
صفت دِ هومره چه دَ جنت ئې

کهٔ زړهٔ م دا دے غلیم خُما دے
مئین په چا دے دَ چا آشنا دے
غلیم خُما دے کهٔ زړهٔ م دا دے
دَ چا آشنا دے مئین په چا دے

کهٔ څوک ایغر دے کهٔ څوک اخته دے
څوک سره میښې شیر و شکر کړه
هر څوک په خپلې چارې اخته دے
څوک سره کوره اور او پخته دے

کهٔ ډیر دولت لرے ډیرې مستئ
کهٔ پرې پوهیږے څو تندرستی ده
دا واهره هیڅ دی بې تندرستئ
چه حلاوت لری ستا دَ هستئ

کهٔ هر څو بنهٔ شی بیا دِ بادشاه شی
بیا به تنها دړومی دَ گور و خونې ته
لښکر دولت لری صاحب دَ جاه شی
په خپل عمل به هالهٔ اگاه شی

کهٔ تورهاتی دے کهٔ سُور اسد دے
غوښې هړو نهٔ ئې دَ خلقو وخوړل
نور څهٔ نې مهٔ گڼړه دَ گور لحد دے
پرې نهٔ مړیږی هر گوره بد دے

کۀ کږم کۀ نۀ کږم دواړه بلا دی
کۀ خورم کۀ نۀ خورم دواړه بلا دی
کۀ وږم کۀ نۀ وږم دواړه بلا دی
کۀ مړم کۀ نۀ مړم دواړه بلا دی

کۀ سوختګان دی کۀ آموختګان دی
خدائے ئے روزی کړه بنا دی ئے خپله ده
دَ زنګ دَ زړونو افروختګان دی
چه دَ غمونو اندوختګان دی

کۀ دِ راحت دے کۀ دِ محنت دے
کۀ خاندے خاندہ کۀ ژاړے کۀ ژاړه
کۀ دِ صحت دے کۀ دِ زحمت دے
دا به دِ تل وی څو دِ صورت دے

ګلزار ته زاغله ختے ګلګونے
پرخه پرے نۀ ده پرته له شرمه
دَ مخ شغلے ئے تر نمر افزونے
ترهر هر ګل شوے خولے بیرونے

کۀ دَ جهانو څۀ برکت وے
دَ هندوستان سره دَ هیچا کار نۀ وُو
یائے څۀ عقل څۀ مصلحت وے
ژغ هم دَ دیو دَ سلطنت وے

کۀ دَ غلیم سره جنګ او مصاف بنۀ دے
ماچه نظر وکړو چه تجربه وشوه
کۀ مرد ئے زړۀ خوور سره صفا بنۀ دے
دَ هرے چارے عدل انصاف بنۀ دے

کا نړی یاقوت دی ګیا کیمیا دی
فرق دَ سړیو تر مینځ بیشماره دے
شناخت هغه لری چه څوک بینا دی
ځنے سړی دی ځنے چارپا دی

کۀ فهم او کړے ستړګو ته خس بس دے
ایمان ډیر بنۀ دے هم ډیر قوت لری
نعمت چه درکا ورته مګس بس دے
زوال ئے مۀ وه ورته وسوس بس دے

گل ئے له مخه دَ خوبئ اغوڅ غواړی
ډیرئے په طور دَ شیخ صنعان کړۀ

خوارۀ نے شهد په [illegible] ی
سترگے نے ښۀ ښۀ ښیځانے لا [illegible]

کۀ آدم زاد دی په ښۀ صورت دی
ښےئے ښے سپی دی بدے ئے بدے

ښځے د سپیو په طبیعت دی
لا ترے بترے په خوئ خصلت دی

لکه گټنه دَ مال هُنر لری
لکه بازنه دَ مال هُنر لری

هسے خوړنه د مال هُنر لری
هسے ساتنه د مال هُنر لری

لکه پیری یوه سړی
هارئے په غاړه د سرو گلو نو

په مخ مهوشه عنبر خړئ
بخت کړه له ماسوه غاړه غړئ

لیلی مجنون ته وے په بیابان تښے
وےنے ماخۀ پوښتے مگر تانۀ زده

وے له خلقه ئے هسے گښے
تا یم له خلقو گوښے پریښے

لکه په ونو باندِ خزان راشی
خزان د ونو خوبی تاراج کا

پیری هم هسے په خپل آوان راشی
پیری هم هسے په زیان دَځان راشی

له طبیبانو عالم دوا غواړی
خدایه د هیچا محتاج ئے مۀ کړه

له درویشانو خلق دُعا غواړی
هرڅوک له نورو خوشحال له تا غواړی

لوگے کۀ هرڅو دَ اور فرزند دے
چه نورئے نشته او ربه بالۀ شی؟

کارئے وهرچا و ته څرگند دے
ځۀ شو کۀ پورته په باد بلند دے

له شیره شیر زیږی له ګرګه ګرګ زیږی
هرڅوک خپل اصل ته رجوع کا

له بازه بازوی له چرګه چرګ زیږی
خطاکۀ نۀ وی له بزګه بزګ زیږی

لوئی په خدائے ښائی یو ذوالجلال دے
دا نور خواستونه واړه حرام دی

خو ورته خواست کړے هومره حلال دے
کۀ لږ و ډیر دے وچا ته سوال دے

لعل له کانه په بدخشان کښے
په څګرخون خیژی دا دواړه توکه

لؤلؤ له بحره په لوئے عمان کښے
کۀ فکر وکړه سړے په ځان کښے

لکه کټوه په لمبو یشی
له چا به څۀ لړه مانړه په زړۀ لرم

خما دننه په زړۀ هغه شی
خوږ یم د خپلو ترکو په غشی

لاس کۀ م هرڅو په دُنیا ښخ دے
زۀ ئے میږۀ یم دُنیا م څکه ده

نه چه دولت م د غاړے فخ دے
زړۀ م په هرڅۀ ورباندِ یخ دے

لکه په تاکښے شته نشته په چا کښے
دریغه خوشحال خټکه دریغه

نۀ په کانونو نۀ په دریا کښے
چه تل به نۀ وے په دا دُنیا کښے

لږ که چه وتوری هالۀ ترے تیر شی
تر درس چه وُوځی علم حاصل کا

په ښکر هُنر وکړی هالۀ زهګیر شی
تر سرچه تیر شی سړے امیر شی

لکه کۀ هرڅو ترباز تیز پر دے
کوته کۀ هرڅو ترتازی ښۀ زغلی

په هره چار کښے د باز نفر دے
بیا خو په قدر ترتازی کمتر دے

لوئی په خدائے ښائی یو هسے لوئے به وی
دَ نور و پانړ و په شست و شوئے به وی

په ورځ دَ حشر چه گفتگوئے به وی
غم به دَ ځان نهٔ کا اُمتی جوئے به وی

لبان دِ نهٔ دی آبِ حیات دی
چاچه نوشلے هغه یو ښا ښکلے

آبِ حیات دی صفوت صفات دی
په هغه ښا ښکی دیدن دَ ذات دی

لکه چه ډیر دی نیک بخت عاقل وے
دیرش دی که څودی دریغه ارمان دے

بویه لوئی رم اوس یو په سل وے
په هومره څو یو کښې یو دود قابل وے

مه کړه قابل شه چه څوک قابل شی
قابل چه نهٔ وی دولت که بیا مومی

دَ بخت وستوریو ته مقابل شی
بقائے نهٔ وی حال ئے څهٔ بل شی

مه په هُنر کړه هنر پکار دے
فخر په زر مهٔ کړه په بنهٔ پدرمهٔ کړه

مور پلار به څهٔ کړے هُنر مور پلار دے
فخر په دا کړه هُنر دِ یار دے

مزرے خپل ژغ لری گیدړ خپل ژغ لری
گدائے دَ خپلے جونگړے غم کا

هر یو دَ خپلے جارے دغدغ لری
بادشاه دَ ملک دَ حشم یرغ لری

مردان هغه دی چه همت ناک دی
کار چه آغاز کا انجام ئے فرض گڼی

دَ ننگ په کار کښې چُست و چالاک دی
په زړهٔ هم پاک وی په خولهٔ هم پاک وی

ملوک چه عدل عقل کرم لری
چه دائے نهٔ وی دَ ځان غلیم دے

اندوه ئے کم وی له چا څهٔ غم لری
ځان به پخپله عالم ته گرم لری

مرد څو غیرت لری هومره بهتر دے
څو جنګیالے وی څو ننګیالے وی
څو صداقت لری هومره بهتر دے
څو سخاوت لری هومره بهتر دے

میړهٔ هغه دے چه صبرناک وی
چه دائے نهٔ وی په سرئے خاورے
دوراندیشی لری په لمن پاک وی
ګنده ئے عمر ګنده ئے ژواک وی

میلمه په تاؤ راغے په لاس کښے تیر بے
دا هم لاپریږده واس ته ګوره
اول ئے غوښت څوښتل اوس سپینے وریژے
کوری غوری غواړی اوریشے وریژے

موړهم هغه ګڼړه چه زړهٔ ئے موړوی
چه ډیر دولت لری چه طمع خواست کا
سترګے مړے لری کهٔ زوړ کهٔ ووړ وی
ډ ګدایئ وکار ته جوړ وی

مینه په هرچا چه ډ خځهٔ دپاره شی
چه حقانی وی مقصود هیڅ نهٔ لری
بقائے نهٔ وی زر کاره کاره شی
ډ هغے مینے به تل نندارہ شی

معشوقه کومه چه طربناکه وی
نهٔ دروغژنه نهٔ قهرژنه وی
ناز ونیاز لری په حسن پاکه وی
نهٔ بدخوراکه نهٔ بدپوشاکه وی

مګرچه کښل کا دا کاتبان دی
څنے مشکنړے کښی څنے کنجکے
واړه خوش خط کښے سره یکسان دی
ډ چا تردُرو حرفونه ګران دی

مُلا په علم په کتاب نازیږی
غازی ډ تورے په باب نازیږی
حاجی ډ حج په ثواب نازیږی
خوشحال په فضل دوهاب نازیږی

مهینه تُوره څورنګ تمام وړی
ځنې مخ وا ړوی نوغې ونهٔ کا

ځنې ئې کېده یا یوا ندام وړی
د هغو تو ړو ناحق څوک نام وړی

مومن هغه دے چه جوړ یقین لری
بار دَ هرچا وړی خپل بار په چا نهٔ ږدی

ویره له خدایه اندوه دَ دین لری
ښهٔ ئې کردار وی ښهٔ همنشین لری

مزری چه پېژکورے ترس دِ ترکم شی
واوړے وهلی اژدر خوړل نهٔ کا

چه درته غړنب وهی په ځان دِ غم شی
چه نمرئې تود کا هالهٔ ستم شی

مرد به غیور وی مرد به صبور وی
نامرد هغه دے په حقیقت کښې

هم به په عفو په کرم مشهور وی
چه دا خو توک ئې له دله دور وی

مردی دِ هیڅ ده که په زړهٔ شیرنهٔ ئې
ترسرچه تیرشې ویره هیڅ نهٔ وی

څهٔ خورشه که زړهٔ ور دېر نهٔ ئې
ویره دِ هومره ده چه ترسرتیرنهٔ ئې

مونږه طوطیان یُو په ښنړ راغلی
خوموقسمت وی پکښې به اوسو

ګلونه کوړو کښلی ښا غلی
بیا به ترے درومو زمونږ ونه دا غلی

مرګ وے هم رنځ وے هم ناتوانی وے
دَ ښو ښو جونو دَ دیدن دپاره

عمر په غم کښې په پریشانی وے
یا سل یا دوه سوه کاله ځوانی وے

میرهٔ دِ تُوره وسکړه وفا لری
نوړے پو ښتنې وسخنې مهٔ کړه

ښځه دِ حُسن شرم حیا لری
هرڅهٔ به ښهٔ لری هغه چه دا لری

مهٔ کړه نادانه دَ نهٔ کړو کار دے
خِرد کمزورے زبون لیدهٔ شی
داچه پرے خیژے غلښے دشوار دے
چه دِ پرے ایښے دا هومره بار دے

مزېرے په خیله ماته نظر لری
ګیدړچه ښکارکړه دَ شلانړو ملانړو
له بله دَده کله حذر لری
خوړی ئے له ترسه نظر لوبر لری

مقبول دَ خلقو په غم کښے ډوب ری
چه نیست ئے ځان کړله عیبه خلاص شول
مقبول چه نهٔ وی هرګوره خوب وی
چه ځان ئے هست کړ هغه معیوب وی

مینه چه تیره دَ سړی ترهډه شی
دَ هغے مینے زوال هرګز نهٔ وی
درومی دننه په ماغزهٔ کښے ګډه شی
دَ هډ دپاسه په ساعت ډډه شی

مومن هغه دے چه ترس دَخدائے لری
مؤمن دِ غم نهٔ کا دَ ګناهونو
چه ترس دَخدائے لری زړهٔ دِ په ځائے لری
چه ګناهونه دَ شیطان په رائے لری

ملک دَ کلی چه دَ چا سپک وی
تل چه په کور کښے میرمن نابوده وی
دَ کلی مال به ئے ښځے هلک خوری
پئ ئے پیشو خښتی غله ئے مرک دړی

منت دَخدائے ښهٔ دے نهٔ دَ وګړی
کهٔ مست سنډګان دَی باربه دَچانهٔ وړی
دَ ختکی نه دَ دَ یوهٔ زړی
غوا یه تر بار لانذِ پریږده چه زغړی

مونږه مزری یُو په ښکار راغلی
چه بخت ئے بد وی ښکارئے هم بد وی
دَ ښکار غمونو زړونه داغلی
ښهٔ ښهٔ کاروونه کا په بخت ښاغلی

مغل پښتون سره په پیچ وتاب دی
بنۀ بنۀ خوانان په پښتانۀ کښې
چه پښتانۀ گوره م خانه خراب دی
کۀ لاس ئے نۀ رسی خانه خراب دی

ملا هر گوره په خان مغرور ئے
زۀ دِ دننه په حال خبر یم
بحث جدل کړے په هرچا سور ئے
خما په پوهه یوتش تنبور ئے

نامرد به گرځی د پلار په نام پسے
دولت مخ خټ لری خټ ئے په نورو دی
نامرد به گرځی په خپل صمصام پسے
مخ د دولت دے په نیک فرجام پسے

تن بیا خپل بخت ته خما تسلیم دے
چه درد وغم کښې خما غلیم دے
خُوم به اوسم فال م د میم دے
راالوتلے د نصرت نسیم دے

نصرت هورے وی هورے چه شخوند وی
په وخت د پیښے لستونړی ډیر غرړی
دولت هورے وی چه کار پسند وی
په وخت د تُورے کۀ بنکاره مړوند شی

مردان هغه دی چه همت ناک دی
کۀ غم پرے راشی پروا د غم نۀ کا
په هره چار کښې چست وچالاک وی
خوارۀ له چا په زیست وژواک وی

نظر کۀ اوکړے اُوۀ آسمانه دی
اسرار ئے هیڅ موندلے نۀ دے
اُوۀ آسمانه دی اُوۀ جهانه دی
خبرے ډیرے په خوخوشانه دی

نۀ به په بیا رته خما خوانی راشی
یوځوئے م نشته ډیرش دی کۀ څو دی
نۀ به بیا دُورے شاهجهانی راشی
چه به په دۀ کښې خما خانی راشی

نفس و شیطان سره یو وجود دی
دواړه مردود دی په شریعت کښې

په دوه صورته سره نمود دی
چه دَ مردود منی هغه مردود دی

نن په نظر راغله یوه تړی
بله به نهٔ وی هسې دلبره

زړه ئې سیب وه شونډې تړی
نهٔ په خشکئ نهٔ په تړی

ناکس هغه دے چه اصل بد لری
دَ حق دارانو دحق پروا نهٔ کا

دَ نیکخواهانو نصیحت رد لری
آدم لیدهٔ شی خصلت دَ دَد لری

نوکر ژوندے نهٔ وی کارئے دَ مړهٔ وی
چه ورته حکم دَ خیل صاحب وی

خپل زړهٔ ئے نهٔ وی دَ صاحب په زړهٔ وی
کهٔ هر څو کړان وی هم ئے په وړهٔ وی

ناست په ګلزار کښې یار په کنار کښې
داحال چه زړهٔ لرم په خپل دیار کښې

باده ګردانه مطرب په کار کښې
بادشاه ئے نهٔ لری په هند وبار کښې

نن ډیر نیکخواه وی صبا بدخواه وی
زړونه په حکم دَ ک ... دی

نن ډیر ګمراه وی صبا په راه شی
قضا ته ګوری چه څوک آګاه شی

نهٔ به څما غوندې بل ننګیالے راشی
خټک لا پر بیړه به درست افغان کښې

نهٔ به څما غوندې بل جنګیالے راشی
عجب کهٔ هسې فرهنګیالے راشی

نهٔ ئے حساب شته نهٔ ئے څهٔ شمار دے
سړی به څهٔ وائے ماهی مرغونه

خلق دَ طمع له لاسه خوار دے
په دام چه بند شی دَ طمع کار دے

ناکس دِ وخوری دَ سترګو کسی
لعل ګوهر پریږدی له خپله لاسه
دا نادانان دِ وډیږی کسی
په لاس مشکنړے کنځلے نیسی

نے چه واهۀ شی واۓ عذاب دے
غیبت ترڼا نه تیرے یا دیړی
چه غیبتونه کړے مګر ثواب دے
نے منع شوے په کوم کتاب دے

نازچه دِ زۀ وهم چه یار خما ئے
غمه هیڅ مۀ درومه خماله ځانه
چه بد دِ بنۀ ګنړم خوراته واۓ
چه تۀ خما سره ځنړن آشنا ئے

نظر دَ هرچا په خپل بهبود دے
هر یو په زړمه دَخپل وجود دے
په زړۀ دَ هرچا خپل خپل مقصود دَے
هرخوک هغه دے چه خپل ئے سود دے

ښن م وځان ته دا نصیحت دے
اُمید چه پریکړے له غمه خلاص شے
اُمید په زړۀ کښے ګنده زحمت دے
دَ یاس په ملک کښے عجب راحت دے

ښن شپه م تلے له دِله زنګ دے
تمامه شپه ئے په سینه پروت وُم
دَ شاه په زلفوم وهلے چنګ دے
راپورے واړه دَ زعفرانو رنګ دے

نیاز دَبے نیاز و سره دَ کړو نۀ دے
طباخ کۀ خوړوی چه جوته شوی
دَ بے دردانو منت دَ وهو نۀ دے
کۀ مرے له لوږے هم دَخورونۀ دے

نومے پرے نۀ یښی فراق په کام کښے
دَخوښی جام م هسے نسکور شو
ستړے مرغۀ یم نښتے په دام کښے
چه ښاخکے یاتے نۀ شو په جام کښے

ناسته ولاړې دِ په خرخشې دی
په زړهٔ م واړه لکه مرهم لګی

ډېرې فتنې دِ په سترګو کښې دی
دَ تا ناسازې ترسازو ښې دی

واړه مستان دی چه مخ زیبا لری
باورئ هیڅ پې په وعده نهٔ بویه

دَ خپلو تورو سترګو صهبا لری
په خولهٔ به تل تل صبا صبا لری

وادهٔ خوک مهٔ کانړئ وادهٔ بلا دے
چه دَ عیال په زنځیر بندی شول

غصې ئې ډېرې غم ئې والا دے
ترهره بنده دا بند بالا دے

وجود په مثل دَ ګبینهٔ دے
خوارهٔ چه لاړ شی پاتې ئې ژاوله شی

ځوانی ئې څهٔ ده لکه خوارهٔ دے
قدر دَ ژاوُلې بې خوږو څهٔ دے

وائې دَ خوږ شاهتیر دِ ول لری
زهٔ هم پوهیږم دَ زلزلې ده

کوږ دے تنکے دے لنډ دے خلل لری
تکیه دا خونه دَ عز و جل لری

وخت به ژمی وی کهٔ وخت دَ اوړی
مابه په تورو خاورو کښې واچوی

چه به را واغوندی دَ مرګ خرخوړی
پکښې به پریوزم زهٔ بوړی بوړی

وښیاړ له باغه شی له راغهٔ څهٔ وائې
راځهٔ زیب نهٔ کا په ړندو سترګو

صفت دَ ګل شی اغزی څوک څهٔ ستائی
کهٔ نازکهٔ ناز په بدرنګو نهٔ ښائی

وادهٔ څوک مهٔ کانړی ودونه غم دی
سنځ دَ هغو دے چه لونډان دی

دَ دے غمونه له عمره سم دی
په غم نیولی دَ یوهٔ دم دی

وائے په زړهٔ دِ غمونه څومره دی
هرچه مئین شی څما په پوهه

څو دِ ناسازے راسره هومره دی
دَ قهرولئ مزړی ړومړد دی

وادهٔ دِ هر هر پسرلے هرکال وی
دا دوارهٔ توکه دَ دولتمندو دی

بنځه دِ ځوانه آس دِ نیم زال وی
ځنے دِ تښتی څوک چه کنګال وی

وفا به هیچرے له کمذاته نهٔ مومے
تپوس به باز نهٔ شی زاغ به طوطی نشی

کهٔ همه عمر په زړهٔ دَ ددُ دروے
په تربیت ئے کهٔ بوعلی مومے

وخت دَ ښه وړوالی دے دَ ځوانئ نهٔ دے
جوړ وجفا وړه وړته نفر اوسه

کهٔ دِ دَ ځوانے په یارئ زړهٔ دے
دا کار په عشق کښے ورسره ښهٔ دے

ورته حیران شم کهٔ دانایئ دی
هر څوک خپل اصل سره وصلت لری

دَ جنسه جنسه چه آشنایئ دی
له بله اصله ئے جدایئ دی

وائے صوفی شه صوفے دِ تهٔ شے
کهٔ یار ساقی دے عمر باقی دے

درومه نا اهل شپږ سو شپیتهٔ شے
لا به دَ میو ښیښے کړم تشے

وارهٔ غلط دی چه څوک خپلخان ستائی
کهٔ هر څو لوئے شی سرے بیا خاورے دے

کبرلوئی کا پریشان پریشان وائی
خوشحاله کبرلوئی په خدائے بنائی

وُنه به ولے تازه ولاړه دی
اوبهٔ باد خاورے وړلره بویه

چه ویخ ئے نهٔ دی خوبئے لاړه دی
ویخ ئے قائم شی چه داخهٔ واړه وی

هرڅوک په خپله وعده قضا وژنی
څوځو مرګونه راباندِ راغلهٔ
ومړی فناشی نهٔ ئے بیا بیا وژنی
دَ یار بیلتون م ترمرګ بخوا وژنی

هغه چه کاندی عزم کشتئ
خاورے شه خاورے چه کل له تاکیږی
هغه به مومی ډیرے خوشئ
اوربه دربل شی په آشتئ

هغه چه عهد قول پیمان لری
څوک چه دَدین وایمان سامان لری
پرے سلام دے دین وایمان لری
ارمان ئے کوم دے چه به ارمان لری

هغه چه کبرخود پرستی لری
کامل به هیڅ بل رلئے دَ زرهٔ نهٔ کا
خدائے دے چه هومره بالا پستی لری
اشیاء دَ خدائے په هستئ هستی لری

هغه محبوبے داسِرہ فائقے دی
خهٔ شوکهٔ مچ په شکرو وګرځی
چه په پاکئ په عفت شائقے دی
شکرے کله دَ مچ لائقے دی

هغه چه خدائے بولی په هرهر ځائے دی
چه سرے بوټئ خوری هغه ګرګس دی
ځنے ګرګس دی ځنے همائے دی
چه وچ هډونه خوری هغه همائے دی

همت چه لوئے لری کشال ئے کم وی
چه دون همت وی خسیس ممسک وی
بناد وی آزاد وی شاہِ عالم وی
کهٔ مال ئے ډیر وی نصیب ئے غم وی

هغه چه نخ لری خورے وریشے واخلی
هغه چه نهٔ کری په ونیو ګرځی
په ویش چه سرشی بخرے شےشے واخلی
هغه چه وکری هغه ریشے واخلی

هندکی چه هیڅ دی په بها درومي
یوځ وفا نشته بل نه حیا نشته

خواری له خپله شامته مومي
بل نه خواږه ځي د خواست ترکومي

هغه چه تورې د بری په وخت وهي
سپاهیان د طمع د خپل مقصود دي

هغه نه واږه د بل په بخت وهي
د تنګسې تورې خښتن د تخت وهي

هغه چه مخ کا په خود کامۍ
رندیم اوباش یم عاشق قلاش یم

پرې به وړدرومي بې آرامۍ
اندوه م نشته د بدنامۍ

هنر چه نه لری که م پسر دے
چه بیګانه وی چه یګانه وی

چه خوګ نه یاد کا دردم د سر دے
یا م لیمه دے یا م خګر دے

هغه مزږې دے هغه ګفتار دے
چه نه له ملتګید رهم وازدے خوری

چه بل غم نه لری غم نه د غار دے
که بنه دے بنه خو د مزریوبنکار دے

هوښیار به هرکله زمانه ساز وی
نادان به هیچرې په دا خبر نه وی

په دانایۍ به نه د کار آغاز وی
په هرهر کار به نه بې ځایه راز وی

هوښیار به هرچیرې په زړه ورن وی
نادان به تورو وته هوس کا

په جنګ چه ورشي نور به تورزن وی
چه تورې وبریښي نور به ریخن وی

هاتی ته ګوره حال نه معلوم دے
که یو نه نه وی په دا پنځه کښې

ځلور نه پښې دی یو نه خرطوم دے
که هست ومست که نیست که معدوم دے

هسې بل هم کنړې لکه چه ته ئې
که ته مومن ئې هرڅوک مومن کنړې

هرڅوک به ښهٔ کنړې په ځان که ښهٔ ئې
هرڅوک کافر کنړې که کافر ته ئې

هرچه دَ توروزلفو میرمنې دی
دَ سپینو ږیرو بلا په دوئ شه

په تورو ږیرو باندې مئینې دی
ولې له واړه په زړهٔ غمژنې دی

هغه چه شرم دَ خاصو دَ عامو دی
دَ مړو په رنګ شه په مزکه ړنګ شه

که څو یه رونړه دَ نیک فرجامو دی
چه بد نام کړونی دَ څو نیکنامو دی

هوښیار غلیم به په خولهٔ جنګ غواړی
عمر خویودې چه په غم دروې

ډیر به ترجنګه په آشتی ویاړی
دا هسې عمر دې وبا ونغاړی

هوښیار به هرکله فهم په دم لری
دم غنیمت کنړه په هیڅ مغرور مهٔ شه

نظر به عین په خپل قدم لری
که دلګیر کښینې آسمان څهٔ غم لری

هغه چه مونځ نهٔ کا که دِ خپل پلار دے
پریږده چه ومری زړهٔ سوے پرے نهٔ بویه

ادب ئې هیڅ مهٔ کړه په دین کښې خوار دے
که په فاقه کښې لیل ونهار دے

هوښیار به نهٔ وی چه احمق ته پندوائی
خوابږهٔ دَ خرو نهٔ دی دَ آدم دی

خوږې خبرې خرو نو ته نهٔ ښائی
څهٔ ئې خوراک زده څهٔ ئې مزه ستائی

هندو چه بُت وته هسې نسکور دے
ها دواړه توکه رسم وعادت دے

مومن مخ اېښې دَ کعبې په لور دے
اُوده عالمه مطلب څهٔ نور دے

هوښیار به چست و چالاک بیدار وي
ډیر به عمل لري لږ به ئې خبرې

په هره چار به زر خبردار وي
په هر زمان به ئې نظر په کار وي

هوښیار به هیچرې له ځانه خوش نهٔ وي
چه دیرینه وي چه تجربې لري

په خپل دانش به فضول سرکش نهٔ وي
په کاروبار به دَ هغوې اش نهٔ وي

هُنر په دوئ وریځې ښکاره دَکس شي
یوشان مرغي نهٔ شي دَ سړي له ځالے

عیب ئې رو رو ښکاره پس پس شي
وریځې باز او کارګان کرګس شي

هغه چه قوم قرار متین لري
چه وائې نهٔ وي نورخهٔ ئې مهٔ کوره

دولت دَ دین دَ دُنیا قرین لري
کهٔ ښې ښې چارې دَ دُنیا دَ دین لري

هاتي چه ومري بوئې ئې پیدا شي
پونړه نیولې څخې تیریږي

په لاړې تلوني چه څوک پرې راشي
خلاصې ئې نهٔ وي یوه بلا شي

هُنرجوهر را وړه دَ لویئ ستورے
هسې به اوسے کهٔ عقل هوش لرے

کهٔ دا دِ نشته تهٔ ئې کمزورے
چه دَ خندا نهٔ شې کاسه نسکورے

هوښیار به نهٔ وي چه نادان ته پند وائي
په هرهر توکي کشیده نهٔ کیږي

خرهٔ ته خبره دَ قند دَ خوند وائي
ولے به هرچا ته پند خردمند وائي

هوښیار هیچرې محتاج دَ پند وي
نادان به هیچرې دَ پند پروا نهٔ کا

پند به په دهٔ باندِ بهتر ترقند وي
پند به په دهٔ باندِ دَ حنظل خوند وي

هُنرچه نهٔ لری کهٔ دِ پسر دے — سړے ئے مهٔ بوله یوځاؤ خر دے
کهٔ هرڅو زور لرے کهٔ هرڅو زر لرے — تر دا همه واړه بهتر هُنر دے

هغه اُستاد گنړه چه درته څهٔ ښئی — کشرهم مشروی چه درته ښهٔ ښئی
په سپینه ږیره به ئے منت لرم — کهٔ ووهی کے راشی راته څهٔ وښیئ

هوښیار به هیچرے بے پنده نهٔ وی — کار او گفتار به ئے بے خونده نهٔ وی
چه عقل نهٔ لری بد نفس بے شرم دے — فکر ئے هیچرے بے شخونده نهٔ وی

همیش به هیڅوک په دُنیا نهٔ وی — په وار وار به ورځنے تلهٔ وی
مرغونه راشی په باغ کښے کښینی — بیائے دَ باغه نه اَلوتهٔ وی

هر یو تربله بهترځان خپل گنړی — نشته چه ځان به کهتر تربل گنړی
په خپل خپل عقل هرڅوک غره وی — په هره چاره کښے خپل ځان عاقل گنړی

یو تور بوړا دے بل تور جعل دے — قسمت دَ دواړو سره بیل بیل دے
بوړا په بوئ دَ گلونو پائی — تل وگندگئ ته جعل اړل دے

یار دَ خوشحال دے خوشحال دَ یار دے — کهٔ وفادار دے کهٔ جفا کار دے
دَ عاشقانو چه څهٔ اسرار دی — دَ رقیبانو باندِ څهٔ کار دے

یار کهٔ څهٔ یاروی له ځوانه زوړ بهٔ دے — تل به دِ نیازوړی و نیاز ته جوړ بهٔ دے
بل فکر نشته دَ سوات په ملک کښے — کهٔ زوړ کهٔ ځوان وی تروړی موړ بهٔ دے

یوځهٔ خارښ دے چه هویدا شي
عیب تر شا کا په لیونتوب کښې

په خوخو رنګه سره شیدا شي
د دوئو په مینځ کښې دریم پیدا شي

یا بنهٔ ځوانان دي یا بنهٔ آسان دي
دَ چا چه نهٔ وي دا دواړه توکه

چه ورته ګران شي مشکل آسان دي
عیب ئے مهٔ کړه کهٔ هر آسان دي

یوچه مئین شي دَ بل پرے رخه وي
ګل کهٔ بنهٔ نهٔ وے بلبل به څهٔ کا وهٔ

چه سره بیل شي با ندِ ئے سخه وي
مینه په هرڅهٔ دَ ځهٔ دَ مخه وي

یو مست دَ میو څو پیمانے لري
خبر په حال دَ مستانو نهٔ دے

بل دَ جا نغلو یو څو دانے لري
دَ خپلے چارے سل افسانے لري

یار به دَ یار په یارئ ویاړي
کهٔ یارئے خاندي دے به هم خاندي

په هره چار به ئے بښیګړه غواړي
کهٔ یارئے ژاړي دے به هم ژاړي

یو لوئے ترغرونو فکر راپیښ دے
نو ګناهونه په استغفار بخښي

نهٔ پلار نهٔ ځویه نهٔ دَ چا خویښ دے
دا خدائے هوښیار دے نه چه پوهیښ دے

یارئے په مهر په محبت شي
چه نهٔ ئے داوي نهٔ ئے هغه وي

پکښے له پسه هُنر حکمت شي
آخر په دواړه لوریه زحمت شي

یاغي بازونه یو یو بازدار نیسي
دَ هرے چارے اسباب پیدا کړه

څهٔ چرګے نهٔ دي چه ئے هرخوار نیسي
افسون دِ زده کا هغه چه مار نیسي

یو دے چه هر کله حلوا شیرینه خوری     بل دے چه تل تل اوګره جوینه خوری
په مرګ به دواړه سره یو رنګ مری     دَګور چینجی به ئې غوښې په مینه خوری

یارم دَ شپږو ترمینځ اوَوم دے     چه خوک ئې نهٔ ستائی په حُسن کرم دے
چه ښا ښکاره شی په مارنړا شی     چه مخ ئې نهٔ وینم په ما تورتم دے

واړه مستان دی په مخ زیبا لری     دَ خپلو تورو سترګو صهبا لری
باور ئې هیچرے په وعده نهٔ بویه     په خولهٔ به تل تل صبا صبا لری



٤٨٦

صورتګر چه بنه صورت په دیوال ساز کا
کل عالم ئې په صفت ژبان دراز کا

د هغه نقاش په صنع نظر نه کا
چه له څه خاشکي نه دا نقش و طراز کا

سترګې وروځې پوزه نور کیږدي په مخ کښې
غاښ د شونډې ژبه خوله سره پرداز کا

یو سربل سر په سرجوړ کا دوه غوږونه
چه په دوائې اوریدنه د آواز کا

بند په بند د لاسو ګوتې وبله کښیږدي
سر ترپا یه درست صورت سره یوراز کا

که څوک ژر کتابه وکښي له دې بابه
که په کښل شي ژر به نور پسې آغاز کا

هر وینته چه په صورت باندې لیده شي
که پرې څیر شي د شناخت وربه دروازکا

خاص بنده د خدائې هغه ګڼړه خوشحاله
چه د ځان په معرفت ئې سرفراز کا

اورنګ زیب چه آرائش د تخت و تاج کا
تخت و تاج به ئې مرګې تخت و تاراج کا

په جهان کښې به ئې پاتې بنه بدنوم شي
ده ژده چارې د کسرې که د حجاج کا

زه غمژن په عید په جشن خبر نه شوم
که درست خلق د دهلي ابتهاج کا

اوبه سترګو له لاهې اور د زړه شو
څوک به څه رنګه ژوندون په دا مزاج کا

چه په رګ م ګوتې کیږدي رنګ ئې زیړ شي
طبیبان به م په څو د رنځ علاج کا

جدائي خما په زړه کا هسې چارې
لکه بازئې په تارو یا په دراج کا

دوه منین چه په هوا د وبله بیل شي
خدائې ئې څه شکل د تش سلام محتاج کا

خما اوښکې د ګوګل په جوش پیدا دي
لکه اور چه له کباب نم اخراج کا

هر ناوک چه د قضا له شسته خیژي
زمانه د خوشحال زړه ورته اماج کا

بازیګر چه د بازیو صندوق وا کا
په یوه زمان کښې څو بازئ برپا کا

نندارچي چه ورته ګوري حیرانیږي
بازیګر چه په بازیو کښې بلا کا

عارفان د سر په سترګو ګوتې کښیږدي
د خپل زړه په سترګو ګوري تماشا کا

دا عالم لکه طفلان ورته ښکاریږي
د طفلانو په بازئ پورې خندا کا

همیشه خوشي د چا ده د هغه ده
چه په زړه کښې د دُنیا چارې فنا کا

دَ هغهٔ په وفاخـهٔ خوښې خوشحاله
چه وفا درسره کا بيا نه جفا کا

بيا رباب دَ مغني ښنهٔ سرايت کا — په نغمه کښې نوے نوے حکايت کا
شيخ دِ کنج دَ صومعه زهٔ به ګلګشت کړم — دَ بهار ګلونه ماته هدايت کا
ګدايانو له غم دَ ګيهے ډير دے — بادشاهان دِ غم دَ ملک او ولايت کا
دَ وفا مهر وکرم به ئے لاځهٔ وی — په وفا کښې چه دا هومره عنايت کا
په مانړی ئے هم خوشحال شم هم دلګير شم — لکه څوک چه له چا شکر وشکايت کا
دا دَ ما دَ بخت اثر نهٔ دے نور څهٔ دے — له رقيبه چه شکوه په دا غايت کا
په دا ښهر کښې څرګند شراب خرڅيږی — محتسب دَ باده نوشو رعايت کا

کهٔ دَ ښکليو دَ ديدن مينه ګناه ده
سکه خوشحال خټک درست عمر جنايت کا

په هر ځائے چه طمع خپل هنر څرګند کا — ډير هوښيار ماهي مرغونه طمع بند کا
بادشاهي دَ بحرو بر ده کهٔ باور کړے — قناعت دِ کهٔ په خشک وتر خورسند کا
په هغهٔ هما سلام خرم دِ اوسی — چه دَ چا سره نهٔ مهر نهٔ پيوند کا
خلق واړه دَ اندوه په درياب ډوب دی — کله کله له دريابه سربلند کا
دَ درويش بخره خوښی غم دَ هغو دے — چه په شمار دَ زرو ناست ګڼون وچند کا
هوښيارانو سره ډيرے انديښنے دی — چه ملنګ دَ مصلے هغه آنند کا

و نور چا وته به څهٔ وته څهٔ وائی
وخپل ځان وته خوشحال خټک دا پند کا

په عاشق باندِ غوغا غماز پدول کا — چه ګلونه پريکوی اغزی قبول کا
ارسطو تر افلاطون ښهٔ وو سکندر ته — په جهان کښې هر څوک مينه په خپل کول کا
خوم زړهٔ په بے غمئ پسے دروی — هومره نور تازه غمونه نا وصول کا
دا تازه تازه مضمون چه په بياض کښم — خبر نهٔ يم چه له کومه رانزول کا
آشنائی لکه ښهٔ تول چه ورته اش کړے — جدائی لکه بړنګئ ورانے دَ تول کا
يوښکاره دَ قيامت علامت دا دے — په فاعل باندِ چه اوس تيرے مفعول کا

دریغه یو هسے پیدا شی چه په عشق کښے — دا دِ ما لیونے زړۀ خوشحالۀ معقول کا

زۀ دَعشق په کنج توانګریم کۀ نور خلق — تولول دَ زرو مال متاع وپول کا

خما دوے سترګے ولاړے ته خلور شوے — کۀ ښکاره دَ یار له لوریه خدائے رسول کا

ګنډِ وی چه دَ وصال په خوښئ خوښ وی
چه خوشحال په جدائئ کښے ئے ډیرنول کا

په اختر په جُمعه څۀ غرض خما — زۀ مجنون یم سر نیولے په صحرا

هغه وخت دَ ما اختر دما جُمعه ده — چه دیدار را ته ښکاره کا دَ لیلا

عاشقان دَعشق له کاره انکار نۀ کا — فاسقان به په خپل زړۀ کښے لری غلا

دَ یارئ لائق نۀ دے رنګ ئے ورک شه — چه ئے نۀ وی په یارئ کښے وفا

دَ ربښتینے یارئ لاف ډیر عالم کا — ولے ما پکښے ونۀ لیدل ربښتیا

هئے توبه دَ عشق دَ پټو سرو لمبو نه — نۀ وابنۀ نۀ ئے لرګی لګی په تا

یه یرغ په مصلحت دَعشق کار نۀ دے — په لیدل په آوریدل شی را پیدا

نۀ په پنډ لویږی له هرکا نږی بخری — دے سوخته بکر لری سودا

دا رنګینے معنئ چیرے دی خوشحاله
چه را دروی لکه ګل په بیاض ستا

تا وے چه غم مکړه نور زۀ ستا یم تۀ خما
زۀ خو دِ ژوندے کړم کۀ دروغ کړے کۀ ربښتیا

خۀ بلا زیبا ئے بے نظیره محبوبا ئے
کۀ دا عیب دِ نۀ وے په زړۀ سخته ئے بلا

کۀ کل جهان خوبان شی همه واړه محبوبان شی
عجب کۀ لا پیدا شی یوه تا غونډِ زیبا

په هومره ډیر مقتوله تۀ لا هم نۀ ئے ملوله
کۀ سل خونونه وکا دَ جلاد تروخۀ پروا

چه کل غواړم له تا نه ستا له باغه له بوستانه
کۀ خس را عنایت کړے هم په کل نیولے ما

خوږه د بنده زنده یم د هغو زلفو بنده یم
چه تل ئې سل سل زړونه په هر تار دي مبتلا

که لوټې دي که هلک دي دوارو ستا په نغړو ورکې دي
په ښهر کښې څوک نشته چه منین نه دي په تا

د سبر ونه ګوره په زمان شي نامنظوره
چه وخوزې په باغ کښې ته په دا قد و بالا

نسیا جنت صبا دې د زاهد دې د مُلا دې
په لاس جنت موندلې نن خوشحال دې ستا لقا

تل که داوی د خوبئ طمطراق ستا — نور د لاس له خانه پریوتي عشاق ستا
نن په دا دور هغه ښایسته ته ئې — چه په هر لوري ثنا وائي آفاق ستا
دوارو شونډو د تریاق زلفې ښامار دي — چار وتلي دا ماران دي تر تریاق ستا
لږ شکیب ورته په مثل د لوټې غرځه دې — په شکیب کښې به په څوپائي مشتاق ستا
د بانړیو د موندلې یم غولوه م — د هلک غوند د ښتیا کنړم مذاق ستا
ته خپل خان لره مهمیز کړه څه پروا کړې — که قدم د چا په سر کیږدي براق ستا
خلق وائي چه دوزخ شته پس له مرګه — په حیات صورت دوزخ نه دې د فراق ستا
لکه تل وو همیشه په هغه شان دې — هیڅ ملا مرشد بدل نه کړل اخلاق ستا

لکه باد د صبا راشي ځر ګذر کا
ما خوشحال چه آزمائیلې د میثاق ستا

تلم په خپله لاره راسره مله شوه نګارا
شوخه غمزه کړه خنده رویه خود آرا

رنګ ئې د سرې وو اما خوئې د ښا پیریو
تن ئې لکه سیم وو په زړه سخته سنګ خارا

راغلم په ښهر لاس په لاس شوه له ما وړکه
کوځې په کوځې جار وزم پسې غواړم بخارا

ډېرې لړې نخښې د صورت د ښیایۍ
څۀ خو درته وایم یو څو نخښې آشکاره

د ننګه تازه کڼکه قد عرعره مو کمره
بڼۀ ئې تر ګلونو د ګلابو عذاره

غابښ ئې د ګوهر په لب شکر آبرو کمانه
تور بانړۀ ناوک په دواړو سترګو خونخواره

پوزه ئې غنچه وه د زنبق مسیب سیینه زنه ئې
مښک د مخ خالونه په مخ کښلې مه پاره

هار د جواهرو دوه لړئ د مرغلرو
تور وربل اوږدې زلفې ئې عنبرساره

واړه ئې د تن جامې ګلګونې زر نګارې
درسته سره لمبه وه چالید له خداره

بیا هسې مدد کړه چه خوشحال سره دِ تل کړ
بخته د دې وړکې سراغ نخښه ومارا

خانۍ سرتر پاسه جوړ کړ بیا بلا کا
د زلفینو په هر وُله د زړونو غلا کا
معشوقې ته چه ئې هومره حُسن ورکړ
دا په داچه د عاشق خونه تالا کا
په هر ځائې چه څو محبوبې سره کښیني
هغه ځائې م ترجنت ښانسته لا کا
دوه مئین کۀ سره هر څو مرور وی
خپله مینه ئې بیا ښاد سره پخلا کا
توربانړۀ ئې تورتوبری دی راغرخیږی
کۀ دا پورته محبوبا سترګې شهلا کا
خوږ شاه په کښلی مخ بانډِ خالونه
ما به هم په هومره داغه مبتلا کا
همګی ئې ستاله مخه ګفتګوئې شی
چه دردمند وبله ټول شی مشغولا کا
په خیر خیر ئې مخ ته مۀ ګوره خوشحاله
په خاطر به دِ د اور لمبې والا کا

څۀ عجب دلخواه دی دا صهبا
کۀ ساقی ئې راکوی په مرحبا
د غنچې خندا محاله په چمن ده
کۀ نسیم پرې ګذر نۀ کړی هر صبا

مصلحت ئے د بلبل په کار کښې دا وو — چه صبا کړه د غنچې قمیص قبا
د بلبلے قدر هم زده کړه اے ګله — که هر څوئے په دا خپل حُسن زیبا
چه علاج ئے وا بسته په خپل مطلوب دے — د عاشق له رنځه څۀ زده اطبا

بے د یار د زیبا مخه ګمان مۀ کړه
چه خوشحال به په بل مخ شی شکیبا

چه یار مهر وفا نۀ کاندِ خوک څۀ کا — چه ئے جور وجفا نۀ کاندِ خوک څۀ کا
د جهود به هم زړۀ سوے را باندِ وُشی — چه یار رحم په ما نۀ کاندِ خوک څۀ کا
ما وے زړۀ ئے ګُندِ نرم په ژړا کړم — چه اثر پرے ژړا نۀ کاندِ خوک څۀ کا
که وصال ئے په دُنیا له عمره خوږ وی — چه تل عمر وفا نۀ کاندِ خوک څۀ کا

حال دِ هیڅ له یاره پټ نۀ دے خوشحاله
عنایت چه په تا نۀ کاندِ خوک څۀ کا

چه په ما باندِ ئے زړۀ سیزی تپاک کا — الحذر چیرے به ځان د اور خوراک کا
ما پخپله ملامت وته ځان ساز کړ — عام عالم دِ په ما سل خله بلغاک کا
که د خضر په چشمه باندِ م کور شی — د فراق اندوه به هورته ما هلاک کا
چه بقائے په چمن کښې یوه ورځ وی — لاله ځکه د قمیص ګریبان چاک کا
د آسمان له عاشقانو سره قصد دے — هر زمان ئے په هجران سره غمناک کا
تړے به سل رنګه ګلونه شګفته شی — هر سړے چه خاکساری واخلی ځان خاک کا

زړۀ خوشحال په هغه چا پورے حیران یم
چه له یاره نه جُدا شی په خوش واک کا

چه د پلار سره دروغ نفاق خلاف کا — د نورچا سره به څۀ رنګه زړۀ صاف کا
نوره بیائے کوم دروغ نفاق په زړه دی — منافق په خپل ګناه چه اعتراف کا
نۀ به زۀ د ناخلف ګناه معاف کړم — نۀ به خدائے د عزازیل ګناه معاف کا
دا واړۀ عزونه لا هیڅ نۀ دی راضی یم — که په میان کښې موخدائے غر د کوهِ قاف کا
حال د خپل ځوئ خپل پلار وته معلوم دے — څوک به څۀ لره د عاق راته اوصاف کا
نۀ به دۀ غوندِ دروغ دروغژن وائی — نۀ به دۀ غوندِ سړے مکر و ګزاف کا

هم هزار رنګه دروغ خلاف په زړهٔ کښې
هم هزار رنګه په خولهٔ دَصدق لاف کا

په ژوندون ئے دیدن مهٔ وینم هاله هم
پس له مرګه کهٔ دَماډکور طواف کا

چه مِ هسې تربیت دَ ناخلف کړ
دا په دا چه دے له ما سره مصاف کا

په ژوندون به ئے ارمان ووځی له دِله
زمانه کهٔ دَ خوشحال سره انصاف کا

چه دُنیا ورته ښکاره شوه بے وفا
وِدُنیا ته به مخ نهٔ کا بے قفا

دَغرض یارئ هیڅ یارئ نهٔ دی
کهٔ یاران دی خواخوان دی دَ صفا

کهٔ کا تهٔ دی کهٔ لیدهٔ کهٔ آوریدهٔ دی
دا دَ ښو یارانو واړه دی شفا

چه په چا باندِ مئین شوے قبلوه ئے
سل ناز ونه سل ناسازے سل جفا

کهٔ په وصل کښې ئے هر ساعت یو کال شی
لا په دا دَ عاشق نهٔ وی اکتفا

له ما خوار سره څو قاف وهے ورته کړے
جګی جګی څهٔ خولاَم وټے وقا

دلبے درد عالم پرے هیڅوک خبر نهٔ شو
وخوشحال ته ئے خولهٔ ورکړه په اِخفا

څوک چه مخ کا په مذهب دَخپل مولا
دَ هغو په خدمت وردی دُنیا

څوک چه مخ په نمرډان شی خودِ کوری
چه سایه ور پسے درومی په قفا

درویشان کهٔ اشارت وکا وغرهٔ ته
دَغرهٔ کا نړی به هم شی لکه طلا

چه کیمیا کیمیا یا دیری په جهان کښې
کیمیا څهٔ ده ښهٔ نظر دَ اولیا

کهٔ دَ تخت د پاسه ناست وی صاحبی کا
دَ درویش په زړهٔ کښې هیڅ نهٔ وی هوا

خبرے زنګ ورځنے نن نهٔ وی چا وُللی
دَ درویش جامه له ځایه ده صفا

مړهٔ اودهٔ وته ژوندی وی ژوندی مړهٔ وی
دَ درویش هو مره قوت دے دَ دُعا

مګر چیرے دَ دشمن په مهر یاد شی
چه خوشحال ئے کړ دا هسے بے نوا

چه خپل خوئ شی په جهان بدخواه دَ چا
دَخپل خوئ دے نه چه دے تباه دَ چا

من قلیل په یوهٔ مچ سره بدبوئ شی
بد دِ نهٔ شی یو زمان همراه دَ چا

کانړی لعل دَ بدخشان کیاه کیمیا ده
چه ئے نهٔ پیژنے تهٔ ګناه دَ چا

چه بادشاه ئے ستمگر شي خلق خوار شي
زهٔ که ئ سل ځله وفا کړم یار جفا کا

دَ جمشید او دَ سکندر فلک پړے نهٔ بنوے
چه کرم نهٔ وی له خدایه فتح نشته

خدائے دِ نهٔ کا ستمگر بادشاه دَ چا
بخت دِ نهٔ شی په دُنیا سیاه دَ چا

پرے به نهٔ بږدی همیشه کلاه دَ چا
که ئ افزون شی ترملخ سپاه دَ چا

دا دُنیا لکه لولئ ده خوشحاله
کهٔ ئے کوږے کاه دَ چا شی کاه دَ چا

ځار تر هغه مخ شم چه به ما په ځان مئین کا
سحر دے کهٔ دم دے کهٔ ځهٔ نورے فتنے فن کا

زړهٔ بویه چه خوئ ئے دَ بورا یا دَ بلبل وی
دړومی کرځئ غواړی خو په ګل باندِ وطن کا

وُسیرئ په اورکښے پتنګ هرچه پتنګ نهٔ وی
وُتښتی له اوره ځان پخپله دړوغژن کا

ډیر په باغ کښے ګرځی شی خوک خالی وُوځی له باغه
څوک ئے میوه وخوری په ګلونو ډک دامن کا

مائے چه مزه دَ خوبږو شونډو ده موندلے
ناست وُم کهٔ ولاړ وُم زړهٔ م هرکله من من کا

خیال ئے دَ زلفینو لکه غل دَ خپلے خونے
هرکالے لیدلے فراغت ئے دَ زدیدن دے

سترګو ته ئے وګوره څهٔ خنږے تورے زلفے
ځر په سنبل زار کښے دوه هوسیه دَ ختن کا

هرچرته چه ګرځی لکه سرو سمه دروی
هرچرته چه کښینی هغه ځائے لکه ګلشن کا

نن ئے آزا ریږی په قمیص دَ سری صافو
ګل دَ چینے بویه چه خوشحال ئے اغوستن کا

چه م ولیدې دا تورې سترګې ستا  زۀ به نۀ کړم هیرې نورې سترګې ستا

یا د باز یا د طاؤس یا د شاهین دی  یا د تورهوسی کۀ ګورې سترګې ستا

لکه وږغوړی کېلې په مرغزار کښې  د خوارۀ وربل ترسیورې سترګې ستا

لکه پټ سوارۀ د جنګ نیزې په غاړه  دا اوښ دۀ بانړۀ پرې پورې سترګې ستا

چه دِ هسې وهر دروته ولاړ کړم  د عاشق دی اور په کوړې سترګې ستا

لکه څوک په میو مست شي هسې مست شم  زۀ چه وو ینم میخوړې سترګې ستا

کۀ شیخان کۀ زاهدان کۀ عابدان دي  د هرچا د زړو نو چورې سترګې ستا

چه دِ غوښت هغه دیدن کې ورته ګوره
کۀ خوشحاله نۀ دی کورې سترګې ستا

حقیقت را ته معلوم شو د هرچا  باورنشته په آشنا په نا آشنا

چه په سر دِ سوګند خوری ورځنې ډار کړه  یوه ورځ به ستا د سر کا سودا

د هرچا نه چه دِ طمع د وفا وی  هم هغه درته ښکاره شي بې وفا

یا څو ږو دا جهان واړه بې وفا وو  یا دما په دوړې ډیره شوه جفا

آدمیت له آدمیانو نه خدائې واخست  تر دوه پایو نه بهتروینم چارپا

کۀ هندو کۀ مسلمان کۀ بل فریق دې  په هیچا کښې به بیا نۀ مومې رښتیا

نۀ د دین د چارې شناخت مهر د وفا شته  نۀ په شرم ننګ څوک اړ دی د دنیا

د تقلید رسم عادت یارې خپلوی کا  د هرچا نظر په خپله مدعا

همګی واړه یاران د خپل مطلب دی  بیهوده ناز و منت کاندی په تا

مخامخ دِ په ثنا په صفت سر شي  سل بلا دربا ندِ وائی پښی شا

دد او دام تر دې سړیو نه بهتردی
اې خوشحاله زۀ له ښهره په صحرا

خدائې دِ مخ د هیڅ غافل را ښکاره نۀ کا  د غافل سره دِ ما آواره نۀ کا

په هر لوری نوبهار دې غوړید لې  سترګې وخوره چه به دا ننداره نۀ کا

هغه څوک چه د الف په توری پوه شو  نور په خوله د نورو توریو شماره نۀ کا

هغه څوک دې چه په حال څما خبر شي  چه ګریوان به تر لمنې پاره نۀ کا

پہ یوۀ نظر ئے هرڅۀ له ما یوړۀ — چه هیڅ نښته نور نظر دوباره نۀ کا
ځ چاړ پا یو په حساب ډېرې نۀ دي — چه په ساز د سوختګانو ناره نۀ کا
طبیبان د رنځ وهرلوري ته ډېر دي — ژړنګوران ولې د وخته چاره نۀ کا
د تقوی غلیمي دف کښېږده د لاسه — په دهلي ښار کښې څوک نقاره نۀ کا

واړه ستا دا توري ستر کے خوشحال وژني
دا قتلونه څۀ طالع ستاره نۀ کا

خدائے چه تار په تاریاران بیا سره تول کا — تورے خاورے به په سر د رتنبول کا
د جهان غمونه یو سر ځما بل سر — کۀ سرے ئے د باور په تله تول کا
نۀ م یار نۀ م غمخوار شته په داغم کښې — لکه بے او بو څوک بند په ګرم چول کا
کۀ په پوهه کښې دانا د زمانے وي — د زړۀ غم ئے ترهلکو کچو کول کا
چه ئے ړول واهۀ ځما په دلګیرۍ — اوس د ترپه نخاهم په دغه ړول کا
چه مستان د یوۀ جام دي غم ئے نشته — کۀ ئے هر څو زمانه په لاس کچکول کا
د پساله صفت ئے شي د رنګ ئے نۀ شي — څوک چه پورے په بدرنګه ناوے پسول کا
کۀ دا وسپنو قلا وي چه بخت یار شي — خاوند خدائے به ئے آسانه لکه شول کا
چه ګلونه د بهار واړه تمام شي — د زړۀ سود شیدا بلبله په خټول کا
خال ئے مست خوني هاتي د سنبال کړے — چه ښکاره شي شا به ورته د غم غول کا

د خوشحال د رنځ علاج په یوۀ خدائے شي
چه له درده سره تل شوري آشول کا

خپل عمل چه سړے سپک کا — لکه خس هسے ئے وړک کا
بد عمل لیونے سپے دے — چه حملے په خپل کنړک کا
مګر نۀ ګوري و ځان ته — چه اخول پیغور د بک کا
مزړے ښکار کا د ګاوزو — پیشو ګرځي ښکار مږک کا
دا خبره ده چه کېږي — کۀ کیسه د دوتک کا
چتے باز په پرونو نۀ شو — کۀ آلوزي پرپرک کا
چه بیزو د بازیګر شو — نن څۀ ناسته په انړک کا

ځما ژبه نهٔ ده اوږده ګذارونه د توپک کا
چه ځما اختیار نے خوړ کړ خدائے دِ خوار هغه ختک کا

خوشحال ناست په برمول دے
ارمانونه د اټک کا

د دُنیا یاران په خوئ دی د دُنیا بے وفا لکه نے مخ هسے نے شا
کهٔ د دین دپاره تاسره یاری کا له هغوغواړه کهٔ غواړے څهٔ وفا
د دُنیا بنا دئ غمونه سره ګډ دی په خندا خندا دِ زړه کا په ژړا
چه فتنے ترے پیدا کیږی واړه نفس دے نفسانی یاران به نهٔ وی بے بلا
اولیاء د اولیاء سره بد نهٔ وی دا په دا چه نے د نفس نشته هوا
په دُنیا د بادشاهانو سره ضد دے اُمرا سره دښمن وی اُمرا
یا په نهٔ یاری کښے سود دے کهٔ پوهیږے یا په نهٔ ویل کښے سود دے د دانا
بیا هالهٔ د بل جفا وته نظر کړه کهٔ ته نهٔ وینے په ځان کښے هیڅ جفا

لکه تا سره څوک څهٔ کاندی خوشحاله
ته هم هسے زیست روزګار کړه له هرچا

د مرغهٔ نے کهٔ وزرشته الوتهٔ کا څهٔ په دور لکه باز هسے ختاتهٔ کا
کهٔ مته غوندِ تیرهٔ لری مژګ دارهٔ څهٔ مته غوندِ ګذار وته واتهٔ کا
په ارمان د دیدن مرم پرے م سلام دے چه څیر څیر م د یار مخ وته واتهٔ کا
بنائسته په جهان ډیر دی بنهٔ هغه دے په بنهٔ خوئ چه د عاشق د زړهٔ ساتهٔ کا
لکه سترګے تصویری زنبلے نهٔ وی چه م سترګے بنهٔ جمال وته کاتهٔ کا
څهٔ خوښئ نے پکښے ایښے دی پوهیږے هر نفس چه دِ واتهٔ ننواتهٔ کا
په هرڅهٔ کښے نے لذت فرحت راحت دے لکه ساه چه و واتهٔ ننواتهٔ کا

کهٔ په تن خوشحال ختک دے ځنے لرے
د دهٔ زړهٔ د یار په کوڅے کښے جارواتهٔ کا

د عشق په بادیه کښے مهٔ ږده ګام د تمنا
هغه څهٔ عاشق نهٔ دے چه وړی نام د تمنا

زار ځما دَ زړهٔ دے زار ځما دے په دا کار کښے
کۀ دا طور به تل دروی ایام د تمنا

مرم دَ یار له شوقه سره دواړه نۀ جوړیږی
آغاز دَ یار دَ وصل او انجام دَ تمنا

څۀ شوه هغه مینه چه دَ سترګو په کاتۀ کښے
بنړو به ئے سرا او ستوۀ پیغام دَ تمنا

قدم بړده دَ هغه عاشق په پلۀ باندِ خوشحاله
چه کام ئے خپل موندلے په هنګام دَ تمنا

دُنیائی یاران چه طمع دَ دُنیا کا
عاقبت په یوه طمع ځان جدا کا

دیدنی یاران پکار دی په دُنیا کښے
چه یاری دَ دیدن په تمنا کا

دَ ګونګټ مینه په غل په خوشایۀ دَ
خاصګی مینه په ګل باندِ بورا کا

کۀ په خپله رضا دروی چاره نشته
کۀ ځما په رضا دروی خولۀ بډا کا

په بار بار دَ هغه یار منت را باندِ
چه پلو په مخ نیولے مخ ئے وا کا

صد رحمت دَ عاشقانو په همت شه
چه په طمع دَ دیدن دَ سر سودا کا

په رقیب به ئے بے تیغه مرګ روا شی
کۀ دلبره دَ خوشحال مقصود روا کا

دروغ دروغ وعده چه دِلسنګین سره پیوند کا
عاشق له ډیره خیاله ځان پروین سره پیوند کا

بلا کاندی خولۀ وازه دَ فتنو آتش تازه شی
چه ناز وجلوه دواړه نازنین سره پیوند کا

آزاد ترسینه روی دَ ځګر د ننه کښینی
چه غشی لینده دواړه مه جبین سره پیوند کا

کۀ نور مهر دِ نشته څۀ حو کړه دَ حال پوښتنه
چه تا په زړهٔ ویشتلے سربالین سره پیوند کا

څۀ زۀ څۀ م مجال دے چه د وصل غواړم دریغه
کۀ زړه توره شړئ څوک وریښمین سره پیوند کا
کۀ ځان غواړے خوشحاله له چشمانو ئے حذر کړه
خپل ځان وژنی تمځو ئے چه شاهین سره پیوند کا

دوے دِ تورے سترګے لکه دوے تورے بلا
دوے دِ تورے وروځے لکه دوے تورے ترملا
بیا دِ توربانړه د دواړو سترګو کربلا
بیا دِ تورے زلفے تر بنا ماړو نه بلا
له هسے رنګه حاله راته وُوایه اَصلا
دَ هغو به څۀ احوال شی چه په تا وی مبتلا
عاشقان دِ واړه سرکړل همیشه په واویلا
چه هسے رنګ ستم به په هیڅ نۀ وی اصلا
دَ خاطر بخڅه م هسے تاخالی کړله تالا
لکه غل دَ خپلے خونے همیشه روږدے په غلا
نۀ به بل څۀ وکښی نۀ به کاندی نورا ملا
دا بنده خوشحال او ستا له عشقه مشغولا

دَ خوبئ نوم دِ ولاړ دَ بدخو هم لا
په خپل کلی په اولس په هرسو هم لا
تۀ چه هسے په دا خیال جمال نازیږے
کله ستا به دا جمال نۀ وی بوهم لا
چه بد مست شی په مجلس کښے هغه نۀ م
کۀ کدو دَ میوتش کړم سبو هم لا
ستا له جوره له ستمه هورته لاړے
هغه ځائے چه آدم نۀ وی آهو هم لا
دَ نما ستی په وخت ئے واکړه آزارمۀ شه
دَ وربل غوټے کو نخښئ دَ ګیسو هم لا
دَ خوشحال خټک دپاره چه مے خور شو
په مغان م وبنی کینبول باهو هم لا

دوه زړونه چه یوشی غربه هم پاره پاره کا
خارتریګا تکئ چه نعمتونه رابنکاره کا
تورے زلفے بویه خط وخال زروزیور هم
مخ چه بنا نُسته وی خلقه ئے نندارہ کا
څوک چه په اخلاص بله مئین شی په دُنیا کښے
زړه سازے نا سازے په دُنیا کښے آواره کا
خلق په شیطان باندِ لعنت لعنت لرینه
چارے په سړیو واړه نفسِ اماره کا
سل سړنګه غمونه لور په لور دَ نفس له لاسه
دوه سوه دَ حرص له مخه نور را اجاره کا
چه ویش هی دَ شکرو دیر عالم ور باندِ قول شی
چه واخلی خپلے بخرے نور ځانونه کناره کا
خوبئ دَ خپلے چارے څوک په منت په کوشش غواړی
څوک خپل کارونه واړه حواله په ستاره کا

خار تریکړ نګئ چه زړه نے یو یو نے اقرار وی
هرچه دو زبان وی خپل غمونه دوباره کا

هرڅوک دِ دُعا کا ندَیٔ چه حاجت نے چا ته نهٔ وی
ولے بادشاه نهٔ وی چه حاجت نے بیچاره کا

ګل وسرے ورکړه چه خوشحال په یوهٔ ګل شی
غرهٔ غوایهٔ نظر کله دَ ګل په پشتاره کا

دَ بے ننګو پښتنو له غمه ما
لوئی پرېښوه ونیوله کمه ما

داهم ښهٔ کهٔ په دا کار کښے هومره کاروی
چه کهٔ واخست انتقام له کرمه ما

چه دَ ننګ ګوهرِ م مات شو دواړه سترګے
په ښرا نهٔ کړے یو دم بے نمه ما

هغه دُښمن په لاس نهٔ راغے بیړئ
استاده کړه په ساحل له یمه ما

هغه ملاحِ م چه په هوډ سره لوئے غروو
په ناکام کړه و مغل ته خمه ما

هم دَ بخت وما ته شا شوه هم دَ خلقو
په مغل کړ ښکه مخ له همه ما

کهٔ مِ لاس وے په رضا به مِ کښے نښول
دَ مغل په لوړی دوه قدمه ما

دَ هغو دَ خولے کړے خبرے آورم
چه خبره ورته نهٔ کړه سمه ما

زم دَ خپلو دَ پردیو را معلوم شو
کهٔ هرڅو ساتهٔ خپل ځان له ذمه ما

په هغو لویو خبرو شرمسار یم
چه هرچا وته ایستے له نمه ما

سل غندَ نے پیغورونه را دوځار شول
چه به ځان ساتهٔ همیش له ذمه ما

دا الم مِ هیڅ الم سره سم نهٔ دے
کهٔ لیدلی دی هزار المه ما

مګر بخت را سره بیا مدد آغاز کا
چه فارغ کا ذ اندوه له سمه ما

هاتی ښکه په سر لونی تورے خاورے
چه خبر کړ دَ خوشحال له غمه ما

ښاته څهٔ وائے چه یار درسره څهٔ کا
کهٔ وفا کا کهٔ جفا کا واړه ښهٔ کا

داتل درد دَ بنا نسته وُ دَ یارئ دے
چه یک لخته دَ زړهٔ مهر په چا نهٔ کا

سل بلائے قبلوه ور پسے دَ رومه
بنا نسته دَ جهان ګل واړه خپل زړهٔ کا

چه دَ کبر خیال دماغ وته ئے ګورم
اندیښنے مِ وینښ بیدار ورته اودهٔ کا

کهٔ په نهٔ عمرئے نهٔ ګنړم زهٔ خوار شم
هغه عمر چه جدا له یاره تلهٔ کا

تیره چار به دَ هیچا په لاس را نهٔ شی
کهٔ په ډیره ښرا سرهٔ دواړه لیمهٔ کا

دَ بتانو په دیدن دَ زړهٔ نشاط شي　　لکه باغ پاڼې ګلونه په اوبهٔ کا
په ورتللو ئې شړې په تلوئې بولي کا
چه ئې نهٔ پريږدې په هيڅ کښې خوشحالهٔ

راشه وګوره نن دا طراز خُما　　حقیقت سره قرین مجاز خُما
درست عالم ئې په بازار په کوڅه واڼي　　لا وچا ته ښکاره نهٔ دے راز خُما
دَ نیاز منو عمر غواړم په دا خهٔ شي　　کهٔ بے نیاز وګوره نهٔ وړي نیاز خُما
دَ غمزے په تیغ م وژنه صرفه مکړه　　خوک به نهٔ غواړي له تا نه ساز خُما
دَ مسجد محراب دَ چا دے دَ عابد دے　　په محراب ئې دَ آبرو نماز خُما
ښائسته دَ ښړ طاؤس ورلره بو یه　　دا وآره هٔ ښکارونه نهٔ کا باز خُما
چه په خوږو زړونو بلوڅي سزا مومي　　ښهٔ چه خوارشو په دُنیا غماز خُما
تهٔ په ما باندِ تل نازکا معشوقه ئې
زهٔ خوشحال خټک عاشق یم نیاز خُما

زړهٔ چه نهٔ وي مبتلا　　پرے دِ سازه شي بلا
ترعاشق دِ صدقه شي　　کهٔ زاهد دے کهٔ ملا
عاشق هر زمان غزا کا　　په تیره تُوره دَ لا
کهٔ عاشق دَ یار په تیغ مړي　　پرے منت دے دَ یار لا
زاهد خوښ کُنج دَ خلوت کړ　　عاشق خوښ دَ یار بالا
ګل دَ عشق دے غوړیدلے　　وعاشق ته ده صلا
دَ ادنیٰ چارے ادنیٰ وي　　دَ اعلیٰ چارے اعلا
کهٔ شیخي زاهدي غواړے　　په خیل لاس کښیږه دَ لالا
لکیوړ دستار په سر کړه　　سر وهه په مصلا
یا مسواک کیږده په سر کښې　　یائې اوتوم به ترملا
په تسبیح خوزوه شونډے　　نورے ټګي کوے کهٔ غلا
مرد هغه ګڼره خوشحاله
چه ئې کیږي مشغولا

زړه تا پېژنم هوا
واړه تا کړم سرهوا

چه همیش ئې په عالم کا
دَ جهان ګوره غلوا

په نوائے بے نوا کړل
بے نوا شول په نوا

دَ هر رنځ دارو موندل شي
دَ بد خوئ نشته دوا

عاشقئ ځنے په ګور کړل
څوک پراتهٔ دي په ځګروا

چه ئې وینے دَ ګو ګل خورے
وینے کله دي روا

دَ چمن ګلونه وا شول
دَ خوشحال نهٔ شهٔ زړهٔ وا

زاهدان چه دَ رندانو تل پیغور کا
کهٔ توانیږي ازلي قسمت دِ نور کا

بنهٔ چه سپین دَ زهدلرے له ما ګوځي
چه و توروته نږدے شي سپین هم تور کا

کهٔ رښتیا وایم ویل ئې په ما اوري
څوک چه ماسره بے عشقه بل بیور کا

کهٔ په خولهٔ مُهر وهلے دَ عاشق دے
په سینه کښے ئې زړهٔ وکوره څهٔ شور کا

دَ لیلیٰ نهٔ نوریده دَ مجنون مینه
چه ئې زړهٔ له یاره نیسي خلق زور کا

نازنینے دَ دے ښهر واړه بویه
چه نن ناز و غمزه ستاله سترګو پور کا

ځما یار په هر محفل باندِ چه راشي
په ښا نست دَ ښا نسته وُ بازار خور کا

یو زمان دَ زړهٔ خوښي په لاله زار کښے
دا فلک ئې بل زمان را باندِ اور کا

چه دیدن دَ مئین نهٔ وي زړهٔ ئې ځم کړم
ګهٔ ګلونه شګفتن را ته هرلور کا

تیر یاران به نورونهٔ وینے په سترګو
کهٔ خوشحال درپسے دوه سترګے څلور کا

سور پیزوان دِ په زړګو نوے سنواریا
بیا دَ زړونو آزار اخلے پاریا پاریا

په خاوند ئې دِ سوګند وي باور وکړه
چه هیڅ دم ئې له خاطره نهٔ ئې وساریا

زړهٔ هر ګوره دماغي په ځان غره وُم
ولے ستا سترګو ځما دماغ اوتاریا

دَ چړے دَ کتارئ حاجت نشته
دَ ښړو په غشو تا بیچاره ماریا

کله کله ئې له حاله خبر آخله
بیچاره خوشحال خپل زړهٔ درپسے هاریا

بنهٔ سړی دَچا په بدو نظر نهٔ کا
کهٔ څوک بد ورسره کاندی دوئ به بنهٔ کا

په باردار ه وُنه تل وریږی کانړی
ورته ګوره چه باردار ه وُنه څهٔ کا

دَجهان کینې غصے وارهٔ ترشا کا
کهٔ سړے په وخت دَ قهرمړګ تر زړهٔ کا

دا په دا چه خودبینی ورځه نشته
دَجهان ننداره ځکه دوه لیمهٔ کا

په کینه په حسد هیڅ دَچا وُنهٔ شی
هرسړے چه حسد کاندی ځان او بهٔ کا

نصیحت دَ نیکو بنهٔ دے نهٔ دَ بدو
کم بختان به بد فعلی دَچا په خولهٔ کا

وسړی ته ئے اختیار ورکړو هوښیاره
کهٔ په هره چار کښے خدائے وارهٔ خپل کړهٔ کا

شپه او ورځ په لار روانے قافلے دی
نیک وبد دَ قافلے په لاره تلهٔ کا

یک تنها په لاره تلنه ده خوشحاله
په دا هسے لار څوک څهٔ دَ لارے ملهٔ کا

کهٔ بے نمازه دَ قیامت په ورځ ممتاز کا
وجنت ته ئے روان په ډیر اعزاز کا

نماز ګذار و ته ئے هسے حکم وُشی
چه فرښتے ئے دَ دوزخ په اور ګذار کا

انبیاء او اولیاء به هیڅوک نهٔ وی
چه ترشونډو به بیرون نرے آواز کا

ترعاصی نه لا بهتر هغه عابد دے
چه په خپل طاعت به عُجب یا به ناز کا

داځائے کار دَ هیڅ طاعت نهٔ دے خوشحاله
ګوره څوک به په خپل فضل سرفراز کا

کهٔ یو ځل دِ دَ وصاله بهره مند کا
په هر دود به دِ خرم خوشحال خورسند کا

په زمان به دِ پیوند له هرچا پرې کا
کهٔ محبوبه دِ دَ ځان سره پیوند کا

نوے میاشت به دِ په مخ ګوری وګړے
کهٔ په مخ باندِ دِ جوړ سُم دَ سمند کا

زهٔ به ځان لکه پتنګ ترے صدقه کړم
کهٔ له وړایه دَ دیدن مشعل ځرګند کا

مبتلا خاطر یم مری دَ یار له لاسه
پیاله مینے هم دَ یار په سر سوګند کا

چه له سوزه له ګدازه ئے حذر شی
زمانه به ئے ګلاب نهٔ به ئے قند کا

دَ هرچا قدر قیمت په خپل هنر وی
دَ ګنی قدر ځرګند دَ ګنی خوند کا

چه دَ عشق دَ لیونیو په حلقه شی
کله وی چه هغه غوږ دَچا په پند کا

دَ جاهل سره ګلګشت لکه دوزخ دے
له دانا سره راضی یم کهٔ م بند کا

کۀ دَ خپلو سپيو نوم وربانَدِ کښيږ دی
خوار خوشحال به په عالم کښې سربلند کا

کۀ دَ زړۀ لری بها — خان به نۀ کړی کم بها
څۀ وے څۀ به شے خبر شه — ابتدا په انتها
چه به ګاندۀ تنها کيږے — خو لا نن بنۀ ئے تنها
چه ئے نور له تا آخلی — په خپل لاس ئے کړه رها
تۀ خبر نۀ ئے له ځانه — چه په تا کيږی څۀ ها
درته وايم نۀ پوهيږے — څۀ غفلت لرے هاها
بل مخ مۀ ګوره خوشحاله
مخامخ شه په شها

له دلبرے نه مِ خولۀ غوښتله امّا — کۀ خولۀ ئے راته دا ووے: له ما
دَ مانړی په وخت ئے تل هسے جواب دۀ — ګوره بيائے په څۀ زړۀ بد دے له ما
هسے يار سره څوک څۀ لره يارى کا — چه له کبره ئے نظر وی په سما
زړۀ به هيڅ کله دَ عشقه نه وانۀ ورم — پند ګويانو خپل پند وساتئ شما
څۀ خبر ئے چه اول په عشق کښې څۀ ځی — په اول وصلت ئے ځی له سترګو ما
دَ چا زړۀ لکه کابل دَ چا بګرام دے — دَ يوۀ نصيب ساړۀ دَ بل ګرما
کۀ جمال راته ښکارۀ کا زۀ به ورکړم — دا ګټلے دُنيا واړه رونما
زۀ خوشحال چه ستا په مخ باندِ مئين شوم
پارسائی غواړے له مانه صنما

نوبهار شو بيا نرګس په باغ مستی کا — چه صبا مِ په سنبال دراز دستی کا
په پنځمه ورځ کښې ګل دَ باغ تازه وی — په شپږمه ورځ فنا خپله هستی کا
مبتلا بلبله سرد ګل په پښو ږدی — لکه برهمن دَ بُت بُت پرستی کا
تواضع زده کړه په تن له سرو وُنے — په په هسے بلندئ کښې پستی کا
کړلانی لا نور شراب نوشلی نۀ دی
دا مستی واړه په جام الستی کا

نا دیده په نادانئ ځۀ بلا کا — الف بے ئے لوستی نۀ وی ځان مُلا کا

روستائ تر دشته نۀ وی رسیدلے — بیهوده ویل دَ د دشتِ کربلا کا

دَ کافرتۀ سوغه کړے دَ دین تُوره — مُسلمان ته ئے مشرک سړے تر ملا کا

ودانا وته بلا شوه خپله پوهه — چه ئے تل په سل غمونو مبتلا کا

دا همه دَ بدخوئ علامت دے — چه سړے زناخونۀ ښکی غلا کا

په جهان کښے چه خوبونه دَ بدئ دی — یو دروغ تر زرو بدو تیرے لا کا

عطارد دِ نورقلم له لاسه کیږدی — چه په دا خوبئ بهرام انشا املا کا

داخبرے دَ خوشحال وچا ته نۀ دی

خو هم دے له خپله ځانه مشغولا کا

واړه مست شو بد ویل کا — وسړیو ته بنکنځل کا

سل بلا ترخوله وباسی — په تیره تُوره وشړل کا

چه خپل زړۀ وچا ته ورکړے — هغه چارے په تا تل کا

زړۀ به ځۀ مانړه له چا کړم — په ما دا چارے زړۀ خپل کا

ځان به واچوم وسیند ته — څوک به داهومره زغمل کا

دۀ پخپله دا فتنے زده — کۀ بدخواه ورته بنښیل کا

نۀ ئے ویره دَ آزار شی — نۀ ئِم رحم په شړل کا

چرته ځم په چا فریاد کړم — څوک به یاد ځما دَ دل کا

بل تاراج نشته خوشحاله

واړه عشق دے چه نتل کا

هر بیمار چه دَ طبیب سره شدت کا — کۀ ئے کوړے وخپل ځان وته آفت کا

دَ ماهي ژوندون دریاب دے کۀ تر وُوت — په خشکئ کښے به دے کله فراغت کا

بنا پیرک چه له آفتابه نۀ پټیږی — دَ آفتاب دَ کومے چارے خسارت کا

ومهتاب وته دَ سپیو غپا کیږی — په غپا غپا ځان هسے فضیحت کا

دَ کونګټ دَ ګل دَ بویه نه بلا ده — ژواک ژوندون واړه په بوئ دَ نجاست کا

انبیاءؑ چه کافرانو وته بد شول — واړه چارے دَ شیطان په مصلحت کا

خوار هغه چه دَ غلیم په نغوته درومي — مدعي غلیم دَ نیکو نصیحت کا

یو دَ ږود په غاړه تږے تشنه لب مري — هر خسیس په خساست کښے خپل عادت کا

دَ فرقان په هدایت فاروق پوهیږي — نهٔ بوجهل بولهب ته هدایت کا

طهارت دَ مُسلمان کیږي خوشحاله
نهٔ اودس غسل دَ کبر طهارت کا

یار به څهٔ بے وفائي کا — چه بے جرمه جدائي کا

لکه شمع له ما ډیږومي — په بل ځائے به روښنائي کا

عاشقي دِ هغه کاندي — چه قبوله رسوائي کا

خوبناسُت لوی دلبره — هومره کبر و منائي کا

خوار خوشحال ته دَ سرو شونډو
بوسه ور کړه گدائي کا

یار م مرور دے که څوک وي چه ئے پخلا کا
زر پاسه ریباره څما زړهٔ هسے بلا کا

تل به دَ جفا په دریابونو کښے غوټے خوري
څوک چه زړهٔ دَ دَور په دلبرو مبتلا کا

څهٔ گنده عالم دے مړهٔ ئے دود وے مړهٔ ئے رسم
ورښے په ځائے پریږدي و مړو و ته صلا کا

هیڅ سزائے نشته باندِ لاس دما دَ زړهٔ شوے
تورے سترگے ستا دي چه دائم دَ زړونو غلا کا

ستا دَ تورو زلفو ظالمي څهٔ پټه نهٔ ده
مست چه زورور وي ظالمي ئے برملا کا

تهٔ چه عاشق کړے قبلوه په عاشقئ کښے
تل په عاشقانو باندِ خلق آلا آلا کا

ستا خونخوارو زلفو زړهٔ تنها نتلے نهٔ یم
څو به دما خوار غُنډِ لا نور هسے جلا کا

راشه کهٔ نے گورې دا په خیال جمال مغروره
ځو رنګه نازونه په خوشحال خلا ملا کا

یارچه تل هسې جفا کا ظلم جور سل بلا کا
نور څوک هم شته په دُنیا کښې خو کهٔ تل به نے په ما کا
راشه گوره ستا له لاسه څوک خندا څوک ژړا کا
دَ هغو په حال خبر پهٔ چه په دردرته دُعا کا
کهٔ ربنتیا ورځې نشته مرګ نے مهٔ وه لا تل ربنتیا کا
څهٔ نے شته په زړهٔ پوهیږم دا چه څې نظر ترشا کا
مخ نے ګل دے زهٔ بلبل یم تل بلبل دَ ګل ثنا کا
هیڅ ما نړه مکړه خوشحاله
بنا نشته خپله رضا کا

په سپین جمال چه تار په تار دوے زلفې عنبرفام کا
محبوبه غواړې داچه رڼا ورځ په عاشق شام کا
چه تیرے دَ یار زلفې یا دوُم مقصود م دا دے
چه ما دَ یار دَ زلفو دَ حلقو دیوانه نام کا
عاشق چه په جهان کښې خپل ژوندون له خدایه غواړی
دَ زړهٔ مقصود نے دادے چه خان ځاے تر دلارام کا
زهٔ مست بیخوده پروت یم په یوه پیاله دَ میو
ساقی بنیښه نیولے راته فکر دَ بل جام کا
په مخ دَ بنو محبوبو زهٔ مئین څهٔ هومره نهٔ یم
چه یا به نے څوک وکښی یا ئے شرح څوک مدام کا
دلبره چه له دله دَ عاشق په مرګ راضی شی
دَ سترګو په کاتهٔ کښې وعاشق وته پیغام کا
چه تامنع کوی دَ بُت په عشق کښې ورته وایه
کعبه دَ کا نړو ګوره ترو دے څهٔ خلق احرام کا

کهٔ غټ دَ عنایت په سترګو وګورې خوشحال ته
دَ دهٔ مقصود به واړه په یوهٔ نظر تمام کا
نشته په دا ښهر څوک چه نهٔ دے خریدار ستا
خرنګه ډیر تود دے چه م ولیدهٔ بازار ستا
ښه دهٔ سرو وُنه نهٔ چه ښه ده ستا ترقده
شهد کهٔ شیرین دی نه شیرین دی تر ګفتار ستا
ښے دَ هوسۍ سترګے دی نه ښے دی ستا تر سترګو
ښهٔ دَ زرکو یون دے نه چه ښهٔ دے تر رفتار ستا
څوک دی چه تا وُوینی منین در باندِ نهٔ شی
هر لوري ته ډیر دی کهٔ ئے ګورم خریدار ستا
چاچه تا ته کړے یو نظر دے په درست عمر
څوچه دُنیا پائی نور به تل وی طلبګار ستا
زهٔ به ورته نهٔ وایم سړے چه تش کالبد دے
هرچه تهٔ ئے وُلیدے لوټ نهٔ شو په دیدار ستا
ګل دَ لاله داغ لری سختی دَ رامبیل پانړے
چاوے چه لاله دے یا رامبیل دے ګلعذار ستا
ډیر طبیبان راغلهٔ لکه راغلهٔ هسے لاړل
راشه حال ئے ګوره چه څهٔ حال لری بیمار ستا
وے م وطبیب ته چه دَ رنځ دارو م وکړه
وے ئے چه دارو کړم اوربلیږی په پرهار ستا
سر لری خوشحال درته پیشکش کهٔ دِ پکار دے
بِه تر دا نور څهٔ چه دَ چا سر راشی پکار ستا
په زړهٔ م هسے نهال ئے اے له دوُو سترګو غائبه
کهٔ زهٔ بله نامه وایم نامه ستا راشی په ژبه

هردم م ډیره ځله اضطراب شي ستا دیدن ته
په تړی بانډِ تل وي دَ اوبو مینه غالبه

تره ترخه کهٔ نهٔ وے دَ خوږو قدر به نهٔ وو
سکه ځکه جدائي شوه آشنائي سره واجبه

یو دَ بیلتانهٔ ږغوری ګرانه ده کهٔ نهٔ وي
نور همه زحمت آسان دے کهٔ نس خوږے وي کهٔ تبه

ناځا په دوه مشتاق چه سره ووینی په سترګو
تر دا به بله نهٔ وي په جهان کښے عجائبه

په ډیر ضرور خوشحال دَ یار له مخه جدا کیږی
ارواح کله راضي وي چه بیلیږی له قالبه

په هغه جهان به خلاص کړ له عذابه — کهٔ دلے ئے سریکار وي له کتابه
وارہ نرهٔ یم چه م هسے شراب بد کړل — ګنږه کومه بدی غواړے له شرابه
دَ شیطان له چاړه لرے لرے ګرځه — یو درنګ مهٔ اوسه بے چنګ و بے ربابه
دَ بنهٔ مخ په نندارهٔ کښے خیریت دے — کهٔ ځما له لوری چارنهٔ شي خرابه
چه دا هسے ارت ملک په خپل سر تنګ کړے — په خلوت کښے دِ ځهٔ سود دے شیخ و شابه
چه ئے سرے لمبے په ځان کړلے قبولے — دَ بنهٔ بوئِ نفس پیدا شو له ګلابه
هم حیوان ئے هم سړے ئے هم ملک ئے — کهٔ ته بنهٔ په ځان خبر شے له حسابه
کهٔ خبر له حاله نهٔ شے در ته وایم — په بل نام به بالهٔ نهٔ شے بے دوابه
کهٔ پخوائے خرابي ده چا لیدلے — بیا به هم وي دَ وجود مینه خرابه
هر طناب ئے ودانا و ته معلوم دے — دا خیمه ولاړه نهٔ ده بے طنابه

دَ خوشحال ختک په ژبه برکت شه
چه ویل کا په پښتو له هره بابه

تهٔ چه هسے په غوغا دروے سیلابه — ولے هسے په ساعت کښے شے بے آبه
آفرین دِ په همت دَ لوئے دریاب شي — چه په هیڅ ئے چار نهٔ ده کریابه
چه په پورته دَ کاغذو ګوډئ درومي — کهٔ رښتیا ده دا دِ درومي بے طنابه

دَطوطي ژبه اُستاد غواړي دَ نُطق — ګنګه دے به لا بترؤو تر غرابه
چه په مخ کښے دِ نابودِ شي واړه ستوري — دَ آسمان په ستوریو وخیژه آفتابه
کۀ لمبے ورباندِ بلے کا ایرے شي — دَ ژوندون هُنر به نۀ څي له سیمابه
له یاقوته دِ هالۀ سیالي ښبه کا — کۀ دَ اور په تاؤ کښے دانشي بے آبه
چه مرغونه وزر بیا مومي آلوزي — هیڅ مقصود ترسره نۀ څي بے اسبابه

په ځوانئ کښے اودۀ ؤو په زوړ والي
دَخوشحال سترګے بیدارے شوے له خوابه

خوار عاشق په خاصیت دے دَ سیماب — څو ونۀ مري څښے نۀ څي اضطراب
ولے هسے خپل عاشق په جفا وژنے — نۀ دیت شته نۀ قصاص شته نۀ عذاب
ستا دَ سپیو سره ګرځم ستا په کوڅ کښے — ګُندِ ما وړسره ګډ کړے په حساب
خوخوښي دِ دَخپل یار دَ دیدن موم — کۀ په ویښه میسر شي یا په خواب
چه په ډکه خولۀ دِ ووے یاري نۀ کړم — دَ بلا په خولۀ دِ ورکړم زۀ خراب
داچیستان دَ یار له شونډو راته حل شو — آوریدۀ شو یو ځائے نقل او شراب
په ملال ملال کا تۀ عاشقان وژنے — ستا په سترګو کښے چړے دي دَ قصاب
ماته څۀ وائے چه وایه څوک دِ وژني — تۀ له خپلو سترګو غواړه دا ځواب

کۀ دِ نۀ پرۀ وي چه به زړۀ دَخوشحال ګوړم
راشه وګوره په اور ایښے کباب

خپل بیمار م حواله کړه په نصیب — ورته زهر شوے ګولئ دَ طبیب
برآمد وړباندِ صوت دَ غراب شو — خوشامد ورته آواز دَ عندلیب
طبیعت چه محبط شي سود ئے نشته — نۀ په پند په نصیحت نۀ په ترکیب
په اعجاز دَ محمدؐ خلقو اقرار کړه — دَ بوجهل تل ناړے وے دَ تکذیب
عمارت لکه خطا هسے خطا څي — په اول ئے چه خطا پریوزي ترتیب
نصیحت دَ ناصحانو باندِ بادشي — چه زوال دَ چا دَ چارے شي قریب
دانشمند دے خپل دانش لرے ساتلے — دَ تعلیم او دَ هُنر اثر په زیب
دَ ځو په حال اومۀ کله پوهیږي — دَمقیم په حال خبر نۀ دي غریب

نصیحت بې ځایه واړه څکرخون دے — ځکه زۀ به تر غابښ لاندې کړم ادیب
دَ هلک مینه په چاوی په هلکو — دَ لبیب مینه په چاوی په لبیب
په ښکونو هم دُنیا و هرچا ورکړه — په جهان کښې پیدا نۀ شو یو حبیب

دَ خوشحال خټک په شمار په حساب نۀ دي
په هر ځائې په هر دیار لری رقیب

دا تاؤ تاؤ زلفې ښکاره کړه له نقابه — چه ځار ځار ئې شم له هره پیچ و تابه
زۀ چه چیرے تا ته سوال کړم تۀ بکنځل کړې — نور به څۀ غواړم تر دا خاصه ځوابه
دَ سمند سمونه سرۀ په وینو دروهي — کوره بیا دِ دَ چا مینه کړه خرابه
تا به هسے بے صرفه خونونه نۀ کړل — که دِ ویره شوے له خونه له عذابه
لکه څوک چه له تیرو تورو ویریږي — هسے ډار کوم زۀ هم ستا له عتابه
چه دَ ښکلي ښیا مخ نظیر دِ غواړم — په نور څۀ هم نظر نۀ شي بے آفتابه
که فتنې او خرخشې دَ ښکلیو دود دے — نه چه هسے هومره ډیرے بے حسابه

زۀ خوشحال که له تا خواست کړم مستحق یم
خوله دِ زکوٰة را کړه دَ حُسن له نصابه

که یو ځله مخ ښکاره کا له نقابه — دَ ښا ښت نامه به واخلی له آفتابه
لاله ګل به ئې له مخه خوبي پور کا — په زلفینو به سنبل کاندی بے تابه
خلق څۀ لره تهمت په زمانه بږدی — په چشمانو ئې دُنیا کړله خرابه
دَ خمار په علامت ئې سترګے سرے دی — که چا بے وخته بیداره کړه له خوابه
دَ خاطر وینې ئې نوش په ځائې دَ میو — بیائې نقل هم دَ زړونو له کبابه
خاصه مرګ دَ معشوقې دَ مقتولانو — چه جنت لره به دروهي بے حسابه
څما زړۀ قبله نما شو نۀ جارو زي — وبل لورته ستا دَ وروځیو له محرابه

په وعده ئې زړۀ خوشحال مکړه خوشحاله
دَ وفا طمع څوک نۀ کا له حبابه

که دیدن شوے بے نصیبه — ما به ولیدے حبیبه
په پرهار یم اور بلیږي — دارو مۀ سېزه طبیبه

زۀ دَ یاریم یارځما دے — ترمینځ څۀ غواړے رقیبه
لیونی به لیونتوب کا — بے پروا دی له ادیبه
وعاشق وته ناصحه — څۀ وئیل کړے بے تقریبه

ترفرهاده ترمجنونه
په خوشحال پیښه عجیبه

کۀ ناګاهه راښکاره شی هغه خوبه — زړۀ به یوسی له عاقله له مجذوبه
رقیبان به سرنګون له غمه پریوزی — کۀ په راڼۀ کښیےدَ خپل یاردرومی محبوبه
هرزمان په نوی نوی غم اخته شوم — چه تل تل نوے شیوه کادل آشوبه
دَیوسفؑ دَمینے لاف واړه عالم کا — ولے بل پسے ړوند نۀ شوبے یعقوبه
کۀ لاڅۀ درته دَ سرومال وجود وی — په دا فکربه ورنۀ شے ترمطلوبه

تۀ ئے تل په سردُعا کوه خوشحاله
کۀ دِ نوم په ژبه نۀ آخلی محبوبه

مردهغه چه زړۀ ئے وینی سترګے په خوب — په خپل سپی ئےګمان شی دَ لیونتوب
درویشان دِ دُعا کا زۀ ئے په ځان کړم — کۀ دَ زړۀ نه مِ سوان شی دا زهوب
په مخ ویره بنائسته ئے نوم دِ څۀ دے — دَعاشق دَځان بلا فتنه آشوب
کۀ په توره ئے خواب ورکړے مردی ده — کۀ وجود دِ څوک آزارکا نھی په چوب
په هغې لاره چه بل ږدے هسے وایم — کۀ بانړۀ کړمۀ دَ هغے لارے جاروب
کۀ هردم ورته ژړا کړم فائده نشته — سنګین زړۀ به ئے په چا نشی نروب
دَ دُنیا سختئ تل نۀ وی غم مۀ کړه — په حلوا ګُندِ بدل شی دا اتوب
کۀ په تور دَعاشقئ بندیخانه شی — دَعاشق له نۀ ځی ستلا توب
کۀ مِ لاس وربانِدِ برشی هیرم نشی — ړیرسرونه به چیت پیت کړم په میخ چوب

ستا په تش دیدن مِ هسے زړۀ خوشحال شی
لکه ترے په اوبو شی بنۀ خړوب

ما دَمزکے په مخ ولیدۀ مهتاب — چه خجل ترے دا مهتاب دے هم آفتاب
دَ زلفینو ترنکهت ئے مشک شرمیږی — دَخولو تربوئے ئے نۀ رسی ګلاب

دَ وربل په هرهر پیچ کښې ئې نافې دي — مشاطه ئې چه پرا نزي پیچ و تاب
نور شراب ورته اوبهٔ دَ ترخوبې دي — چه ئې مست وي دَ لبانو په شراب
وې م زړهٔ م ستا دَ مخ په اور ورتیږي — وې ئې پریږده چه بنهٔ وریت شي کباب
ستا په راز م صورت سر تر پایه پُر دے — زړهٔ م کوره په تصویر کښلې کتاب
عاشقان م کُشتګان دَ معشوقې دي — کُشتګانو ځخه نشته سوال ځواب

کهٔ ته ځهٔ څوا اشارت وکړې دَ سترګو
دَ خوشحال خټک به ووینې شتاب

نول دَ تن دځان شیون دَ زړهٔ آشوب — یو ځهٔ بده بلا ده عاشق توب
والې ته په چا منین ئې راته وایه — بې له تا له نورو مینو توبا توب
خوله ئې چینه ده دَ حیات په تور سلسل کښې — نوم ئې شته لا هیڅوک نهٔ کړي پرې خروب
ستا له تورو شهلا سترګو ئې سیالي کړه — نرګس ځکه کیښنود سر دَ دار په چوب
خار و خس به دِ په لاره کښې پرې نږدم — چه ئې توبږم دَ مژګانو په جاروب
واړه شونډې په لذت سره یو نهٔ دي — خوک حلوا دي دَ نباتو خوک اتوب
لکه باز خال دَ تارو دا ښکار دَ دهٔ دے — کهٔ ځهٔ شي ځما دَ زړهٔ په تلاتوب
دا ځما دَ سترګو اوښکې وینې نهٔ دي — دَ ویښتلې زړهٔ له سترګو ځي زهوب

ستا دَ مخ په یاد ئې دواړه دَ زړهٔ لاړل
دَ خوشحال دَ زړهٔ آرام دَ سترګو خوب

پلاؤ وخورې یوه لپه — ننه پریوزې اندرغپه
هیڅ خبر نهٔ وې له ځانه — نهٔ له راسته نهٔ له چپه
نهٔ درود وي نهٔ دِ ذکر — هندوهم نهٔ وي بې جپه
چه هوائې درته بنهٔ کا — زړهٔ دِ ځي په هغه هپه
په هرځائې چه له چا کښینې — یا دِ راز وي یا دِ ګپه
نهٔ به ځان ترهرچا بنهٔ کړې — کهٔ بنهٔ کیږې په غږدپه

کهٔ په خپل فهم طبیب ئې
دَ خوشحال تر فهم تپه

بیا دَ مارغونډِ راضی له خپله بخته — چه دَغم له پوسته ووتم یک لخته
بیا هغه حسن وجمال هغه لیدهٔ شی — کهٔ دَ بخت سترګے م خوبږوے یوخوځته
ګرد غبار لړے وریځے ترمینځ لاړے — بیا دَ نمر سترګه ښکارهٔ شوله ویخته
خدائے دِ وار همت ورک نهٔ کا دَ مردانو — په دُنیا کهٔ بانډِ راشی ګرانه سخته
زمانے په هر بازار وګرځولم — خبردار ئے کړم دَ هر بازار له رخته
دَ بهار په وخت ئے بیا نشوونما وی — په خزان چه پانړے پریوزی له درخته

دَ خوشحال ختک طالع ترخرم ښهٔ دے
چه بندی شو خاوند بیا وروست ترتخته

په جهان کښے څلور قسمه دے نعمت — عاقلان ئے دی خبر په حقیقت
لمړے نعمت دَ علم دَ ښهٔ خُلق دے — دا نعمت په دواړه کونه دے راحت
بل نعمت په دا جهان دَ ډیر دولت دے — چه هر شان پرے ابلهان کا فراغت

بل نعمت دَ ریاضت دے کهٔ ئے ګورے
په هغه جهان راحت دے محنت

په خونی هاتی سوره شوه مے پرسته — زهٔ هم مست هاتی هم مست دے دام مسته
خدائے دَ دریو واړو مستانو سره سر کړم — بله نشته یا به نیست شی یا به هسته
نندارو لره ئے راشئ نندارچیو — یوه لویه هنګامه شوله پیوسته
چه ئے ستا زلفینے کیوتے په لاس کښے — لاس ئے پریوزه کهٔ ئے دے پریږدی له دَسته
یار دَ ما څخه دَ کور دننه ناست ؤو — زهٔ بے روحه ګرځیدم دَ دهٔ په مرسته
نهٔ یاری نهٔ آشنائی واړه لباس دے — چه خبر شوم دَ وګړی له بربسته
ما په وړیو سترګو ډیر یاران خوړلی — په څیر څیر دِ مخ ته نهٔ ګورم له کسته

دَ خوشحال په ځان دَ ډیر وغشی لګیدی
خو هم دهٔ زده چه دَ مری دَ چاله شسته

تورے سترګے ستا دی اے زیبا نګارے مستے
تور نرګس شهلا دی اے زیبا نګارے مستے

تا چه بوسه راکړه زهٔ پرے بے حسابه مست شوم
شو نړے دِ صهبا دی اے زیبا نګارے مستے

ما چه ستا دا کبنلی بارخو په ستر ګو خیر کړهٔ
ګل دَ لاله دا دی اے زیبا نګارے مستے

خولهٔ به دِ آخلی چه پرے ستا دَ خاطر مینه وی
ډیر په تا شیدا دی اے زیبا نګارے مستے

هرچه ستا له ظلمه و نور چا وته فریاد کا
واړه بے وفا دی اے زیبا نګارے مستے

خوب کاندی بے غمه یائے چیرے قرارے شی
ښوک چه بے له تا دی اے زیبا نګارے مستے

چارے په ما وکړے وائے چارے ښما نهٔ دی
ستا نهٔ دی دَ چا دی اے زیبا نګارے مستے

تا ووے خوشحال ته نورے لا ترما زیبا شته
ښوک ترتا زیبا دی ؟ اے زیبا نګارے مستے

چه مئین شوم دَ بلندے په قامت
راته ودَړیدهٔ داړ دَ ملامت

چه بلائے دَ قامت راته ښکاره شوه
ګویا پاسیده بلا دَ قیامت

چه محراب ئے دَ آبرو راته ښکاره شهٔ
هغه دم م تعره وکړه قد قامت

دَ مژګانو ناوکی ئے هسے نهٔ دی
چه به ښوک ورځنے درومی سلامت

چه نهٔ مئے نهٔ معشوقه نهٔ ګشت دَ ګلو
تیرئے عمر دے په غم په غرامت

نن دَ کبنلیو دَ دیدن ننداره ګوره
اوکهٔ نه ګاندهٔ به درشی ندامت

چه دَ کبنلیو ننداره و ښخه لاړه
خبر نهٔ یم کوم ګناه وو کوم شامت

چه نظر به دَ کرم په خوشحال کاندی
لا به کله وی دا فضل و کرامت

ښهٔ به وایم دَدے نفس له آزمینبته
نفس آدم دے را ایستلے له بهشته

چه پکښے دَ دواړو کونو مراد مومی
هغه چار دِ ترنظر لا ندِ کا نړشته

دَ کیمیا دَ بوټي ګل کله موندهٔ شي
چه دَ ښنو تلي ګلګون نهٔ شي په غوښته

دَ سړیو په غفلت پوره حیران یم
چه په کور کښې توره خاوره هومرهٔ نښته

بیا به څله څوک طلب دَ دُنیا کاندی
چه ئې خلاص نهٔ وی یودم دَ کار له کښته

کهٔ دَ سرلاندِ بالښت کښیږدی دَ پرو نو
عاقبت به تر سرلاندِ کاندی خښته

دَ دُنیا مینه په مثل دَ خارښت ده
هیڅوک نهٔ وینم خالی له دے خارښته

د صحرا په کا نړی رخه دَ شیطان شوهٔ
عیسیٰ سر په مزکه کینبو له بالښته

دَ زړهٔ مینه په مثال لکه پتهک ده
چه دَ کوهٔ ښتن وهله هورته رغبته

غم ئې واړه دَ آشنا دَ بیلتانهٔ دے
دَ خوشحال چه سریکار شوله جوړښته

چه رِم ولیدهٔ په سترګو ستا ښائست
بناپیریو څخه نشته دا ښائست

هم هغهٔ دربا ندِ هسے شان مئین کړم
چه د سړکړے ئې وتادے دا ښائست

مخ ئې کله دَ لاله غوندِ ښایا دے
دَ لالا تر ګل ئې ډیردے لا ښائست

ګرمه نهٔ ئې چه خیلخان ستائې نګارے
وائې نهٔ لری قمر څما ښائست

لور په لور به دَ بلبلو ژغ پرے وشي
کهٔ صبا کا دَ ګلونو وا ښائست

دَ نرګس ګلونه هم هرګوره ښیب کا
ستا دَ سترګو وینم لا زیبا ښائست

عاشقان دِیرٔ پتنګ کړل چه وریتیږی
خدایه تا کړ په جهان پیدا ښائست

ملاحت وو نزاکت وو لطافت وو
دَ خوشحال دلبره سرترپا ښائست

چه ئې خوب په پالنګ نهٔ ووبے دَ پرو له بالښته
راشه ګوره تماشه کړه ترسرلاندِ اُومه خښته

چه فانی دُنیا دُنی ده بُود ئې نشته ناهنی ده
څکه داده اے نادانه دَ هوښیار ترفهم زشته

دا دُنیا خارښتی بزه ده په ساتل ئې څهٔ مزه ده
شپون ئې وشړی له بزو نه چه ئې بوهشی له خارښته

چه هم تول ځي هم دلئ دا طوفان دے که ږلئ
چه وړې موندۀ نۀ شي هغه توبه له هسے کښته

ماليدے په دا چشمانو وړانے مينے دَ شاهانو
يکباره ورځنے ولاړۀ چه ئے درسته دُنيا غوښته

دَ لکونو پيدا غول کړه دَ جهان ګنجونه تول کړه
نۀ به تۀ نۀ به ستا پښت وي بيا سنجر شو يو څو پښته

دَ سيلاب په مخ دِ کوردے دا دنی فکر دِ نور دے
چا به نۀ کړه هورته خونه چه به دا په سيلاب رغښته

په دُنيا کښے که شداد شے بيا به تۀ په بلاياد شے
که بهشت په دُنيا روغ کړے څۀ دِ سود دے له بهشته

هغو يوړله له ځانه دا فانی دُنيا اے خوانه
چه ئے تار په تار خوره کړه نۀ هغو چه ئے ونغښته

مائے وليدل کاروونه طور طوس رفتارونه
په ورتلۀ به ستغ ختنه په تلۀ کندے غوندِ رغښته

که کم عقل که کانائے که هوښيارنے که دانائے
دَ ميرباز غوندِ ورزغله دَ خوشحال غوند ترے تښته

چه دَ پلار په بدګو يئ سرشی يوت
صد لعنت دَ دۀ دَ مور په ګنده چوت

چه دَ مور په چوت ئے خير وبرکت وی
له هغې موره به نۀ زيږی کپوت

بختورئے هغه پلار هغه ئے مور وی
چه له موره نه فرزند زيږی ثبوت

دَ بد خويه زغ دَ فسق ودَ فساد ځی
دَ بنۀ خويه ځی نارے په ملکوت

دَ مزری په خوئ پيدا شی ځنے خويه
ځنے غواړی دَ ګيدړ غوندِ خپل قوت

چه ئے نوم په جهان پاتے شی دَ نيکو
هغه خوئے دے په جهان کښے لا يموت

وصورت وتهٔ ئے مۀ غږوه ستر ګے
دَ خپل خويه خو عمل ګوره کرتوت

دَ سپين توت چه مزه نۀ وی څۀ پکار دے
که بنۀ خوند لری ترے بنۀ ګنږه تورتوت

ډير خوانان چه احمقان دی لکه پياز دی
وخوشحال ته هوښيار مشک دے پير فرتوت

خۀ به لا ډیر بنۀ وې د بهار د ګلو وخته
که زر درپسې نۀ وې د خزان سیلئ سخته

په وخت د بنو ګلونو دو ساله باده نوشلي
د زړۀ اندوه دِ واړه د عشرت یوسي یکلخته

په وخت د بنو ګلونو په خلوت دننه ناستے
را ووځه ننداره کړه ناسوتی شیخه بدبخته

هر ګل وته چه ګورے ګوښے ګوښے ئے نکهت وي
په رنګ سره یو نۀ دي نفیوسم د بل له رخته

په سم دي که په غرۀ دي د بهار خاصه ګلونه
آخر به ئے رشون وي د ګلونو له درخته

چه تعینه د اهار کرمه سیلئ شي په چمن کښے
ګلونه د لاله لکه بادشاه پریوزي له تخته

چه کښته پورته زانړے مرغاوئ تلۀ راتلۀ کا
خوشحال خټک خوښ کړي په جهان کښے دادوه وخته

څوک به ستا د مخ نقاب کا رټے پټے
څوک به ستا په انګیو کښیږدي ګوتے

که دِ بیا نوي شیوے په خاطر نۀ دي
د وربل غوټے دِ خله دي آرتے

مظلومانو ته څۀ خو نظر وکړه
په دربار دِ فریادي دي څیرے ختے

چه ئے پښي شاله ما هو مره ویل کړه
مخامخ د هغو ولے ژبے نښتے

په خپل یار به ئے کیدے داهسے شندے
چه همیش ئے د رقیب خبرے نغوتے

یار په هر لوري جلوه کا ورته ګوره
که دِ نۀ دي د لیدلو سترګے تتے

په نوروز کښے دا غزل واخله مطربه
په آواز به دِ بلبلے شي ساکتے

ګل ته چا داهسے زیب وحُسن ورکړ
چائے هسے ته په ته پانړے پرانتے

د خوشحال په پالنګ بیا راغله سرشاره
په زعفرانو په چووه لړ ډ ختے

خپل پردي چه چالینده په لاس آخسته
هر یوۀ کړه په ما تشه درسته درسته

چه قضا د ما د چا په غشي نۀ وه
د بادشاه لینده ئے هم کړه په ماسسته

چه تعلیم ئے د سیفي له ما نه آخست
بیا هغو د ما د بدو سیفي لوسته

په زرګونو راته لاغے د یارئ کړے
په دولت کښے ئے د ما بلا آخسته

اوس چه ورځے د نکبت راغلے یو ناشته
چه څما د پاره وُدځي له باڼسته

که بادشاه له تخته پریوزي نا آشنا شي
بادشاهي ده د دولت په تار آمسته

د نکبت ورځے په مثل د دانو دي
بنا ئسته سړے وباسي له بنائسته

هُنر ونهٔ عیبونه شي خوشحاله
دَ سړي چه چار دَ بخت شي سسته پسته

دَ شرابو مستي ژر شي نیست و هسته
لایزاله مستي نهٔ دي و مي له مسته

چه مِ نوم په جهان لاړ شو دَ رندۍ
دَ رندۍ کار به نهٔ پرېږدم له دسته

کهٔ باداشاه ئے په زندان کا غم ئے نهٔ وی
دَ آزادو آزادي ده له الستة

نهٔ یاري شته نه خپلوي وار غلول دي
چه خبر شوم دَ وګړي له بربسته

دَ ښادۍ په اُمید اوسي په غم کښے
تل په شپه پسے را دروِمي ورځ پیوسته

دَ مقصود ګوهر په لوئے دریاب کښے پروت
غواصان پکښے غوټے وهي په مرسته

په ادراک له قعره نهٔ ګوري ساحل ته
هغه کب چه ویره وُويني له شسته

دَ عاشق خاطرا و خیال لکه دریاب دے
چه چپه ئے کله لوړه کله پسته

دَ خوشحال له زړهٔ دَ یار محبت نهٔ ځي
لکه مینه دَ خپل بُت له بُت پرسته

دَ صبا نسیمه راشه ګلشن ته
دَ ګلونو انتظار دے شګفتن ته

زاهد څهٔ خبر له عشقه چه عشق څهٔ دے
دَ ګلزار له حاله څهٔ وائے زغن ته

زاهدان چه په پنځه وخته سجود کا
زهٔ دائم په سجده پروت یمه وثن ته

دَ لیدو په ننداره ئے نهٔ مړېږم
کهٔ هر څو په ځیر ګورم وديدن ته

تهٔ خو بادشاه تُخ په زړهٔ کښے داغ ږدے
چه په شین شین دړومے وچمن ته

قهرمهر دِ دَ ورځو په مینځ وینم
دَ جبین تخته دِ اینبے ولوستن ته

کله جنګ وخرخشے کړے کله مهر
زهٔ په زړهٔ ساده حیران شم هوړفن ته

کهٔ دما په مرګ دِ زړهٔ کړ دایم زهٔ هم
ستا جفا جور نژدے کړم ومردن ته

اوس دِ اورسا باندِ بل کړه پستنه شه
چه لوګے دِ ننه نهٔ وُوځي پیرهن ته

کهٔ تل ستا له لاسه تُوره دَ ستم وی
ما خوشحال قبوله کړے وګردن ته

دواړه شونډے کړه په بیار ته
دَ رسیږي وکړه خپل یار ته

زهٔ چه ستا ومخ ته ګورم
زړهٔ مِ نهٔ کیږي ګلزار ته

گل له شرمه خولې پرېږدي
چه نظر کا ستا رخسار ته
که م واړه ور باندې جوړ شي
منتظريم وخپل يار ته
گله دا دې باندې ښائي
چه خير خير گورې وخار ته
که وفا کا که جفا کا
يار دم مه وهه اغيار ته
آئينې وته نظر کړه
که دې مينه شي گلزار ته
زار وچا ته کړې خوشحاله
چه دې نه گوري څوک زار ته

دَ شوم سړي له کوره که اوبه وي دَ حيات
په ما باندې لگيږي لکه زهر دَ ممات
موسیٰ څخه هيڅ نه وُو دي سره يوه عصاوه
قارون څخه دُنيا وه خودئې وليدۀ آفات
هرچا څخه چه مال وي وبال هم ورسره مل وي
دا نا به هسې کار کا چه ئې نه وي وبال زيات
دَ گل دَ عمر کار دَ دُنيا مال دَ سفله مهر
دا دري څلور کاروته بې بقا دي بې ثبات
چه شرم ننگ ئې نه وي نه هُنر لري نه پوهه
په مال ئې نظر مکړه مه په حُسن مه په ذات
دا نا په څُکر خون کښې دَ نادان خوبني افزونه
عالم واړۀ حيران دے په دا هسې واقعات
چه تل به پرې ښادي وي غم به نه ورځي په عمر
هيچا راوړے نه دے په دُنيا کښې دا برات
عادت دَ فلک دا دے هم دې ښاد هم دې غمژن کا
که هرڅو ښه صفا وي بيا زنگ ونيسي مرات
خوشحاله څه اندوه کړې خوښ په دا اوسه خوښي کړه
چه بې ماله غني ئې نه دې حج نه دې زکوٰة

کۀ م سترګے دَ باور کړے سره لواتے | په جهان کښے خونیکی دہ نو ړے باتے
کۀ دِ لاس دَ نیکئ نۀ رسی دَ زده کړه | ړاشه واوره اَلْاَعْمَالُ بِالنِّیَاتِ
په جهان کښے کۀ حجاج . نوشیروان وو | هم دا داد او هم بے داد شو ځنے پاتے
له قسمته به نۀ کم نۀ به څۀ زیات شی | دادِ واړۀ اندیښنے دی کم و زیاتے
کۀ په څۀ هُنرِ هومره توان رسیږی | چه به تۀ کړے دَ مرګی لښکرے ماتے
بیا هالۀ په جهان خوښ ګرځه هوس کړه | ګنړه نورے اندیښنے دی کم و زیاتے
دَ دُنیا ودانے څونے چه لیدے شی | عاقبت به ئے مرګے کا ندی میراتے
له دُنیا نه هم هغو ده بخره وړے | چه ئے نوم شی دَ نیکئ پکښے پاتے

سر تر پایه دَ خوشحال سره لباس کړے
خدائے دِ واخله لباسی دُنیا کم ذاتے

کۀ داستا سترګے راوجار باسم خان ته | له ښادئ به نور شاکړم وجهان ته
یو زمان م کۀ داستا لیدل نصیب شی | نور به سترګے پورته نۀ کړم ګلستان ته
طبیبان دِ خپل دارو ورځه کښیږدی | تا و یشتلے مینه نۀ کا و درمان ته
کفرستان دَ شاه دَ تورو زلفو ګوره | چه په څۀ رنګه تاویږی وایمان ته
چه په ما باندِ تیریږی ستا په عشق کښے | خدائے دِ هسے حال پیښ نۀ کا مسلمان ته
په جوړ بورا به هم نۀ کا وتنه | عاشقان کله خالی دی وسهمان ته
اول ښۀ شهپر پیدا دَ الوتو کړه | بیا له پسه الوتۀ کړه وآسمان ته
په فراق دَ ښو یارانو چه ډیر ژاړم | دواړه سترګے م پیغور کا وباران ته
چه په خپله افغانی ژبه نادان دے | په ترکی خبرے څۀ وائے افغان ته
ملائے دواړۀ شوندے بیا موندے په کور کښے | نور دِ لعلو لره درومی بدخشان ته
هغه شوندے چه ځائی بے پانوسے دی | هغه شوندے څۀ حاجت لری وپان ته

له خوشحاله ئے بهرام غوندِ پیدا کړ
دم واهۀ نۀ شی څوک څۀ وائی یزدان ته

ما چه نظر وکړو په ذرات په موجودات | ګول په جهان راغلم تر به ګول دروم هیهات
یو څا در ترمیان وی فهم پاتے شی له کاره | دا هومره کیسے هومره ادراک دَ سماوات

هیڅ نبي ولي ئې درست اسرار موندلې نهٔ دي — لويه کارخانه ده کهٔ وګورې کائنات
وزيري له نوحه دَ طوفان په موج فنا شي — خوئې دَ آذر وموسیٰ له ناره نه نجات
کار دَ بل حکيم دې چه څهٔ کاندي هسې کاندي — واړه سر دَ ګم دي دا آبا دا اُمّهات
دخل دَ ساعت دَ طبيعت دې کهٔ دَ نور څهٔ — نيک زيږي له بد وله بد ذاتو نه نيک ذات
هومره علم نه دے کړه چه فرښتو ته سبق ورکړې — بيا به خبر نهٔ ئې دَ جهان په ترهات
نه دي کهٔ مقبول دي کهٔ معقول کهٔ نامعقول دي — ګوره نندارهٔ کړه تر دا دم مهٔ وهه زيات

سر په سجده کښېږدي وائي موږ ګوم خوشحاله
زړهٔ ته نظر نهٔ کړي پکښې څولات و منات

نن مې وليده هغه مسته — غنچه خولهٔ ئې نيست وهسته
په دوو زلفو عنبر پاشه — په دوو سترګو مې پرسته
څهٔ شيوې دي په جهان کښې — دَ همه شيوو همدسته
منفعل ئې ګل تر مخه — تر بنهٔ قدئې سروَ پسته
اوس مې بيا مونده په کور کښې — چه دائم ئې ووم په مرسته

دَ بالا بلا ئې بنه ده
دَ خوشحال سره پيوسته

يار مې کبرجن شوخ څهٔ به ووائي وما ته — درومه صبوري کړه نور به څهٔ وايم وتا ته
صبر به هرګز له هسې ياره وکړې نهٔ شي — درومه سکه دُعا کړه چه دِ مينه شي تر ما ته
تل دعا زاري کړم لا مې مينه پرې زياتيږي — زاړه زاړه زاړه ګوندِ غوږ کا ستا ښړا ته
تل په ورځ ورځ زاړم لا ئې زړهٔ په ما بندېږي — لا په ورځ ورځ زاړه چه ئې لا شي خوښي زياته
خوش به لاهالهٔ شي چه زړهٔ ومرم په ژړا کښې — ومره چه دا مرګ دِ لا بهتر دے تر حيا ته
نهٔ په مرګ راضي يم رقيبان به خوارانغ کا — مخ دَ رقيب تور شه ګوره تهٔ دَ يار رضا ته

شهٔ په مرګ راضي خوشحال يوه خبره وايم
يار کهٔ مخامخ په وخت دَ مرګ کښېني وما ته

کهٔ عطار دَ خپلو مشکو کا صفت — په دا څهٔ خوئې ساوان نهٔ شي نکهت
مشاطه دِ دَ دړيو آرائش کا — ولې دريغه کهٔ دَ ناوې وي صورت

کهٔ دَخرهٔ زین دَسرې واړه سرهٔ زرکړې    خربه آس نهٔ شي په دا زیب وزینت

ګوهر هم لکه یاقوت هسې لیدهٔ شي

جوهري ئې خبردار دې په قیمت

ما دَ نیت خبره وې و ناکس ته    نورڅهٔ نه په نن ئې وې وعسس ته

خوږې شونډې به ئې نهٔ موې وهه ئې    سرپه دواړهٔ لاسه وایه و مګس ته

دې پخپله دَخپل ځان په سوختن دې    دَ ګذار له حاله څهٔ وائې ققنس ته

نهٔ چه نن دا رنګینه خبرې وایم    پرې پوهیږم چه به پاتې شي بیا پس ته

وطوطیانو ته مِ پریښو دې خبرې    دامردار ه جیفه پاتې شوه ګرګس ته

یائې رنګ یائې آواز دَ ځان بلا شي    ځوک چه اچوي مرغونه وقفس ته

ګله نورعیب دِ نشته عیب دِ دا دې    چه په واړو ستر ګو ګورې وهرخس ته

دَ غفادٌ کال بهار ګوره خوشحاله

چه دَ مړو بهٔ ئې هوا وشي هوس ته

په رښتیا ویل غوږیږي دَ زړهٔ غوږه    دروغژن خوري لکه سپي دَ غولو سوږه

په دریاب کښې خښته واچوي هیڅ نشي    په یو ځو ځاځکي خوره شي اومه لوږه

دَ هغې بنځې صحبت لکه دوزخ دې    چه میړهٔ وته تل کښیني په مخ بوته

په دا کار نادان هوښیار دواړه پوهیږي    دَ کابل خربوزه بِه ده تر پهوږه

ځوک خمونه تشوي مستي ئې نهٔ وي    ځوک دَ میو عربده کا په ځو ګوږه

دَ هغهٔ یاري پکار نهٔ ده خوشحاله

چه له خپلې خولې وباسي وینا جهوږه

کهٔ دَ شمع غوندِ کښیناستې مخ پیږه    تجلې دِ دَجمال وینم تر خپږه

تهٔ ورځه په نجاست باندِ پیرې کړه    دَ ګلزار له ګلو څهٔ غواړې ګونګټه

دَ چند نر دَ ونې لږ لرګی تحفه دی    نهٔ دَ بلې بدې ونې درسته ستږه

په وکښلو بهٔ ئې ځوک وي چه بدوائي    دَ ګلنو هیر ونه کهٔ خیږي تر بنسته

کهٔ په ځو را باندِ وخیږي خدا شي    راته وایه چه دِ پریوزه دواړه متږه

مګر مرګ ئې په ارمان وبله جدا کا    دَجیجی جدائي نشته له لو یږه

چه دِ نرۀ هغه به و وینې خوشحاله
خو یوه قطره کۀ تیرشې تر دا خته

چه بد نۀ کاندی خبیث
نور به څۀ کاندی خبیث

خنې طمع دَ بنو مکره
کله بنۀ کاندی خبیث

چه دَ بل بنسیګره وینی
ځان اوبۀ کاندی خبیث

کۀ ئې ځائې وکړې په زړۀ کښې
خوږ دِ زړۀ کاندی خبیث

کۀ ځما په خولۀ شی خدائې دِ
زړ ړاندۀ کاندی خبیث

چه جهان ورځنې خلاص شی
خدائې دِ مړ وکاندی خبیث

دَ میږی غوندِ خوشحاله
الواتۀ کاندی خبیث

یارم بیا دَ سترګو تورکا الغیاث
واړه جورظلم زورکا الغیاث

په ماخوار باندِ ئې نرناحقه لیږدی
سل بلا دَ څنګه نور کا الغیاث

زاهد هم هسې له عشقه خالی نۀ دې
په عاشق به څۀ پیغور کا الغیاث

چه دَ وصل په دولت وی سره جمع
جدائی به هغه خور کا الغیاث

دَخزان دوک ئې لیدلې دې په سترګو
چه بلبلې هومره شورکا الغیاث

هومره اورچه دَخوشحال په خاطربل دې
څوک به مړ دا هومره اور کا الغیاث

ساقیا آتش مزاجه
له صفا مینا زجاجه

دَ شرابو پیاله راکړه
دَ همه زحمت علاجه

نۀ یوه پیاله دَ میو
نۀ دَ درست جهان خراجه

زۀ او مئې اے محتسبه
کۀ م خونه شی ناراجه

ورګدا دَ میخانې شه
کۀ شاهی غواړې له تاجه

دَ رندانو بازارتودوی
دَ شرابو له رواجه

صومعې ته تلۀ له دیره
یاوه کار دې بې منهاجه

دَ ساقی پیاله راواخله
پکښې ډیردی ابتهاجه

ساقي هر كله دِ وينم مه جبينه مخ سراجه
دَ بلوړو پياله ډكه
دَ خوشحال دَ احتياجه

ته چه خيال په زر زرې جامو كړې غنچې دَ آسمان ستورې به نشي په دا تخچې
كهٔ بادشاه دَ مملكت شي په تخت كښيني چه به تل په جهان نهٔ وي دا په پيچې
ځان چه كم كړي تر بله هغه لوئې شي دَ سليمان كوته په دا را غله په خچې
څما ستا په خوله به مرګ كا تورې خاورې كهٔ ته هر كله حلوا خورې زړهٔ خميچې
ودانې دَ درست جهان په محبت شي را شه كوره محبت دَ مچ دَ مچې
زړهٔ خوشحال كهٔ خپل مئين په ژړاموم
په ژړا به پسې نهٔ كړم ستر كي وُچې

چه صاحب نفر پرور نهٔ وي هم هيڅ په نفر كښې چه هنر نهٔ وي هم هيڅ
په پالنګ دَ معشوقې وړځي سر تيرې هر عاشق چه تير تر سر نهٔ وي هم هيڅ
له معشوقې نه شيوه بويه خو رنګه دَ عاشق چه پرې نظر نهٔ وي هم هيڅ
كهٔ په زر رنګه خوبئ آراسته وي چه ځلمي په بلا برنهٔ وي هم هيڅ
هوښيارانو لره عقل فكر بويه ليوني چه بې خبر نهٔ وي هم هيڅ
چه له شوره شره خلاص دَ مردكان دي دَ ژوندي چه شور شر نهٔ وي هم هيڅ
كهٔ بادشاه سره بې شماره خزانې وي چه ئې بنهٔ جنګي لښكر نهٔ وي هم هيڅ
مړني چه بې وسلې شو په څهٔ كار دې چه سنګي سړې تو ټكر نهٔ وي هم هيڅ
زړور سړې كهٔ تر خنګ كښينوي بنه ناوې چه قوت ئې دَ نهٔ وي هم هيڅ
سوداګر كهٔ وقوفدار دَ هر كالي وي په كيسه كښې چه ئې زر نهٔ وي هم هيڅ
كهٔ سړې دَ جهان واړه علم وُكا چه دَ دهٔ دَ عمل چر نهٔ وي هم هيڅ
باز كهٔ لوئې كټه خوشرنګ دَ دير صفت وي چه تيز پر په زړهٔ زړور نهٔ وي هم هيڅ
يو دَ بل له حاله پند آخلي خوشحاله
دَ سړي چه دا سير نهٔ وي هم هيڅ

* ...

آرزو لرم ساقي يو څو اقداحه
کۀ ئې راکړې دَ خاصه بښينې له راحه
چه دا هسې نوبهار د روژې بې ميو
داخبره په هر چا ده ناصلاحه
څما پير وائي دَ ميو توبه کار شه
دَ بهار په وخت توبه ده نامباحه
تل به وخت دَ نوبهار نۀ وي ګلګشت کړه
په دا باغ کښې ترصباحه تر رواحه
دَ نرګس ګلونه پلي سپاره راغلۀ
ننداره ئې دَ بهار کړه افتتاحه
رنګارنګ غنچه دِ واکړه په چمن کښې
دَ خوشحال دپاره بڼۀ راغلې مباحه

کلک خراباتي يم له مامۀ غواړه صلاحه
ډکې پيالې اخلم ترصباحه تر رواحه
څوک دي چه دَ نمر خوبي به ستا دَ مخ پخير کا
نمر مثال چراغ دې ستا جمال لکه صباحه
مۀ پوښته زاهده دَ ښۀ مخ له نندارونه
سترګې چه دا کار ډې په فتوٰی دَ عشق مباحه
توئ کړه په هنګام دَ حادثې ساقي په جام کښې
مې چه باد را پاسي په زجاج کښې بڼۀ مصباحه
پاسه محتسبه خوشحال راغې جنګ ته جوړ شه
غُسل په مې وکړه دَ مومن وضو سلاحه

دَ چمن په لوري وخوزه له کاخه
چه دَ ګلو ننداره شي انتساخه
ګل چه ستا تر لاسه دروغې تازه شو
لاس دِ لا لري شرف دَ ګل تر شاخه
غنچه ګل چه ستا له خولې سره سيالي کا
خوله ئې باد په طماچه کړله فراخه
دَ ښۀ مخ خوبي دِ ښه ده لا تر ګله
په زړۀ هم سختي لرې تر سنګلاخه
چه تراور تر اوبو وُوځې هالۀ ورشي
سور پيزوان دَ شاه دَ پوزې تر سوراخه
غه خبرې چه بې ستا له مخه کيږي
له هغو خبرو ونيوې صماخه
په بيمارو سترګو تل پڅې کښينوې شي
دَ خوشحال په ليمو ښه کيږده ګستاخه

دَ خوباله بې نيازۍ سل آوخه
چه څما له کاره تښتي په فرسخه
دَ يارۍ په کاروبار کښې فهم وکړه
چه را نۀ شي دَ بدانو سينه يخه
څان او زړۀ صبر آرام ئې له ما يوړل
له ژوندونه څوهم داخۀ وُورا ځخه
کۀ جهان په تا بښندم نۀ ئې قبول کړه
دَ ميږي په لاس خوښه ده له ملخه

هرچه نن دَ محبت په اور وریته شول — تروئے کله پروا کیږی له دوزخه
ډیر بندی ئے دَ زلفینو په کمند شول — کله وی چه به دوئ خلاص شی له دې ښخه
خوار خوشحال چه پکښے پریوت وتے نشی
څهٔ بلائے دَ شهیٔ چاهِ زنخه

یو قرین هسے پیدا نهٔ شو زما څخه — چه دما په زړهٔ ئے نهٔ کړه منګل ښخه
چه احوال دَ هر یوهٔ را ته معلوم شو — هر یوهٔ ته م تیار کړل یو خو څنګه
آشنائیٔ دَ نا اهل عالم نهٔ دی — په هر لوری تیرے تورے دی نا څخه
کهٔ په دَو کښے چیرے لړه بدری وخورم — له چا بله وینا وانهٔ وړم بے اخه
دَ هر چا سره چه کښینی ورته رام شی — نور وغاړے ته تیار کا لومه ښخه
کوته سګ دَ زمانے هر کوره ډیر شول — لکه پړانګ دَ زاوه ونیسه کړخه
چه رقیب ئے خوار و زار په نظر کښیوت
دَ خوشحال خوهم په داشوه سینه یخه

ابلهی بدګمانی تر هسے حد ده — تر نظر ئے له وسوسه ښه هم بده
بدګوئ خِست بد نیت تر دا په هورته — سکه رونړه ئے پردی کړل له حسده
کهٔ ښهٔ نیت کهٔ ښهٔ خلقت کهٔ سخاوت دَ — دلئے واړه له زړهٔ لاړل له خوله یده
په مجلس ئے بر آمد له مینځه تللے — بل مذکور پکښے خطا بے خوشامده
چه په ملک دَ پلار غلیم هغه ئے ستر کے — په دوستانو ئے دَ پلار کینه بے عده
کهٔ دَ باغ انګورئے ډیروی وخپل پلار ته — مګر درست ژنګورے ورکا له سبده
یا دِ ښهٔ خویه پیدا شی له ښهٔ پلاره — یا دِ هسے تنها اوسی بے ولده
دَ ژوندیو دَ زړهٔ رنځ کړ دَ مړو شرم — بل ژوندون دَ بابا ورشه تر لحده
دَ خوشحال عقل خطا نهٔ وو تور څهٔ وو
چه خانی ئے په بهرام کړله نامزده

افغان بچۂ شوخی هرګز په عاشق بماند
لطفے نه کنی رحمے دا هم کله خوک کاسند

A.S.KB

یک لحظ بیا بنشین ماخوښی په ښه خنداکړه
قربان سرت گردم، چه نوړو وته خاندِ

گل لافِ لطافت زد چه ته په چمن راغلې
ازغایت خجلت شد سرگشته ستا دَ وړاندِ

دُکان شکر یعنی ستا ښه خوږه خُلګئ
افشانِ شکر یعنی گاہے چه ته وخاندِ

کبک دری و عنبر، دا دواړه حبطه شی
گاہے که تو بخرامی دوه زلفې آویزاندِ

خوشحال دلش شیرے ستاستر کے لکه شوے
اے وائے که شد شیرے تر لکه شوے لاندِ

په واروارِ دَ خندا منت راباندِ
چه له ورایه رابښکاره شے راته خاندِ

چه ئے زړهٔ ترکانړی سخت دَے پرمئین شوم
لاس دِ نشی دَ سړی ترکانړی لاندِ

چه بل مخ وته نظر کړم دهِداد شم
تورے زلفے ئے ډُرے دی آویزاندِ

چه دِ توره دَ غمزو راته تیره کړه
اوس خو بهٔ شهیدی ده ستا دَ وړاندِ

رنگ وبوئ دِ دَخپل ځان هسے پیدا کا
کهٔ په رنگ دَ یاسمین دے گل دَ سپاندِ

زهٔ به څهٔ لره له نوره خلقه زار کړم
په ما واړه چارے زړهٔ دے چه ئے کاندِ

اوس خوشحال خټک خپل یار په غیر کښے وینو
رقیبان دِ سترگے اړوی نغلاندِ

چه دَ زړهٔ اخلاص دِ نهٔ وی له معبودهٔ
لا عجب کهٔ ئے راضی کړے له سجوده

محرمانو اجازت موندلے نهٔ دے
کنړه دیریه ئے خبر کړل له دے سُوده

محبت غلام بادشاه بادشاه غلام کا
خبر واخله له ایازه له محموده

خدائے ځما ترفهمه ښهٔ دَعشق هُنر کړ
کهٔ دا چار ده نور عالم وته نابوده

توړو ناغو دَ ګلونو قدر څهٔ زده
له جماله ئے بلبله شوه خوشنوده

په سنت به دَهمه زړونو مردود شے
کهٔ دِ چارشی تریوهٔ پورے مردوده

ترمطلوبه پورے شرط دَ رسیدو دے
کهٔ تمامه لاره په وینو شی آلوده

خو یو بخت دِ ناسازی راسره نهٔ کا　　تل کینه کوه له ما سره حسوده
کل مقصود دَ زړهٔ هوړ چه هغه یار وی　　بخته راشه تهٔ م ورو ړه ترمقصوده
ما خوَشحال ئے سودا کړے نادیده ده
کهٔ کالی په بهانه څٔی بے نموده

چه خدائے په بُت منین کړم کهٔ دا عیب دے هم وی دِ
سجود کهٔ دوشن کړم کهٔ دا عیب دے هم وی دِ
عالم وائی عاشق شوے زهٔ سوګند خورمه چه کله
درست خلق دِ وغږن کړم کهٔ دا عیب دے هم وی دِ
کهٔ نور خلق خپل زیست کا زهٔ سرتور مصله لنګه
په ملک ګرځم دیدن کړم کهٔ دا عیب دے هم وی دِ
کافریم کهٔ ئے وباسم هغه ساعت له ځړ بے
ستا نوم چه څنکدن کړم کهٔ دا عیب دے هم وی دِ
کهٔ ستا کوڅه جنت سره څوک سمه راته کښیږدی
کوڅه به دِ وطن کړم کهٔ دا عیب دے هم وی دِ
تحسین لره بل نهٔ لرم چه هومره ډیره مدحه
دَ خپل شعر سخن کړم کهٔ دا عیب دے هم وی دِ
چه څوان وُم دایم زور شوم په ربنتیا ربنتیا خبر و
عالم دَ ځان دښمن کړم کهٔ دا عیب دے هم وی دِ
شیخان او زاهدان وایه پټ پشی شا ویل کا
په مخ ئے مبرهن کړم کهٔ دا عیب دے هم وی دِ
کهٔ نور په صهبا مست دی زهٔ خوَشحال په خرابات کښے
مستی ئے په دیدن کړم کهٔ دا عیب دے هم وی دِ

چه صحبت دَ ملوکانو سره کا سَندِ
په ربنتیا ویل دِ هسے باوری شی　　بویه داچه ویل نهٔ کا لاندِ باندِ
کهٔ ئے دوایه پښے تنړاکے په خدمت شی　　چه پیدا کا خپل عزت دَ دهٔ دَ وړاندِ
　　دَ خدمت منت دِ نهٔ کا په دهٔ باندِ

حاسدان بهٔ یې زوال دَ دولت غواړی
همیشه دِ لوګوی وځان ته سپاندِ
دَ غضب په وخت دِ لړې ځنې ګرځی
دَ خوښئ په وخت دِ عیش ورسره کاندِ

چه نادان ته نصیحت واٸې خوشحاله
دا دِ واړه نادانی ده په ځان خاندِ

خدائې راکړه په غیږ کښې دَ دیدار منت راباندِ
سپینه خولهٔ سرې شونډې دواړه زلفې آویزاندِ

یار را سره یار دې دَ هر غم م غمګسار دې
غم اندوه م نشته چه رقیب رارخه کاندِ

پریږده چه پړې سوزی ستا دَ مخ بلا اخلی
عشق دِ لکه اور دې عاشقان دِ لکه سپاندِ

داځهٔ بارخونهٔ دی نهٔ پریشانې توري زلفې
پروتې دی په ګلو دَ سنبلو پاڼړې تاندِ

نهٔ وریږې د روسم دَ یوهٔ نظر په طمع!!!
بیا رته نظر نهٔ کا هسې د رومی مخ په وهاندِ

بخت نهٔ دې نور ځهٔ دی په داهومره ډیره مینه
ژاړی رخه کړونی چه خوشحال خټک ته خاندِ

ډیر عالم ځما په یاد
راغې تیر شولکه باد
هم داهسې راشی تیر شی
په ځائې نهٔ لری استاد
عجب لویه کارخانه ده
چه پیدا کړه لوئې اُستاد
وحباب وته نظر کړه
څهٔ حباب څهٔ ئې بنیاد
هسې نهٔ ئې کهٔ پوهیږې
بنهٔ مثال شو درته زباد
هیڅ خبر نهٔ شوې له ځانه
هئې فریاد فریاد فریاد
غمژن والې دِ په څهٔ وی؟
بیا په څهٔ شې هسې بنباد

څهٔ سختی لرې خوشحاله
دا دِ نړه دې کهٔ فولاد

دما کومه اندیښنه ده که ما پریږدے
تهٔ به نوم د بےوفا په خپسر کښیږدے

زړهٔ یو هسے یارلرم کهٔ رژ روزی شی
کهٔ صفت ئے د رتهٔ وکوم وبه ریږدے

تهٔ سرے ئے کهٔ څاروے ئے رنګ دِ ورکه شه
د بهار په سرو ګلونو باندِ پښے پړدے

ما په ډیرو سمتو اوردے لګولے
په داغهٔ کهٔ څو خسړی باندِ کښیږدے

زړهٔ چه ستا په دا اوږدو زلفو مئین شوم
لا به څو دُور او دراړه رانه بلیږدے

دخوشحال خاطر په مثل سجنجل شو
وارډه تهٔ دخپل جمال نخښے پکښے ږدے

داغهٔ بارخونهٔ دے ستا د تورو زلفو لاندِ
پروتی دی په ګلو د سنبلو پانړے تاندِ

تلئے په طلب ومٔ آخر خوښ له خپله بخته
هسے یار م بیاموند چه عالمئے کیسے کاندِ

قیس دو کهٔ وامق دو کهٔ فرهاد دو کهٔ خسرو وو
هرچه عاشقی کا سل رحمت په وارو باندِ

نورخلق فانی دی کهٔ باقی دی هم هغه دی
هرچه په فانی دُنیا یادیږی ورو ستو ورانږدِ

نورے کیسے څهٔ دی و خپل ځان ته نصیحت دے
شمعے ته نظر کړه خود به وژاړے چه خاندِ

تهٔ ګوره په چرته زهٔ خوشحال په کوم ملکونو
پاس په زړهٔ پرتے دی ستا د تور وربل پیاندِ

زړهٔ سړے چه دخوانئی هوس کاندِ
ورته وایه چه داغهٔ په کُنه خاندِ

چه په کال کښے ئے زور توب وی هم خوانی وی
د سری ترکاره بنهٔ دے کار د سپاندِ

کله هسے په خوان مور شی چه ئے نهٔ خوری
کله خوان ته سترګے اړوی نغلاندِ

په نیتونو په صورتونو په لا سونو
خلقے دی سره یو تبلهٔ هراندِ

اوس په سینه ږیره څهٔ له مزکه دار کړم
یاران تورے ږیرے ولاړل ترما وړاندِ .

چه د مزکے مخ ئے لاندِ وو تر حکم
راشه وګوره هغه ترمزکے لاندِ

دا عالم ریگِ رَوان دے کۀ ئے گورے
خو هم هسې سره اوړي لاندِ باندِ

دَ قضا تنور ما ولیدۀ په سترګو
ما خوشحال چه پکښې سیزي وچې تاندِ

سپې چه ولامبي په سرود — لابد بوئ شي دا دے دود
په بهار او په خزان ئے — هیڅ ونۀ شو څما سُود
لیونے لیونے تر شي — څوچه شي ورته سرود
په سوروالي کښې چه کارشي — وهیچا ته مۀ شه تود
چه ئے قصد دَ ګذار نۀ وي — هغه نۀ کا نغره خود

کۀ ته کام غواړې خوشحاله
کام به موے په مشود

عمرهر زمان رفتن کا لکه باد — مرګ دِهرسړے همیش لري په یاد
چه دَ عمر ئے بنیاد په هوا ایښے — په دا هسې ژوندون څۀ دے اعتماد
دَ آدم خاورے دَ غم په اوبو نم دی — خمیره په قدرت کړے چل بامداد
انبیاء او اولیاء لاړل و ګور ته — تۀ به وائے چه دَ دوئ نۀ وو بنیاد
دَ دُنیا ژوندون هیڅ نۀ دے کۀ ئے ګورے — چه هیچا ځنے بیا نۀ موندۀ مراد
همیشه ژوندون کۀ غواړے درته وایم — همیشه کوه دَ نفس سره جهاد
مسافر چه ئے سفر وی خو دَ وړاندِ — په مقدار دَ هغې لاړے اخلی زاد

راشه زړۀ له غیرو پریکړه اے خوشحاله
په امید ئے دَ دیدار لره زړۀ بناد

کۀ مې یوځله رسد وشي تر سنده — نور دِ نۀ وینم په تورو سترګو هنده
نۀ به سترګې دَ سړي په چا خوږے شي — نۀ ئے ما ته په اوبو شي دَ چا تنده
دَ پیپلو پانړے خوره په غرۀ کښې اوسه — نۀ چه پان دَ هندوستان خوره څما جنده
په هغۀ بازار به څۀ سود و سودا کړے — چه قارغۀ پکښې قدري دے تر شهنده
اے دوستیه عقله دریغه کۀ بخواوے — ما به ولے په خپل ځان کړه هومره شنده
هرچه وشول هغه واړه د بخت بلي — اوس خوشحاله په لاس مۀ نیسه ناپسنده

نوړ څوک نشته لاندِ باندِ　　وارِه دے دےچه څهٔ کاندِ
دَ دهٔ حکم به نوړ نهٔ شی　　کهٔ شړاکوے کهٔ خاندِ
دے قادردے باندِ بنائی　　کهٔ کیمیا کا کل دَ سپاندِ
څوک بیا وړباندِ پاس کړل　　چه پراتهٔ ژُو تربل لاندِ
څو سینۓ کړے قرارے　　چه په غم وے خُلبلاندِ
خلقۓ دی کهٔ ګوړے　　سره یو تربل هړاندِ

په لیدو دَ یار مړے شوے
دَ خوشحال سترګے نغلاندِ

ودِ نهٔ زیږی فرزند　　دَ بابا په غولی وند
دَ مریخ په کوکب شوے　　شوخ بے باک بلا لوند
دَ زهره په ستوری زیږه　　خوش خورم خوشحال خورسند
نحس او سعد اُوهٔ ستوری　　په نور شته لا بلند
په هغه طالع چه وُشی　　تر دا نور عالم کښے شی څرګند
بختور دانا مخ روښے　　دَ وګړی دل پسند
دَ دهٔ زړهٔ په هره چار کښے　　دَ همت سره پیوند
همګی په خوږو ږک وی　　دَ ګنی غندِ بند بند
دَدهٔ علم عطائی وی　　نهٔ سبق دَ دانشمند
چه ترڅه خهٔ وُباسی　　نصیحت وی وعظ پند
په خپل شرم ننګ راغلے　　نهٔ په شخوندوی نهٔ په خوند

داتهٔ څهٔ وائے خوشحاله
خرو ته څهٔ ورکوے پند

هردم تر نقاب لاندِ　　وعاشق ته شیوه کاندِ
تازه اوربل اودلے　　توږے زلفے آویزاندِ
انګنړے بناسته کړ　　چه راوو ته دَ باندِ
څما په مرګ دِ زړهٔ دے　　چه بے دردو سره خاندِ

څهٔ ظلم څهٔ ستم کړے چه پلو نيسے دَ وړاندِ
څهٔ عجب غزل ئے ووے
آفرين په خوشحال باندِ

هم خدلئے غواړے نادانه هم فانی دُنيا نابوده
په خوبه دِ روزی شی فکر وکړه دا دوه سُوده

چه سر په مخکښے کښيږدے زړهٔ دِ ډوب په انديښنو شی
په خدائګو که خبرئے دَ خاصانو له سجوده

په زړهٔ دَ کعبے مينه دَ کعبے په لور روان شی
يوغول دے په بيابان کښے بل سرسر کا بے مقصوده

يو وهم دے کهٔ څهٔ دے چه په خلقو باندِ پيښ شو
دُنيا دُنيا هيڅ نشته کهٔ نمود کهٔ نهٔ نموده

سيلاب دَ پاسه راشی په غورځی په کښته درومی
موجودهٔ دَ سيلاب دَ اوبو هم دهٔ نا موجوده

اِيَاكَ نَعْبُدُ لولے په سبع مثانی کښے
دَ زړهٔ دِ خو هوا دی هغه واړه دی معبوده

په صافه آئينه کښے هرچه وينے په سترګو
په لاس آخستهٔ نهٔ شی آئينه په زنګ آلوده

په څو رنګه ګنجونه په هر لوري په جهان کښے
تهٔ باد په لاس شنا ز شوے حبطه په هيڅ خوشنوده

خوشحاله ځوانی لاړهٔ په پيرئ کښے اوس مت کړه
حاصل چه په شړوندون دے هغه چار وګڼړه زوده

هر ګروه له خپل ګروهه ئے خوشنود — هر سړے لری نظر په خپل مقصود
دانشمند دَ دانشمند په صحبت خوښ دے — دَ جاهل په صحبت ګړ شی جاهل زود
مُسلمان ئے په لوئی په بزرګئی پوهـ دے — دَ جنيدؒ له حاله څهٔ پوښتی جهود
دَ جماع په لذت خيز کله خبر دے — که ئے حوره په پالنګ کښينی څهٔ سُود

چه په خوئ دِ خبر نهٔ شو غیرجنس دے
غیرجنس سره خوشحاله کم بهبود

داچه ګرځی کښېنی پاڅی پائنځے لنډے — شانکی وهی دربلی ځرېے لنډے
داهمه واړه رهزن دَ طریقت دی — خپلے خونے لره وړی پردئ ګنډے
نیک وبده چه وچا وته رسیږی — په خپل ځان تړی دا دواړه په ډوډنګے
دَعالم رخنے تړه په صبادے مره — خبرنهٔ دے داګیدی له خپلے انډے
ورنخوړته ورکوه صحت په نذر — کښلے خوئ په دروغ ورکړه وشنډے
قتلولے ورکولے باور وکړه — چه هم دادی په دُنیا کښے دَدین خنډے
چه به بے خدایه یقین په نورخهٔ کاندِ — دَهغو دَ ایمان یو وړی شیطان ونډے
عالم کفرته وباسه په زمان کښے — دے ترخپل ایمان وتلے لاپه ځنډے
شرع منډه دَنبی ده که ولی دے — یوقدم به بل سر نهٔ دروهی له منډے
دائے ذکر دَ کامل نهٔ دے اخستے — لکه خرونه نارے شوی وهی تونډے
لا به کله دا سګان وشړے خوشحاله
چه به دا ثواب حاصل کړے پنډے پنډے

دَخوږ وشونډوئے ډیر دے تلذذ — ترهمه خوږ دهٔ ئے تیردے تلذذ
ماوے زهٔ به ئے عسل سره نسبت کړم — دَ دشنام ئے په بل پیردے تلذذ
له شکرونه زهٔ نیوهٔ شی نهٔ له دهٔ نه — دَ پیروی په خهٔ خیر دے تلذذ
څوړم یاد دَ هغه خولے دَ مچے خوند دے — نور رم کُل له دله هیردے تلذذ
دَناوک ئے هم لذت ترحساب تیردے — ولے زیات ئے دَ شمشیردے تلذذ
لکه وو دَ زنخ سیب په هغه تان دے — نهٔ چه اوس ئے تیروبیردے تلذذ
ستادَ ژبے دَ سر ډیر منت راباندِ — په دائم ئے را برسیردے تلذذ
په هجران دَ شکرلبو په جهان کښے
په خوشحال زهرګندیر دے تلذذ

آه داهومره استغفاره — چه ئے تل کړے په اسحاره
که رښتیا دا استغفار دے — بیا ګناه څهٔ ګنهګاره

که دا کار دې په دروغ کړې | شرم وکړه له دې کاره
هم دروغ کړې هم ګناه کړې | ترس دې نه شي له قهاره
هم توبه کړم هم ګناه کړم | ته یې وینې کردګاره
زه عاجز بنده عاصي یم | پرده پوښ یې شې ستاره

د خاصانو توبه را کړه
ما خوشحال ته استواره

آئینې و ته نظر کړه بنیوه کړې | خود به ستا د حسن وکاندې خبرې
د رندو سترګو حاجت د رنجو نشته | په بدرنګه ناوې څه بولې سندرې
مرجونړا په مټ پُرده دې په دانه ده | چه ئې را وړې مرغچې مرغلرې
چه نه مهر نه تپاک نه پکښې شناخت وي | له هغو بې دردو تبنسته لرې لرې
چه میوه ئې د کابل خوړلې نه وي | د هغو ترفهم وځکې دي ګرګرې
پټه مینه د سړي نه لړمون خوري | د وښو تر لمبې بدوي اور د څرې
زه که غره په غره جارووزمه عیب کوم دې | تل مزرې ګرځي په لوړې په ژورې
په خطاختن د مشکو قدر نشته | نه په هندکښې څه قیمت لري شکرې
حق باطل سره بیلیږي رابرسیر کړه | مزې څو به د قارون خزانې نغرې

چه د ننګ تُوره دې واخسته خوشحاله
دروه سوات ته څه خټک څې لښکرې

بیاله ورایه په خندا راغله نګاره | د ښه کال خوبي ښکاره وي تر بهاره
مختوري د رقیبانو د یار وصل | فلک ښه راسره وکړل دا دوه کاره
د ګلزار ګلونه څه دي راشه ګوره | تر ګلونو ښائسته دواړه رخساره
لکه روح چه له قالبه نه واته کا | په دا شان یې جدائي کیږي له یاره
دمانړي تُوره ئې څه توره پریباسې | چه په زړه ئې یو ګذار وي شل پرهاره
څما خوار سره چه تل غاړه غړې ده | اوس نظر را باندې نه کاندې له عاره
د عاشق په لاس ژړا ده تل دې ژاړي | معشوقه چه ویره نه کا له آزاره
د معشوقې د پالنګ لاڼې خطا دي | خوشحال په سرکښې پروت ئې د سرداره

د دې کلي طبيبان واړه ناترس دي — د دارو په طمع مه اوسه بيماره
که هرڅوځې لټوې پسې ئې غواړې — په دا باغ کښې به يو ګل نه وي بې خاره
هرساعت سره يو نوې نوې خيال وي — که ځما دپاره بيا ورشې زيباره
که څوک غواړي چه خپل زړه په غم اخته کا — آشنائي ده لاس په لاس فتنه تياره
په يرغ په مصلحت نه ده ځائي ده — د خوشحال چه سريکار شه له اشعاره

که پوستي له پوسته واوړي ګُندِ واوړي
د خوشحال خوجاروا ته نشته له ښکاره

په دا سرو شونډو ئې نه ده ونيغه توره — راشه خضر د حيوان په چشمه ګوره
مخ د يار له خط و خاله مستغني دے — د غني وي هر اسباب له خپله کوره
چه ئې سيوره په ما وه لکه بادشاه وُم — همائي وه ستا د تورو زلفو سيوره
ستا بار خو بله لمبه وربل دِ څه دے — لکه تور لوګے چه تول پاسي له اوره
د خپل پله خاورے دِ ئې به عنبر کړے — درته چاوے چه په دا بهائے پلوره
په خوبل لوري ته ګورے خان نادان کړے — چه په ما باندِ غوغا شي لور د لوره
ته په دا حسن د ګل غُندِ زيبا ئې — که زوولے ئې له خپله پلاره موره
چه په خوله ئې نوم آخلے روح ئې نه دے — عاشقي چه ويره کاندِ له پېغوره
زه له ميو توبه وکړم توبه ګار شم — د ساقي پياله م بيا کا توبه نوره
چه ئې څوک په کوڅه پل بږدي هغه سرخوري — په جوار باندِ ئې مه ګرځه سرخوره
که ئې نازدے که ئې خيال دے مابه يووړ — وے ما سره پير کبر کا هر ګوره
نور ئې واړه د خپل مخ ورته ښکاره کړه — خوار عاشق ئې څکه درست پريوست له زوره

چه معنى ورسره نه وي ويل سيور وي
خدائے به نه کا د خوشحال خبره سپوره

په راحت کښې په دولت کښې يارئ ډېرے — په محنت کښې په زحمت کښې ياران چيرے
نه به هر کله بهار نه به خزان وي — دا دستور يوه چار و نيسه په تيرے
که م لاس لکه درياب له دُرو تش وي — وے ستر ګے م درياب غُندِ دي سيرے
له يوے فتنے ئې ځان په دُعا خلاص کړم — فلک بيانوي فتنے کا را بر سيرے

دَدې دور په يارانو باور نشته
په زمان ورته اغيار شي يار دَ غويږې

چه به ما ورته کاته له جاه نهٔ کړهٔ
له هغو خبرې آورم تيرې بيرې

پرورش ئې کهٔ په شهدو په شکر کړې
دَ خرما تر خوند به نهٔ رسيږي بيرې

دَ دستار تر مرتبې به نهٔ رسيږي
کهٔ په لعلو مکلل کړې پائزيرې

په ژوندون ئې دَ خوشحال دَ زړهٔ وباسي
ستا کردې به ئې په کور کښې نشي هيرې

تهٔ چه دا سکلې څېره لرې نګارې
خکه تا په عاشقانو اوکړې چارې

چه دِ لاړې دَ دِيدن را باندِ بند کړې
دما او ښکې په ګريوان ځي لاړې لاړې

چه کله کښې دِ وُوينم له ورايه
دا لا هم بې بخته نهٔ يم شکر بارې

هره ورځ تازه مانړې تازه جنګونه
تل دِ ماته تيرې تُورې دي تيارې

کهٔ دِ غابښ وشونډې ګورم دُر مرجان دي
کهٔ دِ مخ وته نظر کړم مه رخسارې

دريغه نور نور سحر ګر په ملک پيدا شوې
چه دا ستا سحر ئې مات کړې سحر کارې

خو به ما باندِ چه را شې ځان نادان کړې
ګنړه نشته نورې تاغوندِ هوښيارې

په کوځه ئې باد ګذر نهٔ کا خوشحاله
تهٔ له کمه سازوې ورته نګارې

تاغوندِ به نهٔ وي يوه کښلې په دا دور
يُون دِ دې دَ زړکې دواړه سترګې دِ دَ مور

وخت دَ نوبهار دې باغ وراغ دواړه ګلزار دې
راز دَ کردګار دې دا ګلونه طور په طور

بار در باندِ مهٔ وه زهٔ هم زړهٔ لرم ويريږم
باز خوري دَ زړهٔ غوښې يا ئې تهٔ خوړې يا ئې بور

نور عالم بې غمه زهٔ دائم په درد و غم کښې
عشق نهٔ دې بلا دې چه ئې ووينم خُور

هے شته چنګ ونې شته ساقي راشه باده راکړهٔ
تل به بهار نهٔ وي چه تيريږي وخت دَ ثور

کښينم ورود بار چه رولئې اوبهٔ ګورم
عمر غوندِ درومي چه بنهٔ وکړم باندِ غور

يار دِ کهٔ دَ کور دين قبول کا په داخهٔ شي
شرط دَ محبت دې تهٔ هم واخله دين دَ کور

مينه دَ مجنون به په ليلیٰ وشوه لا ډيره
خو به چه عالم ورباندِ وکړهٔ هور ور

طبع دَ خوشحال ده لکه بنهٔ باغبان په باغ کښې
ګل وهر چا ورکا چه ئې زړهٔ وي علی الفور

تهٔ چه سر تر دیوال هسک کړے سړی کورے
دَ کُس تاؤنخښےدِ نشته تردا نورے

کهٔ دِ زړهٔ دَ غیږ په عشق نهٔ وی بائللے
په وادهٔ په ویرخهٔ هرلوری ته شورے

پرده پوښے په ضرور وُوځی نما نځه ته
سترګے وازے په بازار ګرځی سرتورے

یاۓ نیت دَ کاسیرئ یا دَ میړهٔ وی
هره ګُنډه چه لاس سرهٔ کا سترګے تورے

په هغےباندِ ګواهی دَ بدئ وُله
چه ئے ګشت په نورِ خونو خیل وَر پورے

دَ میړهٔ په ږیره نهٔ خاندی نورخـهٔ کا
چه دَ بل سره خبرے کا خمسورے

دَ خوشحال ویل به بے مضمونه نهٔ وی
چیرے نه چه ئے مذاقو سره شمورے

په تازه عاشقئ مهـر کوه مهر
چه آشنا شی نور کهٔ مهر کړی کهٔ قهـر

کهٔ دَ زهرو پیاله وی خوستاله لاسه
تر عسلو به لا ښهٔ وی هغه زهـر

چه له لویو له هلکو جفا آوُرم
مګر دود دَ وفا نشته ستا په ښهر

په عالم کړی بلا ستا سترګے نزولے
خوک به څهٔ لرهٔ تهمت وائی په دهر

نړهٔ هالهٔ دَ عافیت نادی قبول کړم
چه م خپله تمنّا ورکړه په مهـر

دَ وصال ورځے هلکے تر کړئ دی
بے لیدلو میاشتے کال شوے ګړئ بهر

دَ دیدن تږے بےحده تلوار کاندی
ګوړهٔ کله به خړوب شی ستا په نهر

خوار خوشحال ئے لکه خس هسے لاهو کړ
چه دَ عشق سیلاب راوخوت لهر لهر

تهٔ چه مخ په آئینه کړے برابر
ربنړه شی په دا مینځ کښے مخ دَ نمر

مړنی سپارهٔ دَ مخ دی دا دوه توکه
تورے وروځے تورے سترګے مخ لښکر

چه پلو له مخه واخلی زهٔ دُعا کړم
هرچا زده چه دعا ښه ده په سحر

دَیوسفٔ غوندِ مخ پټ کړه په برقع کښے
چیرے نهٔ وی چه پرے ولګی نظر

مخ هغه چه ئے ستائنه درست عالم کا
نه هغه چه لکه ستائی دلال خر

زاهد مخ په نقاب و نیوهٔ سجود کا
ستا دَ وروځو په محراب نهٔ دے خبر

مخ دِ هسے شان لیدهٔ شی په خالونو
کهٔ ئے ګورے لکه ګل دَ پیغمبر

ستا دَ مخ مخی به نهٔ کړم نور مخو نه
نور کهٔ ستوری دَ آسمان دی تهٔ ئے نمر

دا دَ مخ خوبي ئې وکوره خوشحاله
دَ شرابو دَ مستئ لري اثر

چه م وليدے داستاسترګے خونخوارے
چه تراوسه لاژوندے يم شکر بارے

په يارئ به دِ هيښ وي چه غلط شي
چه څلور پيسے لري دَ هغهٔ يارے

مايوه دَ زړهٔ په غوره ده نيولے
کهٔ هر څو په جهان ډيرے شي نګارے

وے ئې خولرے ګلے څما په زړهٔ کښے
ترحساب و ترکتاب تيرے بے شمارے

دَ ميړی چه وزر نهٔ وي هومره بسهٔ وي
قباحت دے تجاوز له خپلے چارے

اوس به ولے په غلا دَ مينے کار کړم
چه په حال م خلقے شوے خبردارے

په خاطر به دِ قراره قراري وي
کهٔ داخپلے سترګے ونيسے قرارے

بے اثره به دا اوښکے پاتے نهٔ شي
چه م ورځ اوشپه په مخ ځي لارےلارے

نهٔ يوازے دَ لاله په زړهٔ کښے داغ دے
په داداغ کښے سينے ډيرےدي داغدارے

په خوشحال ئې عندليب غونډِ اور بل کړ
چه پلوله مخه واخست ګل رخسارے

چه مرغونه دَ آسمان ساتي دا کار
دَ هوښيا ردے دَ بيدار دے خبردار

زهٔ دانهٔ وايم چه زهٔ هوښياربيدار يم
دَ ماهم دَ لاسه لاړدي خوديښار

ناداں خطا لا هسے ګرانه نهٔ وي
کهٔ خطا ده خوخطا ده دَ هوښيار

هوداهومره تفاوت ترمينځ ليدهٔ شي
چه ميرښکار سړے پوهيږي په خپل کار

سررشته دَ ميرښکارئ ورځخه نهٔ وي
بيهوده مرغهٔ ضائع کا ناميرښکار

بلهٔ مرغهٔ دَ ناميرښکارترلاس ورمهٔ شه
اوکهٔ ورشي يابه خاورے شي ياخوار

دَ خوشحال خبره نغوږه پرے عمل کړه
تجربے ئې دي ليدلي دَ روزګار

چه په درست تومن اوڅاره
نن هغه ده څما يار ه

لاخبږ تم سرګنډئ
چه حجاب نهٔ کا له پلاره

يوسورګے پيزوان په پوزه
وربلوچے يو څو تاره

مخ نسرينه مهٔ جبينه
سنبل مويه پري واره

شکر لبه پُر طربه    هوسئ سترګې ګل رخساره
قد عرعره مو کمره    سر تر پایه قلم کاږه
په زړهٔ سنګه شوخه شنګه    جفا خویه زړهٔ آزاره
زهٔ ئې قتل په لیدل یم    دارا نهٔ ده پروا داږه
چه مې نوم ورته څوک اخلی    وښکنځلو ته تیاره
څهٔ کړم کوم فکر علاج کړم    دم واههٔ نهٔ شی له ډاره
دَ دے خوئ خصلت دا هسے    څما ده مینه بسیاره
دا یو څهٔ علامت وشو    په ما خوار دَ خدائے دپاره
کهٔ پټ نیاز ورځنے غواړم    په نیاز نهٔ ده خبرداره
کهٔ خپل زور باندِ ښکاره کړم    خیلخانه لری خونخواره
کهٔ ئے وغواړم په زرو    زر هم ډیر غواړی بےشماره
نهٔ په زور شی نهٔ په زر شی    په جهان دی دا دوه کاره

دَ خوشحال تکیه په خدائے ده
بیا په تا ده شیخ رحمکاره

چه یو ګړئ په جمع زړهٔ بنهٔ مخ و ته وګورے
کهٔ درسته دُنیا ستا شی هم څهٔ نهٔ ده تر دا ګوره

دا خوئ څما قدیم دے څهٔ ما اوس نهٔ دے راوړے
چه بے له زیبا مخه راته خس دی چارے نورے

دَ خلقو تهمت یو سر دَ هجران غمونه بل سر
هم ته ئې به له هسے رنګه سختے بلا ژغورے

دا اور چه په ما بل دے دَ خپل یار له جدا یئ
نهٔ کړم نهٔ ملامت یم کهٔ تل وینے ژاړم توړے

آشنا ته وایهٔ نهٔ شی نا آشنا به څهٔ خبریږی
دا راز چه له ما نهٔ دے آوریدلے خپلے سیورے

ناوک ئے دَمژگانو دَ آبرو پہ کمان جوړہ کړ
مانۂ زدہ چہ دَ چا ترزړۂ بہ وُوځی پورے وورے
بنۂ باز دِ دَ خوشحال خټک خاطر پہ لاسو کښیوت
پہ قدر ئے خبرشہ چیرے نہ پہ لږ ئے پلورے

چہ داھسے ورُوځے غوتہ کړے خبرے
بدخواهان بہ زړۂ رائغ کا بنیوۂ کړے
یاځما ترفهم بنۂ شوے عاشق پروند دے
یاخوک نشتہ بہ بناشت ترتا نادرے
ستا ترشونډو ترغابښونو بہ ئے ځار کړم
کۂ یاقوت دی کۂ سرۂ لال کۂ ملغلرے
داځۂ جام دَ میئونۂ دے چہ ئے تۂ ښبے
دارم وینے دَ عاشق دی چہ ئے نغرے
هغہ کار لکہ دوہ تورے سترگے کا
هسے کار نۂ شی بہ تُورہ پہ لښکرے
دوہ قدمہ بیلتون هم لہ یارہ مرگ دے
خوک بہ څو پائی ژوندے لہ یارہ لرے
دَ بڼو ناوک ئے بنوے درومی ترزړونو
دَ ترکانو غشی بنوے درومی ترزغرے

دواړہ شونډے دَخوشحال خټک پہ خُلہ کړہ
و طوطیانو ورکوی خلق شکرے

څۂ سرے څۂ ئے تدبیر
هم هغہ شی چہ تقدیر
کۂ جهان شی تیرہ تُورہ
ستا پہ مرگ شی خلق خیر
بے تقدیرہ بہ ونۂ مرے
نۂ بہ تُورہ نۂ پہ تیر
بے اَجلہ مرگ نشتہ
تیغ وَهہ مکړہ تقصیر
لکہ کار دَ مړنی دے
هسے کار نۂ دے دَ پیر
دَغازیانو شهیدانو
پروا نشتہ دَ سعیر
کل کتنہ دہ دَ تُورے
کۂ کابل دے کۂ کشمیر
مړنی دی چہ یادیږی
پہ سند و هم پہ ویر
چہ دروغ دَ تُورے لاف کا
دَ هغو نہ یم دلگیر
تُورہ بخرہ دَخوشحال دہ
کان پہ کان خلق خبیر
تراوو پیړیو پورے
واړۂ مړۂ پہ تیغ پہ تیر
دا دَځان ستائنہ نۂ دہ
حقیقت وایم پہ خیر

چه له خپله هوډه نهٔ واوخت منصور — کهٔ وکړي په سولئ کړه مخ نے سور
ملامت چه په عاشق باندِ وایهٔ شی — په مذهب دَ عاشقانو دے معذور
عاشقان په معشوقو باندِ پتنګ وی — له جهانه به ولاړ نشی دا دستور
څو دَ عشق مینه زیاتیږی په کوګل کښے — دَ عاشق په پوهه نورٌ علیٰ نور
عشق کار به لیونتوب دے نور څهٔ نهٔ دے — راشه واوره نهٔ په عقل نهٔ شعور
معشوقے وته بادشاه لکه بنده شی — کهٔ قیصر دے کهٔ خاقان دے کهٔ فغفور
مرغ نے هیڅ په حال خبر نهٔ وی له درده — کهٔ په درد کښے قرارے نهٔ کا رنځور
ځنځرهٔ م سر تر پایه واړه آبله دے — په فراق کښے لکه ونړے دَ انګور
مرګ وه له خپل ګروه سره سرور کا — دما هیڅ نهٔ شی له چا سره سرور

عاشقان په عشق کښے واړه ناصبور دی
څهٔ خوشحال یوازے نهٔ دے ناصبور

چه پلو له مخه نهٔ اخلی دلبره — مګر شپه دَ خوار عاشق شوه بے سحره
نهٔ نے زړهٔ په ما نرمیږی نهٔ ګودهیږی — خدایه څهٔ م سر یکار شو له کافره
نهٔ م خوب نهٔ م قرار نهٔ م آرام شته — همیشه را باندِ تبه وی شبیره
دَ وصال اُمید رمق دے لږ را پاتے — اوکهٔ نهٔ بیلتانهٔ وُوژلم اکبره
په یوهٔ نفس کښے زر خطونه راوړی — په هرلور چه غورزوُم دَ زړهٔ کوتره
دَ معشوقے په پالنګ به هغه خیژی — چه له سره نه بیرون کا دَ سرویره
غلیواز چه هُنر نهٔ لری آزاد دے — باز په دواړو پښو بندی دے له هُنره
څهٔ وه څهٔ شوه خبر نهٔ یم بیا به څهٔ شی — اے یوهٔ خدایه څما په حال خبره
څهٔ یوه نیزه څهٔ دوه څهٔ تر دا زیاتے — دَ غریق اوبهٔ چه پاس واوړی تر سره
مګر خضر م مدد شی دُعا راکا — چه لاهو بیړیٔ م وُوځی له خطره

خوځے ځله هر ساعت شی هومره ځله
دَ خوشحال سینه لګیږی له ځجره

چه ملکے لره خوک دَ رومی په خرهٔ سور — کهٔ حاجی شی نهٔ نے ننګ وی نهٔ پیغور
چه خبر په هُنر نه هغه کم عقل — چه دَ خط سترګے نے نهٔ وی هغه کوډ

چه ئې خدائے وچاته ورکا دَ هغهٔ دے — بخت دولت نهٔ په کوشش دے نهٔ په زور

اصالت هُنرچه دواړه سره یو وی — لکه بنهٔ کشیده جوړه په انځور

په خصلت هُنر سیرت دانش باقی وی — قد قامت صورت فانی دے سپین و تور

داهمه له ناپوهئ پیدا کیږی — خرخشے دعوے ناسازے شر و شور

پیر زوئنه بنهٔ سلوک نمنځنه عدل — کهٔ دِ دا خویونه شته ځهٔ غواړے نور

کبرژن حریص بے زړهٔ چه دروغ وائی — دَ یارئ لائق نهٔ دی دا خلور

کهٔ وعده ئے قیامت وی دَ غو بشتنے — دَ هوښیار سړی به نهٔ وی پکار ربور

کهٔ طالعے دَ دولت په شربت ډک کا — بیا آخر شی دَ کم عقل جام نسکور

دَ یارئ دَ دوستئ لائق هغه دے — چه آزار ورځنے نهٔ وی پلار و مور

کهٔ ځوان مردے ځوان مردی به دِ هاله وی — سل بدئ آواره کا دَ خپل سرور

په ایمان په ځان په دواړو صرفه نهٔ کا — چه دَ خپلے ژبے ولګیږی اور

دَ هوښیار سره مجلس بنهٔ دے خوشحاله

دَ نادانه سره بنهٔ نهٔ دے بیور

چه په سپینه بږیره کا ځوانے نګارے — په خپل ځان باندِ به وکا خنے چارے

کهٔ په خولهٔ دَ زاړهٔ یار ترسرځاریږی — په زړهٔ نهٔ دی ځوانے هیڅ دَ زاړهٔ یارے

نیک وبد په داجهان کښے پیدا کیږی — نیک وبدے دَ زاړهٔ نهٔ دی ویزارے

خوبنهٔ ځوان دَ ځوانے ښځے په غرض دے — کهٔ بادشاه وی دَ زاړهٔ نهٔ وی ویزارے

په کم ذات په اصیل هیڅ نهٔ دی راغلی — ښځے واړه دَ بنهٔ کار دی طلبګارے

زورِ دِ ځوانے ښځے نهٔ کا کهٔ ئے کاندی — فکر بویه چه له بنهٔ ځایه وی بارے

له بنهٔ ځایه له بنهٔ کوره ستر پوښے — په حیا په شرم ننګ وی خبردارے

چه په پلار نیکهٔ دَ ننګ وناموس نهٔ وی — هغه ښځے قباحت ته دی تیارے

اوس په خپلو زړو خوښ اوسه خوشحاله

دا دَ دور ځوانے مهٔ کړه ناپکارے

خپل پردی راته په خولهٔ وائی زر زر — وعالم ته ترهرڅهٔ دی بهتر زر

اوس په دادورما ولیدل خوارهٔ دی — تر پدر تر برادر تر پسر زر

نورِ چارو وته څۀ ګورے دا ګورہ — چه صاحب دَ مسلمان کا کافر زر

کۀ دِ قصد کینه حسد ورسره پریوزی — په وژو دَ سید درست کا محضر زر

فیروزه الماس یاقوت لعل له کا نه — له دریابه نه وکاږی ګوهر زر

مزکه څۀ چه دَ آسمان بنائست په زر دے — ستوری زر دی آسمان زر دے قمر زر

شاهزاده بے زرو ګوښے تنها ګرځی — دَ هند و سره روان کا لښکر زر

زور قوت حرمت هو ګے درومی چه زر وی — دَ بادشاه په سر ښوک کښیږدی دا افسر زر

خدائے دِ ما دَ قانعانو په حساب کا — چه و دیو وته یو دی حجر زر

بنۀ ښوانان ئے لیدل نۀ مومی له ورایه — دَ نامرد په غیږ کښے ورکا دلبر زر

جوهری قدر و قیمت زده دَ جوهرو — قلپ سرۀ سره جدا کا زرګر زر

دَ کید رو نوم په خوله څۀ لره آخلے — دَ مزری له تنه هم پرے کا سر زر

هر مراد چه دَ سړی وی په دُنیا کښے — دَ طلب په وخت ئے ورکا دربر زر

کۀ چمیار دے کۀ نداف دے کۀ جولا دے — تر اصیل سړی ئے کښینوی بر زر

نۀ به دے په لږو زرو نظر وکا
نۀ به پریوزی وخوشحال ته غرغر زر

بنه بنه بخ بخ دلداره — وفا جویه غمګساره

چه کنم چه چاره سازم — چه دِ زۀ کړم راګناره

بدکه ګویم از فراقت — چه م زړۀ شو پاره پاره

نه کند به دل سرایت — کۀ زاری کوم بے شماره

تو چه سنګدل نګاری — چه م ستا وکړه نندارہ

به عشاق بے سرو پا — ستم مۀ کړه ستمګاره

به نګاه ګاه ګاهے — مهر کړه دَ خدائے دپاره

اے نګار من حذر کن — دَ ویشتلیو له آشاره

نه رود زدر ګهے تو
کۀ خوشحال شے سل واره

داخوني سترګې چه ته لرې دلبرې — په کُشتن به خالقې کاندي ړ برې
لا به کله ځما خوار طالع مدد کا — چه به ستا سترګې په ماشي برابرې
په خرام خرام راځه چه بوئ ئې واخلم — دواړه زلفې په عنبرو معنبرې
په عارض دِ دَ زړهٔ بوئ ولاله ورکړ — یا سمن دِ دَ پیغور کړل سمن برې
باز دَجال کوترې وويني پرې ورشي — تپوسے باندِ پيرے کا لرو برې
ګوره چرته وے په چرته ګرځيدلے — چه فراق کړے هومره اوښکے راخبرې

محتسب دِ ځنې لرے لرے ګرځي
مست خوشحال سره کوتک کړ دَ ډمبرې

دم به نهٔ وهے له خپله زور سره — کهٔ ئے وويني یا واروے کور کره
چه وتا و ته نزدے شي هغه تور شي — په ستنه راځنے ګرځه تور تره
يو يو هوردے چه شاهين ځنې آلوزي — مشګيرک لکړ مکړ له هور هره
دَصبا په باد نشاط وي دَ ګلونو — کهٔ جنبش کا دَ بلبل له شور وشره
پيشکشي غواړے دَ اوښکو ملغلرے — دا ګوهر په دواړو سترګو ووره وره

دَ خوشحال شعر حلوا ده دَ شکرو
ستا په دا حلوا ځهٔ کا رغل خوره خره

دا معنیٰ دي زورورے — سمے چيرے دي خبرے
خوک چه لب کا سره بيارته — ځنې توئے شي شکرے
خوک چه کيوزي په وښيلو — واړه وائي خاورے خرے
دَ مشکنړو په بازار کښے — توئے نهٔ وي ملغلرے
خپلے خپلے شلو مبے ستا ئې — چه شلو مبے پلوري ګوجرے
هر هر سکنړے ئې وګوره — په هنر رغيړي زغرے

ډير دِ بنهٔ وے خوشحاله
بس کړه مهٔ دروما ډيرلرے

دَجهان په مخ به نهٔ وي هسے تا غوندِ دلبره
پري رويه عنبر بويه، سنبل مويه سمن بره

گلعذاره زلفے ماره شهسواره خوش رفتاره
باده نوشه مے فروشه قصب پوشه موکمره

دل نوازه سرفرازه عشوه سازه لعبت بازه
خود پسنده سربلنده شکرخنده لب شکره

طربناکه گریوان چاکه تل بے باکه تش تپاکه
خودآرایه خودنمایه خودستایه خوش هُنره

غزل خوانه خوش الحانه دُر دندانه لب خندانه
عنبرخاله پُرخیاله تل خوشحاله دَ زړهٔ غوره

دَ غریق اوبهٔ چه پاس واوړی تر سر — دَ جهان له حاله هیڅ نهٔ وی خبر
خبردارۓ په پسارهٔ په اوړدهٔ نهٔ وی — چه دریاب ترکومه لاړ دے پهن تر
اوس م درست صورت دَ غم په دریاب ډوب دے — په هیڅا باندِ م نهٔ لګی نظر
اندرون بیرون همه په غم کښے ځار شوم — هم دَ غم سره م یو شو درست پیکر

ځواک ژوندون م همګی واړه په غم شو
غم په مثل لکه اور زړهٔ سمندر

دَ دولت لمن نیوهٔ نهٔ شی په زور — ږوندکهٔ ږیره په وسمه کا لا پیغور
دولت څهٔ دے په مثال بنائسته ناوے — دَ نامرد کره ئے عمر وی په اور
دَ کنده تهتو نه بد تهتو پیدا شی — بنهٔ اسونه دَ میدان راوړی بنه مور
دَ دولت په اَس دِ هرناسور سور نشی — کهٔ سواری ورباندِ کاندی خوشاه سور
چه په کور کښے م اول تهتو راغلے — دمابخت وولا اول له ځایه تور
تهتو کی دی تازی کی دی ترے زوولی — همیشه کا په پالګاه کښے شرو شور
نهٔ یو بنهٔ لائق فرزند دَ بلار په خونه — نهٔ دَ سرو دَ سپینو ګنج دَ دهٔ په کور
ربه ډیر اولاد دِ راکړ منت دار یم — دَ خوبئ ژغئے بیائے په هر لور
چه په رونړو کښے نفاق کا نالائق دی — یائے بنهٔ کړه یائے مهٔ ګرځوه نور
دَ خوشحال په دُعا غوږ و ستر کے وکړه — کهٔ بهرام عابد دی دواړه کرو کور

دَ بازونو ښکار دَ چا دے دَ زردار
کۀ ئے غم دَ هوس کا دَ زیان ئے نۀ کا
هم زردار هم بے پروا قلندروار
کۀ ئے مری په قوشخانه کښے خو دینار
دَ هغه سړی خۀ کار دے په بازونو
دَ ښکار کار په مصلحت په سیالئی نۀ دے
چه بنده دے دَ درم او دَ دینار
دا یو عشق دے چه ئے ورکا کرد کار
چه په اصل کښے شجاع عالی فطرت وی
قمارباز به له قماره صبر وُکا
دَ هغۀ په زړۀ کښے حب پرویزی دَ ښکار
مست به هم شی له شرابو توبه کار

زۀ خوشحال به دَ بازونو ښکار پرېږدم
خو ژوندے یم دام کار دام روزگار

ذرّے ته چه هسے بریښے منوّره
کۀ یو هیوے دا بریښنا دِ دۀ له نمره
دائے لار دَ ختو نشته وآسمان ته
زۀ به لار درته پیدا کړم بے هُنره
دَ عشق شور کۀ دَ عاشق دَ زړۀ قضا دے
له دے شوره خالی مۀ شے خما سره
هم دَ خلقو ملامت هم ستا ناسازے
دا به شوے چه یارم تۀ نیوې په غوره
رازئے ولے ښکاروو ښه چه په دار شو
دَ منصور سزا په داوه لا بتره
ویرېم دا دے چه له کښلو به جدا شم
خۀ له خپله سره نۀ ده خما ویره
زۀ به غوږ دَ ناصحانو په پند نۀ کړم
کۀ ئے اروے دا وینا ده مختصره
وائی ومره چه دِ زۀ له غمه خلاص شم
خما دا دعوی لنډیږی تر محشره

دَ خوشحال ژړا به داده نورځۀ نۀ ده
چه په مهر ورته نۀ خاندی دلبره

زۀ ژولیده تریم کۀ مجنون ژولیده تر
هیڅ خبره مۀ کړه سره دواړه سر په سر
گوره چه خۀ حال دے ستا په زلفو کښے دَ زړۀ م
باد راله راوړ نن پریشان پریشان خبر
مخ دِ مُسلمان دے واړه زلفې دِ کافرے
دواړه م قبول دی مُسلمان دے کۀ کافر

ګل دَ لاله ښهٔ دے راته وايه کهٔ بار خوړم
ستا زيبا بارخو به له ګياه کړم برابر
نهٔ په ګشت دَ باغ نهٔ په سيل څي دَ ګلونو
خوک چه په کوځه دَ دلربا لري مقر
تاوته دَ خپلو شونډو قدر ښکاره نهٔ دے
مازده چه عسل دی يا نبات دی يا شکرے
مخ په پلوٚ پټ کړے رڼا ورځ وربانډِ شام کړے
بيا چه پلو واخلے په عاشق شي سپين سحر
ډير په غيرو کښے پروت قدرے هيڅ نه نهٔ ے زده شي
چا دَ دُر قيمت زده جوهري صاحب نظر
سترګو ته ے وګوره خوشحاله بانړهٔ وړوځے
ستا دَ مرګ له پاره په څوجوړ لري لښکر

راشه ګوره دَ بهرام دَ نفاق چر
ګاه سني ګاه رافضي ګهے کافر
کله ښهٔ څوئ دَ پلار ښهٔ رور دَ رور شي
ګاه له دواړو توکو ګرځي پر نځر
داتاثير دَ بدپيتي دے کهٔ دَ تخم
چه غنم بانډِ کړے کيږي جو در
کهٔ لوګے دَ اور فرزند دے په دا څهٔ شو
چه دَ اور غونډِ ے نشته خير و شر
په مادر کښے ے بلاوی کهٔ په پلار کښے
چه دا هسے څنے زيږي ګيدی خر
بهرام خان دے سعادت دَهم يحيی دے
په خصلت کښے سره يو تر بل بد تر
وخانئ وته زغله هُنر هيڅ نه
وعالم وته پيدا کړه دردِ سر
خاني کار دَ هرچانهٔ دے دَ هغهٔ دے
چه صرفه ے نهٔ په زر وی نهٔ په سر
يکبارهٔ ے په نظر کښے شرم ننګ وی
دَ دُنيا په سود وزيان نهٔ وی خبر

دَ خوشحال خټک کهٔ سل څويه نمسی دی
لا لائق دَ خانئ نهٔ وينم پسر
راشه کهٔ ے آورے داخبره ده نادره
چه ے ووتل له سترګو هغه ووځي له خاطره

مرم چه جدا کیږې ته مې روح ئې که پوهیږې
مهٔ دروه له مانه راته تل اوسه حاضره

بخت مې مرور شي چه په نورو دې نظر شي
بخت راته ناظر شي چه وماته شې ناظره

هر حسن دې ډیر دے دَ لیلې تر حسن تیر دے
زهٔ چه دې مجنون کړم په چشمانو ئې حاضره

ډیرے دي نګارے هوسئ سترګے پریوارے
تا غوندې به نهٔ وي شوخه شنګه دلاوره

شونډے دې یاقوت دي غابښ دې دُرِ دَ زړونو قوت دي
درسته دې دا تنګه خولهٔ دبلئ دَ جواهره

لام وبے ئے زیبینه چه بنه ښکلے شي درپیبنه
تل شکرو کاږهٔ چه شکرے خورے شاکره

ډیر دَ ملک شاهان دي چه دَ کبنلیو غلامان دي
تا دا قدرت ورکړو دلبرو ته قادره

تل له ډیره خیاله څو پیښے کړی له خوشحاله
هم روغه هم جنګ کړی مهرزنه هم قاهره

راشه مهٔ کوه ډیر جور
زهٔ هم خوئ لرم یو طور
زهٔ فرهاد دَ زمانے یم
تهٔ شیرینه دَ دے دَور
دَ غماز په خولے مهٔ وژنے
نهٔ انصاف لرے نهٔ غور
په خبرو دې پوهیږم
زهٔ لا نهٔ یم هسے ثور
دما زړهٔ لکه دَ باز دے
کهٔ تهٔ رنګ لرے دَ مور
ګوندې راشے په منګلو
درته پروت یم لکه بور
په خوشحال څنے چارے
دَ غمزے په هور او زور

ستا په داغ راغلم له موره — خدائے مې مۀ کړه دَ غمه نوره
کم خدمت یم په خدمت کښے — ځان لا زم وینم هر ګوره
کۀ زۀ هرڅو کم خدمت یم — تۀ خپل شرم وته ګوره
خانه زاد بنده کمین یم — هم بے توانه هم بے زوره
توان او زور مې واړه تۀ ئے — بے تا نۀ پیږم په توره
بدغلیم راته په څو دے — له غلیمه مې وژغوره
تۀ شفیع دَ قیامت ئے
خوشحال وساته له اوره

شپه ئے وینځه بی بی نُور — تور زنګی نوم ئے کافور
مرده شوئے چه منافق وی — مرجهود بولی مغفور
نادیده چه مُنیه لولی — ځان ملا کاندی مشهور
سفله ټول کا څو درهمه — تر خواجګانو شی مغرور
دروغژن تر ټو په ورشی — دَ کابل کاندی مذکور
خپله بل و ته نیولے — په پردئ باندِ غیور
پټے ډکے پیالے اخلی — بنکاره مۀ خوره یو انګور
موحد دَ رسالو شه — تر ځان کوز ګڼه حضور
دَ خوشحال سره خندا کړه
پیالۀ ژاړه په سرور

عمر هر زمان ګدازکا لکه واوُرے — یا به ستا له مرګه واوُرم یا به واوُرے
هغه تیرباران به بیا بیا رته رانشی — کۀ په سر باندِ زالونم تورے خاوُرے
بربوکئ چه پُوزے واخلی پورته دروی — نۀ پوهیږم چه به کوم لوری ته ماوُرے
زور دَ جج دَ وړلو نۀ لرے نادانه — نۀ پوهیږم چه دا درو نه وړے په چادرے
په سمن دَ شحلا نقش دَ سیور زیب کا — په بنیوه چه سترګے کوژے له حیا ورے
دواړه سترګے مې چه ستا په مخ دَ ختنه شوے — عجب بنۀ له ځانه دوه قبله نما ورے
دَ خوشحال غوندِ به ډیر دا هسے نوروی — تۀ چه هسے رنګه زړونه رونما ورے

عشق ترځوانه نه زوړ لا کاندی نسکور — په نچه وُنه لا بنهٔ لګیږی او ر
اندرون دَ هر چا شین دَ عشق په شین دَے — دا یو اور دے لګیدلے لور په لور
چه په عشق کښے خوک پیغور تړی په نورو — هم په دهٔ پورے به لګ وی دا پیغور
زاهد ورچانے انکار کا ندی له عشقه — نل دَ من لیلیٰ مجنون لولی په کور
چه دَ مزکے دَ آسمان په مینځ کښے څهٔ شته — زهٔ همه وینم له عشقه سپین و تور
زهٔ حیران یم دا م څهٔ دی په ګوګل کښے — چه په ورځ په شپه پرے تل وی شرو شور
په وصال کښے سل هراسه دَ هجران وی — په هجران کښے خو غم یودے نهٔ وی نور

جهان واړه کور دَ عشق دَ محبت دے
په خوشحال باندِ باندِ ه شور نتبهور

فلک کا دا هسے چارے — دَ دهٔ چارے دی مردارے
دوه یاران سره جدا کا — بیائے بند کا سره لارے
ګاه دِ زړهٔ وی په ښادئ کښے — ګاه دَ غم ژړا چیغارے
ګاه دشوارے ګاه آسانے — ګاه آسانے کا دشوارے

دواړه توکی ګذران شی
بد ه دا هم نهٔ ده بارے

قربان دِ ترنامے شم محمّدهٔ پیغمبره
اول ثنا دَ خدائے ښائی بیا ستا ثنا ده غوره
آدم کهٔ دِ پدر دے په معنیٰ کښے ستا پسر دے
تر واړه و مرسلانو مقدمه موخَره
دَ نوحؑ نجات له تا وه دَ طوفان له امواجونو
ګلزار په خلیل اورشو ستا له رویه اے سووره
چه خلاص شوله کُشتنه اسماعیلؑ مړنے قرباًن شو
چاړهٔ دَ دهٔ له حلقه ستا ارواح کړه لره بره
موسیٰؑ ته خرګند نهٔ وو وعیسیٰ ته ښکاره نهٔ شو
په قاب او په قوسین په هغه اسراءِ خبره

موسیٰ په کوهِ طور دَ تجلّٰی طاقت رانهٔ وړ
تا ولیدهٔ دَ سر په سترګو خپل مولیٰ بهتره

کهٔ دِ زلفې نهٔ وے تارتار        مابه نهٔ ژړل زار زار
ستا له خاره خاره عشقه        په سینه کښې م خار خار
چه په تانې دَ زړهٔ مینه        هغه تل ګرځي خوار خوار
زړهٔ دَ یار له لاسه مرینه        بیا مدام وائی یار یار
تورے سترګے دِ ګوابښ کوندے        بانړهٔ ستا وائی مار مار
ستا دَ شکرینو شونډو        اشتیاق لرم بار بار

خوشحال ستا له مخه وائی
واړه بنهٔ وائی ځار ځار

کهٔ هیڅ نهٔ وی چه ویل راشی له یاره        تول دَ یار مهر په لاس راکړی ریباره
سره لاله په هغه مزکه شګفته شی        چه خوبی دِ باندِ اوری له رخساره
دَ غمزے په تیغ م وژنی زهٔ دُعا کړم        چه ځما په خون ئے مهٔ نیسے دا داره
چا وے خپل نتلی کښے چه ئے په یاد وی        بخته وخت دے چه ئے ونهٔ ووځم له شماره
یوه شنه پانړے خپل بخت په لاس رانکړه        خلق خوګلونه وړی له دے ګلزاره
په آرزو کښے هسے لیونے شی        چه خبر شوم دَ عاشق سړی له کاره
کهٔ ئے ډېر درست په سینه کښے ډوب کړې هم به سوزي        چه سوختن ئے په نصیب شو له روزګاره
په وږو دَ عاشقانو هسے زغلی        نیم بسمل ئے په ځان پریښوم له تلواره

چه ئے ستا په کوئ ځائے ونیوهٔ نومور شو
دَ خوشحال خاطر له باغه له بهاره

کهٔ نین سوکه په تن اغوندِ حلوا خوړے        خو آخر دَ مرګ سړے ئے و به مرے
دا مستی به دِ تل نهٔ وی خو به ګرځے        په خمار سره او بنتے سترګے سرے
چه بے شماره خزانے کړے سره ټولے        دَ دُنیا ارمان به بیا ګور ته وړے
ستا پخوا دَ طبیلو خښتن وګوره        چه په ګور باندِ ئے ګرځی غوا او خرے
همیشه ولے فانی دُنیا ګنده ده        کهٔ ګنده ده ولے نهٔ تیریږے ترے

په دُنیا څو دېر مئین هومره غمژن شي — جگي جگي راشه مهٔ کړه مینه پرې

یو غفلت بل جهالت دریم شهوت دے
دَ خوشحال دَ ځان بلا دي هم دا درے

کهٔ په خولهٔ را سره جنګ کا هغه یار — په زړه مهربانګار رنګ کا هغه یار
چه له ما سره راځي غاړه غړي — خدائےم لرے له زړهٔ رنګ کا هغه یار
هیڅ حاجت دَ توپے نشته ما نرے بس دے — کهٔ م مرګ وته آهنګ کا هغه یار
چه مثال ئے دَ جمال راته ښکاره کړ — بیا به ما باندِ پتنګ کا هغه یار
چه ملنګ دَ مصلے غواړي خپل مخ ته — عاقبت به م ملنګ کا هغه یار
له هر چا سره خندا په ارت زړهٔ کا — خو په ما باندِ زړهٔ تنګ کا هغه یار
مرصّع بیسرِ نور لري په پوزه — اکتفا په تور لونګ کا هغه یار
زهٔ فقیر یم دے بادشاه ګڼ باندِ بنائي — کهٔ څما له یارئ ننګ کا هغه یار

رقیبا نو وته نرم شي تر مومه
وخوشحال وته زړهٔ سنګ کا هغه یار

کهٔ په زړهٔ کړے دَ خوشحال خبرے زړے — دَ دانش له کاره نهٔ دي لرے برے
خلائق سره پیدا په تفاوت دي — پوهے نهٔ دي سره واړه برابرے
په زرګونو کښے یو دوه سړي خبر وي — نورے واړه خلقے دي ناخبرے
لکه کار دَ خوئ خصلت په تفاوت دے — هسے زیړي په ښائست سره دلبرے

دَ سیرت ښیائي ښه ده تر صورته
چارے واړه دَ باطن دي معتبرے

کهٔ مسجد ګورے کهٔ دَیر — واړه یو دي نشته غیر
یوم بیا موند په هرځه کښے — چه م وکړ دَ زړهٔ سیر
هغه ځائے په سیر مکر څم — چه ترے نهٔ رسیږي غیر
په احوال باندِ یو دوه شي — څکه نشته باندِ خیر

خوشحال یو دیني خوشحال دے
ورته ورک دے غیر وزیر

کهٔ م نوم په ژبه نهٔ اَخلے هیچرے　　په تش نوم به دِ هم سود کوم دلبرے

دَ زاهد دَ سترګو آب هومره په ځائے دے　　چه ئے سترګے بانډِ نهٔ دی برابرے

دَ ښادئ نوم پرے زور دے تل تر تله　　چه په زړهٔ ئے ستا دَ غم شیشئ شی سرے

زهٔ به څهٔ ځنے مانړهٔ کړم یوزهٔ نهٔ یم　　په غمزه ئے خلقے کړلے ډ برے

دَ بنړو سورے ئے خار په پښو څرخیږی　　له حیا چه کوز کوز ګوری ناز پرورے

شونډے ستا لکه نبات هسے خوږے دی　　تریخ ویل ځنے نهٔ ښائی لب شکرے

وائی شته په چین ماچین کښے کښلے ډیرے　　خدائے دِ نهٔ کا چه تر تا به وی بهترے

بے خبر له ځانه ډیر ورته پراتهٔ دی　　ته ئے هم په حال خبر شه بے خبرے

دَ ختا دَ ملک نافے وارهٔ خجل شی　　چه دَ تا زلفے ښکاره شی معنبرے

کهٔ دِ چیرے دَ آشنا په لور ګذر شی
دَ صبا باده څما سلام پرے ورے

لکه کار لری نظر　　هسے ژبه کا اثر

ماهیت ئے موندهٔ نهٔ شی　　چه څهٔ څیز دے دا بشر

هم ترکیب دَ نیک و بد دے　　هم محجون دَ خیر و شر

هم فرښته دے هم حیوان　　هم مومن دے هم کافر

کله اور کله اوبهٔ شی　　کله تږے کله سپر

کله خوړب شی له بادهٔ　　کله بیا به هیڅ ږنګر

لکه دے دے په جهان کښے　　بل به نهٔ وی دیده ور

دَ خلوړو میندو خویه　　دَ اتو پلارو پسر

څهٔ خو لږ تر خدائے راکوز دے　　کهٔ ئے نهٔ دے برابر

دا وچا ته کړے خوشحاله
دَ مستئ شور و سر

لاس په لاس موسره وکړلے څهٔ چارے　　چه پرون مو تور منګور وڅهٔ په لارے

دواړه ښیے له تا نیول له ما اخستل　　زهٔ به پاس په سترګو کیږدم ستا پائزارے

څهٔ اغزی لرے په مخ کښے زړهٔ م سکنړے　　اے په تور بانړهٔ څما دَ زړهٔ کی خارے

رویت والی به ئې څوک شنا صفت کړم  
چه صبا کړې دَ غنچې پاڼړې ویزارې

چه مې پاس په غاړه پروتې څنډیدلې  
بنې وی ستا مختولې زلفې تار په تارې

چه په تا باندې ئې جوړ کړم زړه مې بنه شی  
نوم دَ حورې دَ پرئې اے نګارې

غږول ئې هم وتا وته بنکاره دی  
چه دا تورې سترګې ته لرې خونخوارې

زهٔ کوم کهٔ ته شکنځل کړې لاخوشحال شم  
چه کومه ستا دَ مخ زیبا ننداره

لیونی سره به څهٔ کړې نور تدبیر  
لیونی لره زندان بویه ځنځیر

دَ ما زړهٔ ئې په حلقه دَ زلفو یووړ  
لکه لوئې ماهے په شست دَ ماهی ګیر

کهٔ خوبنی ده په جهان کښې دَ لیدو ده  
نهٔ خوبنی دَ بادشاهئ دَ سریر

کهٔ یوسف ئې دَ کنعان له چاه وکیښ  
په نیک بخت ستوری زوولے وو بشیر

دَ شکرو په دُکان هندو بچه دے  
کهٔ تور خال دے ستا په سرو شونډو جاګیر

دَ بهار په وخت په بوړه دَ سرلے ګرځه  
نهٔ په بوړه دَ کابل او دَ کشمیر

دَ لنډی او به هغه ګنړه خوشحاله  
چه یادیږی په جنت کښې جوئې دَ شیر

مرد به نهٔ شې په ګفتار  
څو پیدا نهٔ کړې کردار

چه دِ وکنځی مرد نهٔ ئې  
کهٔ له تا نه وی په ډار

چه څهٔ دے خو انتقام دے  
دَ مردانو کاروبار

عفوه هورته ځائې لرینه  
چه نهٔ عیب وی نهٔ عار

چه عزت ورځنه نهٔ وی  
هغه مرد نهٔ وی پکار

هم مهره لری هم زهر  
بنهٔ مردان وی لکه مار

چه هم تند رهم باران دی  
ترهغو مردانو ځار

مرد به غم دَ خپل هنر کا  
نهٔ دَ زر نهٔ دَ دینار

مرد به غم کا دَ خپل شرم  
دَ عزت دَ اعتبار

نامرد فخر په نسب کا  
مرد نهٔ مور لری نهٔ پلار

دَ خوشحال خبرے ګوره  
لعل و دُر پیئی په تار

نیمه شپه مې په پالنګ راغله دلبره — پرې رویه عنبر بویه سمن برې
رنګینه جامې اغوستې زر نګارې — سَرَه درسته تجلّیٰ وه پا تر سره
په سپین والی دَمخ سپین لکه مومنه — په توروالی دَ طُرې لکه کافره
سرې تور ښیښه په لاس باده ئې ښخبلی — دَ مستۍ په خپل ځان نهٔ وه خبره
دَ پائلو اودَ ځړی ئې شرنګهار شو — زړهٔ له خوبه راپرتاب شوم ډیرپه ویره
ما وې ګوره ښا پیرئ وه که حوره — چه دا هسې شان په ما شوه برابره
تورې وروځې ئې لینده بانړهٔ ئې غشی — غابښ ئې دُر قیمت بها په لب شکره
په خندا خندائې دا ووې وما ته — چه وماو ته نظر کړه بې بصره
تهٔ ما نهٔ پیژنې زهٔ هغه خوبا یم — بله نشته په خوبئ ترما بهتره
عاشقان ځما دَ خولې په کلی ډیر دی — بختورئ چه مې ونیوې په غوږه
خوبوسې ئې دَ لبانو وما راکړې — حقیقی پیاله ئې راکړله احمره
درسته شپه موسره راز په پالنګ وکړ — دَ وصال خوښئ ئې لا نهٔ وه ترسره
چه آواز دَ مؤذن دَ آذان وشو — په سحر له مانه ولاړه نازپروره
چه په ډیرارمان محبوبه ځنې دروی — کشکې شپه دَ خوار عاشق وې بې سحره

چه له هسې محبوبا خوشحال جدا شو
دَ آتش لمبې ئې درومی له بستره

نهٔ مې لاس رسی په یار — نهٔ طاقت دَ انتظار
دا ستم په ما خپل یار کا — کهٔ ګردش دې دَ روزګار
پکښې ستا غمونه ځائې دی — کهٔ یو زړهٔ دې کهٔ هزار
ترویښتهٔ ضعیف وجود مې — ستا دَ زلفو دې یادګار
غم دَ یار دَ بیلتانهٔ دې — چه ترهر څهٔ دې دشوار
خپلې اوښکې مې دریاب شوې — پکښې نهٔ مومم کنار
چه مې تل په دیو زورې — ستا په شونډو لرم کار
چه ځوک سوزی هغه سوزی — هم پتنګ ګوره هم نار
ځما زړهٔ څهٔ آسان نهٔ دې — چه ئې وړې نهٔ ترس نهٔ ډار

دَ بوسے وعدہ دِ وکړہ
زۀ خوشحال لرم تلوار

ننګیالی قبلوی ګور ګورخوړنۀ دے رنتبهور
لس په کال پړے ننوزی خپے ووځی درے څلور
مور زادی پلا پروټ یم چه بلا هورے م کور
ننګیالی دَ ننګ دپارہ په هرځۀ لګوی اور
سر په باد دَ سری پریوزی چه ئے نۀ وی ژوندون نور
چه په نام و ننګ اړنۀ وی کۀ تل شۀ وی مخ ئے تور
دَ جهان بلا دِ کل وی خو دِ نۀ شی ولی سپور
سرپه دار لک شوے بنۀ دے نۀ لک شوے په پیغور

په همت سړے پردہ دے
نۀ دَ مست هاتی په زور

نۀ دَ ما دَ هُنر شته څوک طلبګار نۀ دمادے دَدے ملک هُنر پکار
په یوہ ژبه ویل سرہ پښتو کړو ولے هیڅ خبله نۀ شو خبردار
چه دَ سوات په ملک ما ننداره وکړه بل اُولس تر یوسفزیو نشته خوار
زور زیاتے خود پسندی خصلت دواړو هرسړے ئے طمع خواست وته تیار
کۀ په کورکښے مال دولت لری سترګ ورځی ملکان ئے لا تر نورو دی مردار
حقه چاربه دَ عزیز کاندی ناحقه کۀ په بډے رشوت مومی یو دینار
خټکے له خټکی نه رنګ آخلی عالمان شیخان ئے لا دی نا پکار
چه م ولیدل له نورو خبر نۀ یم داخو واړہ یا غوایۀ دی یا حمار
دا په هر دیار کښے سیل هم بد نۀ دے چه خوشحال وته څرګند شو هرا سرار

چه دَ سوات دَ سیمے خاورے خوشحال بوئ کړے
یو سړے به څُنے نۀ وی وفادار

نخښه نۀ ولی همیش لیندے په سر کله مینځ کله ښے کینڼ کله لر بر
دا یو لحظه دَ هوښیار غلطی نۀ وی یا هرګز دَ لا مبوزن نۀ وی خطر

په زمان کښې به خپل ځان ترهرچا ښهٔ کا — دَ سړی کهٔ لاس رسیږی په قدر
بخته چیرے به له ورایه راښکاره شے — چه م ښهٔ ترعراقی شی لاشه خر
دانشمند په خوارئ خوارجاهل کامران دے — دَ سړی طالع پکار دے نهٔ هُنر
هنرمند سړے په هردیار عزیز وی — په هرځائے قدروقیمت لری سرهٔ زر
دَ بلبلو په کار ګل دے نهٔ دا نور څهٔ — په چمن کښې خار وخس بلا بتر
چه دَ زرکو ښکار په غرهٔ کښې پیداکیږی — باز په دا سبب نیولے دے لوئے غر
اول فکردَ زړهٔ وکړه بیا ویل کړه — کاتبان دَ ښکو یخوا وهی مسطر

هیڅ خبردَ ورځو شپو په حساب نهٔ دے
همیشه ښهٔ دَ خوشحال ختک اختر

وخت دَ نوبهار دے زهٔ جداله خپله یاره
دریغه دریغه چه بے یاره ځے بهاره

ژاړی غاړے غرونه په احوال دَ عاشقانو
سیل دَ واوړے نهٔ دے چه را دروی له کهساره

اور دَ خوږو زړو دے چه دَ غرهٔ په ونو بل شو
سرے ډډوزے خیژی له ښتره له چناره

غواړے چه احوال دَ فراق ژنو درمعلوم شی
ګوره هغه زاړے چه جداځی له قطاره

داسے معلومیږی چه احوال دَ ماتم ځائے دے
شنے جامے اغوستی دَ طوطیانو له چغاره

نورے نارے نشته خو نارے دَ بیلتانهٔ دی
راشه کهٔ ئے آورے دَ رباب له هره تاره

رنځ م نهٔ کمیږی په زمان زمان زیاتیږی
زر راځه طبیبه ګنړه مرم دَ خدائے دپاره

مرګ دَ رقیبانو بل ژوندون دَ حبیبانو
خدائګو په هنګام دَ وصل کیږی دادوه کاره

څهٔ شوکهٔ لا دم وهي په شمار دے دَ ژوند يو
رنځ چه لا دواشي طمع پريکړه له بيماره

يا تے سړی نهٔ شو چه داګرځي ددو دام دی
ګکه ويره نهٔ شي دَ دردمنو له آزاره

هسے خوار و زار شوم زه خوشحال په عاشقۍ کښے
خپل دی کهٔ پردی دی راته نهٔ ګوری له عاره

ولے په کوځه دَ هغه يار نکړے ګذر
ورلره دِ بولی تهٔ لاګرځے در په در

خاورے دِ په سرشه چه به ورپه ورجارو ځے
زده کړه دا خبره درپه درخاورے په سر

يار دِ په ښائست کښے دَ بهار ترګلو ښهٔ دے
ولے نے له مخه لاله ګل ته کړے نظر

هرچه تهٔ نے غواړے هغه يار در ته حاضر دے
دواړه سترګے وخوړے هيڅ په ځان نهٔ نے خبر

دايم درته وايم ستا بدخواه نهٔ يم نيکخواه يم
فکر دَ تونبے کړه چه په خوا لرے سفر

زرګے تورتار و تمزری هر لوری ته ډيرګے
هسے باز دَ رنځه تانے وتړل شهپر

تخم شته هم مزکه هم قُلبه لرے تياره
هرا سباب دِ جوړ دے ولے نکړے کار دکر

کاندہ به حساب وي مو بهو سوال جواب وي
څهٔ دِ پکښے کښلی را شه ګوره خپل دفتر

مهٔ وُسه بے غمه غليمان لکی له هم
فهم کړه خوشحاله چه دا لار لری خطر

وَ دَ رهٔ چه څهٔ خو به يارۍ شے خبره
ګوره به چه څهٔ ښيوه په لاس واخلی دلبره

لا دِ څهٔ تراوسه هغه قد نهٔ دے ليدلے
ګکه دَ خپل قد په لا فو سرے صنوبره

ځانے دَ چپ و راس چه دَ کافور ديا سه نهٔ دے
تهٔ نے څهٔ سيالی له تورو زلفو کړے عنبره

ځوک چه نظر و کا هغه ښهٔ ښکلی دلبر ته
ځی له ډيرے مينے دَ يوسفٌ سوره کا زبره

تهٔ نے چه دَ مخ سره نن شپه برابری کړے
شمعے! دا دعوه ترصبا يو سه برابره

مينه هسے ځيز ده چه په ځا باندِ مئين شوے
ولے و نيځه نهٔ دی تربی بی شی په تابره

لاړے دی بے شماره زر کوځے دی تر معشوقے
څو به پکښے دروے قدم مهٔ بزده بے رهبره

مهٔ پريږده له لاسه کا روبار دَ عاشقۍ
چار دَ عاشقۍ ترهرڅهٔ ده معتبره

هره شپه چه دروی په خوشحال باندِ دوزخ دے
شپه دَ جدايۍ ده که رسيږے پيغمبره

وازگونے شوے همگی دَ دُنیا چارے — چه لیدۓ م هسے نهٔ دی واړه چارے
خُوئے پلارسره کاروته دَ غلیم کا — لونړه مورته لکه ښځے دی تیارے
چوهړی پلاؤ شولے خوړه حلواخوری — په سیّد باندِ حلالے دی مردارے
باوړی دَ بادشاهانو لکه غلهٔ شول — رهزنانۓ په دربار کا څُنځے چارے
بلبلان طوطیان حیران په بیابان گرځی — په گلزار باندِ کارگان کاندی چغارے
په وښو دَعراقیانو ژواک ژوندون دے — راتبونه وهی خُویه دَ حمارے
نادان خوښ بے غمه خوب په فراغت کا — په هوښیارو باندِ راشی شل دشوارے
په ښتنو باندِ حکم کا مړیونه — ترمیرمنونه تل وینځے دی رونیدارے

په دوران دَعالمگیر بادشاه خوشحال
خانه زادے واړه بخرے لری خوارے

هر ساعت چه په چاځی هسے بیکار — ترهغهٔ نه زهٔ لا ښهٔ گنړم بیکار
زنځوران کهٔ کاروبارنهٔ کامعذور دی — روغ سړے به ولے نهٔ کاخپل روزگار
کهٔ هیڅ کاروبار دِ نهٔ وی درته وایم — هسے مهٔ کښینه بیکاره نا پکار
په هرڅهٔ چه غم غلط شی واړه ذوق دے — کهٔ په نردکهٔ په شطرنج وی کهٔ په ښکار
سړے هر ساعت هر وخت په بل بل حال شی — همیشه په یوهٔ حال دے کردگار

ستا به نوم په جهان پاتے شی خوشحاله
یوه لو یه مشغولا ده ستا دکار

هوسئ سترگے لب شکرے — په غابښو نۓ مرغلرے
تا به ستایم په څو رنگه — ستا ثنا دَ مخ دلبرے
چه جمال وته دِ گورم — حیرانیږم سمن برے
خوئ دِ نن راسره نور دے — دم واهۀ نهٔ شی له ویرے
ذکر ستا دَ تنگے خولے دے — رنگینه پری پیکرے
زړهٔ چه ستا سره یاری کړی — سلامت به وُسی چرے
شور دِ گډ کړیه وگړی — صبر وړونۓ شوروشرے
صبر وړے چه له تادورشی — طربناکے نانړ پروړے

ظاهرنن له تا جدا یم
عین ما ته برابرے

قامت سم لرے تر سرو
کج کلاهے کج عرعرے

لرے مهٔ درومه له مانه
مخ به ماکړه مخ قمرے

نور به ستا له دَره نهٔ ځم
وینا داده پرده درے

هرچه ستا رضا هغه کړے
خوشحال ونیوے په غورے

یو دا هسے ښهٔ بهار
بیا پرِ صوت دَ هزار

ځوک سوارهٔ په عراقیانو
تر چالاندِ ښهٔ رهوار

په لاس ناست خاصه بازونه
په هرلورى خاصه ښکار

ښهٔ کرجی وړاندِ نیولے
دَ بازونو سره یار

ښهٔ تازى په ډور ترلے
پرانستلے په وار وار

زړهٔ فارغ له هره لوریه
پکښے واړه خیال دَ یار

تر دا هسے ښهٔ هوس به
زهٔ خوشحال کړم دُنیا ځار

اے چه لافے دَ رنځور دَ رغیدو کړے
دَخپل کلی رنځور روغ کړه ما به خو کړے

نور به ستا په رضا ځم توبه وکښلے
خو که داخُله ځما گناه تر پښنو کړے

یوه ورځ به په مرگی سره جدا شو
یاره تل دَ بیلتانهٔ خبرے ځو کړے

توربانړهٔ راته خنبے په دا پوهیږم
یوه ورځ به مِ په دا تیرو نیزو کړے

دَ تیراه اوبهٔ دِ وخښے خوئ دِ نور شهٔ
آفریدى غوندِ خبرے دَ اولجو کړے

چه په زړهٔ ئے کرخوم په تا معلوم دى
تر ویتى غوندِ ویل ټوله دَ زړو کړے

ستا په خوئ م ویره شى ظالمان ځوان مرگ
له آزاره ویره اوکړه ظلم خو کړے

کهٔ دَغشى په ویشتهٔ سره خوږیږے
زهٔ چه ستا په تیر زخمی شم ما بخښو کړے

ولړ تا وته به وکړم اوس ښکنځلے
لا به کله دا نبات په ما پیرزو کړے

دَطوطا خبرے هم دا هسے نهٔ دى
په بند بند دِ مشغولا ویل رورو کړے

ستا په ډیرمانړی به حال دَخوشحال څهٔ شى
چه په لږ مانړی ئے ډیر په اندیښنو کړے

بیا و ماوته غمزے نګارے وکړے — دَ جلاد ترتیغ ئے لا خونخوارے وکړے
چائے شمار دَ زلفو هیڅ نهٔ کړ ترسره — دَ تار تار ئے عاشقانو شمارے وکړے
چه دلبرے لره دروغی بوه لاړ دهٔ — مشتاقانو پسے ډیرے لارے وکړے
په نوی آواز کانړهٔ دی نهٔ خبریږی — څکه ما هومره په زوره نارے وکړے
څوک چه سترګے غړوی ترهغو واړه د — ما په پټو سترګو بے نندارے وکړے
څوک خبر ورځنے نهٔ دی خو ماهم زده — چه ئے ما په دوو رخسارو چارے وکړے

تهٔ چه ډیرے آشنایئ کړے خوشحاله
په هر لوری دِ دَ غم اجارے وکړے

په څهٔ شان ئے دواړه زلفے کج په کج کړے — یکباره ئے دَ عالم مینے په بج کړے
تورے زلفے ئے زنځیر مخ ئے کعبه دے — دا ځنځیر په لاسو ونیسه کهٔ حج کړے
کهٔ یو دم دِ دا زنځیر په لاسو کښیوزی — همیشه به دَ خپل زړهٔ په حال فرج کړے
بیا هالهٔ دَ یکانګئ له حاله لاف کړه — کهٔ دَ غیرو اندیښنے له زړهٔ خرج کړے
زهٔ ترنام و ترننګ تیر شوم ستا د یاره — تهٔ به څو څما دَ کار له پاره بج کړے
قند و ګل چه یاد وُم مقصود م دا دے — څو بوسے کهٔ له کنځا سره مزج کړے

ما خوشحال له خپله ځانه خاطر موړ کړ
چه دا هسے دَ غمزے په تیغ حرج کړے

په سرو شونډو دِ بازار دَ شکر مات کړ — تورو زلفو دِ ناموس دَ عنبر مات کړ
چه دَ صبر په آهن م وستړے — تا دَ زلفو په حلقه هغه ورمات کړ
چه ئے ستا دَ خط وقد ننداره وکړه — صورتګرو م پرکار و مسطر مات کړ
سحرګرو اوس دَ سحر دُکان ونغښت — دواړو سترګو دِ دَ سحر هنر مات کړ
په دا دوه سواره دَ مخ یعنی ستا سترګے — تا م درست دَ پارسایئ لښکر مات کړ
په هوس هوس راځے طره پرېښنے — ګوره بیا دِ دَ چا نوے سنګر مات کړ
چه آرزو لرم په زړهٔ کښے ستا دَ ورو څو — دے آرزو م په څیګر کښے خنجر مات کړ
تاوے نور به قول مات نهٔ کړم سوګند دے — په سوګند سوګند دِ لاځهٔ بهتر مات کړ
په بار خو دِ مار حلقه شوکهٔ صهبا م — ستا دَ تورو زلفو خولے وته سر مات کړ

ما توه دخوشحال زړه بیا به وواځې
چه م خځ لره دا هسې کوهرمات کړ

په دا شکر چه ئې بوئ بنکاره آتش کړ
اګر درست صورت وا ور وته پیشکش کړ

زړه پخپله هغه مخ لره لاړ نهٔ شو
د زلفینو ئې هرکار ورته دلکش کړ

دا بې غش شراب دکومې میخانې دی
چه څما د زړه ئې لرې غل وغش کړ

لیونتوب ئې مُبارک شه تل تر تله
چه ئې یار د زړه په غوره پریوش کړ

په یارئ ئې مزناحقه نازید لم
بیهوده م په سراب د اوبواش کړ

مشوش کړ روز ګار د پرهیز ګارو
چه کاکل ئې په جبین رامشوش کړ

ماوې سپینه خولهٔ به ورکړې وخوشحال ته
په خندا ئې له ناخواله ینج وشش کړ

په خوانانو پورې بیچمې کا ولاړې
تهٔ په سپینه بزیره خولهٔ ورځې غواړې

دځوانئ هوس مهٔ کوه چه زوړ شوې
اوس له تانه دځوانئ چارې ولاړې

تیر ساعت به ډِ دَ عمر بیا رانهٔ شی
ورځ و شپه کهٔ په زار زار وریږې ژاړې

کهٔ ئې بیا له مزکې اخلی سود ئې کوم دې
چه له خولې په مزکه پریوزی دچا لاړې

پارسائی ئې دپارساله لاسه یوړه
دانائی ئې د دانا له لاسه یوړه

چه م کړې وه توبه له مې خورئ
په چشمانو ئې د ماله لاسه یوړه

معجزه چه د اِحیاء ده په دوه لب ئې
لاس په لاس د مسیحا له لاسه یوړه

دلبرانو چه دعوی د دلبرئ کړه
دا دعوی ئې د هرچاله لاسه یوړه

راته پاتې دا یوه مُسلمانی ده
دا م هم هغې ترساله لاسه یوړه

ماوې زړهٔ به د عشق رازلرم پهٔ زړه کښې
داخبره م ژړا له لاسه یوړه

چه د زړهٔ صبر د یار له مخه غواړم
محبت م دا دُعا له لاسه یوړه

کهٔ د نورو هوښیاری په عشق کښې بس وړی
د خوشحال ئې لا پخوا د لاسه یوړه

تهٔ پسود دُنیا مینے مُبدل کړې
فکر نهٔ رسی هورے پسے جدل کړې

هره ورځ دَ دے فانی دُنیا دپاره
زر فتنے اَلا بلا دغا دغل کړې

کهٔ دِخپله مُدعا پکښے درستیږی
بے صرفه به اورد پلار پهٔ خونه بل کړې

کهٔ کافر درته دَ سود خبرے وکا
دَ خپل سود دپاره خان دَ کافرمل کړې

کهٔ دِ سل چارے دَ زړهٔ واړه پوره شی
په حرص به دوه سو نور ورته تکل کړې

کهٔ دَ عمر بقا نشته واړه هیڅ دی
کهٔ گنجونه دَ قارون په کور کښے تل کړې

چه په دواړو سترګو ړوند په غوږو کوڼ شوے
لال په خولهٔ غفلت په لاسو پښو هم شل کړې

په پینځه کښے دِ دَ خان رستګاری ده
تهٔ په دا کښے هم په څو رنګه خلل کړې

کهٔ څلور دی کهٔ پینځهٔ کهٔ شپږ اُوهٔ دی
له اصلی چاروئے واړه معطل کړې

ښے خوږے چارے دَ دین درته ترخے شوے
نفس ترخے چارے وتا ته عسل کړې

عاقبت به دِ دَ کور په خاورو خوب وی
چهٔ اوس په نهالئی او په بخمل کړې

ستا پخوا هم دَ دُنیا طالبان نور وو
چهٔ مینے تار په تار خورے اجل کړې

بهشت ځائے دَ پرهیزګارو دے خوشحاله
تهٔ بهشت وته هوس په کوم عمل کړې

چه م زړهٔ دَ مال وملک په هوانهٔ ولاړ
کهٔ په بنګلیو پسے لاړ شو بنه چه بنهٔ ولاړ

عقل وهوش صبر وآرام ورپاتے نهٔ شی
دَ هرچا چه په دلبرو پسے زړهٔ ولاړ

هرچه خوږ دَ کښلی مخ په مینه نهٔ وی
دَ جهان په مخ اودهٔ راغے اُو دهٔ ولاړ

هم م زړهٔ په غمزه وړی هم ځان نادان کا
راته وائی وایه بیا دِ زړهٔ په څهٔ ولاړ

محبت دَ کښلی مخ ځما په زړهٔ کښے
باور وکړه لکه اور په وچ واښهٔ ولاړ

دَ هجران په شپه ئے درست توکړ توکړ شو
په ژړا ژړا م زړهٔ تر دوه لیمهٔ ولاړ

هغه یار را څخه وائے هرګز نهٔ وو
هیڅ م نهٔ زده کهٔ همیش راسره وهٔ ولاړ

هر زمان به ئے شا راته په ما نړی وه
یوه ورځ بے غمه نهٔ وو تل تل تهٔ ولاړ

نور به بیا په بیا رته رانشی خوشحاله
ګذشته عمر په سر لکه او بهٔ ولاړ

چه مې بنهٔ تروېت دَ خپلې چارې خير کړ / خان مې واړهٔ حبطه په خپل تدبير کړ

لکه واچوې دانه دَ دام په مينځ کښې / خلقو ماسره په مهر کښې تزوير کړ

ما په دا سترګو ليدهٔ دَ دُنيا خلق / څوئې ډيرو دُنيا سود هومره ئې وير کړ

مور زادې کانړهٔ هرګز نهٔ هوښيارېږي / نصيحت په تور زړهٔ کې کله تاثير کړ

په نابوه باندې بې غمه بې غمې ده / دَ دانا آفت ئې خپل ضمير منير کړ

راشه ګوره يو ګز مزکه نيولې / چه ئې مېچ دَ خپلې خونې په توفير کړ

دَ ارمان لاسونه مړهٔ مړي په ګور کښې / چه مو ولې په نيکئ کښې تقصير کړ

دَ هر چا مې خپل هُنر بلا دَ ځان دې / خپلو پړونو په خزه بندي کجير کړ

چائې وصل په خپل مېچ حواله کړې / چا دَ هرې چارې حکم په تقدير کړ

ليوني دَ ليونتوب په سبب بند شي / مست هاتي خپلې مستئ په زنځير کړ

په باربار دَ خپل اُستاد منت راباندې / چه له زنګه ئې صفا څما ضمير کړ

دَ زړهٔ ښهر مې په ځائې دَ قناعت دې / په ناحقه مې حرص پکښې امير کړ

کهٔ ويل ئې دَ غماز منلي نهٔ دي / بيائې ولې له حيرانه زړهٔ دلګير کړ

پوره زر داتيا کالونه په کابل کښې / دا غزل مې په بياض باندې تحرير کړ

دَ خوشحال دَ زړهٔ خوشي نهٔ شي بې سرايه
خپل وطن ئې په هر چا باندې کشمير کړ

چه مې وليده په خپل انګنړ ولاړه / ما په تيکې سترګې بيا مونده بيا ولاړه

کهٔ بنهٔ مخ و ته کا تهٔ کول ګناه دي / دا ګناه دې وي دايم دما په غاړه

يوځهٔ يخن زړهٔ ئې راکړ هسې وايم / چه دماوې دَ جهان دلبرې واړه

زهٔ جدا له ياره ګرم خير ناصحه / په ژړا کښې راته وايه خير غواړه

دَ بنهٔ يار په جدائئ کښې ګرم نهٔ ئې / کهٔ دې دواړه ليمهٔ ووځي لاهم ژاړه

دَ طوطي خوراک شکرې دې خوشحاله
ځګې ځګې ځهٔ خو درکړه دَ خولې لاړه

چه دا هسې بې نيازي کوې دا بنهٔ کړې / زهٔ به نور ياران پيدا کړم تهٔ به ځهٔ کړې

دَ بلخ راغ غونډې په شپه دَ هجران راشه / چه په راغله مې روښان دواړه ليمهٔ کړې

خوله مانه نوره مه کړه د زړه مینه — نور م کل واړه منلي دي چه ته کړے
دما زړه ورځنے صبر وو چه ګونګ دے — نن ځما طوطا یو ښو خبرے وکړے
په ژوندون له مانه مه ځه د یار غمه — ته به سم ځما له ساهے سره تلے کړے
ګوره بیا د ځه په زړه کوم م ګناه دے — چه لید ولره د درشم خان اوده کړے
دغمزے توره د ما ته شه په ما کښے — غم م دادے پس له ما به نور بیږے مړه کړے
واے ستا په عیادت ځما رضا ده — مګر و مرم هاله سر د ما په ورځ کړے

چه تر خولے د بیلتانه ویل وباسے
دخوشحال ختک روزګار په اوراوبه کړے

خوے بوئ په هر طرف بهیر و نه کړ — په ګلونو عندلیب نفیر و نه کړ
ځما او ښکو کا نړي هم په مخه یو بهل — ولے ستا په زړه ئے هیڅ تاثیر و نه کړ
په ژړا په بے صبرئ که لیدل موم — ما په دواړه توکه هیڅ تقصیر و نه کړ
په خندا خندا د مرګ وته نږدے کړم — ترو د ځه رنګه په ما تزویر و نه کړ
خولا زه یم چه دغشیه نه د دروم — ګنړه هومره مټ به تور نخچیر و نه کړ
مګر زه سهل غوځه وم ستا تر فهمه — چه ځما په مرګ د هیڅ تکبیر و نه کړ
اوس به څه رنګه خلاصیږم له دے غمه — چه لومړے م دخلاصي تدبیر و نه کړ
دکعبے په لار به څه رنګه بری کړے — چه هرګز د یوه شپه شبګیر و نه کړ
په صورت به د تل دیر وي پس له مرګه — که د ځان د په ژوندوني ویرونه کړ

زه خوشحال چه سرو تیر ځم ستا له تیره
هیڅ ارمان د دغمزے په تیر و نه کړ

ښو بیرئ په دا سیند کښے ډوبے لاړے — چه تخته ئے مونده نه شي که نه غواړے
فراق هر ځه ته لمبے دي لګولي — لکه لوند لرګے په اور ایښے ښو ژاړے
غم بنا دي سره ترلي دي له ځا په — هغه هومره به وژاړے ښو وو یاړے
چاۓ نوم راته وانه خست چه د چا دي — منارے م ډیرے ولیدے ولاړے
په هزار رنګه غمونه د جهان شته — په زر رنګه نارے واؤره د خراړے
لکه راۓ ځما د زړه هغه لا نور دي — خلق ښو خبرے کاندي غاړے غاړے

دا طوما رخهٔ هسې نهٔ دے چه تمام شی
غوروے نے پېتوے نے لوړے نغاړے

دین دُنیا لره کوده خپله کرده ده
لوندوی حلق دهر سړی په خپلې لاړے

چه بے غمه بے و باله نے خوارهٔ دی
دَ بادشاه ترخوا نه بهٔ کنړم جنجاړے

غافلان په غوړ، کانړهٔ دی نهٔ لے آوری
دخوشحال خټک دَ خولے خبرے لواړے

خدائے یو هسے فکر سراکړ
چه نے ملک راته رڼرا کړ

چه په ملک په ملکوت دی
پرے خبر نے زړهٔ دما کړ

په اعلیٰ په اسفل واړه
رابنکاره نے هرا شیا کړ

کهٔ په نورو توره شپه ده
په خوشحال نے سپین صبا کړ

داچه وائے چه ډیر مهر په فلانے کړے
په یارئ دِ رضانهٔ ده بهانے کړے

ستا وصال په دُعا غواړم نهٔ نے مومم
ما په ډیر ورتلهٔ راتلهٔ سترے ستانے کړے

زړهٔ م ستا و تیرته نغښه دے قتاله
پرے به کله جور دَ غشیو برخانے کړے

چه جمال وته دِ گورم حسیرا نیږم
خدائے په ما باندِ یوسف دَ زمانے کړے

سحرگو په سحر تورے اوبهٔ پرنړ کا
تا خُما اوښکے په مخ دانے دانے کړے

زهٔ چه شونډے ستا په شونډو باندِ کیږدم
وایم نوشے م دَ میو پیمانے کړے

څما زړهٔ لکه زمرے ؤو خاوند خدائے م
ستا دَ سترگو دهوسیو ته ژانے کړے

دَ خوشحال په دود به ستا دَ ژبه ړاته وی
چه په ښنوئے ستا دَ زلفو څولانے کړے

داچه وائے چه دا بد کړے یا دا ښهٔ کړے
کهٔ ربنتیا وایم زهٔ نهٔ یم واړه ته کړے

چه په بین الاصبعین زهٔ خبردا رشوم
په لحظه کښے څهٔ چارے په زړهٔ کړے

په خطا باندِ عطا په طاعت قهر
چه په وهم فهم نهٔ وی هغه وکړے

داچه اوس دوا ړو خلقو ته رسیږی
چه دِ کړی په ازل دی هغه کړهٔ کړے

دَ هرچا په باب چه شوی هغه کیږی
په هیڅ رنگ به خپل مبرم حکم نورنهٔ کړے

چه بیگاه دِ کے په شهدو په شکر دی
په صبا دَ هغو خولو خاورے به خولهٔ کړے

چه هر دم د العطش نارے وهینه | په ساعت ئے د مقصود په رود اوبۀ کړے
په یوه مزکه یوۀ باغوان کرلی | عباسی گلونه زیړ و سپین وسرۀ کړے
د سحر گتینه ډیره ترهر څۀ ده | څنے څنے ورته ویښ څنے اُوده کړے
چه په تور ویښتۀ مغرور په خپل پرهیز شی | د صنعان غندِ ئے خوار په سپین ویښته کړے

آلوده لړلے درغے درگاه ته
هیڅ مې نۀ زده چه به حال د خوشحال څۀ کړے

د الف غوندِ ئے تۀ به قامت سم کړے | خدائے څما د زړۀ په سر باندِ رقم کړے
مخ به چیرے راته سم کړے په یاری کښے | کۀ داخوئ به تل څما د عمره سره سم کړے
دا گلزار د هیڅ گلزار سره سم نۀ دے | چه زلفینے په سپین مخ را ته خم خم کړے
درپوهیږم چه مې سرو ته په څو ئے | کۀ هزار خله څما په سر قسم کړے
چه له دم سره مې کښته پورته گرځې | تۀ په ما باندِ داچارے په کوم دم کړے
چه دِ وو ژلم بخپله هم بیا گوره | بیا په ما باندِ تهمت وهے ماتم کړے
چه په په زړۀ مې گرځیدے هغه خبرے | کور په کور به په هر دیار خورے عالم کړے
د هجران ورځے چه کښے په شمار د عمر | د قضا کاتبه عدل کۀ ستم کړے
چه ویاروته مې تل غندے رقیبه | څۀ په دا به د یار مهر له ما کم کړے

چه دِ سر تر پایه درست په غم د لیو کړم
راته وائے اوس خوشحال وُسه څۀ غم کړے

زۀ خوشرابی یم شیخه څۀ راسره جنگ کړے
بخرے ازلی دی کشکے ما د خان په رنگ کړے

بنۀ وائے واعظه برکت دِ ستا په ژبه
بنۀ ئے به ویلو د دریاب اوبۀ کړنگ کړے

لا پرِ وجنت ته چه په پوهه خبر نۀ وُو
لا پرِ د دوزخ ته چه ئے لاڼے د فرهنگ کړے

پند د محمدؐ د ابوجهل پکار نۀ شۀ
خوک به ئے صیقل کا چه لے خدائے آئینے زنگ کړے

کښېنې په خلوت کښې شیخه سود ئې را ته وايه
ولې په خپل ځان دا هسې اَرَت جهان تنګ کړې

زۀ خو دَ زړۀ درد غواړم په هريوۀ مذهب کښې
تا زده ستا خبرې چه نقلونه رنګارنګ کړې

رانشه مطربه دَ نوروز سرود آغاز کړه
ښې نغمې زړۀ سوزې په رباب په نې وچنګ کړې

هر لورې ته ګل دی شقائق نرګس سنبل دی
بې ګلزاره بدګۀ ویل لورې ته آهنګ کړې

چا در پسې ډېرې پيسې واخستې طلب کا
ځنو مصلې دَ بې ننګئ در پسې ننګ کړې

کا شکې دَ عمل تله درنه په قيامت شي
موم په رقيبانو په عاشق بانډې زړۀ سنګ کړې

مرګ لره ئې واړه دَ دهلي لښکر را غلې
تۀ لا دَ خوشحال په مرګ ځان روغ نۀ ګنړې ننګ کړې

ګله تۀ چه په بلبلو هومره خيال کړې
دا خيالونه هم ګې په خپل جمال کړې

دا جمال به دِ جاويد په جهان نۀ وي
ښۀ خو دا ګڼړه چه شکر په دا حال کړې

دَ انصاف په سترګو ښه ننداره وکړه
جهان خو کښلې خهرې هسې پائمال کړې

ډېرې خونې دَ هجران په لمبو ؤسوې
ماليدې چه تجلّې ئې په وصال کړې

دَ بهار ګلزاره ښۀ ئې خوئ دِ بد دې
چه را تلنه يو خو ورځې په درست کال کړې

تر قدرت به دِ ځار ديږم ذوالجلاله
رنګا رنګ ګلونه ښۀ هسې نهال کړې

دَ بلبل دپاره تل وې په چمن کښې
دَ پسرلي ګله تۀ ولې دم درحال کړې

کۀ دِ سترګې دَ عرفان شته مبارک شه
دَ ګلزار په ننداره چه استقلال کړې

ګل ته هسې رنګ و بو ورکړې چا دې
دَ لاله دَ ګل چا هسې پانړې لال کړې

چه ګلونه هميشه دَ چمن ګوري
لکه خضر دومره عمر دَ خوشحال کړې

کهٔ په زغرو په چپوکړے نیزے خوړے
چه نیکی درځنه نشته واړه کوړے

دَ هرچا سره خوړه ژبه باندهٔ ده
په خوږه ژبه مارهم وُوځی له سوړے

دارو دوړو سره فوځ دَ سوروننو وی
په جهان کښے لړے نهٔ دی تشے دُوړے

یا وه کوے دراز زبان مهٔ شه کهٔ کوړے
بیهوده خبرے مهٔ کړه پوچے بوړے

لکه خدائے چه دَ یار حُسن بے نظیر کړ
هسے ما دَ زړهٔ په سر باندِ تصویر کړ

دَ مجنون غوندِ په درد دَ عاشقئ کښے
په خپل حال مِ همګی خلق خبیر کړ

ما وے کوندِ تفحّص وکا پخلا شی
تر پروته نه ئے نن مانړے کبیر کړ

ښائسته دَ قندهار دَ چا په یاد دی
په دا حسن ئے بنده واړه کشمیر کړ

داڅهٔ حُسن څهٔ جمال څهٔ ئے اقبال دے
چه شاهانوئے په دَر کښے ځان فقیر کړ

زړهٔ پخپله هغه مخ لره ولاړ نهٔ شو
دَ زلفینوئے هر تار ورته زنځیر کړ

نهٔ ګناه نهٔ ئے خطا نهٔ نیت ئے نور دے
تر ناحقه ئے خوشحال په زړهٔ دلګیر کړ

لکه قلبِ مهر په لاس باندِ بریښنا کړے
چه دَ اور په تا وکښے پریوزے ځان رسوا کړے

هیڅ ځما په زړهٔ کښے ستا آشنائی نهٔ وه
کومے چارے لره خدائے ځما آشنا کړے

کهٔ پیرید راسره کړے په ښهٔ ئے نیسم
خپلے مینے راته ستا ترخے حلوا کړے

چه په تا باندِ مئین شوم حال مِ ګوره
مګر خدائے ځما خوارئ لره پیدا کړے

کهٔ وعده دِ دَ لیدو په ماسختن وی
په بورجل باندِ دِ ناست په ماصبا کړے

کهٔ دَ ما په دوکان ناست ئے کالی ګوره
په زرسل ځایه په خوخایه سودا کړے

په داخوئ دِ اورځما په کوګل بل کړ
زهٔ دَ شمعے غوندِ ژاړم تهٔ خندا کړے

چه وفا دِ دَ خوشحال سره اونهٔ کړه
راته وایه اوس به چا سره وفا کړے

مخ ئے فکر دَ نسرین راځنه یووړ
خط وخال ئے مشکِ چین راځنه یووړ

دَ ترسا زلفے زنار شوے را ترغاړه
شکر شکر چه ئے دین را ځنه یووړ

بے دَ یار دَ شونډو تل چه یادوم ئے
مینے نور ذکر تلقین راځنه یووړ

درسته شپه ژړا ناری آه وفریاد کړم
بیائے خوب په خلهٔ آئین راغخه یوور

دواړه سترگے ئے شاهین شهپرئے زلفے
خما زړهٔ کوتر شاهین راغخه یوور

په راتلهٔ ئے درست آرام دالره راوړ
او په تلهٔ ئے درست تسکین راغخه یوور

دچمن گلونه کوزگوری دا وائی
چه دلبرے هر تحسین راغخه یوور

چه م زړهٔ وړی ما وے پاسه په آسما ده
ولے تُرکے په زمین راغخه یوور

زړهٔ هالهٔ د عافیت ناوی قبول کړم
چه هوس ئے په کابین راغخه یوور

تل اوبهٔ په نری تار باندِ ماتیږی
عقل هوش ئے نخستین راغخه یوور

هغه ورځ م زړهٔ له خپله ځانه موړشو
چه له لاسه دل سنگین راغخه یوور

چه دُعا خما د صبر کا وکړی
عشق دَ دے دُعا آمین راغخه یوور

ما وے زړهٔ به ئے لا فکر دَ علاج کړم
ولے خوار عاشق زړهٔ خوږین راغخه یوور

ما دَ کنبلیو نندارہ کړه زاهد ننگ کړ
بنه ده دا چه خدائے دے هم دما په رنگ کړ

هغه وخت چه را په یاد شی پیر خوشحال شم
چه به ما درته دُعا کړه تا به جنگ کړ

دما زړهٔ ئے په قلاب دَ زلفو یوور
ورسره ئے اودهٔ کړے په پالنگ کړ

کهٔ ژوندے نهٔ شی له مرگه عمر ئے شوم دے
چه په خاک ئے د پائلو باندِ شرنگ کړ

کنبلے مخ م چه څراغ هسے بلیږی
خوار عاشق ئے په دا څراغ باندِ پتنگ کړ

ملنگان ئے دَ دربار درویزه مومی
ما هم ځکه ځان دَ یار دَ ور ملنگ کړ

تهٔ دَ ځایه هسے نهٔ وے دا څهٔ حال دے
چه په ما باندِ زړهٔ دا هسے سنگ کړ

مالیدلے دی په دا سترگو یو هړے
لکه نخښے دَ هرچا غشی ته لړے

په زړهٔ څو ځایه وړتو پنهړ ئے روغ ے
په خوله ئے نر ناحق وهرچا وته زیړے

په خندا خندا ئے اښکے څی تر سترگو
لکه چرگه دَ مستئ وهے ککړے

په صبا بیگاه ئے فکر نو رڅهٔ نهٔ وی
تل ذکر دَ وی دلبرے

هیڅ له خپله خویه نهٔ اوړی په عمر
کهٔ ئے دړے په تندی کړے دړے وړے

همیشه سترگے نیولے وخپل ښکار ته
وغوتے وته وار ساز لکه لکړے

زغږې ولاړ په درست جهان دَ بدکارئ    سُور بيرغ دَ چتکی پورے په لکړے
په چووه په عطرغرقه سرتر پايه    دَ اجمير په فليل دواړه زلفے غوړے
دَ مخمل دننه ناستے زربفت پوښے    چوهړی ته وُوځی پر يوزی په غوشيړے
کڼۀ پلار نيکۀ له ځايه بادشاهان وی    نۀ دَ پلار نۀ دَ نيکۀ په شرم اړے

مرهند و غندِ په سرولمبو کښې وسوے
چه ئې وُليدے خوشحال دَاور لوخړے

وے م کۀ زۀ درشم ستا ترځايه خولۀ به راکړے
وے ئې سکه هزار سره لړے چه داوينا کړے

وے م چه په مخ دِ تورے زلفے تور ښامار دے
وے ئې تروسکه څۀ لړه ښامارو ته وبيا کړے

وے م چه په کوم توکی به تاوته نزدے شم
وے ئې چه کۀ سر له تنه بے تيغه جدا کړے

وے م چه په تا پسے هرګوره ليونے يم
وے ئې چه په داعقل به لاصورت رسوا کړے

وے م چه ما تا سره خندا په يوۀ وخت کړه
وے ئې هغه څوک دو چه ئې تاسره خندا کړے

وے م چه هرګوره کبريا شوے خدائے دِ وينی
وے ئې چه کۀ کبر کړم ستا څۀ دی چه غوغا کړے

وے م چه دَ سپينے زيبا خولے عاشق دِ زۀ يم
وے ئې چه خدائے څۀ داعاشقئ هم ويريا کړے

وے م چه له نتے دِ چارګل په پوزه زيب کا
وے ئې داخبرے کړه هالۀ کۀ چا په تا کړے

وے م کۀ زۀ ستا په کوئے ومرم ستا رضا ده
وے ئې کشکے خلاص له دردِ سره سپی ځما کړے

وے مِ چه په ځور تکه خوشحال په تا منين دے
وے ئے دَ ختک سړی دَ مينے څهٔ ثنا کړے

برېر راشه نوروزه دل افروزه
ستا په وخت مِ آسوده شی ستړکے پوزه
ستا په وخت ستړکے دَ باغ ګلونه ګوری
پوزه هم کا ندِ دَ بوئ خوبنی اندوزه
غوږ لاهم ستاله طفيله خط حاصل کا
معنی شی عندليب په ځوځو سوزه
په وصال دَ معشوقے عاشق فيروز شی
دَ ګلزار په وخت بلبله وی فيروزه
خپل غوږ ونه ورته څک کړه ګوند واوړے
راز دَ مينے دَ بلبلو له للوزه
دَ نوروزله فيضه بوټی خالی نهٔ دی
فيض ئے رسی هم ترسپا ندِ هم ترخُوزه
کهٔ همه عمر دَ باغ ګلونه ګورم
ځما خوا به پرے سړه نهٔ شی هنوزه
دَ بهار هوا هر ګوره ښه هوا ده
کهٔ آفت ورپسے ته نهٔ وے تموزه

په راتلهٔ ورلره ډيره خوښی راوړے
په خوشحال باندِ دِ قدر دے نوروزه

پر دَ قاز ښته پر دَ باز
لکه پر هسے پرواز
لکه ستړکے ليدهٔ هومره
لکه حلق هسے آواز
لکه قد جامه هم هومره
لکه حسن هومره ناز
دَ دانش کشيده بويه
نهٔ دَ سرو زرو دراز
بيړئ ګرځی په بيله کښے
په قلزم ګرځی جهاز
سک لاهو غوندِ خوته دے
مږک کهٔ هرڅو وی اوباز

په دا پړانګ نهٔ شو خوشحاله
کهٔ پړانګ پيش دے پړانګ ته ساز

چه داهسے په پالنګ راغله نوخيزه
الوداع ده دَ خوشحال خټک پرهيزه
عقل و عشق چه سره دواړه په دعوی شی
بل مجال دَ عقل نشته بے ګريزه
هم پخپله جنګ آغاز کا جنګيالئ
هم پخپله صُلح کا ندِ صُلح آميزه
په بازئ بازئ وژلے کُتهل نهٔ شی
په خندا خندا خونونه کا خونريزه
زهٔ دَ ښليو په داکار پورے حيران يم
چه له چا نه زده کوی هومره مکيزه

کهٔ له دله ئې شلوم شلوله نهٔ شي — دَ دلبرو ياري خوده دل آويزه

غوخول ئې هسې نهٔ دي چه څهٔ پرېږدي — ترالماس ئې دَ غمزې توره ده تيزه

قند وګل سره دا هومره لذت نهٔ کا — چه خولهٔ ورکا دَ زورل سره آميزه

دَمعشوقې نوم عاشق په جهان خور کا — دَ شيرينې بازار تيزدې له پرويزه

کهٔ مې بې له تا نه بله ياري وکړه — راته ګوره راځکوم حديث په پيزه

په کاتهٔ کا تهٔ زړهٔ لا درته تاؤ تاؤ شي
دَ لړګي لښتې په غابښ کړې ريز مريزه

چه ئې سوز نهٔ وي له سازه — يا ئې سر له سرو ناغزه

دَ ژوندون راحت ئې کوم دې — راته ووايه همرازه

غم مې واړه تار په تار شي — دَ هر تار له بنهٔ آوازه

څما لاس له کاره ووځي — چه په کار کښې شې شهبازه

په هر ځائې چه ښائسته وي — ترې سلام مې دې له نيازه

چه دَ کښليو ننداره کړم
ورته پاتې شم خولهٔ وازه

چه هر يار ته مې ترخولهٔ ويوست آواز — زر په واړه عالم خور شو هغه راز

کهٔ دِ زړهٔ دې چه رسوا په هيچا نهٔ شې — دَ قلوب دننه بنهٔ دې ساز ناساز

کهٔ آواز دَ زړکو نهٔ وې په درو کښې — چا به چيرې ورپسې ګرځاوهٔ باز

چه نارې کا تورتارو په مرغزار کښې — باز جُره ئې بنړې يوسي دَ طراز

چه څما ترخولهٔ ونهٔ ووت چا ونهٔ وې — خپل نفس دې په سړي باندِ غماز

په صبا به هغه راز په کلي خور وو — چه په شپه به ما وځوئې ته وې په ناز

ډير ياران مې ترسر تير دي ځوان ووم زوړ شوم — په زړکو نو کښې پيدا نهٔ شو دمساز

په خپل زړهٔ کښې ځګرخون کوه خوشحاله
خپل پردي ته دَ زړهٔ راز مهٔ کړه آغاز

کهٔ هرڅو دي پښتنې جونه طنازې — دا دَ هند سکنړې هم نهٔ وي بې نيازې

نهٔ ئې جنګ نهٔ ئې مانړې نهٔ ئې هو ونه — خره مهرې خره مينې خره نازې

خویوه ذره پړه ناسازه دی کا — په مانړے کښے نهٔ دعوے کاندِ آغازے
په خدمت کښے ترصباحه لکه شمع — په یوهٔ قدم ولاړے ځان ګدازے
په غمزو په کرشمو په مکیزونو — فرح بخشے غم تراشے دلنوازے
په ادب په ظرافت په رموز پوهے — دَ صحبت په علم ښورنګه ممتازے
کهٔ هزار جور وجفا وینی له تا نه — بیاله تا سره خندا کا په خولهٔ وازے
نوی نوی شیوے کا درته جوړیږی — په ښورنګه جلوه کا جلوه طرازے
دَ بڼو سُوکے ئے نیغے ځی تر زړونو — چه تیرهٔ تیرهٔ کاته کا لکه بازے
په جیو جیو درته پستے خبرے وائی — هر زمان له تا په ښو رنګه همرازے
عجب سرے په پانو شونډو درته خاندی — مینځی غابښ په مسی تور عشوه پردازے
غټ غټ تی لکه آنار په ملا نرئ — سر ترپا یه دَ اُومو ریښمو سازے
دَ صورت په لطافت بے مثله روغے — په قامت ترسروِ وُنے سرفرازے

خرخشے ئے دَ خوشحال له دله نهٔ ځی
کهٔ جُدا دی دماغی باریک مجازے

لکه غشی لره بویه تیر انداز — هسے شعرلره بویه سحر ساز
همیشه دَ زړهٔ په لاس تله دَ وزن — زیات وکم دَ وزن یو تورے غماز
په تور اَس دَ حقیقت ناوے سوره کا — په سپین مخ پَلَوْ نیولے دَ مجاز
تل جلوے سل کرشمے سل مکیزونه — په نظر کښے ئے ښکاره دَ سترګو ناز
دَ صنعت زیور په ښو رنګه پرېوزی — دَ تشبیه چندنړ چووه باندِ طراز
دَ تجنیس پایلے خوړی ئے په پښو کړی — دَ ترصیع امیل په غاړه اوږد دراز
دَ مضمون دَ نزاکت غمزه ورځنه — سرترپا یه درست صورت سره یوراز
کهٔ په نظم کښے کار کهٔ او تپوس راوړے — هم دَ زړونو په ښکار ګرځی لکه باز
چه یوه وینائے وکړه هوښیار هغه — عاقلان به ویل کاندی په ایجاز

دَ پښتو ژبے ئے ډیره خوبی ورکړه
چه خوشحال کا په پښتو شعر آغاز

په خاطر باندِ م نهٔ وے پروت لړے — ښو خاطر م لتوے هومره م کړے

په بل رنګ م به زړګې باندې سوړ نشي — رقیبان شو د نوکونو ترمینځ سپړې

وهر چا وته چه وکوم فریاد کا — پوزه نۀ یم د جهان دی سینې خوړې

دا د وه توکه وهوښیار وته یو راز دې — د نا مرد سړی بریتونه بریت د مږې

په جهان به هیڅوک نۀ وی چه آزاد وی — ځنې عشق اندوه بنده کړۀ ځنې لوړې

چه احمق سره یاری کړې خبردار شه — یوه ورځ به په تا وکا کار د یږې

چې بې علمه تصوف وائی باور کړه — دام واړه بوس دانې سره اغږې

هیڅ مذکور ورسره نۀ بویه نۀ بښۀ دې — په نا دان د دانش خبرې زوږې

چه د لاس په کید ړنۀ رسی خوشحاله
ومزریږ وته ځۀ لاسونه مږې

تۀ چه ستر ګې تورَوې خود به پوهیږې — لونګین چه شوروې خود به پوهیږې

سرتوپا یه جامې واغوندې ګلګونې — ځان چه هسې جوړوې خود به پوهیږې

تورسنبل د باد ومخ وته ولاړې — چه په کل ئې خوروې خود به پوهیږې

په ورځ سل ځله آشتی کړې هم جنګونه — هر دم خوئ چه نوروې خود به پوهیږې

هم په لاس د میو جام راکړې چه نوش کړه — بیا م جام نسکوروې خود به پوهیږې

خپله ځۀ د درست جهان فتنې نازونه — چه عاشق ته پوروې خود به پوهیږې

مګر لږ دی د خوشحال د زړۀ غمونه
باندې نور تنده وروې خود به پوهیږې

چه ژوندی وی غم ړنۀ کاندی د لوږې — شنۀ طوطی لره شکرې نۀ دی لږې

په شکرو په نبا توئې سود نۀ شی — چه په چا شوې ستا د خولې خبرې زوږې

په لحظه د دینم قهر مهر — په ځائی خصلت دا هسې خوږې خوږې

ستا په لبو به لباب شم په داخوښ یم — کۀ هر خوږ م د اوړو غوندې اغږې

داچه اوس درته حاضر دی بنۀ ئې کوره — په هجران به ئې آخر لاسونه مږې

عقل وهوش ئې وسړی وته پیدا کړ — دا چیچل دا رل د پړانګ دی یا دیږې

دا بې درد کۀ په ظاهر سړې لیدۀ شی
د خوشحال ته م میږی دی ماشی سپږې

درسته شپه دِ په کوځه کښې مرم له سوړه
لاس مې مات شه که دِ نهٔ کړم روړ بوړه

تهٔ به خوبې غمه خاندې خوشحالي کړې
خما غاړه په ژړا درپسې بوړه

ستا خوئ دَ زلفو کار سره یو رنګ دے
سر څوالوئ دا هو مره سمه کوږه

حال دِ واږه وارپه وار راته معلوم شهٔ
ته یاره په زړهٔ تریخه په خولهٔ خوږه

خما یار چه میخوری کا په بدل ئے
ولے مالره راځه دَ دردو روږه

پکښې زړهٔ دَ خوارخوشحال ئے چه خوږ نشي
پرے رو رو دَ شهځئ زلفے نموږه

اے په خپل ګمان کښې بږو سه
له اصلي کاره مایوسه

دانه نهٔ ئے چه دِ مغز وي
بے دانے حبطه بوُسه

وخپل عیب وته پروند شوے
دَ پردي عیب جاسوسه

چه پیدا ئے خوشبوئ شوه
اګر بنهٔ شو تر آ بنوسه

دَطوطي برابر نهٔ ئے
کهٔ نګار لرے طاؤسه

کهٔ غوته کړې په چرګورپو
په دا باز نهٔ شوے تپوسه

لعل و دُر پرے حبطه دي
چه رنګ نهٔ لري عروسه

راشه مخ په آئینه کړه
چه چهره شي درمعکوسه

دَ خوشحال ختک توبه ده
ستاله رزقه له سالوسه

په رموز دَ عاشقانو عاشقان پوهیږي بس
په طلب دَ طالبانو طالبان پوهیږي بس

په ضمیر دَ نخلبندو نخلبند سړے خبر وي
په تصویر دَ نقاشانو نقاشان پوهیږي بس

چه کشتئ پکښې بیائ په عظیم دریاب ګډیږي
په بیولو دَ کشتئ ملاحان پوهیږي بس

چه ګردش ئے ورځ وشپه کا دَ کامل انسان دیاره
په اسرار ئے کاملان یا دا آسمان پوهیږي بس

سپینې ږیرې وته بویه چه نظر په خپل قوت کا
اوهوس دَ شوخې ښځې په دا خوان پوهیږی بس

نادانان دَ ملک ښښتن کا دانا هسې ورته کوری
دغه پوهه دَ چا نهٔ ده پرې سبحان پوهیږی بس

چه خوشحال ئې په بیاض کښې دا تازه تازه خبرې
نو په دا تازه خبرو سخندان پوهیږی بس

په هر لوری دے فغان دَ مرګ له لاسه
په هر لور په هر مکان دَ مرګ له لاسه

دَ آدم صورت ئې مرګ لره پیدا کړ
خرابی شوه په جهان دَ مرګ له لاسه

همګی پیغمبران که اولیاء وُو
دوئ په مزکه شو نهان دَ مرګ له لاسه

عاقبت به شی بې شکه بې ګمانه
دا ودان کورونه وران دَ مرګ له لاسه

راشه ته هم دَ توښې په سرانجام شه
کاروانونه شو روان دَ مرګ له لاسه

اے خوشحاله که په تن شاهِ جهان شې
هم به درومې په ارمان دَ مرګ له لاسه

په درست کلی کښې م یار دے هغه کَس
چه په درست تومن اوخار دے هغه کَس

که په شکل شمائل سرے لیدهٔ شی
سر تر پایه پری وار دے هغه کَس

خکه زهٔ ورباندِ هسې عندلیب یم
چه په حسن یو ګلزار دے هغه کَس

که هرځو راته کنځل کا یا قهریږی
په خولهٔ وارهٔ شکر بار دے هغه کَس

که ئې زلفې که کاکل که ئې ګیسو دے
همګی مشکِ تاتار دے هغه کَس

چیرې نه چه په ټولی کښې ئې غلط کړے
هوسئ ستر ګې ګلرخسار دے هغه کَس

دَ جائفل په ځائې به سر ورته پیشکش کړم
که په سر م مینه دار دے هغه کَس

چه زهٔ خولهٔ ورځنې غواړم نور کنځل کا
بې حسابه ستمګار دے هغه کَس

زړګے ځهٔ لره په خپل رفتار غوړه ئې
لا تر تا نه خوش رفتار دے هغه کَس

چه صورت سیرت ئې دواړه سره جوړ دی
دَ خوشحال دَ زړهٔ پکار دے هغه کَس

په لحد کښې به هوا نهٔ وی هوس
درسره به خپل عمل درومی نور بس

بې طوطي نه قفس هیڅ نهٔ دې با ور کړه — روح په مثل دَ طوطي دے تن قفس

فهم وکړه چه ضائع درځنه نهٔ شي — لکه دُرِّ بې بها دے دا نَفس

چه دا دُرِّ بې بها هسے تلف کا — دَ خارویو په شمار دے هغه کَس

دَ خانانو په خاکونو گذر وکړه — زرغونهٔ په خاکونو خاورو خَس

هرچه شوی نهٔ بدلیږی دا په څهٔ کړے — هومره ډیرے اندیښنے هومره وسوس

په نصیب به له جهانه یو کفن وړے — هغه هم آتهٔ یا نهٔ گزهٔ یا لس

دا به واړه له تا پاتو شي اے جانه — کهٔ ښے جونه کهٔ اَسونه کهٔ اطلس

تیار یږه وخت دَ کوچ راغے خوشحاله
په هر لوری نارے آورے دَ جرس

تهٔ څهٔ زړهٔ لرے څهٔ لاس — واړه گنجِ دَ کوز و پاس

گاه دَ مزکے طراحي کړے — گاه په عرش کښیږدے اَساس

لکه ډک شے هسے تش شے — دشناخ دے ستا آماس

لکه پونډے وَ اور ته — واوبو وَ ته قرطاس

هم گوهرِ هم شبه ے — هم کُتنی ے هم کرباس

هم ملک ے هم مَلِک ے — هم خنزیرِ ے هم خناس

په افلاس کښے دِ دولت دے — په دولت کښے دِ افلاس

تهٔ له دیوه په هراس ے — دے له تا نه په هراس

نهٔ اطلس دے نه زربفت دے — لاڅهٔ ښهٔ دے ستا لباس

واړه ښهٔ وائے خوشحاله
وایه هیڅ نشته وسواس

چه ے غم لرے دَ مخ هم دَ وصال بس — اندیښنه ے دَ جمال دَ خط وخال بس

بادشاهان دِ زرزری جامے اغوندی — دَ قانع گدا په شا باندِ یو شال بس

په بهاندو اوبو کښینه ننداره کړه — دَ جهان دَ تیریدلو دا مثال بس

خوږوه گیډه خوارهٔ دوه درے خرخوړی — کهٔ دانائے په جهان کښے دا جنجال بس

وحریص وَ ته درست مال دَ دُنیا لږ دے — وقانع ته یو فلوس دَ دُنیا مال بس

زاهد ستړګې ترې پوښې زۀ کښلي ګورم
کۀ جنت لره مې بيائي دا وبال بس

کۀ لائق يې دَ جمال دَ ليدونۀ يم
کۀ يې بيا مومم وصال په خوب خيال بس

دواړه کونه دَ هغو چه يې طلب کا
ستا دَ سترګو ننداره دَ خوار خوشحال بس

خدايه کۀ زۀ تا ته نږدې کېږم په افلاس
زر مې کنډ په غاړه کړه يومات کچکول په لاس

تۀ کۀ په دا خوښ يې چه خاوند دَ ملک و مال وم
مال و ملک مې هومره کړې چه تېر وي تر قياس

هسې مال رامۀ کړه چه يې ځانې وي تر زړۀ کښته
هسې اموال راکړه چه يې ځانې دَ زړۀ دَ پاس

لاس مې هميش برلره په واړو غليمانو
دوه مې غليمان دي يو مې نفس بل مې خناس

طمع کۀ حسد وي کۀ حرص کۀ بد خويونه
واړه له ما پريکړه دَ خپل فضل په الماس

توان دَ طاعت راکړه چه اخلاص ورسره مل وي
نۀ هغه طاعت چه شي په رسم په لباس

يا بار کريمه دَ خوشحال خټک دا خواست دے
تل دَ دۀ په زړۀ کښې لرې ټينګ دَ دين اساس

دا ځما زړګے په خپل زړۀ ګوتې نسه
چه دِ زړۀ دے ځما زړۀ هم هسې کسه

دا دَ ورکيو خوئ دِ څۀ وينو په لاس کښې
چه زر زر څۀ ورکوې بيا ئې رانسه

زۀ به هيڅکله دَ تا له ورۀ وانۀ وړم
کۀ هر څو وَرځوائې چه مه راځه ناغسه

کۀ هر څو دَ شندې ګل څۀ بنۀ ليدۀ شي
رُخ يې نۀ دے چه سيالي کا له نرګسه

چه يې تل وغوا و غيلو ته سورې دي
خدائې دِ واخله دَ بې دردو مجالسه

هر دم دا رنې په خپل کار کښې دَ خوش کړې
کۀ سړے دے کۀ پيرے کۀ کوس و غسه

چه يو هم دَ زړۀ ساتونې پکښې نشته
توبه توبه دَ ختکو له اولسه

زهٔ خوشحال چه په مزریو باندِ تیغ کړم
تا ته څهٔ رنګه کیدړ شوم ترور یم کس

زهٔ هغه سړے یم چه قلم واخلم په لاس
ناظرم عطارد دے چه به څهٔ کښی په قرطاس

نائب دے د تقدیر د ما تدبیر په مصلحت کښے
صائب دے خما فکر د هر امر په اساس

د تورو په میدان کښے چه سودا وی د سرو نو
هغه زمان یم کوره تل به سور وی دما آس

حاسد یم لکه کا نړے د صحرا په هیڅ حساب کښے
په قدر په قیمت کښے یا یا قوت یم یا الماس

کهٔ حال یم د قضا په حکم هسے محول وی
قمر وته نظر کړه کله بدر کله کاس

ظاهر لکه شهباز یم کهٔ وما وته نظر کړے
باطن لکه خورشید یم هیڅ یم نهٔ غواړي په قیاس

کهٔ لاړ شم د کوزې د هسکئ وهم باور کړه
ترتورو خاورو کوز یم تر آسمانه یم لا پاس

وئیل کوے وچا ته چه دما وئیل سرهٔ زر دی
رندو وته خوشحاله لکه زر هسے رصاص

زهٔ هم چیرے فرزانه وُم فرزانه یم لاتر اوسه
تل بیخوده دیوانه وُم دیوانه یم لا تر اوسه

جدائی نشته وصال د څنے بُعد هم خیال دے
له هغهٔ چه همخانه وُم همخانه یم لا تر اوسه

چه راغلے په جهان یم خبر شوے په خپل ځان یم
د رازونو خزانه وُم خزانه یم لا تر اوسه

په عالم خما خبرے خلق کا په نزدے لرے
په وګړی افسانه وُم افسانه یم لاتر اوسه

چه د مخ پلوئے واشو، یو مشال وو چه تماشو
هغه دم پړے پروانه وُم. پروانه یم لا تر اوسه

ناوکی ئے د مژګان دی چه بلا د ما د ځان دی
ورته عمر نشانه وم نشانه یم لا تر اوسه

چه ئے ځان سره آشنا کړم له هر ځائے شا په شا کړم
له عالمه بیګانه وُم بیګانه یم لا تر اوسه

هغه بحر چه محیط دے په افراط او په تفریط دے
دغه بحر دُر دانه وُم دُردانه یم لا تر اوسه
هغه شان له خپله یاره بے وکیله بے ریبا ره
زهٔ خوشحال چه یکانه وُم یکانه یم لا تر اوسه

سړے بنهٔ دے حق شناس — سر دِ وخوری ناسپاس
دَ یوے دانے او ربشے — احسان ډیر دے ترقیاس
چه احسان وته ئے شاشوه — مغزے تورشه نهٔ دے ناس
څو اخلاص ورسره نهٔ وی — یاری نهٔ شی په لباس
یارئے مهٔ گنړه اغیار دے — چه تهٔ پریوزے درکا لاس
تل خالی وی له خلله — دَ رښتیا مینے اساس
کهٔ دِ یار دے هغه یار دے — چه خپلوی ئے بے وسواس
چه وفا دی دا درے توکهٔ — تُوره، ښځه دریم آس
دَ خوشحال خبرے دُر دی
چه ئے کښلی په قرطاس

کهٔ اغزی وی ستا تر لاسه — تر گلونو دی دیاسه
دَ زړګوتی سرِم تهٔ ئے — کهٔ یاران لرم بے قیاسه
چه به بل ترتا راتیر کړم — دا وائے دَ زړهٔ وُباسه
کهٔ دَ نورو سره خاندم — جهان نهٔ دے بے لباسه
له مانړ یه به دِ وُمرم — خهٔ خومخ را وجار باسه
کهٔ څوک تاغوندِ ښکاریږی — خلوښت بیل دے تراماسه
تر هغهٔ به نادان څوک وی — چه خر ښهٔ گنړی ترآسه
دَ اغیار و سره خانده
په خوشحال تندر یږباسه

کله باز کا ومردارے ته هوس — دغه کار دے دَ کلاغ و دَ کرکس
وگفتار وَته ئے مهٔ غروه سترگے — په کرده په عمل گوره کس ناکس

کهٔ ئې سر په لګئ اړوې هغه دې
په هیڅ رنګ به نور خهٔ نشي سک مکس

په ظاهر شماره کهٔ لس سره دوه پنځه دي
د ابجد په حساب نوی وګنړه لس

دوه سرې په باغ کښې ګډ شي یو ګل ګوری
دویم ګرځي په طلب د خار و خس

زهٔ دائم په بیلتانهٔ کښې له هغو یم
چه د یار بې یادونهٔ وي یو نفس

کهٔ هر خو بنائسته روغ د ګخوک نهٔ خهٔ کا
د طوطي له مخه بند یشي قفس

خوار خوشحال به خنې خوشرې په جور
کهٔ سرې شونړې د شکر دي دې مکس

کهٔ مردي دِ په دستار ده په منړوسه
سکه مردي دِ مبارک بر یتونه پوسه

کشکې زهٔ د نامردانو په شماره وې
چه فارغ وې له ارمانه له افسوسه

د لوهړ ګلونه بنهٔ دي تر نلګوسه
ولې بیا چیرې لوهړ چیرې نلګوسه

چه ظاهر باطن ئې دواړه حبطه وي
منافق سړې بتر ګنړه تر کوسه

په دروغ په ناراستئ کښې ډیر غم دې
د ربښتیا روزګار کوه بې غمه اوسه

چه به هر کله جفا کړې وفا هم کړه
د اغزیو سره ګل لري پلوسه

په جهان کښې بدخوئي واړه دوزخ دې
د خوشحال له دله خوئ د بدو یوسه

کهٔ د مور نفس کښې خهٔ وې لکه وې هسې به اوسې
چه په خهٔ دِ د زړهٔ مینه هم هغه مینه به یوسې

لاس دِ زړهٔ دپاسه کښېږده چه خهٔ حال د زړهٔ معلوم شي
خهٔ تسپې په لاس کښې نمورې خهٔ په بزمنځې بزېره یوسې

کهٔ د باغ دي کهٔ د راغ دي په سلګونو دي دا ونې
څوک سپیدار دي څوک چنار دي څوک پلو دي څوک پلوسې

اینځر نهٔ لري ګلونه میوه سپینه لري توره
د انګور ژنګوري ګوره میوه ګل لري نلګوسې

دا جهان پټې پټې دې جنس د جنس سره خوښی کا
مار له ماره یوز له یوزه خرس له خرسه کوس له کوسې

کهٔ عصمت فتوت ئے نهٔ وی وارهٔ وسیزه په اورکښے
چه په خیال په هواکرځی زیر بره وئے سرغنډ وسے
الحذر دَ عشق له اوره کهٔ دِ لاس رسی زړهٔ ژغوره
دَ دلبرو مینه اورده اے خوشحاله زړهٔ کړه بوسے

په طلب کښے دِ سستی وینم درویشه        چه وتلے دَدے خونے له ویشه
نعمتونه رنګارنګ دی په هر لوری        په غوښتو نی باندِ نهٔ ده جفا پیشه
څو طلب هومره موندل دی په دا دور        بلکه لا تر طلب بخره موے بیشه
دَعسلو خوارهٔ کله هغه موی        چه حذر کا دَ مچیٔ له بده نیشه
لا دَ وخته دَ طبیب طلب باندهٔ دے        څولا پائے په دُنیا دَ زړهٔ له ریشه
په هیڅ دین کښے ما وفا لیدلے نهٔ ده        خبردار یم دَ هرچا له دین وکیشه
په هر غشی چه زخمی شوم بیا م وکوت        هغه غشے وو په تن ځما له کیشه
هیڅ پروا اندوه دَبل دَ بدو نهٔ کړم        خودِ پا نهٔ سی بلا له ځانه خویشه
په پیغام دَ بوسے سود نهٔ شی خوشحاله
چه ځما په خولهٔ مئین ئے را نژدے شه

تورانی خودَ جنجال دی دَ پرخاش        دروغژن سوګند خوارهٔ بهتان تراش
ایرانی دَ آشنایئ دَ وفا دی        دَخلقت دَ مروت دی دَ معاش
پښتانهٔ دَ بد نیتیٔ دَخصومت دی        په حیا په شجاعت ئے وکړه شاش
کهٔ بلوخ کهٔ هزاره واړه چرکین دی        نهٔ ئے دین نهٔ ئے مذهب ستر ئے فاش
کهٔ هندی دی کهٔ سندی دَ غم ئے تورشه        نهٔ حیا نهٔ ئے وفا نهٔ نان و آش
کشمیری کهٔ نرکهٔ ښځے واړه هیڅ دی        دَ مردیٔ ورځنه نشته هیڅ قماش
دَ آدم له نسله نهٔ دی کوره څهٔ دی        دواړه ورک شه یو اوزبک بل قزلباش
لغمانی بنګښ سواتی تیراهی واړه        موټ متر لوبیا چنړه دی مهے ماش
هر احوال ورته ښکاره دے دَ وګړی
دَ خوشحال ختک په پوهه کړه شاباش

څهٔ غم دَ نعمتونو چه اختر راغے درویشه        په طمع په اُمید اوسه دَ هرغنی له ویشه

یو گل مې په دا باغ کښې ناکهان په نظر کښیوت ... عجب ئې خوشبوئی وه ترهمه ګلونو بیشه

چه ما وکړه پوښتنه دغه ګل له حقیقته ... ده کړې تحمل وو دَ هر یو اغزی له نیشه

نا ځې چه له اوله خپل ځګر وکړ سرې وینې ... له روسته ئې روانه خوشبوئی شوله ریشه

په څو به دَ ویشتلیوله احواله نه خبر یږې ... چه هیڅکله دِ نهٔ ده چیړې پښه په اغزی ریشه

له دوه او یا مذهب سره به ساز وکړې له دله

خوشحاله کهٔ خبر شې په تحقیق دَ عشق له کیشه

دلربا پسره راشه ... اے ځما بشره راشه

چه دَ ښهر ښائسته دی ... ترهرچا بهتره راشه

سرتر پایه واړه ناز ئې ... ځما ناز پروره راشه

په خوږو خبرو شهده ... په خندا شکره راشه

چه دِ نهٔ وینم هیڅ عیب ... تمامی هنره راشه

توره شپه دِ تورې زلفې ... په ښهٔ مخ سحره راشه

دَ سما قمر به څو کړم ... دَ غبرا قمره راشه

دَ راتلو لارې دِ ګورم ... اے ځما دلبره راشه

څهٔ به وایم چه بې تا مرم ... اے په زړهٔ خبره راشه

چه په څو ترو تازه ئې ... دَ چندنړ شجره راشه

چه دِ نهٔ وینی نور روند شی

دَ خوشحال بصره راشه

کهٔ ئې غواړم نهٔ ئې مومم هسې تاغوندِ مهوشه

خنده رویه سنبل مویه ګلعذاره پیاله کشه

سمن بره قد عرعره موکمره لب شکره

آهوچشمه څره خشمه مهر ژنه منقشه

دلنوازه سرفرازه چشم بازه عشوه سازه

تیز نظره غمزه ګره په دوو زلفو مشوشه

سربلنده خود پسنده خودنمایه دلربا یه
دَ عاشق دَ ځان بلا په رنګ زیبا په خوئ آتشه

طربناکه تل بے باکه ګریوان چاکه تش تپاکه
زړهٔ ئے سخت لکه آهن په مخ یوه آئینه بے غشه

دَ زلفینو سرئے تاؤ لکه نخوش دَ ماهی ګیر شو
کله وی چه خوشحال خلاص شی له دَ هسے رنګ نخوشه

دا بنا ئست چه ئے په تا باندِ کښیښی — دَ زړهٔ داغ به ئے په ما باندِ کښیښی
کهٔ جمال ئے و یوسف نهٔ وے ورکړے — چا به غم په زلیخا باندِ کښیښی
مګر ګل په اشارت کښے ورته وے — چه بلبل تهتر په ما باندِ کښیښی
کهٔ دَ زلفو مارئے وخوری عاشق ګرم دے — چه ئے لاس په اژدها باندِ کښیښی
زهٔ کهٔ ستا په لړشو بو باندِ پروت نهٔ وے — دَ سپی نوم به دِ په چا باندِ کښیښی

کهٔ هرڅو به دِ شاړهٔ دَ خپله دره
خوار خوشحال به قدم لا باندِ کښیښی

نشته هسے مینه دَ یارانو خاص الخاصه — چه یو خپله ځار یری په جهان کښے له اخلاصه
یو راز دے په دا کار کښے که ته بنهٔ فهم پرے وکړے — چه شمع سر جنبانه پروانه ورته رقاصه
له مرګه مِ څهٔ غم کړے چه دَ عیش په شریعت کښے — قاتل په شرع خلاص دے له دیته له قصاصه
کهٔ لاس مِ رقیبان په تیژ توره سر بریے کا — لمن به دِ لا هم ځما له لاسه نشی خلاصه
زاهد به په عشرت ځماله برمه نهٔ خبر یږی — دَ عامو څهٔ مجال دے چه خبر یری له خواصه

چه وګورم وتا ته همګی په دُرو پُرئے
څهٔ خیز دے اے خوشحاله له محیطه هم غواصه

له تا به ستا له تیغه عاشق چیرے کا اعراض
دَ شمعے دَ اور پښتے مینه نهٔ ځی په مقراض

دَ خپل خاطر احوال به زهٔ خپل یار وته معلوم کړم
بیمار به له طبیبه په څو پټ لری امراض

ترد انه به بل کوم طاعت تهٔ به موے اے دِ له
چه یو ساعت م کښېنے دَ زاهد سره مرتاض

سودا ئے دَ چشمانو په ژړا ژړا ابتر شوه
دَ اوښکو محرومی ئے اوس وو ړینه په بیاض

دَ یار کوڅه م بیا مونده دَ یار له بوے په پُره
هوا به دَ ګلونو نوره څو کړم دَ ریاض

خوشحاله مستعد وُسه و فیض و ته قابل ئے
وریږی دَ قابل په زړهٔ تل فیض دَ فیاض

سپین نمری اغوستی په پښوسرے کونبے نو خطه
څهٔ رنګه رادرومی لکه تکه سپینه بطه

سل دِ سره کښېنی واړه یو تربل بهترے
خدائګو کهٔ به زهٔ کرم تا په واړوکښے غلطه

بخت غونډِ ناګاهه هما خوار کړه سیده شوه
راغله دِ په قصد وو کهٔ دا راغلے بے نمطه

وایم چه کهٔ واړه زاری زهٔ راوړم خیل کور ته
څوک چه چا ته زار کا دَ دلبرو له سخطه

راشه سره م پریکړه لا به ښهٔ شم په وفا کښے
خود په دا پوهیږے قلم لا ښهٔ شی له قطه

ډیر به دریاب ګډ شی واړه مټ کا دَ وتلو
څوک پکښے لاهو شی څئے وریشی ترشطه

لوړے لنډے نورو زده خوشحال ده غوره کړے
نهٔ لوړه نهٔ لنډه په قدبنه روغه وسطه

هر سړے چه لاس و نیسی غلطه زمانه ورته پیدا کا ډیر سخطه
محبت محنت په خط کښے سره یوشی محبت سره جدا شی له نقطه

مهٔ یک لحظه مړنے شه مهٔ غوړے
په دُنیا کښے هره چاربه ده وسطه

مصلحت ئے په هر قط کښے دَ خوبئ دے
کاتبان چه قلم نهٔ پریږدی بے قطه

دَ مزری منګل کما وزے غواړی غویږے
دَ شاهین حمله په زاڼرے ده په بطه

بے بښهٔ مخ به دِ قدر قیمت نهٔ وی
دَ بښهٔ مخ قدر کړه زده له خال وخطه

چه مدد ئے مهترخضر دے خوشحاله
دَ هغو بیړئ به ورسی تر شطه

چه دَ کښلیو په لیدل نهٔ وی محفوظ
دَ سرود په آوریدل نهٔ وی محفوظ

چه حاصل ئے دَ خپل یار ندارہ نهٔ وی
په ګلزار ئے سوخته دل نهٔ وی محفوظ

کهٔ شیخان کهٔ زاهدان کهٔ عابدان دی
په داخپل عمر به تل نهٔ وی محفوظ

چه ئے دواړه شونډے کښل کړم پرے محفوظ شم
خوک به هم په مے خوړل نهٔ وی محفوظ

کله کله هسے وخت په سړی راشی
چه دَ ګلو په کتل نهٔ وی محفوظ

دَ خوشحال وئیل هُنر دے هغه خر دے
چه به دے په دا وئیل نهٔ وی محفوظ

زړهٔ مِ بے له عشقه په بل کار نهٔ وی محفوظ
بے له کښلیه مخه په ګلزار نهٔ وی محفوظ

کله مړنے دے چه دَ تُورے په میدان کښے
دے دَ تیرے تورے په پرهار نهٔ وی محفوظ

هرچه عاقلان دی په فتوئ دَ عقل کار کا
هرچه عاشقان دی په دا کار نهٔ وی محفوظ

هرچه بل ئے وُولی بیا دے پړے غشے لک کا
هیڅکله ښکاری په هغه کار نهٔ وی محفوظ

خاورے ئے په سر سه حبطه ئے عمر تیر شو
هرچه نن دَ کښلیو په دیدار نهٔ وی محفوظ

عید شو هم بهار شو وصحراو ته خلق ووت
زار دے دَ هغهٔ چه په خپل یار نهٔ وی محفوظ

دور دَ عاشقانو دے کۀ وګورے په عشق کښے
پند کۀ ورته وائی په خپل پلار نۀ وی محفوظ
هر کله چه راشے ورته وخاندے له ورایه
خوار خوشحال به ولے په بار بار نۀ وی محفوظ

سخت ساعت دے دَ وداع په آشوب و په صداع
چه یو ځل سره څوک بیل شی بیا په بخت وی اجتماع
عجب هر زمان نیاز کا نوے نوے اختراع
چه په لړ مانړی وه نزع ترو به څۀ وی په نزاع
هم م دُ غلوی بیا وائی نۀ یو هیږی په خداع
شونډه بوخه په نخوال کا چه م وینی اوضاع
دَ بورجل غمزن په رقص دَ یا ټلو په سماع
چه ترے دَ لیدو لارے څۀ دِ خیر دے مناع
نۀ ئے یو دیدن خوشحاله
نۀ دَ درست جهان متاع

خلقے سره یاری کا په دروغ وبه نۀ وینے دوه زړونه سره روغ
دَ شودو پیو عوض ئے وی په زړۀ کښے چه سفله دچاته و رکا چیرے دوغ
دَ هغو صحبت کیمیا دے کۀ ئے مومے چه ئے بیا مومے په ناسته کښے فروغ
دَ دے دور یاران واړه منافق دی په خولۀ تا سره هوهو کړه په زړۀ یوغ
په قیامت به ئے په کوم عبادت پټ کا په آزار دَ خپل پدر ترلے توغ
نور کار رونه اوس پکار نۀ دی خوشحاله
یا دچا څۀ ورکوه یا دَ الجوع

نشته هسے سر چه به خالی وی له دماغه
کوم دے هغه زړۀ چه به روغ پاتے وی له داغه
چرته پسے درومم به کوم لوری به ئے مومم
ورکه مونده نۀ شی بے رهبره بے سراغه

مست یم مئے پرست یم همیشه ایاغ په دست یم
یوساعت چه ځئ را باندِ غم دے بے ایاغه
باغ دِ دَ هغو دے په هرچا چه دِ پیرزو دے
زهٔ په ارمان تل دَ یوهٔ ګل یم ستا له باغه

ګل دَ عندلیب دے په قسمت دے په نصیب دے
درومه درومه په جیفه ګرځه کلاغه
تل هوا هوس کړه تراوله یو په لس کړه
ستاله غمه څهٔ دی کهٔ زهٔ لاړم له فراغه

ورځ ورباندِ شپه ده په تورتم کښے ئے میشته ده
کله به لیدهٔ شے دَ خوشحال دَ زړهٔ چراغه

یارم بیا دَ رقیب یار شو دریغه دریغه
په خبرو دَ اغیار شو دریغه دریغه
یو خو ورځے ئے په زړهٔ کښے مهرځائے وو
بیا بے مهره ستم ګار شو دریغه دریغه
هغه ګل چه م ساتهٔ دَ زړهٔ په وینو
مل دَ هر خس و هر خار شو دریغه دریغه
وقصد منو ته کاتهٔ ځما په قصد کا
دَ وژدم روا دار شو دریغه دریغه
بے له تا م دَ ځیګر وینے خوراک شوے
تیر م عمر په دا کار شو دریغه دریغه
غه بهار چه تل بلبلو پرے چیغار کړ
دَ خزان له لاسه خوار شو دریغه دریغه

بیچاره خوشحال په طمع دَ وصال وو
په هجران کښے ګرفتار شو دریغه دریغه

یوه بده زمانه شوه دریغه دریغه
دَ هرچا م دَ خاطر مینه آمیغه
مهر مینه محبت له زړونو لاړ شو
سینے ډکے شوے همه له مکره زیغه
چه ئے ځائے په دواړ وسترګو باندِ زهٔ کړم
هم هغه م هلاکت غواړی بے تیغه
چه دَ دے دور فتنو وته وګورم
ولے کا نړی تیرے نه ووری له میغه
دَ زړهٔ رازله بے دردا نو نه پټ ښهٔ دے
کهٔ له درده دِ سینه شی سره هیغه
په نوبت به دَ هرچا تر ځیګر خیژی
دَ قضا نیزه د هرچا وته نیغه
کهٔ په تن شاهِ جهان دَ زمانے شے
هم دِ نهٔ وینم خلاصے دَ مرګ له نیغه

کۀ بازدار ئے پسے روکاندی بندونه
ذکرغول ئے علاج کوم ڈے بے کریغه

فهم وکړه کۀ خودبین او خودنما شے
زمانه به دِ پائمال کاندی تر زیغه

زوروَرچه لاس ونیسی ناساز ے
هغے توبه دَ زوروَرو له بلمیغه

دا په خم ختلی غواکۀ هرڅو لوېشے
سیم و زر به ئے حاصل نۀ کړے له لوېغه

تابه چیرے هومره کبر هومره خیال کړ
کۀ دِ نۀ وے رنګ زیبا په صورت سیغه

چه دِ ښۀ له خویه بویه خبردار شوم
له خوشحال سره یاری کړے په درویغه

کۀ یو ګل وما ته راکړے دَ خپل باغ
خدائے دِ تا تروتازه لری تل باغ

ستاله باغه یو ګل ماله دولت دے
نۀ په سل رنګه ګلونه دَ بل باغ

چه ورتلۀ دِ باندِ نۀ وی سپیرۀ ډاګ وی
په راتلۀ دِ شی درست ملک و بورجل باغ

په خوږو خوږو میوو په ګلو ډک وی
چه ښکاره کړے راته تۀ په کنځل باغ

دَ ښۀ مخ دَ ګلستان بلاهجران دے
تل ګلونه په خزان ریژول باغ

نورباغونه دَ نوروز په وخت غوړېږی
په اهاړ کړه غوړیدۀ دَ کابل باغ

همیشه به پرے نارے وی دَ بلبلو
دا چه ساز کړنن خوشحال په ویل باغ

رامعلوم شو دَ اورنګ عدل وانصاف
دَ دۀ ښه مسلمانی ښه اعتکاف

سکه رونړه واړه په وار واړه وژلی
پلار په بند کښے اچولے په مصاف

کۀ هزار ځله خوک سر وهی په مزکه
یا په صوم تر شمځے وروِلی ناف

څو دِ نیت دَ ښۀ عمل سره جوړ نشی
عبادت طاعت دِ واړه دی خلاف

چه دَ ژبے لار یوه دَ زړۀ ئے بله
په چاړۀ ئے شۀ ځیګر شکاف شکاف

مار په تن د پاسه ښۀ ښائسته روغ ڈے
ولے ننه اندرون لری ناصاف

مړنے په کرده ډیر وئیل ئے لږ وی
دَ نامردو لږ عمل وی ډیرئے لاف

کۀ دے دخوشحال لاس په ظالم نشته
دَ قیامت په ورځ ئے خدائے مۀ کړه معاف

چه ئې میاشت کړه د آسمان دپاسه شقه | چه آفتاب ئې رابشکاره کړله شفقه
چه په سر بانډې ئې ابر سائبان وو | چه ئې پاتې جبرئیل شو له ابلقه
چه خوړې ئې د خولې لاړې تر عسلو | چه همه علم ئې زده شو بې سبقه
چه جمال ئې بنائسته په ملاحت وو | چه د مښکو بوئې ئې هیڅ ذو ترعرقه
چه سایه ئې د وجود په مزکه نهٔ وه | چه بره ورته ګویا شو له طبقه
چه ئې تار په تار د باد په مخ خوارهٔ کړل | د تورېت و د انجیل واړه ورقه
دواړه کونه په طفیل د هغهٔ دی | مُرتّب او مهیّا په ډېر رونقه
چه دوستدار د څلور یار د اهلِ بیت دی | په هغو د بنو ګواهی وو له مطلقه

چه عرب ئې و ثنا ته نهٔ رسیږی
د خوشحال ژبه مښبود کاندی ناحقه

چه بُنیاد ئې پیدا شوې په نفاق | د هغهٔ نه طمع مهٔ کړه اتفاق
چه دودلی وی په ذات توره شړئې | سپیبول ئې و هرچا وَ ته دی شاق
چه په باغ کښې رنګا رنګ میوهٔ پیدا شی | لَون لون ئې مزه وی په مذاق
د عسل سره ئې خوره خوږه به نشی | مَرغونی چه ترخه ده په میثاق
د دانا به د ناپوه سره څهٔ زیست شی | ګونګی هیڅکله د بازنهٔ وی مشتاق
کهٔ اخلاقِ ناصری په یاد ووائې | په اخلاق کښې به بښهٔ نهٔ شی بد اخلاق

د طاؤس سره کهٔ زاغ په قفس بند کړې
تر وصاله ئې خوشحال وی په فراق

خرد سرو زرو د زین نهٔ دې لائق | بښهٔ څرې ورلره بویه موافق
بو الهوس چه عاشقی کا عاشق نهٔ دې | په خالی هوس ئې مهٔ بوله عاشق
نفسانی تاریکه شپه صادق هغه دې | چه سحر غونډِ سینه لری صادق
څهٔ به علم په تلقین سره نور نهٔ شی | چه راغلې له ازله دې فاسق
د سینا خویه له ځایه شیخ ملا وو | آراسته نهٔ شو په درس په خوانق
په ادب آداب به نهٔ فائق ترچا شی | چه له ځایه په فطرت نهٔ وی فائق
صالحان له ظالمانو نه پیدا شی | له زاهده نه پیدا شی غل سارق

دَ بدخوئ دَخوئ علاج ملک الموت دے
نۀ په ډېر علاج خبر حکیم حاذق
هغه باغ هغه باغوان هغه نے گل دے
چه فرهاد بانډِ بلبل وو یا وامق
زړۀ سوخته مېنان ډېردی په جهان کښے
څۀ یوازے یو مجنون نۀ دے عاشق
کۀ کار کۀ غوندے فهم وی خوشحاله
هیڅ اُستاد به شین طوطا نۀ کړی ناطق

ډېر دَ خیال سوارۀ ترے لاړل معلّق
سور په شا پرے ېښے نۀ دے دے ابلق
په دا طشت کښے هره ورځ وینے توئېږی
بنکارؤل نے هر ما ښام کاندی شفق
په ازل چه دا نسق دَ بیلتانۀ دے
ترا بده به وران نۀ شی دا نسق
وګدائے وته به څۀ رنګ پاتے کیږی
دَ بادشاه له تنه خېژی دا یلمق
روغ به هاله دَ درمن په حال خبر شی
چه په زړۀ بانډِ رسا وخوری شلق
بیدا کیږی فنا کیږی نۀ بنکاریږی
په دا سیند کښے جهازونه هم زورق
کۀ دَ مرګ سبق دِ هېر دے ګورے ګوره
خپل یاران درته یاد کاندی سبق
کۀ هر څو په سود سودا کړم لیدۀ شی
ترما بنامه دے دَدے بازار رونق
عاقبت به وا ړه سترے شی خوشحاله
کۀ څوک ژاړی ناری مرګ کښې ناحق

دریغه سره تش کړے داډک زړونه دَ فراق
تول کړلے په تله دَ چا زیات شوے اشتیاق
مرګ به ما قبول کړنۀ بیلتون له خپله یاره
څۀ کړم چاره نشته حکم داوو په میثاق
ویش چه په ازل وو دَ هر چا دَ قسمت نو
غم وو کۀ محنت وو په نصیب شو دَ عشاق
څوک په عاشقئ ولاړ چه زۀ پاتے هجران وته
اوس به له ما څۀ غواړی وکړی خوئ اخلاق
هر محنت آفت شدّت نکبت په جهان بنۀ دے
یو بیلتون بلا دے تر هر څۀ په اتفاق

عشق ئې د زلفینو لکه زهر د مارونو !
شوری په ځیګر کښې دواړه لب ئې دی تریاق

تل صبا بېګاه باندې د آه د نا وکیو
ووری سپین توبری څۀ بنادی کا اهلِ نفاق

تل شهدو شکرې کۀ خوشحال خوری ګمان مکړه
چه بې هغو لبانو به خوږ شی دَدۀ مذاق

کۀ د سرو شوندو سره غواړې تحقیق
دَیمن په ملک به نۀ وی دا عقیق

خولۀ ئې هسته ده کۀ نیسته نۀ پوهیږم
دا رموز دې وهرچا وته دقیق

په زړګونو راته لاف کړی د یارئ
مایو یار پکښې ونۀ لیدۀ صدیق

په هر لوري م غورزوی په سر لګیږم
زمانې کړم لکه سنګ د منجنیق

اول غم د یار وما وته غلیم وو
اوس تردۀ نه بل څوک نۀ لرم شفیق

په لومړی قدم دِ سر له تنه پرې کا
چه قدم کښیږدی په داخونی طریق

چه د عشق په بحر دوب د حال ئې کوړ
دَدُنیا په حال خبر نۀ دې عزیق

طلبګار ئې دوصال په لوئې طلب وی
له ازله ئې راوړې دا توفیق

آزاده عالم بندی دې کۀ ئې کوړې
دَزلفینو په زنځیرئې دی عتیق

کنږه زیان دَعشق یوازې دَعاشق دې
اُمید قطع کړه خوشحاله د رفیق

یو څۀ بحر دې عمیق
دَسیماب غوندې حریق

په شنا ترې واتۀ نشی
څوچه بخت نۀ شی رفیق

په ساحل ولاړ څۀ زده
چه څۀ حال لری غریق

حال دما یو معمّا ده
چام حال نۀ کړ تحقیق

کۀ هندو کۀ مُسلمان دې
بېت پالی د خپل فریق

چه م یار دَطریقت وو
پکار نۀ شو هیڅ طریق

یو له بله بهره موی
په اخلاص او په توفیق

چه ئې زۀ لرم په زړۀ کښې
عجب فکر دې دقیق

سل بلا دَ جهان کل وے
جدائی نهٔ وے تفریق
په نامهٔ به شقیق نهٔ شی
کهٔ څوک نوم کښیږدی دَ شقیق
په دا ښهر کښے اکبر دے
دَ خوشحال یارِ شفیق

بذرګرچه دا دانے لونی په مزکه
دَ یوے دانے زر طمعے لری څکه
حقیقت دے کهٔ مجاز درته ئے وایم
یوه ښه ښائسته جل بله کو څکه
چه محنت په څان قبول کا راحت مومی
خدائے به نهٔ کا ندی خواری دَ هیچا ورکه
کهٔ خبر نهٔ ئے خبر شه چه حال څهٔ دے
په ظاهره ډیر ټکی لری لټکه
هر زمان په دَ اوبو په فکر نهٔ وو
بے اوبو کهٔ ما تیدے دَ تږی سکه
دا پریشان پریشان وئیل مِ دَمستئ دی
چه دِ مزے دَ ژوندون بولم څونړکه
ترلیدلو نه ئے نهٔ لیدل بهتر دی
چه وځ ته ئے نظر کیږی په ګرکه
دَ دے باغ ګلونه واړه ښائسته دی
چه همیش ئے بقا نشته په ګنجکه
چه ئے مینه دَ زړهٔ سنګو روزی نشوه
په قیامت کښے به دَ هغو تله وی سپکه
چه بوسه دَ هغے دَ ننګے دَ خولے غواړے
یائے دواړه څونړے نسه یا څونړکه
دا دِ واړه ناپوهی نهٔ ده نور څهٔ ده
چه دَ لویو چارے غواړے له هلکه
دَ بدګوئے دَ خولے خبرے واړه روغے
چارهٔ تُوره بے سندانه بے څو ټکه
دا مِ شعر په بیاض کښے نهٔ دے جمع
په کچکول کښے مِ پراته دی څو کنړکه
چه سرے شلومبے ئے څښنم په وخت دَ اوړی
بادشاهی دَ اورنګ زیب څما غړکه

کوم یا غیان هو ډیان دِ پرے یستل له هوډهٔ
چه دا هومره ډیر دماغ لرے خټکه

تل چه اَرته لمن تهٔ څکوے په مزکه
غره توب لرے دَ مخ په خوبئ څکه
په بیسرد رنګا رنګه ټکی ګوره
په دا شان به ښائسته نهٔ وی لوڅکه
چه دا هسے شیوه ګره څنے زووے
سرے نهٔ وهٔ بناپیرئ وه ستا اَدکه
دَ مستئ له مخه دا پریشان وئیل کړم
چه دِ مزے دَ ژوندون بولم څونړکه
زهٔ به تا وته نږدے شم تا به ګورم
کهٔ دِ ماګنده نه نهٔ کیږی ستا ګرکه

پہ بوسہ مِ دَلبا نو سرفراز کـړه
همیشه پہ زړهٔ لرم دَ شربت څکه

لیونے دِ وجمال نهٔ یم نورخهٔ یم
چه پہ خپله خونه نهٔ پرېږدم کُنجکه

لَون لَون شولانو نه دَ شاهانو
دَ هردر رالره بس دی څو کنړکه

سربازم وصال دِ غواړم هغه زهٔ یم
لکه څوک چه پہ بل لوری غواړی وُرکه

دَ بنائست برخه ئے ورکړه دَ ترکانو
محبت راپیدا کیږی له تاجکه

چه ئے تُوره پکارنهٔ وی حبطه‌وی
کهٔ ئے روغه وی دَ سپینو زرو تِکه

مکرتاځله سامان دَ سلطنت دے
چه پہ هوډ م سپینه خولهٔ غواړےختکه

چه وفائے له چا نهٔ مونده پہ مزکه
وآسمان وته روان شو عیسیٰ[ع] څکه

پہ زړهٔ کونوراته لاف کړاوس یو نشته
آشنائی له هرچا بنه ده بے خپټکه

دَ هغوله خولے کږے خبرے آوُرم
چه به ما ورته کا تهٔ کول بے کرکه

دَ راحت پہ وخت چه تل ترتاځاریږی
پہ سختئ کښے ویزاریږی له ا بکه

مادے واړه پہ احسان ځما بندی دی
همګئ ئے زیست روزګار وو له کوتکه

دَ معنیٰ پہ ستږکو ګوره کهٔ دانا ئے
پہ ظاهرجامه کهٔ بنه بریښی لتکه

مروت یاری ترے مهٔ غواړه خوشحاله
هرسړے چه اوبهٔ وخښی له اتکه

چه پہ دوئ بهٔ ئے بخښل شی پاک ناپاک
بل سړے نهٔ دے صاحبؐ دے دَ لولاک

ترهلال ئے صدقه شم تربلالهٔ
پہ اخلاص یم زهٔ دَ دوئ دَ تلی خاک

دَ بوذرؓ او دَ سلمانؓ ئے درویزګر یم
تل دَ دوئ پہ محبت دَ ځما ژواک

ذوالفقار ئے اژدها وو دوے ئے ژبے
چه دَ دین مخالفان ئے وو خوراک

پہ داهسے مرتوب ئے آفرین وو
چه پہ کار ئے محمدؐ شو فرحناک

کهٔ سوارهٔ ئے مړنی دَ لښکر ډیر دی
لاس ځما دَ دلدل سوار دَ زین فتراک

دَ خیبر پہ کوټ ئے هسے زوربنکاره کړ
چه له ویخه ئے راوُنړول پاک

محمدؐ دَ علم بنهر علی ئے وَرّ وه
ترقنبر ئے شهٔ خوشحال ختک فداک

چه و بازئے ورکولے تیرے نوکے
تر تهتر به ئے ویستے د زرکے سوکے
د بانبے نظر د چتی په لکئ
د شهباز نظر د میور په ښونړکے
د کارګهٔ توره مښوکه د ګنډکئ ده
قند لائق دے د طوطی د سرے منبوکے
د ګلرنګو ناز په هر کله د وړو دے
بیهوده بے ځایه ناز کا رنګ املوکے
یا به سر د خپل ورمیږ په وینو رنګ کړم
یا به کُښل کړم دغه ستا شونډے ملوکے
آفرین دِ په دا تور و شهلا سترګو
چه ئے کُښلے د کشمیر کړلے مملوکے
لا به کله هغه ګل په چمن راشی
د نرګس ګلونه ګوری سترګے بوکے
دهجران له غمه هیڅ سرے خلاص نهٔ شو
څوک په رو رو ژړا ژاړی څوک په ګوکے
چه توبه د ملوکا په وخت د ګلو
پرے بنائی کهٔ د هغو په بڼره توکے
یا د ښو ځلمیو غږ دے په میدان کښے
یا د ښو دلبرو ځی په جهان کوکے

د زاړهٔ خوشحال ځوانی په بوسه نهٔ کا
پښتنے جونه بخیلے بد سلوکے

دال او واؤ د محرم د صفر اک
د ړومبئ خورے درویشم څه یک
د دویمے خور سره ومبئ اتلسمه
د دریمے خورے یا مهٔ و کړه شک
څلورمے خورے دال چه سره ید شی
د رجب دے ب و یج د شعبان دک
د روژے د میاشتے جک پوره حساب دے
ح شوال ذیقعده لط ذوالحجه وک
چه په هره میاشت کښے دوے ورځے نحسے
هم دغه دے حساب وشو خو بک

بیا روستئ چارشنبه د هرے میاشتے
نحسه ورځ ده وائی بنهٔ خوشحال ختک

کهٔ زهٔ نهٔ وے تا به ځان لره بلل څوک
په پالنګ به دِ داهسے درختل څوک
واړه عشق دے چه ئے سر د اته ګیاه کړ
ګنړه زهٔ په ځان منین د سربلند څوک
چه پتنګ ته روښنائی د څراغ ښکاره شی
نور له څراغه نه ئے غواړی جا روتل څوک
بد رګه کهٔ محبت راسره نهٔ وے
یک تنها به په خونخوارے لارے تلل څوک
د دے میو پیالے پیرو دی اخستی
ولے ما غوندِ به نهٔ وی لا یعقل څوک
دزنخ په چاه دِ بند د شونډو مست دی
روغ هوښیار به په کوهی کښے پریوتل څوک

تهٔ بخیله راته وولۀ چه وا بیه — گنړه زهٔ دَ میني راز ښکاره وېل څوک

تهٔ مِ وژنه دَ قصاص اندیښنه مکړه — دَ بخیل خون په تور به ونیسم یو بل څوک

ښه خودا چه دَ چا نوم پکښې یادیږي — په فاني دُنیا به نهٔ وي ژوندې تل څوک

تا بخیله سپینه خولهٔ وخوشحال وړکړه

گنړه دے دا هسے شونډے کښلول څوک

مرد هغه چه همت ناک برکت ناک — دَ عالمه سره خوږ په زیست و ژواک

مخ ئے مخ قول ئے قول عهد ئے عهد — نهٔ دروغ نهٔ ئے فریب نهٔ تش تیاک

لږ وئیل ډیر ئے کول په خاموشئ کښې — دَ غنچې غوندِ خولهٔ ډکه سینه چاک

چه خبره دَ پستئ دَ بلندئ شي — په لوئ لکه آسمان په پستئ خاک

په تمکین کښې لکه سروِ په پستئ کښې — په هر لور خاتګے رنګورے لکه تاک

لکه ګل شګفته روئ تازه په باغ کښې — همیشه دَ ښو بلبلو پړے بلغاک

چه دا هسے ښهٔ وئیل کا زهٔ حیران یم

چه خوشحال راوړهٔ له کومه دا ادراک

نهٔ په خولهٔ ګولئ خوړلے دَ توپک — نهٔ نمرئ دَ لئیمانو دَ ښانک !

کهٔ دَ تن وینے یو جام وڅښے لا ښه دي — نهٔ اوګره دَ بخیلانو یو کاشک

کهٔ اوبهٔ دِ دَ بخیل دَ منګي وڅښې — ستا دِ وخیژي دانه په چنغړک

نهٔ دَ شوم دَ لاسه سل بیرے خوړلے — نهٔ دَ مرد دَ لاسه پانړے دَ پالک

دَ نامرد سره مکے ته رسیدلے — ښهٔ دَ مرد سره په بیدِ بیدیا ورک

مخ دِ سوے دَ دوزخ په لمبو ښهٔ دے — نهٔ چه سم کړے وممسک وته ورسک

دَ منت سره حلوا مهٔ خوره خوشحاله

دَ حلوا نه لا بهتر دے وچ کنډک

چه ما کړي په جهان کښې رنړا سترګے — بے له تا م خوږے نهٔ شوې په چا سترګے

کهٔ زهٔ ستا له مخه وګورم بل مخ ته — نور په قطع دِ ړندے شي څما سترګے

هر ښکاري چه غرځهٔ وولي ورته ګوري — تهٔ یو سر بل سر مکړه له ما سترګے

هر ګورم له هیبته وارخطا شي — چه تهٔ وارړوے وما ته شهلا سترګے

دا خوشحال غریب په در درته ولاړ دے
ته هم کله کله ماته کړه وا ستر ګے

کهٔ بنولے زر که باز پرېږدی له چنګه
زهٔ به هم له لاسه پرېږدم شوخ وشنګه

در په در کلی په کلی پسے ګرځه
درویزه کهٔ د دیدن مو ے ملنګه

ګل کهٔ هر څو ښائسته دے په دا باغ کښے
کهٔ ئے وینے بیا اغزی لری له څنګه

چه دِ توان رسی په لوئے دریاب کښے ګرځه
په بیله کښے دِ زوال وینم نهنګه

عاقبت به ګکړئ ورباندِ کښیږدے
تر څراغ چه ګیږه وهے ګرځے پتنګه

پند ګویان چه عاشقانو ته پند وائی
د هوښیار په پوهه سر وهی له سنګه

تر سحره م د یاره سره ناز وو
درسته شپه راته کوتاهه شوه تر درنګه

هغه یار کهٔ په پالنګ راسره نشته
داهم شکر چه ئے بوئ څی له پالنګه

چه ئے زړهٔ د معشوقے په مینه مست شی
د هغو سر یو څهٔ له نام و ننګه

لیونے به لیونے نهٔ وو عالمه
کهٔ ئے بخره وی له عقل وله فرهنګه

کهٔ لیلی ونور عالم ته کښلے نهٔ وه
په داخهٔ چه مجنون ته وه خوشرنګه

د غمزے په تیغ ئے خوږ ښهٔ ئے خوشحاله
مړے په روغ صورت نهٔ څی له جنګه

مست د هغے مخ یم چه مخمورے لری ستر ګے
هسے پرے غوښیږم وائی تورے لری ستر ګے

یارم په ښائست کښے بے نظیره بے مانند دے
لا په درست صورت کښے مشهورے لری ستر ګے

ډیرے کښلے ستر ګے مالیدلی دی د ښکلیو
تا غوندِ یو یو په بنړه یورے لری ستر ګے

سل خله دِ شیخ ملا صفت ورځنے کاندی
ښے به ستا تر تورو سترګو حورے لری ستر ګے

ناست دی لکه څری رقیبان و خوار عاشق ته
خکه ستا له مخه هورے دورے لری ستر ګے

هر چرته چه ته ئے هغه لور ته م نظر دے
هر چرته چه زانزی شاهین هورے لری ستر ګے

نشته په جهان کښے تل طلب ورپسے کړمه
یو هسے منظور چه نن منظورے لری ستر ګے

نه ګوری وچا ته څو په خپل ښائست غره ده
ګوره داخیالی په څو مغرورے لری ستر ګے

سخ دے د هغهٔ چه خوش خرم د یار په وصل
هر ساعت د یار په مخ مسرورے لری ستر ګے

داشه کهٔ ئے ګورے چه خوشحال په درد و غم کښے
ورځ وشپه بے تا په اوښکو ډیرے لری ستر ګے

نښتر ستا دَ قد سيالي ونکړه دنګے ‏ ‏ اورئے بل کړه په خيل ځان په ننګے ننګے
سره ښئهٔ دَ زړهٔ خوښي کاندي همزولي ‏ ‏ نهٔ دَ لوئے نهٔ دَ هلک دي يار دَ کنګے
په خيال خيال ئے تربوے بُدري ومهٔ خوره ‏ ‏ دَ منډيل شملے پرے ښيښے سور دَ خنګے

دَ خوشحال وئيل وهرچا ته ښکاره وي
نهٔ دَ مښکو بوئ پټيږي نهٔ دَ هنګے

اقربا راته عقرب شول ‏ ‏ رضامند م په تعب شول
دواړهٔ ترونه م نااهله ‏ ‏ ابوجهل بولهب شول
زهٔ ئے بند کړم په مغلو ‏ ‏ په خانئ او په منصب شول
رشوتونه ئے قبول کړل ‏ ‏ په تلاش کښے روز وشب شول
دا لوئے خويه م لوئے مهٔ شه ‏ ‏ دَ هزار بلا سبب شول
زهٔ ئے هند لره روان کړم ‏ ‏ په نشاط او په طرب شول
خيلخانه م شوه په عزرنو ‏ ‏ پرے کارونه ييش عجب شول
ناز پرور خُويه م واړه ‏ ‏ په فرياد و په شغب شول
چه ئے نمر ليدلے نهٔ وو ‏ ‏ په ځنګلو تشنه لب شول
درست اُولس قبيله واړه ‏ ‏ ګرفتار په ډير غضب شول
په آه آه دَ فراق ژنو ‏ ‏ زړونه ورئ دَ عنب شول

خوشحال نهٔ موندهٔ ختکو
کهٔ ئے هرڅو په طلب شول

اورنګ زيب بے دليله ‏ ‏ په ظاهر باطن عليله
لکه مچ په انګبين کښے ‏ ‏ پسو بند شوے په قليله
په تسبو کښے دِ بلا ده ‏ ‏ هغے توبه ستا له تهليله
دَ يوهٔ صورت ديا ره ‏ ‏ خيلخانه دِ کړه قتيله
نهٔ په خويه نهٔ په پلارئے ‏ ‏ په هرچا باندِ بخيله
په دا هسے بے عدلئ ‏ ‏ هلاکو سره عديله
بے له خدايه بل يو نشته ‏ ‏ دَ خوشحال په سته سيله

بیا دَ عشق دریاب را وخوت چلے چلے — عاشقان پکښې لاهو شول بلے بلے
کۀ دَ سر ملاحظه نکړے غواص شے — مرغلرے په دریاب کښې تلے تلے
دَ پتنګ محبت لا پسے ژړیا تیرږی — چه دَ اور لمبے لیدے شی بلے بلے
ناګهان ئے مخ ښکاره کړو بیائے پټ کړو — په خندائے دا وئیل چه چلے چلے
ماوے چرته به وی کان دَ خوږو قندو — شاه ولب ته اشاره کړه دلے دلے
دَ عشق بخره عطائی لکه ایمان ده — مونده نۀ شی په کوشش په خلے خلے
چه دِ خولۀ له ماغوښته وتا رِم درکړه — داچه بیا له ما مانړے کړے ولے ولے
همیشه پسے جارووځه شها غواړه — کۀ دِ پښے دَ طلب نۀ دی شلے شلے

زۀ خوشحال به بل دَ یار برابر نۀ کړم
په جهان کۀ ښکلی ډیرشی ډلے ډلے

بیا خیره په سر کړه کښیږده له خیاله — چه خوبا دِ په خولۀ نوم واخست خوشحاله
بیا سینه پسے په دواړو لاسو مړږم — لکه باز دَ هونړائی ووځی له جاله
زۀ لاهسے کجوکول نادیده نۀ یم — چه لاله به بِهوم ستا له جماله
کۀ دَ مښکو انبارے مِ په لاس کښیوزی — همګی به صدقه کړم ستا ترخاله
خُما مینه هسے نۀ ده چه نوریږی — کۀ هزار رنګه جفا کړے خُما لاله

دَعاشق عمر کوتاه دے لا په داهم
کۀ دَ عمر هره ورځ ئے شی سل کاله

بد زحمت شی په بازونو یو یو کال — نوم ئے ځۀ دے په فارسی سیه پیخال
طعمه اچوی طلب دَ اوبو ډیر کا — تور پیخال کاندی دَ لویو په مثال
په نبات دَ غوا په غوړ سره بازصاف کا — یا علاج دَ سنګتا وکړه دم درحال
دَ سنګتاؤ ترتیب اوبۀ دَ دریاب واخله — دَ صحرا په غوشیو تاوده سفال
پکښې اچوه چه ښۀ اوبۀ په جوش کا — بولِ ناس نبات پکښې مثقال مثقال
داسنګتاؤ کۀ دَ اوبو سره بازخښنیه — فائده ئے تجربه ده دَ خوشحال

کۀ یوه ذره لونګ هم پکښې وینه
په ښیښه کښې ئے ساته په ماه وسال

په ښیوه ښیوه رفتار کا ندی غزا له
والړ ښیږي په مزکه نه کښیږدی له خیاله

وغمزو وته ئې حکم دے چه وژنه
هم هغه چه مینه کا خما له خاله

دَ زړهٔ حال ئې امانت پکښیې لیدهٔ شي
چه ئې تن په صافي صاف دَ تر زواله

له دوو سترګو خبر واخله چه ئې وژني
نور به څهٔ پوښتے خماد زړهٔ له حاله

کهٔ شیرین آشنا وفا درسره نهٔ کا

په جفا ئې هم خوشحال اوسه خوشحاله

په دا ښهر کښې دِ نهٔ وینم څوک سیاله
خبردار نهٔ یم دَ بل ښهر له حاله

په ښا نست کښې دِ ارمان دَصورت نشته
دریغه دریغه په خوئ هم وځه خوساله

په دردمنو کښې نن زهٔ یم بے مانندہ
په دلبرو کښې نن تهٔ ئې بے مثاله

په دا سپین تندی دِ طعن په آفتاب شي
په ابرو دِ ګورو وریے له هلاله

نن به تهٔ دا کبر نهٔ کړے نور به څوک کا
چه په خلقو دِ نارے دی دَ جماله

کهٔ تل جنګ وخرخشے کړے زهٔ پرې خوښ یم
ښا نسته دَ جهان نهٔ وی بے جنجاله

چه دَ حال پوښتنه نهٔ کړے مرګ مِ راغے
کله کله مِ خبرېږه له احواله

په پنځهٔ وخته چه لاس په دُعا هسک کړم
ستا دَ عمر دُعا کړم په ډیر ډیر کاله

دا بے وخته سپین ویښتهٔ نهٔ وو بلا وو

چه دَ کښلیو زړهٔ ئې بدکړو له خوشحاله

په درست جهان به نهٔ وی یو خما غوندِ رسوا بل
ورځم تُوره وکښلے چه منین واوړم په تا بل

یو تیر دِ وویشتمه چه خما دَ درد دارو شو
هاں اے خما طبیبه چه بنهٔ روغ نهٔ یم یو بیا بل

کهٔ سرو کهٔ عرعر کهٔ صنوبر ستا تر قامته
څهٔ نورے دَ باغ ونے چه په څیر ستا دَ بالا بل

نن ما وته چا ووے چه آشنا غواړی خپل تیغ ته
دَ خدائے دپاره کوم به له ما بهٔ وی آشنا ستا بل

ستا زلفو م زړهٔ يوړو سترګې راته په څو دی
تاراج به دا ترکان کا نهٔ به څېز يوسی په غلا بل

نهٔ ننګ لری نهٔ شرم تاوے هرچه عاشقان دی
بے ننګ دی کهٔ بے شرمه هيڅ عاشق نشته ترما بل

ملائے فتنه ګردے وربشيئ فتنې جنګو نه
تعليم ته ئے خوشحاله زر پيدا شوے يو مُلا بل

په دا باغ کښې به دِ پاتې نهٔ وی ګُله — کهٔ خبر شے د خزان له تطاوله
داڅو ورځے غنيمت ګڼړه په باغ کښې — چه په تا باندِ سينه وهی بلبله
مرتبه د هغه باغ څهٔ پاتے نهٔ وی — چه خالی وی د بلبلو له غُلغُله
وهغے بنيښے ته نهٔ غړيږی سترګے — د ساقی څخه چه تشه شی له مُله
په دا پُل باندِ د خلقو ګذر ګوره — څوک پريوزی څنے يوړے ووځی ترپُله
په درست عمر به ئے نهٔ ووځی له يادو — چه ليدلے وی تا رُو د باز منګله
مقدر به په هيڅ رنګ مبدّل نهٔ شی — کهٔ په خان باندِ تل لولے څلور قُله
عاشقان چه عاشقی کا غم به نهٔ کا — د رقيب او د غماز او وله چُغُله
څهٔ کوم لاس ودستم نشته قلندريم — ګڼړه ما به دُنيا وُبازله ګُله
په پالنګ به خوب په څوبے غمه کاندی — چه خبر وی د فلک له تزلزله
هسے يار لرم بښانست ئے تر دا قياس کړه — چه د مبنکو بوئ ئے هيڅ دے له کاکله

د دلبرو په ماڼړی کښې هم مزه شته
بيچاره خوشحال ئے مری له تغافله

تردا دوؤ سترګو م اوبنکے بهيدلے — په فراق کښې تر لمنے څڅيدلے
ستا د وصل اش رمق دے راته پاتے — وائے څهٔ رنګه بے مانه پائيدلے
ستا په غم کښې م د زړهٔ ننداره وکړه — پکښې واړه سرے لمبے وے بليدلے
داهم بخت چه په بالښت د خسته راغلے — وے دِ اوس په څنکدن ئے خنديدلے
زهٔ نهٔ کوم نهٔ ملامت نهٔ م څوک يار کړ — تهٔ په کوم توکی دا هسے قهريدلے
خلائے په خائے در ته بلبلو ميشته وکړه — لا دِ اوس د باغ غوټئ غوړيدلے

اوس دِ یار په غیر وښیوۀ هوس کړه — چه ئے ډیر په بیلتانۀ کښې رنځیدلے
ځکه تل دَ باد له لاسه خوری څپیړے — چه له قد سره دِ سروِ سمیدلے
اوس ئے جور وجفا وړه دا دِ سزا ده — فکر اوکړه چه په چا مئین کیدلے
دَ رقیب گونډچه بده شوه لیده دِ — چه وماته په تولی کښې موسیدلے
په زړۀ یاد لره دا اورچه دِ رابل کړ — یو ترشا نظر دِ نۀ کړ تیریدلے
بے دَ یار له مینے واړه لکه باد دی — چه په زړۀ م ډیرے مینے گرځیدلے

چه په تلل شوے له خوشحاله لکه عمر
کۀ ئے ډیره بلا کړه نۀ دریدلے

چه مزرے خپلے منګلے نۀ کا کښل — هومره نۀ وی ځربے غوښے ورته تل
مرجونړاد دُر مرجان هاله اولجه کا — چه قبول کاندی دَ بحر خونی چل
عاشقان چه ترسر تیر شی هاله کُښل کا — دَ دلبرو پا ستۀ لب لکه بخمل
بازچه والوزی له ځالے هاله گوری — دَ کبانو ښا ئسته سترگے کجل؛
چه دَ اور بخرے باد سره رفیق شی — بیا هاله کا په ملکونو آتش بل
چه سیلاب دَ غرۀ دَ سره نه روان شی — بیا هاله بیائی په مخ خاوره ځځل

خپل هُنر له لاسه مۀ پریږده خوشحاله
خوره غصے ډیر دی بهتر غصے خوړل

چه په زلفوئے پا یست شول — دَ ماهی غوندِ په شست شول
دَ خمار ویره ئے نشته — چه دَ شاه دَ سترگو مست شول
چه په لَام و بَے ئے مینه — دَ سرو میو مۓ پرست شول
دَ هغو ښادی به تل وی — چه دَ شاه دَ غم تر دست شول
چه دَ خولے رموز ئے بیاموند — عاشقان له نیسته هست شول

دَ خوشحال خلاصے له کومه
چه ئے تا غوندِ په قست شول

چه دا هسے ښائسته ئے زیړه گله — ځکه تا په ځان شیدا کړله بُلبله
چه ئے طورستا دَ تورو زلفو واخست — ځکه بوئی دَ مهرنۀ ځی له سُنبله

ذلبانو بوسه بیا ورکړه مشتاق ته — چه مستی ئې لا اثر وکا ترمله
چه په پټو سترګو ناست لیدل دیارکړم — خالق خهٔ خبر له هسې رنګه شغوله
راشه خپل وژلی ګوره په خپل ور کښې — په غمزو په خرخشو په تغافله
چه دخلقو له نظره دِ امان وی — همیشه دربانډِ لو لم غلور قُلّه
لګه یار راسره وو په هغه شان دې — بنهٔ چه بیا دِ مخ تورې وشو څُغله
لا به کله سرخما په غیږ کښې کښیږدې — چه د مښکو بوئ دِ دروی له کاکله
خوک چه صبر ستا له مخه راته وائی — خما خهٔ عرض د صبرو تحمّله

درست عالم دِ په خوشحال بانډِ غوغا کا
باز پروا کا د کارګانو له غلغله؟

چه ئې بخره ازلی راغله اصیله — دا فلک ئې همیشه ګرځی په سیله
چه عزیز ئې په خپل فضل په کرم کړل — چاربه نهٔ شی د هغو چیرې ذلیله
چه بخیله ئې عطا په خلقو نهٔ کا — دهرمال بخره به واخلی له بخیله
دحاتم په مسند ناست هغه خلي دې — چه دُنیائې په هرچا بانډِ سبیله
دعارف په بخره علم لَدُنِّیْ دې — په اَلَسْت ئې روزی شوې بې تحصیله
چه ئې واړه آمنّا وصدّقنا کړهٔ — ددانا وینا به نهٔ وی بې تاویله
ددې دور درویشان خلیفه بس دی — اوس خپل خان لره بل کارکړه عزازیله
کهٔ کامل دی په جهان هغه کسان دی — چه فارغ دی دُدنیا له قال و قیله
عالمان دی رهزنان چه غواړی نغاړی — عام عالم لره زده کړی خو دلیله
داجاهل شیخان شیخان نهٔ دی شیطان دې — چه فساد ئې پیداکیږی له تهلیله
کهٔ دیاره نه جداوی دوه درې لویشتې — وعاشق وته ښکاریږی دوه دې رمیله
زهٔ هم څکه په جهان کښې بې عدیل یم — په جمال م معشوقه ده بې عدیله

چه آرام ئې دخپل یار په لیدو اوشو
دخوشحال له دله خهٔ غواړې تعجیله

خهٔ به ووائې خوشحاله — له تلمیله له کماله
دهغهٔ مرغهٔ خهٔ نوم دې — چه په اور کښې لوې څاله

هم بے چون هم بے چگون دے　　هم بے مثله بے مثاله
هم بے سره هم بے پایه　　بے وزره هم بے باله
په بوه نفس الوزی　　خو عنقا دروی خوکاله
دے میوه دَهغه باغ خوری　　چه ئے وُنه نا نهاله
چه په دا مشکل خبر شے
ځان به خلاص کړے له جنجاله

خپل پردی چه دَ شمشیر شول　　کشتنی تر شماره نیوشول
تُوره و نغاره خوشحاله　　اوس به خو وژنے چه ډیر شول
که صاحب ژو که تُرسم ژو　　ختک ډیردَ دوئ په خیر شول
هسے چارے کا ستا څویه　　چه آتش شاهی بیک هیر شول
چه نظر وکړم خپل ځان ته　　څو غمونه راچا پیر شول
دا پیری ده که طالع ده　　چه کید ړوو راته شیر شول
هیڅ دم مهٔ وهه خوشحاله
چه نبات درته کندیر شول

دَ ښهٔ یار دیدن وے تل　　سره ځانے چمن وے تل
ترکنار او تر آغوش م　　هغه گلبدن وے تل
لکه سیب خما په خوله کښے　　غه شیرین ذقن وے تل
رقیبان ولاړ له ورایه　　له ما هم سخن وے تل
جدائی نهٔ وے له یاره　　سره ځان و تن وے تل
مهٔ مانړے وے نهٔ عتاب وے　　په رقیب شیون وے تل
دَ خپل یار دَ کوځے خاورے
دَ خوشحال وطن وے تل

دَ ښا ئست په کار کښے نهٔ لرے څوک سیاله　　دَ یارئ په کار کښے نهٔ ئے هومره سیاله
هومره کبر خیال چه ستا دے دَ چا نهٔ دے　　خو به زار کړم ستا له کبره ستاله خیاله
ستا په تش لید وخما دَ زړه علاج شی　　کړه مرمه وویریږه له وباله

تاویشتلې یم په خپل ګذار پوهیږې
چه د سترګو دِ ګولئ دی څو مثقاله

یږې د صبر پچې بړدم واړه خسا کیږي
چه په زړه ځه باندِم داغ د ستاله خاله

جګې جګې ما نړې مۀ کوه پخلا شه
خرخشو فتنو دِ زۀ کړم بې مجاله

خرخشو فتنو د مرګ وته نزدې کړم
چه یو دم راسره نۀ ئې بې جنجاله

راته ګټه شوروې ناخواله وائې
حال به وو وینې خمونږ د خان زواله

دَ خانئ دَ تورې ځائې نشته په عشق کښې
معشوقې وته مرئې اوسه خوشحاله

زړۀ م یوړلو خوردسالې
بښائسته پرې مثالې

په دوؤ زلفو عنبر پاشه
دواړه ورُوځې ئې هلالې

تورې سترګې ئې تور زاغ دې
راپیدا دَ باز له ځالې

ګلعذار ئې لاله ګل دې
غابښ ئې دُر شونډې ئې لالې

تر بښۀ قد وتر قامت ئې
سروِ هم بې اعتدالې

تروئیل ئې نۀ رسیږي
دلربا شیرین مقالې

تر یانۀ پورې ئې پوچې
دَ خطا دَ ملک غزالې

دَ خوشحال معشوقه داده
خولۀ ئې میم زلفې ئې دالې

ستا دَ زړۀ سختی م سر ترپایه ولیدله
سنګ به سینه ووړ کړی ستاله هسې سنګه دِله

څۀ خو رابښکاره شوه په څنبل دَ سترګو ولاړه
ماوې دَ آسمان بربښنا ده نۀ م پیژندله

نوره دُنیا نشته چه څۀ وه راغځه خلقه
وار په وارم واړه په دلبرو وشِندله

نازکۀ کرشمې دی کۀ غمزې فتنې جلوې دی
اوس م په دا کار کښې سره درست وُپسندله

گل چه شګفته شي عندلیب باندِ نارے کا
نشته یوه کښلے چه پرے وبولم بدلے
یادم هغه وخت دے چه په شپه به سرُوناست وو
شمع به ژړا کړه ، صراحي به خندیدله
اور چه په ځان بل کړے په خپل ځان باندِ لګیږي
اوسم دا خبره په زړه بنه وُلګیدله
تل ګونه وهلے هر زمان ساړهٔ آهونه
ماچه عاشقي کړه خود په ما به دا کیدله
سرے لمبے ئے بلے دَ خوشحال ختک په زړهٔ کړے
سرے ختے اغوستے په دا لاړے تیریدلے

مخ دِ لاله ګل دے لا بهتر تر لاله ګُله
سرے شونډے دِ مُل دي لا بهترے دي تر مُله
دار کړمه لازم شم چه پریشانے کړے خبرے
مښک دي کهٔ عنبر دي ستا پریشان پریشان کا کُله
زلفے دِ ښکاره کړه چه خجل شي په خپل کار کښے
څهٔ لره ښیوه کا لکه ستا زلفے سنبله

نهٔ زهٔ ملک غواړم نهٔ مال
نهٔ دَ دهر نور جنجال
نهٔ په تلهٔ دَجهان غم کړم
نهٔ په راغله ئے خوشحال
دَاسفل فکرونه نه کا
په اعلیٰ ختلے فال
په آسمان باندِ پیره کړم
دَ همت په پروبال
دَ خپل خدائے منت را باندِ
چه ئے را نهٔ کړو بل خیال
بخار بخښم هغه یم
په دیدن دَ یوهٔ خال
وجهان وته ئے شا ده
کهٔ خوشحال مومي وصال

یارِم غوښت چه مِ اندوه یوسی له دِ له
زړهٔ مِ وسپارهٔ وتا ته چه ساته ئے
یو پیغام ئے دَ وصال رالره راوړ
له اوله عشق بازی راته بازی وه
خدایه تا په بنائسته ؤ مبتلا کړم
کهٔ همه دنیا ځما په لاس ودست وے
دَ هجران دَ تورے هسے شان گذار دے
کهٔ دَ مستے دَ غمزے دَ تیغ مشتاق ئے
کهٔ مِ داخله صورت له غمه خلاص شی
ما په هیڅ محصل نهٔ وو گمارلے

نه چه کا ځما په زړهٔ دَ غم کوله
نهٔ چه تهٔ ئے سره وسرو یه په بله
دَ جهان خوښی ئے ما وته بخښله
اوس همه راته رابیښه شوه مشکله
چه له غمه ئے خالی نهٔ یم هیڅکله
ما به گل دَ یار په زلفو وشندله
چه پرهار ئے بل ځلئے نهٔ کیږی بے دله
لمړے خپله خون بها کړه ورته پله
نور توبه دَ عاشقئ له حاصله
تا وما ته خپل خاطر راکړ بخپله

کهٔ یاری دِ دَ خوشحال سره هم داده
ستا یاری ئے سرتر پایه ولیدله

یو خله کهٔ ووینم بیا وچولے دَ یار خپل
نور به په تر قیامته شکر وایم دَ دا دار خپل
هر چه بار ئے پریوت په ځانئے پاتے شهٔ له ملونو
بے وفا یارانو تیارے وکړئ دَ بار خپل
ښهٔ سرے پردے په دلاسه په نیکئ خپل کا
گومه بنا غلتیا ده چه ځوک بدکا زړهٔ دَ یار خپل
درد دَ زړهٔ پنهان ساته کهٔ وینے دِ ځیگر شی
مه وایه دښمن ته کهٔ دِ دم خیژی اسرار خپل
زهٔ خو امید وار یم گوندِ وی چه مرهم کښیږدی
پس له انتظاره په پرهار دَ امید وار خپل
حکم حکم ستا دے کهٔ آشتی کوے کهٔ جنگ کړے
ما لهٔ لاسه واچوهٔ اوس حکم انتظار خپل

زړۀ کۀ عافیت غواړے نظر په ښکلیو مۀ کړه
هرچه ښکلی ګوری نور دِ واچوی قرار خپل

ګبر کۀ ترسا دے کۀ جهود کۀ مُسلمان دے
دین قبله لری خُما قبله دے مخ دَ یار خپل

مۀ وایه وچا ته دَخاطر له درده دُوکه
اے خُما لیمۀ چه څوک به نۀ موے غم خوار خپل

یو ځله دَ زړۀ په غوږ و فهم کړه خوشحال ته
تا وته چه عرض کا ګوښے ګوښے دَ زړۀ زار خپل

آشفته دِ دَ جمال یم همیشه دِ په دا خیال یم
نور و مینو ته مِ شا کړه مئین ستا په زلفو خال یم
چه مِ اوښکے په ګریوان ځی دا په تا پسے بے حال یم
ځائے مِ تۀ نے په خاطر کښے تۀ ریحان ئے زۀ سفال یم
نور مِ هر څۀ فراموش دی آرزومن دِ دَ وصال یم
لا دَ مهرویَلِ پریږده
په کنځلو دِ خوشحال یم

په مردن پروا دار نۀ یم په زندان پروا دار څۀ یم
یو غصه دویم بیلتون دے چه په اور په اوبو زۀ یم
اشرف خان دی راته ښکلی څۀ خوخوښ په خط دَ دۀ یم
پینځۀ میاشتے یم په بند کښے بابا ډیر ډاډه په زړۀ یم
ځویه ماخو غم دَ تا کړ چه تۀ ښۀ ئے زۀ خوښۀ یم
چه فلک سره سر با سی په همت کښے هغه زۀ یم
کړۀ ئے نۀ دی بے حکمته
زۀ خوشحال دَ دۀ په کړه یم

په زړۀ تریا رځا ریږم دَ پتنګ غوندِ پیرے کړم
یو راز دے په دا کار کښے کۀ په خولۀ ورته بښیرے کړم

یو باغ دے دَ گلونو چه وما وته غوړیږی
چه یار را سره ناست وی ورته زهٔ دَ ناز هیرے کړم

عاشق م پا تو نهٔ شو پریږده پنځے پرتے اوسی
بنائی چه بوالهوس ته دَ غمزے تورے تیرے کړم

چه ځانے م په گلشن وو هغه زړهٔ وُم را شه کوره
په هرچرته چه دروم په گلخن باندِ ډیرے کړم

دا زړهٔ دے کهٔ قسمت دے کهٔ خهٔ نورے کوږے موږے
چه زهٔ ئے مبتلا دَ ستمگرے په خیرے کړم

چه تهٔ له مانه ولاړ شے کهٔ بالبنت کهٔ نهالئی وی
په درسته شپه چه ژاړم په ژړا دواړه ترے کړم

کهٔ پایم په دُنیا کښے زهٔ خوشحال به دا زوړوالی
دَ خپلو دَ پردیو به لاخو مینے سپیرے کړم

تهٔ دلبره کهٔ عذرائے زهٔ وامق یم
ستا په مینه کښے هرګوره موافق یم

تهٔ کهٔ بے له مانه پائے معشوقه نے
زهٔ به بے له تا په څو پایم عاشق یم

تهٔ تل خانده هوسیږه خُما زړهٔ نے
غم به زهٔ کړم چه همیش دَ غم لائق یم

پتنګ ځان په اورکښے وویشت دائے وُوے
کهٔ م لاف دَ مینے وواههٔ صادق یم

کهٔ دَ غشیو تیرباران را باندِ وشی
کهٔ به سترګے له تا واخلم منافق یم

چه وتوروخاورو هسے حسن ورکا
زهٔ حیران پاتے په صنع دَ خالق یم

دَ نیمګړو طبیبانو دارو اور دے
زهٔ خوشحال په طلب ستړے دَ حاذق یم

تاوے نورے ترمابنے دی پسے دروم
راته وایه ترتا بنه ده بله کومه

چه م ستا وخرخشو ته نظر وکړ
دَ دُنیا په مخ به نهٔ وی هسے سلومه

دَ خاطر مرغهٔ م ستا په زلفو بند شو
اوس به چرته ځی چه نښتے دَ په لومه

داچه ولے دروم صبر کړه له مانه
بیا م کُسه بے صبری ده درمعلومه

په عاشق باندِ ئے تل ظلم وستم وی
ستا دَ سترګو ویره نهٔ شی له مظلومه

زۀ لا اوس په زړۀ تنکے نوے عاشق یم  په خندا خندا بورجل لره رادرومه
په خوشحال باندِ کۀ تل نارے سورےوی
باز پروانۀ کا دَ زاغوله هجومه

تا چه زلفے کړے خم خم  ځکه نۀ واخلے سم سم
تا چه سترگے کړے راپورته  پکښے زۀ وینم غم غم
څوبه تۀ لکه هوسئ ځے  تل له ما کړځے رم رم
دَ خوبئ کار په تا دے  نن په دا دور تم تم
کۀ دِ ډیر نۀ دی په زړۀ کښے
خوشحال یاد لره کم کم

تاخو یاری پریکړه واړه زۀ درپسے درومم
څو درپسے درومم هومره ډیره خواری مومم
هیڅ په ما پو هیږے نوم م څۀ دے ستا په عشق کښے
قیس دَ لیلیٰ وو تا ویشتلے زۀ لیس نومم
زۀ څۀ هغه نۀ یم چه خو بنی غواړے له مانه
تل دِ دَ غمونو لبالب جامونه شومم
هرچه شهسواران دی واړو وُ تیزلے وړاندِ
زۀ دَ دوئ په منډه دایم ځم ورپسے درومم
ځارتر تا رسوله تام یار لیدۀ په سترگو
راشه را نزدے شه چه دِ دواړه کسی چومم
یولورے م نشته مینے هسے سر هوا کړم
بادغوندِ خوشحال په هزار طرفه درومم

تا هُنر دَ سرداری نۀ زده بهرامه  سرداری دِ په خپل دورکړه بدنامه
هم تمامے خیلخانے لره بلاشوے  هم خپل ځان لره بلاشوے بد فرجامه
تا طاهر دَ کم عقلئ په جرکومرکړ  او فارغ شوے دَ طاهر له انتقامه
تاخپل ځان لره دَ مرگ رخنه پیدا کړه  خیلخانه دِ په بدخوئ کړه بے آرامه

په داهسې بدخوېئ بې بخته نۀ ئې
چه لا نۀ ئې دخونی هاتی تر ژامه
مشر رور دِ په زندان کړ ته خانی کړې
داخانی دِ شه په ځان پورې حرامه
چه خانئ ته دِ هوس دَ زړۀ په زور کړ
لاځائ وه ستا دَ زړۀ اندېښنه خامه
نور دِ نوم ځما دَ خویو په شما رمۀ شه
دَ خوشحال خټک وینا په دا تمامه

څۀ عجب زیبا صورت دې چه زۀ پا بست دَ دۀ یم
راشئ اوګورئ عالمه چه په څو تر دست دَ دۀ یم
دواړه زلفې ئې ځما دَ زړۀ په قصد سره شکست کړې
زۀ په ځان و زړۀ بندی په هر یوۀ شکست دَ دۀ یم
زۀ حیران یم له دې حاله چه داچا عالم ته ووې
چه همه عالم خبر شو چه زۀ هم نشست دَ دۀ یم
آوازه شوله په دهر نیک وبد دواړه خبر شول
چه ځما آشنا هم بُت دې زۀ هم بُت پرست دَ دۀ یم
درسته شپه ئې په هر غولی زۀ ولاړ نارې وهمه
چه اې خلقو عیب مې نشته کۀ مستی کړم مست دَ دۀ یم
کۀ داخپل صورت دِ نیست کړې تۀ په عشق کښې اې خوشحاله
بیا دَ ځان داهسې لاف کړه وایه زۀ هم هست دَ دۀ یم

چه داهسې دِ له جوره مشوش یم
له آزاره مې حذر کوه دردکش یم
کۀ قوت دِ دَ هاتی په زړۀ زمرې ئې
زور قوت را باندِ مۀ کوه آتش یم
دَ جنون بخره مې اوس نۀ ده هاله وه
چه مئین په هغې یار پری وش یم
څوک به ماغوندِ پوهېښ په زړۀ ساده وي
چه وفا غواړم له ښکلیو په دا اش یم
راته څۀ وائې چه تۀ په چا مئین ئې
په ایما به درته وایم پنج وشش یم
کۀ مرئي مې زرخرید کړي بې شماره
وخپل یار ته زر پېرودې دَ حبش یم
طعام خورم مزه مې نۀ د رومي ترکو مي
همېشه دَ شیرینئ مزه چش یم
غم دَ اور له تاوه زر لري چه قلب وي
ځما څۀ اندوه له اوره چه بې غش یم

دَ دے دور حریفان کۀ شودۀ پئ دی
زۀ خوشحال دَ شودو پیؤ پہ سررش یم

خما خوب له اندیښنو نه شي بیدار شم — وعالم وته په دا تهجد گذار شم
غرونه غرونه گناهونه را په یاد شي — وخپل خدائے وته گویا په استغفار شم
استغفار په خولهٔ په زړهٔ دَ شر فکرونه — بیا له خپله استغفاره شرمسار شم
دَ دے دور دَ شیخانو حال م وکوت — چه ساعت ورسره کښېنم تږے ویزار شم
ما دا هسے شیخي دوئ وته بخښلے — په محشر دِ دَ رندانو سره شمار شم
چه حلال کسب ئے نۀ وی شکرانے خوري — خدایه بخن په شیخئ دَ شیخ رحکار شم
دا ناتار چه په جلی ذکر شیخان کا — کله زۀ په تاخت راضی په دا ناتار شم

چه څرګنده سربازي کاندي دَ تورو
زۀ خوشحال ختک تر هسے هنرځار شم

چه دَ عشق په ملک ندیم یم — دَ اندوه په ملک مقیم یم
نۀ بهشت وته هوس کړم — نۀ په ویره دَ جحیم یم
بند دَ یار په اختیار یم — آزاده له هر نعیم یم
سینه زۀ لرم روښانه — تاته تور سیه گلیم یم
هغه قول چه ما کړے — په هغه قول مستقیم یم
خلیفه اصل خما دے — لوئے نسب یم کۀ یتیم یم
کۀ نور اوس دَ مینے لاف کا — زۀ عاشق په یار قدیم یم
په غه اور چه عشق ئے نوم دے — گه براهیمؑ کله کلیمؑ یم
دَ یوۀ نفس دپاره — په امید وهم په بیم یم

زۀ خوشحال په خرابات کښے
گرم په امانت عظیم یم

چه ستا له زیبا مخه چیرے گل وته نظر کړم
په خپلو سترګو خیر شم چه کۀ سیخ پکښے خنجر کړم

چه ستاله زیبا مخه خوک بل مخ راته وُستائی
یو هسے قهر راشی چه که غوځ نے دغه سر کړم
که هر خود بهار گلونه بنهٔ دی په چمن کښے
یو گل به په بنا ئست کښے ستاله مخه برابر کړم
دا مهٔ وایه وماته چه ته ولے در په در شوے
خپل مخ وَته وُوایه چه نے ولے در په در کړم
خاطر م خهٔ خوخلاص وو فراغت وُم له غمونو
چه مخ دِ را ښکاره کړ زهٔ دِ بیا په نارو سر کړم
که واړه خزانے دَ شاه جهان بادشاه خما شی
همه واړه به زهٔ په یوهٔ خال دَ خوبا ور کړم
رښتیا خبره ښه ده راته غوږ باسه خوشحاله
که تیر تر سرو مال شوے خما خا نه خولهٔ به در کړم

خهٔ زهٔ خهٔ م مجال دے چه به ووایم ستا یار یم
دا هومره عزت لږ دے چه گدا ئے دِ دَ دربار یم
ما زهد تقوی طاعت بندگئی لره خوک بولی
زهٔ کله ستاله عشقه وبل کار وته وزگار یم
په لویه ورځ به ستا په گریوان ښخے کړم منگلے
خهٔ ته خهٔ دِ وئیل دی ستا دَ خون خهٔ پروادار یم
په ما باندِ ته تل تردواړو سترگو نه عزیز نے
که ستا تر فهمه هر څو تر دا تورو خاورو خوار یم
سودا دَ یار دَ وصل که په سر شی یا په مال شی
دَ سرو مال به هیڅ صرفه و نهٔ کړم خریدار یم
چه وُمرم عزیزانو تور کفن را لره بو یه
په دا سبب چه زهٔ دَ تورو سترگو سوگوار یم

هزار ځله په کال کښې یوه میاشت د ګلو وخت وی
د یار په صحبت زهٔ محبوبه تل تازه بهار یم
خهٔ جک وهٔ ناصحه چه وما ته نصیحت کړې
ور درومه خپل روزګار کړه زهٔ خوشحال په خپل روزګار یم

چه نظر دِ په تیکه د تور وربل کړم
د جهان بادشاه د ځان مخې ته بل کړم
لا ځما طالع بهتره تر هر چا دے
چه دا هسې کښلیو سترګو ته کتل کړم
د سرو شونډو په شراب چه بیخود شم
له مستئ رقیبانو ته کنځل کړم
اجابت به ئې لا کله تاثیر کاندې
چه دُعا دِ د وصال په سحر تل کړم
چه م زړهٔ ورپسې سوو هومره سرې ږي
چه په مخ ئې پرهارونه په چیچل کړم
د بنهٔ مخ مینه م نهٔ درومی له دله
کهٔ تل غوږ د ناصحانو په وئیل کړم
په صورت م پرهارونه دی خوږیږی
په وار وار د هر پرهار دارو به تل کړم
دا داغونه چه م سرِ په زړهٔ پخوس دی
تر بل کاله ئې د عشق له لاسه سل کړم
چا په زور رالره غم نهٔ دے راوړے
وخپل زړهٔ ته ئې پخپله راوستل کړم
ازلی م د غم بخره ده راوړے
غم کهٔ نورو لره درومی زهٔ ئې خپل کړم
یو نیک بخت ساعت به وی چه راته غوږ کا
چه په درځ په فریاد فریاد ژړل کړم

چه لا بنهر د دهلی شته د خوشحاله
څهٔ فائده کهٔ وران په آه سره کابل کړم

چه په خیال په زر زری جامو کښې درومې
کهٔ نظر په خوارو کړې ثواب به مومې
پکښې څهٔ رنګه هو بنیار مرغونه بند دی
ستا د وروخو خال دانهٔ د زلفې لومې
ستا د شونډو سرهٔ به ولې هسې نهٔ وی
چه پرې هر کله د زړونو وینې شومې
زهٔ به تا غلطه نهٔ کړم په تولی کښې
کهٔ هر څو د خلقو جونه شی هجومې
د مجنون مینه یوازې په لیلیٰ ده
تر نظر پورې ئې نورې دی معدومې
ناز نخرې بنیوې غمزې فتنې خیالونه
په دا کار به نهٔ وی تا غونډ څوک سلومې
د بنائست سره هزار کارونه نور دی
چه ئې ته لرې نهٔ نورې به روسې شومې
چه رضائې په جفا وی نور م ستائې
د دلبرو خرخشې دی را معلومې

وخوشحال ته چه دَنورو نوم آخلی
بے له تا نه مینه ماته شی په کومے

چه په خوب شم ستا له خیاله سره خواب کړم
چه بیدار شم دَ مخ سود دِ په آفتاب کړم
چه م ستا دَ خولو بوئ تر سپیږمو تیر شو
نور به څهٔ مینه په مشک او په ګلاب کړم
بے نصیبه لیدل نهٔ میسر کیږی
په لیدو پسے کهٔ هرڅو اضطراب کړم
بنهٔ لیدل ئے په مثال آب حیات دی
دا تشنه خاطر به کله پرے سیراب کړم
په دشنام م کله کله سرفراز کړه
هغه دم چه دَ سوال طمع په خواب کړم
ماته څهٔ وائے چه چا هسے خراب کړے
چه دَحال پوښتنه نهٔ کړے تا خراب کړم
ماته مهٔ وایه چه ولے پیچ وتاب شوے
ستا دے تورو زلفو هسے پیچ وتاب کړم
چه له مخه دِ یلو واخست لمبه شوے
بیچاره خوشحال دِ درست سره کباب کړم

څوژوندے ئے د رزق مهٔ کوه هیڅ غم
خپل قسمت به در رسیږی بیش وکم
قابل غم دَ ننګ نام کا په دُنیا کښے
نهٔ په غم وی دَ دینار او دَ درم
قارون لاړ تحت الثریٰ لره لا درومی
موسیٰ پاس په علیین کښیښی قدم
پس له مرګهٔ ښځ دَمرګ تر قدم ښهٔ یم
ګورم مهٔ شه دَ نامرد له ګوره سم
دَخوشحال قدر کهٔ اوس په هیچا نشته
پس له مرګه به ئے یادکا ډیر عالم

چه په ما باندِ مئین زهٔ پرے مئین یم
چه خما په غم غمژن زهٔ ئے غمژن یم
ما وے یو زمان کهٔ بیل شم زهٔ به وُمرم
چه جدا پایم له یاره دروغژن یم
کهٔ دَ ښبو خیرے ئے نهٔ یم بارے شکر
چه دګرد په دودئے نښتے په لمن یم
په نورڅهٔ م دَخاطر دَلاسه نهٔ شی
په جهان کښے آرزومن دَ ښهٔ دیدن یم
خوبه راشه ما اودهٔ کړه چه بخښو شم
په فراق کښے په ژړا ژړا کړمن یم
کهٔ رقیب په دا خبر شی تروبه څهٔ کا
چه له یاره سره زهٔ لاس وګردن یم
یمانی چهره م لاړه حبشی شوه
دَ فراق په اورئے سوے لوغړن یم
لرم دوُو په ځائے درے ګواه په عشق کښے
رنګ م زیړ سترګے لمدے زبون په تن یم

تهٔ محبوبه کهٔ شیرینه ذدے وخت نے
زهٔ خوشحال دا وسنی دور کوه کن یم

خوک خوبه کیدهٔ واړه به نهٔ وو سره سم
تهٔ دَ کښلیو سرئے نور تر تا دی واړه کم

یو کلے یا دوه چه نے ستا ننه کا دا ډیر دی
چونړ کښلے هغه دے چه ئے ستائی درست عالم

وخوزه په باغ کښے رنګا رنګ ګلونه ګوره
ګل دے دَ ګلا بو دَ ګلونو مقدم

خهٔ لره اے میاشتے تهٔ خپل مخ ستائے وماته
دَ یار په مخ م نور ځی ستا په مخ دروم تورتم

مخ ئے لکه اوردے پرے پرتے دی تورے زلفے
خهٔ رنګه بازی کا په سرهٔ اور کښے تور ارقم

خوک چه ډیر ډیر ګوری یا رد زړهٔ مینه لږیږی
خو ئے ډیر ډیر ګورم پرے ښین شم دم تر دم

تا وئیل خوشحاله کهٔ م غم لرے په زړهٔ کښے
خوښ اوسه خوښی کړه تل تر تله ستا خهٔ غم

چه بازئ په جهان کړم هغه زهٔ یم — هم ئے یوسم هم ترے یوسم اړ پرے نهٔ یم
واغیار ته لکه کانړے موم ویار ته — په سختئ وپه نرمئ کښے هغه زهٔ یم
وبلاته دَ اختیار توره په لاس کښے — وقضا وته تسلیم په شان دَ مړهٔ یم
لکه بوټے دَ کیمیا په مرغزار کښے — چه په حال م خبردار شی دَ هغهٔ یم
تندر هم ځما دَ ذاته نه پیدا دے — په سپین زړهٔ کهٔ د باران سپینے اوښهٔ یم
په هر نام چه دِ رضا هغه م بوله — آدم زاد فرشته پری بوده لیوهٔ یم
دَ کونینو ننداره دَ زړهٔ په عین — دَ ویښ والی په دود کړم تا ته اوده یم
دَ هر چا بازار ځما په سودا تود دے — خبردار په سود دَ بحر هم دَ غرهٔ یم
هم داوس غوندِ هلک سره په لار ځم — چه په بده لاره م بیائی هلته نهٔ یم

هم م خیز هم م ناخیز کا په میدان کښې
زهٔ خوشحال په حال خبر نهٔ یم چه څهٔ یم

څو به ستا د دیو غمونو زغمل تل کړم
د یارانو کښې نشته یار به بل کړم

په قراره قرارئ د یارئ پرې کړه
د نیمګړې نیت وچاوته وئیل کړم

چه وعده د د وصال چیرې خطا شی
په زړه لو خاورې څخې د بورجل کړم

هر طبیب لره چه ویر شمه ناقص وی
چه له حاله ئې خبر شم څنې تلل کړم

نور به هسې یکتنها له خلقو اوسم
د هر چا سره چه کښینم غم حاصل کړم

بلا پیرې زړهٔ لرم دا ئې عادت دے
غم و بل لورې ته درومی زهٔ ئې خپل کړم

چه منګی م تشول د میو زهٔ یم
اوس نور د کے پیالے اخلی زهٔ کتل کړم

منکری د عاشقئ سره مله دهٔ
په انکار کۀ دروغژن یم دروغ سل کړم

خالی لاس ورځنې ځم هیله م نۀ وه
چه ډک زړهٔ به ئې له ډکه باغه تلل کړم

په دا هومره هوښیارئ هسې هیښ یم
څوک چه زهر راته نوش کا هم منل کړم

غرګناه راته د خس غوند ښکاریږی
چه په مهر کرم را یشم بخښل کړم

هم غزل م په بیاض باندې وګوره
زهٔ خوشحال خټک د زړهٔ په وینو کښل کړم

چه مئین د د زلفینو په سلسل یم
خود په خود ولیونتوب وته مائل یم

وائی تۀ به د مجنون غوندې مئین وې
کۀ وچا روته م ګورے ترے فاضل یم

ما به څۀ پوښتے چه څه لره زړهٔ تنګ ئے
ستا د تنګے خولے په فکر کښې تنګدل یم

د ګلونو په لیدهٔ د مخ را یاد شی
ځکه هسې په ګلګشت د چمن تل یم

په خیر خیر راته کا تۀ کړے خیروے م
مګر ستا ګمان په ما کیږی چه بل یم

ستا له کویه به ولاړ نۀ شم کۀ شړے م
چه د زړهٔ هسې جفا کړه اوس د خپل یم

لکه څوک چه په خپل دین کښې مستحکم وی
هسې زهٔ د یار په مینه مستقل یم

چه جدا له خپله یاره ژوندے پا یم
زهٔ په دا ژوندون له یاره تل خجل یم

د نفر غوندې م عذر چاره نشته
هر چه ما وته څۀ وائے په منل یم

لکه څوک چه خوارهٔ شهد وخوری خوښ شی
هسې خوښ د شکرلبو په کنځل یم

دَ خوشحال په ګلریزئ کښې بهار راغے
په زیبا و ښَیل هر ګل ته مقابل یم

حیران یم نهٔ پوهیږم چه زهٔ څهٔ یم څهٔ به شم
له کومه یم راغلے بیا به کوم لوری ته ځم

خبر دَ هغو تللیو بیا په بیارته چا را نهٔ وړو
له حاله له احواله ئے کهٔ هرڅو څوک پوښتم

دلے چه څوک لیدهٔ شي نن ئے شپه په دا بانډه کښې
آخرئے له دے ځایه وار په وار واتهٔ ګنړم

جهان یو کتورے شو زهٔ په مثل دَ میږی یم
حیران پکښې چاروزم لاس و پښے پکښې وهم

په هیڅ کله زړهٔ بنهٔ کړی کله زړهٔ په هیڅ بیا بد کړی
کهٔ کام کهٔ په ناکام دی واړه باد دی پیما یم

دُنیا وته چه ګورم کاروبارته دَ وګړی
دَ وړکیو تماشے دی زهٔ ئے هم ورسره کړم

چه تهٔ پرے مبتلائے کهٔ دِ مال دے کهٔ دِ ملک دے
دا واړه بے له خوبه بے له خیاله نهٔ وینم

چه تور وینښتهٔ دِ سپین شول خوښئ دِ نورنهٔ شو خوشحاله
با ورکړه اوس ناحق دَ سپږي نوم دِ رباندِ بږدم

دَ یار غم به په تنها صورت زغمم
دابے درد عالم به نهٔ را خبرو م

چه دا او ښکے م غمازے دَ فراق دی
زهٔ ئے خکه په ګریوان کښې تویوم

همیشه ئے په دا فکر درماندہ یم
چه دَ خوږ خاطر علاج په څهٔ کوم

ملامت ئے دَ عاشق دَ سر پګړئ دہ
دا پګړئ له سره چرته اچوم

دَ هجران دَ آتش لا لمبے تازه شي
خو دَ صبر اوبهٔ زهٔ پرے پوښوم

آشنائی له جدائی سره بنه ده
دَ مرهمو قدر داغ څخه ګنړم

له طبیبه خوخلق هیله دَ شفا کا
زهٔ خسته دَ خپل طبیب له لاسه مرم

یاره ته چه جدائی جدائی وائے
زهٔ خوشحال دَ دے خبرے توان لرم؟

دَ صفا په لارے نهٔ اېښے قدم
همیشه له درویشئ وهم دم

هغه کله شیخ ملا ولی درویش دے
چه نظر په سودا او زیان په مدح و ذم

درویشان په تفاوت نهٔ دی راغلی
خیل پردی په سترګو واړه ګوری سم

دَ درویش تر زړهٔ به نهٔ رسی دا دواړه
آئینه دَ سکندر که جام دَ جم

ودرویش وته سرکوزے بادشاه نهٔ دے
دَ آسمان ورمیږ لاهم دے ورته خم

دَ درویش علم په درس په مکتب نهٔ دے
تل نظر لری په لوح او په قلم

که خلور دی که پینځه که شپږ اوهٔ دی
دَ درویش نښته دا هیڅ اتم نهم

ماوتا وته دیوار شته غاړے غړونه
په درویش تر شرقه غربه دے یو سم

نهٔ په نون دے نهٔ په میم دے نهٔ په جیم دے
کامل پاس په لام وهلے دے قدم

چه ذره طلب دَ نمر کاندی خوشحاله
په همت مهٔ شه ته هم تر ذرے کم

دا نهٔ وایم وچا ته چه پارسایم فاسق نهٔ یم
دَ خدائے منت را باندِ هرچه یم منافق نهٔ یم

یا مازده ستا په حُسن یا خما په مینه تازده
که هرخو کښلی ډیر دی نور به هیڅ عاشق نهٔ یم

دَ مخ مشال دِ بل کړ دَ پتنګ غوندِ پرے راغلم
بیا ته به را ته وائے چه په عشق کښے صادق نهٔ یم

که ته لکه لیلیٰ ئے ما مجنون بوله په عشق کښے
که ته لکه عذرائے زهٔ هم کم تر وامق نهٔ یم

یا مست یا لیونے یم یا رِم نهٔ زده کار دَ مینے
ښکاره بنکاره وئیل کړم دَ رازونو سارق نهٔ یم

دَ هر ښهر په کوڅے کښے ناقصان طبیبان ډیر دی
که هرخو پسے ګرځم زهٔ لا پیښ په حاذق نهٔ یم

څو ذکر څو مذکور کړے تل ځما د ګمراهئ
انصاف بنۀ دے زاهده زۀ مخلوق یم خالق نۀ یم

دروغ وعده هم بنه ده د سړی د زړۀ اُمید شی
یوتش مهرخو وکړه کۀ د ډک دِ لائق نۀ یم

کۀ وائے هغه وایه چه د عشق د محبت دی
کۀ نور څۀ راته وائے زۀ خوشحال ئے شائق نۀ یم

دَخپل یار مینے په زړۀ هسے بیمار کړم
چه په درد کښے ئے هر ګوره ناقرار کړم
چا ناقص م دارو کا پرے نۀ رغیږم
دَحاذق طبیب طلب په کوم دِیار کړم
تورے سترګے تورے وروځے تورے زلفے
دا همه تورے بلا دی زۀ ئے خوار کړم
کۀ یو تش نظر د مهر راته وکا
د دُنیا واړه منصب مال به ترے ځار کړم
زۀ څو هسے نادیده نۀ یم اے خلقه
چه به بِۀ ترمخ ګلونه د بهار کړم
دَ بهار ګلونه اورشی زۀ پرے سوزم
چه بے کښلیه مخه سیل دَ ګلزار کړم
بے له ځانه په بل چارِ م پیرزو نۀ شی
چه کا تۀ د مهوشانو په دیدار کړم
چه ډیر ډیر ئے کښلی مخ ته کتے نشم
دواړه سترګے ئے مزرئ دی ځنے ډار کړم

ماخوشحال په ځان پخپله چارے وکړے
چه په ملک کښے یوناترس وی زۀ ئے یار کړم

دَ تقوی د پارسایئ دُعا تل کړم
چه دُعا م اثر نۀ کا څۀ وئیل کړم
زړۀ م خدائے مئین کوی په بنا نسته ؤ
هسے نه چه زۀ پخپله زړۀ مائل کړم
چه عالم م اروی دَ عشق له کاره
زۀ اقرار ورته په خولۀ انکار په دل کړم
مګر زۀ فسق او فجور لره پیدا یم
چه بیا بیائے ماتوم کۀ توبے سل کړم
واعظ حورے بنے کوی تردا دلبرو
کۀ هو هو ورته لرم کله منل کړم
زۀ په دا سبب لیمۀ غواړم له خدا یه
چه دلبرو ته د سترګو غږول کړم
چه دَ عشق غمونه نور چا لره دروم
زۀ ئے مخے لره ورشم واړه خپل کړم
عاشقان به دَجهان په ما پیغور کا
زۀ کۀ اوس په عاشقئ کښے خوئ بل کړم

وهرچا وته ئے راز وایم دَ مینے
دَ هرچا سره چه یارشم یارخجل کړم

زهٔ لومړے په آشنایئ نازیدلم
وارِه غم وُوچه پرے بنلهٔ وپوهیدلم
دَ زړهٔ زور دَ صورت توان راڅخه لاړشهٔ
چه درانهٔ دَ بیلتانهٔ پیتې ئے اخلم
آشنائی یاری په مهر په رضا شی
په دا کار کښے په چا نهٔ شی زوروظلم
سراول دَ یار دَ یاد په بالین کښیږدم
له غه پسه په پالنګ باندِ څملم
چه دَ سر په ځائے سینه راته بېږه کا
هم هغه به دَ بنړو په غشیو وُولم
بنا نسته لکه ګلونهٔ زهٔ طوطی یم
چه وهرلوری ته ځم په ګلو ملم
کهٔ سیالی له نړه شی نهٔ ئے له بخته
شاه پخپله بے ریباره وُ بللم
هوسئ چا په دَوٗ نیولی دی خوشحاله
بیهوده په غزاله وُ پسے زغلم

زهٔ چه هسے په تعجیل او په شتاب ځم
خرابات لره په هیله دَ شراب ځم
دَ ساقی دَ لاسه مېچه تناول کړم
بیا په بیارته به بیخوده مست خراب ځم
دَ ساقی دَ مخ جذبه مِ مخ ته بولی
چه دا هسے میکدے ته په ترتاب ځم
دُرد درَز مِ ئے له خمه دی نوشلی
اوس په هیله په امید دَ مېے ناب ځم
چه مِ نشی بله یو سر بل سر ستړګے
له جهانه مخ پوښلے په نقاب ځم
له دوٗو ستړګو مِ روان دا وښکو سیند شو
دَ دے سیند دپاسه زهٔ لکه حباب ځم
خوب وخور مِ له خاطره فراموش دی
دَ جمال په خیال ئے درسته شپه په خواب ځم
دَ محبوبے دَ جمال شغلے آتش دی
زهٔ خوشحال ئے له لیدلو زړهٔ کباب ځم

زهٔ چه تل هومره ناسازے دَ عالم وړم
دَ خپل یار دپاره دا جور وستم وړم
دَ لاله غوندِ داغدار په جهان راغلم
هم دا داغ به له جهانه دَ صنم وړم
په وصال ئے دَ جهان خوبنی راشی
چه له کښلیو جدا کیږم څنے غم دوړم
په عالم دَ مجنون عزت دے مردم بو له
په محشر که څنے وړاندِ خپل علم وړم
هر قدم په ځیګر خون بېږدم تو ئے مشه
دَ شرابو پیالے ډکے په تورتم وړم

چه نرګس ته نظر نهٔ کاندِ له کبره
وهغوته خهٔ ګلونه دَ شرم شم وړم

کارکنان دَ کار فرمائے په حکم کار کا
زړهٔ چه حکم فرمائی هورے قلم وړم

هومره ډیرے خرخشے فتنے جنګونه
بیا به وائی چه زهٔ ستا غنچونه کم وړم

په هردم دَ هغه یار منت راباندِ
چه ئے هسے ډیر خیالونه په هردم وړم

مخ به چیرے راته سم کړے په یارئ
کهٔ داخوئ به همیشه له عمره سم وړم

چه په کوئے کښے دِ مقیم شم دروغژن یم
کهٔ به نوم په ژبه چیرے دَ ارم وړم

راته وائے نن زړهٔ خه رنګ وړے له مانه
کهٔ دِ خوږین کړم ئے خوښ خوشحال خرم وړم

زهٔ چه خپل قدم دَ عشق په خونی راه بږدم
هر زمان له تنه سر لکه ګیاه بږدم

دَ جمال خوبی دِ زیاته تر آفتاب ده
دَ نظر دپاره نوم درباندِ ماه بږدم

درسته شپه چه ستا له غمه سوړتاؤ شم
هر سحر په افلاکونو باندِ آه بږدم

کهٔ ته تیغ دَ جفا وکاږے و ماته
ستا وتیغ وته به سر لکه ګیاه بږدم

کهٔ م چیرے لاس دواک درورسیږی
په سپین مخ به دِ دَ غابښ نخښے سیاه بږدم

بیچاره خوشحال چه ستا دَ در ګدائے شو
څکه زه درباندِ نوم دَ بادشاه بږدم

ستا دَ راغلو منت ډیر لرم نسیمه
چه ګلونه غوړوے خما په سیمه

وصبا وته ئے هیڅ بے ځایه نهٔ دے
چه خبر شوم دَ ګلونو له تسلیمه

دَ بلبلو بے خودی بے ځایه نهٔ ده
چه مستیږی دَ ګلونو له شمیمه

بیم دَ هجر دَ هرچا سره جارو ځی
هیڅ عاشق به خالی نهٔ وی له دَ بیمه

ګل بلبل سره بنهٔ وصل لری دریغه
کهٔ داچاره همیشه وے مستقیمه

کله وصل دَ خپل یار کله هجران وی
سرشته دَ عاشقئ ده دا قدیمه

دَ بهار په وخت چه ګشت دَ ګلزار نهٔ کا
هغه څوک به اندیښنه لری سقیمه

په بلبلو دَ ګل بوئ لکه وصال دے
کهٔ ئے رنګ په سترګونهٔ وینے ندیمه

هر ورق ئے معرفت دَ کردګار دے
وهر ګل وته کاتهٔ وکړه حکیمه

کله هر لوری ته ګل دَ بهار ګورے
کله نهٔ وینے یو ګل په خپله سیمه

یوم یار دویم گلزار ساز وساقی شته        نن م کومه اندیښنه له غین ومیمه
دګلزار په اشتیاق دے په خزان کښے
په خوشحال باندِ کرم وکړه کریمه
ښائسته نهٔ دی بلا دی آشنائی ئے ده له غمه
آشنائی ئے ده له غمه زهٔ نارے وهم عالمه
زهٔ نارے وهم عالمه عشق یو یم دے په موجونه
عشق یو یم دے په موجونه الحذر له هسے یمه
الحذر له هسے یمه چه عالم پکښے فنا دے
چه عالم پکښے فنا دے دا دریاب روغ دے له دمه
دا دریاب روغ دے له دمه چه ساحل ئے لیدهٔ نشی
چه ساحل ئے لیدهٔ نهٔ شی ډیر غرقاب دے تر قلزمه
ډیر غرقاب دے تر قلزمه نهٔ زیاتیږی نهٔ کمیږی
نهٔ زیاتیږی نهٔ کمیږی تر اَبده تر قِدمه
تر ابده تر قدمه چه شنا کا په دا یَم کښے
چه شنا کا په دا یَم کښے چه دعوی لری محکمه
چه دعوی لری محکمه هغه دُر ورپسے غواړی
هغه دُر ورپسے غواړی چه بها لری اَعظمه
چه بها لری اَعظمه هغه دُرے بنهٔ جمال دے
هغه دُرے بنهٔ جمال دے چه خوبی ده باندِ تمه
چه خوبی ده باندِ تمه په جمال ئے زلفے ماردی
په جمال ئے زلفے ماردی خبردار ئے یم له سَمَه
خبردار ئے یم له سَمَه په خوقسمه تورماران دی
په خوقسمه تورماران دی خوک دَ دم ګِ خوک بے دمه
خوک دَدم دی خوک بے دم دی هغه مار خوشحال خوړلے
هغه مار خوشحال خوړلے چه ژوندے دے تر دے دمه

بنۀ به هغه وخت وی چه به یار لره ورددومم
وایم چه به زۀ باغ وبهار لره ورددومم
زلفې ئې بنکاره کړې مښک عنبرې په ما توئې کړۀ
اوس به له دې پسه څۀ عطار لره ورددومم
خدائې په کور کښې راکړه هغه تورې سترګې ترکه
اوس به ئې په مرسته څۀ فرخار لره ورددومم
زار دخوږو زړونو خوښ خرم زړونه آزار کا
غم اندوه ئې دادې چه خپل زار لره ورددومم
هرچرته چه خار دی هغه ځائې مومی ګلونه
څکه په دا هیله هرهر خار لره ورددومم
کوم سحر ئې وکړه په ما خوار باندې حیران یم
مرګ وته ئې ناست هغه خونخوار لره ورددومم
هم ئې په ما وکړل څوڅو رنګه ستمونه
بیا له ناچارئ ستمګار لره ورددومم
یارئې په بنائست کښې لکه ګل د نوبهار دې
سودئې دجمال کړم چه ګلزار لره ورددومم
بنۀ خوږۀ یاران چه ما خوشحال لیدل په سترګو
اوس ئې په ژړا ژړا مزار لره ورددومم

کۀ مئین زۀ په ګلزار یمه په ځائې یم
کۀ جدا ورځنې پاتو یم عالمه
یارئې لاس شو په دالار ورپسې درومم
بې له عشقه بله چار نشته بهتره
په جنت کښې هم دحورو صفت کیږی
په یارئ کښې هیڅ حساب دحور نشته
له خوږو شونډو ئې سرې شکرې اوری

کۀ دمخ ئې په ننداریمه په ځائې یم
په ژړا کۀ په چغار یمه په ځائې یم
کۀ ډیر ستړې په دالار یمه په ځائې یم
کۀ دایم دعشق په چار یمه په ځائې یم
کۀ طالب دبنۀ نګار یمه په ځائې یم
کۀ داد خواه له ستمګار یمه په ځائې یم
کۀ طوطی د شکر بار یمه په ځائې یم

زۀ خوشحال په ليونتوب کښې خوشې لې کړم
ليونے دَ پرى وار يمه په ځانے يم

کۀ مِ هرڅو تۀ بادشاه نے زۀ ګدا يم
مخ له ما نه مۀ ځاروه چه مبتلا يم

زۀ چه ستا دَ غلامئ داغ لرمه
هيڅوک ځان سره سم نۀ ګنړم بادشاه يم

دَ خاطر درِم ترلے دے په غنو
له عالمه سره ناست په فکر ستا يم

کۀ دِڅوک په درد رومن ئے زۀ دردمن يم
کۀ دِ څوک دَ تلى خاورے زۀ خاکپا يم

کله ستا دَ راز خبرے په کاغذ کښېم
کله ستاله مخه حال قلم ته وايم

دَ بنۀ مخ دَ عاشقانو دِ شمار نشته
ولے زۀ په همه وارو کښې يکتا يم

خادمانو له شمارے مِ محروم مۀ کړه
کۀ دَ نورو انعامونو دِ ترشا يم

کۀ په ما مهر کرم کوے تۀ بنائى
کۀ په ماجور وستم کوے، سزا يم

تا خوشحال وَته وئيل چه څۀ پکارے
کۀ پکار کۀ نا پکار يم خوهم ستا يم

کۀ هميش دَ ملامت کانړى په سر خورم
غم مِ نشته چه په تورنے دَ دلبر خورم

کۀ دَ سپيو دَ کودى اوبۀ نے موم
زۀ به وايم چه په تن آبِ کوثر خورم

لکه باد په نرګس وُلګى تازه شى
دَ رقيب خپيره هسے په بصر خورم

زۀ به لا ورته تلوار کړم لکه تږے
کۀ تل ستاله لاسه تُوره يا خنجر خورم

چه په بناخ نے ړول ړول ميوے زانګى
لا به کله دَ وصال دَ وُنے برخورم

تا وئيل خوشحاله چپ شه خولۀ مِ واخله
زۀ طوطى يم چغار وکړم بيا شکر خورم

کۀ ګناه نۀ کړے آدم
ترو په چا به شو کرم

سکه کَرَم لره بانده دى
چه پيدا شوے نور عالم

په يوه توبه ګناه ځى
دَ سړى له عمره سم

ګرد غبار چه په ګل پريوزى
شست و شوئے کا شبنم

دَ مومن ګناه په غاړه
دَ شيطان دى بيش و کم

شاهزاده چه بدی وُکا　دَ ندیم سرشی قلم
دَ دهٔ بد په نور ویشل شی　یار تر یاره نهٔ دٔے کرم
په لاَ تقنطوا خوشحاله
تل خوشحال اوسه خرم

کهٔ گذر په خیرآباد وکړے نسیمه　یا دِ گشت وُشی دَ سرائے دَ سیند په سیمه
په وار وار خما سلام ورته عرض کړه　ورسره خما دَ لوریه خو تسلیمه
اباسیند وته ناره وکړه په زوره　ولنډی ته وینا ووایه حلیمه
گوندِ وی چه بیا م ستاسے جام نصیب شی　په گنګا جمنا به نهٔ یم تر قدیمه
کهٔ دَ هندله هوا زار کړم خو به زار کړم　دَ اوبو بلائے لابده عظیمه
کهٔ دَ نهرا وبهٔ ښے کلے پریباسی　هم دَ هرکوهی اوبهٔ نهٔ دی بے بیمه
چه سرے اوبهٔ دَ غورهٔ نشته په هند کښے　ترے توبه کهٔ واړه ډک دے له نعیمه
تل به هیڅوک نا اُمید په دُنیا نهٔ وی　په کریا بو کرم کیږی له کریمه
دَ ویشتلی وصحت ته اُمید وُشی　دَ پرهارئے چه کمے وشی له ریمه
خدایه زهٔ م په وصال دَ هغو خوښ کړه　داچه اوس ورځنے لړے دٔے دوه نیمه
عاقلان به هیڅ انکار وربانِدِ نهٔ کا　هر افعال چه صادر کیږی له حکیمه
همیشه به په هند نهٔ اوسے خوشحاله
عاقبت به عاصی وُوځی له جحیمه

گرم خونړ یم کهٔ ارمان کوم لا زاړم　دَ باغ گل م غوړیدهٔ زهٔ ځنے غواړم
بل بادشاه نشته اورنګ م عدل نهٔ کا　کهٔ صبا بیګاه ځے تل په دربار تاړم
دَ طلب غړی م لاندِ شول تر غرونو　هغه بیل یاران په کومو غړیو غواړم
دَ هواد یاران م هرزمان یادیږی　چه ئے مخ په خوب کښے ووینم وویاړم
چه قاصد دَ یار دَ خولے کتابت راوړی　خوئے لوند په اوښکو نهٔ کړم نڼئے نغاړم
زهٔ خوشحال په خپل قسمت پورے حیران یم
چه په چرته گرځیدم په چرته ولاړم

گرم خونړ یم چه له درده سره خورم　نور به ډکے پیالے آخلی زهٔ به گورم

لاله زار به شګفته په هغه ملک شي
چه باران دَ دوا پروسترکو باندِ وورم

وائي زړهٔ له مانه وزغوره کهٔ بنهٔ کړے
کشکے ستا له لاسه خلاص شي زړهٔ ئے زغورم

خان به درکړم مچه راکړه بنه سودا ده
کهٔ ئے تهٔ په چا پيرے زړهٔ ئے پلورم

په دا راز به هر بے نیاز کله خبریږی
چه خوشحال راته دُعا کا زړهٔ ئے زورم

کهٔ غمونه دَ دے خپل خاطر کباب کښم
بويه داچه دفترونه ياکتاب کښم

په بيان په قصيده به تمام نهٔ شي
کهٔ ناسازے دَ سپهرو دَ شهاب کښم

دَ فراق غمونه لوړ په لوړ انبار دي
په کاغذ باندِ دَ کوم يوهٔ حساب کښم

په ډير غم کښے هيڅ خبر نهٔ يم له حاله
زهٔ به دا واړه په حکم دَ وهاب کښم

کهٔ جفا دَ زمانے وه کهٔ دَ خلقو
زهٔ به دا واړه په حکم دَ وهاب کښم

په فلک باندِ دَ هيچا حکم نشته
چه ئے ظلم ستمونه انقلاب کښم

دَ اګرے په کوټ کښے بند شاه جهان دے
دَ دارا به هغه کوم فاني جناب کښم

نهٔ به زړهٔ ځما سړيږی نهٔ به بس کړم
ورځ و شپه کهٔ سلامونه په احباب کښم

خراب شوی دَ فلک له لاسه ډير دی
اوس به حال دَ هغه کوم يوهٔ خراب کښم

کهٔ دَ خوږ خاطر له حاله چا ته کښل کړم
بيا آهونه يا ژړا يا به عذاب کښم

يو مکتوب دَ خپل آشنا را لره راغے
او ښکے بغرګے تويوم چه ئے ځواب کښم

حاسدان م په حساب لکه کلاب دی
حيف نهٔ دے چه به جور دَ کلاب کښم

ما خوشحال په خوب دا حال نهٔ وو ليدلے
چه به دا دَ غم بيتونه په پنجاب کښم

له هنره چه څوک ووائي لرم
چه م بخت نهٔ کا ياری څهٔ ووايم

په جهان کښے دَ وفا هنر کيميا دے
زهٔ ئے څهٔ لره دَ چا هيله کوم

دَ وفا ميوه دَ دهر په باغ نشته
بيهوده ئے هره ونه لټوم

غه باران چه په درياب باندِ وريږی
په باران به ئے زهٔ څهٔ حسابوم

ناداني م غلبه په هوښياري شوه
مرغلرے په درياب کښے تويوم

له قسمته به نهٔ لږ نهٔ به څهٔ زيات شي
غه روزی چه ځما نهٔ ده نهٔ ئے خورم

چه څماله رزقه زيات څما ښخه وي — اَمانت غونډِ ئے بل لره ساتم
کوم مکان دَ زمانے له مکره خلاص دے — چه هغه لوری ته تيښت ورځنے کړم
کۀ په تيښتے خلاصيدے ځنے به خلاص شوم — دَ قضاله لوری کوم لوری ته ځم
زمانه مِ دَ فتنو په کانړو وُولی — زۀ اَبله دَ بنيښے سپر په مخ کښيږدم
چه په راغلے بنادی راسره نۀ وه — په هجران به ئے څۀ زړۀ زهيروم

چا وئيل چه صبر ښخبنه دَ برى دے
زۀ خوَشحال په صبر ځکه زړۀ ترړم

لا به کله خپل مقام ودلبر ورکړم — چه کټلے مال همه ورته دَ لوَر کړم
يو ولی د دلاسه راته پرے نږدی — ځان کۀ هرڅو خپل مټين ته مرور کړم
هيڅا ونۀ کړه څماد زړۀ ساتنه — هرسړے مِ زړۀ دردمن کا چه زړۀ ورکړم
په درست کلی کښے يو هسے دلبر نشته — چه خپل زړۀ دَ دۀ په وصل بهر ورکړم
خبردار به شی عالم څماله درده — کۀ دَ آه په اور دودزے پيښور کړم

ستا دَخولے خبرے نورے دَ زړۀ نورے
زۀ خوَشحال ختک يو هيښ يم پرے باور کړم

ما شراب خوړلی نه په حد واهۀ شم — کۀ ئے وخورم خبرنۀ يم چه به څۀ شم
په هرلوری چه نظر کوم اغيار دی — دَ زړۀ حال وچا وَته و ئيلے نۀ شم
زمانے را باندِ وکړے هسے چارے — لکه دُر دَ خرمهره سره پيئۀ شم
دَ اورنګ بادشاه په دور عدل نشته — ترطناب لاندِ په بنهرکښے لوټه شم
کۀ دَ رنځ دارو مِ کړے طبيبه وخت دے — هالۀ ستا دارو ومشه چه په تلۀ شم
خپل خونی وچا ته څۀ ښنا ئم پهٔکوته — چه دَچا دَ لاسه مرمه خود ليدۀ شم
درسته شپه لکه اغزی په زړۀ خرخيږی — دَ فراق غمونه څۀ رنګه اُودۀ شم
هيڅ په سترګو ليدۀ نشی يو قصاب دے — نۀ ئے لاس نۀ ئے چاړۀ په زړۀ ورژلۀ شم
لکه وو په هغه شان په وفا ټينګ دے — چه تر يارۓ خجل نۀ کړم څار تر زړۀ شم
په دالوڅو پوخونۀ رسم تر ياره — دَ سيميا علم مِ نشته چه مرغۀ شم
خلق تشے تسلے کا زۀ له خلی — دَهلک غونډِ دَهرسړی په خولۀ شم

اللهم د چه بند په بند کوتے په تار ږدی
د خوږ زړهٔ دمه م شي ځکه خوتا بهٔ شم
نهٔ شیخان نهٔ طبیبان نهٔ ساحران شته
چه له دے رنځه دچا په سبب ښهٔ شم

زهٔ خوشحال له نورو ځهٔ لره فریاد کړم
په زړه زړهٔ واړهٔ په خپل غشی ویشتهٔ شم

مابے دوده توسنی کړه منجیدلم
عاقبت ئے په کمند و ځکیږلم
وړاندِ روستوئے را واچول بندونه
په آخورئے قیزه کړے وتړلم
هغه ډیچے هغه ترنګے له ما ولاړے
چه به خوشے په جلګو کښے کرځیدلم
ریاضت ئے د مولا را باندِ کښیښ
رنګ په رنګ ئے په جلب و پوهولم
چه م لاس دچا ترشا نهٔ وُو راغلے
اوس پخپله شا پخپله زین اخلم
د سورلئ هُنرئے و ښایهٔ و ماته
په تیمار او په راتب ئے وساتلم
ورځ و شپه م د تپاک خبر آخلی
کهٔ خوراک خورم کهٔ ولاړ وُم کهٔ ښملم
هم ئے نوم د ډیرے مینے په ما کښیښ
هم ئے زړهٔ پخپله نخښه وداغلم
چه تمام هُنر م واړه ورمعلوم شو
خپل ښښتن په خپله ژبه وستائلم
بیهوده زغابنتنه واړه له ما ولاړه
چه په هرلوری ئے حکم هورے زغلم
چه په ما به ئے نظر په حقارت کړ
هغو واړو په هُنر کښے و پسندلم
اوس م قدر یو په سله یو په زردے
چه اول په خو درمه پیریدلم

اوس په هر توکی خوشحال خورسند خرم یم
په خپل قدر په قیمت وپوهیدلم

مست یم مے پرست یم رندی کړمه کړم
واوره محتسبه باده خورمه خورم
نور شراب م واړه نور عالم وته بخښلی
لام و تب م مے دی پسے مرمه مرمه مرم
موړ به ځنے نهٔ شم زهٔ د میو مستسقی یم
تل کهٔ هسے ډکے پیالے ښبمه ښبمه ښبم

لار دَ محبت ده تل به روغ سلامت نۂ یم
زۂ چه په دا هسے لارے تلمه تلمه تلم

څۂ وائے وماته حال دِ څۂ وو په هجران کښے
نور خبردار نۂ یم په زړۂ سومه سومه سوم

خلق راته وائی رنګ دِ بیا زیړ شو عاشق شوے
هیڅ منکری نۂ کړم خلقه شومه شومه شوم

دود دَ عاشق دا دے چه په عشق کښے ملامت وړی
ځکه زۂ خوشحال ملامت وړمه وړمه وړم

نجومی چه قدم نۂ ږدی بے نجومه — موت وفوت دِ ناکامی مومی له کومه
چه ګړئ ګرځی دَ ورځو شپو تیریږی — پکښے راشی په چا نیکه په چا شومه
ځان به خلاص نۂ کا دَ بد ساعت له شره — نجومی نے کۂ خبر دے له علومه
نیک وبد ئے په قبضه کښے دَ قضا دی — بیهوده خبرے مه پیمه وردرومه
مقدر به په هیڅ رنګ مبدّل نۂ شی — هر سړی لره ورځی بخره مقسومه
کۂ په پوهه افلاطون دَ زمانے شی — دقیقه به دَ قدر نۂ کړی مفهومه
ګډی چړګ ترمزکے لاندِ اوبۂ وینی — ولے نۂ وینی په زمکه باندِ لُومه
په تنزری نن دَ ګانده حال معلوم دے — ولے بند شی دَ هلکو په کړکومه
ورځے شپے سره همه نۂ دی یکسانے — نن یوه ده ګانده بله شی معلومه
وسړی ته وار په وار هغه رسیږی — چه دَ دۂ په پیشانئی باندِ مرقومه

په خوشحال یوه هغه ده بله دا شوه
بیا به ګوره په قسمت پیښه شی کومه

نور به مخ په آئینه برابر نۂ کړم — نۂ به دواړه سترګے تورے په رانجۂ کړم
نۂ به سپین لاسونه سرۂ کړم په نکریزو — نۂ به نور په ږمنزے ساز دَ سر ویښتۂ کړم
نۂ به ملتے ماتے څنړے په مخ پریږدم — نۂ به لاندِ باندِ لب په پانوسرۂ کړم
چه دَ مینے یار م نشته چه ئے ګوری — دَ صورت سنګار و کوم یوۂ ته وکړم
درست صورت م سرے لمبے شی شنے په دوزخ دے — چه دَ خپل مئین دَ مینے راز تر زړۂ کړم

کهٔ ژوندون ترهرڅهٔ خوږ دۓ په جهان کښے  اوس بے یاره په ما ترخهٔ دۓ زهٔ ئے څهٔ کړم

هغه یار چه چرته دے خوشحال دِ اُوسی
دے دِ خپله خوشحالی کا غم به زهٔ کړم

وړاندِ روستو دوه عدمه  په دا مینځ کښے یو دوه دمه
خوهم دائے چه لیدهٔ شے  کهٔ څهٔ نورڅهٔ ئے آدمه
چه دا دوه دمه دِ نهٔ وی  په حساب ترجیفه کمه
ستا غفلت وته حیرت یم  په خپل ځان باندِ ستمه
دَحرص په وزر ګرځے  هم په غرونو هم په سمه
کهٔ بادشاه دَ درست جهان شے  چار دِ تیره شی ترجمه
بادشاهی به دِ خلاص نهٔ کا  چه اجل درشی له همه
خو روزګار هومره ئے فکر  خو دُنیا هومره غمه
په زړهٔ یو درم یو داغ دے  دوه داغونه دوه درمه
خو عالم سره ګډیږی  غم به مومی له عالمه
چه وهر څهٔ ته ئے شاکړه  په هغو ده مُسلّمه
چه نهٔ څهٔ آورے نهٔ څهٔ وینے  زړهٔ دِ خلاص دے له اَلمه

تهٔ هم ډیر بنهٔ ئے خوشحاله
ولے ځار دِ تر قلمه

هغه دم چه دَ ساقی پیاله نوش کړم  په مستی ئے دواړه کونه فراموش کړم
په معنیٰ کښے هم شراب یم هم ساقی یم  طالبان دَ میو شته چه ئے مدهوش کړم
ناصحان راته دَ عقل دفتر لولی  خدائے به ئے نهٔ کا چه ئے زهٔ په وئیل کوش کړم
دَ زاهد په صومعه کښے م زړهٔ تنګ شو  له دے پسه به خدمت دَ مئے فروش کړم
زهٔ بلبله خوش نوا دَ دے چمن یم  په موسم دَ ګلو څهٔ رنګه خاموش کړم

چه په زړهٔ ئے اثر نهٔ کیږی خوشحاله
څهٔ فائده کهٔ تل په رو ورته خروش کړم

هله مخ راته بنکاره کړه دیوانه شوم  په همه واړه عالم کښے افسانه شوم

لا م ستا دَ مخ چراغ لیدلے نۀ دو — زۀ زړۀ سوے لاهاله پرے پروانه شوم

آشنائی دِ له بنادئی نۀ وه غم وو — چه دا هسے له بنادئی بیګانه شوم

ستا دَ زلفو دام م ولیدۀ په لارے — له مسجده نه مقیم په بُت خانه شوم

ستا دَ زلفو دَ زنځیر هوس م وُکړ — نهٔ چه زۀ له بے عقلئی دیوانه شوم

آغزین دِ دَ بڼرو نۀ وو بلا وو — چه په ځان د زړۀ ئے هسے نښانه شوم

زۀ چه تل دَ لیونیو په شماره وُم — بیا له کومه په ساعت کښے فرزانه شوم

زۀ خوشحال هم بے نظیر یم په عالم کښے

چه منین په بے نظیرے جانانه شوم

یوه نخښه درته وایم دَ بے شرم — په وعده په قول نۀ وی نرم ګرم

خدایه ما دَ هغو مل مه کړے په لارے — چه ئے نۀ وی په یارئی کښے آزرم

دَ ناکس یاری په مثل دَ اوړو ده — چه دَ باد په مخکښے دروی ترم ترم

یوه بده زمانه شوه دریغه دریغه — په هرچا چه دَ یارئی با ور وسرم

کۀ هندو کۀ مُسلمان دَ یت په کار کښے — چه م ولیدۀ دَ هیچا نشته برم

خوک چه نرم وئیل کا عمل ئے ګوره — تکان هم په خولهٔ وئیل کا نرم نرم

دَ هغو مخ ته مۀ ګوره خوشحا له

چه ئے سخت په بے شرمئی کښے دَ مخ چرم

آه هم دا هومره آهونه — دم په دم بیا ګناهونه

هم هغه پکښے پرے وزی — چه کنی چا ته چاهونه

لکه باد هسے تیریږی — دَ فانی دُنیا جاهونه

اور دَ آه ئے هسے لګی — لکه اور په ګیاهونه

ګوره بیا به په چا سرشی

دَ خوشحال ساړۀ آهونه

آدم خیلے آفریدئی دی سړا وسپینے — پکښے شته دی بنا نسته په رنګ رنګینے

غټے سترګے لوئے بانړۀ فراخے وروځے — شکرلبے ګل رخسارے مه جبینے

تنګے خولے لکه غوټئی هوار غابښونه — سرئے ګرد په تورو زلفو عنبرینے

په وجود کښې لکه ها له ویښتو خلاصې
پښې کمکۍ غنډۍ پنډۍ پهن سرینې

ترنخې ګیډې سینه ورې ملا نرۍ
قدئې سم لکه الف په تن سیمینې

که د باز غونډې م ګشت په غرونو کیږي
ښکار م هم شوې ښائسته زرکې ثمینې

بازکه چوز وي که کرج طلب د ښکار کا
لا ترچوز وي د کرج غوټې مهینې

یا اوبه د لنډې سیند یا د باړې دي
چه په خوله م ترشربت لګي شیرینې

د ماترې غابښې نیغ دروهي آسمان ته
په خاته خاته لنډیږي باندِ سپینې

آدم خیلو سره زه په تیراه راغلم
نور رخصت ورکړې خوږ په زړه خوږینې

مینه واړه کار دا ور لري خوشحال له
که لمبه ئې پټوې لوګي ئې وینې

اې چه مخ د ښائسته دې په خالونه
په داخپل ښائست ډیر مه کوه خیالونه

همیشه به دِ دا هسې ښائست نه وي
د ګلشن ګلونه نه وي تر کالو نه

چه د خپلو عاشقانو وبال اخلې
هومره ښه نه وي په غاړه وبالونه

کله ماوته دُعا کله کنځل کړې
درته چا ښنیل دا هسې جنجالونه

ډیر دِ ماغونډ غلولي په رنګ رنګ دي
څه بلائې په لباس په ټیټهالونه

ستا دُ وروځو خال کوتره د هونړا ده
تورې زلفې دِ چا پیرې ترې جالونه

د بلبل په خاطر هومره بلا نه وي
چه غنچه کا غوړیدل په اهمالو نه

ستا دا نیسته هسته خوله هسې اِشکال دې
چه به نه وي نوردا هسې اِشکالونه

نه به باز نا، به شاهین نه به شنقارشي
که تپوس د الوتو لري بالونه

په داخو توکه دِ هیڅوک باور نه کا
په وعده د کښلیو خوب دې که فالونه

د مجنون په بیرې ناست دې مرګ ئې مه ځه
چه په سینو خولوئې وشندل مالونه

خبردار ورباندِ روغ لیوني نه دي
په خوشحال کښې چه پراته دي داحالونه

په هره کوڅه ګرځم که م چالیده رنګینه
ګل مخه، عنبر بویه، هوسئ چشمه، مه جبینه

په خولهٔ غنچه دَ هانه په غابښونو دُر دندانه
په دواړو خوږوشونډو ترشکرو لا شيرينه

په زنې لکه سيبه په غبغبو دلفريبه
په غاړه لکه زانړے سروقده تن سيمينه

په تور باڼړهٔ ناوکه په ابرو لينده بے شکه
په پوزه لکه ليدے چه را پاسی له کمينه

کلګونې ختے واړه مرصّع منے په غاړه
تيکه په تندی ايښے په زلفينو عنبرينه

په خوئ خونی خون ريزه مهر ژنه جنګ آميزه
بے باکه عاشق کُشه بے پروا له دادو دينه

کهٔ زرخونونه کاندی زړهٔ ئے نهٔ شی لاندِ باندِ
لا نور وريسے غواړی خوشحال ليږی خوچه مرينه

په کاتهٔ شم وعالم وته حيران
چه دَ نس دپاره ځهٔ کا دا سکان

هسے چارے ئے پيدا شی له وجوده
چه په فکر ذکر نهٔ وی دَ شيطان

تل قرآن دَ وړاندِ ايښے قرآن لولی
ولے هيڅ عمل ئے نهٔ وی په قرآن

په کوم لوری پسے څم چرته ئے غواړم
دَ کيميا غوندِ ناياب شول دا نايان

ښهٔ سړے لعل و ياقوت دَ موندهٔ نشی
لکه نور کاڼړی لړ نهٔ دی ناکسان

کهٔ په نورخلقو کښے ښهٔ سړے موندهٔ شی
ولے ښهٔ سړی به لږ وی افغانان

کهٔ هرڅو ورته دَ پندخبرے وائی
دَ پلار پند ئے هم ښهٔ نهٔ لګی په ځان

هره چار دَ پښتانهٔ ترمغل ښه ده
اتفاق ورځنې نشته ډير ارمان

دَ بهلول او دَ شيرشاه خبرے آورم
چه په هند کښے پښتانهٔ وو بادشاهان

شپږ اووهٔ پيړئ ئے هسے بادشاهی وه
چه په دوئ پورے درست خلق وو حيران

يا هغه پښتانهٔ نور وو دا ځهٔ نور شول
يا دَ خدائے دے اوس دا هسے شان فرمان

کهٔ توفيق دَ اتفاق پښتانهٔ مومی
زوړ خوشحال به دوباره شی په دا ځوان

بر خیرن شول پیوندونه — په دل نهٔ لری پندونه
کهٔ پدر دے کهٔ پسر دے — سره بیل لری سندونه
نا اُمید شو سره پا تو — نهٔ باور په سوگندونه
نهٔ سزا دَ بدکردار شی — نهٔ دَ غلهٔ ځی مړوندونه
دَ اورنگ په ظلم مات شول — دَ بابر دَ وخت بندونه

په دا هسے وخت خوشحاله
مرگ بهتر دے له ژوندونه

په تیرو تورو وردرومی یکرنگان — په لمبو باندځان ولی پتنگان
دَ کنجکو قدر یو دَ ډُرو بل دے — ننگیالو سره ځهٔ ژوی بے ننگان
ارتگی دَ زړهٔ دلیل دَ جنتی ده — دَ دوزخ دَ اور لائق دی دلتنگان
دَ بادشاه په سلطنت پوړ خندا کا — په سپیرو ایرو لړلی ملنگان
نورماهی نے تار په تار دروی له مخه — ماتوی لوئے بیړئ نهنگان
دهاتی دپاسه سور ورته پیکه وی — چه دَ میو پیالے اخلی سرهنگان

ځهٔ دَ ځان صرفه اوس کار کوه خوشحاله
لکه کار کا پرهار ژلی پلنگان

بیهوده په ځان غره دے دا انسان — په ساړهٔ په غارمهٔ چینگه خولهٔ حیران
لیونے ملال دلگیر دَ خوب په ورل کښے — نهٔ دَ لوږے نهٔ دَ تندے لری توان
په یوه ذره خبره خوار خسته شی — په یوه ذره سرخوری شی په ځان
په دا هسے رنگ خو کبر څو لوئی کا — چه نظر نے له خودئ وی په آسمان
واړه عمر تیروی په دا غفلت کښے — تر هغهٔ پورے چه وُمری په دا شان
په ژوندون چه دَ خپل ځان فکر و نهٔ کا — بس له مرگه به هغه کا ډیرا رمان

زاهدان شیخان وهر لوری ته ډیر دی
دَ خوشحال ختک پکار دی عارفان

پنه بد روز بکر حیران بها در خان — هدایت ترین سوخته ژوتردا میان
شیخ ستار ماشه هتو یک عبدالرحیم زو — دَ هتو یک کندهٔ خدائے یار جامکے کامران

دَ توپک کُندهٔ هرګز نهٔ وی بے سیخه | حق ناحق ئے پکښے جوړ کړ جهانخان
دَ تسمو په ځائے ګویا دا نور عالم وو | اسفندیار غوندِ یو خوګیدی پاجیان
مرد کے دارو همه خواجه صادق وو | بند وتړی صاحب صوبه وو په خپل ځان
په دا هسے غرځهٔ رُخ دَ ګدار نهٔ وو | په آزار به ئے ګډوډ کا خدائے جهان

په مثال خواجه خضری غرځهٔ خوشحال وو
چه ګذار ورباندِ وشو ناګهان

تل په ځان کیږدے تازه تازه نومونه | زهٔ دِ پیژنم دَ زلفو په خمونه
نهٔ ئے خوک وینی په سترګو نهٔ په خوب کښے | چه رارسی ستا له غمه داغمونه
کهٔ مِ تهٔ دَ زړهٔ له سوزه خبر نهٔ ئے | خبردار م په دا حال دی عالمونه
لکه ستا باڼهٔ په شمار په حساب نهٔ دی | هسے ستا دَ سترګو ډیر دی ستمونه
ستا دَ تورے دَ ګذار حاجت هیڅ نشته | په ګکښل ئے دَ عالم خیژی دمونه
مګر خوک په غاړ و غړو نو ژوندی ګرځی | ستا سُورد په وینو ولړل سُمونه
چه ډیر ډیر به ئے کښیښول پړ پرهارونه | طبیبانو ځغه ورک شول مرهمونه
اوس دِ غم لکه لوئے غرد ے راته پاتو | غوبه نهٔ اوړی دَ چا په اړمونه
یا د ستا دَ مخ ثنا خوشحال ختک کښی | یا دِ نهٔ نیسی په ګوتو قلمونه

چه خوشحال ئے په کاغذ یا په قلم کښی
په خاطر کښے هومره نهٔ دی آلمونه

تهٔ چه دا حسن لرینه | څکه هومره کبر کړینه
تورے سترګے په کجلو | په تنبولو شونډے سرینه
په مثال لکه شاهین ئے | چه دَ زړونو غوښے خورینه
کهٔ تهٔ هرڅو بناسته ئے | کبرمهٔ کړه و به مرینه

دَ خوشحال خاطر مفت نهٔ دے
فکر وُکړه چه ئے وړینه

چه له عشقه بله چار ګڼړی افزونه | تردا بله اندیښنه نشته زبونه
باور وکړه چه دَ عشق په کاروبار کښے | کهٔ زیات نهٔ یم کم هم نهٔ یم تر مجنونه

ظاهري ګونه دَ زړهٔ په حال ګواهي لي — کهٔ هيڅوک نهٔ دي خبر له اندرونه

تهٔ نا ترس به ګوته هم پرې لمده نکړې — کهٔ له دؤو سترګو روان کړم دوه سيندونه

چه دَ زړهٔ له تاوه وځي غه خبره — اثر وکاندي آخر په وارهٔ زړونه

کُل عالم دَ بيلتانهٔ له لاسه زار کا — زهٔ په څوخبرو خوښ يم له بيلتونه

يونے قدر دَ وصال راته ښکاره کړ — بل ئې سهل راښکاره کړهٔ نورغمونه

چه تاشان دَ ليلي کړ زهٔ پوهيد لم — چه به ستا له لاسه ځائے کړم غاړغرونه

چه يک لخته دِخوشحال له زړهٔ نه ويوست
درپوهيږم دارد نهٔ کيږي له خُونه

چه ئې تا غوندِ رادرومي په پوښتنه — رنځوري ده دَ هغهٔ رنځور سودمنه

دَ بيسر موتي دِ لاس دَ سکندر کړ — شوريدهٔ ئې اشارت په جاروتنه

تل په تا پسے غمژن يم هومره نکړے — چه م وپوښتےځهٔ حال لرے غمژنه

کهٔ دِ سر له مانه غوښت له تا م دريغ کړ — بيا هالهٔ وايه و ماته دروغژنه

زړهٔ م ستا په لاسو درکړ تا خراب کړ — هلک ځهٔ زده دَ زيبا طوطا ساتنه

خدائے دِ لاس دَ هغه چا په تِهه کښے پرے کا — چه په قصد به پريکوي دَ ګلو ونه

کهٔ يوځل ئې طماغه له سره پريوزي — نورو بازو وَ ته څوک بنائي وهنه

کهٔ دَکښليو وعده هرکله خلاف ده — خدائے دِ تا دروغژن نهٔ کاندي په ژمنه

وخوشحال ته خوهم داوايه مطربه
چه زار زار کله به رايشے مئينه

چه نهٔ لري ننګونه — وئ مهٔ وينے رنګونه

دا دَ ننګ دپاره ګرځم — په دا هسے ګړنګونه

صد رحمت راباندِ بنائي — په دا هسے آهنګونه

په څو به ځنے دروے — چه دَ زړهٔ لرم زنګونه

مهدي له غاره وُوزه — کښيږده پښه په پالنګونه

نهٔ دين شته نهٔ آئين شته — شرم لاړ په فرسنګونه

مختورن ظالمان ډير دي — چه اخلي قلنګونه

دَ عدل تـوره واخلـه ملک اسلام کړه په جنګونه
بېداره اوسه زرکے شهمند کرځي په ښنګونه
خوشحاله فهم وُکړه
چه پريووزي خرسنګونه

خوک خبردی دَ فتنو دَ دے جهانه نوی نوی را پيدا شي له دورانه
ما وتا غوندِ به خوباد وړی یاد کا کهٔ خبر واخلے له زمکے له آسمانه
چه له باده دمه پک وو کهٔ ئے ګورے با دئے خاوره په ملکونو کړه پريشانه
په شان شان م دَ وجود نداره وکړه بیا به هم شي په خو رنګه په خوشانه
نهٔ ئے زر نهٔ جواهر شته یو تاوان دے کهٔ به بنهٔ کړے ځان ئے خلاص کړه له تاوانه
زمانه م شوه په غاړه اے خوشحاله
کهٔ ئے ګورے نهٔ له تانه نهٔ له مانه

خو ګلرنګه خهرے راغلے په جهان بیا فنا شوے لکه ګل دَ ګلستان
یو رمق دے راته پاتے په فراق کښے چه به مرګ له ماجدا شول بنهٔ یاران
کهٔ دَ زړهٔ سترګے دِ شته نداره وُکړه په وصال کښے مهیّا ګنړه هجران
دَهغهٔ بقا فنا ده بقا نهٔ ده چه تبديل ئے په دُنيا شي هر زمان
داخهٔ تورے خاورے نهٔ دِی چه پردرومی خاورے شوی کښلی ځونه دی ځوانان
چه را یاد شي بنهٔ یاران وُکورته تللی تل په ما وی دَ غمونو ګنړ باران
همګی تر مزکے لاندِ شول خوشحاله
اوس دَ مزکے په مخ نشته راز داران

خوک به څهٔ ساتی په پوهه په پندونه په ویښتهٔ سره تړلی پیوندونه
په یوهٔ قفس کښے بند قارغهٔ طوطا کړه سره بیل به وی دَ هر یوهٔ سندونه
یا کُشتی دَ زوروړو سره مهٔ کړه یا د دوئ غوندِ پيدا کړه مروندونه
موږ په داعقل روغ نهٔ یُو لیونی یُو معشوقه چه وعاشق وَته غندونه
عاشقان دَ شاه دَخولے یُو زرمو نشته کهٔ په سرئے لیدل مومو سرشندونه
چه باور دِ په رښتیا خبره نهٔ کا وهغوئ وَته به څهٔ خورے سوګندونه

چه ناپوهـ سره تیریږي ډیر افسوس دے — دَ دانا سړي کیمیا غونډِ ژوندونه
په خپل ښکار پسے به څهٔ رنګ باز الوزي — چه باز دارئے پسے وانهٔ کا بندونه
دَ شکرو خوند به هیڅ ورباندِ نهٔ وي — چه خبروي دَ خبرو په خوندونه

تا دَ زلفو په زنځیر کښے خوشحال بند کړ
آفرین دِ په دا هسے شان بندونه

څو دَ ملک وارث ونهٔ وهي سرونه — هومره چیرے قراریږي سمے غرونه
یا به ستا په ورهٔ نارے وي ته به ژاړے — یا دستاله لاسه ویر دَ چا په ورونه
رخنه ګر دَ ملک پرِمهٔ بړده په خپل ملک کښے — په حکمت په زرو زور په لښکرونه
څو په تورو په توبریو په نیزو شي — صد چندان شي په تدبیر په هُنرونه
زوراوځوئ دَ ملک په کار کښے قتل کیږي — نور په واړو باندِ جوړ شول محضرونه
بے دَ تیغ له آبه نورے اوبهٔ نشته — چه جنګجوئے سره ساړهٔ کا تبرونه
دَ سردار دَ ریاست ونه په وینو — په لیمه شنو دَ اعداء کا ثمرونه
په میدان کښے تونے بهٔ دي دَ سر وینے — نهٔ چه ډکه سینه وړے له ځګرخونه
یا دَ مرد غونډِ شمله دَ دستار پریږده — یا په سر کړه لکه ښځه میزرونه

خدایه چاوته ئے کښم څوک به پرے پوهـ شي
ما وئیلے هر یو بیت دے دفترونه

څو خبر په قباحت نهٔ شي انسان — نیک وبد هوښیار نادان ګڼړي یکسان
کهٔ یو کس په زرکښے بیا موے هم ډیر دے — په هرلوري صد هزار دي ناکسان
هومره ترس ځما له یږه خوکهٔ نهٔ شي — څو په زړهٔ یم له جاهله هراسان
دانایان په ناکامئ کښے خوار حیران دي — کامراني دَ جهان څوک کاندي خسان
په خپل ښکار باندِ غوټے وهي بازونه — په مردارے باندِ ګرځي ګرګسان
تفاوت ئے په کرده په فعل ګوره — مچ مچئ دي سره واړه مګسان
چه په درست عمر کښے یو ځله تیرهٔ شي — نور اصیله تُوره نهٔ غواړي متان
چه هر دو پے واودو ته هوس کاندي — دَ زربفتو هُنر چیرے دے آسان
کهٔ دِ زړهٔ دے چه لذید شعر دُوایم — دَ خوشحال غونډِ پیدا کړه خپل لسان

خوږ ژوندون په سرې تریخ کاندي بیلتون | په سوزانو لمبو پاس کیږدي لړمون

چه څۀ زور قوت دَ زړۀ وي په کوکې کښې | وار په وارې له دوو سترګو کا بیرون

تردا هسې عمر نۀ عمر بهتر دے | چه تیریږي ورځ وشپه په ځیګر خون

په ځیګر ځیګرم ولې صرفه نۀ کا | دَ غم لیندیو راته وواهۀ زنګون

ځما زړۀ طومار دَ مهرو دَ وفا دے | ځیراوۀ شي چاته زده نۀ کړ مضمون

کۀ کتان چه مهتاب ځیرے کا کنده شي | سکه ځما دَ زړۀ به هم وشي کنډون

کشکې څوک هسې پیدا شي زۀ راضي یم | چه م زړۀ دَ یار له لوریه کاخوستون

په هجران کښې کۀ امید دَ وصال نۀ وے | دَ حیران عاشق به هم نۀ وو ژوندون

چه قدم په هغه لار کښیږدي سردرومي | زۀ همیش په هغه هسې لار کړم یون

یو دَ بل په ځائې کښیني دَ دُنیا دود دے
زۀ خوشحال قایم مقام یم دَ مجنون

دواړه زلفې ئې پریشانه په خو شانه | په جبین خورے ورے په لب خندانه

له مستئ ئې سر تور کړیوان شلیدلے | صراحي په لاس نیولي غزل خوانه

په خمارئې سترګې سرې وبله آو ښتے | نیمه شپې را باندِ راغلۀ ناګهانه

سپینه خوله ئې ځما غوږ وته نږدې کړه | په نرمئ ئې دا وینا کړه را بیانه

زۀ خورې زلفینې ستا په پالنګ راغلم | تۀ تراوسه لا اوده ئې ځما ځانه

هر عاشق لره چه هسې شاه وردرومي | نورئې کومه آرزو وي له جهانه

څو پیالې ئې پیاپې وماته راکړے | دَ توبې پرده ئې واخسته له میانه

چه له هسې رنګه حاله خبر نۀ شوے | شیخه ځکه ځما چار ده په تاګرانه

عشق راغلے دَ توبې په ماتول دے | هیڅ بدي را باندِ مۀ وایه نادانه

کۀ خوشحال غوندِ دَ یار باده پرست وے
تا به هم کړه دَ توبې خونه ویرانه

دَ دلبرو په ستاینه | ما نیجه کړه خپله ینه

ناترسې دَ دیو کوره | چه په حال نۀ کا پوښتنه

زۀ به ولې هسې خوار وُم | کۀ دَ حال م وے کوژنه

تل ئے خیال دَ تورو زلفو
شنډئے کا په زړهٔ دننه
چه جمال ئے را په یاد شی
لاله ګل ته کړم کتنه
دَ زړهٔ سود دَ دهٔ دَ قد کړم
په شمشاد په سوو وُنه
نهٔ سلام شته نهٔ پیغام شته
نهٔ ئے پیک شته نهٔ ئے ژمنه
په ارمان ئے ورځ وشپه مرم
یوه نهٔ لرم نیا زمنه
سینه ړ یره نهٔ ده غم ده
ډیره مهٔ کړه لټونه
چه نهٔ زړ وی نهٔ ځوانی وی
عاشقی ده دروغژنه
په دا هومره ډیره مینه
یوه نهٔ لرم مېئنه
چه خوشحال نهٔ ده موندلی
دغه دے دغه غوښتنه

دَ زیبا جمال ئے ډیرے زیب وزین
ولے زړونه دَعالم وړی په عینین
یوه سترګه ئے رحمان بله رحیم شوه
چه همه مراد پکښے دے دَ کونین
چه دَ شهر زاهدان شیخان پیران دی
زړهٔ دَهر یوهٔ کشان وړی په زلفین
لکه عینِ دَ خپل پلار خونی وژلے
پسو سرے سترګے راځی په شین شَین
واړه لواړ سرونه نغری دَ دردمنو
دَمزری ترخولے تیردے دَعشق عَین
په خپل یارم باور شته چه بل به نشی
غمازان کهٔ غمازی کا ترډا بین
په رضائے خپل خاطر ورکړه خپل یارته
په خوشحال محصل نهٔ وو دَچا تین

دواړه شملے پریږدی بریښوی ورته خپل ځان
ګوره هغه تُوکه به نظر کا په کوم ځوان
خو رنګه مخونه په داخا وروکښے بدرنګ شول
خو دَخیال کړے پکښے یاد لری جهان
دور دَ دلبرو دَ بنا ئست دے یو خو ورځے
زړله برمه پریوزی لکه ګل دَ ګلستان

سرې سترګې آو ښیتې لکه ډیر خونو نه کړي
خدایه خیریت کړې چه را دروي په دا شان

زړۀ م لکه ګوئې دے دَ مستئ په میدان کښې
تل ئې هغه تُرک وهي دَ زلفو په چوګان

تل دَ تن هډونه راوکاږم په نُوکونو
غم ئې دَ ناوک خورم چیرې مات نشي پیکان

پټه په نقاب وه دَ هرچا ورته نظر وو
مخ ئې را ښکاره کړ ورته خلق شۀ حیران

مخ په وړاندِ دروي پټ په خَنګ ورته نظر کا
خوښ اوسه خوشحاله بیا ښۀ پیر وکړ آسمان

دَ جهان په مخ به ډیروي ښۀ مخونه
ولې زړۀ م ستا و مخ ته وکړه خُونه

کله کله م له حاله خبر واخله
کۀ دِ چیرې اندیښنه کیږي له خونه

دَ فراق په شپه سورکټ په ماسُوا اوړشي
یو زمان م باندِ نۀ لګي اورخونه

په ښروم زړۀ و سترګو ته راکاږي
لکه مست لره کباب ځي په سیخونه

نوبهارئې په راتللو شګفته شي
دَ لاله ترګلو ښۀ لري بارخونه

خو غمزې ښیوې فتنې جلوې مانړې کړې
هومره کیږي په خوارانو شواخونه

کۀ دا سرې شونډې دِ لعل غا ښ دِ ګوهر دي
شرارې دي ستا په غا ښو کښې میخونه

تورې زلفې دِ په لیچو باندِ زانګي
ښاماران دي دَ چندڼو په ښاخونه

چه ئې یو زمان له سترګو جدا کیږي
دَ خوشحال په مخ دَ اوښکو ځي ورخونه

دایم راغلم په دا عمر چه م وینې
خُلمي توب راغځه یو وړ ږیرې سپینې

یو دَ ښکاز بل دَ کتاب، بل دَ دلبرو
په جهان کښې نورې نۀ شوې دا درې مینې

دَ همت جامه م سپینه پاکیزه ده
پرې دوستي دَ زړوڅۀ وه لکه وینې

شیخ ملا عابد زاهد ورخبر نۀ دي
چه په زړۀ کښې دَ عاشق دي دلنشینې

کۀ تهترو هے له تیرې ګمان مۀ کړه
چه به مهر په تا وکا زړۀ سنګینې

د دوؤ کونو مراد کل درکا په غیږ کښې
پہ خندا چه درکنار شی مه جبینے
نور به کوم ارمان دکنج د گنجینے کا
چه په غیږ کښے دے نیولے تن سیمینے

ډیرمثین وو چه دے لاندے کړے د مینے
په ارمان وبله تیرشو که نے وینے
څوک چه یار په او ښکو ژاړی ژړا نۀ ده
ژړا دا ده چه نے وژاړے په وینے
د ښستینے مینے کار خو د خپل زړۀ دے
دروغژنے مینے غواړی تورے سپینے
د مجنون او د لیلیٰ مینه رښتیا وه
د پرویز او د فرهاد او د شیرینے
ستا په رنګ به په جهان راغلے نۀ وی
په جهان که ډیرے تیرے دی رنګینے
تورے سترګے د شهلا نرګس د باغ دی
تورے زلفے د سنبل دی مخ نسرینے
له دیو خا ورونه چه کل زیږی خوشحاله
دا په دا چه تل وردرومی مه جبینے

رابنکاره شوے کج فهمئ د جهان
د جهان د کج فهمئ الامان
داهم ځائے د تعجب دے که ئے وینے
په بازونو چه غوټے وهی زاغان
داهم ځائے د تعجب دے که ئے وینے
چه مغل کاندی بازئ په افغان
داهم ځائے د تعجب دے که ئے وینے
چه کیدړ په واز دو ډک وړی شیران
داهم ځائے د تعجب د حیرانئ دے
چه لبنکرے په خوشحال کا بهرام خان

رنګینه کالی اغوستی رابنکاره شه ناګهانه
راته وګوره وخانده خوشحالی م کړه پریمانه
خدائے د تاله وربوستر کونه وژغوری دلربایه
چه ټیکه په جبین کښیږدے او سنګار وکړے خوشانه
هغه دم چه تورګیسو په خپل صورت باندخوارۀ کړے
خوشبوئی د خاصه مشکو په درست غولی شی پریشانه
خان وزړۀ م هم چاپیر درسره دردمی اے نګارے
چه کهے په شین شین په انګنړ کښے شے روانه

دین وزړهٔ صبر وآرام راځنې لاړل اوس پوهیږم
چه یوځان دے راته پاتے دا به هم یوسے له مـانه
دَ یارئ دَ آشنایئ دودونه هیڅ له تا پټ نهٔ دی
ولے څهٔ کړم په خوشحال بانډِ خاوند کړلے نادانه

سترگے دِ مستان دی خُما زړهٔ بښیښهٔ مهینـه
پړوکی پړوکی مهٔ شه چه ئے کُنج په کُنج وهینه
سپین صبا دِ گوره دَ تیکے په شفق بند کړ
جگی جگی جگی رائے واخله له جبینه
کښلی دی کهٔ گورے چه مخ پټ کله څرگند کا
گل دَ بهارنهٔ دے چه رازیږی له زمـینه
وارهٔ په سبب دَ بد اصلانو دَ هُنر دے
هر آفت چه گورے چه را پاسی له کمینه
مست په بهار راغلے په سرود دِ گوتے کښیښنوے
خو به لاؤباسے ډیر دِ ویاستهٔ له دینه
چرته لوئیدلے نوم دِ خور په جهان نهٔ وو
غوغا دِ شوه په ښهر چه ئے کوزه کړے له زینه
تل جام دے دَ شرابو ستا په لاس توبه په شونډو
دَ خلقو لړمون شین دے کهٔ پوهیږے ستا له شینه
حیات لایزال به دِ نصیب شی کهٔ باور کړے
دَ زړهٔ لیدونے دواړه کهٔ روشن کړے له یا سینه
دَ عشق دَ محبت دَ ناوی مهرما سـوا دے
اول ئے درته وایم چه ئے ورکړے له کا بینه
هرڅوک ئے په پته په تمتر کینے وی سا تلے
څهٔ بده بلا ده نهٔ پټیږی دَ زړهٔ مینه

کله منت اخلی دَ یوے ګیډے دپاره
هرچه همت ناک دی چه په کور لری جوینه
زانړے بطے ګوره چه په هرلوری غوغا کا
هیڅ درنهٔ پوهیږم چه په چرته ئے شاهینه
هرچه دانا یان دی په اَمان اَمان تیریږی
هئ توبه له دوره الامان له دے آئینه
نوم به دِ هرګز په ژبه وانهٔ خلی په عمر
دا یاری دوستی چه ستاخوشحال ته شوه مبینه

ستا په سترګو کښے فتنے کا ندِخوا بونه
تورے زلفے دِ هم ډیر لری تا بونه
کهٔ ته زرحجابه وُنیسے په مخ کښے
رابښکاره وی ستاجمال تر حجابونه
دَجنت حورے کهٔ وګوری ستا مخ ته
نور به واچوی له شرمه نقابونه
کهٔ شُغلے دِ رابښکاره شی له جماله
لور په لور به سر ځرګند کا آفتابونه
زهٔ چه ستا دَ بیلتانهٔ په لمبو وُسوم
نورم څهٔ دی دَ دوزخ په عذابونه
ستادَخیال میلمه م ناست ئے په کوګل کښے
تل م خوری دَ زړهٔ دَ غوښو کبابونه
تاوے ماوتاته ډیر خلے خولهٔ درکړه
دَ یارئ په کار کښے هم شی حسابونه
زهٔ وتاوته دُعا کرم تهٔ کنځل کړے
هم له تا ښائی دا هسے ځوابونه

تهٔ چه حال دَ خیل عاشق غواړے په شرح
بویه داچه خوشحال وُکښی کتابونه

ښځه بویه هوس ناکه، خنده رویه، مهر ژنه
پاکیزه په زیست روزګار کښے په ښهٔ بوئ باندِ مئینه
دَ صحبت په رموز پوهه، زړهٔ ئے خلاص له مکر دوهه
کم خوراکه، خوش پوشاکه، همیشه ناسته دننه
په وصال دَ یار خوشحاله یارئے خوښ له قیل و قاله
چه له یاره نه جداشی هم غم ژنه هم خیرنه

له نیکا نو همنشینه له بدانو په زړهٔ خوږ ینه
له موروالی ئې توبه کا کهٔ ئې مور وی دروغژنه

دَمیلمه په کارحاضره په ښخوالی ښهٔ دره
حق دَچارے په ځائے راوړی په رنځور باندِ پوښتنه

پاکیزه ئې دَکورصحن نهٔ په غولی کښې نور لحن
پرستارے ترے خوشنودے ښه دَهرچا په ساتنه

کهٔ داهسې ښوک پیدا شی دَخوشحال په لاسوراشی
هیڅ تقصیر به ئې ونهٔ کا دَ یارئ په پالنه

عارف سړے هغه دے چه ئې شناخت وشو دَځان
دَځان په معرفت کښې معرفت دے دَ سُبحان

چه ترس ئې دَزړهٔ نهٔ وی نهٔ عمل لری دَنیکو
په دائے نظر مهٔ کړه چه په یاد لولی قرآن

په کورکښې دِ بلادی دا دَنفس غلطے چارے
کهٔ تهٔ په ځان شیطان نهٔ شے بل هیڅ نشته شیطان

حرص مکړه هوا پریږده له هرچانه پریکړه طمع
بل نوم به په تانهٔ ږدم په ځان نوم کښیږده سلطان

چه خدائے ئې په لارنهٔ کا په ویل به په لارنهٔ شی
کهٔ پاسوے له ګوره وهغهٔ و ته لقمان

عیسیٰؑ په معجزه سره ړاندهٔ سړی بینا کړهٔ
دانائے په دُعا نهٔ شو په عمر یو نادان

کهٔ هیڅ ورځخه نهٔ وی غم دِ نهٔ کا کهٔ دانا وی
خوشحال ختک ګواهی لی دَ دانا نشته ارمان

ګوره راته ځهٔ وائی داستا دواړه چشمان
نورعالم نوربښکار کا مونږ دَدین او دَ ایمان

مری چه لیندہ وینی قارغهٔ ستا داخال د وروځیو
ناست دے تور قارغهٔ په څو په موتي د کمان
راغله په خندا خندا وړه وړه پو ښتنه
چا ورته وئیل دا په رقیب نهٔ کړم ګمان
رېتې رېتې اوښکے تل ساړهٔ ساړهٔ آهونه
ستا په درد و غم کښے زهٔ هم دا لرم سامان
نوره پیشکشي راځه نشته په فراق کښے
یار لره به وړمه دُرد ستړګو په سامان
یو زمان م نهٔ ځی هغه یار د زړهٔ له سره
څهٔ شی که ئے زهٔ په زړهٔ یادنهٔ یم یو زمان
پاتې یم له خپله یاره لرے لا ژوندے یم
خدائکو په دا خپل ژوندون هرګوره یم پښیمان
بیا به ئے لا کله دَ بهار په سپوږمۍ دریغه
وئیسم په لاس کښے تورے زلفے ډیر ارمان
خوښ اوسه خوشحاله دَخپل یار په درد وغم کښے
درد دَ یار دَ مینے لا بهتر دے تر درمان

کهٔ په هند کښے نشته سپینه هوسۍ سترګے مه جبینه
خدایه تهٔ وماته راکړے یوه سبزه نمکینه
په دوو زلفو عنبر پاشه په دوو شونډو شکرینه
چه هر ځائے وته ئے ګورم ښائسته ښکلی مهینه
هوس ناکه ښیوه ګره شوخه شنګه دل سنګینه
دَ یارئ په علم پوهه سخن دانه نکته چینه
درځ وشپه کا ځنے چارے
په خوشحال دَ ښلیو مینه

چه همیش دِ همنشین وی تور ماران ښهٔ دی دانه چه قرین وی بدکاران

هرچہ ستا عیب وتا وته ښکاره کا — په جهان کښې هم هغه ګڼړه یاران
په کردار کښې یاراغیار سره بېلیږی — تر یارانو ډیر لباس کا اغیاران
دَ کمذات یاری به هیڅ وفا ونه کا — لا په تیره بے نمازان او مے خواران
لکه تخم ،هسے بر، هسے ئے بُوټے — نهٔ ئے خوند مزکه بدل کا نهٔ باران
دَ زړهٔ راز وچا ته نهٔ ویلے بویه — چه دَ مزکے په مخ نشته رازداران
په قیامت به یوپه یو واړه ځواب لی — کهٔ میرړی ملخی پائمال کا شهسواران

دَخوشحال باندِ سلام بادشاه دَ وخت دی
په سپیرو ایرو لړلی خاکساران

کهٔ هرڅو ښائسته ئے نهٔ یوسفؑ ئے دَ کنعان
کهٔ هرڅو ډیر هوښیار ئے نهٔ مخے نے دَ لقمان

کهٔ هرڅو ډیر حشم لرے بادشاه دَ مملکت ئے
په زړهٔ کښې فکر وکړه څهٔ بادشاه وو سلیمانؑ

خوګښلی بنهٔ مخونه ځو هوښیار څو بادشاهان وو
چه راغلهٔ هسے لاړل اوس ئے نوم دے په جهان

یو نوم دے پاتے کیږی نور به هیڅوک پاتے نشی
په بد بدان یادیږی په نیکئی یادوی نیکان

کهٔ نوم دَ حجاج آورے، آورے نوم دَ نوشیروان
په عدل کافر ښهٔ شو، ظلم بد کړ مُسلمان

کهٔ ښهٔ کړے ساعت دادے چه په شمارئے دَ ژوندو
نهٔ سود نهٔ به فائده وی، کهٔ په ګور کښے کړے ارمان

کافر سړے هغه دے چه دَ نفس په هوا دروی
مومن سړے هغه دے چه تل غم کا دَ ایمان

هیڅ شک په دا کښې نشته چه په مرګ به واړه وُمرو
خو شک په دا کښې کیږی ځوک به مومی ګورستان

سخ به دَ هغهٔ وی چه ایمان سره ئے مرګ وی
ګورپه عزت بیامومی پسے لولی قرآن

وخت دَ خوانئ تیرشو اوس پیری راغله خوشحاله
نورکار و نه پریږده خو دَ ګور کوه سامان

لامنت لرم په دا هم له آسمانه
نندارهٔ د اباسین له میر کلانه
په تیراه په سوات په خوړه دره درشوم
بیام کوم لوری ته تهٔ بیائے آسمانه
لکه ګوټے هسے په حکم دَ چوګان یم
درست وجود پرهار پرهار یم له چوګانه
سرنوشتِ م له ازله مګر دا وُو
زهٔ به څهٔ لره ما نړه کوم له چانه
قدیمی دَ پښتنو جهل خرتوب وُو
اوس په طمع په حرص درومی له میانه
کهٔ رښتیا وایم شیرشاه دا هسے نهٔ وُو
لکه مونږ یو نهٔ پیدا له کوهستانه
پښتانهٔ چه بے ننګی کا خوک ئے څهٔ کا
ګورستان لره به درومو له آرمانه
دَ ختکو دَ نفاق له ناپوهئ
یا چه غم لرم له خپله خاندانه
چاته وایم خوبه کښم څهٔ هومره نهٔ دی
چه تمام شی له مذکوره له بیانه

دا داغونه چه خوشحال لری په زړهٔ کښے
رغیدل به ئے په تا کیږی سبحانه

مهٔ وے هسے کلی چه دَ چرګوکو لمے خورینه!
شل خمبے په کور کښے دَ نیستئ له غمه مرینه

بل فکرئے هیردے خو په غم دَ زرو پول دی
نر ښځے ئے واړه خو تنګے تنګے لرینه

ډیرئے ملکان دی پکښے ښهٔ ملک هغه دے
هرچه بے ننګی کا دَ چا بډے رشوت خورینه

کښینی په مسجد کښے دَ سودونو کا خبرے
یا دَ خور ولور دَ ولورونو وئیل کړینه

لس کالونه تیرکا په یوه جامه خیر نه
کوز وجود بربنډ په سر څهره کښیږدی زرینه

خاندی پروانۀ کا شرم نۀ لری دَ تیښتے
ډیرے بے شرمئ دَ ژوندون دپاره وهینه
جنګ لره چه ورشی نورځۀ هیڅ نۀ کا بے تیښتے
جورجاړ وسله تښتی سکه رورته نۀ درینه

هیجړے دَ شولو دَ سړی برکت نۀ وی
شل شی، شول شی، شوم شی چه هیش شولے کرینه

نور و ودانئ ویران ښۀ هر دے خوشحاله
لا ترے ویران مۀ شه ورځ په ورځ دۀ کهترینه

نس م آفریدے دے ځۀ غم نۀ لری دَ دین
ښۀ فکرے لړ دے ډیر دے بدو وَته شین
زۀ دَ درویزه غوندِ ایمان ښئیم وَ دۀ ته
دے دَ پیر روښان غوندِ دَ کفر کا تلقین
دوه شپیتۀ کالونه په حساب لرم خپل عمر
تور ویښتۀ م سپین شولام زړۀ نۀ دے هیڅ سپین
نشته هغه دُر دَ سرو یاقوتو په دبلی کښے
نه هغه نرګس دے نۀ دَ باغ هغه نسرین
زۀ بے غمه خوب کړم په پا ستۀ بالښت سرا یښے
یریواتۀ په ګور کښے چه ځما وو هم بالین
ډوبے شوے بیړئ دَ فنا په ا باسین کښے
ډیر پکښے لاهو شو چه ځما وو همنشین
ځۀ دَ غم پلو دے چه ځما په سترګو پروت دے
نۀ وینم په سترګو حقیقت واړه مبین
هومره رنځ په ځان کښے طبیبان په دا جهان کښے
مرم دارو هیڅ نۀ کړم په دا هسے کار نفرین

ولاړ ځائے ئے سقرشو مګر خدائے پرے کرم وُکا
نفس و شیطان دواړه له خوشحال سره قرین

نازنخرے مهرخندا فتنے جنګونه
دَخپل یار سره هم تازده دا رنګونه
کله کله خواپه خوا غاړه غړئ
کله تښته په دوو پښو په غورزنګونه
چه خُما سره ئے ناسته په پالنګ وه
اوس له ما په چرته لاړ په فرسنګونه
په لیدو پسے کچکول واخلی ملنګ شی
مینه کا داهسے چارے آهنګونه
په نصیب دَ روغو زړونو فراغت دے
په قسمت دَ خوږو زړونو الهنګونه
عاشقی به هغه کا ندی چه ترشا کا
زیست روزګار شرم پیغور ویره ننګونه
چه بوسے دَ جفا جوړ دَ خولے اخلی
ګوندِ اخلی دَ یاغیانو قلنګونه
څوک مایوس څوک په اُمید دیار دوصل
څوک پراته غاړه غړئ په پالنګونه
په لیدو به ئے دَ کور مړی سرهسک کا
که پرے دروی دَ پائلو په ژرنګونه
که پستے پستے خبرے دَ راز نهٔ کا
دَ جنت دَ حورو مهٔ وینم رنګونه
زهٔ خوشحال دَ آهو چشمے مینے سرکړم
دَ غرځهٔ غوندِ په هسے ګړنګونه

نهٔ دی لب دَ جانِ من
بنهٔ یاقوت دی دَ یمن
نن ما خپل ګنړے له طنزه
ماخو نهٔ زده هومره فن
بختور م ئے نوم کښیښی
لاکهٔ نشی دروغژن
څنړے تاؤ کاچین ئے ګورم
شی بنده در ته ختن
پښتنے په چین چین څنړے
بخښی چین تبت خُتن
ښے ښے څی په شین شین
بنهٔ غبغب بنهٔ ئے زقن
په ښنے فیض څنے زیږی
په زمین چه څی په فن

نهٔ ئے ملک نهٔ ئے لښکر نهٔ ئے ګنجونه
ترخانانو دماغی دی ښکلی جونه
که خانان په زر په زور په تُوره ناز کا
کښلی مخ لری شیوے غمزے غنجونه
یا دَ ښلیو دَ زړهٔ راڼئ دے چه م وُکوت
یا دَ لوئ دریاب په څو رنګه موجونه

ښوک به روغ سلامت پرېږدي په ملک کښې　　بیائې باندِ کړل تاختونو ته سرجونه
په رقیب شه په غماز شه په بدخواه شه　　چه به کښلیو لره ځی هغه رغځونه
بل سرمهٔ څه په دلبرو کښې ئې غواړه　　اُوهٔ ستوری دَ آسمان دولس برجونه
زهٔ امی په دا خبره نهٔ پوهیږم　　چه عالم ئې را ته کا په مخرجونه
په چاداد په لیه نمنځ کوے فلکه　　په چالونې په اوږیو په چجونه

دَ خوشحال خاطر ښیښه دے مات دِ نشي
ستا دَ سترګو مستي وړی په غوګنجونه

یار خما کړه دننه　　زهٔ ئې سر یم په غوښتنه
عجب حال را باندِ پیښ دے　　دروَمه هیڅ مکړه پوښتنه
دَ وصال په اوبو وُمری　　اورچه وُلګی په سینه
کهٔ په رنګ کښې زیړلیدهٔ شے　　ګنګو نهٔ ئې کور کمنه
کوم ماتم درباندِ پیښ دے　　دَ اختر په ورځ خیرنه

خوشحال تل په غم کښې ښهٔ دے
غم دِ نهٔ ځی له غمژنه

آفرین دِ په دا سرو سترګو خونخوارو　　چه بے تورو پرهارونه کا په خوارو
تورے سترګے ئې تورباز بانړهٔ ئې نوکے　　چه خما خاطر ئې یوړو په نوکارو
چه اُوچت اُوچت وهل کا هغه بازوی　　په خپل باز باندِ نظروی دَ بازدارو
دَ وربل په هر هر تار ئې زړونه بند دی　　مشاطه ورباندِ نور پیئی په تارو
په مذهب دِ عبادت مګر ګناه ده　　چه دِ هیڅ پوښتنه نهٔ شی دَ بیمارو
لا دِ پیئی دَ دواړو شوندو نه ښخیری　　په خواب دِ ژبے بند کړے دَ هوښیارو
خپل یاران به په پیغور کړے دَ وګړی　　چه دِ داد مهر نظر دے په اغیارو
په ښاشت کهٔ ښاشته تربناپیری ئے　　ولے دا جهل دِ بد دے ترګوارو
تل په تشو تسلو عاشقان تیر کړے　　تا څهٔ لږ غلولی نهٔ دی په دا چارو
بلبلان دَ ګلستان په مینځ کښے ګرځی　　ګرګسان ګرځی په طمع دَ مردارو
زمانه به ئې په سرګلونه نهٔ بږدی　　هغه سر چه سزاوار وی دَ پائزارو

طالبان ئې دَجمال لکه حاجيان دي
چه کعبې لره ورځي په لاروو لارو

نژدې يار سره رو رو خبرې کېږي
لرې يار وته وئيل شي په چيغارو

يک تنها ئې دَخوشحال خاطر يونۀ وړ
په جمال ئې زړونه يوړۀ دَبسيارو

آفرين دِ په ولول تورو سنبلو
چه ئې ځانئې دپاسه ونيوو په ګلو

ماچه ستا دَشونډو مئې سره مزه کړل
مستغني شوم دَجهان له واړو مُلو

کۀ په اصل پښتنه دَهندوستان ئې
دادَ ظلم خوئې دِ زده کړله مغلو

مګرمور دِ دَخطا دَملک هوسئ وه
چه دَمشکو بوئې دِ دروې له کاکلو

زۀ په هومره تمنّا کښې دا به څۀ شي
چه تۀ هرکله په هومره تغافلو

دَهرګل ثنا صفت کا په زر ژبو
په دا باغ کښې چه غوغا ده دَ بلبلو

دَخوشحال په زړۀ ئې هسې چارې وکړې
لکه بازچه زړکه يوسي په منګلو

بياله کومه لوريه هسې راپيدا شوې
چه خُما زهد و تقوٰی لره بلا شوې

ستا نظر لکه تور باز زړۀ مِ تارو دې
په تور باز دَتورتارُو غوښې روا شوې

په بار بار دِ دَخندا منت را باندِ
چه په ما دِ نظر و شو په خندا شوې

په فراق دِ خُما دواړه سترګې ګوره
ورخ و شپه لکه څڅوا کې په ژړا شوې

هغه شونډو چه دُرود و تسبيحات وې
راشه وګوره دَ ميئو دَ مينا شوې

وهرچا وته دِ مخ دَلاله ګل دې
کۀ خُما تر سترګو دا رنګه زيبا شوې

په باطن کښې دِ دَ زړۀ په سترګو وينې
په ظاهر کۀ له خوشحاله نه جدا شوې

بياله کومه لوريه بوئې راغې دَخزو
چه خاطرم په هائې هوئې راغې دَخزو

دا اُوړدۀ اُوږدۀ غمونه پريشانئ
چه خُما دي دائې خوئې راغې دَخزو

هم په دا به مِ دَ زړۀ پرهار کانړۀ شي
شکرشکر چه ئې موئې راغې دَخزو

په هرمخ باندِ څۀ ځنړې بنائست نۀ کا
لائق شوې يو يو روئې راغې دَخزو

چه په خيال ئې په سپين مخ باندِ ولوګړې
نوبهار ئې په هرسوئې راغې دَخزو

په دا کوڅې کښې چه مقیم شوم خلقه خکه     چه نګهت ئې په دا کوڅې راغې دَخنړو

بیا به هم دَ مشکو نوم په ژبه واخلې
چه خوشحال لره ئې بوئ راغې دَ خنړو

بندوبست دَکائنات دے په خبرو     یو ترسله صدقه شه سل تر زرو

دَهمت په بال وپر سړے الوزی     مرغۀ پورته الوائۀ کا په وزرو

ورته وایه توره کښېږده په صندوق کښې     هر سړے چه مړنے وی په تلبرو

یا دَ سپینې تورے مرد شه یا عاشق شه     چه یادېږے په بدلو په سندرو

دَعاشق بخره خواری زاری ناندری ده     دَ معشوقې څۀ پروا له مرورو

له یوۀ دریابه خیژی فرق ئې ډیر دے     کۀ نظر کړے دَ دریاب په مرغلرو

چه ئې غم دَ غلیم نشته بختور دے     خدایه ما کړے په شماره دَ بختورو

دَخوشحال ختک خوبنې په هغه وخت وی
چه بریښنا دَ سپینو توروشی دَ زغرو

پرے غوغا کا نړئ بلبلو     تل به وخت نۀ وی دَ ګلو

دا ګلونه مسافر دی     کال به تیر کا په راتللو

ستا په مخ به ئې نوشمه     ساقی مهر کړه دَ ملو

ځائیګی دِ وویشتلم     کم خطا ئې په ویشتلو

کۀ صورت ژغورے له غمه     سترګې نیسه له کتلو

دا دَ مهر وئیل پریږده     زۀ دِ خوښ یم په کنځلو

ماوے خوبه م لا سوزے     په خندا ئې وے تر تلو

نۀ به باز نۀ به شهند شم     نۀ به راشے په منګلو

وعده درسته کړه خولۀ راکړه
خوشحال نۀ دے دَ غلولو

چه م ولیدو په سترګو حال دَ واړو     مهر شانې قبلوی وبال دَ واړو

په جمال غره کۀ ډیر وبله تول شی     ستا جمال خجلوی جمال دَ واړو

دَکشمیر کۀ دَ فرخار کۀ دَ تاتار دی     بنا نشته څما بنۀ یار دَ سیال دَ واړو

ماﺋے بنه تحقيقي وکړه چه عاشق شي — په هجران باندې وخيږي حال د وا ړو
سل وسل خبرے کاندې مرګ ﺋے مه وه — په يوه خواب پوره کا سوال د وا ړو
چه ورتلۀ کا تلۀ به هم ورځنے کاندي — سلامت به پاتے نۀ شي مال د وا ړو
وعنقا وته به څۀ لره خوک دام بردي — چه پرے راشي خيرے کاندي جال د وا ړو
کۀ شيخان کۀ زاهدان کۀ عالمان دي — له عمل سره جوړ نۀ دے قال د وا ړو

چه ﺋے لافے دَ يارئ دَ آشنايئ کړے
وخوشحال وته بنکاره شوحال دَ وا ړو

چه په وار دَ رحيل راغے دَ وا رو — څۀ کسرئ اوڅۀ پرويز اوڅۀ خسرو
ناست په تخت خوک له منزله خبر نۀ وي — چه تخت څۀ رنګه په باد درومي په دَو
لوﺋے کور لره را دروي راشه ګوره — خوانان څۀ رنګه اَخته دي په خپل لو
چه م سازه کړه دونهه دَ ملنګئ — مافيها دَ زمانے شول راته جو
همۓ وينم همۓ اورم ترے تير يږم — چه په خنګ راته بَرَوه کا بو بو

دَ زړۀ نوﺋے بنۀ ياران ورځنے لاړل
دَخوشحال دَ زړۀ ژوندون وو په دا نو

څما خرابه دله تۀ يو څۀ رنګه خراب شوے
چه وُو درځه لاړل په هرځيز پسے کباب شوے
دَ مشکو دور تيرشو دَ کافورو دور راغے
چه نوم دِ دَ شباب وو په نامۀ دَشيخ وشاب شو
دَ باغ نرګس دِ هم لکه تازه وو هسے نۀ دی
دَ باغ دَ لاله ګلو دِ هم پاڼے پيچ و تاب شوے
دَ خولے حقه دِ ډکه په ګوهرو ده خالي شوه
په حُزن په حسرت دَ يوه هر دُرِّ ناياب شوے
په باغ به دِ چه کښليو بناشته بلبلو ژغ کړ!
يوه بلبله نشته ثمرے ۓ دَ غراب شوے

بیړۍ دِ دَ سینې په زور چه پاسه تله په غرونو
غوټه خوړې پکښې ګرځې اوس خسنړې دَ دریاب شو

مزری به دِ له ترسه په هیبت ژو په کوهسار کښې
نزدې درته و یغ ویغ کاله ګیدړ و لاجواب شوې

چه ډکې په بنومشکو په عنبرو هغه خولې وې
بدبوئې چارچوبئ دَ زمانې په انقلاب شوې

په عمر چیرې وینې وې بیابه هم چیرې وینبیرې
هئې هئې دَ خوشحال بخته ولې دا رنګه په خواب شوې

بیرې لړی خوشحال دَ آسمان نندارہ وکړه
چه څهٔ وې په کوم شمار وې دا زمان په څهٔ حساب شوې

چه مِ اوښکې هسې آل شوې | دوارہ سترګې مِ سرهٔ لال شوې
څهٔ په نور څهٔ پسې نهٔ دی | وارہ ستا دَ مخ په خیال شوې
لیونې شوم خوب مِ نهٔ شی | راته تهٔ پری مثال شوې
نور مِ محو شول له دِلـه | چه مِ تهٔ په زړهٔ نهال شوې
دَ زړهٔ داغ دِ مُبارک شه | چه مئین دَ شاه په خال شوې
خلق خوبښ ګرځي هوس کا | خُما زړهٔ ولې بدحال شوې
مګر نول دَ بیلتانهٔ دې | په ناله کښې لکه نال شوې

نورخوک هم شته دې اے غمه
کهٔ یوازې دَ خوشحال شوې

حُب دَ دُنیا څهٔ دې سر دَ کل وارہ بد یو
بده ژبه بیل کا، تاله خپلو له پردیو
هرچه غَل کا سیروی دَ هغو سره مل مشه
مل دَ غلو کا سیرو په شماره دې هم دَ دیو
هرچه بد شومت دی خپل شومت ورلره بس دې
تل به باندِ تاخت وی دَ خپل فعل دَ غدیو

یو نشته په زړکښې چه ئے خوئ دَ آدم زاد وی
هر چرته چه گورے خلق سرشو په بد یو
خاندی به دا دور لیونی په هوښیارانو
پیچے مسخرے کا بے خبر په بخردیو

دَ شهئ زلفو مختولو سرهوا پریشانو طولو
چه ئے لافے هر سرے کا عشق آسان نهٔ دے فضولو
خما راز مو په ملک خور کړو اے خما اوښکو پړدولو
په کوڅه کښې دَ دلبرو حساب نشته دَ مقتولو
تاسو مهٔ شوے سره تولے کوښے کوښے دَ زړهٔ نُولو
دا خبرے چه خوشحال زده
نهٔ دی دا دَ نامعقولو

دَ ښادمنو په خندا گو دَ غمژنو په ژړا گو
دَ رندانو په رندئ دَ شیخانو په تقوی گو
دَ وصال په سل خوښئ دَ هجران په زر بلا گو
دَ بهار په ښو گلونو دَ بلبلو په نوا گو
چه ترے سروُ نے هیڅ دی په هغه قد بالا گو
چه مکحولے دی له نازه په هغو سترگو شهلا گو
چه نرئ ترو یښتهٔ ده په هغه باریکه ملا گو
چه عاشق وریسے مرینه په هغه جمال زیبا گو
چه راځی دَ یار له لوریه په هغه بادِ صبا گو
چه پیغام راوړی دَ وصل دَ هغه قاصد په پا گو
چه دَ وهمه پکښې نشته دَ ښتینو په ښتیا گو
په دا هومره سوگندونه صد هزار کُله بیابیا گو
چه ترځان په تامئین یم
زهٔ خوشحال خټک په تا گو

راته مهٔ وایه په تا ګو — چه په تا نهٔ ګو په چا ګو
تهٔ خما دَ سترګو تورے — په دا تورو سترګو ستا ګو
مخ دِ ورځ زلفے دِ شپه دی — په صبا ګو په مسا ګو
په جهان کښے مِ خان تهٔ ئے — نهٔ چه نور په تا جانا ګو
یادمِ تهٔ ئے په خاطر کښے — هر زمان په خپل مولا ګو
ستا دَ پښو خاورے توتیا دی — چه ما ستا په خاکِ پا ګو
تمنّا لرم ستا ډیره — په دا خپله تمنّا ګو
ترخندا پورے دِ هیڅ دی — لال و دُر ستا په خندا ګو

یار خو ستا یم دَ چا نهٔ یم
زهٔ خوشحال ستا په لقا ګو

دواړه سترګے مِ چه ستا په مخ دوخته شوے
په لمنے کښے مِ اوښکے اندوخته شوے

په مانړے مانړے ئے خوره مزه ئے آخله
تهٔ خما دَ زړهٔ په وینو آموخته شوے

په لکهونو په کروړونو دِ بها ده
دَ یوسفؑ غوندِ په سهل فروخته شوے

ما وے تهٔ خما دَ تورے شپے چراغ ئے
ولے تل په بلے خونه اَفروخته شوے

چا دا اور درلګولے دے خوشحاله!
چه لاله غوندِ داهسے دل سوخته شوے

ستا په در دَ سرفرازو — تل سجود دے دَ بے نیازو
ستا ملالو سترګو پوچ کړو — واړه کار دَ سحر سازو
ستا یوه وینا تیرے کا — تر هزار سخن طرازو
سپین او سرهٔ دَ دُنیا دارو — دَ عشق ګنج دَ جان ګدازو
دَ خوشحالَ وئیل هم واورئ — راشئ اے نوا نوازو

سپینو وازدو لړه ورغله پیشو — خوله به ونیسی له وازدونه په خو
دعاشق په زړه کښې خیال دمعشوقې وی — دهندو په زړه کښې فکر دتېکو
دلولئ پرتو ګابش پیسه پرانزی — محبت ورسره نۀ شی بې پیسو
درباری ناپاکه ښځې چه اخته شی — لورا لور لونډان بولی په ګالو
په دربار کښې دِکم ذاته میشته نشی — چه میشته شی هغه خونه شی دسوُو
ورانوی دکور بنا دکس له ناوه — کور په کورئ دربار وی تګ و پو
په خالی کیسه به نه رسی تر کامه — څۀ حاصل کۀ بوعلی شی په کیسو
دهغو بخره خواری ده تل تر تله — چه زکوٰة خوری دکتاب په مسئلو
چه په هره کوڅه ګرزی هرزه کار شی — تردا هسې ګشت زنځیر بنۀ دے په پښو
یو خوشحال خټۀ زړۀ کباب نۀ دۓ له تانه
تا دخلقو زړونه کښیښول په لمبو

عجب کار دے ستا دَشونړو — بنۀ روزګار دے ستا دَشونړو
پرے پنړاؤ دے دځوانانو — څۀ دربار دے ستا دَشونړو
په کالونو له ما نۀ ځی — بدخمار دے ستا دَ شونړو
لکه ستا زلفینې زړۀ م — په کنار دے ستا دَشونړو
دیمن یاقوت آبدار دے — کۀ آبدار دے ستا دَ شونړو
په صورت کښې م ځان خۀ دے — یو یادګار دے ستا دَشونړو
په هجران کښې سرے سرے اوښکے — دا نثار دے ستا دَ شونړو
ځکه ځان هسې عزیز دے — پرے ګذار دے ستا دَ شونړو
چه دَخضر ترے مایه ده — چشمه سار دے ستا دَ شونړو
ځان بے ستا له شونړو یائی — شرمسار دے ستا دَ شونړو
دَخوشحال خټک په زړۀ کښې
انتظار دے ستا دَ شونړو

کۀ دَزړۀ خۀ خوترس پار دۓ څۀ به بنۀ ؤو — لږ دِ مهر په ماخوار دۓ څۀ به بنۀ ؤو
زۀ چه ستاله غمه زار کړمه په در کښې — کۀ دِ غوږ ځما په زار وے څۀ به بنۀ ؤو

چه په ما باندِ پیغور کا ندی په عشق کښې
ستا له حُسنه خبردار وې څۀ به ښۀ وُو

هر چه تن دَ زهد لاف کا په جهان کښې
په لیدو دِ پرهیزګار وې څۀ به ښۀ وُو

پس له مرګه مِ یو هسې مکان ګور شوے
چه پرے تل دَ ښکلیو لار وې څۀ به ښۀ وُو

ستا په کوڅې کښې ډېر کوټه تازي پراته دی
زۀ هم کله دَ دوئ په شمار وې څۀ به ښۀ وُو

ستا په غم به په دا لږ عمر مو رنشي
دَ خوشحال عمر بسیار وې څۀ به ښۀ وُو

کل قربان شه ترجمال دَ ښو یارانو
ورځاریږه ترمقال دَ ښو یارانو

داصورت مِ څۀ ژوندے په ارواح نۀ دے
تل ژوندے دے په وصال دَ ښو یارانو

په خاطر کښې مِ بل حُب محبت نشته
پکښې ځائے دے دَ زړۀ خیال دَ ښو یارانو

کۀ دوئ ستا په رضا درومی یانۀ درومی
تۀ هر کار کړه په اقوال دَ ښو یارانو

په جهان کښې دَ هر څۀ مثال موندۀ شی
ولے مۀ غواړه مثال دَ ښو یارانو

په هر زیان زوال راضی یم په دُنیا کښې
خو دِ نۀ شی یو زوال دَ ښو یارانو

مرګه ستا علاج کۀ شي په هر څۀ وکړے
چه قتلان کړے په هر کال دَ ښو یارانو

په جهان کښې کۀ څۀ دی خوښۀ یاران دی
خبردار شه په احوال دَ ښو یارانو

ګوښې ګوښې ځان اوزړۀ لره راحت دی
کۀ ئے ګورے خط وخال دَ ښو یارانو

دَ یارانو دَ یارئ په لذت پوهـ دے
چه ثنا کاندی خوشحال دَ ښو یارانو

لیونی شول پښتانۀ په منصبونو
خدایه ما ژغورے له هسے غضبونو

دَ کنګاش علم دَ چادے دَ تورزنو
لکه څوک لولی قرآن په مکتبونو

دَ کنګاش له علمه هیڅوک خبر نۀ دی
خبردار یم دَ هر چا په مشربونو

پښتانۀ لره لوئے عیب دے کۀ ئے ګورے
چه نازیږی دَ مغل په لقبونو

شرم ننګ نام وناموس ئے په یاد نۀ دی
خو وئیل کا دَ منصب دَ ذهبونو

دَ مغل سره لیدل په طمع مۀ کړه
کۀ کیدے چرے په نورو سببونو

خټک واله بلنځه ښه ځما ترملا ده
نۀ ښیوه د نوکرئ په قصبونو

دَ بادشاه دَ زندان شپه ځما په یاد ده
چه تمامه شپه مِ تله په یاربونو

پښتانهٔ کهٔ جنګ مغل سره په تیغ کا هرختک نیوے مغل تر جلبونو
دَختک دَ ننګ جرګه نشته خوشحاله
راوتلی دی له کومونسبونو

ماخوب لیدهٔ په خدائے کوچه زهٔ تهٔ سره یُځلا یُو
خورې خورې خبرے دَ زړهٔ حال وبله وا یُو
ماځنه کتاب دے پکښے واړه غزلونه
تاځنه مینا ده دَګلزار په تماشا یُو
لاس ترلاس نیولی سره ګرځو کښینو پاځو
خپله خوشحالی هوا هوس کړو په خندا یُو
پیاله کړے راته ډکه زهٔ ئے ستاله لاسه واخلم
دَ شونډو بوسه راکړے بیا په نوره تقاضا یُو
مطرب راته له ورایه په تارونولیندئ ا یښے
په بم په خیر جار ووځی مونږ ئے محو په نوا یُو
تهٔ ګل واړه خوبئ لرے زهٔ واړه کامرانئ
ښادئ ته مخامخ غم واندوه ته شا په شا یُو
ناګاهه له دے خوبه دَ سحر په وخت راویښ شوم
نهٔ تهٔ وے نهٔ دِ وصل زهٔ دا کار سره جُدا یُو
څو پایم په دُنیا کښے دَچا کار راسره نشته
یو زهٔ یم یو دِ غم دے سره دواړه خوا په خوا یُو
خوشحال یوازے نهٔ دے څو په ملک کښے عاشقان دی
په خوب په بیدارئ کښے سره دواړه بادپیما یُو

ماهغه سړے شمارلے دے په وُرکو چه په خوئ کښے بے وفا عادت په سپکو
هغه باز ترمښکیرکه لا بتر دے چه غوټے ئے دی په شلانډو یا په مږکو
غافلان له دے دُنیا سره کا لوبے لکه پیغله جن بازی کا په لوښکو
عراقی په اشارت کښے ځان خرګند کا تهمتو سم په لارے نهٔ ځی بے چابکو

چه نے ډیرے اندیښنے دَ دُنیا نشته　　زهٔ په دا خبره خوښ یم له هلکو
له عالم سره خواږهٔ نهٔ خوږی له کبره　　لا تر روغو نه بهتر دے کار دَ پکو
کهٔ په شهد ئے ساتے مزه ئے نهٔ وی　　ناشپاتئ دَ سمرقند دَ هند په مزکو

دَ خوشحال وئیل کهٔ دُر قیمت بها دی
ونا پوهو ته بتر دے تر کُنجکو

موښ. ه مئے پرست یُو　　دَ ازل په میئو مست یُو
په سما مو قدم ایښے　　لکه مزکه هسے پست یُو
هغه خولے وته نظر کړه　　هغه هسے نیست وهست یُو
کهٔ په تخت دپاسه کښینو　　بیا یو مات کچکول په دست یُو
څوک دَ وصل خبرے کاندی　　موښ. ه خوښ په خپل برست یُو

تل موزږهٔ په داخوشحال دے
چه خپل زړهٔ سره پیوست یُو

ودِ نهٔ وینم زهٔ ستا وصال په سترګو　　کهٔ بے تارادرومی بل جمال په سترګو
میلمستیا مِ دَ زړهٔ وینے ورته کښیښوے　　چه میلمه مِ شوَ یارخیال په سترګو
هغه دم مِ دَزړهٔ داغ له دله دور شو　　خوچه راغے ستاد ورو څوخال په سترګو
چه ډیر خلق سره ناست وی عجب بنهٔ ئی　　دَ منینو سره قیل وقال په سترګو
په غمزو په کرشمو په مکیزو نو　　نن دِ نهٔ وینم په ملک کښے سیال په سترګو
عارفان دَ قناعت په کُنج توانګر دی　　چه ئے نهٔ راځیٔ دَ خلقو مال په سترګو
دَ مکے دیوال به نور په خولهٔ یادنهٔ کړم　　ماچه وُلیدهٔ دا ستا دیوال په سترګو
ستا په کوتو کشیده رومال چه راغے　　زهٔ له مینے مړ م ستا رومال په سترګو
هغه مخ چه به مِ تل لیدهٔ اوس ګوره　　چه ئے نهٔ وینمه ماه وسال په سترګو
چه بے ستا له زیبا مخه بل مخ ګورم　　زهٔ به چیرے کښیږ. دم دا وبال په سترګو
وبنهٔ مخ وته له ورایه ځلبلاند شم　　لکه وُوینی لوغسی تال په سترګو

نورعالم خودَ یارانو نا ز په سر وړی
تل نازونه وړی دَیار خوشحال په سترګو

هرنااهل مزه څۀ زده دَ خبرو
دَ خبرو لذت بنۀ دے تر شکرو

چه دانائے په دانش سره انشا کا
یوه بنه خبره بهٖه ده تر زرو

بے اُستاده شاعری بےلارے تلۀ دی
یا وه کوئے گرځی په لورو په ژورو

تفاوت دَخاص وعامو سره ډیر دے
برابر نۀ دی شبه دَ مرغلرو

دَ شهبازو دَ عنقا برابر نۀ دی
مچ او ماشی چه الوزی په وزرو

په چا دم آسمان به ناست لکه عیسیٰؑ وم
کۀ آسمان نه الوتۀ شوے په خبرو

عام به چیرے دَ خوشحال په وئیل پوهٔ شی
دَ گوهرو قدر څۀ زده بنیبنه گرو

یا په زړۀ کښے مهرځائے وے دَ بُتانو
یائے ورکړے صبوری وعاشقانو

یا حیران عاشق په مرګ وُمرچه خلاص شۀ
یائے هومره جور نۀ وے دَ چشمانو

چه ظاهر باطن ئے دواړه سره جوړ وی
څۀ عجب خاصه مشرب دے دَ رندانو

چه په یار ریسے روغ ځان سیژ په اور کښے
زۀ په دا رسم منیٖن یم دَ هندوانو

دَخپل یار په بدو خاندم هوسیږم
چیرے زړۀ نۀ شی راښۀ دَ رقیبانو

چه مِ نوم په ژبه واخلی هسے خوښ یم
لکه ژغ دَ خلاصی وُشی په بندیانو

بیا به صبر دَ خوشحال ختک اولجه کا
راځرګنده شوه سره کړے خولۀ په پانو

یوځۀ داغ لرم په زړۀ دَ نادُرستو
ددے داغ علاج ونکړ سُستو پستو

یائے عین په زړۀ وخوری یا زخمی ځی
چه هوسئ په یرهٔ وُرسی دَ چستو

دَ بے ننګو بے ننګی مِ به ارمان شی
خدائے به واړه چارے ښے کا وراندِ روستو

دَ بنزو او بنګے مِ وینے شی ترے خاځی
دا دَ تن جامه مِ نۀ وی دَ اغوستو

دَ درد منو حال دردمن په قیاس معلوم کا
کۀ ئے وائے بنکاره نۀ وی په تندرستو

دا غزل چه دَ خوشحال ورشی ترسرایه
بنۀ یاران به ئے ناره وُکا دَ لوستو

اے چه ستا دَ یار له غمه اِستِعفا ده
کۀ سینه دِ له زنګاره نه صفا ده

هیڅ دَخپل مئین دَ بدو غارت مشه
دَ اغیار تروفا بنه دَ یار جفا ده

دَ یار بد هم لکه ښهٔ هسې حساب کړه — هم په دا دَ عاشقئ اِکتفا دَه
کهٔ ئې نیش زیاته نهٔ کړې ترنوشه — بیهوده دِ طمع کړې دَ شفا دَه
مخامخ دَ یار وغم ته وُدریږه — کهٔ دَ غیرو آشنایئ وته قفا دَه
آه کهٔ یو ځله مِ وُلیدې په سترګو — چه مِ تل تل ستا له غمه واسفا دَه

دَ خوشحال دَ رنځ علاج به ځوک په څوکا
چه زګیروے ئې له طبیبه په اِخفا دَه

اے چه اصل دِ یوه قطره منی دَه — په دا هسې رنګ وجود دِ څهٔ منی دَه
راشه زړهٔ وربوړے مهٔ تړه نادانه — کهٔ ئې ګورے دا فانی دُنیا دَنی دَه
عارفانو وته تلخ شوه تر زهــرو — په غافل باندِ شیرینه ترګنی دَه
له ګدایه نه لاځهٔ خوځ جار باسی — تل تشنه ناسته په وینو دَ غنی دَه
روغ ئې واړه په کمند دَ مکر بند کړهٔ — آزادی کهٔ ځنې شته دَ لیونی دَه

تل دِ خوش دَ خوشحال زړهٔ دَ عشق په کاروی
خو یو عشق دے چه دَدهٔ خوښی هنی دَه

بیا مِ څهٔ دَ نورو یار بولے تورمهٔ کړه — په ماخوار دِ ظلم ډیرو کړو نورمهٔ کړه
واړئ سپی غوندِ مِ خو په کوځه ګرځی — خو ژوندے په جهان پایم بیغور مهٔ کړه
سرتر پایه اخلاصی یم په یارئ کښے — په ناحق مِ لباسی بولے زورمهٔ کړه
چه په دوؤ پیالو دَ میو بدمستی کا — هغه ځوک په مجالس کښے میخور مهٔ کړه
یو عجب دَ میو جام دے ساقی راوړ — خداوندئ په دا مینځ کښے نسکور مهٔ کړه
چه حرمت دَ عاشقانو پکښے نهٔ وی — په هیڅ رنګ مِ په هغه کلی کور مهٔ کړه
آشنائی دَ ناکسانو دَ ځان غم دَه — ناکسان له خپله ځانه خسور مهٔ کړه
زهٔ چه نن دَ بیلتانهٔ په اور وریتیږم — دَ دوزخ لمبه نسبت په دا اور مهٔ کړه

راز دَ عشق دے فهم دارا وسه خوشحاله
ښکارو نه ئې په خپل خوئ و زور مهٔ کړه

بے اخلاصه دَ یارئ څهٔ جواز نشته — خود پوهیږے بے اودسه نماز نشته
دَ دانش مرغهٔ مِ هسې پورته لاړ شهٔ — چه هورے دَ کته بازو پرواز نشته

کۀ هرخو ئے په سور اورکښې لوليه کړے    دَ ياقوت دَ اوبو دار دَ گداز نشته
هغه باغ چه تل ما وا وو دَ بلبلو    اوس په دۀ کښې دَ بلبلو آواز نشته
دَ زړۀ راز وچاته وُوايم حيران يم    په هرلورى چه نظرکړم همراز نشته

توکلت على الله وبنا يوه دۀ
دَ خوشحال دَ زمانے سره ساز نشته

باغ وے دَ گلونو پکښې ناست وے زۀ او تۀ
گل وے غوړيدلے بانډِ نماست وے زۀ او تۀ

زيړه زعفرانى شوے يا گلگونه معطره
لاس ترلاس نيولى سره زغاست وے زۀ او تۀ

سپينه خولۀ دِ راکړے بيا م هم درشخه غوښتے
نورخواستونه نۀ وے خوداخواست وے زۀ او تۀ

تل م درد وغم وے دَ زړۀ کاست او مهرمينه
تل په دا دُنيا داکم وکاست وے زۀ او تۀ

رنگ دَ غماز ورک شه راست روزگار دِ دناراست کا
ځائے دَ ناراست نۀ وے سره راست وے زۀ او تۀ

نمرخيژى خوشحاله چه خروس دَ سحر بانگ لى
شرط دَ پټ نياز دے چه برخاست وے زۀ او تۀ

په دا ساه نشته ويساه    هر دم تۀ وايه الله
هرنفس يو غنيمت دے    پهره دار اوسه دَ ساه
دَ سالک په وئيل کار کړه    کۀ دَ ځان نۀ ئے بدخواه
دَ سالک وئيل هم دا دى    تۀ ئے وايه بے اِکراه
چه له خلقه نه زړۀ پرے کړه    زړۀ پيوند کړه له الله
کۀ هوادِ کړله ترکه    نور قبول ئے دَ درگاه
بادشاهى به دَ هرتن کړے    کۀ دَ خپل تن شے بادشاه
مُوتُوا قَبلَ اَن تَمُوتُوا    په دا راز شه اِنتباه

په جوار کښې د قربت کښې ... د کم شناختو نشته راه
د بیدارو دِ نصیب وی ... بنه دولت د سحرګاه
څهٔ اُمید دُور و دراز کړې ... په دا لږ عمر کوتاه
تل توبه کوه خوشحاله
چه دِ محوه شی ګناه

په جهان کهٔ لویه چار ده د میرښکار ده ... کهٔ دا چار کوړې هر کار لره بکار ده
څو قابو تالاش دا وړه دی په ښکار کښې ... چار د جنګ د مړنتوب کهٔ د بیکار ده
ورته هیڅ د ښکار د ذوق خبرې مکړه ... د هغهٔ سړی چه طبع د بې کار ده
آلوده دی په پیر غم د عمر ورځې ... چه په شمار د عمر نهٔ ده ورځ د ښکار ده
په خوشحال باندِ د ښکار هوا ژوندون شی
مرده دِله کهٔ په تا باندِ بیکار ده

په خولهٔ کلمه لولی مونځ روژه کاندی کا فرشته
دعوې کا د شیخئ تر شیطانه لا بتر شته
منطق معانی لولی، درس، فتوی، قاضی ګری کا
اکثر په دا فرقو کښې کهٔ ئې ګوړې کون خر شته
له کوره لوټه واخلی استنجا لره روان شی
تقوی تر هسې حده په اولجه ئې وری کهٔ زر شته
د بل کره چه ورشی په خپل روئے بندیان پرانزی
په ځان باندِ چه راشی کله روئے د پیغمبر شته
یوځائے آلوده نهٔ دے په دا هسې درویشانو
په دا دور کهٔ ګوړې دا ناپاک په هر کشور شته
بادشاه قطب اقطاب دی امراکان چه ور ته ګرځی
کړې خیرې تړلے د هر چا په سر میزر شته
چه خاص د زمانے دی حال ئے دا دے نور وګوری
د غواؤ د خرو کلی خالی نوم باندِ بشر شته

چه حال دَ پرهیزګارو سراسر واړه دروغ شو
رښتیا غواړې له چا نه چرته پاتې دا هنر شته
نهٔ مهر محبت نهٔ مروت نهٔ وفا صدق
عالم سره برهم دے خو دا دور دَ قمر شته
آشنا له هیڅ ما نهٔ شی که ښخوا آشنائی بنه وه
چه اوس له چا آشنا شی نو دے خورنګه خطر شته
تر دے ژوندیو ښهٔ مړهٔ پراتهٔ په ګورستان کښے
چه نهٔ ئے دا مکرونه نهٔ دا فعل نهٔ دا شر شته
دروغ وئیل هغه کا چه ئے ویره وی یا طمع
خوشحال په دا ارنهٔ دے حق به وائی خو ئے سر شته

په دُنیا کښے نعمتونه رنګا رنګ شته
دَ دیدن دَ نعمت کوم نعمت همسنګ شته
عاشقی دِ هغه کا چه لیونے وی
دَ هغو غرض پرے څهٔ چه ئے فرهنګ شته
ما په عشق کښے دا همه واړه ترشا کړه
تهٔ لا ښهٔ ئے چه دِ غم دَ نام و ننګ شته
ما وے زهٔ به دَ زړهٔ حال ورته عرضه کړم
یوغما زئے تر شیطان بتر ترخنګ شته
په آشتئ کښے کُشتن دے عاشق وژنی
همیشه ژوندون هم دا دے چه ئے جنګ شته
خدایه زر یوبل اورنګ لره پیدا کړه
په جهان کښے بنا دی نشته چه اورنګ شته
په وار وارئے دَ خوشحال خاطر صیقل کړم
ولے بشکته ئے لا پاتے څهٔ خو زنګ شته

پروت یم ستا په در کښے په خیرات مِ یاد لره
دا نا ښاد خاطر مِ په پوښتنه ښاد لره
خو کړے ظلم جور په څو رنګه طور طور!
وکړه فکر غور اندیښنه دَ داد لره
خیال دماغ دِ ډیر دے تر حساب تر شماره تیر دے
مرګ قیامت دِ هیر دی ښه دا هومره یاد لره

مرم په انتظار کښې نهٔ شي هيڅ په زاري زار کښې
سخت څما په کار کښې ترسندان فواد لره

شرع شته کتاب شته دَعذاب دَخوئ عذاب شته
بنهٔ کهٔ څهٔ ثواب شته تهٔ داخوئ معتاد لره

خدائے وته څرګند دے چه دَخپل خاطر پسند دے
څهٔ مهر پيوند ئے هومره دا عناد لره

خوئ خصلت چه ستادی واړه پټ نهٔ دي پيدا دی
مهر ناز کهٔ دا دی تهٔ ئے تل بنياد لره

ملک شته کښته پورته کورم ستا دَستر کو لورته
مهٔ درومه بل لورته ځانئے په دا سواد لره

زلفې دِ زنځيردی پکښې ډير زړهٔ ونه اسير دی
خوک په دا تدبيردی چه خوشحال آزاد لره

په دا کلی کښې خوک نهٔ لرم نيکخواه
چه رښتيا وايم هم دا لرم ګناه

له څوا نمرده په خندا په هوس درومی
له نامرده جدا کيږی په آه آه

لکه سورے وړاندِ روستو راسره ځی
چه وهر لوری ته ځم صبا بيګاه

لکه لاس په شمار دَ زرو پول تو ريږی
په دوستئ ئے سړے هم شي روسياه

زهٔ په رغم دَ صوفي خراباتي يم
چه دَ مکر ذِکر کا په خانقاه

دَ زاهد په کار کښې خو رنګ اشتباه دی
دَ اوباش په کار کښې هيڅ نشته اشباه

کهٔ خوک زړهٔ سيزی په ما ځانئے دَ زړهٔ سود یه
کهٔ م لاس وے زهٔ به وئے ووم اِکراه

چه ئے لاف دَ پاکئ کړے څهٔ ناپاک شهٔ
راشه ګوره چه څهٔ حال لری تباه

ولئے سر په عاشقئ کښې درته څهٔ دے
درته وايم کهٔ باور کړے يو ګياه

رعيت لکه عيال ساته خوشحاله
په ياغي باندِ مهم کاندي بادشاه

په هر کار کښې مصلحت شته
خپل پردی ته نصيحت شته

چه لربر له مصلحت شي
کله خير برکت شته

دَ سړی هومره بنا دی ده
چه همت دَ سړی نهٔ وی
سرهاله په تنه بنهٔ دے
دَ سړی چه عزت نهٔ وی
په صحیح غنی هغه دے
دَ نیستئ ئے اندوه مهٔ کړه
چه صحت دَ صورت نهٔ وی
دین دُنیا دِ مبارک شه

چه په زړهٔ کښے ئے همت شته
مهیا ورته نکبت شته
کهٔ دَ سر سره عزت شته
دَ ژوندون ئے څهٔ حاجت شته
دَ هر چا چه قناعت شته
کهٔ په تن کښے دِ صحت شته
څهٔ پکار کهٔ دِ دولت شته
کهٔ دا نا سره صحبت شته

اوس یاری مهٔ کړه خوشحاله
دَ یارئ سره آفت شته

په خپل قسمت راضی شه تل دَ بل قسمت مهٔ غواړه
فراغت دِ مُبارک شه کهٔ دِ ونیوهٔ دا دواړه

دَ ژوندون پیوند تړلے په یوهٔ اومهٔ سپږسی دے
دَجهان غمونه پریږ. ده نور به څهٔ ژاړے ځان ژاړه

خپل دی کهٔ پردی دی قلم وُخکوه په واړو
دور دَ فساد شو په خپل څوئ رور مهٔ ویاړه

هر چرته چه گرځم ځنے هسے چارے وینم
کار مدار په نن شو دَ صبا اندیښنه لاړه

گورم کوم یو باد دے چه په درست جهان راوالوت
زړهٔ په چا بنهٔ نهٔ شی لباسی شهٔ خلق واړه

ما وے کلے میشت دے چه په کلی بانډ راغلم
تش کنډر پراتهٔ دی خالی مینه ده اُوجاړه

هر چرته چه گرځے په لاحول ترے تیر یږه
سل بلا په زړهٔ کښے سل دانے تسپے په غاړه

ډیره سودا وشوه سل دعوې د سود په طمع
وخت د مازیګر شو دِ له دا دوکان وُنغاړه
تل وائے خوشحاله چه دُنیا وته به شاکړم
لاخو دا دُنیا ده مخامخ درته ولاړه

په هره تنګه خوله کښې برابر نهٔ دی خواږهٔ
په څنو کښې حلوا دی خوک نبات لری نا بږهٔ
سمے کړے ډیرے په خپل زړهٔ لرے یا رخپل ته
څکه دِ د زلفو ویښتهٔ سم وی هم کابږهٔ
بخت دے چه ئے اوس ستا د لبانو سره څښمه
تا رِم چه دننه زړهٔ په سرهٔ پیزوان څابږهٔ
زهٔ د زړهٔ بدخواه وُم ما پرے وُکړه پرهارونه
څهٔ لره رِم دے د یار غمزو لره لابږهٔ
اورلرے په مخکښے چه په تا مئین کیدلم
ما په دا بله لمبه ننه زړهٔ څابږهٔ
زلفے ئے تورمار دی زهٔ ئے هسے وخوړلم
مرم را باندِ نهٔ ځی د دم ګرو هیڅ پابږهٔ
مست یم مے پرست یم زهٔ خوشحال په خرابات کښے
له میُو به وا نهٔ وړم کهٔ رِم وژنی په وړابږهٔ

تورا وربل دِ په سپین مخ را آشفته شهٔ
عاشقانو دِ آرزو وُکړه لیدن ته
څهٔ خوسوله غرغے هسک کړه وئے ګوره
تا چه زلفے پیچا پیچ سره ولول کړے
هغه دُر دِ مخ کا کهٔ ئے تمیز شته
ستا دیوال مګر د عشق په خښتو روغ دے

سمن را زردِ په سنبل کښے نهفته شهٔ
چه د کښلی مخ صفت دِ شنفته شهٔ
لاله زار دِ په جوار کښے شکفته شهٔ
په کلونو کښے یو تور منګور ځفته شهٔ
چه ئے پاسه د تیکے په تار سفته شهٔ
چه ئے شیخ ترسیوری کښیناست آشفته شهٔ

څکه هسې رنګه بوئ لري خوشحاله
دا غزل چه دَ بهار په وخت ګفته شئ
تورۀ چه تیریږي خوګذار لره کنه
زلفې چه ولول شي خوخپل یار لره کنه
ولې راته وائې چه په کښلیو نظر مۀ کړه
سترګې چه پیدا دي خو دیدار لره کنه
شیخ دِ مونځ روژه کا زۀ به ډکې پیالې اخلم
هرسړې پیدا دې خپل خپل کار لره کنه
تا وې چه څما دَ خولې بوسه لکه دارو ده
غوا هم دا دارو دَ زړۀ پرهار لره کنه
وینې م دَ زړۀ خورې مګر نورڅۀ لره نۀ دې
زړۀ څما پیدا دې تا خونخوار لره کنه
څۀ ژړا فریاد کړې دَ شمئ دَ تورو زلفو
تۀ ورتلې پخپله دې تور مار لره کنه
خود به ستا ترمخه دَ ګیاه غونډِ څرګند شي
ګل دَ لاله راوړه خپل رخسار لره کنه
مې شته چنګ ونې شته دَخپل یار سره خوشحاله
خپل بیاض په لاس کښېئده ګلزار لره کنه

| | |
|---|---|
| تونګران په ملک ومال لري تکیه | درویشان په ذوالجلال لري تکیه |
| دَ عارف ژبه نۀ بندکړه له مقاله | عالمان په قیل و قال لري تکیه |
| دَ عاشق سره چه هومره استغنا کا | بنائسته په خپل جمال لري تکیه |
| کۀ تکیه ده خو تکیه دَ یوۀ خدائې ده | چه په بل نۀ کړې څۀ حال لري تکیه |
| دانا یو دې تکیې ګوره دَ وګړی | چه په ستوري چه په فال لري تکیه |

دَ دُنیا تکیې نۀ ولیدې په سترګو
نور به چا وته خوشحال لري تکیه

ترهرچا دے حُما یار بنـهٔ
شیرین لب وشکر بار بنـهٔ

تر سنبلوئے بنے زلفے
تر گلونوئے رخسار بنـهٔ

تورے ستر گے تورے وروځے
تور گیسوئے تار په تار بنـهٔ

تنگه خولهٔ ئے نیسته هسته
لکه خولهٔ هسے گفتار بنـهٔ

لکه دُر هسے غا بنو نه
لا تر دُرو سپین هموار بنـهٔ

تر ویښتهٔ ئے ملا نرئ
تن ئے لا تر سپین چوتار بنهٔ

قد ئے ښهٔ تر سروِ وُنے
لکه قد هسے رفتار بنهٔ

چه هر ځائے وته ئے گورم
سر تر پایه پریوار بنـهٔ

خدا یه ماتے هغه خولے کړے
چه به وائی هندوبار بنـهٔ

هومره کلی ډیر ښهرونه
پکښے نشته یو نگار بنهٔ

چه پکښے خوارهٔ یاران دی
پیښور تر هر دیار بنهٔ

په موسم دَ ښو گلونو
نر هرځهٔ دَ میرے ښکار بنـهٔ

ښهٔ په هند کښے چنبا گل دے
تر دا گل دَ وطن خار بنهٔ

دَ سرائے قدر نورچا نهٔ زده
په خوشحال دے تر فرخار بنهٔ

تا وژلی هم دَ خپله لاسه خوښ کړه
کهٔ دِ زړهٔ باندِ یخیږی زړهٔ پرے یخ کړه

رقیبان دِ لکه سپی دی په کوځه کښے
چه انګنړ دِ پاکیزه شی وا ړه چخ کړه

دَ جنت میوے م نورو ته ښخښلی
کهٔ گیے حُما په خولهٔ سیب دَ زنخ کړه

هغه وا ړه مهتیا دی په هجران کښے
چه واعظ وما ته شرحه دَ دوزخ کړه

کهٔ پرواز دِ دَ شهباز دَ شاهین نهٔ دے
دَ مطلوب په لوری پرونه دَ ملخ کړه

چه دِ قدر دَ وصال نهٔ وُ و خوشحاله
په فراق دَ ښو یارانو اوس آوخ کړه

چه م ستا کوځه مأوا شهٔ
غم حُماله زړهٔ سوا شهٔ

ستا کوځه لکه بهشت ده
په بهشت کښے م زړهٔ وا شهٔ

زړهٔ م ستا دَ مخ په دور
له چمنه بے پروا شهٔ

هغه یار چه دَ خلوت وو وهرچا وته رسوا شۀ
عالم درد لره دوا کا دَ یار درد خُما دوا شۀ
شانه رو وهه په زلفو پکښې زړۀ مِ سرهوا شۀ
چه تۀ مهر باندِ نۀ کړې
خوشحال څکه بې نوا شۀ

چه دَ دوا رو سترګو شیر درځخه شته پرې نے خوره له ځانه سیر درځخه شته
آئینې وته نظر کړه ګل به څۀ کړې چه خپل مخ دَ ګل په څیر درځخه شته
کۀ دِ زړۀ خُما په زړۀ دے چه نے توِل کړے تولوه لے چه کشمیر درځخه بشته
ډیر به ماغوندِ په عقل تیرو بیر کړے چه وربل دِ تیر وبیر درځخه شته
تل دُعا درباندِ کا څنې خبر یږه یو څوخوار له دِله هیر درځخه شته
کۀ جمال کۀ ناز وخیال کۀ کرشمې دی دا ترشمار ترحساب تیر درځخه شته
لږ دَ مهر دَ وفا خوبونه زده کړه دَ جفا خوبونه ډیر درځخه شته
عاشقان غریبان وژنه صرفه مۀ کړه دَ غمزې تیرۀ شمشیر درځخه شته
کله ډک مِهر دَ خولې په خوشحال وکړه
خو کۀ تش مهر برځیر درځخه شته

چه دا هسې رنګ ماتړې کړې بې ګناه ویره نکړې دَ عاشق دَ زړۀ له آه
چه په هرلوری روانه په بنیوه شې ورسره خُما دُعا دروې همراه
چه دِ هومره ډیر دماغ وته وګورم بل دِ سیال په جهان نشته بې بادشاه
معشوقه مِ دَ عاشق غندنه نۀ کا ګل بورا وته ونۀ وے توره سیاه
یا په ما باندِ منینه کړې دلبره یا مِ مینه څنې ماته کړې اللّه
چاته حال دَ زړۀ معلوم کړم خبر نۀ یم یو نیکخواه په جهان نشته بې بدخواه
رقیبان دِ غوغا کا پروا مِ نۀ شي شیر به کومه اندیښنه کاله روباه
په یوۀ ګذارې درست مقصود پوره شو
چه نګاه ئے په خوشحال وشو ناګاه

چه له هرچا طمع پریکړې سلطانی ده کۀ دِ زړۀ په خاموشۍ کړې سبحانی ده

دَحاتم دَ سخاوت خبرے مۀ کړه
لا پہ دا کښے هم دَ طمع نښانی ده

پہ خو رنګه دَ یارئ صفت کیږی
زبانی یاری نا نی یاری جانی ده

ترجانی یارانو هرڅۀ صدقه کړه
هم پہ دا سبب یہ کار دُنیا فانی ده

دَ دُنیا پہ پریشانئ کښے جمعیت دے
دَ دُنیا پہ جمعیت کښے پریشانی ده

چہ له دوسته له دښمنه ښۀ سلوک کا
دَ هغو سړیو ښۀ زندګانی ده

چہ پہ کور کښے مِ څۀ ؤو تر وار و تیر شوم
وخپل یار وته مِ هسے مهمانی ده

پہ زرګونو کتابونه ملا لولی
الف بس کۀ ئے غرض مُسلمانی ده

پہ نادان باندِ هم رحم شته خوشحاله
معذرت دَ نادانو نادانی ده

چہ دا هسے ئے آغازه عربده کړه
مګر تشه ئے له میو میکده کړه

عقل ډیره شعبده لری پہ میو
ساقی تار پہ تار ئے هره شعبده کړه

ښۀ جمال لره پیدا کړه څما سترګے
له غه پسه ئے جمال مشاهده کړه

یو ځل بیا له زیبا مخه پلو واخله
دا پہ غم کښے پراتۀ لا پہ غم زده کړه

ستا له غمه چہ ډیر ډیر همیشہ ژاړم
دَ وړو سترګو مِ خجله نربده کړه

دَ ویښتو لو آه چہ ولګی ښۀ نۀ دے
لا دوخته ئے دَ زړۀ له حاله زده کړه

دَ قلم له سره تور لوګے روان شو
چہ خوشحال دَ دے غزل مسوده کړه

څۀ دَ بدو ژغ وو چہ ما ښام را باندِ وشۀ
تندر وو یا توپ وو پرے مِ تخنے تخنے زړۀ شۀ

څۀ خوښی دَ دۀ وه چہ بیا زر پسے اندوه وو
چاوے چہ پہ رنځ کښے معظم پہ خوب اُوده شۀ

دا ژوندون هیڅ نۀ دے چہ مِ ساه وینی داخلق
زړۀ پہ ځان پوهیږم اوس مِ کار لکه دَ مړۀ شۀ

ما وے زړۀ مِ سنګ دے چہ پہ هیڅ بہ نرم نشی
راشه کۀ ئے ګورے پہ ژړا ژړا اوبۀ شۀ

ما دَ معظم په ليدو مينه ما ته نۀ کړه
خۀ دَ قضا رنځ وو په هفته کښے خۀ وو خۀ شۀ
رنګ ئے ترخوئ بنۀ وو خوئ ئے لا بنۀ وو تر رنګه
ګل وو دَ ګلا بو شګفته شۀ نور په تلۀ شۀ

دريغه دريغه دريغه کۀ ئے مرګ په بدليدۀ وے
خو به م پرے ورکړل ولے مرګ ميلمه دَ دۀ شۀ
زوراوستم نۀ وو نۀ خۀ جنګ تورے نيزے وے
بل علاج ئے نۀ وو دَ دۀ مرګ دَ خدائے په کړۀ شۀ

زۀ يوازے نۀ يم ډير عالم پسے کباب دے
آه دِ پسے کيږی روزی نۀ وه روزی نۀ شـۀ
بنۀ تاريخ ئے راغے "بے بدلـه معظمـه"
خوشحال دَ دۀ نيکۀ دے دَ نيکۀ ئے داغ په زړۀ شۀ

چه بنياد دَ عاشقئ چا کا وَه
دا ئے خۀ کړۀ په داکار نۀ پوهيدۀ
په جهان ئے يوه خۀ بلا پيدا کړه
يوه خدايه کورتۀ وران کړے دَ هغـۀ
دَ هغۀ جهان دِوزخ په غوږ و آ ذرم
دا دوزخ م په دا سترګو وليدۀ
خوک ناحق دَ بيلتانۀ له لاسه ژاړی
آشنائی دَه چه تاختونه کا په زړۀ
دَ هلک له لاسه والوزی مرغئ
په ژړا ورپسے سرۀ کا دوه ليمۀ
هغه وخت چه دَ زانګو او دَ وُنړی وو
په مرغئ هيڅ نظر نۀ وو دَ دۀ
خولونيږی آشنائی ئے پرے ډيريږی
درومی درومی په اوږو کښے بنۀ ويښتۀ
دَ وصال قدر غمژنو دَ فراق زده
دَ تشنه ژوندون په خۀ دے په اوبۀ

په حد ونو سره ولاړ واوس خوشحاله
په کوم لوربه سره مومو زۀ او تـۀ

خما عشق په هغه شان دے لکه وو
ستا خاطر هغه سندان دے لکه وو
کۀ تۀ هرڅو بد قولی او بد عهدی کړے
قول عهد م همان دے لکه وو
خرخشے دِ لکه وے په هغه شان دی
فتنه ګر دے سُور پيزوان دے لکه وو

دَ رقیب خبره مهٔ نغوږه اے یاره — چه رقیب هغه شیطان دے لکه وو
دَ بنړو په ناوکیو دِ غلبیل کړ — نښانه م درته ځان دے لکه وو
په خاطر باندِ م داغ دے ستا دَ لاسه — ولے هسے بے درمان دے لکه وو
بل ګمان فکر خاطر لره درمهٔ وړه — خوشحال ستا دَ بندګان دے لکه وو

چه دِ زړهٔ هسے پړے نازکوه دلبره
په خوشحال دِ خاطر ګران دے لکه وو

څو راسره خلقه جفا ډیره هغه کس کړه !
خدائے م په داخوئ کښے په دهٔ مینه یو په لس کړه

زار دَ خوار عاشق دے دَ محبوبے څهٔ پروا ده
زهٔ وغم ته روغ یم تهٔ تل خاندهٔ تل هوس کړه

زړهٔ ئے دَ کافرے خو په خولهٔ کلمه لولی
څهٔ ئے را ته ستائے مالیدلے ده نور بس کړه

ګرځی په ګلونو کښے ګندګی وریسے غواړی
څهٔ ئے په جهان کښے بده بخره دَ مګس کړه

بنهٔ چه را پیدا شوے دَ بهار زیړیه ګله
تل دِ یادونه عندلیب په هر نفس کړه

لیږدی کاروانونه صبا کیږی اے ساربانه
پا سه دَ شتر په غاړه پورے اوس جرس کړه

څه هغه شهباز شه چه ئے ځائ په سردروے
نهٔ لکه دَ کلی قارغهٔ ګرځه غم دَ نس کړه

بخت دے کهٔ طالع دے کهٔ داخپله فقیری ده
خدائے م چه شړئ برابره دَ اطلس کړه

قدر دَ خپل ځان دَ عافیت ورځنه نهٔ وو
ځکه عاشقی هسے آغازه بوالهوس کړه

نورو حریفانو وارو ډکې پیالې نوش کړې
بنهٔ چه دِ خوشحال پیالهٔ ډکه په بکس کړه

څوجفا راسره ډیره هغه کس کړه
خدائےم مینه په دهٔ باندِ یو په لس کړه

بنه چه راغلے دَ بهار زیر یه ګله
اندیښنه دِ عندلیب په هر نفس کړه

دَګلزار په ګل غرض نه کا ګَل غواړی
په جهان ئے بدهٔ بخره دَمګس کړه

کهٔ زهٔ خوار دِ دَګلونو لائق نهٔ یم
ستاله باغه عنایت دا خاروخس کړه

درست عالم په دا خبره خبردار دے
چه بلبله خپلے ژبے په قفس کړه

تهٔ ئے شناخت علم ادب لره پیدا کړے
نهٔ چه ګرځه بیهوده چارے عبس کړه

دَ ژوندون په قدر هیڅ خبردار نهٔ وو
عاشقی م چه آغازه بوالهوس کړه

کله سول کله ژوندون بخښل وماته
دَ عشق اوره په ماچارے دَققنس کړه

دَدُنیا غمونه لړ نهٔ دی خوشحاله
نن دَ یار ومخ ته ګوره واړه پس کړه

چه په عشق کښے ئے ونورو ته پیغور شهٔ
اَخ چه لاس په لاس په دهٔ پورے دا تور شهٔ

محتسب چه په احداد وو دَمستانو
دَ رندانو سره ناست دے باده خور شهٔ

چه پرون م فاسقانو سره جنګ وو
نن هغه تر عاشقانو لاخهٔ نور شهٔ

چه غیبت ئے بداوهٔ دَبل تر زیانه
راته ګوره په غیبت دَ پلار و مور شهٔ

کهٔ دَ بڼ یرے په وکښل ئے ورته وایم
نصیحت دَ نیک خواهانو باندِ اور شهٔ

ګوره څو عالم به لاندِ کا تر چلو
نن چه دا دریاب راوخوت موج ئے زور شهٔ

صنوبر چه هومره ډیره لوئی غوښته
ځکه هسے په باد تهٔ په باد نسکور شهٔ

چه ئے زړهٔ ترکا نړی سخت هغه م یار دے
بدے بخرے څهٔ ځما کا نړے په کور شهٔ

تورے سترګے ئے بلا دی عاشق ګوره
په بلا باندِ ورد رومی کروکور شهٔ

دا دَخیل عمر دلیل وکړه خوشحاله
چه لاله په باغ کښے وغوړیدهٔ خور شهٔ

چه ګټل خورول بخښل کا خوان هغه
چه تورهٔ لری دَ تورے خان هغه

کان دَ لعل دَ یاقوت دَ ګوهر څهٔ دے
چه احسان ترے پیدا کیږی کان هغه

چه ئے ته په کیږه وخورے حبطه شی — دَ مجلس سره چه خوړ شی خوان هغه
که دَ مال دے که دَ ملک دے که دَ لیچو — چه ئے توان دَ چا پکار شی توان هغه
په تمامه شپه په ورځ په میاشته کال کښے — چه دَ خدائے په یاد و دروی آن هغه
چه دِ خوک دَ وړاندِ روستو ځی داخهٔ شی — په تنها وجود چه شان دے شان هغه

ونورچا وته وران مهٔ وایه خوشحاله
چه په قول عهد وران شو وران هغه

ځان چه پیژنی کهٔ کورے بنهٔ هغه — چه ناحق په ځان غره دے خهٔ هغه
واړه زړونه فراغت وی په بناد ئ کښے — چه په غم کښے مردانه شی زړهٔ هغه
ملامت لره ئے نور عالم پیدا کړ — ملامت لره چه روغ دے زړهٔ هغه
یا یاری یا اغیاری ده کهٔ ئے ګورے — په دا دوه کښے نهٔ ته دا شوے نهٔ هغه
چه ترتانه وړاندِ وروستو ځی ملهٔ نهٔ دی — چه په لار درسره سم ځی ملهٔ هغه
چه په عشق سره ژوندی دی هغه نهٔ مری — چه بے عشقه ژوندی ګرځی مړهٔ هغه
چه دروغ ترخولهٔ وباسی کله خولهٔ ده — چه رښتیا ترخولهٔ وباسی خولهٔ هغه

هیڅ حجت له هیچا مهٔ کوه خوشحاله
هرچه تا وته څوک وائی ته هغه

خهٔ لره م زړهٔ وړے چه دَ زړهٔ ساتل دِ نهٔ زده
مست یم مستی کړمه کنړه هر هنر م بنهٔ زده
تل په او بنکو وینو همیشه ژړا آهونه
نور راخبر نهٔ شول یا م ستر ګو یا م زړهٔ زده
ذکر فکر مونځ روژه طاعت ورلره بویه
شیخ ملا زاهد عابد مونی په میٔوخهٔ زده
کله دَ طوطیانو په ګفتار کښے دا لهجه ده
راشه کهٔ ئے ګورے زړګے تا کله دا تلهٔ زده
روغ عالم به چیرے دَ دردمن په حال خبر یږی
درد چه په چا تیر دے په دردمنو هم هغهٔ زده

څۀ زړونه ئے وړی، ستا بارخو پریشانو زلفو
بسه وه دا خبره چه یا غلهٔ زده یائے ملهٔ زده
ستا دا سور پېزوان چه فتنه کړدے بے حسابه
څو رنګه فتنے چه په جهان دی واړه دۀ زده
چیرے به له دِله یو ټک مهر را برخیر کړے
تل دِ کۀ دا هسے دَ لاسے تشے په خولهٔ زده
څۀ پوښتے خوشحال دَ بیلتانۀ په اِشتیاق کښے
سترے په منزل یو هیری ترے په اوبهٔ زده

چه پیدا چیرے په ملک کښے یو حبیب شۀ
لکه خار ورته په څنګ کښے بل رقیب شۀ
محمدؐ ته ابُوجهل نصیحت کا
راشه کوره څوک رنځور شۀ څوک طبیب شۀ
دَ دانا په خپل وطن کښے قدر نۀ وی
دُر هالهٔ قدر پیدا کړو چه غریب شۀ
په چمن کښے رنګا رنګ ګلونه ډیر دی
دَ زړهٔ داغ م دَ لاله دَ زړهٔ نصیب شۀ
کۀ ئے رنګ و بوئ و ګل نۀ وے ورکړے
مبتلا به باندِ ولے عندلیب شۀ
راشه تور و سپین دَ سترګو ننداره کړه
هغه یار راسره لا تر دا قریب شۀ
چه پرون راسره یار وو خبر نۀ یم
نن له مانه بیا ویزار په کوم تقریب شۀ
تنا ؤونه ئے دَ زلفو دی دا زړهٔ م
لکه ملک دَ یاغی لاندِ تر تخریب شۀ

چه ئے پرېښوده یاری دَ لیونیو!
ګمان مۀ کړه چه خوشحال ختک لبیب شۀ

چه م زړهٔ پرے ښهٔ کیدهٔ له واړو بد شۀ
ښهٔ خو دا چه اوس یوازے دَ احد شۀ
کۀ ژوندون دَ خلقو دا دے چه لیدهٔ شی
ښهٔ و ما ته مړے خلقه دَ لحد شۀ
دَ دُنیا یاران م وُلیدل په سترګو
هر سړے ځما په سترګو لکه دد شۀ
نۀ حیا شته نۀ وفا شته نۀ خپلوی شته
خلق واړه په معنیٰ لکه مرتد شۀ
چه ئے نن ګانده له ما سره خپل قوم کا
مګر دا جور له قومه په احمد شۀ
تفحص دَ تور و سپین نشته په چا کښے
دَ همه عالم په سترګو کښے رمد شۀ
نور به چا ته یادوم چه رد ګمراه دے
چه پیدا ځما له ځانه خلق رد شۀ

فرزندان چه مِ له کیږے نه پیدا دی ‌ ‌ ‌ ‌ یوځ ځماله ناخلفو نه کبد شهٔ

په طالع په بخت دَ مال وملک ځښتن دی ‌ ‌ ‌ ‌ بخت هغه دے چه په بخره دَ بخرد شهٔ

له هغه بخته ځما توره بلا ده ‌ ‌ ‌ ‌ چه له هره ناهمواره په مدد شهٔ

چه دَ پلار له ځانه ښهٔ ځویه پیدا شی ‌ ‌ ‌ ‌ تهٔ به وائے چه ژوندون ئے مجدد شهٔ

چه قابل ئے پیدا نشی په اولاد کښے ‌ ‌ ‌ ‌ کهٔ هزار ځویه دَ پلار روی بے ولد شهٔ

دَ بهار ګلونه هیڅ دی چه تیریږی ‌ ‌ ‌ ‌ ښهٔ هغه وما ته ګل دَے چه سرمد شهٔ

کهٔ په ذات کښے دَ خوشحال آل واولاد شته ‌ ‌ ‌ ‌ په صفات کښے لَمْ یَلِدْ وَلَمْ یُوْلَدْ شهٔ

یخ دَ نمروتا ته نهٔ دری خوشحاله
په داخهٔ چه یو څو ورځے منجمد شهٔ

ښو په باغ کښے لا یو ګل دَ نو بهار شته ‌ ‌ ‌ ‌ دَ بلبلو دَ طوطیانو پرے چیغار شته

نن دِ غم له ما نه ځان ساقی کهٔ ښهٔ کا ‌ ‌ ‌ ‌ چه په سیل دَ بهار راسره یار شته

چه له یاره سره مست دَ ګلو ګشت کړم ‌ ‌ ‌ ‌ محتسب کهٔ رانږدے شی پائیزار شته

شیخ ملا دِ ځما غم په بهار نهٔ خوری ‌ ‌ ‌ ‌ چه رباب و سریندے غوندِ غمخوار شته

نهٔ به زهٔ دَ میو جام کښیږدم له لاسه ‌ ‌ ‌ ‌ نهٔ ځماله پارسایئ سره کار شته

ما وخپلے پارسایئ ته رخصت ورکړ ‌ ‌ ‌ ‌ په دا نورو پارسایانو م اوس پدار شته

ساقی بیا ځما دَ ښهٔ خبر واخله ‌ ‌ ‌ ‌ لا یو ښو په کوڅو پا تو پرهیزګار شته

ګل و مُل ساز و سرود ساقی سرے سترګے ‌ ‌ ‌ ‌ لا به ډیر عالم رسوا کا چه دا چار شته

چه په هره پیاله عقل له ما رزدو ئي ‌ ‌ ‌ ‌ دَ ساقی منت را باندِ په بار بار شته

دَ ګلونو په موسم کښے خوار هغه دے ‌ ‌ ‌ ‌ چه ئے نهٔ پیاله په لاس نهٔ ئے نګار شته

نن هغه شاهِ جهان دَ زمانے دے ‌ ‌ ‌ ‌ چه دسته ئے دَ ګلونو په دستار شته

چه نا اهل په غفلت وربا ندِ نهٔ ځي ‌ ‌ ‌ ‌ خکه وصل دَ هر ګل په څنګ کښے خار شته

دَ بهار زیبا ګلونه سوداګر دی ‌ ‌ ‌ ‌ لخلخه به څنګے پیری چه خریدار شته

نن خوشحاله دَ زړهٔ داد دَ عشرت ورکړه
داڅو ورځے غنیمت دَے څو ګلزار شته

ښو په باغ او په بوستان کښے لا لاله شته ‌ ‌ ‌ ‌ دَ بلبلو دَ طوطیانو پرے ناله شته

نن دِ غم له ما نه لرے لرے گرځي
چه په وخت مِ دَ بهار په لاس پياله شته

کهٔ مِ يار په لاس باده واخلی ساقي شي
بڼے مِ دارشي چه ئے زهد صد ساله شته

راځئ وُبنسيه چه خُم ترپسنوئے پريوزم
کهٔ په دهر کښے څوک ما غوندِ واله شته

دَ بهار په زيبا گلو ډير ويرېږم
چه باران شي دَ باران سره ژاله شته

دَ بهار په سيل تل درومه خوشحاله
يو څو ورځے چه دَ گلو پرکاله شته

چرگ دِ خپل چرگ والے کا کهٔ ئے رضا ده
چه له بازه بازی کا دَ دهٔ قضا ده

هغه چار به مخامخ په مخه ورشي
چه دَ چا دَ هغے چارے تقاضا ده

څوک به خوښ سره پرتهٔ رنگ په جهان کښے
دا دَ ځايه دَ دے دهر اِقتضا ده

تيره چار چه يادوی فائده ئے کومه
ودانا ته مضا واړه بے مضا ده

دَ کمان لرے به تار په تارِ خورے کا
دَ يقين اندېښنه بهه تر بيضا ده

دَ خوشحال په وئيل غوږ او فکر بويه
چه موندنه دَ خبرے په اِمضا ده

چه مِ وليدهٔ دَ زړهٔ په سترگو خپل زړهٔ
دَ خپل زړهٔ غوندِ مِ ونهٔ ليدهٔ بل زړهٔ

عاشقی دَ خدائے بلا ده عاشق مهٔ شه
څوک په سرو سکرو تو اېښے لری تل زړهٔ

په وئيل وئيل مِ هيڅ تقصير ونهٔ کړ
کهٔ ستنيږی له دلبرو په وئيل زړهٔ

عاقبت به آفت سر لره پيدا کا
چه جار وُزی دَ بُتانو په بورجل زړهٔ

ورئے واچول دَ زلفو زنځيرونه
کهٔ هرگز آموخته نهٔ وو په تړل زړهٔ

دَ خپل سر په مهرهم دا هسے نهٔ وی
لکه خوښ شي دَ دلبرو په کنځل زړهٔ

ډيرئے صبر شکيب وکړ نهٔ پائيږی
نور له تنه جدا کيږی په نيول زړهٔ

دَ خوشحال ختک فرياد له نورو نهٔ دے
په دهٔ هومره چارے وُکړے واړه خپل زړهٔ

چه وايم هغه نهٔ کړه دا ځما ځويه گمراه
غوولی دِ پرے نهٔ شي يا خوما گنړی بدخواه

کۀ کار په دوئ نۀ شي په شماره دي دَ غوولیو
کمے دے دا دَ دیو کۀ حُما دے دا گناه

کۀ ما دَځان بدخواه گنړی دا لا بله بلا ده
هیځ پلار به په جهان بدخواه دَځویه وی آه آه

کۀ پلار دَچا مزرے وی مزرګتے ورځنے زیږی
حُماځویه وګوره دَ جیفے ګیدړ روباه

څو ډیردی کۀ قابل وے دا به څۀ بلا بنۀ کاروو
یو شیر دَ درګه بنۀ دے نۀ ګیدړ پکښے پنجاه

دَ نورو نوم څۀ اخلم دَ تومے بیوجه څو دی
یا عاق یا عاق ته روغ دی خو دَ واړو مخ سیاه

حُما په نامۀ زرشول دَ بی بی په ذات زرنیخ شول
زرنیخ په نرخ دَ زروکا قدرت لری اِلٰه

هرکارئے په تقلید دے تحقیق نۀ لری په ذات کښے
نۀ نام نۀ ملګری شته هومره ګنج هومره سپاه

ارمان ارمان چه زوړ شوم یو قابل ځویه مِ نشته
چه زۀ خوشحال دُعا کړم په صبا او په بیګاه

چه تاو ته نظر کړم نورِ م هیردی بنائسته
په طور دِ مئین کړم ګنړه ډیر دی بنائسته

هم ځان راته بنکاره کا هم م ورک شی زرله سترګو
په دا کلی کښے واړه پری خیر دی بنائسته

تلخئے دَ هجران بده بلا ده عاشق وژنی
چه دائے را په یاد شی څۀ ګنډیر دی بنائسته

یاران لری زړګونه دَ هر چا سره سازباز کا
په قول په وعده څکه تیرو بیر دی بنائسته

تل جور تل خاتل ستمونه په عاشق کا
په دا واړو کارونو کله سير دی ښائسته
دَ چين اوَ دَماچين م اوريدلی دی په غوږو
په سترګو م ليدلی دَ بونير دی ښائسته
خواني لاړه خوشحاله راوړه زر که عاشقي کړے
يا زر دی ياخواني چه ورته زيردی ښائسته

چه پرېوزي څوک له پانړه موميائی ورلره بويه
په کور کښے چه تيارهٔ شي روښنائي ورلره بويه
چه کار دَچا مشکل شي په تدبير وبله کښيني
دا کارخهٔ آسان نهٔ دے دانائي ورلره بويه
په کانړي کښے مرآت شته دَکيميا بوټے په غرهٔ کښے
طلب چه دَدے کار کا بينائي ورلره بويه
کهٔ لور دَ اورنګ زيب وی معشوقه په اصل لويه
دا کارئے منظور نهٔ دے پارسائي ورلره بويه
کهٔ هرڅو ښائسته وی معشوقه په هُنر پسنده
دا کارئے هم پکار دے بخت خائی ورلره بويه
کهٔ څوک ښائسته غواړی په کوڅه کوڅه ډِګرځي
په هر ښهر په کلی ګدائي ورلره بويه
يوزړهٔ دَخوشحال نهٔ دے چه جهان پکښے ليدٔ شي
دَ هرچا زړهٔ مرآت دے صفائي ورلره بويه
حيران يم نهٔ پوهيږم چه له ياره مخ پوښل څهٔ
اغيارو ته په قهقه لاله ورايه خنديدل څهٔ
کهٔ نهٔ ئے وی په زړهٔ کښے دَ عاشقه سره مهر
سکه دهٔ وته دا غنج ودا دلال اودا کنځل څهٔ

هغهٔ چه لیدلے دَخپل یار بنائسته مخ دے
کهٔ حُورے کهٔ پری وی وبل مخ وته کتل څهٔ

بنهٔ ئے دِ وئیلی چه زړهٔ یودے یار دِ یو وی
بنهٔ ده داخبره چه سریوا وسودا سل څهٔ

زار ژړا هغه کا چه دَ یار له مخه دُور وی
وخت دَ یار دَ وصل کوک په کوک نارے وهل څهٔ

خوشحال دِ بنهٔ چه مړ کړتهٔ په کوم توکی دلګیرے
تر سر دِ صدقه شم ګوندِ تا ته چا و ئیل څهٔ

خپله پوهه به لرم خپله لره    وهر چا ته خپله پوهه ده کره
کهٔ فاسق یم کهٔ فاجر یم دَخپل ځان یم    دَ زاهد دَ عابد څهٔ دی راسره
لیونے کهٔ مسخره دے وعالَم ته    عالَم هم وی لیونی ته مسخره
په معنیٰ پانړے ګلونه دی خبرے    دَ سړی کرده دَ وَنے ثمره
نن یوازے یک تنها له یاره بنهٔ یم    خوک دَ غیرو دَ وهم نهٔ وی راکره
دَ نور چا غرض پرے نشته چه صرافی    هم هغه زده په سره په نا سره
په بنوره مزکه کښے کله شی ګلونه    درته چاوے چه ګلونه پرے کره
شاړے تل په کُن پره ګرځی خوشحاله
مړنے لیندے به ځئ په سر پره

خوارهٔ عُمر غوندِ تلنه کوے بنه    په مدت دَ دیدن ژمنه کوے بنهٔ
په ناستی دِ رغیدن دَ بیمار وشی    په ولاړے پښے پوښتنه کوے بنهٔ
خویٔ دِ درست دَ ترهیدلی غرځهٔ واخست    وړاندِ ځے بر تشا کتنه کوے بنهٔ
دا دَ زړهٔ بنهرم ستا دے چه په سترګو    باندِ هر کله ختنه کوے بنهٔ
په خولهٔ ما سره دروغ دروغ یارئ    ویزارئ دَ زړهٔ دننه کوے بنهٔ
هم په خورنګه غمونه باندِ کښیږدے    بیا ګیله له دے غمژنه کوے بنهٔ
په زمان کښے بنهٔ ګلزار دَ وصال نهال کړے    بیا په خپل لاس ئے وکښنه کوے بنهٔ
وصل هجر و دا دواړه په خپل لاس دی    چه ما نړه له خپل مینه کوے بنهٔ

دَخوشحال په زړه دِکښیښودل داغونه
بېړې دَ مالګو دوړونه کوې بنـــــــــه

خوله مې غوښته له نګاره رانهٔ کړه
ماوې درومم ستا له دره دُعا راکړه
صبوری له جفا کاره یاره غوارم
په یوه جلوه له ورایه رغیدې نور
دیوې غمزې په طمع ورته ګورم
په اُمید وُم چه یوه پیاله به راکا
وې ئې دربه کړم بوسه دَخوږو شونډو
ګلدسته ئې چه له باغه وه ونیلې
هسې نهٔ چه ئې دَ زړه دلاسه نهٔ زده

دَرقیب په خوله شوه آرې رانهٔ کړه
په فریاد او په چیغارې رانهٔ کړه
رائې وکړې خنې چارې رانهٔ کړه
داځما ستر ګې بیمارې رانهٔ کړه
عمر تیر شو په دا لارې رانهٔ کړه
هغه مستې شراب خوارې رانهٔ کړه
رانزدې نزدې شوه بارې رانهٔ کړه
کهٔ ئې ورکړه وربیارې رانهٔ کړه
دَ لاسه لرې تیارې رانهٔ کړه

زهٔ خوشحال دَ یوې کښلې په طلب وُم
دا فلک لرې بسیارې رانهٔ کړه

خاتمه کهٔ دَ سړي په خیریت دَه
په زحمت کښې ئې نخوت له سره وُځي
هر زحمت چه دَ سړي په وجود ورشي
په یوه تبه چه لږه په چا ورشي
په هرچا باندِ چه ډیره تبه ورشي
هغه کس ولی دَخدائے دې ګمان نشته
غم بنادی چه وسړي وته رسیږی
په بنادئ کښې دِ ئې شکر سړې کاندی
چه دا دواړه چارې لري حبیب الله دے

ترصحت ئې چار بهتره دَ زحمت دَه
رنځوري نافي دَ کبر دَ نخوت دَه
معافي ئې دَ ګناه په روایت دَه
هغه هم دَ ګناهونو کفارت دَه
په صحیح چه دغه لار دَ مغفرت دَه
دَ هرچا چه صبوری په مصیبت دَه
همګی واړه له ځایه په قسمت دَه
په غمونو کښې دَ صبر چار فرحت دَه
په وئیل نهٔ دَه داچار په عنایت دَه

وار په وار به په خوشحال باندِ ورد روي
هره چار چه دَ محنت یا دَ راحت دَه

دَآسمان په حکم څهٔ فتنه برپائے دَه
نهٔ زده چاچه قراري ئې په کوم ځائے دَه

بندیوان ئے اورنګ زیب لره روان کړم    نندارہ م په هر ښهر په هر سرائے دہ
ښتانهٔ م چه حال ووینی کباب شی    په لیدهٔ م دَ هرچا ژړا هائے هائے دہ
لوئے هلک م ننداره ولره راد رومی    دَ هندو دَ مُسلمان ناره وائے وائے دہ
زهٔ هرچا وته موسیر م ترے تیر سیر م    چه دَ دواړو اندیښنه راته نمائے دہ
نهٔ یوازے په ما ظلم ستم وُشو    زمانه دا هسے تل کا په خپل رائے دہ
په هرځائے م په څوکئ راځی فوځونه    دبدبه م دَ زمری یا دَ همائے دہ
په ولاړ کښے هاتی شمار په یوهٔ غرهٔ دے    اوچه پر یوزی په دوه غرونه ئے آولئے دہ
زړهٔ م درست سورے سورے لکه غلبیل شو    محرومی دَ لیدو بده غم افزائے دہ
ګوندِ وی چه بازی بیا را وجاروځی    همګی عالم ویئیل کاچه اوس بائے دہ
کهٔ په اور کښے دَ سرو زرو وښے پریوزی    عیب نشته په دا کار کښے ئے جلائے دہ

نورے واړه تکیے تار په تار خورے شوے
دَ خوشحال خټک تکیه په یوهٔ خدائے دہ

دَ جهان خوبنی همه دَ هغه کس دہ    چه میشته ئے دَ محبوبے په جوس دہ
دَ ښهٔ مخ له ننداره چه نظر نیسے    کهٔ ئے ګورے هم دغه هوا دَ نس دہ
کهٔ سوګند راځنے غواړے هم به وکړم    تر اول م په تا مینه یو په لس دہ
ډیرے مینے آشنایئ څهٔ پکار نهٔ دی    یوهٔ زړهٔ لره یوه آشنائی بس دہ
چه دوه ښهٔ خوا ږهٔ منین سره دلګیر کا    دَ غمازو ویناځهٔ دَ ستر ګو خس دہ

بے پروا بے فهمه مهٔ راځه خوشحاله
په پالنګ م ډیره ویره دَ عسس دہ

دَ عشق بخره ازلی ده په جنګ نهٔ دہ    په کتاب په مسئلو په فرهنګ نهٔ دہ
په قسمت ئے له ازله دی راوړی    دا دَ سولو بخره اوس دَ پتنګ نهٔ دہ
خلقه ئے سره درغنړے کګو کړے    لا دَ مستے دَ غمزے توره زنګ نهٔ دہ
تل دَ یار دَ صورت نخښے پکښے ګوره    کهٔ دننه آئینه دَ زړهٔ زنګ نهٔ دہ
دا پیاله چه ما نوشلے ده پړے مست یم    دا پیاله م دَ شرابو دَ بنګ نهٔ دہ
دا غیار سره یو دم ناستے ښهٔ نهٔ دے    هیڅ خپلوی م دَ زجاج او دَ سنګ نهٔ دہ

دَ ګلونو په موسم کښې هغه خوار شول
چه ګلرنګه معشوقه ئې ترڅنګ نۀ دہ

ليچې څۀ لره غړی تَوره وُکاږی
کۀ دَخواروَد وژو په آهنګ نۀ ئ دہ

کۀ زۀ نۀ يم ليونے په آهو سترګو
مصلحه م دَ آهو پسے لنګ نۀ دہ

کله کله خوارخوشحال وته نظر کړه
دَعاشق نمنځنه هيڅ عيب وننګ نۀ دہ

دَمجاز عاشقی عين حقيقت دہ
وهغے ته زينه ايښے دَصورت دہ

ترتږیٰ ترترتيا کۀ فهم اُوکړے
په څلور کُنجه غوغا دَ محبت دہ

په جهان به هيڅوک نۀ ؤوکۀ عشق نۀ وے
دبدبه دَعشق قائمه ترقيامت دہ

چه په مينه کښې يوزړۀ اويو زبان وی
ترهرچا دَ هغوچار په برکت دہ

دا يوه وينا دَ زړۀ په غوږ و واؤرے
چه بهتره دَ اورنګ ترسلطنت دہ

سر دِ دروی مال دِ دروی پت دِ نۀ ځی
دَ سړی دَچارے کل خوبی په پت دہ

چه يوځله زړۀ دَچا په مينه بند کړے
په شلول ځنے کمی دَ مروت دہ

چه دَ نيت غلتی لری بلا به ورشی
ترهرڅۀ بدہ بلا غلتی دَ نيت دہ

چه ئې خدائے ورکه وچا شکر دِ کاندی
په جهان کښې لويه بخره دَهمت دہ

په تيرۀ الماس دپاسه قدم ايښے
يوه څۀ باريکه لاردَ شريعت دہ

چه کنږوته نصيحت ولے خوشحاله
وايه څۀ فائده ستا دَنصيحت دہ

دَ سپيروخاورو غوغا دہ
چه پکښے غورزی هوا دہ

وحباب و ته وُګوره
څۀ دِ نوره تمنّا دہ

ګمان نۀ کړم چه به ستا شی
دا چه ته وائے ځما دہ

چه به کاندہ فنا کيږے
کاندہ نۀ دہ نن فنا دہ

دَ هلکو لوبے ګوره
سرشته دَ هرچا دا دہ

تۀ لا طفل دَ اونږی ئے
کۀ دِ بيره کربلا دہ

دا درګاه يو بوډئ
که خندا که دِ ژړا دہ

چه ئې يوځله آرانند کا
دا هم لويه تماشا دہ

راشه وګوره په سترګو چه دَچا وه اوس دَچا ده
خو يو وهم خوب وخيال دے کوم ژوندون کومه دُنيا ده
دَ نورچا نهٔ ده خوشحاله
ستا دَ خولے وينا هم ستا ده

درته چاوے چه دَ يار سره جفا کړه دَ اغيار سره وفا مهر خندا کړه
چه دَ ښلهٔ خاورے دِ سترګو لره غواړی دَ هغهٔ سره فتنے جنګ وغوغا کړه
هغه تهٔ ئے چه له ما دِ محبت کړهٔ کهٔ غه هومره مينه ما سره نورچا کړه
کهٔ په اورم کښينوے په اوربه کښينم چه دِ خاځ په سترګو کړم راته دِ شا کړه
دَ بادشاه دَګدائے ځهٔ وو دَ يارئ ځهٔ کړم خدائے مِ ستا په مخ مينه پيدا کړه
کهٔ ځما په مرګ دِ زړهٔ دے تيغ راواخله دَ قصاب غوندِ مِ بند په بند جدا کړه
زهٔ خوشحال جيواری دَ سبکل نهٔ يم
دَدُنيا خونه مِ ستا په مخ بيديا کړه

دَماړهٔ ترفهم هيڅ نهٔ ده غمينه ولے وږی ته حلوا ده اوربشينه
په تونګر باندِ اطلس لکه شړئ وی په نادار باندِ شړئ ده وريښمينه
ومجنون ته دَ ليلی خبرے وا به نهٔ له علمه له مذهبه نهٔ له دينه
هغه خدائے چه دَهجران غمونه راکړهٔ کهٔ دَ وصل ښادی راکا توان لرينه
خدا يه کله به ديدن دَآشنا راکړے چه به زهٔ پرے ما توم دَزړګی مينه
يوځل بيا په حيات وليدے په سترګو بيا له پسه کهٔ مردن وی هم دِ وينه
نمر په کوم لوری پريوزی چرته خيژی
په خوشحال باندِ يوه شوٚ توره سپينه

دَ ګلونو قدر چا ز ده يا بلبلے يا بورا ز ده
په جهان کښے به يو وی چه هُنرے دَکيميا زده
چه وفا ورځنے غواړے بے وفا کله وفا زده
کهٔ جهان درخبر نهٔ دے ما په تا زده تا په ما زده
تهٔ ښادی کړه زهٔ به غم کړم تا خندا زده ما ژړا زده

راشه وګوره په سترګو چه دَچا وه اوس دَچا ده
خو یو وهم خوب وخیال دے کوم ژوندون کومه دُنیا ده
دَ نورچا نهٔ ده خوشحاله
ستا دَ خولے ویناهم ستا ده

درته چاوے چه دَ یار سره جفا کړه دَ اغیار سره وفا مهر خندا کړه
چه دَ بلهٔ خاورے دِ سترګو له غواړی دَ هغهٔ سره فتنے جنګ وغوغا کړه
هغه تهٔ ئے چه له ما دِ محبت کړهٔ کهٔ غه هومره مینه ماسره نورچا کړه
کهٔ په اورم کښینوے په اوربه کښینم چه دِ ځائے په سترګو کړم راته دِشا کړه
دَ بادشاه دَ ګدائے ځهٔ وو دَ یارئ ځهٔ کړم خدائے م ستا په مخ مینه پیدا کړه
کهٔ ځما په مرګ دِ زړهٔ دے تیغ راواخله دَ قصاب غوندِ م بند په بند جدا کړه
زهٔ خوشحال جیواری دَ سبکل نهٔ یم
دَ دُنیا خونه م ستا په مخ بیدیا کړه

دَماړهٔ ترفهم هیڅ نهٔ ده غنمینه ولے وږی ته حلوا ده اوربشینه
په تونګر باندِ اطلس لکه شړئ وی په نادار باندِ شړئ ده وریښمینه
ومجنون ته دَ لیلٰی خبرے وایه نهٔ له علمه له مذهبه نهٔ له دینه
هغه خدائے چه دَهجران غمونه راکړهٔ کهٔ دَ وصل ښادی راکا توان لرینه
خدا یه کله به دیدن دَ آشنا راکړے چه به زهٔ پرے ماتوم دَ زړګی مینه
یوځل بیا په حیات ولیدے په سترګو بیا له پسه کهٔ مردن وی هم دِ وینه
نمر په کوم لوری پریوزی چرته خیژی
په خوشحال باندِ یوه شوٓ توره سپینه

دَ ګلونو قدر چا زده یا بلبلے یا بوراه زده
په جهان کښے به یو یو وی چه هُنرے دَ کیمیا زده
چه وفا ورځنے غواړے بے وفا کله وفا زده
کهٔ جهان درخبر نهٔ دے ما په تا زده تا په ما زده
تهٔ ښادی کړه زهٔ به غم کړم تا خندا زده ما ژړا زده

رنګ دِ ښۀ دے خوئی دِ بد دے
زۀ خوشحال یم ماربښتیا زده

دَصبا بادهٔ ګذر په چمن بیا کړه
په چمن کښے رنګا رنګ ګلونه وا کړه

زۀ دِ توان دَ خرخشولرم چه کړے ئے
کۀ دِ زړۀ څما په مرګ دَ دا ادا کړِه

بے نیاز څۀ خبرله نازه چه نازڅۀ دے
ستا دَ سترګو بلا واخلم نازبه ما کړه

زۀ له خپله بخته چاوته فریاد کړم
چه پرون ئے راته مخ وونن ئے شا کړِه

خولۀ مِ ډکه شوه په شهدو په شکرو
چه سحرمِ ستا دَ لام وبے ثنا کړه

عاشقی کۀ سراسر واړه بلا ده
ما په ځان دَ زړۀ قبوله دا بلا کړه

زۀ خوشحال کمزورے نۀ یم چه به ډار کړم
په ښکاره نعرے وهم چه خولۀ ئے راکړه

دَ دانا په ځان بلا شوه خپله پوهه
چه هرګز ئے خالی نۀ وی له اندوهه

چه فلک وچاته عیش وعشرت ورکا
هومره ډیر ورباندِ کښیږدی غوستوهه

کله وُنه دَ خزان په وخت لغړه
کله بیا خوبی دَ پانړیو یړے انبوهه

په ناحق ئے په میدان په سمه غواړے
چه دَ غرونو غرڅۀ نۀ کوری بے کوهه

چه مِ وُلیدے څوخولے هومره خبرے
راځرګند شول واړه دوه او یا ګروهه

په خپل خُوئ اوروربا ورنشته خوشحاله
غافل مۀ شه دَجهان له مکره دروهه

درسته شپه دِ په کوڅه کښے مرم له سوز
لاس مِ مات شه کۀ دِ نۀ کړم روژ بوږه

تۀ په څوبے غمه خاندُ خوشحالی کړے
څما غاړه په ژړا درپسے بوږد

هم مِ بے حسابه پورے کړه په سترګو
دَ رنجو غوندِ مِ بیاله سترګو توږه

ستا دَ خوئ دَ زلفو کار سره یورنګ دے
سرهوا لوئی دا هومره سمه کوږه

حال دِ واړه وارپه وار راته معلوم شو
تکه یاره په زړۀ تریخه په خولۀ خوږه

څما یارچه میخوری کا په بدل ئے
ولے مالره راڅه دَ دُردو روږه

یکښے زړۀ دَ خوار خوشحال دَ چه خُوږ نشی
ډے رو رو دَ شهئ زلفینے نموږه

دَ ناکس له آشنایئ توبه توبه | دَ شوختیئ له رونړایئ توبه توبه
چه پرده ئې په الماس جراحان پرې کا | له دے هسے بینایئ توبه توبه
چه ولوړئ په زرګونو، چن بد رنګه | له دے هسے کدخدایئ توبه توبه
چه په جهل وحماقت داناخان بولی | دَ احمق له دانایئ توبه توبه
دَ سفله دی دَ سفیه دی واړه توکی | له خودئ خود ستایئ توبه توبه
که هزار رنګه شیخی زهد تقویٰ کا | دَ جاهل له پارسایئ توبه توبه

چه عمل ورسره نشته تش وئیل کا
دَ خوشحال له ګویایئ توبه توبه

درخو خود په آدم خان باند شیدا وه | تر دا منځ دَ میروکی ژبه بلا وه
چه په مینځ کښے دلال نه وُ وصال نه وُ | په مجنون باندِ مینه که لیلی وه
په خپل یار پسے ژړا نه په زړه کښے | دَ عالم سره په زور خما خندا وه
چه غوټئ ئے شګفته کړه په چمن کښے | که دِ زده داچاره واړه دَ صبا وه
چه ئے ګل دَ بهار ستا و مخ ته و نیو | ستا دَ مخ خوبی ترګلو لا زیبا وه
هومره رنځ محنت آفت ځنے پیدا شو | خوخما دَ خوار خاطر مینه په تا وه
دا ئن شپه چه په ما تیره شوه بے یاره | ته به وائے په دوزخ کښے م ماوا وه
ئن خپل بخت راسره درسته مخامخ کړه | چه پرون راته یک لخته شا په شا وه
ماوے زهٔ یم چه پیاله لرم په لاس کښے | ولے دا پیاله په لاس کښے دَ هر چا وه

بس چه بیائے ستا جمال په نظر کښیوت
دَ خوشحال خټک دَ زړهٔ ځله هم دا وه

دَ یوهٔ بادشاه په حکم شوم آګاه | امر نهی م قبول دی دَ بادشاه
یا مهدیؑ ئے یا عیسیؑ چه را ښکاره شوَ | په جهان دِ غلغله وشوه ناګاه
دَ مهدیؑ اودَ عیسیؑ دَ وړاندِ ځهٔ دی | هم دجال هم دَ دجال واړه سپاه
خیرآباد لره دِ راځئی لښکره | چه احوال دَ غلیمانو شی تباه
چه خیبر لره ما بولے قضا ګیرئ | ډیر کا رو نه په دا ملک دَ خیرخواه
دریاخان درویزه واړه په حضور دی | ګویا زهٔ هم په حضور یم دَ درګاه

خواه ناخواه که امر دا دے چه را درومه
دا بنده به در روان شی خواه ناخواه

دا دنده د عریضے خما د لوریه
زبا نی خبرے هم لری همراه

د سپی غل د دروغژن په خوله کښے تل کړه
په رښتیا خبرو خوله د سړی کښل کړه

هر عمل چه سړے کا مضمر به نه شی
درته چاوے چه لوګے مکړه او ربل کړه

که پوهیږے چه د بل جهان حساب شته
ته په دا جهان نظر په خپل عمل کړه

ستا د خولے چینه حنظل ده هم عسل ده
وهر چا ته تویونه د عسل کړه

چه د دین دُنیا کار ونه درته پیښ شی
د دُنیا ترکاره کار د دین اول کړه

چه د مشکو د نافے شمیم راخور شی
راخُرګندے تورے زلفے تور وربل کړه

ساقی وخت د نو بهار دے شراب راوړه
د شرابو سره نقل د خولے مل کړه

نن خلل دے اوے مکړه زاهده
چه موسم د بهار تیر شی بیا خلل کړه

چه یو دم د عشق له اوره خالی نه وی
خدا یه څه دے د عاشق تېتر منقل کړه

ستا د مخ په دور زه جهان ګیر شاه یم
را ته کښینه کرشمے د نور محل کړه

ستا دا تورے سترګے خود تورے بلا دی
درته چاوے چه نے تورے په کجل کړه

که هزار ځله شیخی کوے خوشحاله
چه بنځه کښیلے در نزدے شی نو رے کښل کړه

د بنا نُست سره سل تورے چارے بویه
چه عاشق په ځان مئین کا ند مهرویه

تل د مشکو بوئ روان په بستره وی
دریغه دریغه د مهرویو ګفتګویه

عاشق یو لکه لیوه په شمال پائی
بل په غېتو سترګو خوب کا لکه سویه

په صبا پسے نے مرم نه صبا کیږی
د هجران شپه نے په ما شوه ترکال لویه

خما دواړه سترګے جوئ ته سرو قدے
سرو وُنه جدا بنه نه ده له جویه

اوس د جونو هوس مه کوه خوشحاله
پښتنے جُونے ترهیږی له دوه مویه

د لیلیٰ د مخ خو ډیره زیبائی ده
د مجنون ورپسے هومره رسوائی ده

که م سل هُنره کړل ترسره نه شول
یوه څه رنګه نا بوده آشنائی ده

چه د ستر کوئے تقوی سره میرخې ده — په ناحقه م نیولے پارسائی ده

چه ئے سیوری په ما وه لکه بادشاه وم — ستا د تورو زلفو سیوره همائی ده

په وار وار راځي یو رنګ عاشقئ — که هرڅو راځئ پوهه دانائی ده

چه نه مهرنه تپاک نه پکښے شناخت شته — تر دا هسے وصل ښه جدائی ده

دخپل یار په مخ اوس نه دے مئین شوے
دخوشحال په زړه کښے دامینه ځائی ده

د دنیا د سود دپاره کونړ او کوره — ځه خوشرم مروت وته وګوره

په درست عمر هغه ځانے وربسے غواړے — چه د پریوزی له پلوه جرته توره

په زړګی باندد توره سوے داغ شی — چه د توره یا پیسه ووزی له کوره

د لوئے غرۀ کندے په تا باند پریوزی — چه د کوره د ډوډئ ووزی نان کوره

دد نیا مینه په تا باند دریاب شوه — ته په دا دریاب کښے ډوب لاړے هرګوره

که په دا دریاب کښے هرڅو لامبوزن ئے — عاقبت به پکښے بیا پریوزے له زوره

که هرڅو په خپل حرص کړے دنیا ټوله — دا به واړه د اجل سیلئ کا خوره

ګورستان لره به هسے شان مفلس ځے — لکه وزوے اول له خپلے موره

چه ئے خوښه عقیده د قلندر شوه
خدائے به نه کا دخوشحال عقیده نوره

دا ښه ګل چه ئے کړے د جمال نشته — د وفائے حیف دا دے ځه حال نشته

که وفا بقائے هم وے ځه به ښه وو — د ښائست ئے په دا دور خوک سیال نشته

عالم زړه په هیڅ خورسند کا چه وصال وی — د هرچا بخره هجران دے وصال نشته

چه ئے وصف د جمال کاندی تر سره — هرچا زده د واصفانو مجال نشته

منونه منونه ظلم جور پکښے پروت دے — د نا ترس خاطرئے مهر مثقال نشته

د غمزے په تیغ عالم وژنی غم نه کا — ته به ولئے چه ثواب دے وبال نشته

لکه ډک په ښو ګلونو په هر کال وو — د دے باغ هغه ګلونه سږ کال نشته

راته ځه وائے چه یار په تا مئین دے — مختصر به در ته وایم ځه حال نشته

ما خوشحال وته به زوره نارے وکړے — چا وماته خواب راکړ خوشحال نشته

دَغلیم سره به نۀ کا مکر درووه
مکر ډیر تر بلا تیر په عقل پوه
بدخوئی به دَ خپلوانو سره ځوک کا
چه پخپله په خپل خان پسندی اندوه
ماچه ولیدل اتلس زره قومه
دَخپل ذات سره اُلفت کا هر ګروه
دَمحنت په وخت یومل را سره نشته
د راحت په وخت زرګونه وو انبوه
په خوښیه کښې زا ړهٔ لکه ځلمی شی
ځوان ځلمی تر زا ړهٔ لا کا ندی ستوه
دَګذار په ځائے اوس نۀ وینم هوسئ
په ځوانئ م کهٔ کیلے لیدهٔ په ګروه
غر به هم لکه وینبتهٔ هسے نرے کا
کهٔ غمونه دَخوشحال کښیږدے په کوه

راشه کهٔ ئے آورے دا خبره ده نادره!
چه وواتهٔ له سترګو هغه وُوزی له خاطره
مرم چه جدا کیږے ته م روح ئے کهٔ پوهیږے
مهٔ دروه له مانه راته تل اوسه حاضره
بخت م مرور شی چه په نورو دِ نظر شی
بخت راته ناظر شی چه وماته شے ناظره
هر حسن دِ ډیر دے دَ لیلیٰ تر حُسن تیر دے
زهٔ چه دِ مجنون کړم په چشمانو ئے ساحره
ډیرے دی نګارے هوسئ سترګے پری وارے
تا غوندِ به نهٔ وی شوخه شنګه دلاوره
شونډے دِ یاقوت دی غابش دِ دُر دَ زړونو قوت دی
درسته دِ دا تنګه خولهٔ حقه دَ جواهرو
لام و بے ئے زیبنه چه بنهٔ کښلی شی دربینه
تل شکر وُکا ړهٔ چه شکرے خورے شاکره
ډیر دَ ملک شاهان دی چه دَ کښلیو غلامان دی
تا دا قدرت ورکړو دلبرو ته قادره

تل له ډیره خیاله خو ښې کړې له خوشحاله
هم روغه هم جنګ کړی مهر ژنه هم قاهره

راته نیسی جانانه دَ شرابو پیمانه
دَ شرابو پیمانه راته نیسی جانانه

مغنی په چغانه راشه بیا کښیږده لیندۍ
راشه بیا کښیږده لیندۍ مغنی په چغانه

کوردے داکۀ بُت خانه پکښې تَوله جُونه ناستے
پکښې تَوله جونه ناستے کوردے داکۀ بُت خانه

پاس په سرۀ دَ آشیانه تورکارګه قمر ترے لاندِ
تورکارګه قمر ترے لاندِ پاس په سرۀ دَ آشیانه

ګوره جوړ دام و دانه زلف وخال دَ هغه مستے
زلف وخال دَ هغه مستے ګوره جوړ دام و دانه

په پیسو کښیږده شانه چه دَمشکو بوئ لا ډیرشی
چه دَمشکو بوئ لا ډیرشی په ګیسو کښیږده شانه

عشق مجنون کا فرزانه شک ګمان نشته په داکښې
شک ګمان نشته په داکښې عشق مجنون کا فرزانه

تهٔ عاقل زهٔ دیوانه څهٔ مو روخ دَ ملګیرۍ
څهٔ مو روخ دَ ملګیرۍ تهٔ عاقل زهٔ دیوانه

داغزل دے رندانه ماخوشحال ختک و ټیلے
ماخوشحال ختک و ټیلے داغزل دے رندانه

زړهٔ م بیا واله مجنون شۀ بنه چه شۀ
په خپل یار پسے مفتون شۀ بنه چه شۀ

هغه غم چه په منقال په شیرشاهی وو
اوس ترمنونو لا افزون شۀ بنه چه شۀ

بے دَ یار دَ مخ لہ خیالہ بل فکرت م ؟
لہ خاطرہ نہ بیرون شۀ بنۀ چہ شۀ

دَ وصال پہ وخت م قد لکہ الف وو
پہ هجران کښے لکہ نون شۀ بنۀ چہ شۀ

لکہ قدر دَ وصال را څخہ نۀ وو
چہ پہ بخرہ م بیلتون شۀ بنۀ چہ شۀ

پہ هوا پہ اشتیاق ئے دَ سرو شونډو
کۀ م وینے درست لړمون شۀ بنۀ چہ شۀ

زړۀ هرګور پہ غیرو چارو مبتلا وو
چہ لہ غیرو چارو ستون شۀ بنۀ چہ شۀ

زړۀ ئے درست لہ هرہ حالہ نہ خبر کړم
چہ دَ هند پہ لارے یون شۀ بنۀ چہ شۀ

هیڅ مکتب لہ یوۀ فیضہ خالی نۀ دے
چہ م ځائے دَ سرزنګون شۀ بنۀ چہ شۀ

عاشقان پہ عشق کښے هرکلہ زبون وی
کۀ م زړۀ پہ عشق زبون شۀ بنۀ چہ شۀ

چہ ئے توره دَ غمزے راتہ پہ لاس کړه
کۀ م آس ورتہ هارون شۀ بنۀ چہ شۀ

چہ ئے ښنہ دَ دلبرئ پہ رکاب کړه
دَ خوشحال زړۀ ئے شګون شۀ چہ شۀ

زړۀ را پسے سرشو راتہ وائی چہ وټیرہ
وایہ وایہ لہ وئیلو مۀ دریږه
تش شہ لہ خروشہ څو بہ تاکیږی لہ جوشہ
ژاړه ژاړه ژاړه پہ صبا بیګاه نولیږه

ظلم جور ستا دے چه په نر ناحق په ما دے
مۀ کړه مۀ کړه مۀ کړه له آزاره وویریږه
سوے لوغړن یم تل په آه و په شیون یم
وسوم وسوم وسوم درومه اور د زړۀ لګیږه
اوس خوبے پروائے کۀ زۀ ومرم بیا به وائے
مرمه مرمه مرمه خولا پایم و پوهیږه
څۀ وایم چه څۀ کړے سراسر واړه ښۀ نۀ کړے
جګی جګی جګی په ربښتیا ږم مۀ قهریږه
تلۀ دی تیریدۀ دی ښۀ له هرچا سره ښۀ دی
ښۀ کړه ښۀ کړه ښۀ کړه دَ نیکغواه خبرے نغویږه
کبرلوئی مۀ کړه چه دُعا ګټے هغه کړه
وینه وینه وینه ولے مهر کړه تیریږه
ریږدی غاړے غرونه دَ خوشحال په فریادونه
واوره واوره واوره راشه څۀ خو وکړو هیږه

زۀ یو یار غواړم زیبا ښۀ
سر تر پایه دلربا ښۀ
ښائسته په شپږ جهته
هر اندام جدا جدا ښۀ
خو دَ ښهر ښائسته دی
دے په حسن تر هرچا ښۀ
تن ئے ښۀ دَ ګل تر پاڼو
تمامی قد و بالا ښۀ
دواړه زلفے عنبر پاشے
ګلعذار تر لاله لا ښۀ
تورے سترګے تورے وروځے
تور باڼړۀ اوږدۀ والا ښۀ
تنګه خولۀ حقه دَ لعلو
غاښ ئے دُر قیمت بها ښۀ
ګبینه ئے سر دَ ژبے
دواړه لب ئے تر حلوا ښۀ
ګل ریزی کا په خبرو
تر شکرو په خندا ښۀ
خوره نیاز وخوره نازوے
په جفا ښۀ په وفا ښۀ
کۀ م وژنی تیغ راواخلی
دَ دۀ تیغ لګی په ما ښۀ

کۀ هوا ده د بنۀ مخ ده ‏ نشته بنۀ تردا هوا بنۀ

هرچه دا هوائے نۀ وی ‏ هغه نۀ دے په دُنیا بنۀ

دا غزل چه خوشحال ووے
خوک به ووائی تردا بنۀ

زمانه راته په څو پرته په څو وه ‏ زۀ ئے واخستم خونی مزری د زو وه

ودانی ئے په ډیر غم په ځیګر خون وه ‏ ویرانی ئے راشه ګوره په څۀ دو وه

دبے دردو یاری میا غنم ګڼله ‏ چه م ولیدله سرترپایه جو وه

تندر تل په مناره باندِ پریوزی ‏ دخسوف بلا د میاشتے په پرتو وه

حق ناحق ئے وج لاونده وبله کښیښول ‏ ظالمی د اورنګ زیب پره دلو وه

هغه تورهندو بچه به چرته غوا پ م ‏ چه څما د زړۀ متاع باندِ ګروه

د زړۀ نوی بنۀ یاران وو خدائے جدا کړۀ
دخوشحال د زړۀ دمه په هغه نو وه

زۀ خبر وڅنے نۀ شوم بهار تیر شو ‏ دګلونو لون واړه په بل پیر شۀ

حیف داچه دګلونو عمر لږ دے ‏ په جهان کښے داغزیو عمر ډیر شۀ

دبهار بلبلے نۀ راځی په سیل ‏ مګر زړۀ م دبهار له سیله سیر شۀ

هغه ګل چه دحمل وو په جوزا کښے ‏ ځائے ئے پاسه په سوات یا په بنیر شۀ

خوږ ژوندون جدا له بنۀ شیرینه یاره ‏ په ماخوار باندِ یا زهر یا ګندیر شۀ

هومره غم د بیلتانۀ لری په زړۀ کښے
دخوشحال له دله ګشت دبهار هیر شۀ

سپینه ږیره دمردانو کدخدائی ده ‏ دغابنونو پریوتنه رسوائی ده

دسری چه غابن په ځائے وی بربړ سپینه ‏ په دا هیڅ زوروالے نۀ دے برنائی ده

دخضاب ځوانی دچا ده داحمق ده ‏ تردا کله ږیره بنۀ په بنۀ نائی ده

زور سړے د دزوروالی اندوه نۀ کا ‏ کۀ په ځائے ئے دچشمانو بینائی ده

زاړۀ مرد لره لیده د دلبر څۀ دی ‏ په معنیٰ دخوږو زړونو مومیائی ده

شیخ به کله عاشقی له لاسه پریښنوه ‏ لاس ودست ئے نۀ رسیږی پارسائی ده

کهٔ خوشحال په عمر لا پر تراویا تیر شو
لا په زړهٔ کښې ئې دَ کښلیو آشنائی ده

تورے بږیرے سره وصله نادانی ده
سپینې بږیرے سره وصله دانائی ده

شیخ به ولے نندارهٔ دَ کښلیو نهٔ کا
چه دَ دهٔ دَ زړهٔ دَ خوږ و مومیائی ده

ژوړ خوشحال چه دَ دلبرو دیدن غواړی
دَ دلبرو په وصال کښې رونړائی ده

سر دَ سرهٔ بیا جنون را باندِ زور شهٔ
یا دَ مینې لیونے شوم خوئی م نور شهٔ

کهٔ هر خو بیدار کوی پروا پرے نهٔ کړم
دا هُنر م وعالم وته پیغور شهٔ

دَ ساقی دَ میو هسے شان اثر دے
په خمار کښې م دستار له سره خور شهٔ

حریفانو په هائے هائے باندِ نارے کړے
چه ساقی دَ میو داد کړ جام نسکور شهٔ

هوداکار دَ آزمینبت نهٔ دے نو څهٔ دے
چه خُما بلا خُما دَ سترګو تور شهٔ

کهٔ ګدائے له لوږے مری علاج ئې نشته
چه دَ دور دَ خواجه روزګار په پور شهٔ

په خاطر باندِ م ډیر داغونه جوړ وو
ولے ستا له لاسه داغ باندِ ا نخور شهٔ

خوب خندا دِ له خاطره فراموش کا
دَ هغو چه دَ ویشتلی په چم کور شهٔ

هر کالے چه دَ رضا پکښې موندهٔ شی
دَ خوشحال خاطر م ښهر دَ لاهور شهٔ

ستا له خویه نهٔ م خوړینه ده اینه
څکه هسے وهم کانړی په سینه

کهٔ دِ زړهٔ دے چه م مینه در ښکاره شی
راشه ونیسه و مخ ته آئینه

چه دِ زړهٔ دَ درملنګ شوم خزینه څهٔ کړم
را ته توره شړئی بس ده پشمینه

کله کله راته ګوره ستا نوکر یم
را ته بس ده هم دا هومره مهینه

خزینه دَ سرو مهرانو دَ شاهانو
ستا دَ راز لرم په زړهٔ کښې خزینه

وائے ته کله په مخ خُما مئین شوے
ستا په مخ باندِ مئین یم دیرینه

چه خُما سره ئې ستا دَ یاره کاندی
خوښ یم ستا دَ رقیبانو په کینه

ماتیدل ئې هیڅ دشوار نهٔ دی کهٔ ګورے
چه وکا نړے ته نژدے شی آبګینه

دَ بادشاه په تخت وتاج پورے خندا کا
دَ درویش بوریا تو پئ پشمینه

انګوری ترخهٔ شراب ورله بویه
میخواران له ګبینهٔ لری کینه

ورځ هغه ښه ده چه ته پکښې خوشحال شې
که شنبه که سه شنبه که آدینه

ساقي بيا دَ مهر کړه چه عيد شه
په هر لوري يو آفتاب دے خليد لے
په هر ځه کښې ننداره دَ هغه مخ کړم
هم هغه دے هميشه ژوندون موندلے
زمانه په خلقو هسے آزمېښت کا
واړه تخښې نے په زړه ويېم حضورے
هرچه ستا دَ درد سپيو په حساب دَى
خط وخال په ښه جمال بانديو دود دے

د رندانو د ښاديو وخت جديد شه
ښا پيرک نے له جماله نه کور ديد شه
چه له ډيرے پيداني ناپديد شه
چه دَ مستے دَ غمزے په تيغ شهيد شه
چه يوسف دَ قبطيانو زرخريد شه
چه آشنا په لرے حد له ما بعيد شه
په جهان کښې هم هغه سړے سعيد شه
نه چه حسن دَ خوبا په دا مزيد شه

چه دِ نوم دَ خوا رخوشحال په ژبه واخست
په درست عمر کښې خونن ورباندِ عيد شه

ستر ګے ستا غړوي زړه
چه دا خوله خوزوي دے دے
چه ځه کار په لاسو ښبنو کړے
اوريده په دواړو غوږو
چه نيکي کړے يا بدي کړے
چه خندا کړے يا ژړا کړے
دواړه کونه لکه تن دي
زړه بے چون او بے چګون دے

ستر ګے ستا پتوي زړه
ژبه ستا وَيَوي زړه
دا هم ستا شوروي زړه
هم په تا آوروي زړه
واړه ستا سندوي زړه
خندوي ژړوي زړه
کار دَ تن جوړوي زړه
خوک دا غوښه ګڼړي زړه

دَ خوشحال په زړه کښې يو دے
خوک نے ځه لټوي زړه

ستا له حاله م يو داغ دے په سينه
تا چه واغوستے دَ خيال جامے رنګينے
يو ګلزار پکښې ناګاهه شګفته شي

چه هميش را سره يار دے ديرينه
بله ستا په ډول نشته رنګينه
چه په مخ دِ مخامخ شي آئينه

بے په داچه بنائسته ؤ وته ګورے    په بل ځیز مِ له چا نهٔ کیږي کنه

ساقي نن له لاسه ځهٔ خوباده پريږدهٔ    چه په سر کښے مِ خمار دے دوشینه

دَ بادشاه دَ سره تاج ئے مخے نهٔ دے    دَ درویش دَ سر توپئ پشمینه

زهٔ په عشق کښے مستثنٰی لکه مجنون یم    چه مِ نشته په ډیر قرن قرینه

داځهٔ راز دَ مینے نهٔ دے په کوګل کښے    دا مِ ایښی ده په زړهٔ کښے ګنجینه

مئے خورئ لره شنبه خوښوی خلق
وخوشحال ته ځهٔ شنبه ځهٔ آدینه

ستا په غم کښے مِ آرام دَ زړهٔ بیرون شهٔ    دَ غرځهٔ غوندِ مِ خوب په ځیګر خون شهٔ

همیشه په غاړے غرونه سرګردان یم    په دا دور مِ درست پړول دَ مجنون شهٔ

عاشقي سړے رسوا که هالهٔ ومری    ښهٔ هغه چه مړ په تبه په طاعون شهٔ

ګوره خوعالم به لاندِ که تر چلو    چه روان مِ تر دا دوو سترګو جیحون شهٔ

هدیره ئے دَ شهید په خنګ کښے بو یه    هر سړے چه مړ په توره دَ بیلتون شهٔ

په ګلونو به ئے ژغ کاندِ بلبلے    دا ګلزار چه په بیاض ځما زرغون شهٔ

چه درست کال ئے بیابیا وایم لا یو راز دے    دا یو راز تر دفترونو نه افزون شهٔ

په زر ژبه ئے ستا یه واړه یو راز دے    عبارت کهٔ مختلف شهٔ یو مضمون شهٔ

عشق خوشحال وته یو هسے سبق ورکړ
چه ئے زړهٔ دَ قال وقیل له درستون شهٔ

شپه دَ بیلتانهٔ ده پهرپهر کال په ما شهٔ
بانګ دے دَ چرګانو په هزار هیله صبا شهٔ

رایشي ګلزار ته وار په وار نندارة کاندی
وار په وار پرے تیر شي اوس کهٔ ګوڼے وار ځما شهٔ

پیغام راوړي دَ وصل عجب ښهٔ راځي په مهر
هُدهُد دَ یار له لوریه نن په ما بادِ صبا شهٔ

په وخت دَ مشغولا دَ ګلو کله آواز کاندی
چه درومی له ګلزاره په چیغار چیغار طوطا شهٔ

په درست عمر ئے مهر دَ سکوت په خولهٔ وهلے
ځما دَ زړهٔ طوطی دے چه نن گورمه گویا شهٔ
زنگ چه باندِ پریوزی آئینه دَ زړهٔ تبهٔ شی
زړهٔ دَ خوشحال گوره له هر زنګه مصفا شهٔ

شیرازی کهٔ بنهٔ خوراک وو وار وو تیر شهٔ
ملوکی کهٔ بنهٔ پوشاک وو وار وو تیر شهٔ
کهٔ خپلوی دَ زن فرزند وه حال ئے دا دے
کهٔ له خلقه زیست وڅواک وو وار وو تیر شهٔ
کهٔ منصب وو کهٔ خانی کهٔ سرداری وه
کهٔ په لاس ملک و املاک وو وار وو تیر شهٔ
فرش فروش نقش و نګار دَ محلونو
کهٔ بسترِ عطرناک وو وار وو تیر شهٔ
چه له بنکاره به په خیال راتلم وکورته
سور به تل ځما فطراک وو وار وو تیر شهٔ
خیل پردی نیکان بدان له هره لوریه
په دربار به م بلغاک وو وار وو تیر شهٔ
تار په تار دَ اکوړخیلو کړے لاړے
په داغ غم ځان هلاک وو وار وو تیر شهٔ
اوس ئے روخ دَ ملنګئ دَ دوښئ دے
دَ خوشحال چه سرائے او تاک وو وار وو تیر شهٔ

شل کاروند پریږده ننداره ئے دَ جمال کړه
دواړه کسی واخله په سپین مخ باندِ ئے خال کړه
کښینه په انګنړ کښے مخامخ چه درته گورم
تورلونګین دواړه چند نړهار په سینه تهال کړه
راغلے وبازارته درست وجود کړه لکه کسی
گوره کهٔ ړوند نهٔ ئے ننداره ئے دَ کمال کړه
تلهٔ دی تیریدهٔ دی بنهٔ له هرچا سره بنهٔ دی
ونه دَ نیکئ په دا باغ کښے نونهال کړه
واړه وړکوټ دَ جهان گوره عاریت دے
غم دَ بیلتانهٔ ځما زړکیه په وصال کړه
بے دَیار له مینے چه به کور دَ دُنیا جوړ کا
واوره درته وایم خدائے ئے مینے په زوال کړه

تهٔ هغه رستم ئے چه شاهان دِ طلبګار دی
چا درته تلقین کړ چه خدمت دَ پیرِ زال کړه

الف دِ دے سرا یښے ستا په میم چه درته ګوری
په دوارړه لوریه زړهٔ وړے په مخ دوارړه زلفے دال کړه

نورخلق په بخښودی چه پرے بار نشته دَ مینے
بار لری دَ مینے ناز و نیاز په خوار خوشحال کړه

عجب جویئ سره مِ هومره دهٔ کینه
وبه نیسم و مخ ته آئینه

خدائے دِ ما بے غمه نهٔ کا په دُنیا کښے
زړهٔ او غم سره یوځائے یو دیرینه

ساقی ځو خمار شکنے پیالے را کړه
چه په سر کښے مِ خمار دے دوشینه

دایم زړهٔ ورپسے سریم کهٔ ئے مومم
په دوران کښے مونده نهٔ شی خزینه

نن ئے مهٔ کړه تفحص وایه چه نن دَ
کهٔ ئے بیامومے په قرن قرینه

لاله ځایه چه خوشحال په جهان راغے
دَ لاله غوندِ ئے داغ دے په سینه

فراق خرنګ را اُور دهٔ کړه په مانن شپه
دَ جوزا شپه ئے یلدا شی په غمژن شپه

په فراق کښے مِ په سترګو خوب حرام شهٔ
په هیڅ باندِ ورمشه دَ لیچن شپه

چه ریبار ورته پیغام دَ وصال راوړی
په هوس هوس تیریږی په مئین شپه

دَ فراق په شپه اُمید دَ وصال څهٔ دے
کهٔ ئے ګورے په معنیٰ کښے وُرکه ستن شپه

دَ دوهئ ملنګ هم تیره کړه دوهئ ته
کهٔ تیریږی په تونګرو په بړستن شپه

روغ عالم بے غمه خوب کا خبر نهٔ دے
چه په څهٔ عذاب تیریږی په دردمن شپه

دَ وصال وَته هجران دے ورنیولے
سخت شوے وه دَ ورځے په لمن شپه

ورځ ئے مالیدلی نهٔ دهٔ په درست عمر
خدائے به نهٔ کا سپین صبا دَ دروغژن شپه

دا نن شپه چه په خوشحال دَ فراق راغله
ورد نهٔ شی هسے سخته په دشمن شپه

کهٔ عالم وته دلخواهه بادشاهی شوه
عاشقی و ما ته لا عالی جاهی شوه

دَ تقوی په کاروبار ډیر خبردار یم
ولے څهٔ کړم چه نصیب مِ ګمراهی شوه

شاهدانو ته دَ خضرؑ عمر غواړم
حیف دا دے چه دَ عمر کوتاهي شوه

چه له ځایه ئې ګناه لره پیدا کړم
کهٔ نظر وُکړے خدایه بے ګناهي شوه

یارم ولیدهٔ له ورایه شکر دا دے
چه قبوله م دُعا سحرګاهي شوه

لکه ستا کسي په خوارو برابر شي
دَ طالع تر روڼړا بنه دا سیاهي شوه

زهٔ دَ یار په جفا هیڅ آهو نه نکړم
راته غم دَ رقیبانو بدخواهي شوه

ستا دَ سرو شونډو وپه دور مے حلال شول
بنه چه اوس رواد میومناهي شوه

سربازي یا دَ پتنګ یا دَ عاشق ده
یا قسمت دَ مجاهد یا دَ سپاهي شوه

بخته داخله ئې راوله تر غاړے
چه بیړۍ م په دریاب کښے تباهي شوه

کهٔ خبر له حاله نهٔ وے خهٔ به بنهٔ وو
وخوشحال ته غم داخپله آګاهي شوه

کهٔ په زړهٔ کښے دِ دَ یار مینه ځائي ده
سکه ناحقه دِ دَ غیرو آشنائي ده

مخ ئې کله دَ یوسفؑ غوندِ زیبا دے
دَ یوسف تر مخ ئې زیاته زیبائي ده

چه ئې رائې دَ خپل خاطر وی هم هغه کا
په دلبرو مسلّمه خود رائي ده

کهٔ دِ زړهٔ وی چه داخوږ خاطرم روغ کړے
دَ لبانو مچه راکړه مومیائي ده

زهٔ اوستا دَ داړو شونډو مے هغو زده
چه ئې نن په لاس نیولے پارسائي ده

دَ معشوقے په ترخه کښے ډیر خواږهٔ دی
کهٔ ئې ګورے نیکنامي ئې رسوائي ده

چه په خلقو کښے دوزخ دوزخ یادیږی
بل دوزخ په جهان نشته جدائي ده

په پیغور په تور په زور به ځنے نهٔ ځی
دَ هرجا چه خپله بخره شیدائي ده

دَ افسون دَ سحرکار دا هسے نهٔ وی
دَ خوشحال په زړهٔ کښے دا مینه ځائي ده

کهٔ رښتینے محبت لرے مهٔ ناوړه
په یوه ناره بیل شوے یار وُ ژاړه

دَ رسا ویشتلی کله توان دَ ژغ وی
په فراق کښے نارے مهٔ وهه له باړه

په معنیٰ کښے جدائي نشته وصال دے
دَ آشنا په غم کښے خوښ وسه تل ویاړه

په هجران کښے هغه هسے شان وصال شته
لکه خوګ له خپله یاره لاس تر غاړه

دا دیدن لکه په پټو سترګو کیږی
دا دیدن له وازو سترګو نه مهٔ غواړه

لیلٰی پلار لره په سل پردو کښې ناسته ‏ مخامخ وه و مجنون و ته ولاړه
پس له مرګه هم جدا نه وې ربښتینې ‏ په یوه نجد کښې ورشی سره دواړه
د ربښتینې مینې ډار د زوال مه کړه ‏ چه ربښتینې عشق لرې سلام یې واړه

د یار غم دِ د خوشحال له دِله نه ځي
د فانی دُنیا خوښی که لاړه لاړه

که ملیح ئے د زړه مینه په ملیح کړه ‏ که قبیح ئے در و مه چارے د قبیح کړه
د بهار ګلونه ډیر دی واړه ګوره ‏ چه دِ زړه وی هغه ګل پکښې ترجیح کړه
که دِ زړه دے چه د مخ ثنا ئے وائے ‏ د بلبلے غوندِ خپل زبان فصیح کړه
مسیحا د زخم وهر لوری ته ډیر دی ‏ د خپل زخم دوا د وخته په مسیح کړه
له ازله ئے رند رند زاهد زاهد کړ ‏ زه به ډکے پیالے اخلم ته تسبیح کړه
په حسد په رخه څه ځما پرواه ده ‏ چه دِ پټه کینه کړه اوس ئے صریح کړه
زه که بد یم هم د یار د ستر ګو تور یم ‏ وهر چا و ته ځما د عیب تشریح کړه
د توبے دریاب ئے تا لره پیدا کړ ‏ د ګناه د تور یو ځان لکه صبیح کړه

دا د سر په ستر ګو مه ګوره خوشحال ته
که د زړه ستر ګے لرے بنده ئے صحیح کړه

که نمکړی پیاله راکړے ساقی تازده ‏ همګی مدار په نیت دے باقی تازده
د شرابو په مستئ بیخوده لاړے ‏ که له سره دِ پرویزی طاقی تازده
د بابا په رضا ځه جنت به مومے ‏ روایت م درته وکړ عاقی تازده
زه دِ خورو م په ما رد تورو زلفو ‏ حال م خود وینے په ستر ګو راقی تازده

د خوشحال غوندِ همیش په ځان ناچاق یم
ته چه تل په صورت چاق ئے چاقی تازده

که هوښیار دی که نادان که ساد که غله ‏ هیڅوک نه وینم د خپلے لارے مله
یو په غم شریک یار نه وینم په ملک کښې ‏ خلق تښے تسلے کاندی په خوله
د میږیو غوندِ یون دے ودانو ته ‏ چه وماو ته عالم کا تلهٔ راتلهٔ
چه اُمید د میږی نه وی ودانو ته ‏ وهغه لوری ته نه کاندی هیڅ تلهٔ

خپل ویشتلے غرځهٔ مهٔ پریږدہ خوشحاله
ځائے په ځائے ئے وینے تولے دی په پلهٔ

کم کشته او کم کشته سره رفیق شهٔ
کم کشتن دَ دواړو تنو په تحقیق شهٔ

دَ شرابو جام په لاس شاهد بازی کا
شیخ دَ بهر عبادت پریښو زندیق شهٔ

یوئے اصل سره دوه اویا مذهبه
خدایه څهٔ بنی آدم فریق فریق شهٔ

عشق څهٔ هسے آسان نهٔ دے هومره خلقه
په بلخیو کښے خویو سړے شفیق شهٔ

دَ آسمان دَ ستوریو هم وبله فرق دے
څکه غوره په یارانو کښے صدیق شهٔ

چه توفیق ورسره مل شهٔ کار آسان دے
کل مدار دَ واړو خلقو په توفیق شهٔ

آزادهٔ به له چا طمع اُمید نهٔ کا
چه به طمع له چا کا کله عتیق شهٔ

دَ غلیم مهر په هیچا باندِ نهٔ وی
یو فساد ورباندِ کاندی چه شفیق شهٔ

وخپل بخت وته تسلیم کړه چه غلیم دِ
همګی دَ غم په بحر کښے غریق شهٔ

نور کهٔ سل پیالے آخلی دے دِ سل ښښی
چه خوشحال دَ بادهٔ نوشو په طریق شهٔ

ګوره دَ یار مخ ته بیالیمهٔ پرے ولوه
زړونه دَ بدرنګو رقیبانو ویلوه

دا دے هغه مخ چه هجران کښے پسے تهٔ مرے
اوس ئے په وصال کښے دواړه لوریه ښکلوه

لو یه پیشکشی دهٔ په وصال کښے درته وایم
دُرے په لمن کښے ورته ګوره تلوه

زهٔ دَ بیلتانهٔ په حال خبر نهٔ ؤم خبر شوم
خدائے له خپله یاره نه هیڅ یار مهٔ بیلوه

تندر دَ رقیب په کور پریوزی قهقه خاندی
سپینه آئینه دَ ششت خپل یار ته ځلوه

یو ځله چه زړهٔ دَ چا په مینه مهر بند کړے
شرط دَ یاری دا دے زړهٔ بل ځائے مهٔ نښلوه

کړے دی د زړونو ستا دَ مخ په لور رولے
واړه ملک بوستان دے په هرځائے ئے ملوه
درسته دِ له خپلو نمریو وویستم خوشحاله
یو د غاړے هار م د ګلونو مهٔ شلوه

لکه زهٔ یم پیدا شوے په دا مینه
دَ نور چا به هسے نهٔ وی پیدا مینه
دَ قصاب چاړهٔ په غوښو هسے نهٔ کا
لکه کاځما په زړهٔ دَ آشنا مینه
درست عالم رابانَدِ غاړو کا زهٔ حیران یم
چه له زړهٔ به په څولړے کړم ستا مینه
په یوهٔ تن کښے دا دواړه تو که نهٔ وی
هم دَ حُسن استغنا هم دَ چا مینه
نهٔ به بوئ دَ مشکو پټ شی په نافه کښے
نهٔ به پاتے شی مخفی دَ شیدا مینه
ما په سحر په جادو تقصیر وُنهٔ کړ
دَ نا ترس خاطرے نهٔ شی په چا مینه
په ژړا به م دوه سترګے وُچے نهٔ کړے
کهٔ په ما شوے دَ خپل یار په ژړا مینه
لور په لورے په همه عالَم رسوا کړم
کشکے نهٔ وے دَ خوشحال دا رسوا مینه

لکه ستا دَ زلفو تاب شته
په سنبلو کښے هم تاب شته
لکه ستا د خولو بوئ دے
هسے هم په ملک ګلاب شته
ستا دَ مخ ترخال به بِه وی
په خطا کښے مشکِ ناب شته
لکه زړهٔ ځما ستا شوندے
نهٔ کباب شته نهٔ شراب شته
کهٔ ونمر ته خا تهٔ ګران دی
دَ زلفینو ئے طناب شته
چه کا تهٔ دِ په حساب شول
دَ یارئ هم حساب شته
کښلی ډیر وو ما تهٔ یار کړے
تل دَ ګلو انتخاب شته
ګل په ما شهد و شکر دی
کهٔ دِ قهر یا عتاب شته
مجنون مړ نهٔ دے ژوندے دے
چه لا ما غوندِ خراب شته
دَ هجران په شپه مرګ غواړم
ځما سترګو ستا سے خواب نشته
چیرے نهٔ په بل مرګ وُمرم
دَ غمزو دِ هم شتاب شته
چه م وژنے کوز به ګورم
له آشنا سترګو حجاب شته

ماخپل خون ورته پل کړے کۀ څما دَ مرګ عذاب شته
دَچامنۀ م پکار نۀ دی چه م خپل لب ولباب شته
دروغژن یم کۀ دا شعر دَ میرزا په درست کتاب شته
دا غزل چه خوشحال اووے
نن ئے چا څخه ځواب شته
له حاله ئے خبر شه کۀ شته شته کۀ نشته نشته
قلاش و قلندر شه کۀ شته شته کۀ نشته نشته
کۀ لږه ده کۀ ډیره واړه وَنیسه په تیره
په خوئ دَ پیغمبر شه کۀ شته شته کۀ نشته نشته
دَ عمر څۀ اندوه کړے څۀ اندوه دَ کۀ ځان پوهه کړے
ژوندے تر ګوره ور شه کۀ شته شته کۀ نشته نشته
باد شاه دَ بحر و بر ئے کۀ قانع په خشک وتر ئے
دَ دهر سکندر شه کۀ شته شته کۀ نشته نشته
کۀ دُر دی کۀ ګوهر دی کۀ ګلونه دَ شجر دی
دَ واړو بے خبر شه کۀ شته شته کۀ نشته نشته
بے وخته غواړے بد کړے بیهوده رخه حسد کړے
په صبر تونګر شه کۀ شته شته کۀ نشته نشته
مۀ ژاړه مۀ پړے وياړه غم بنادی پریږده دا واړه
واقف په دا سیُر شه کۀ شته شته کۀ نشته نشته
بلا دی چه تولیږی په هیڅا نۀ پاتے کیږی
فارغ له سیم و زر شه کۀ شته شته کۀ نشته نشته
له یاره مهر غواړے کۀ ئے نۀ مومے نور ژاړے
دَ یار په رضا سر شه کۀ شته شته کۀ نشته نشته
کۀ وصل کۀ هجران دی دواړه ما وته یکسان دی
آرام په خپل مقر شه کۀ شته شته کۀ نشته نشته

څوسعی څوطلب کړے اندیښنے په روز و شب کړے
په واړه برابر شه که شته که نشته نشته

لږ عمر دیر غمونه په زړهٔ هومره ستمونه
قانع په خشک و تر شه که شته شته که نشته نشته

په خپل هنر نظر کړه څو ژوندے ئے خپل هنر کړه
خوشحاله شیر نر شه که شته شته که نشته نشته

... ... ...

لکه مخ خما د یار دے نمر خو هسے وی کنه
لکه زړهٔ په عشق کښے زیړ یم زیړ خو هسے وی کنه

د عالم ډیرے خبرے لور په لور تو رے لښکرے
زړهٔ م نهٔ خوزی له ځایه غر خو هسے وی کنه

بے د عشق له شور و شره چه هرګز خما له سره
نهٔ ځی نور څهٔ هر څهٔ د رومی سر خو هسے وی کنه

چه ئے ریبم عمل لا کا چه ئے ورک کړم ځان پیدا کا
ورځ و شپه دا هسے کر کړم کر خو هسے وی کنه

تا وے درومه نوم م زیر کړه بل سبق له زړه بدر کړه
تل م تهٔ ئے په خاطر کښے زبر خو هسے وی کنه

وهغهٔ ته م سر کوز دے چه معلوم ورته رموز دے
په خبره نهٔ پوهیږی خر خو هسے وی کنه

په دا باغ کښے یوه ونه تل تازه تره بر څنه
چه ئے اورے ژے برخورم برخو هسے وی کنه

چه آزاد مرئیے وردرومی خپل مراد ورځنے مومی
په هیڅ ځانهٔ دے تړلے درخو هسے وی کنه

په یوهٔ زمان تر یاره ورشی راشی خوګذاره
د خوشحال خاطر تیز پر دے پر خو هسے وی کنه

لایزاله بادشاهي کۀ چا موندله — کیخسر به و خسرو ته نۀ سپارله
جام دَ میو را په لاس کړه ساقي کوره — په هر لوري دا څما دَ غم کړله
په امان امان یوه لا تیره نۀ وي — په زمان زمان بنکاره فلک کا بله
ډیر په یاد لا رل دستا غوندِ باد وړي — ته ئې روستو دم کړه ئې څما دِله
جام و ساز ساقي بهار واړه اسباب شته — صراحي ولې خالي وینم له مُله

په جهان دَ نیکو نوم بویه خوشحاله
چه یادګار به وي ترتلو هم ترتله

لور په لورې دَ جهان ګرځوان پاره شۀ — کور په کور مِ دَ رندئ کار بنکاره شۀ
چه مِ پټه په لستوڼي کښې نوشله — دَ هغې پیالې جهان په ننداره شۀ
دا څۀ زړۀ نۀ دے چه اوس مهر په ما کا — راته نرم هغه سخت سنګِ خاره شۀ
چه دَ عمر څۀ مایه تروا ړه تیر شوم — دَ خوبنئ ملک څما په اجاره شۀ
اوس به کوم ارمان کوم سوبه مِ وشوه — چه رقیب دَ یار له دره آواره شۀ
دَ هغۀ قدر لوم ترے به څارېږم — چه په غم کښې چاره جوئ دَ بیچاره شۀ
اُودۀ بخت وته مِ ډیرې نارې وکړے — ویښ له خوبه په روستئ نړئ ناره شۀ
جدائي ورځنې مرګ دے سرې وُمرې — دَ بُتانو وصل عُمر دوباره شۀ

کۀ خپل ځان هوښیار وی هوښیار به نشي
اوس خوشحال دَ لیونیو په شماره شۀ

له تانه چه جدا شم په ناکام په ورځ و شپه
نۀ خوب نۀ مِ خوراک دے نۀ آرام په ورځ و شپه

بل خیال فکرئې نۀ وي بې دَ یار له رویه مویه
دَ زړۀ په حال خبریم زۀ مدام په ورځ و شپه

دَ مخ ثنائې وایم دَ زلفینو ئې صفت کړم
په خوله کۀ په خامه وي په صبح و شام په ورځ و شپه

یو بنۀ نظر چه وُکا سرمایه مِ دَ ژوندون شي
کافي دے خلوتي ته یو بادام په ورځ و شپه

دَ مشکو دَ کافورو خوشبوئی به ترے قربان کړم
کۀ ستا له لوریه راشی یو پیغام په ورځ و شپه
دَ مشکو ګل قندے به ئے خوشحال ترے صدقه کا
کۀ تۀ ئې سرفراز کړے په دشنام په ورځ و شپه

ما پټ دړلۀ کوګل کښے همیشه اسرار دَ زړۀ
آخر ئے خوناب وکړ په هر لور پرهار دَ زړۀ
له پښے اغزے مشکل دے په حکمت له تلے خیژی
دانا طبیب پکار دے چه وکاږی خار دَ زړۀ
دَ نورو تونګری کۀ دَ دُنیا په سیم و زر شی
په دا به تونګر نۀ شی بے دید نه خوار دَ زړۀ
دَ شونډو دارو ورکړه کۀ ئے تۀ په رغوِل ئے
په سترګو ئے علاج کړے خو به مری بیمار دَ زړۀ
کۀ بنۀ دے هغه زړۀ دے چه مئین په هیچا نۀ دے
چه یو ځله مئین شی نور تر تلو زار دَ زړۀ
غمژن به دا رَ دَ هجر خو بش دَ وصل په اُمید کښے
په اورا و په اوبۀ کښے کړۀ خدائے څۀ روزګار دَ زړۀ
دَ یار مهر ترما راغے څما مهر تر یار ه !
ربښتیا ده داخبره چه تر زړۀ ده لار دَ زړۀ
چه خپل اختیار ئے تول دَ خپل آشنا په لاس وورکړ
رحمت ئے په دا کار شه خو هم دا دے کار دَ زړۀ
خوشحال خسته به اوس دَ خاطر راز وچا ته وائی
چه لاړ ورته ئے شا کړه دماغی بنۀ یار دَ زړۀ

ما دَ شیخ او دَ ملا حکایت نۀ زده
ما بے مینه بل روایت نۀ زده
چه ئے نوم دَ عاشقانو په شماره شو
دا هم بنۀ کۀ بوالهوس محبت نۀ زده

ته چه هسې په چمن کښې چمان کیږې
سیوره تا ځما د یار په قامت نه زده

عام عالم وته پخپله ځان نادان کړم
هسې مه وایه چه ما کنایت نه زده

د درویش په زړه کښې درست کتاب مرقوم کړم
که په خوله ئې د عربو لغت نه زده

وائې تا سره م نیت دے د یارئ
هسې هیښ یم کنړه ما په تش نیت نه زده

نادان یار به صدقه تر هوښیار یار کړم
نادان یار د آشنایئ قیمت نه زده

عاقلانو څخه څو رنګه حکمت دے
لیونیو یو د عقل و حکمت نه زده

وعاشق ته نصیحت مه کړه ناصحه
خود پوهیږې چه عاشق نصیحت نه زده

د خدمت له نتیجې نه چه محروم شوم
زه لائق نه یم که تا عنایت نه زده

چه بے سَته میلمه کیږی هغه زه یم
که آشنا م د هندو غوندِ ست نه زده

زاهدان چه مونځ روژه کا جنت غواړي
ما خوشحال د مزدورئ طاعت نه زده

ما په ننګ د پښتانه ځوانان قربان کړه
بیا م غوره غوره جمع ښه ځوانان کړه

د سرې د لاسه مړه وے څه به ښه وو
لیونی ګوته سپی مړه ګوره شیران کړه

هو مړه کوټه کوټه کوټه ارمانونه
هر نفس ځی په ارمان ارمان ارمان کړه

په یوه ساعت ښادی په بل غمونه
په لحظه لحظه تیریږی د آسمان کړه

چه په شپه راسره ټول وو په زرګونه
په صبائے له ما واړه ځان په ځان کړه

ځنې مړه ځنې ژوندی له ما جدا شول
زه جدا په غاړه غرونه په ارمان کړه

چه شاهان ځوانان م و مړل هاله مړ دی م
که د هر یوه م ساری سل پرمان کړه

یو مهلت د عمر بل مدد د بخت وے
په دشمن باندِ م وشوې په داشان کړه

لوئے قتل هلک بند ښهرونه سوی
مال او لجه بندیان دِ کل واړه جهان کړه

چه نو ښهر م واهه کوهاټ م پریښود
لا هاله ځما داکړه وو د نادان کړه

چه بداصل سره ښه کا کله ښه کا
د موذی سره څه سود دِ د احسان کړه

سر خودا په خوشحال وشوه بیا ترکاله
ګوره څه رنګه ښکاره شی د سبحان کړه

نن په ستړګو ورو څوله ما خوار زهد و تقویٰ وړه
ناز و غمزې ګوره عقل و صبر م صبا وړه
شیخ ملا قاضي مفتي صوفي سره یو ځائې دي
پاسه بنیوه وکړه یو یو خیز م له هر چا وړه
جور د اغزي وړي چه وګل وته هوس کا
یارکه بنائسته وی ته ئې هم جور و جفا وړه
دور د او رنګ زیب دې د ریا زاهدان ډیر دي
پټه په لستونړي د شرابو ډک مینا وړه
تل چه عاشقان دي پسې تعین رقیبان دي
ته چه عاشقي کړې د وکړي شور غوغا وړه
مال دې که م ملک دې خولا مړنه یم ژوندې یم
هرچه ستا په خوا دي هغه واړه لا پخوا وړه
ډیرې دي نګارې بنائسته پري رخسارې
نور و لره نور څه ته څما زړه په تنها وړه
شونډې د حلوا دي عاشقان د حلوا وړي
بنه په اوږ یو څه په پلو پټه دا حلوا وړه
تا وئیل خوشحاله یو کالې به له تا غوارم
زړه دې نور څه نه دې بنه درکړې م وتا وړه

نن ئې بیا د دلبرئ خنجر تر ملا شه
بنه چه زر د مختوری وشوه رقیبه
ما وې بخت به یو بنه یار راکا و ما ته
ګل په دا سبب ارزان درومي په بیه
په بلبلو باندې زیرې د بهار کا
راشه ګل وته نظر وکړه اغزیه
د فراق شپه ئې څه هومره اوږده نه وه
بنه چه سرئې لا اوله په پارسا شه
هغه یار چه مرور وو بیا په پخولا شه
چه د درست جهان نا ترس وو یار څما شه
چه ئې ډیره بقا نشته بې وفا شه
چه نرګس په هسې سخته خله وا شه
ګل په هومره زیبائي یار د چا شه
په خوشحال باندې هزار خله صبا شه

نشته بانګ د مؤذن په درست تیراه
مګر واورے بانګ د چرګ په سحرګاه
که اورکزی ئے سراسر واړه ګمراه دی
آفریدی دی تر ګمراهو لا ګمراه
د اسلام ارکان احکام حلال حرام شته
آفریدی اورکزی نه دی پرے آګاه
نه نمونځ د جنازے نه ئے امام شته
نه زکوٰة نه سرمایه نه د زړه ښراه
ښه هغه چه مستقیم په شریعت وی
بد هغه دے چه په شرع وی تباه
د دُنیا چارے همه واړه فانی دی
که باقی دے خو یو نوم دے د الله
چه یک لخته د دُنیا په کارکښے غرق ګی
له هغه غافله څویه نه آه آه
په اوبو سره ګندګی له تنه درومی
په توبه په استغفار سره ګناه
موحد د تصوّف د رسالو دے
مسئله د شریعت ګنړی ګناه
کله کله چیرے ووائی دا هومره
څنے څنے لا اِلٰه اِلاّ الله
چه ګناه همیشه کا توبه ئے نه وی
له هغه قومه خوشحال غواړی پناه

نامرد مل د چا مل مه شه
سر په بد نائی کل مه شه
پئی غوړی واړه مردار کا
د خپل کور پیشو غل مه شه
یوچه دوه ورته بنکاریږی
خوګ په سترګو احول مه شه
چه یا سیب یا بهی کیږی
بصل مه شه حنظل مه شه
د غوټئ غونډ موسیږی
د ابرو ترمنځ خل مه شه
په وئیل که ډیرا افضل ئے
له خوشحاله افضل مه شه

نصیحت دے که ئے آورے درته وائی بیچاره
نفس به ډیر خه درته وائی پسے مه شے آواره
روحانی بخره د چا ده چه ئے مینه په درویش وی
نفسانی بخره د چا ده چه جاهل وی هیچکاره
چه وهل خوړل خوړل کا هغه باز دے یا شاهین دے
چه ئے سوړے لره وړینه یا میږے دے یا فاره

علم تا بیا ئی په پورته جهل تا بیا ئی په کښته
یا عیسیٰ لره وردرومه یا قارون ته ځان سپاره

چه ئې علم فضل نهٔ وی چه په تخت دَ بادشا کښینی
یا یو یېږ دے یا لیوهٔ دے یا ئې ګاؤ خر شماره

بے وفا دروغژن مهٔ شه ناسپاس حق ناشناس هم
ره زنی کړه بنګ شراب خوره څرخ وهه په دوتاره

دَ نبا تو حلوا مهٔ خوره چه منت ورسره مل وی
خپل کشکاب دَ خپل محنت خوره په سر را وړه پښتاره

کهٔ وعده په قیامت وی هوس مهٔ کړه و پورته
څو توانیږے بښځه مهٔ کړه کهٔ په مخ وی ستاره

په هوا په هوس تللم لا تراوسه هسے زغلم
واویلا دَ نفس له لاسه ګریوان چاته کړم پاره

څوک نیکخواه په جهان نهٔ وو چه ئې ماته هدایت کړے
چه خبر په قباحت شوم پکښې ډوب یم یک باره

لوئې دریاب دے توره شپه ده پکښې څی څما بیړئ
خدایه خضرؑ را بنکاره کړه چه لاس را کاندی بنکاره

هُنر هم په خپل مقدار شته دانش هم شته په خپل قدر
کهٔ یو بخت ورسره مل وی دَ خوشحال کړه ننداره

نهٔ څما دَ زړهٔ لَربَر دی بنا ئُسته
همیشه م دَ زړهٔ سر دی بنا ئُسته

خپل ژوندون دَ دوئ دَ مخ دپاره غواړم
له دننه م خبر دی بنا ئُسته

بُت پرست دَ یوهٔ بُت یم نهٔ دَ واړو
کهٔ بُتان م دَ آذر دی بنا ئُسته

زهٔ به مخ دَ یار مخے نهٔ کړم دَ واړو
کهٔ ګلونه سراسر دی بنا ئُسته

زهٔ له ډیرے څلے یو پریږدم بل ګورم
سره یو تر بل بهتر دی بنا ئُسته

خال وخط به ئې څماله زړهٔ لاړ نهٔ شی
کهٔ بیرون م تر بصر دی بنا ئُسته

په وار وار ترے لعل ودُر دی راتوئیږی
ستا وئیل لکه سرهٔ زر دی بنا ئُسته

په خطا کۀ په ختن کۀ په کشمیر شته
نۀ چه دامِ تر دلبر دی ښائسته
کۀ هر څو دَ ځوانئ عشق لری خوشحاله
کۀ زړونه مکدّر دی ښائسته

نن دِ دور دے دَ خوبئ کبر دماغ کړه
یا دَ یار په زړۀ مرهم بړده یائے داغ کړه
په خندا خندا ئے غاړه غوړئ شه
دَ خپل یار خاطر له غمه نه فراغ کړه
ستا دَ زلفو په تور تم کښې مِ زړۀ وُرک شۀ
چه ئے بیا موم ښکاره دَ مخ څراغ کړه
دَ مخ خال دِ تور کارګۀ دے ځما زړۀ وړی
دَ بازونو دَ شاهینو ښکار په زاغ کړه
دَ خلوت په مخ کښې ناست زاهدان ښۀ ګی
ساقی زۀ چه زاهد نۀ یم ګشت دَ باغ کړه
ساقی لور په لور ګلزار دے چه لیدۀ شی
له توبے نه کړه توبه په لاس آیاغ کړه
ګوره کومِ لوری ته لاړ دے موندۀ نۀ شی
دَ خوشحال دَ زړۀ پیدا چرته سُراغ کړه

وچ لرګی و بله کښیږ ده
اور پرے پورے کړه نور پریږده
په تیرو تیرو آغزیو
تا ته چا وئیل چه پښے ږده
پکښے ظلم ډیر ستم شی
له بیداده ښهر لیږده
دَ خزان سیلئ راغلی
لکه پانړے هسے ریږده
تل طفلان دَ خپلو اوښکو
دَ ګریوان په اونړی بلیږده
په اَعُوذُ په لاحَوْل
سر آخله له سر ویږده
اوس پیری راغله خوشحاله
دَ ځوانئ چارے پریږده

هر عاشق چه بهره مومی له حضوره
په هغۀ باندِ سلام له ما مهجوره
ښۀ دِ قدر دَ وصال د ساعت زده کا
و ناظر ته تل جلوه نۀ کا منظوره
اوس دَ دیو جونو وینځو په ځائے نۀ ږدۀ
دُرخانئ آدم خان کړه مشهوره
چه په دا هسے جمال ورځنے زووے
بوره مور دِ ښاپیرئ وه کۀ حوره
یاربه چا په یوۀ درنګ له لاسه پرینښ
جدائی له یاره نۀ شی بے ضروره
صبر تاله مانه درست په کا تۀ یووړ
بیا وَ ما وَ ته وئیل کړے ناصبوره

زۀ لا هسې په يارئ کښې غوګ نۀ يم چه لمن به دِ پرېږدم په تيره تُوره
لکه باد چه لوئې نښتر وُولی په مزکه هسې رنګ ورپسې ولوښتم بيخ بُوره
دَ ښۀ يار ديدن دَ دواړو سترګو نور دے خدائے دِ نۀ کا دَ هيچا سترګے بے نُوره
کۀ آسمان او زمکه خولۀ وبله وروړی
دَ خوشحال خاطر به نۀ وی بے سروره

هغه کارلکه په تور وو ما ليدۀ چه په سپين نور وو
چا به مشک په کافور ورکړۀ ولے بيه نۀ وه زور وو
تل په شپه بازار خوريږی په رنړا کوره چه خور وو
يا يو خوب وو چه ليدۀ شۀ يا يو خيال خالی بيور وو
چه څيګر خوری دَ خپل څو يه عجب ښۀ مهر دَ مور وو
اُوۀ غلۀ پرے حواله وو څۀ ناتارشۀ يو څۀ کور وو
لرځے راکړۀ ډيرځے يوړل پوَر ورے ځے سودخور وو
ما تۀ وُليدے خوشحاله
چه دِ څومره زور وشور وو

هر سړے په خپل کنګاش پوهيږی ښۀ په خپل زيست او په معاش پوهيږی ښۀ
بزګر دَ کر دَ کيلے هُنر ښۀ زده بازرګان په خپل قماش پوهيږی ښۀ
تولول به ځے هغه کا چه ممسک وی په بازنه ځے قلاش پوهيږی ښۀ
څوک دِ هيڅ ورته دَ مټ خبره نۀ کا عاشقان په خپل تلاش پوهيږی ښۀ
دَ شرابو صفت څۀ کوے نور چا ته په دا کار رند واوباش پوهيږی ښۀ
دَ عسلو په حلوا ماړۀ ناپوهه دی ګرسنه په نان و آش پوهيږی ښۀ
قلمزن حساب کتاب هندسه رقوم زده شمشيرزن په جنګ پرخاش پوهيږی ښۀ
وخوشحال ته وائی خلق ښۀ پوهيږی
ظن دَ خير دے دے کۀ کاش پوهيږی ښۀ

هرچه ستا دَ زړۀ رضا واړه هغه کړه خو چه زړۀ دَ چا خوږيږی هغه مۀ کړه
کۀ دَ کسب دَ روزګار ځنې نۀ مردشته دَ نامرده ډوډئ مۀ خوره خان خفه کړه

یارهغه چه دَ تنګسے په وخت پکار شي | چه دعوی کا دَ یارئ حال ئے زده کړه
چه تنګسه دربانډِ درشي که میړۀ ئے | په تنګسه کښے دَ خوارئ ځان ورمۀ کړه
په خوارئ کښے زیست روزګار ترمرګ بتر دے | یا دَ بل ګیډه یا خپله ګیډه بڅره کړه
له څوانمرده هومره غواړه چه دزیست شي | دَ نامردخونه همه واړه اولجه کړه
غلیواز دَ بل منګلے وته ګوری | لکه باز لړے نږدے خپله غوټه کړه
که دعوی دَ مړنتوب لرے په زړۀ کښے | آس دَ وند تلاش په غشی په لیندۀ کړه

هریوبیت ئے دَحلواخوږه نهرئ ده
که مشتاق ئے دَ خوشحال ویل مزه کړه

هرآفت چه په درست عمر رادوخار وو | چه مِ خیرکړ درست څما دَ ژبے کار وو
چه ودانے چارے ورانے په ساعت کا | چه مِ ولیدۀ په چارو کښے تلوار وو
دَ هرچا یاری مِ ولیده په سترګو | هم هغه راته بلا شۀ چه مِ یار وو
ناهموارے به هرګز وریپښے نۀ شي | که په خپله اندیښنه سړے هموار وو
صبرناکو سره جور فلک نۀ کا | دَ فلک جور له چا چه سبکسار وو
په دا باغ کښے مِ ډیر ګل ترنظر تیر دی | دَ هر ګل ترڅنګ ما ولید چه خار وو
زړۀ په طمع دَ وفا له بے وفا کړه | په خپل ځان باندِ پخپله ستمګار وو

که هرڅو باندِ مرهم ږدی نۀ رغیږی
دَ خوشحال په زړۀ داغۀ دَ غم پرهار وو

هرګز به توبه نۀ کړم دَ بنۀ مخ له نندارو زۀ
شیخان پیران دِ واوری دایم وایم په نارو زۀ

که ما دَ عشق خبره په ایما تردا پخوا کړه
بنکاره به ئے اوس وایم په رباب په دوتارو زۀ

که نور عالم ګلونه په دستور راوړی خپل کور ته
راوړم دَ یار له باغه هره ورځ په پشتارو زۀ

زاهد وائی وما ته راشه کښینه تسبیحات کړه
یو مِ ده نیولے نۀ یم هیڅ په داشمارو زۀ

گدائے غوندِ جار دو زم سینه سوے په طلب کښې
که ډیر لرم په کور کښې هر قماش په انبارو زهٔ
پرهارئے دَ بڼو دَ غشی لا بده بلا ده !
وتلے یم دَ غشو دَ نیزو له پرهارو زهٔ
خوشحال غوندِ که سود لری که زیان خما قبول دے
عادت یم دَ غمونو دَ اندوه په اِجارو زهٔ

هیڅ خبره نهٔ وه چه به ما تر خولے ایسته
ستا دَ خولے تشبیه م غوټئ ولے راوسته
ستا دَ خوږو شونډو په شاړهٔ شی بیا رته گرځی
څکه مګس سر وهی دا هسے دو دسته
زهٔ او تهٔ په دا دور تروارو نه افزون یُو
څهٔ حیران مجنون وو، څهٔ لیلیٰ خواره خسته
ستا دَ تورو زلفو زنځیرونه دی په پښو کښې
نهٔ شم چرته تللے درته پروت یم پابسته
هر زمان ستا خیال دے چه خما په سترګو گرځی
ویښ یم که اودهٔ یم که ولاړ که نشسته
ګل او سے په حُسن آما ګل مهٔ شے په عمر
راغله، سرفراز شوم، ستا له باغه ګلدسته
واړه هغه حُسن لطافت دے ستا په مخ کښې
چاچه دَ یوسف قصه وماته ولوسته
کله سروِ ونه هسے سمه ده په قد کښې
چا نامه دَ سروِ ستا وقد ته اخسته
وروځے دِ لیندے دی توربا نړهٔ دِ تیرهٔ غشی
وولهٔ صرفه مهٔ کړه چه دِ ډکه ده درسته

تاوئیل وماته خو ډیر غم غواړے له مانه
ستا په غم خوشحال یم خو رادرومی پیوسته
زړۀ لړے دکانړی په خوشحال بانډ پوست نۀ شو
څۀ شوکۀ دخولے خبره کړے چیرے پسته

هرتشنه چه د وحدت په سیند سیراب شۀ
نورهمه جهان ورۀ وته سراب شۀ
چه په زړۀ ئے د وحدت ډیوه شوه بله
تجلی به ئے له مخه څی آفتاب شۀ
چه د عشق دنافے بوئ پرے لګیدلے
درست صورت ئے سرترپایه مشک ناب شۀ
هرچه ولیږ لۀ هستئ ونیستئ ته
فراغت د دواړو کونو د عذاب شۀ
چه تروۀ ترخۀ قبول لکه دریاب کا
هم هغه د قیمتی ذرومآب شۀ
چه لمبه ئے دآتش کړه په ځان تیره
له غه پسه دګلابو ګل ګلاب شۀ
کۀ په زړۀ کښے ئے سختی وه لکه پنړه
هم هغه د زمانے داوړ په تاب شۀ
چه د ډیروانډ یښنونه ئے زړۀ ورکړ
په مثال لکه خسنړے د دریاب شۀ
دشرابو خوبنی هیڅ نۀ وی بے نشله
نقل څۀ دی معرفت عمر شراب شۀ
دکمال کسب پایه د سعادت دہ
هغه بنۀ چه دکمال په اکتساب شۀ
تۀ هم زړۀ مراد وغواړه له عالمه
چه په علم ئے عمل وکړ کامیاب شۀ
چه دوستی د محمدؐ لری په زړۀ کښے
مینه دارئے په اولاد اوبه اصحاب شۀ
چه له شرعے یوقدم درومی بے رخه
وګوشمال وته تیار لکه رباب شۀ
په هغۀ م زیرے وکړه چه دفترئے
واړه ډک خاصه په کښلیو د ثواب شۀ

په حیات صورت به وګټی ځان خاورے
چه خوشحال غونډ ځبر په خپل حساب شۀ

هو په دا قائل یم بښکلی ډیردی لاړ په لور شته
خدایګوکۀ دحُسن سپارۀ تاغونډ یوسپور شته

تاوے چه غم مۀ کړه یوه ورځ به د غم وخورم
څۀ لره به غم خورم چه م تاغونډ غمخور شته

ستا په سر سوګند خورم ته خما و سرته لوړے
ښځهٔ مهر دِ دا دے کهٔ لا ښځهٔ مهر دِ نور شته

اے چه راته وائے عاشقي شرم پیغور ده
واړه م قبول دی که م شرم که پیغور شته

خلق م چه بولی ستا له مخه و ګلزار ته
بل بهار به څهٔ کړم چه م یو بهار په کور شته

حکم امر ستا دے کهٔ م بولے یا شړے م
څهٔ به درته وایم دَخوشحال بنده څهٔ زور شته

یا خما دَ بینایئ نظر نشته
یا په دا نزدے ملکونو دلبر نشته

کهٔ اَختر نهٔ وی دَ یار سره اَختر دے
بے مئینه کهٔ اَختر وی اَختر نشته

سپینه خولهٔ کهٔ راکوے په ځان اړمهٔ یم
معشوقے له مانه زرغواړی زر نشته

په اول وصلت دَعشق په توره لاړ شو
دَعاشق سړی په تن پورے سر نشته

کهٔ غوټے پسے وهے په لاس به درشی
چا وے داچه په دریاب کښے ګوهر نشته

نور تروهٔ ترخهٔ کهٔ خوږے کوندِ پیدا شی
وطوطی ته هسے وایه شکر نشته

ستا غزا لره به زهٔ خپسر کا فر کړم
څهٔ ارمان کړے چه ځوک وژنم کافر نشته

په شامت ئے دَ ما ترے غر نړیږی
لا په دا دَ آفریدیو بصر نشته

دَ شمال ښځینه کا په جنوب درومی
دَ ښکاری سړی په ژمنه باور نشته

کهٔ دَجنګ په کار کښے ډیر دی حکمتونه
خوصابر نهٔ شے ځلمیه ظفر نشته

څهٔ عجبه بادشاهی لکه خورشید کړم
یک تنها په جهان ګرځم لښکر نشته

نن دَ دواړو دلبرانو غوره ته ئے
کهٔ دِ یو لونګ په پوزه زیور نشته

دَ عنبرو بوئ اَلوزی ستا په کوڅے کښے
واړه ستا دَ زلفو بوئ دے عنبر نشته

په ځوغږهٔ په غرهٔ دَ باز غوندِ پرواز کا
بیا به ولے دَخوشحال خټک پَر نشته

آشنائی دِ راښکاره شوه بے وفائے
چه خما سره آشنا دَ بل آشنا ئے

وبل باغ وِ ته به ستړے کړے نکړے
چه خما دَ باغ بلبله یا طوطا ئے

لا به کله ځائے خما په سترګو وګرے
ته مئین ځما دَ دوو سترګو توتیائے

زۀ جدا له تا په سوز و په ګداز یم
تۀ په ګشت دَ ګلستان په لاس مینائے

په لیدلو دَ خوبئ درسره را ورے
لکه تللے یاغی باز راغلے بیائے

دَ اُمید غوټئ م واړه شګفته شی
چه دِ اووینم په ما لکه صبا ئے

ستا په مینه پورے سل کا نخوالو نه
دَ خوشحال دِله په چا باندِ شیدائے

مُسلمان به درته خوک وائی خوشحاله
دَهوا زنار په غاړه یو ترسائے

آزلی بخره چه چا راوړه له خدایه
نوریدل به ئے په چاشی راته وایه

چه دِ زړۀ راضی دَ چا په آزار نۀ وی
تۀ په خپله بخره خوښ اوسه همایه

دائے واړه دَ فراقه نه فریاد دے
چه په خورنګه نارے آورے له نایه

کۀ په اصل دِ سیّد بادشاه زاده وی
چه هُنر درځخه نۀ وی مۀ ئے ستایه

کۀ هرخو دِ زور قوت تر هرچا ډیر شی
دَ خدایئ دعوی مۀ کړه کد خدایه

یو ساعت چه په طاعت تیر کړے دا بنۀ دے
دَ دُنیا له کروفره هوئ وهایه

کله ګل غوندِ نمائے کله بلبل شے
خوک به نۀ وی لکه تۀ ئے خود نمایه

بله بخره به په زور له چا وانخلی
دَ خوشحال بخره چه توره ده له ځایه

اوس خو کار دَ وار دَ پار دے
کۀ دَ خویه کۀ دَ پلار دے

یا خما خویه دا شان دی
یا دَ هرچا دا روزګار دے

نۀ په حق نۀ په ادب دی
خبر نۀ یم دا څۀ کار دے

چه په خپل اولاد ناز یږی
هغه کس کله هوښیار دے

دَ اولاد په کار خبر شوم
اولاد واړه لړم مار دے

دیرش م خویه په شماره دی
دَ نمسیو م څه شمار دے

لوئے هلک واړه خبر دی
هر یو جنګ وته تیار دے

اورنګ شاه وته نظر کړه
چه یو څۀ خونی خونخوار دے

ورونړه پلار ئے وبله کښیښول
بادشاهی کا شهریار دے

چه ژوندے کړے خوشحاله
لا منت د کردګار دے

اورے ولګی په خونه چه عاشق شی | کورے خور لکه د قیس او د وامق شی
یوه زړه لره یوه مینه کافی ده | څوک چه ډیرے مینے کا د غم لائق شی
د مجنون له حاله څه وایم چه څه دے | په ژوندو یو کښے به کوم ترما فائق شی
ډیر عالم د مینے لاف وهی په ژبه | مرد هغه چه په دا لافو کښے صادق شی
چه ئے لار د خولے یوه د زړه وی بله | یوه خدایه مخ دِ تور د منافق شی
د راحت په وخت هزار هزار یاران وی | د محنت په وخت کښے یو یو موافق شی
د نیمګړو طبیبانو ادراک نشته
د خوشحال د رنځ علاج به یه حاذق شی

آه که ئے یو ځله م یار راشی په دست کښے | لکه لوئے ماهی د خوار صیاد په شست کښے
چه په هر زمان ئے وینی و مخ ته | د ګلابو ګل پیدا شی ستا په شست کښے
ناز غمزے بنیو چه ستا زده بل چا نه زده | سرئے نن د دلبرئ په بند و بست کښے
دا خوبی به د ګلزار تر تلو نه وی | ساقی ستا کومه خوبی ده په نشست کښے
ساقی جام د میو مه پریږده له لاسه | خو د عقل څه ذره وی لا په مست کښے
دا نایان فکرونه کا ورنه رسیږی | د دلبرو تنګے خولے په نیست او هست کښے
په بلند همت کښے پورته پورته دروی | کښته کښته ځی سړی په همت پست کښے
په طلب به ئے خوشحال تقصیر و نه کا
په مدد به د طالع راځی په دست کښے

برایه م زړه خبرے ستا د ناز وے | له خوښئ به ئے یوه وینا باز باز وے
د هجران له دوکه مرم هغه م وژنی | چه به ما او تا جدا له غیرو راز وے
دوه په دوه به سره ناست وو تر صباحه | د یوه راز موانجام د بل آغاز وے
همګی په مثال شهد یا شکر وو | چه به تا را ته ترخه ترخه ناساز وے
ستا له زلفو عقل سترګو ته فریاد کا | کله چا د غلو خبرے په غماز وے
چه له یاره ئے بیلتون په ډیر ارمان وو | دا غزل خوشحال په وخت د بانګ نماز وے

بے یارئ دِ داخوار مری یا رَوه ئے — رقیبان پہ داخوار یږی خوارَوه ئے
تا وے مخ بہ در ښکاره کړم صبر وکړه — نو زړم توان دَ صبر نشته ښکاروه ئے
زر فتنې راسره کړے زړهٔ ئے اخلم — کهٔ یو ځل چیرے غلط شوم ښکاروه ئے
تر جمال ئے ډیر پتنګ غوندِ ځاریږی — ستا دَ حسن کمے نشته ځاروه ئے
چیرے نه چه سلامت له پرے وُوزی — یو عجیب غاری غرځهٔ دے ځارَوه ئے
منتونه دِ دَ خولے راباندِ بار دی — ستا تر سینه خولهٔ ځاریږم باروه ئے

وهر چا وته مرهم شه ورته خانده
گناهګار خو یو خوشحال دے خوارَوه ئے

بے بنا ئُسته دَ هیځ مخ ننداره نهٔ شی — چه کل پریوزی محبت له خاره نشی
دَ هجران دشوار ترهر دشوار دے — دَ چا چارِ دِ پہ هجران دشواره نشی
اندرون خاطرِم درست پاره پاره شهٔ — او له خولے نه مِ فریاد له ډاره نشی
دَ دے هسے رنګه رنځ علاج هم دا دے — چه ځ ګیروےمِ پہ طبیب اظهاره نشی
دَ خاطر علاج مِ زر وکړه طبیبه — چه مِ زړهٔ پاره دَ خدائے دپاره نشی
دَ هجران له دُوکه وایم چه نعرے کړم — ولے خو کړم چه زبون شوم ناره نشی
ما پہ خپل صورت دا کار دے آزمائلے — له هر ځهٔ نه صبر شی له یاره نشی

پہ وئیل ئے فهم وکړه اے خوشحاله
چه دَ یار دَ مینے راز دِ ښکاره نشی

بے دَ یار دَ مخه نهٔ وینم پہ کسی — دواړه کسی ملک دَ نمر پہ شعلو کسی
زړهٔ مِ ستا پہ زلفو بند شهٔ تا کباب کړ — ځوک شهباز هم دَ کباب دپاره نسی
خدائے ستا دَ غابنو شونډو امان وُکا — لال و دُر پہ نظر مات کا بد حرصی
ماله خپلو شونډو مهٔ شره بل لور ته — دَ حلوا له خوانه نهٔ درومی لوغسی
ستا دَ مخ پہ مینه سوزم لوُلپه شوم — دَ آتش لمبه هیځ نهٔ پریږدی دسی

کهٔ ئے چیرے دَ قدم خاورے موندے شی
خوار خوشحال به ئے رنجوله رانیسی

بادئے لاس پہ لمن کښیږدی سړ ریږدی — کله ئے مخ وته نظر کا خولے برېږدی

لاله ورایه رنگ و بوئ ورته پیشکش کا
چه په سیل دَ بهار دَ گلو پښے بږدی

ځوم ستا مروند دَ سوسرو ویږدے نشی
سر به هیڅکله کښینه نهٔ بږدم په سرو ویږدی

هغه کس چه م داغ ایښے په خاطر دے
هم هغه به بیا مرهم وربانږدِ کښیږدی

ځو خپل زړهٔ نیسم دَ زلفو له سودا نه
راشی بیا ډُورے درازے راته بلیږدی

دَ خوشحال خاطر په مثل کاروان سرائے دے
اندیښنے پرے کاروانونه ملی لیږدی

بیهوده ئے دَ دستار په شمله خیال دے
چه په وخت ئے دَ مردئ حال بل حال دے

مرتبے دَ هرچا نهٔ دی سره سمے
دَ خرهٔ بار دَ فیل په شاباندِ مثقال دے

څوک جرعه دَ میو نلری په جام کښے
دَ چا جام دَ صافو میو مالامال دے

داکلسن دِ همیشه تروتازه وی
چه ئے خیز دَ ښو گلونو کال په کال دے

په خوږه میوه دَ وُنے قدرشناخت دے
دَ سړی قدر دَ نیکو په خصال دے

په ناحق به گرم ما نړه له هیڅا نهٔ کا
دَ بدانو غلیم واړه خپل احوال دے

کهٔ جنت لره څوک بیائ یا دوزخ ته
بله نهٔ وینم په مینځ کښے خپل اعمال دے

کشکے پاتے شی تر تلو دا و ماته
په دُنیا م دَ هرچا سره جنجال دے

چه دَ پلارا و دَ نیکهٔ هُنر ئے نهٔ وی
هغه خُویه پیدا شوے غیر سیال دے

ته ئی چه لاف دَ مردانو دَ میدان کړے
په میدان دِ کوم راوړے استقلال دے

دَ شهباز تر ځایه کله بابښے رسی
کهٔ راوړے ئے له ځایه پروبال دے

کهٔ همه خلق ئے سرشی په غُند نه
بیچاره خوشحال په خپل هُنر خوشحال دے

بدبختان دَ مورپه نس کښے بدبختان دی
چه دَ مور له نسه پریوزی هغه شان دی

په دُنیا کښے زیست روزگار په بدبختئ کا
بل جهان لره بدبخت شقی روان دی

حمیده چارے چه کا پکښے ناخوښ دی
خوچه شی په ذمیمه کښے دل شادان دی

چه هوائے دَ خپل نفس په هغه لور ځی
پیروی ئے په هرکار کښے دَ شیطان دی

کهٔ قدم چیرے ثابت کښیږدی په لارے
په دویم قدم بیا زر په زړهٔ پښیمان دی

کتابونه دَ آسمان دَ مزکے لولی
په عمل ئے فرق دَ مزکے دَ آسمان دی

په باطن ئے زړهٔ کمان سره لړلے    په ظاهر وئيل په ژبه مُسلمان دی

په خبرو کښے ئے فيض موندهٔ نشي    مذ بذب په قول عهد په پيمان دی

په طاعت په عبادت کښے کهٔ بلعم شی    په آخر دَ نس په نغوته بے ايمان دی

زهٔ خوشحال خټک بنده دَ هغه چا يم
چه ئے رَو دَ زړهٔ دَخولے سره يکسان دی

بخت دولت دا واړه توکی فلکی دی    نهٔ په ذات نهٔ په بنا نست په زيرکی دی

دم به نهٔ وهی په دم وهل کښے زيان دے    ننداره دِ دَجهان کا چه ذکی دی

غم اندوه شدت هغه وروړی خپل زړهٔ ته    چه په کار دَ مشيت په زړهٔ شکی دی

په يوهٔ نسب کښے نيک و بد پيدا شی    محمدؐ او بولهب دواړه مکی دی

چه په عقل پوهه کم دی تر هلکو    نن هغه دَ دُنيا مال لری لکی دی

دَ مردانو قدر ورک شو بلا دا شوه    چه په هرچا پورے زيری غينکی دی

چه دَ پلار په خوئ پيدا دی هغه څويه    چه دَ مور په خوئ پيدا شول کسنکی دی

خوک په غم دَ نام و ننگ په جهان راغلهٔ    خوک په فکر دَ طباخ دَ شهنکی دی

هيچا ما سره ياری نهٔ کړه تر سره    خټک واړه پوز پريکړی بوچکی دی

نهٔ ئے بوئ شته نهٔ ئے رنګ شته نهٔ ئے خوند شته    حاسدان م دَ سپلمئ خټکی دی

په زمان زمانے خرخ وی وبل لور ته    انديښنے دَ زړهٔ په مثل توتکی دی

کله يو سر کله بل سر کله کوړه    تدبيرونه دَ هلکو مردکی دی

رنګارنګ وئيل دِ خدائے لره خوشحاله
دا وئيل دِ لکه غشی ناوکی دی

بيائے واغوست سپين قميص پټے پټے    باندِ زلفے خندروی لټے لټے

خوک به ستا سره خهٔ نرد کا دَ خوبئ    چه په هره منصوبه کټے کټے

وائے خوک به زړهٔ خماله لاسه خلاص کا    دريغه خهٔ خبرے کړے کټے کټے

عاشقان به دِ له دره نه وانهٔ وړی    کهٔ هر څو ئے لکه سپی رټے رټے

چه نری نری سپينسی غرم دَ شعر    په بياض باندے ږدم اټے اټے

دواړه شوندے م عسل دی اے خوشحاله    خهٔ په دودے په حرص څټے څټے

پہ ھرہ زمانہ ترلیلیٰ کښلے پیدا کیږی
مجنون درلرہ بویہ چہ پہ مځ ئے شیدا کیږی

پہ رنګ پہ هُنر نۀ دہ نۀ دا کار پہ سحرو دم دے
یوسر دے دَ زړۀ مینہ چہ پہ چا هویدا کیږی

چہ څوک پہ مهر مینہ سرہ خپل پیوند محکم کا
کۀ سل تورے ور واخلے سرہ چیرے جُدا کیږی

یا حسن دے یا عشق دے دَ دُنیا پہ دا بازار کښے
پہ ناز او پہ نیاز سرہ دا دواړہ سودا کیږی

خولۀ دُ نغاړہ ناصحہ چہ وما تہ نصیحت کړے
بنۀ مځ وتہ مۀ ګورہ وایہ دا بہ پہ ما کیږی

پہ سر تړلی نۀ دی نۀ اندوہ دَ دوزخ کاندی
دا کار چہ عاشقان کا وایہ کلہ پہ چا کیږی

پہ رب خما سوګند دے واړہ ګل پہ ما آغزی دی
چہ بے لہ زیبا مخہ م ګلګشت پہ صحرا کیږی

خپل زړۀ م لوئے مفتی دے روایت ور څخہ غواړم
چہ صبر کړم لہ یارہ وائی کلہ روا کیږی

یاری چہ تازہ وکړے صبر فهم پکښے ویہ
پہ رو رو نوے یار پہ هُنرونو آشنا کیږی

اَنبار اَنبار پراتۀ دی عاشقانو تہ غمونہ
بیغور دَ عاشق دا دے چہ ئے غم وتہ شا کیږی

کۀ نازکا کۀ خیالونہ واړہ وړہ دَ دلبرا نو
خوشحالہ چہ مئین شوے کۀ ئے نورے بلا کیږی

پہ څۀ دردے ځان نیولے ستا تر څنګ دے — دَ رقیب خبرہ مۀ منہ بد رنګ دے
زۀ چہ ډیر ډیر ستالہ ډیرہ جورہ ژاړم — تر دوؤ چشمو م چشمہ بحر دَ ګنګ دے
بنا پیرئی دِ پہ اورتہ هورتہ ګرځی — نن پہ دا لوری دَ شاہ دَ باهو شرنګ دے

لاس ئے مۀ پریږده له لاسه خولۀ ئے واخله
پریوتلے په یاغی راجه قلنگ دے

په وړۀ مهر محبت په خولۀ کنځل کا
خۀ عجب زیبا دَ دوو مینو جنگ دے

لکه سپے دَ خپل خښتن جور وجفا وړی
خوار عاشق تر معشوقه پورے بے ننگ دے

په رو رو باندِ قدم کښیږده خوشحاله
خدائے دِ پل دَ چا خطا نۀ کا گړنگ دے

په زړۀ سخت بے مهره یار ئے
جفا کار و دل آزار ئے

کۀ هر څو په کوکو ژاړم
تۀ لا خوښ خما په کار ئے

تا ویشتلے یم فریاد کړم
کۀ خبر پۀ خپل گذار ئے

زۀ مرهم کړم له تا طمع
تۀ م مالګه دَ پرهار ئے

چه بۀ تل ژاړم و تا ته
کۀ تۀ خوښ خما په زار ئے

زړۀ دِ وسپاری و غم ته
دَ هغو چه تۀ دلدار ئے

څوک بۀ څۀ وائی و ما ته
تۀ یو څۀ رنگه نګار ئے

چه پخپله عاشق وژنے
هم ئے وير کړے په چغار ئے

کوم ګناه دے عاشق کړے
چه ئے خبره په ناتار ئے

کله درد کله دوا شے
کله خار کله ګلزار ئے

په خوشحال دِ غم نازل کړ
چه اغیار سره کنار ئے

په کا تۀ کا تۀ م ستړګے په خا تۀ شی
چه خبر دِ دَ را تلو را باندِ وشی

تۀ خو اوس له مانه لاړے مرور شوے
دا خما یاری دِ هم ګوندِ په زړۀ شی

ګوره تا را باندِ کومے کوړے وُکړے
کۀ په پښو درځنے دردمم زړۀ م نشی

چه دیدن دَ مئین وکړمه تازه شم
لکه کښت چه په باران سره اوبۀ شی

دَ بنۀ یار بیلتون دَ ستونی پړیکول دی
په یرغ به ستونے چیرے پریکاوۀ شی

په ارمان دَ هغه وخت یم دریغه دریغه
کۀ دَ زنی سیب ئے بیا خما په خولۀ شی

دَ خپل یار دَ جدائی هسے کار دے
لکه ساه چه دَ وجوده په وا تۀ شی

بخته هومره مدد بیا را سره وکړه
چه په غیږ کښے م بیا تللے یار اُوده شی

دَخوشحال سلام په واړو ښو یارانو
ګوندِ بیامِ په لیدو سره زړهٔ ښهٔ شی

په ښهٔ مخ به خوناهان ئے
ښهٔ ترمیاشتے دَ آسمان ئے

کهٔ پرون دے زړهٔ او سترګے
راشه نن ځان دَ جهان ئے

لکه سورے په ښنو پروت یم
زړهٔ هُورے چه ته روان ئے

خدائے په ښهٔ جمال یوسف کړے
په کروړونو هم ارزان ئے

کهٔ دِ دوه کونه قیمت شی
په دوه کونه رایګان ئے

دواړه شونډے دِ یاقوت دی
مرغلرے په دندان ئے

په رښتیا وئیل بد مهٔ وړه
خوشحال ستا دے ته دَ ځان ئے

پښتانهٔ کهٔ آدم زاد دی
په خویونو کښے هُناد دی

نهٔ حکمت لری نهٔ عقل
خوبښ هرګوره په فساد دی

نهٔ دَ پلار په وئیل کار کا
نهٔ په نغته دَ اُستاد دی

چه په دیو کښے یو ښهٔ وی
دَ هغهٔ دَ سرجلاد دی

یو دَ بل په کمی ناست دی
ځکه تل په بلا یاد دی

اول زهٔ دا نور له پسه
خو شته واړه دَ احداد دی

په نفاق ئے واړه ورک کړل
کهٔ شجاع دی کهٔ جواد دی

نهٔ ئے قدر شته نهٔ پدل
ډیر ترمور او ترجراد دی

دالا شکر کړه خوشحاله
چه بنده نهٔ دی آزاد دی

په نیکئ به له بدانو نهٔ خلاص نهٔ شے
بویه داچه لکه دوئ دی هسے ته شے

دَ غمو په لذت به نهٔ پوهیږې
دَ هرچا چه زیست روزګار وی په او ربشے

دَ غلیم سترګے به تا ګنړی خسنړے
کهٔ په زړهٔ کښے ورته کسے دَ لیمهٔ شے

دَ بدخواه دَ بدخواهئ خلاصے نشته
کهٔ آسمان ته الوتهٔ وکړے مرغهٔ شے

په پاکئ کښے به دِ کړے کا متیازے
په صفت کښے کهٔ بد ذات سره اوبهٔ شے

دروغژن به دِ بیا لرے کا دَ زړهٔ نه — کهٔ هرڅوئے په رښتیا پورے په زړهٔ شے
دَ بدګویو له وټیلو خلاصے نهٔ شی — په پاکئ کهٔ فرښتو نه ورته ښهٔ شے
آفتونه په ګډون کښے دی خوشحاله — ښهٔ خوداچه کهٔ دائم غرڅهٔ دَ غرهٔ شے

په ښانست کښے دِ څوک نشته دَ سیالئ — کهٔ دِ څهٔ خو مهرهم وے نتیالئ
ورخ په ورخ دِ دَ خوبئ ګل غوړیږی — تهٔ لا اوس دَ نوی بوټی په زالئ
په پسالهٔ به مینه کاچه رنګ ئے نهٔ وی — تهٔ ګلرنګه څهٔ محتاجه دَ پسالئ
ستا دَ مخ سپاهیان همه تورے پر یاسی — ولے دوه سترګے دِ لا دی جنګیالئ
زهٔ چه ستا دَ در په تورو خاورو پروت یم — راته خس دی دَ بخملو نهالئ
دَ پاټلو په آواز سره دِ ویښ شی — چه پړے درومی تصویرونه دَ قالئ
تهٔ خواوس دَ زهد لاف کوے زاهده — کهٔ لے وُوینے زړهٔ ټینګ کړے مرد هالئ
زهٔ به نیت دربانِدِ وهارم باور کړه — کهٔ دِ څلئ دے دَ هاتی په انبالئ
خدائے دِ امن دَ خوشحال دَ سترګو وکړه — په خندا خنداچه ځی په خوشحالئ

په دانام دَ ناپوه دیدن اَلم دے — دَ ناپوهو دَ صحبت نتیجه غم دے
چه دانام دَ نادان سره ګډون کا — دلئے واړه په خپل ځان باندِ ستم دے
بد سړے کهٔ په ظاهر سړے لیدهٔ شی — په باطن کښے نورڅهٔ نهٔ دے مار لړم دے
دَ بدانو په صحبت کښے دین دُنیا ځی — شک په دا خبره مهٔ وکړه قسم دے
دَ ناپوه سره په جشن حاضر مهٔ شے — دَ دانا سره قبول کړه کهٔ ماتم دے
کهٔ بے عقل تر یوسف ښائسته روغ وی — دَ خوشحال خټک په پوهه یوصنم دے

په دا قول دَ درست خلقو اتفاق دے — ګله ستا خو یو څو ورځے طمطراق دے
کهٔ دَ رنګ خوبی ئے ستائے بود ئے نشته — په جهان کښے کهٔ باقی دے خو اخلاق دے
هسے یار دَ غورے خدلئے را کړه په غیږ کښے — چه په نوښ توګه دے په حسن طاق دے
لکه تږے وا و بو ته په تلوار دے — خسته هسے دَ خپل یار دَ مخ مشتاق دے

سلامت دِ ارزانی وی په شیخانو ملامت ئې بخره کړے دَ عشاق دے
چه یو ور په سړی وتړی بل وا کا رزق به هرچا ته رسیږی خدائے رزاق دے
کۀ ئې سرله تنه درومی نور به نشی
دَ خوشحال چه دَ خپل یار سره میثاق دے

په رو روخځ خو خبر شوم ستا له مینے لکه اورلیدلے نۀ لوګے ئې وینے
پردیسی حیران پریشان له خلقه تښتی دا په تا پسے جوګی شوم کۀ ئې وینے
چه په تا پسے ژړا کوم دَ اوښکو عاقبت به دا ژړا وکړم په وینے
چه هغه ساعت په یاد کړم لولپه شم چه به تا راته خبرے کړے شیرینے
خوک به تا غوندِ پیدا په جهان نۀ وی هوسئ سترګے عنبر موئے مخ نسرینے
هغه وخت راځه لا په چه م به کښل کړے دواړه ستا میګونے شونډے شکرینے
کۀ خامتا واغوندِ لا ښۀ شے تر نورو کۀ خو رنګے جامے واغونډے ریښمینے
تۀ م پاس دَ زړۀ په سرباندِ میشتۀ ئې نورے واړه یو سر بل سر دل نشینے
ستا په خوئ پورے حیران یم خوئ دِ ځه دے په ثنا را سره جنګ کړے نازنینے
لکه زۀ په تا مجنون دا هومره نۀ وو نۀ فرهاد هسے مئین وو په شیرینے
عشق تنها ځۀ په لیدۀ دَ سترګو نۀ دے لا دَ خولو په صفت هم کا یئے خوږینے
دَ خوشحال دَ زړۀ دَ خونے لکه څراغ ئې
لا به کله را ښکاره شے مه جبینے

په دریاب کښے چه جهاز بیائی ناخدائے دے چه ساقی ئې دو بوی ئې هغه خدائے دے
بادشاهی ئې په نصیب او په قسمت وی چه سایه دَ چا په سر کاندی همائے دے
خوک چه طمع له چا کا په حقیقت کښے کۀ بادشاه دے درست جهان شی لا ګدائے دے
درته چاوے چه پرے مۀ پرانیزه غوته تا مل دَ هر سړی ګره کشائے دے
یا دَ ښو زویو سندرے وی دَ زو وو یا دَ تورو په میدان هوئے وهائے دے
دَ هغۀ دَ غلطئ اندوه نۀ وی چه رفیق ئې په سفر کښے رهنمائے دے
وچ لکړ تر داغ داغ په مینځ کښے هیڅ نۀ چه نارے دَ جدایئ وهی نائے دے
خوئ خصلت وته ئې هم نظر دَ کړو دے کۀ جمال ئې په څو رنګه دلربائے دے

په هزار ژبه ئې ته ستايه بلبله
گل پخپله دَ خپل حسن خود ستائے دے

که باغونه که راغونه که ځه نور ځه
چه دِ زړهٔ پکښې خوشحال شو هغه ځائے دے

په هر ځائے چه قدمونه په خرام ږدی
سل منته په دا مزکه په هر گام ږدی

زهٔ به چیرے آزادی ورځنے موم
چه دلبره را ته تل دَ زلفو دام ږدی

که تر نوم او تر ننگ تیر شوم غم نے نشته
عاشق هر کله قدم په ننگ و نام ږدی

نهٔ بهار شته نهٔ ساقی شته نهٔ مینا شته
اوس به څوک ځما په لاس دِ میو جام ږدی

څوک ئے نهٔ پسندی په ما هسے بدنام شوم
دَ نیکئی نام چه څوک په ما بدنام ږدی

په صحیح سالک هغه دے په دا لار کښې
چه قدم دَ ترقئی په مقـام ږدی

زهٔ دَ کښلیو په پښو سر ږدم که نور خلق
خپل سرونه دَ پیرانو په اَقدام ږدی

ستا دَ خیال فکر مِ نهٔ درومی له دِله
په زړګوټی مِ داغونه صبح و شام ږدی

راشه گوره دَ خوشحال دَ خاطر وینے
په بیاض با ندِ چه هر حرف دَ کلام ږدی

په ناحق په ما منت کاندی وګړے
ما دا هسے منت نهٔ دے دَ چا وړے

زهٔ لعځایه دماغی په جهان راغلم
ما دا هسے دماغ اوس نهٔ دے راوړے

که درست باغ دَ میؤ ډک و ما ته کښیږدِ
ترهمت پورے مِ ځهٔ دے یو خسړے

په یوهٔ بیلک ئے نن ترهر چا بهٔ کړم
بل ئے هم دے په صبا راته نومړے

هغه کوم سبق دَ ناز او دَ نیاز دے
چه وملائے په ایځی نهٔ دے راکړے

په خوږه خندا دَ خضر عمر راکا
په مانړی سره مِ بیا کا لکه مړے

یوځهٔ بند مِ دَ غماز په غاړه پرېوت
لا ترا وسه کړ ځوم دَ غاړے پړے

له اصلی فولاده هاله تیغ رغیږی
په وار وار چه ځنے لاړشی او سپیغړے

دَ جهان په وارو وُنو نظر وکړه
هره وُنه خپل خپل خوند لری خپل زړے

زهٔ دَ یار غمونو درست په زړهٔ رغوړکړم
لام نهٔ دے دَ زړهٔ حال وچا ته سپړے

دَ تا زیانو په میدان با ندِ غوټے وی
کوُته هم ورپسے زغلی لېغړے

چه وچا و ته ئے شمار یا ئے بیان کړم
هو مره غریو م له فراقه نهٔ دے نغړے

هغه مخ نے په خپل کور په پالنګ بیاموند
چه خوشحال وو په طلب وریسے ستړے

په سینه کښے م اوده مینه پهڅ جاګی
خما ستا محبت کوره کیسی لاګی

د رقیب ویناۓ یاده شوه که څهٔ شوه
سپینه خوله ئے په خندا راوړه بهاګی

په بازئ بازئ وژلی کتلِ نهٔ شی
څکه ما په مسخرو وژنے بیجاګی

زهٔ خوشحال چه لاله ورایه وربښکاره شوم
په خندائ وے چه آؤ میرا بیراګی

په دا کلی کښے ډیر کښلی
چونړ چونړ خلق دی وکښلی

ما په دواړو کښے یو یار کړ
نورئ شمار کړ لکه کښلی

هغه هم هسے بدخوئ دے
چه په زور راسره نښلی

که دَدهٔ له چارو وایم
رائ هیڅ نهٔ دی پرښښلی

ولے څهٔ کړم پرے مئین شوم
چه څهٔ کا واړه بښلی

خو مئین په هیڅ مهٔ شے
په بلا دی مئین لښلی

کاه کباب په جدایئ کښے
کاه په وصل زړهٔ وُکښلی

عاشقان دی سینه سوی
له اندوه سره اخښلی

په خمار هغه پوهیږی
چه شراب ئے دی نوشلی

په دُنیا کښے به هرچا وی
په ارمان لاسونه مښلی

چه وما وته ئے فاش کړل
څهٔ رازونه دی پوښلی

دَخوشحال غوندِ په عشق کښے
نشته نور په رنګ زبښلی

پښتانهٔ په عقل پوهه څهٔ ناکس دی
کوته سپی دَ قصابانو دَ جوس دی

بادشاهی ئے دَمغل په زرو بائله
دَ مغل دَ منصبونو په هوس دی

اوښ له باره په خپل کور کښے ورغلے
په اولجه دَ اوښ دَغاړے دَجرس دی

دَ نعرین لائق په نام سرښی دی
له اوله که دا نور وریسے پس دی

بے ننګان دَ بے ننګئ کاروبار کا
ننګیالی دَ ننګ په کار کښے هرنفس دی

سرئے هورے قندهار بل ئے دمغار دے
تر دا مینځ همه میشته واړه عبس دی

په هر کسب کښے چه ئے حبیب الله ئے
کۀ له خدایه له رسوله نه آګاه ئے

په محشر به له تا عدل ایمان غواړی
کۀ په تخت دپاسه ناست دملک بادشاه ئے

نفسه تا داهسے زۀ مذبذب بین کړم
هم توبه هم ګناهونه څۀ ګمراه ئے

نور خوک څۀ لره بدخواه ګنړے ناپوهه
چه پخپله دِ خپل خوئ دځان بدخواه ئے

زمانه به دِ بد رنګ کا غره مۀ شه
کۀ هر څو به خپل جمال کښلے ترماه ئے

په خاتۀ کښے ئے هیچرے ثقل نشته
تل چه کښته پورته کیږی یوه ساه ئے

کۀ په خپل ګمان کښے ځان وتاته کوه دے
وقضا وته په مثل لکه کاه ئے

دخوشحال ویسا په سخت ساعت په تاده
اے چه تۀ د درمانده ؤ پشت پناه ئے

په داځځ کۀ د بنګښ راته په ټک ډنګ دے
زۀ هم بنۀ یم څما هم برغو ترخنګ دے

عقل زور د غوریه خیل تر بنګښ زیات دے
غوریه خیل راسره هم ولاړ په ننګ دے

د بنګښ نه هومره زور وینم نه تو سره
دا په کوم توکی له ماسره په جنګ دے

غوریه خیل کۀ په ناکام ورسره زیست کا
په رضا ورته بنګښ نیولے تنګ دے

غوریه خیل او بنګښ دواړه مغلی دی
همیشه ورته مغل وهلے لنګ دے

کۀ زۀ ګورے دُرد آشام ورسره شماریم
خوار هغه چه ئے له ما سره آهنګ دے

هرملغی د سربازئ هُنر څۀ زده
چه په دا هُنر کښے سر شندی پتنګ دے

لا تراوسه ئے ما غزۀ په قرار نۀ دی
چاچه ماسره وهلے سر په سنګ دے

د ګیندیو په څیګر کښے ئے ګولئ دی
کۀ لیدلے چا څما د ښکار تفنګ دے

لا په خوب کښے په لرزه پریوزی له کټه
چه د چا ترغوږ څما د تورے شرنګ دے

کۀ په دا دور م ګورے هغه زۀ یم
چه م داغ په خاطر ایښے داورنګ دے

درست جهان م و مغل وته خیبر کړ
ځائے په ځائے ئے پښتانۀ وته قلنګ دے

څُنځه لوئے دعوے لرم په زړۀ کښے
ولے څۀ کړم چه پښتون واړه بے ننګ دے

خو طالع راسره هسے مدد نۀ کا
ګڼړه تیر م ترفریده نه فرهنګ دے

دَخوشحال دَ زړهٔ دَحال ننداره وکړه
کهٔ دَتخت دپاسه کښینیٔ هم ملنګ دے

تا په دوُو سترګو مکحُولے | چې ئے واړوے مَلوٗلے
په حیرانو عاشقانو | سل بلا وے کړے نزُولے
نهٔ ئے شمار نهٔ ئے حساب شته | خلق دِ کړے مقتُولے
راز م هیڅ ښکاره نهٔ کړ | څما او ښکے دی پدولے
نهٔ په سریم نهٔ په مال یم | نهٔ په ملک یم نهٔ په پُولے
پوه په نام ونګ نهٔ یم | په فروع په اُصولے
چې دَعشق الا بلا دی | همګی م دی قبولے
لاف م ستا دَ پالنګ وکړ | کهٔ رسیږم تر مقبولے
هیڅوک نشته چې پرې پوهـ شی | بنے خبرے دی معقولے
چارے واړه په قسمت شی | نهٔ په حلے نهٔ په حُولے

بخت په کور ورکړه خوشحاله
تار په تار زلفے مختُولے

نهٔ چې هسے حکم نازکړے په وګړی | په تاخهٔ دَچا پوره دَ چا نیمګړی
دَدریاب سره دریاب وی یوځو وخته | بیا په هرلوری پراته وی اوبو وُړی
چې ئے خوب په پورته لوړے لوړے وړی | دَ هغومانړئ وګوره چه لوړی
لکه تهٔ ئے بیهوده یا وه باد وړے | جهان څو دا هسے یاد لری باد وړی
طمطراق دَجهان کل واړه عبث دے | هوښیارانو وته کم دے ترخسړی
داچه تاوته ژوندی دی ژوندئ نهٔ دی | دا وما وته ښکاریږی لکه مړی
چې خوږے میوے لری خوشبوئ ګلونه | په خپل باغ کښے دِ کښیښنودی هغه زړی
چې آوازسره سرے بندی خانه دے | دَ ځاروی علاج په ټکیږی په پړی
جنتی دوزخی پت نهٔ دی ښکاره دی | خپل عمل دی په نوم نوم واړه نومړی

زلزله په جهان ګډه شوه خوشحاله
دَآسمان له شدتونوکنړے رغړی

تهٔ هغه لیلیٰ ئے چه دِ تل په نخره ناز دے
زهٔ هغه مجنون یم چه مِ تل در پسے نیاز دے

ماوے خو یو زهٔ یم نن شهره په عاشقئ کښے
لا تر ما دَ نور وګړی لا لرے آواز دے

زهٔ تر عشق ځاریږم ترهغو چه عاشقان دی
واړه عشق پکار دے حقیقت دے که مجاز دے

رایشی له کومه ځائے په خوږ وکا په زړهٔ کښے
هیڅ پرے نهٔ پوهیږم عشق یوځهٔ سوز وګداز دے

هۓ دَ خدائے دپاره تجسس را پسے مهٔ کړه
پلار ته وایهٔ نهٔ شی عشق یو هسے مخفی راز دے

تورے تورے زلفے کبود خال لکه کوتره
راشه که ئے ګورے پرے بندی یوځهٔ شهباز دے

سکنړی دَ زړهٔ وُلی چه په شونډو کښے موسیږی
تیغ ئے دَ غمزے داخله لاشهٔ تیرهٔ ساز دے

هر څوک یو یو بُت لری خپل بُت وته سجود کا
بُت دَ خوشحال تهٔ ئے تل ئے تا وته نماز دے

تمامه شپه دَ ژمی په هۓ هۓ په ما تیریږی
چه تهٔ ځما طبیب ئے رنځ به لا ځما زیاتیږی

دا سحر دے که مینه که ځهٔ لا بله بلا ده
که هر څو ئے له دله هیروم نهٔ هیریږی

خپل زړهٔ وته نظر کړم په دا هومره محبت کښے
یو هسے مستسقی شو چه په بحر نهٔ سړیږی

یوسف دَ زمانے دے درست جهان پرې ودشندے
دا یو جهان لا پریږده چه په دوه جهان پیریږی

دُنیا لکه حلوا ده ښهٔ شیرینه مـزه نا که
حریص ئے لکه مچ ډېـ بانډِ غورزی نهٔ مړیږی
چه ننګ کا ننګیالی دی ورته اېښی دی دوه کاره
یا کام دَ ننګ حاصل کا یا دَ دوئ مینه سپیریږی
کهٔ مشک وو کهٔ ګوهر وو همګی لاړل خوشحاله
وځان وته وګوره چه اوس څهٔ عمر تیریږی

توری سترګے ستادی بیا په تورو رنجو کړی
دوه توری بلادی پرے م وژنے بابا مړی
وخاندی وما ته شونډے بُوڅے په ناخوال کړی
دا فتنے ښیوے دِ بیا له کومه دی راوړی
زر دِ کهٔ به درمری په هیچا دِ زړهٔ سوے نشی
زړهٔ لرے دَ کاڼړی بیا خپل ځان بولے ښهٔ زړی
هیڅ درنهٔ پوهیږم کهٔ رښتیا وائے کهٔ بیچمے
ما وته دِ خولهٔ ده په خندا خندا نومړی
پټے پروتے ښے دی څهٔ بهٔ دم وهم و چا ته
ماڅهٔ هومره نهٔ دی ستا فتنے ناسازے وړی
ما وے چه خُما ده موذی یوړه سیاه چشمه
څهٔ شو کوته نیسی دَ پری هو سئی سترګی
ته په دا خیالونه به ښیوو غمزے موجونو
سیند دَ اباسین شوے چه خوخوبیږئ نغری
خدےلره خوشحاله تا دَ زړهٔ قیصے ښکاره کړے
ستا دَ ظلم نهٔ دی ما وچاته قیصے سپړی

ترهرچا نه دَ رښتینو کار اول دے خدائے پخپله دَ رښتینو سره مل دے
په معنیٰ قلبیه روپئ ده مخ ئے تور شه هر سړے چه په یارئ کښے په زړهٔ غل دے

دَ بد بویو بد بوئی به پټه نۀ شی
کۀ په سل پردوئے ونغاړے بصل دے

کۀ دَ زړۀ سترګے دِ شته ننداره وکړه
دَ جهان په واړو چا روکښے خلل دے

ا باسیند وَ ته نظر کړه وُ ودریږه
ستا دَ عمرَ اوبو غونډِ چل چل دے

کۀ دَ خولے وئیل دِ ښۀ دی په داخۀ شی
چه ښکاره دِ وعالم وته عمل دے

نۀ به زوړ پریږدی نۀ ځوان نۀ نن زوولے
چه ناڅاپه نا تاړونه کا اجل دے

بدکردار به نیک کردار نۀ شی خوشحاله
دَ شیطان لښکرو لاندِ کړ قبل دے

تا یاری له ما نه پریکړه کۀ پښیمان ئے
بیا را درومه هغه زړۀ ئے هغه ځان ئے

همیشه ځما دَ باغ زرغون طوطا وے
اوس خبر نۀ یم طوطا دَ کوم بوستان ئے

زاړۀ هم کله ځوانان وو وارئے تیر شۀ
په زړو پورے خندا مۀ کړه کۀ ځوان ئے

یو جهان دا دَ ظاهر بل دَ باطن دے
راته ووایه دَ کوم یوۀ جهان ئے

کۀ طامع په سر یرپاس کښینی ګدائے دے
کۀ وآزو ته دِ شاکړله سلطان ئے

په بل ځائے م پیرزونۀ ئے دَ یار غمه
ته ځما دَ زړۀ دَ مات کودی ریحان ئے

غم الم به دِ ونۀ رسی و زړۀ ته
کۀ دَ خپلے ژبے هرکله پاسبان ئے

ته جوهر دَ لوئی نۀ لرے خوشحاله
دَ کم شناختو په بازار هسے ارزان ئے

تا چه دانا سازے چارے دی راکړی
لا دِ خوا راسره نۀ ده با با مړی

چه م هسے شان په خوارو سترګو ګورے
ما دِ دا نا سازے نۀ دی په چا سپړی

ته په دا حسن دَ ګل غونډِ پیدا ئے
بورے مور کۀ ښا پیرئ ئے راوړی

راته والۀ صبوری درِ ځخه ځۀ شوه
تا په تورو سترګو نۀ ده له ما وړی

بیا په کوم توکی دا هسے بے قولی کړے
تا وما ته سپینه خولۀ نۀ ده نومړی

دَ تقوی سپاهیان چه ستا په کوځه تیرشی
دَ غمزے په تیغ ئے کښینوے په ځړی

دَ خوښئ مفرح راعنایت کړه
تا دَ غم ګولئ ډیرے دی رانغړی

ګوره کوم به دِ په بخت په طالع موی
خلق دی په طلب درپسے سترې

په پلۀ پلۀ درپسے خم دَ پریښونۀ ئے
ځائیګی ویشتلی دروی له بغړی

چه مئین شوے درست دَ یار په رضا دروُمه
اوس کۀ خپله رضا کړے خوشحاله یمه

تورو سترګو دِ په غوږ وړی خولے اینبے | په څو تار په تار پریشانے سره تنبے
داڅما دَ پریشانئ نه څۀ وائے | کۀ ئے لا نورے اوږدے دی درته بلنبے
نندارچی چه ورته کوری کټ کوټ کیږی | دَ مخ نخښے دِ بلا دی ګوبنے ګوبنے
ترلبانو دِ خجل آبِ حیات دی | په بانړۀ په سترګو سهم وتیر کښے
چه مئین شی تبلوی مکر دروهونه | په یارئ م قبول کړے کۀ بنګښے

زۀ خوشحال دِ دَ بدئ نیکئ ګواهی لم
دَ بنائست مخے دِ نښته په خوئ وشے

تۀ چه دا دماغ لرے | څوک به څۀ فراغ لرے
توره شپه دِ داړه زلفے | پکښے مخ څراغ لرے
دادِ خال دَ وروځیونۀ دے | دا دَ زړونو داغ لرے
واړه باغ دے په ګلونو | یوڅۀ کښلے باغ لرے
کۀ ساعت دَ ساعت دا دے | چه په لاس اَیاغ لرے
چه طوطی دِ دے په لاس کښے | څۀ نظر په زاغ لرے

بیا دِ کوم لوری ته ورک شو
دَ خوشحال سراغ لرے

ترمکے ترمدینے لاړے حاجی | لا دَ نفس له خویه هیڅ نۀ ئے ناجی
صفائی دَ زړۀ پکار ده نۀ دَ ږیرے | څو به ږیره ګرځوے شانه عاجی
صوفی لاف دَ سلوک کا هم دا لاف | سراسر ګنړه دَ دۀ بے منهاجی
په مُلا توره تیارۀ شوه چه حق پوش شو | کۀ په لاس ئے فتاوٰی وی سراجی
علم څۀ دے په معنیٰ کښے ګبینۀ دے | کاسه هم ورلره بویه خراجی
دا تاراج لکه شیخان کاندی په مکر | آفریدی نۀ دی داهسے تاراجی
دائے سحر دَ بابل دَ مزګے راوړ | چه درست اوښ په کُت کښے وماندۀ حاجی
نوربه وساتم خپل رخت په خپل صندوق کښے | په دا ملک ده دَ بنۀ رخت بے رواجی

نهٔ جیحون دے نهٔ سیحون دے لا افزون دے — دَ خبرو دریا بونه مواجی
کهٔ صاحب په لارے پلے، نفر سور ځی — خو هم بیا صاحب صاحب پاجی پاجی
له اوله تر آخره په جهان کښے — دَ سیّد غونډِ ښوک نشته معراجی

زهٔ خوشحال ختک په حب دَ اهل بیتو
خارجی او رافضی کړم اخراجی

تورو ربل به ئے وچا وته غوړیږی — په وصال به ئے دَچا تمتر سرېږی
دَ لبانو له بوسے به ئے بس نهٔ کړم — په خوږو نباتو کله ښوک مړیږی
نور به کومه آرزو لری په زړهٔ کښے — چه ئے سترگے کښلی مخ وته غړیږی
عاشقان تر تورو خاورو لاندِ نهٔ مری — په دا سپین ویښتهٔ به څرنګه زړیږی
بیا به تورے بلا لا تورے بلا کا — چه ئے تور رانجهٔ وسترګو ته اوړیږی
دَ بڼړو ناوک ئے نهٔ دری تر زغرو — ښوک به هسے ناوکیو ته برېږی
دَ فراق غمژن په مرګ تر ژوندون خوښ دے — چه په غم کښے آه آه سره سرېږی
دَجهان عمارتونو ته نظر کړه — ځنے نوی نوی شی ځنے نړیږی
ماوے نن دَ زمانے ژبه ور زهٔ یم — یوهٔ کس وته ځما ژبه اړیږی

دَ دے باغ ګلونه لږ نهٔ دی خوشحاله
تازه تر تر تازه ترو نور غوړیږی

تازی سپے چه په نمړئ مومے ویړیا دے — سپین وسرهٔ باندِ شیندهٔ که په بها دے
په کُوته باندِ دا دواړه حبطه دی — چه دِ تش په غولی ګرځی هم بلا دے
کهٔ ئے تهٔ په منت مومے وائے مُخله — کهٔ دَچا په باغ کښے بوټے دَکیمیا دے
بخت چه کوږ شی یوهٔ تن نهٔ دے راوړے — چه دَخدائے باندِ پیرزو دے دَ هرچا دے
دَ آسمان پیرے دایم نهٔ وی یکسانے — کهٔ ئے خرخ دے نن په تاکاندِ په ما دے
یوه ورځ به ئے دا رنګ زیبائی نهٔ وی — راشه ګوره چه ګل څهٔ رنګه زیبا دے

دَ هرچا یاران دا هسے بے وفا دی
کهٔ خو یار دَ خوشحال هسے بے وفا دے

ته دِ داوسے په دا ښهر یارئ کښے / که زړهٔ عُمر تیرؤم په داخوارئ کښے
غم دَ یار دَ جفا هیڅ راسره نشته / خدائے دِ مابے پته نهٔ کا په یارئ کښے
هغه یار دِ خدائے له هره رنځه ژغوری / زړهٔ کهٔ پروت یم همیشه په بیمارئ کښے
په زارئ زارئ به ما په ځان مئین کړے / کهٔ ئے مینه زیاتیدله په یارئ کښے
لکه باز دَ زړهٔ په وینو آموخته شو / بل به نهٔ وی هسے ترک په خونخوارئ کښے
دَ ربیار منت ئے ډیر را باندِ بار دے / چه مِ یار موندهٔ دَدهٔ په ربیارئ کښے
خدائے په ما باندِ نادان کړ بخت مِ تور دے / کهٔ وینسته چوی په ډیره هوښیارئ کښے

ناقرار دَ خوشحال زړهٔ همیشه ښهٔ دے
یو زمان دِ نهٔ وی بند په قرارئ کښے

جهان شرم نام و ننګ دے / کهٔ دانړ وی جهان رنګ دے
چه وفا ورځخه نشته / ګل به څهٔ کړے چه خوشرنګ دے
چه ئے عشق ترسره کړے / نور ځوک نشته خو پتنګ دے
دَ ښائست کمے ئے نشته / ولے یار مِ په زړهٔ سنګ دے
ترکنځلو ئے ځاریږم / بیائے چا سره دا جنګ دے
په ښاغلیو جهان ارت / په غوڅلیو باندِ تنګ دے
ښهٔ چه راغللے په غیږ کښے / بیا مِ لرے دَ زړهٔ زنګ دے

چه خوشحال باندِ ناستے کا
دا پوزے نهٔ دے اورنګ دے

چه په خپل عیب بینا شی / سړے هاله درست دانا شی
نادانی ئے پته نهٔ دہ / چه له ځانه ئے تنا شی
دَ بلا اندوه به نهٔ کا / چه له خدائے سره آشنا شی
په دُنیا به دین حاصل کا / چه خبر په لن تنا شی
په جهان باور پیدا کا / چه رښتینے ئے وینا شی
چه غنی په قناعت شو / له هرچا ئے استغنا شی
ابدی ژوندون به خپل کا / چه خوشحال غوندِ فنا شی

چه توفیق ورکوی رب العالمین دے
له آزاره په ستنه اوس درست دین دے

په هرلورچه غورزوی سرے هوا ده
ذهوا فرس وهرلوری ته زین دے

خوک چه خوښ نهٔ وی له ځانه هیڅوک نشته
هر سړے خپسرد انا کنزی یقین دے

په بهبود د خپلے چارے هرڅوک مت کا
په خپل زړهٔ کښے هرتنګ خرځ بالانشین دے

د دستار د سوری رنګ واړه یکرنګ دے
که دستار په سر یا سُور یا تور و سپین دے

حبشی که په ځان نوم د کافورکښیږدی
سرتر پایه وهرچا وته مبین دے

آزمینت د دهر ګوره خوشحاله
چه مَلک د شیاطین سره قرین دے

چه خون په غاړه کیږی له دے کاره ځهٔ خوغم دے
یا ران ځما په ګورکښے زهٔ په کورکښے یم ستم دے

چه هومره بندهٔ مخونه په داخاوروکښے په ګوردی
چه دوئ لره وردروم ګور وما وته ارم دے

پیری راغله زبون شوم که ځهٔ نورځهٔ علالت شو
چه ځهٔ زهٔ کړم هغه نهٔ شی هغه ملک هغه عالم دے

که بندهٔ وایم وچا ته هم ئے بدنیسی په زړهٔ کښے
یا بخت دے د مغلو یا ځما ځهٔ عقل کم دے

نهٔ بخت دے د مغلو نهٔ زهٔ هیڅ په عقل کم یم
دا کل واړه پیری ده چه م کار درهم برهم دے

مغلو ته چه ګورم هغه هسے مغل نشته
د تورو وارئے تیرشواوس ورپا تو یوقلم دے

پښتون په زرونیسی په فریب په تهیتالونو
په مائے اثر نهٔ شی لا په ما د خدائے کرم دے

نهٔ چې یم نهٔ قارغهٔ یم چه په ګرد مرو ګرځم
یا باز یم یا شاهین یم په خپل ښکارم زړهٔ خرم دے

کۀ ماغوندِ نورهم وے په دا کاربه ډیرخوشحال وم
چه ماغوندِ ځوک نشته ځکه پروت را باندِ غم دے
ایمل خان دریاخان دواړه په بشۀ رنګ تیرشو په ننګ کښې
دَ دواړو په ماتم کښې ځما تل آه و ماتم دے

چه تا ګورم حیران شم چه تۀ څۀ رنګه بشرئے
زوړلے ئے له حورے کۀ سړے پری پیکرئے
دَ ماء طین له میانه ځوک داهسے پیدا نۀ دی
په دا حُسن جمال ترمیاشت ونمره لابهترئے
چه شونډه وته دِ ګورم تریاقوتو لا تیرے کا
چه زلفوته دِ ګورم په عنبرو معنبرئے
کۀ هرڅو دَ لاله ګلونه بشۀ دی په چمن کښې
په دواړو انګیو داغ دَ واړو دَ ځیګرئے
کۀ خوار دی هغه خوار دی چه محروم دِ له دیدار دے
کۀ سخ دے دَ هغو دے چه ئے تۀ نور البصرئے
کۀ آه نالش م وکړم مسلمان نۀ یم کافر یم
راواخله تیره تُوره کۀ مشتاق ځما دَ سرئے
په حُسن په بنا ئست کښې دِ ځوک سیال په جهان نشته
کۀ دا عیب دِ نۀ وے چه په زړۀ لکه حجرئے
زۀ ستاله ډیره غمه همیشه په آه واوه یم
په څو په آسائش بے غمه پروت په خپل بسترئے
خوشحال وته دِ دوے چه بے ما به په څو پائے
په بنو به ژوندے پایم تۀ م خود په حال خبرئے

چه دَ پلار په نصیحت نۀ کا ژغرئ　　دَ هغۀ ځویه دا نه شه په مرئ

دَ پرون ورځے به نن حلاوت نۀ وی
کڅے کورے ورځ په ورځ ده کهترۍ
لکه مونږ دَ با باخویه وو په نغته
اوس په دا دور له چا طمع لرۍ
کۀ له پلاره خویه مومی په رانۀ درومی
ګنړه نکړه زیست روزګار دَ پسرۍ
نورے واړه سرشتے درهم برهم شوے
خو په ځانۀ ده سرشته دَ نوکرۍ
داهم هیڅ حق دَ نمک ته نظر نۀ کا
په نا یافت کښے بهانه غواړی نرۍ

اوس په سپینه بږیره زرغواړه خوشحاله
کۀ په زړۀ لرے دعوے دَ سرورۍ

چه په سب دَ ابوبکرؓ دَ عمرؓ دی
کۀ په خوله کلمه لولی هم کافر دی
دَ هغو په مرګ ثواب ګټلے بویه
چه بد ګوئ ذی النورین وُ دَ حیدر دی
رافضی خارجی دواړه باور اوکړه
نر سګانو ترکوسانو لا بتر دی
ترمهدی پورے یوولس دی یا دولس
چه همه خویه نمسی دَ پیغمبرؐ دی
همه واړه امامان وو دَ خپل د دور
همه واړه دَ دُنیا دَ دین سرور دی
له اوله تر آخره کۀ ګروهیږی
دَ بتولؓ اولادِ م واړه نور بصر دی
چه دوستی ئے دَ سیّد نۀ وی په زړۀ کښے
دَ هغو سر یو تل خاورے په سر دی
ترهلالؓ او تر بلالؓ ئے صدقه شم
لا رانجۀ م دَ پلۀ خاورے دَ بوذرؓ دی
په سروزرو کښے کهے دَ قدر نشته
صحابیؓ دَ پیغمبر واړه سرۀ زر دی

زۀ خوشحال ختک هغه سنی مذهب یم
چه یاران رابانډِ واړه برابر دی

چه نظر دِ په اغیار هورے دلے وی
ځما او ښکے په بار خوولے ولے وی
تۀ چه هسے بنائسته ئے ګرم خونۀ یم
کۀ م تل در پسے هسے واویلے وی
چیرے نۀ چه څۀ دِ وُرسی خاطر ته
کۀ له چا سره م تښے تسلے وی
یو ځل بیا سرتوره مسته رابنکاره شه
چه ګیسو دِ په سپین مخ شملے شملے وی
تۀ به وائے دَ ګلاب په ګل شبنم دے
چه بار خو دِ دَ نماستی په وخت خولے وی
دَ رقیب له ویرے بل لوری ته ستر ګے
او دَ زړۀ م ستا دَ مخ وته خملے وی
په عاشق بانډِ دَ پلار نصیحت اور دے
اوس به چیرے دَ دے نور خلق په خولے وی

چه له ستړګو ئے غمیزی غم رنګه ‌ جدائی ئے لکه قحط د غلے وی
د ناپوهے خوبا تول مهر په یارشی ‌ د هوښیارے په سرخوتیرے ماملے وی

زهٔ خوشحال به دِ وانهٔ وړم له دیدنه
په دربارکۓ دِ هرڅو پرو تے ګلے وی

چه دانا نهٔ کړے ګردش د زمانے ‌ نوربه زده کړے دانش د زمانے
زرپیری لری دستړګو په ځنبل کښے ‌ خبردارشه په روش د زمانے
په یوهٔ زمان دِ شاه بیا دِ ګدائے کا ‌ څهٔ باور په نوازش د زمانے
په خزان کښے د بوستان په وُنو راشه ‌ څهٔ ووخهٔ شو بیا پوشش د زمانے
کله مزکه سپیرهٔ ډاګ کله ګلونه ‌ څهٔ باور په آرائش د زمانے
د سفله غونډِ ئے ورکړه رانیول دی ‌ غره مهٔ شه په بخشش د زمانے
د حلوا سره ئے زهر هلاهل دی ‌ کهٔ لذت لری خورش د زمانے
پت اُمید دِ پلار د ځویه سره پرے کا ‌ څوک دِ نهٔ غواړی سازش د زمانے
شاه جهان بادشاه د چا په بند بندی دے ‌ راشه ګوره آزمائش د زمانے
حقیقت ئے سرتر پایه رامعلوم شو ‌ راته مهٔ کړه ستائش د زمانے
زرعلته زرفساده زرعیبونه ‌ پیدا کیږی په کاوش د زمانے
چه ئے شاکړه د دُنیا وآسائش ته ‌ هم هغه کا آسائش د زمانے

چه دا هسے ئے کردے د زړهٔ په یاد دی
لا خوشحال لری خواهش د زمانے

چه م زړهٔ پسے مینږ مینږ شی ‌ صبر و هوش پسے لیبږ لیبږ شی
د هغو شونډو شربت به ‌ یا نصیب چه کله چیبږ شی
په پرهار م ظلم کیږی ‌ چه توبری ځنے وکیبږ شی
په خزان کښے نورے وُنے ‌ توان لری چه سرو سریبږ شی

زهٔ ئے ناسته په پالنګ یم
کهٔ خوشحال له خوبه ویبږ شی

چه یوه م ده نیولے — په رښتیا م ده نیولے

لکه یو یو مرد نے نیسی — هم هغه م ده نیولے

خوک دِ هیڅ ملامت نهٔ کا — عجب ښه م ده نیولے

اوس به نهٔ درومی له مانه — چه له زړهٔ م ده نیولے

په هیڅ رنګ به پریښوه نشی — چه ترے پښه م ده نیولے

ګوندوی را باندِ راشی — سر پړه م ده نیولے

کهٔ نے نهٔ وینم په سترګو — ښا نسته م ده نیولے

ګوندِ سمه شی عالمه — کهٔ کږه م ده نیولے

دَ خوب وهیله خوشحال کړم
چه ترخه م ده نیولے

چه نے هسے لا یعقل لاړم په شومی — دا پیاله دَ چا له لاسه ده څښهٔ نومی

خدایه څهٔ دِ یو باد وړے زړګے راکړ — چه همیش دَ عشق دَ باد په څکښے درومی

په دا هم لا رقیبان کا په ما رخه — چه م زړهٔ دَ یار په یادو راحت مومی

ما لا حرف نهٔ وو له یاره بدل کړے — دَ سحر خروس دِ وویشت شی په کومی

بیلتانهٔ خما په قصد چاړهٔ تیره کړه — دَ قصاب دلسوزی نهٔ شی په ورغومی

واړه ډوک م دَ آشنا دَ بیلتانهٔ دے — په دروغه سر ترم بهانه د دومی

چه نے بے له دهٔ بل خیال نشته په زړهٔ کښے
دَ خوشحال دلبره کومه ده څښهٔ نومی

چه دَ عشق په ګرانه لار کښے ډیر خطر دے — هر قدم چه پکښے اخلم ډار دَ سر دے

کهٔ سینه م سره چاک کړے وبه وینے — چه م ستا له غمه وینے درست ځیګر دے

ستا دَ مهر باران نهٔ اوری چه شین شی — ما په زړهٔ کرلے ستا دَ مینے کر دے

ستا په راز به ژبه هم نهٔ کړم خبره — تل تر ژبے رسیدلے راز سهر دے

زهٔ له عشقه خبر نهٔ یم چه عشق څهٔ دے — هومره آدرم چه له حسنه نے اثر دے

چه نے عشق ترسره کړے هغه کم دے — په دا کار کښے لاف وهلے یوهٔ هر دے

صبر مهٔ غواړه له ما دَ عشق په کار کښے — جو دا نه صبر په ما باندِ لوئے غر دے

عاشقی لا زهٔ تهٔ نهٔ ووچه پیدا وه　نهٔ چه ما وتا کړه کړے دا هُنر دے
خوځما طالع بنهٔ نهٔ دے یارجفا کا　ګنړه کوم یو په وفا ترما بهتر دے

دَ عشق غم له خلقه پټ لره خوشحاله
څهٔ ئے پټ کړم چه جهان ځنے خبر دے

چه پیدا شوه جدائی　کشکے نهٔ وے آشنائی
دَ بلبلے برخه نول ده　دَ ګل برخه زیبائی
تا چه شان دَ لیلیٰ واخست　کهٔ مجنون شم　سړا بنائی
دَ لیلیٰ دپاره سر شو　خوار مجنون په ګدائی
چه عاشق شو قبلوی دِ　بیغورو نه رسوائی
ستا په درد دهان وهلے　درته ناست یم دوائی
کهٔ پَل بل لوری ته واخلم　تهٔ م بولـه هر جائی
چه به زهٔ بے تانه پایم　بے جیجی لویټ پائی

چه ئے ولیدے په سترګو
خوشحال ځکه تا ستائی

چه ئے درے څیزه حاصل وی　دَ هغهٔ خوبنی به تل وی
اول ښه صورت بناغلے　بیائے بنهٔ صورت واصل وی
غه دریم وایم چه کوم دے　دَ دُنیا دولت ئے خپل وی
چه په دا کښے ئے یو نهٔ وی　پریشانی به ئے په دِل وی
چه ئے یو وی په دا درے کښے　غم به تل باندِ نازل وی
هرچه درے واړه ئے نشته　کهٔ چا مړ کړو دے دِ تل وی

دَ خوشحال وئیل معقول دی
پرے به خوبن شی چه عاقل وی

چه بندی دَیار دَ زلفو په کمند دے　بهانه ئے دَ خلاصئ دغه بند دے
سرم یار وته پیشکش کړلا شرمیږم　دَ نادارو عذر پټ نهٔ دے څرګند دے
نهٔ شکرے دی نهٔ قند دے نهٔ نبات دی　دَ شهئ دَ شونډو لاکو بنے بلخوند دے

خهٔ صفت د هسے حسن په غزل کړم
چه په نولس بابه کل شکل پسند دے

خهٔ به غم د مال و ملک د دین و دل کړم
چه لا ستا له غمه روغ کړخم انند دے

یوهٔ زړهٔ لره یوه آشنائی بس ده
نور به ډیرے یارئ نهٔ کوم سوګند دے

په خپل زړهٔ به م داهسے شندے نهٔ کړے
کله هم د عاشقئ کار پسند دے

د خوشحال خټک دِ ستا په سر سوګند وی
کهٔ ئے بے له تا په نور خهٔ زړهٔ خورسند دے

چو هړے د خپلے خونے په بوئ خوش وی
ولے بوئ ئے په چمیار باندِ آتش وی

نور وګړے د چمیار له خونے تښتی
په چمیار د خپلے خونے بوئ دلکش وی

هسے رنګه د هر چارے تفاوت دے
یو تر بل پورے مطعون او مشوش وی

د دهقان فهم په پاله یا په یوم دے
د سپاهی نظر په توره په تیرکش وی

چه دلبره دلربا ده هغه تهٔ ئے
چه خود رایه خود ستا ده هغه تهٔ ئے

چه د کبر د فتنو د خرخشو ئے
په همه عالم غوغا ده هغه تهٔ ئے

چه مشتاق دِ د خندا ئے هغه زهٔ یم
چه دِ تل وما ته رشا ده هغه تهٔ ئے

په جهان کهٔ بنائسته وو بے حسابه
چه په واړو دِ خندا ده هغه تهٔ ئے

د پسرلی ګلونه خهٔ دی چه ئے ستایم
تر ګلونو چه زیبا ده هغه تهٔ ئے

ستا په مخ م په خراغ نشته و تنه
چه د تورے شپے رڼا ده هغه تهٔ ئے

خپل عاشق سره وعده نهٔ کړے ترسره
چه په عهد بے وفا ده هغه تهٔ ئے

کهٔ هر څو دی د خوشحال معشوقے ډیرے
چه ور تیره تر هرچا ده هغه تهٔ ئے

چه ایرو غونډِ ئے پروت په دربار نهٔ وی
د هغو به و آسمان وته لار نهٔ وی

عندلیب چه په ګل رانشی نارے کا
وائی داچه یوه ورځ به ګلزار نهٔ وی

د زړهٔ چاک م به په هیڅ سره ورنهٔ شی
څو کنډلے ستا د زلفو په تار نهٔ وی

ستا د زلفو نوم به نور په خوله وانخلم
د هوښیار پا نږو تور مار سره کار نهٔ وی

تر هندوے مشه کم د یار په پټ کښے
چه ئے هیڅ له بله اوره نهٔ دار نهٔ وی

پہ ماهر زمان اختر ﮯ چہ یار وینم    بے اختره بہ هالہ شم چہ یار نۀ وی
پہ کوم ځلئے م بہ مرهم کښیږدے طبیبہ    چہ دَ یار دَ غشی ښخښنہ پرهار نۀ وی
پہ هغۀ دَ عاشقئ نوم حرام دے    چہ پہ یار پسے ئے درست صورت خوار نۀ وی

هیڅ مانړه لہ یاره مۀ کوه خوشحالہ
دَ دُنیا ساعت بہ تل پہ قرار نۀ وی

چہ پہ زلفو عنبرسا دہ هغہ تۀ ئے    چہ پہ شونډو شکرخا دہ هغہ تۀ ئے
چہ نازکئے دے اندام دَ گل تر پاڼے    پہ قد ښۀ تر عرعر لا دہ هغہ تۀ ئے
کۀ هر خوشی پہ جهان محبوبے ډیرے    چہ خوشرنگہ تر هرچا دہ هغہ تۀ ئے
لہ عذابہ لہ وبالہ دِ ترس نۀ شی    چہ پہ دا دور ترسا دہ هغہ تۀ ئے
چہ اثر م دَ ژړا وربانډِ نۀ شی    چہ پہ زړه حجرآسا دہ هغہ تۀ ئے
چہ تمامہ شپہ دِ خوب پہ ما حرام کړ    چہ دَ ستر سحر بلا دہ هغہ تۀ ئے

چہ لہ مینے ستا پہ سرلوړی خوشحال دے
چہ دَدۀ دَ سر قضا دہ هغہ تۀ ئے

چہ ئے عمر دَ ښا رویو سره تیر وی    زیست روزگار دَ هغوهم پہ هغہ خیر وی
چہ شیطان غوندِ راندہ شی څوک ئے څۀ کا    کۀ هر څو ور څخہ علم هُنر ډیر وی
ځوانان واړه برابر نۀ دی پہ وزن    ځنے من ځنے نیم من ځنے نیم سیر وی
کۀ پہ زړۀ بانډِ پراتۀ دی زرغونہ    چہ م یار پہ نظر کښیوزی واړه هیر وی
دَ شکرو تر حلوا بہ ئے لا ښۀ خور م    کۀ دَ یار لہ لاسہ زهر یا کنډیر وی
دَ ښۀ مخ پہ ننداره بہ لکہ روغ ځم    کۀ پہ تن م پرهار ونہ دَ شمشیر وی
هر عاشق دِ عاشقئ تہ هوس نۀ کا    دَ عشق لاف دِ هغہ ځوان کانډِ چہ شیر وی
دریغہ بیا راسره زرغاړه غرئ شوے    چہ فلیل پہ زلفو پورے دَ اجمیر وی

دَ خوشحال خټک خو کښلے مخ پکار دے
کۀ دَ سوات کۀ دَ پکلئ کۀ دَ بُنیر وی

چہ پہ زړۀ ئے ستا دَ غم غشے سیدہ شی    قرارے بہ ئے لہ دلہ رمیدہ شی
همیشہ بہ ئے سرا ییښے پہ زنگون وی    پہ فکرت بہ ستا دَ زلفو خمیدہ شی

توره سترګے توره روخے سره زیب کا
په تهتر باندِ ئے خط دَ ویښتونه دے
ستا خوبي څما په پوهه ډیر تیرے کا
په بڼو باندِ م ښے په احتیاط بږده
ځان و زړه م هغه لور وته پرواز کا
زړه په دا سبب په دوؤ سترګو مئین یم
له قسمته زیاتے مه غواړه ناپوهه
لاس په لاس ئے کړځوی هنرآموزے

بیا په تیره چه وسمه پرے کشیده شي
دائے سورے دخرڅي دے چه لیده شي
دَ یوسف خوبي که ډیره اوریده شي
چیرے نه چه م بانړه پرے خلیده شي
هغه ځائے چه ښه دلبره شنیده شي
چه څهره دَ ښویا رانو پرے لیده شي
وهرچا ته خپله برخه رسیده شي
چه ښکاره دَ هنرمندے کشیده شي

په ژړا به م ونه غلوے خوشحالـــه
که دِ سرے ویښے روانے تردیږه شي

چه ښیرے وما ته وکړے ژوندوے م
داچه وائے راته خیر کوره چه مور شے
غمازانو اغزي توئي دَ غمازئي کړل
ماخپل زړه وته وئیل چه اے بدخویه
وے ئے عمر م په دا بدخوئي تیرشو
که م سر په عشق کښے درومي هم دِلار شي
که دَ زهرو پیاله راکړے هم به وایم
چه کښے په مخه را ښئے کنکس خورے
کشکے زړه در باندِ نه وے مئین شوے

چه م یاد کړے په کنځلو نهالوے م
که تمام عمر دِ کورم مړوے م
چه دَ دوئ په وینا غوږ کړے پرېڅکوے م
څه په هرصورت مئین شے سوږوے م
څه دا اوس راته وئیل کړے اړوے م
خپل وژلي راته شمارے ویروے م
خدائے دِ خیر و تا درکا ژوندوے م
یو ترشا نظر ونه کړے څوروے م
تا نادانے مینه نه زده پڅوے م

ماخوشحال څخه په ذات دورنګي نشته
دَ زړه حال م درمعلوم کړ ویوے م

چه دروے په انګنړ کښے درست انګنړ سره یو ګل شي
دَ مښکو بوئ راپاسي چه دِ تار په تار کاګل شي
چه سترګے کړے ورپورته په نرګس شي بلاسازه
چه زلفے کړے نمودے حبطه واړه سنبل شي

د ملا د ویښتهٔ فرق به دِ هیڅ یو سره ونهٔ کا
کهٔ واړه دانایان م په دا فکر تأمل شي
عالم وائي وما ته له ښهٔ مخه صبر وکړه
حیران یم له ښهٔ مخه په څو صبر و تحمل شي
د خوشحال خاطرې هسې څنې یوړو توروسترګو
لکه صید د شاهینو ترمښوکو ترمنګل شي

چا به راکړه په پالنګ دا هسې کښلې — کهٔ م نهٔ وې په ازل په قسمت کښلې
شیخ د حورو صفت کا زهٔ د دلبرو — دا څما هغه د دهٔ دعوې پریښلې
عاشقان ئې صد هزار دي په هر لوري — سرګشته حیران پریشان ګونه زبیښلې
په دربارې سناسي شه ورته کښینه — تار په تار د سرو ویښتهٔ ایرې مښلې
کهٔ څو د خلقو جونه ښا نُسته دي — ما یوه ده غوره چونړ پکښې وکښلې
لا به کله ننداره د هغه مخ کړم — چه م کړه د خاطر ده پسې ښلې
د هغې پیالې مستي لرم په سر کښې — چه پرون م د ساقي له لاسه څښلې
نهٔ د مښکو پټیدنه نهٔ د عشق شته — په ازل ئې نهٔ دي دا پردې پوښلې
چه م تل د مخ ثنا وائې خوشحاله
په صله م سپینه خولهٔ درته بخښلې

چه ګلرنګه معشوقه لري په کور کښې — د صحرا سیل دِ وسیزي په اور کښې
په هجران کښې م ژړا هغه خندا شوه — چه م یار سره خندا وه په بیور کښې
لکه لوند خرخوړې تاؤ کړې نم ئې نهٔ وي — بیلتانهٔ هسې نچوړ کړم په خپل زور کښې
د عشق شور دِ د عاشق له دله نهٔ ځي — په جهان ئې فیروزي ده په دا شور کښې
په هر ځائې چه د رندانو مجالس وي — تر قیامته به یا دیږم په خلور کښې
شور و شر به د رانجا په جهان نهٔ وو — کهٔ د هیر صورت پیدا نهٔ وې په شور کښې
کهٔ خبر د درخانۍ له مخه نهٔ وې — آدم خان به څنې څهٔ غوښتل په کور کښې
پښتنې جونه دِ زلفې باد ته نیسي — چه شمال ئې بوئي راوړي په رنځبور کښې

دَعاشق له نام وننګه سره څهٔ دی
څهٔ م غم که آشنا موم‌م په پیغور کښې
دَخوشحال دَ زړهٔ م بنه ننداره وکړه
سمندر غوندِ بازی کا په بل اور کښې

چه له ورایه راځرګنده مسته شا شی
دَجمال ئے په خوږنګه تماشا شی
چه پلو په مخکښې ونیسی ما ښام کا
چه پلو له مخه لرے کا صبا شی
دَجمال خوبی ئے زیاته ده ترنمره
چه دیدن وته ئے غټ ګوری په چا شی
تریانهٔ پورے ئے ګوډه شی کوتره
تروئیل پورے ګونګ ګویا طوطا شی
حبشی زلفے ئے پاس په سینه ځانګی
یمانی بار خوئے ګل غوندِ نما شی
مرګ م سل ځله قبول بیلتون دِ نهٔ وی
دَدے هسے یار بیلتون ترمرګ بلا شی
په مانړی ئے مُرده شو یو کره عید وی
په خندائے جوهری کره ژړا شی
تورے خاورے دَ رقیب په سر کا تو ئے
چه ګیله له مینځه ُوباسی پخولا شی
چه په نهٔ لیدو ئے نهٔ ومرے خوشحاله
ځکه هسے دَجهان بلا په تا شی

چه محنت په ځان قبول کا نو راحت شی
چه عارف دَ مصیبت شی عافیت شی
کهٔ فلک ئے دَ مزری په خوله کښے ورکا
خدائے دِ نهٔ کا چه عارف پکښے غارت شی
لکه باد کله ئے مخ کله ئے شا ده
بیهوده غرور دَ هرچا په دولت شی
یو لاله په غوړیدهٔ بل رژیدهٔ کا
شګفتن دَ باغ دَګلو په نوبت شی
دَیوهٔ مانړئ شی سردَ بل نړیږی
په جهان کښے نوے نوے عمارت شی
واویلا ژړا ناره سارهٔ آهو نه
خوهم دا په ورځ وشپه په هر ساعت شی
دا همه چارے دَ دهٔ دی چه راکیږی
یوه خدایه کور دِ وُران دَ محبت شی
هغه شان لکه په تور وواوس په سپین دے
دَخوشحال مجاز به کله حقیقت شی

چه راغلے په حیله دے
عقل ځکه عقیله دے
کهٔ مثال ئے له ما غواړے
عشق مزرے عقل نیله دے
آشنائی ئے دَجمال ده
چه مئین په جمیله دے

پروانه پرې پرپرې کا — اور خو بل په فتيله دے
خوار مجنون دَعشق په کار کښې — سپک په قام په قبيله دے
هم خالق ته هم مخلوق ته — واړه کار په وسيله دے
دَ خبرې په ميدان کښې
نن خوشحال ختک قيله دے

چه بنکاره په آرائش کښې شگفته شي — صلوات ئې په جمال بانډِ گفته شي
آشفته کاندي روزگار دَ پرهيزگارو — چه ئې زلفې په عذار و آشفته شي
چه ئې نۀ وينم زۀ هسې ځلبلاند شم — لکه گل له عندليبه نهفته شي
چه دَ غوږو وُ دُرې ئې نۀ وينم په سترگو — دُر گوهر م په هرهر بانړۀ سُفته شي
دَ وصال په وخت هم خوب دَ عاشق نۀ وي — تروبې وخته په هجران په خوخفته شي
بنۀ خودا چه ئې برقع په مخ پرته ده — او که نۀ پرې به وگړې آلفته شي
زړۀ م وائي چه ورتلې به درې ايل کړې — په هرځائې چه بنه محبوبه شنفته شي
وخوشحال ته دَ دے باغ غنچه بنکاره وه
چه به دا رنگه گلونه شگفته شي

چه ادب لري سړے سړے هالۀ شي — بے ادب سړے سړے کله بالۀ شي
څۀ پتونه ئې په شمار په حساب نۀ دي — کۀ په چا دَ آشنا يئې پت پالۀ شي
چه همت دَ سړي خو قدر ئې هومره — دَ تميز په تله هر سړے تالۀ شي
دولت مند سړے هغه بللے بويه — چه له سينده ئې جدا دَچا والۀ شي
هر سړے چه دولتمند شي کۀ داناوي — په هر کار کښې دِ نظر په خپل کالۀ شي
کۀ دَ تورې کار دَ ځوان دے يا دَنور څۀ — مصلحت دے دَ هغۀ چه په زالۀ شي
دولت مند دِ په هُنر په علم مست کا — کۀ هر خو بنائسته مخ وي بيا پسالۀ شي
څوک دُنيا وته مريونه دي خوشحاله
شاه ځلمو وته دَ لوبو چنغالۀ شي

چه راندۀ وته آسمان بنيئې يا ستوري — وايه روندبه ئې په کومو سترگو گوري
رنړا ورځ په بنا پيرک بانډِ تورتم شوه — روښنائي دَ نمر بنکاريږي په هر لوري

که خښتن ورته زورول کا یا کنځل کا
مرنیے هم په زړه کښې حسے خښتن زوری
بیا به شنے په پانړو نهٔ شی وچے وُنے
کله باران د بشکال په شیبو وُوری
زور قوت د هرچا سم برابر نهٔ دے
خوک له ځایه زور رو، شول خوک کمزوری
راشه نن دِ د نخاس ننداره وکړه
یو کالے په بها پیری پل نے پیوری
چا د سر د پاسه سُور مندیل تړلے
ځنې هسے خو رحیرن کوزی سرتوری
د چا حکم د چا لاس ور باندِ نشته
په خپل بخت په خپل قسمت یو یوزی غوری

په تلوار په اضطراب چه صبر نهٔ کا
د خوشحال خاطر سیماب شو سره بنوری

چه م خپل مئین نیولے تر آغوش دے
د جهان هوس م وارہ فراموش دے
ساقی زهٔ خهٔ هوښیار نهٔ یم باده راکړه
لیونتوب د لیونیو پرده پوش دے
چه پرون ئے اهانت د میخور وکړ
نن هغه د میو ډک سبو په دوش دے
ساقی ترس د محتسب د دُرے نشته
چه بابا ئے د مجلس سره مینوش دے
هدایه وقایه خهٔ لولے و ماته
چه خُما د نائے ونے په آواز گوش دے
دا گلگون شراب د کومے میخانے دی
چه صوفی ئے په جرعه سره مدهوش دے
د بهار په وخت به خهٔ له میو آوړم
چه سرود د معنی په نوشانوش دے
بیا به دا گلونه نهٔ وی میخوری کړه
د بلبلو په آواز کښې دا سروش دے
ډیر د باد سوارهٔ په خیال ترما تیریږی
همیشه په دا بازار کښې پوشاپوش دے

چه په ډیر ارمان د یار له مخه بیل شو
د خوشحال په بخره هرکله خروش دے

چه لرے په خپله خونه کښې خوشخوئی
د جنت هوا به هم کړے د دے شوئی
دین دُنیا ئے دواړه کښیوتل په لاس کښې
چه په کور کښې ده خوشخویه م خوش روئی
د بلبلو غوغا تل په هغه گل دی
چه صفت ئے شی له رنګه هم له بوئی
زهٔ د دلے له غمه مرم چه جدا کیږے
په شانه سره د شاه د زلفو موئی
چرته ویر چرته سندرے په جهان کښې
کله ئے کورے د هر نهٔ دے بے هلائے هوئی
گلدستے دِ د بهار را لره راوړے
پیکه بنهٔ راغلے په وخت د یار له سوئی

په جنت کښې پراته چيرې چرته دروي
چه خوشحال شري عالم د يار له کوي

چه په آن وآن په مزکه په آسمان دے
په غمونو په بناديو کښې انسان دے

دا يوه خمخه د ځان وينې بلا شوې
چه سرې سره ئې غم په هر زمان دے

د نامرد د مرد په دا تفاوت وُشو
په نامرد شرم آسان دے په مرد گران دے

مست هاتيان خوني مزرى تورې وکښلې
که د سر ويره دِ نشي کار آسان دے

کشکے ته په دا دُنيا هميشه پائے
په احتياط احتياط کښې ډير خلق طوفان دے

که د ځان که د ايمان بدخواه م ډير دے
ما په خدائے با ندِ سپارلے ځان ايمان دے

ننکيالي چه د اخلاص توره په لاس کا
ډير لښکرئے ترهمت پورے کاروان دے

له اوله تر آخره خو روزگار شته
چه عالم باندِ غوغا کا دا جهان دے

په بناديُ سره شريک دي اولسونه
غم يوازے د خوشحال خټک د ځان دے

چه وربل دِ په سپين مخ آشفته کيږي
په ما بنام کښې رنړا ورځ نهفته کيږي

که د مخ بنائست ئے دا دے چه ليدُ شي
لا به ما غوندِ پرے ډير آلُفته کيږي

په بنړوئے اونکے نهٔ دي آويزا ندِ
همګي دُر وګوهر دي سُفته کيږي

يوئے رنګ يوئے نکهت يوئے وي پانړے
په دا باغ کښې عجب ګل شګفته کيږي

په ژړا م به پوهيږے خوب ونهٔ کا
هغه خوک چه په ګيسوئے خفته کيږي

د خوشحال د خولې خبرے خوشے نهٔ دي
دا همه د يوهٔ حاله ګفته کيږي

چه مور پلار ځنې آزار شي هغه عاق دے
د عاق ځو يه ځائے دوزخ په اتفاق دے

هغه مور و پلار به خلاص نهٔ وي له غمه
چه فرزند ځنې زوولے بداخلاق دے

هغه ځو يه به آخر په خوارئ خوار شي
چه بنکاره ئے د خپل پلار سره نفاق دے

د اورنګ بادشاه په دور رسم دا شو
چه هر ځو يه د خپل پلار د سر مشتاق دے

نن هغه قطب آفاق ګنړي خپل خپسر
چه ګواه ئے د عاف والي درست آفاق دے

ناخلف ځو يه په ګور خلف دِ غواړي
هر پدر چه د پسر په اشتياق دے

دا ځما همه ګله ده د پښتو نو — راځئ وبښیه چه کوم یکښې تفچاق دے
د پښتو نه همه پښتو کی زیږی — کهٔ ایفرنې د عرب یا د عراق دے

د هغهٔ اسلام اسلام نهٔ دے خوشحاله
چه بهتر ورځنې ګبر په میثاق دے

چه د خولې وئیل ئې نور د زړهٔ ئې نور وی — د هغهٔ به مخ په دواړه لوریه تور وی
د ناپوهه سړه راضی نهٔ یم په باغ کښې — د دانا سړه قبول لرم کهٔ اور وی
کهٔ په لاس کښې ئې ډک جام کښیږدی دختهٔ سوړ دے — د هغهٔ چه له ازله جام نسکور وی
نالائق ځوئ د خدائے د چا لوئے نهٔ کا — چه په ځان د دهٔ له ځویه پلار او مور وی
یو لائق ځوئ د پلار کره لوئے بنهٔ دے — نالائق په څه شماره کهٔ د رې څلور وی
بنهٔ لائق ځویه مور پلار په نیکئ یاد کا — نالائق د پلار آزار د مور بیغور وی
د غوولی ځویه شور وی په خپل کور کښې — د بناغلی په جهان کښې شور و شور وی
کهٔ هر څو د سړی ډیر ځویه پیدا شی — بیا په واړو کښې خو یو ځویه انځور وی

هغه ځویه خو په کور بنهٔ دے خوشحاله
چه بهرام غوندې یوازے د خپل کور وی

چه دا هسې سحر ګرې سترګې ستا دی — په ناحقه د تقوی لاف ځما دی
پښتنې جونه م ولیدې په سترګو — څوک چه ترکې د خطا ستائی خطا دی
بنا پیرئ کهٔ هر څو ستائی وکړے — ستا تر حسنه ترجمال په شمار د چا دی
تاچه ووینی مئین درباندې نهٔ شی — هغه زړونه غونډی کانړی د بیدیا دی
واعظان چه یادوی د جنت حورے — ما په دا سترګو لیدلی په دنیا دی
یا به ستا زلفینې ونیسم په لاس کښې — یا به سر درباندې بایلم دوه وینا دی

د ناموس خبرے مهٔ کوه خوشحال ته
عاشقان له نام و ننګه بے پروا دی

چه م کړے هر آشام دے — کهٔ په خولهٔ کهٔ په اندام دے
اوس له واړو توبه ګار یم — په اخلاص م دا کلام دے
تهٔ کرم را باندې وکړه — ستا کرم په هر چا عام دے

په دوه سترګو م منلی | چه د شرعې هر احکام دے
واړه امر م قبول دے | ترے توبه چه نهي ئے نام دے
استقلال د توبې راکړه | د شیطان د بلا دام دے
ماساته د دۀ له شره | نفس م مدعي خودکام دے
په توبه کښې ثبات راکړه | لکه حکم د اسلام دے
په خپل لاف به هیڅ اونۀ کړم | کۀ زۀ لاف کړم لاف خام دے
چه توفیق له تا نۀ وی | د زاهد زُهد حرام دے
په هغه لارے م بیایه | چه پرے ایښے نبيؐ ګام دے
نور به څۀ کړم ډیر خواستو نه | دا یو مالره تمام دے

چه ثابت ولاړ په دین دے
د خوشحال باندِ سلام دے

چه په زړۀ ئے ګرځوے وړے وړے | یوه ورځ م به له دره وُ شړے
چه په تا پورے ئے زړۀ نۀ وی تړلے | په هغۀ پورے زړۀ څۀ لره تړے
کړم د ژمی ساړۀ ډیر وی قبلوه ئے | مړے ایرے د نغری څۀ لره لړے
چه خیر خیرے ئے مخ ته کورم نۀ مریږم | داځما سترګے به کله شي مړے
ستا خورے شونډے نبات دي رقیب مچ دے | بَنه خو دا چه ئے له شونډو وُشړے
خوځوانان دِ په خپل ځان دي کښېنولی | لا به څو در باندِ کښېنوے زړے

یاره تۀ چه له اغیار سره خندا کړے
دخوشحال په لړمانۀ دروي چړے

چه د بخت د تالو سپین دی تور به نۀ شي
چه شیرین دی له ازله شور به نۀ شي

هرچه غوړ د محبت لري په زړۀ کښې
کۀ پرے زر کالونه تیر شي سپور به نۀ شي

د دے نورو بازارونو خوریدل شته
یو بازار د محبت دے خور به نۀ شي

خوچہ وُزیری لہ موړہ چہ بد ذات وی
پہ روزئ ئے غلط مہ شہ زور بہ نۂ شی
چہ لہ یارہ سرہ کښینم رقیبان م
تل پہ بد نظر کاتۀ کا کور بہ نۂ شی
څوک چہ زور سرہ ښکارہ کا وزیا نیږی
کۀ پہ خپلہ بوسہ راکا زور بہ نۂ شی
هسے نۂ چہ زور م نشتہ زړۀ دِ کوم
نۀ ښخپلہ مهر وکړہ زور بہ نۀ شی
وهر چا وتہ رسیږی خپلہ برخه
چہ ئے پلے پہ ازل کړ سور بہ نۀ شی
لاس پہ لاس سودا بهترہ ترهرځۀ دہ
مسافر پہ لار ولاړ یم پور بہ نۀ شی
کۀ هزار رځلہ حکمت هُنر تدبیر کا
دَ خوشحال پہ باب چہ شوی نور بہ نۀ شی

چہ پہ حُسن پہ بنا ئست دَی زورورے
دَ هغو وائی بدلے یا سندرے
رغیدۀ ئے ستا دَ خولے پہ دلاسہ دی
دَ رنځورو دارو نۀ دی لہ تالرے
ماچہ ستا دَ خوږو شونډو لذت بیاموند
نۀ م شهد پہ غرض دی نۀ شکرے
عقل خپل فوځونہ تاربہ تار خوارۀ کا
چہ پرے راشی دَ عشق خونی لښکرے
دَ بنړو پہ تیرے بیا سرہ پاش پاش کا
کۀ خپل زړۀ وتہ پوښم دَ صبر زغرے
تریانۀ دِ دَ خطا آهو خجل شی
چہ پہ شین شین یُون کړے بنیوۀ کړے
یو نظر پہ درست صورت علامت ګوکا
پہ مثال لکہ ښځرے وُچے سوے
ترخوږۀ خندا دِ ځارشم راتہ خاندہ
چہ پریوان کړے پہ ما لعل و ملغلرے
چہ څوک بے عشقہ ځۀ وائی با در ګوکړہ
لکہ باد دی پہ خوشحال هسے خبرے

چه دَ خپل عقل وئیل کا هغه کله خرد مند دے
چه پوښتنه مصلحت کا هغه هم دَ عقل بند دے

چه م فهم فکر وکړ په دا خپله دانایئ کښے
بل نادان را ښکاره نهٔ شو که نادان دے خود پسند دے

تر مشرقه تر مغربه چا دا هومره جهان وغوښت
عقل علم هم دا هسے په جهان کښے چند درچند دے

ګړ شه وُغواړه باغونه په هزار رنګه میوے خوره
راشه راشه را ته وایه سم دَ واړو لذت خوند دے

لعل الماس دی په جهان کښے دُر مرجان شته دے مشکر
واړه هیڅ پوشیده نهٔ دی دَ هرچا قدر خړ کند دے

هر سړے چه محنت نهٔ کا هغه کله راحت مومی
راشه راشه رنځ قبول کړه که ته ګنج غواړے ښهٔ پند دے

که ته غواړے له آسمانه جبرئیل شے په داخهٔ شی
خوف رجا راوړه اے جانه کار دُ تورے یا دَ شخوند دے

خوک چه حکم ریاست کا سیاست دِ کا په شرعه
اوس لا بلکه خلق بد شو په توره عمل هم سند دے

د یره ښهٔ ښهٔ خوید راوړی دا نهٔ بلاره خلورمیاند دے
نن په واړه پښتانهٔ کښے یو خوشحال لائق فرزند دے

چه اُمید په دا ایام لی — دا اُمید ئے ناتمام لی
عافیت غوښتل له دهره — دَ صبا هیله له شام لی
کل اُمید خامے تکیے دی — خوک به خهٔ تکیه په خام لی
په سراب دَ تږی خوئ دے — دَ اوبو ګواهی مدام لی
زهٔ له غمه مخ جاربا سم — دے را وړاندِ شی سلام لی
په هیبت دِ ناست وخیز کا — چه مزری غخه مقام لی

د غه خون په خپله غاړه
چه یم په ځائے آرام لی
دَخوشحال بلا هغه شو
چه سوګند دَدهٔ په نام لی

چه په خوام په خاطر نهٔ وے لیدلے
فلک ډیرے نندارے را ؤ بنښیلے
وار په وارم وارهٔ وُلیدهٔ اغیار وو
چه همیش ئے دَ یارئ لافے وهلے
په بخشش ئے ترناحقه غلطی کړے
وار په وار به جهان واخلی وارهٔ خپلے
چه خبر له ځانه نهٔ وو ماخبر کړل
له هغوم خو خبرے واؤریدلے
نهٔ هغه شته نهٔ په خوله ئے کښے هغه غابش شته
چه به ما په اشکیو وُچیچلے
چه په خولهٔ م کښلوُل پرے نازید لم
دَ هغو دَ خولےم واؤریدے کنځلے
چه ئے نن وُکړے په چاکانده په تاشی
ویریانهٔ دی چارے وارهٔ ګړ په تلے
چه همیش به په تسلیم راته ولاړ وو
دَ هغوم خونا سازے دی زغملے
دَ جهان ګلونه وارهٔ بے وفا دی
بیهوده وربا ندِ مینے کا بلبلے
کشکے زهٔ یو خر غوخکے وے سړے نهٔ وے
هومره چارے سړیتوب را ونمانځلے
دوه رفیق دی دَ یوهٔ په وئیل ژغ کړم
دا دویم را باندِ غرب وهی چه غلے
نهٔ دَ دین نهٔ دَ دُنیا دی ځنے نورے
دَ یا غی دا یل په مینځ کښے وبلبلے
چه اوربشے کری کله غنم وُشی
پته نهٔ ده څهٔ کړے هغه اَخلے
یوئے تولهٔ په محنت کا بل ئے یوسی
راشه ګوره چا اولجه کړه چا ساتلے

یا دارو دَ لیونتوب اوکړه خوشحاله
یا ناحق دروغ خلقه سره ملے

چائے راز دَ خولے تحقیق نهٔ دے موندلے
کهٔ صفت ئے وارهٔ خلقو دے وئیلے
په چشمانو کښے ئے سحر دَ بابل دے
په ملال ملال کاتهٔ کښے مالیدلے
یو نظر ئے راته وُکړ نور په تلهٔ شوه
ځما زړهٔ وری دَ بنړو په تار پیٹلے
وچمن لره چه دروم تللے نهٔ شم
دَ ګل باغ ئے تر لمنے یم نیولے
په هرلوری کښلی دیر دَ خلق وائی
خوک دِ یو راته بنکاره کا هسے کښلے
چه ومرګ وته م مینه ستا غمزه کا
خدائے دِ ستا له لاسه روغ کا ځما غلے

ترجلب نیولے تل باندِ سورلحی کا | زړهٔ مِ پیته مړنے سور دُ خال دِ پلے

چا به بے دَ عشق له کاره بل کار نهٔ کړ
دَ خوشحال دَ خولے وئیل کهٔ چا منلے

چه سرے تر عقل تیر شی مختبط شی | زیست روزګار دَ مختبط سره غلط شی
دَ حرص دریاب ترشرقه دے ترغربه | حریصان پکښے غوټے خوری لکه بط شی
نن څما بیړئ لاهو شوه په دریاب کښے | لا به کله دا لاهو بیړئ په شط شی
دَ تِه دردے جامے قدر قیمت ډیروی | دَ اغوستے سرو پائے قدر وسط شی
غابش وتلی بِزیره سپینه آزمیښت دَ | لا څما و عاشقئ وته نمط شی
جاودانه خوښی دا ده په جهان کښے | چه دَ زړهٔ دَ عشق په کار کښے منبسط شی
ښاغلسته یاران مِ هسے ملک ته لاړل | چه نهٔ ځائے دَ پیغامونه نے خط شی

دَ خپل یار و تیغ ته سر کښیږدهٔ خوشحاله
دَ قلم خوبی هاله کنړه چه قط شی

چه دَ لویو کتابونو دانشمند وی | دَ هلکو کتابونو په کار بند وی
چه خرمائے دَ بلوټ نهٔ وی خوړلی | وهغو ته پیتوے خرما خوند وی
چه دَ هند په شکر قند و خبر نهٔ وی | وهغو وته کا خرے شکر قند وی
دَ اټک په مناره به نظر نهٔ کا | چه هغهٔ ته دَ ډهلی ملک څرګند وی
هر سړے دَ خپل وطن ثنا صفت کا | دَ هر چا تر فهم کښلے خپل فرزند وی
دَ ناپوهه سړی دَ پند سره کار نشته | ماچه ولیده دانا محتاج دَ پند وی

زهٔ خوشحال نے دَ دانش په سترګو وینم
دَ هر چا چه بد ده پوهه غلط سند وی

چه نے مخ ترګل زیبا دے یار څما دے | چه په مخ نے عندلیب شوم کار څما دے
چه نے تش په کوخه تیر شوم لیونے شوم | کهٔ نے وو وینم په سترګو زار څما دے
کهٔ واعظ مِ دَ بنهٔ مخ له مینے نیسی | کهٔ مِ لاس ورباندِ برشی پلار څما دے
بے له کښلیه زیبا مخه کهٔ ګلزار دے | چه هر ګل وته نظر کړم خار څما دے
چه هر لوری وته دروم م په غم آوړم | تهٔ به وائے غم یک لخته ښکار څما دے

همیشه به په ما وار د رقیب نهٔ وو — بیا له خپله بخته خوښ شوم وار څما دے
د خپل یار سره دوزخ څما قبول دے — کهٔ بے یاره جنت مومم نار څما دے
بُت پرست کله د بُت له مینے آوړی — زهٔ کهٔ مینه د یار پرېږدم عار څما دے

زهٔ خوشحال چه د منصور په مذهب خوښ یم
اوس څهٔ غم چه زهٔ د دار یم دار څما دے

چه د خلقو نیکخواهی لری په زړهٔ کښے — مُبارک شه بادشاهی لری په زړهٔ کښے
چه ئے غوږ د دانشمند په نصیحت وی — څهٔ عجبه آگاهی لری په زړهٔ کښے
د ناصح په نصیحت به اصلاح نهٔ شی — هر سړے چه تباهی لری په زړهٔ کښے
د مردانو په علاج به ورتلے نهٔ شی — کهٔ د سعی کوتاهی لری په زړهٔ کښے
مختورن د دوا په کونو نهٔ دے څهٔ دے — چه هر چا سره سیاهی لری په زړهٔ کښے
نیکبختان به اندیښنه کانډی د نیکو — گمراهان به مناهی لری په زړهٔ کښے

په هغه هُنر کښے ټینګ اوسه خوشحاله
هر هُنر چه سپاهی لری په زړهٔ کښے

چه ئے تل کښینوے په سر د خیال دړے — تور دیښتهٔ شو د هغے سپینے وړے
د روانو او بو کار د عمر یو دے — بیا به ورځ و شپے رانهٔ شی د نړے
محبت بے خدایه وار په کهٔ ئے گورے — د دریاب په غږ د خلیو پُل تړے
تهٔ په دا حسن جمال چه درته گورم — نهٔ پوهیږم بنا پیریٔ ئے کهٔ سړے
بے مدد د باده نهٔ رسم مراد ته — کهٔ هرڅو روانوم د زړهٔ بیړے
ستا د زلفو له بنا ماره ویره نهٔ کا — چه ترخوله ئے ستا د مینے شی جړے

د خوشحال زړهٔ په تقوی کښے لکه غرو و
ستا په مینه یکباره شو د وړے

خو چه مینه د دُنیا پریوزی په زړهٔ کښے — هومره غم شدت بلا پریوزی په زړهٔ کښے
څوک له څا یه پاکیزه څنے ناپاک دی — د ناپاکو به په دا پریوزی په زړهٔ کښے
په یوه بنیښه کښے شاش د قارورے دی — او د بلے بنهٔ صهبا پریوزی په زړهٔ کښے
چه څهٔ وینی چه څهٔ آوری چه څهٔ وائی — د سړی هغه هوا پریوزی په زړهٔ کښے

چه څۀ نۀ وینی نۀ آوری نۀ څۀ وائی · وایه کومه تمنا پریوزی په زړۀ کښے
نیک و بد په خپل قسمت وی له چا نۀ وی · په ناحق کینه له چا پریوزی په زړۀ کښے
نۀ په پندځی نۀ په بندځی نۀ په نور څۀ · چه مزه د ناروا پریوزی په زړۀ کښے
چه صحبت دِ له چا کیږی هسے تۀ شے · هم هغه خوی نه ستا پریوزی په زړۀ کښے
د بلبل محبت یو دے کۀ بلبل وے · چه د گل ئے هر صبا پریوزی په زړۀ کښے
نا آشنا عالم د چا په فکر گرځی · اندیښنه خو د آشنا پریوزی په زړۀ کښے
د بهار په وخت دا درد وی د دردمنو · چه ئے سیر د صحرا پریوزی په زړۀ کښے

د خوشحال غونډِ به بیل شی له عالمه
د هر چا چه دا سودا پریوزی په زړۀ کښے

ښوک په لوری د کعبه ځی په هے هے · ښوک دوارے لره چلیږی په جے جے
دواړه توکه په معنیٰ په حقیقت کښے · په هر لوری غورزوی واړه دے دے
عاشقان ئے سل هزار یوه معشوقه · په هر لوری ورپسے دی په پے پے
ښوک په کور دننه ناست ورسره کیل کا · ښوک همیش ورپسے گرځی په لے لے
میخانه یوه هزار پکښے خمونه · د مستانو ئے نعرے دی چه ے ے
کۀ همائے دے کۀ ګجیرۀ دے کۀ کرکس دے · د هر چائے خپل خپل شان دے د خپل فے فے
هر ښوک وصل د خپل اصل پسے غواړی · چه نارے د جدایئ وهی نے نے

زۀ خوشحال چه د وحدت په میو مست شوم
وایم دا چه کاؤس کله کے کے ؟

څما مرګ هغه زمان دے چه رښتیا د یار هجران شی
کۀ هجران له منځه ووزی نور به هر مشکل آسان شی

زۀ به ځان جهان شندمه په آشنا پسے به ځمه
پرے به پاسه قدم بږدمه کۀ دشتونه بیابان شی

تا زړۀ ورکړ یوۀ هر نه یوۀ هر یوۀ بشر نه
لکه اوبۀ د جوئ له سره هورے ځی چه بیل روان شی

یو خدنګ ئے وویشتمه وائی بل به دِ هم وُلم
ورته پروت سرےم نیولے چیرے نه په داپښیمان شی

ما د شاه دخولے سودا کړه په کرو روړنوئے بهاکړه
خوله ئے لنډه دَ هرچا کړه مګر دا په شاه جهان شی

له یو هسے م روزګار دے چه که یار کله اغیار دے
په همه کاره هوښیار دے خو په ما باندِ نادان شی

دَخوشحال خاطر سوخته دے ستا په جورآموخته دے
درد و غم ئے اندوخته دے هم دا درد ئے بے درمان شی

څما مئینه یاره چه نن ناست څما په کټ ئے
موندلےم په بخت ئے که موندلےم په مټ ئے

آرام شته دَ زړهٔ کام شته دَچمن لاله غوړیږی
په دور دَ شرابو ساقی ولے هسے لټ ئے

نهٔ دین لرم نهٔ دل لرم نهٔ صبر شته نهٔ عقل
په دواړو سترګو ورُوځو تالا کړونے دَ درست هټ ئے

چه مخ و ته دِ ګورم لکه نمر هسے ځلیږے
قربان دِ ترجمال شم په معنیٰ تر نمره غټ ئے

چه تهٔ راشمه نهٔ وے یو کنګال دَ زمانے وُم
بادشاه دَ درست جهان یم چه له ما سره لټ پټ ئے

پیرے به په ګلزار کړے که بلبله دَ ګلزار ئے
ګندګئی لره به دروحے که په اصل تورکونکټ ئے

دوه درے جا به څهٔ دی چه ئے تهٔ په مخکښے نیسے
په زر پردو کښے کښینه بیا وما ته په چیټ ئے

په خوب په بیداری کښے همیشه په فکر ستا دے
اورنګ و ته خیبر دے وخوشحال و ته کوهټ ئے

ځما ځویه د ننګ نه دی نه تیار دی
پرې پوهیږم چه همه واړه مردار دی

نه ئې لویه اندیښنه نه ئې لوئے کار شته
د مغلو وطباخ وته تیار دی

د منصب د اضافو خبرے کا ندی
په عزت په حرمت کله خبردار دی

اتفاق یکانګی ئے سره نشته
همګی روان په بیله بیله لار دی

یو څرګند قابل هرګز په دوئ کښے نشته
که و ډیر شو ته نزدې ځما په شمار دی

په الکیش الکیش ئے ستړے کړم ښکار نه کا
د کوته سپیځ کوکری پکښے سه چار دی

یو خودی پکښے هر ګوره ناپکار دی
دا نور ځویه م لا لړ او ډیر بیکار دی

نه د نوم دی نه د شرم نه د ننګ دی
اندیښنے ئے د ناکس د ناسردار دی

نه له پلاره نه پیدا دی نه له موره
خو صندوق بچے ئے دواړه مورو پلار دی

چه به تلل د نا قابل سرې د وړاندِ
خو دا هسے بیرقونه نګونسار دی

شکایت له نورو مه کوه خوشحاله
چه خپل ځو یه هم په ننګ له تا ویزار دی

خلقے واړه د شاه د خولے په غم دی
چه د شاهے خوله ئے کښل کړه هغه کم دی

چه د شاه د زلفو خیال لری په زړه کښے
هغه تل په زړه پریشان په صورت خم دی

که په زړه باندِ ئے زرد اغونه جوړ شی
چه د یار له داغه آه کا هغه ګرم دی

عشق یو څه عظیم بادشاه دی که ئے ګورے
چه ګدائے له سلطانه محتشم دی

ته د عشق سورو ته سهل نظر مه کړه
چه بے زرو بے لښکرو لکه جم دی

دا د عشق د ګدایانو هسے چار ده
چه د فقر په جامه کښے محترم دی

د چندنه د وُنے څکه بوئ روان شو
هر چه ولے ئے د عشق په اوبو نم دی

چه له عشقه خبر نه شول خدائے ئے واخله
که ظاهر صورت بادشاه د کل عالم دی

د آتش لمبه کړ و لره پیدا ده
په هغو د آتش څه غرض چه سم دی

چه په زړه رحم لرے دارو طلب کړه
د خوشحال ویل د خوږو زړو مرهم دی

خلق فراغت کا زه تل ستا په غم نیولے
څه بده بلا وے زړه ما نه وے پیژندلے

له کبره ډیره خیاله به څه سم واڼی وچا ته
د کلی د محلت سره چه زیست کا نا نمنځلے

له کوره نه به پاسی رنګینه جامے اغوستے
د حشر په ساعت به هم څرګند وګتا وړلے

چه ستر ګے په رنجو کړے برند کښیږے خوګ زلفے
چه غټ به در ته ګوری یو یو مرد بو یه بللے

هرګز به آوریدلی د لیدلو مخی نه کړم
خوبی د یوسف آورم ستا جمال مے دی لیدلے

په ورځ د جدایئ څوک څه مه وائی وماته
مرده وته هم کله نصیحت دے چا وئیلے

که پس له مرګه زړه د خوشحال وګورے په کور کښے
هرګز به د بنه مخ محبت نه وی ځنے تللے

خلق نادیده دی په خبرو پسے زغلی
ځار تر عارفانو چه په حال دی پوهیدلی

دوه اویا مذهبه پکښے هو مره قال و قیله
واړه سر هوا په خپل مطلب پسے دی تللی

ډیر دی کتابونه مشتمل په دیرش حرفونه
کل واړه که ګورے له الفه دی زوولی

سل بهی سل ښیبه چه نے ما په یو ځائے کړے
سل به بلل نه شی سره یو دی ما لیدلی

واړه نور د نمرد ے هم د ننه هم د بانده
هر چرته دا نور دے په هر بنهر په هر کلی

زه خوشحال خټک یم د رندانو په مذهب کښے
نور وئیل مے نه زده مختصر دی ما وئیلی

خوله دِ غنچه ګل ده تور ګیسو د سنبل پانړے
ښنے دِ دی د زر کے سپینه خوله دِ ده د زانړے

شونړے دِ ژوندون بخښی په ستر ګو کړے خونونه
ژبه دِ شکرے دی د ننه په سره کانړے

مهر دِ له دله لکه مُو له مخه ورک شو
رائیشه نا ترسے لُور د ترک که د پتهانړے

هیڅ پرے نه پوهیږم دا دِ زنه که منږه ده
خال دِ دے په زنے که دانه ده د مهانړے

ته په پالنګ پریوزے زه حیران په فکر لاړ شم
پنړ دے د ګلو نو که داته پته په پانړے

زه هغه خوشحال یم چه دِ راز لرم ساتلی
ولے هسے وائے چه تا عشق نه زده ناجانړے

خندنی هسې لربر ګرځي برسیرې          برابر په تورو وریښی سرتیرې
یو مرغۀ په سروبه سپینو قیمت مومي          بل هزار حیله په توره پیسه پیرې
په غوته کښې تپوس کله لکه باز دے          که ئې خلق د منګلو څښتن شمیرې
مرږے لیوۀ حمله په ښکرور کا          د نامرد یا په ورغومي یا په لیرې
دا دوه ځیزه پټوه په ځۀ به پیټ شي          د نامردو نامردي د ښځو نمیرې
آوښتولره پخته کوتر بانډۀ دے          د باز یو هُنر هیڅ نۀ ده کټمیرې

په جاهل خلق کښې ورک شو چه عاقل دے
یو یو بیت به د خوشحال پیرې په زیرې

خسته زړۀ مې چه مې نګار هوړ هوړے وي          هر بلبل مې چه بهار هوړے هوړے وي
زړۀ ئې ځکه د زلفینو په ارمان مرم          هر ځوک وائي چه ګنج مار هوړ هوړے وي
که ته ئې یار غواړے ورځه رقیبان ګوره          د ګلابو ګل چه خار هوړے هوړے وي
د ښادۍ خوان ئې نورو وته کښنیښ          غم ئې واړه چه داخوار هوړ هوړے وي
په هیڅ رنګ ئې آوښته ورځنې نشي          لیونے منصور چه دار هوړے هوړ وي
تپوسۍ به په مردارے باندِ ګرزي          د هنده شهند چه ښکار هوړ هوړے وي

نۀ په باغ وي نۀ په راغ نۀ په بلورې
د خوشحال خاطر چه یار هوړ هوړے وي

ختکے له ختکې نه خوند آخلي          همسایه د کاونړي نه پند آخلي
ځۀ به غم د صغیره ګناه هغه کا          چه په غاړه کبیره ځرګند آخلي
هوښیاران د نیکخواهانو وئیل نغوږي          ناپوهان د بدخواهانو نه سند آخلي
د مظلوم آهونه کا نړې د غرۀ سیزي          ظالمان به آزارونه چند آخلي
د هغۀ لاسونه مۀ سیزه په اور کښې          چه له پښو د بندیانو پند آخلي
که په زړۀ کښې ډیر غبار د غلیم پروت وي          پرے خوروه چه غبارونه شخوند آخلي

خوشحال خپلو خوږو شونډو وته پریږده
چه طوطا خوږه مزه د قند آخلي

خوږے شونډې د شکرے نۀ دي ځۀ دي          کښلي غابښ د مرغلرے نۀ دي ځۀ دي

بې له تاچه راته نور مخونه ستائی — دا وما وته خبرے نهٔ دی څهٔ دی

چه تسخیر په تورو سترګو کا د زړونو — سیه چشمے سحرګرے نهٔ دی څهٔ دی

چه د زلفو په زنځیرے مزری بند کړل — هوسئ سترګے زوروَرے نهٔ دی څهٔ دی

چه د باغ سروے پستے تر قامت دی — پښتنے په قامت سترے نهٔ دی څهٔ دی

والے نورے مینے لرے کړه له دِله — ستا دَ مخ په دور لرے نهٔ دی څهٔ دی

چه لا شنهٔ ئے دَ خوشحال په زړهٔ خوخیږی
سرے لښتئ سرے بمبرے نهٔ دی څهٔ دی

خبر ورځنه نهٔ وُم په څهٔ خیال راغله پیری
په لوړو په ژورو دم درحال راغله پیری

دَ سترګو په جوهر وم په سی کښے رابنکارِه شوه
په مشکو په ګوهروم په کال راغله پیری

ترمرګ څهٔ کمه نهٔ ده ماله بنه ننداره وکړه
په زوراو به قوت په ملک ومال راغله پیری

په زړهٔ چه راپه یاد شی دَ ځوانئ تلاشونه
دَ واړو تلاشونو پا ئمال راغله پیری

دَ مخ ده کهٔ دَ تن ده کهٔ دَ لاسو کهٔ دَ پښو ده
دَ کل واړه خوبیو په زوال راغله پیری

اقبال په مثال ګل دے تن په مثل لکه بوټے
په تن باندِ چه راغله په اقبال راغله پیری

وردرومه آئینے په یوهٔ کنج دَ مزکے پریوزه!
دَ ښکلیو په جمال په خط و خال راغله پیری

چه جونه وته ګوری خجالت ورځئ پخپله
په عشق او محبت کښے انفعال راغله پیری

نهٔ ښکار شته نهٔ ګذارشته اوس دِ جوړ سلامت کړځی
دَ تورو دَ غرهٔ بزونه په خوشحال راغله پیری

دوا ړه شونډې دِ خوږې شکرپارې دی
دَ ګلا بو ګل دِ دوا ړه رخسارې دی

دَ هغهٔ خونی خٔهٔ باک دَ چا له مرګه
چه په تیغ ئې روغې شوې مناړې دی

چه دِ لاف دَ سپینې خولې کا هغه سرخوړی
په دربار دِ دَ سرونو آنبارې دی

دَ خپل یار کره دِ ګل نشته له باغه
دَ اغیار کره پراتهٔ په پشتارې دی

دَ دردمنو له آزاره ویره وکړه
ورځ وشپه ئې ستا په وربانډِ ناره دی

شیخ تهٔ راته دَ پند خبرې واٸې
چه م غوږ ورباندِ نهٔ دے خٔهٔ شمارې دی

په دا اور کښې دِ څما لمن وُنهٔ سوه
په هرلوری رسیدلی شرارې دی

حریفان ډکې پیالې اخلی له ورا یه
دَ خوشحال ختټک په برخه نندارې دی

دَ ځوانئ په خوبئ کښې څهٔ شک دے
دَ پیرئ عمردرست له عیبه ډک دے

ږرهارونه م په زړهٔ تازه تازه شی
دُ وړولې په ږرها رباندِ نمک دے

کهٔ ښادی درباندِ راشی ږِ خوښ مشه
په ښادئ پورې هرکله غم لک دے

هیڅ فریاد دَ چا دَ ظلم جورمهٔ کړه
په هرچا باندِ چه شندې کا فلک دے

غم ئې بے حکمته نهٔ دے پیدا کړے
دَ نامرد دَ مرد په مینځ کښې غم محک دے

خوچه ډیر ډیر لذتونه ډیر غمونه
ښهٔ هغه چه بس ئې کیږی ترکنډک دے

تُوره چا وته ترم چه زهٔ ملنګ یم
ښهٔ خوداچه م په غاړه یوکوتک دے

تفحص کهٔ څوک دَ خوږو ږړونو کا ندی
دَ خپل قوم له لاسه وُرک خوشحال ختټک دے

دَ عطار خونی علطاو وَته اظهاردے
کهٔ جلاد ئې دَ خطا دَ ملک تاتار دے

خدایه تهٔ م په ښهٔ مخ باندِ مئین کړه
دَ عاشق دَ عاشقئ سره څهٔ کار دے

څوک ئې هومره مینه کښیږدی په ګو ګل کښې
عندلیب چه په ګلونو مینه دار دے

نهٔ لیلیٰ زده نهٔ مجنون زده په دا مینځ کښې
یو نازک لطیف رموز باریک اسرار دے

دَ هرڅهٔ رموز موندهٔ شی په جهان کښې
چه نظیرئې موندهٔ نهٔ شی څما یاردے

عقل صبردل و دین لاړشهٔ په عشق کښې
خوراپاتې یو ژوندون شهٔ په دا لاردے

دَ ښهر دِلبر وا ړه زړونه سم خوری
پَل به نهٔ ږدی په دالوری چه هوښیاردے

ساقي زهٔ دَ جرعه نوشو غوندِ نهٔ يم
ډکې ډکې پيالې راکړه خما وار دې

کهٔ دِ نهٔ وينم په سترگو ستا په ياد م
شگفته تازه دَ عمر لاله زار دې

چه سنبل ئې دَ زلفينو نمودار شي
هغه ځائې دَ تورو مشکو څهٔ مقدار دې

تا هرگز دَ چا دَ زړهٔ دَ لاسانهٔ نه ده
چه په تا باندِ مئين شول تالئې زار دې

مگر ستا دَ زلفو لوسې ئې وکاږي
چه م مات دَ بېلتانهٔ په زړهٔ کښې خار دې

دَ سونډک مونډک سيلئ آخري کيږي
په بلبلو خبر وکړه بيا بهار دې

په وصال کښې ئې بادشاه دَ زمانې وو
چه له کښليو نه جدا شو خوشحال خوار دې

دايم له تا لاړم کهٔ په ناسته م ملال ئې
کبرلوئي مهٔ کړه کهٔ هر څو صاحب جمال ئې

لاړم ستا له دره ستا په يادو به مشغول يم
لاړم له ما نهٔ ځې داچه ته په زړهٔ نهال ئې

زهٔ غريب نامراد يم څهٔ وما وته گوابنيږې
قهر کړه هغو ته چه دِ سيال کړې لئې سيال ئې

هيڅ گناه م نشته چه م وژنې يام وولې
واړه دِ مستي ده ته تړلې په وبال ئې

خدائې خو خبردار دې چه له تا به ئې دريغ نکړم
لږ وه ډير مشتاق خما دَ سرکهٔ ياد مال ئې

تل جور ستم کړه هغه نهٔ يم چه زړهٔ بد کړم
سل جور و جفا کړه بيا ليمهٔ دَ خوار خوشحال ئې

دَ دُنيا خاني ميري په زور او زر شي
عاشقي په نور څهٔ نشي په خپل سر شي

وعاشق ته نصيحت په مثال څهٔ دې
لکه اور چه په پوکلو تازه تر شي

کار خما او دَ مجنون سره يو رنگ دې
لکه دوه لرگي په اور کښې سره سر شي

چه په دار ئې آبدست کړو په خپلو وينو
کوم سړې به دَ منصور تر ځايه ور شي

خو به راز دَ زړهٔ پنهان لرم له خلقو
عاقبت به لوئې هلک ځنې خبر شي

په هر باد پسې پريشان جاروزام
کهٔ په بوئ م ستا دَ زلفو سوړ تهتر شي

خوار خاطر م چه مقيم شو ستا په در کښې
کله وي چه ستاله دره در په در شي

کله کله چه په مهر بوسه راکړې
ستا ترخوله دِ صدقه شهد و شکر شي

چه په غولي ئې نظر وکړم له ورايه
خار و خس ئې راته گل دَ پيغمبر شي

زهٔ به هيڅ کله وانهٔ وړم ستاله کوڅې
کور او کلې کهٔ همه راته لښکر شي

کۀ هر څو سړے وینبتۀ چوی په بوهه　　چه قضا وربانډ راشی کور وکړ شی
دَ یارغم له خلقه پټ لره په زړۀ کښے　　کۀ لاله غونډ دِ وینے درست ځیګر شی

چه ئے ورُوځے وربښکاره کړے خلقو بویه
چه خوشحال ئے دَکشتئ قلندر شی

دریاب څۀ دَجالے دپاره نۀ ځی کۀ څوک وائی
په خپله رضا دروی جاله هم ورسره بیائی

په غرونو واورے اوری بارانونه په ملکونو
له هیچا خبر نۀ دی چه په مونږه هم څوک پائی

په دولس برجه ګرځی نمر پوره په دولس میاشتے
په دا خبردار نۀ دے چه صیفی دے کۀ شتائی

په درست جهان کښے ګرځی باد حیراں په څلور ګُنجه
په هرلوری چه ګرځی ناخبر چه څۀ پیمائی

میوه غلے ګلونه ځنے رنګ رنګ نعمتونه
له مزکے پیداکیږی مزکه پروته کِل ولائی

څلور واړه عنصره چاکران دی اے خوشحاله
چاکر هغه خدمت کا چه صاحب باندِ فرمائی

د دانا په حال نادان کله خبر دے　　چه په خپله نادانئ کښے اوتر دے
دلیچن په سترګو وځلیدۀ ستوری　　وعالم ته ئے نارے وکړے چه نمر دے
دا داغونه م چه اینبی په ځیګر دی　　خو هم مازده چه م پوخ ځنے ځیګر دے
کۀ څوک خپلے سترګے وساتی غم نشته　　چه په زړۀ تندر پریباسی خپل نظر دے
خدلۀ دِ هیڅوک په دُنیا کښے عاشق نۀ کا　　عاشقی په خپل صورت باندِ لښکر دے
لیونے زړۀ م پروں په خندا لاهو　　راشه ګوره چه نن بیا په ژړا سر دے

چه دَ فکر مرجونړا له بحره وکیښ
راشه ګوره دَخوشحال کلام ګوهر دے

دَچا به څۀ لره مانړه له بله شی　　نیک و بد ه په عمل موندله شی

هرچه وګړی هغه به ربي / له خپله لاسه هره کړله شي
دا خود نما په محبوبه ګوره / چه کله ګل شي کله بلبله شي
کله غوغا کا په خرابات کښے / کله د ذکر په حلقه داخله شي
لون لون ښیوے ئے ډیرے دی / اول به کومه یوه وئیله شي
نور و خوښیو وته به شا کړے / که د یار د مینے خوښی د خپله شي
شمع چه ژبه په راز اوږده کړه / ځکه ئے هسے کله وهله شي
چه زاهدان ئے په زهد مومی / د عاشقانو په آه کتله شي
جفا ئے واړه په وفا حساب کړه / د یار جفا په وفا نیوله شي
که اور درنګی چاته مه وایه / چه اور رابل دے سینه م سوځله شي
خوشحاله فهم کړه مجلس د عامو دے
د منصور پیاله به په منصور نوشله شي

دا نه زهد پارسائي دی چه کیږی / په هرلوری رسوائي دی چه کیږی
نصیحت د دانایانو لکه باد شو / د وګړی خودرائي دی چه کیږی
هرناپوه په خپله پوهه افلاطون شو / څه نابوده دانائي دی چه کیږی
نه ئے برنه برکت نه فکر ذکر / د شیخانو تنهائي دی چه کیږی
مخ بدرنګ زر وګوهر زیور پرے پورے / څه بے ځایه زیبائي دی چه کیږی
نه ئے داد نه ئے دهش نه ننګ نه شرم / دا د خلق کدخدائي دی چه کیږی
د رښتینے مینے بوئی نشته خوشحاله
د دروغو آشنائي دی چه کیږی

د دنی دنیا دا هسے قرار داد دے / چه کیږی ئے رانول کله ئے داد دے
عاقبت به د دنیا په غم غمژن شي / هغه زړه چه د دنیا په ښادئی ښاد دے
دو وشش نارے وهی دوه خال ئے پرېوز / دا دنیا په مثال نرد سرے نراد دے
له دنیا نه هیچا کام موندلے نه دے / که شیرین وه که خسرو وو که فرهاد دے
د دنیا مثال که وګورے عاقله / په حساب لکه اوبه یا لکه باد دے
نه اوبه په یوه ځائے کښے قرار ے کا / نه د باد په یوه ځائے باندِ استاد دے

مبتلا ئې همیشه په زړهٔ محزون دې — طلبګار ئې هر زمان په بلا یاد دې

تر وفا ئې د جفا خوی ونه ډیر دی
خکه هسې د خوشحال څنې فریاد دې

د عاشق په زړهٔ دباندِ بار د یار وی — خدائې دِ نهٔ کا چه به لاندِ تر بل بار وی
یو څل بیا سر توره مسته رابنکاره شوې — چه ئې زلفې آویزاندِ په رُخسار وی
ستا په نهٔ دیدن ئې شمار نهٔ ئې حساب — اندیښنې په زړهٔ اړاندِ صد هزار وی
چه تا اُوونیم تازه غزل انشا کړم — پرې بلبلې فریاد کاندی چه ګلزار وی
په درست ملک کښې چه څوک لاڼې بنا نشت — همګی دِ لکه سپاندې ستا بجار وی
ستا تر هر چارې څاریږم بلا دا شوه — په ماخوار پورې چه خاندې څوک به آوری
تاوئیله چه خپل زړهٔ وماته راکړه — دا خوار زړهٔ م ستا د وړاندِ کهٔ بکار وی

زهٔ خوشحال د یار دیدن وته تلوار کړم
تل بلبلې څلبلا ندې د بهار وی

د بنړو غشی ئې ګل واړه دلدوز دی — عاشقان د دغو غشیو غم اندوز دی
نن م بیا په نظر کښیو ته مهوشه — تر لباس ئې شرمنده اهلِ نوروز دی
په مثال ئې توره شپه دا تورې زلفې — ګل عذار ئې چراغونه شب افروز دی
په بارخو باندِ ئې خرپ ډې د غابنو نو — دا چیچل ئې د عاشقِ نوآموز دی
اَغوستن لره ئې پا نړې د سوسن ډی — کهٔ د نوړ جامې روغې سمندروز دی
د کوترې اشارت د دیو مرګ دې — عاشقان ترې کله زار بازو نه بوزدی

سر تر پا یه په لمبه باندِ ګذر کا
د خوشحال وئیل په دا سبب دلسوزدی

د نادان په یاری څهٔ لره څوک ویاړی — هر زمان بنکاره یاری راځنې غواړی
د یاری هُنر هیڅ ورځنه نشته ! — کهٔ پند ونه ورته وایم راته ژاړی
هسې مست بې پروا یار څما پکار دې — چه د خلقو بیغورونه سره نغاړی
د رقیب په بد وئیل عاشق داړشی — لکه سپی په خپلو داړو سپې داړی
ډیر م وکاندهٔ ګریوان د عشق پکار کښې — نور به مانهٔ شی وهل د ګریوان نهاړی

دَ وصال په وخت امان دَ رقیبا نو دَ بهار په موسم ډیرګرځي غوبارې

هر شاعر څخه تازه مضمون دَ خان دے
دَ بنځه لیندۍ صدقه خوري دَ ښکار ژاړي

دَ همه خلقو نظر په خپل بهبود دے په هر څه کښې ورته ځیر مه خیال مقصود دے

چه څه درد دَ عشق لري تر به زاریږم که مومن دے که کافر دے که جهود دے

چه خپل یار ورته نظر وکړم خوشحال شم تر جمال پورے ئے بل جمال مفقود دے

دَ یار مخ که په ظاهر له ما جُدا شو په باطن کښې هر زمان راته نمود دے

دَ عاشق دَ آه له غشي بویه ویره چه تو برے ئے تمامي زهر آلود دے

دا آسمان چه سراسر کبود لیده شي پرے پوهیږے پورته لاړ دَ زړو دود دے

بیا څما طالع مدد وکړه په خدا ئکو چه رقیب دَ یار له دره نه مردود دے

دَ جهان بنادۍ کُل واړه څما دي غم مې کُل واړه په بخره دَ حسود دے

دَ خپل درخا ورے که ورکا ځان ئے واخلی
دَ خوشحال ختک په دا سودا کښې سود دے

دَ خاطر مې له اندوهه نه څه ننګ دے که ئے زده چه دَ بنادۍ ساعت یو درنګ دے

لام یو خدنګ له زړه وتلے نه دے بیا څما په زړه نوبت دَ بل خدنګ دے

هر سحر به ماله ورایه تیغ وکښلے خول په سرا ینښے راځي په نیت دَ جنګ دے

تر چشمانو مې اوره کنړه بے نمه تر محنت پورے مې غورلکه لا سنګ دے

په خروار عیش و عشرت کاندي وکړے خو څما دَ زړه په بخره عیش تنګ دے

ما دَ زړه په سترګو رنګ دَ زړګي وکوت همګي دَ غم په سرو وینو کښې رنګ دے

دا آسمان چه پاس په سر باندِ څرخیږي په چا چتر مرصع په چا پلنګ دے

دَ دُنیا په لوبئ څه با ور خوشحاله
پرون دور دَ خرّم نن دَ اورنګ دے

دلبر با خو با وربل دِ تیر و بیر دے هر هر تار ئے دَ عاشق تر زړه چاپیر دے

دَ اوزبک تاړاک به هم دا هسے نه وي لکه ستا دَ سترګو تاخت په خوار و تیر دے

څما زړه چه مزری تر زړه تیرے کا ستا دَ سترګو وکبلیو تَه زیر دے

هغه راز چه به ما تا سره تنها کړ  نهٔ به هیرشی له خاطره نهٔ مِ هیر دے
دَ غمزے په تیغ دِ مرم خونی مِ تهٔ نے  بیا به وائے چا وهلے په شمشیر دے

دَ خوشحال ومرګ ته څهٔ تُورے وکاږے
دَ بڼو ناوک دِ هم ورلره ډیر دے

دا کلام مِ دے هغو ته چه په هوش دی  نصیحت ته ئے نیولی د واړهٔ ګوش دی
په تکی تکی جامو کښے کهٔ لوئی دهٔ  دَ سپلمئ ملغی هم الاچه پوش دی
دَ مردانو دَ خپل شرم کاروبار دے  نور ئے هرڅهٔ له خاطره فراموش دی
دَ زنانو په حساب دی مردان مړهٔ شه  چه له زیبه له زینته هم آغوش دی
شړی وړ پښتون به سل په ډکه یوسی  کشمیری چه بغرګ شالونه ئے په دوش دی
هوښیارانو څخه ډیره هوښیاری دهٔ  په مجلس کښے چه سامع نشته خاموش دی

په هغوئے دَ جهان ښادی پیرزو دهٔ
چه په غم کښے دَ خوشحال سره په خروش دی

دا وئیل خما دَ راز دے  دا منزل دور و دراز دے
تازی سوار دے پکښے پاتے  څهٔ تهوڅهٔ تهوتاز دے
دَ نائی ږیره ناسازه!  دَ بل ږیرے وَته ساز دے

دَ دانش کشیدے بویه
نهٔ دَ سرو زرو طراز دے

دَ کمال لافے دِ نهٔ کا نا درستے  چه تلقین ئے دَ کامل نهٔ وے اخستے
دانشمند دَ معمّا په علم پوهٔ دے  دَ ابجد په علم څهٔ خبر نالوستے
هیڅ کمے وځان ته نهٔ پریږدی په ژبه  دَ کردے په کار کښے غوخ په کیسو سکښتے
دَ دانا ترسرِمِ دُر ګوهر نثار کړے  دَ نادان په سرِمِ پنږ دَ خاورو لوستے
ارادت ئے برخیرن په وړاندِ نهٔ ځی  دَ خپل پیر په عیب سر شهٔ یقین ستے
دَ ململو قدر چا وته ښکاره دے  چه ململ ئے همیشه په تن آغوستے

په هغے یاری څهٔ باور خوشحاله
چه پیوند ئے په ویښتهٔ سره آمستے

دَ یار غم کله اغیار وته ولاړ دے — دَ یار غم خو هم خپل یار وته ولاړ دے

دَ هغه بادشاه له ملکه عالم تښتی — چه دے ظلم و آزار وته ولاړ دے

بے همت سړے له هر کاره غرېږی — همت ناک سړے هر کار وته ولاړ دے

دَ هغه شاعر مخ تور شه چه په طمع — و هر در و هر دربار وته ولاړ دے

خلق هیڅ را خبر نهٔ دی چه په عشق کښے — څو فکرونه و ماخوار وته ولاړ دے

چه دِ تورے زلفے وُوینم حیران شم — په حیرت سړے تورمار وته ولاړ دے

په بورجل باندِ دِ هسے نا قرار شم — لکه ښهٔ ښکاری خپل ښکار وته ولاړ دے

دَ جمال په ننداره ئے هسے خوښ یم — لکه څوک چه و ګلزار وته ولاړ دے

لیونے خوشحال په نن دے دیدن ورکړه
دَ صبا فکر هوښیار وته ولاړ دے

دا ستم چه خپل آشنا دے په ما کړے — نا آشنا سړی به نهٔ وی په چا کړے

په یاری ئے دِ هیڅوک غلط نهٔ شی — وار په وار ئے درست عالم دَ تر شا کړے

ګوره سر به ئے په رندکه په زاهد شی — دَ غمزے خنجر ئے اوس دے ترملا کړے

دَ مخ خال ئے تورتارو دے په ګلزار کښے — دَ زړهٔ باز م دے نظر پسے وا کړے

خدایه ته ئے دَ زړهٔ مهر په ما وُکړه — چه دِ زړهٔ په ظالم یار یم شیدا کړے

دَ فراق غمونه هسے را پسے دی ! — درسته شپه ئے و ماخوب نهٔ دے را کړے

زهٔ به ولے دَ ښهٔ مخ ننداره نهٔ کړم — ننداره لره ئے زهٔ یم پیدا کړے

یو وصال دَ ښو یارانو بل هجران دے
چه خوشحال ئے په خندا په ژړا کړے

دَ تقوی لافے وهی دَ صادقئ — په قاضی ئے ګواهان تیر دَ فاسقئ

په ریښتیا خبر و هم متردد یم — په وسواس کړم دَ عالم منافقئ

داچه وائی څوک به هست کړم څوک به نیست کړم — سکه دعوی کاندی سړے دَ خالقئ

کهٔ عذرا په ملک کښے شته مخ دِ ښکاره کا — زهٔ په تن کښے زړهٔ لرم دَ وامقئ

آدم زاد په تفاوت سره پیدا دی — یو په بل تیرے لری دَ فائقئ

دَ بزرګانو په مسند هغه تیرے کا — چه لری واړه اسباب دَ لائقئ

ننګیالیو سره ویره د سر نشته — سر سړے پرې کا د خر په سارقئ
نمر په ګوته پټوه نهٔ شي خوشحاله
هیڅ منکر مهٔ شه د خپلې عاشقئ

د هغو چه ګرځید نه ستا په تل شي — ستا په تل به ئې آخر سر ونهٔ دل شي
ستا چشمانو م زړهٔ یوړ بیا وقبل کړ — د هغو به څهٔ احوال وي چه قبل شي
د وصال د ناوي مهر څهٔ دے غم دے — هغه هم واړه یکباره معجّل شي
عشق یو څهٔ د مزري بریت دے په کوکل دے — د رنځور ئې په څو ورځې رنګ بدل شي
ښائسته که هر څو لاف د ښائست کا — چه ئې ته په نظر کښیوزے نور خجل شي
یو ګلزار په یوهٔ درنګ کښې شګفته شي — چه ئې زلفې په بار خوبانډ ولول شي
تر هر حرف ئې د خطا نافې څاریږه
آفرین د د خوشحال په دا غزل شي

دا سړے خو په ادب سره سړے دے — چه ادب ور سره نهٔ وي نور خاروے دے
چه وفا ورځخه نهٔ وي سړے نهٔ شهٔ — تر هغهٔ نه په وفا کښې بهتر سپے دے
عادلان م د جنت د ګلزار ګل دي — ستمګر م د دوزخ د اور لرګے دے
سپے چه چا سره آشنا شي څهٔ پرے وخوري — وهغهٔ ته ئې تم نهٔ وي خو ژوندے دے
د انصاف د خښتن غم د دوزخ نشته — د انصاف م تر قیامته لا پرخے دے
په ښهٔ خوئ د سړي قدر و قیمت کیږي — بد خصلت سړے یا دیو دے یا پیرے دے
چه ئې علم و هنر نهٔ وي څخې تښتـه — بے هنر سړے که ګورے لاشے دے
چه په پند په نصیحت د بندي نهٔ شهٔ — تور زنځیر ورلره بویه که مزرے دے
په روا په ناروا د ملحد څهٔ دي — په مذهب د ملحدانو کوکرے ورے دے
د راحت په وخت د یار تجربه نهٔ شي — چه محنت درسره واخلي یار د دے دے
هر زاهد چه زهد واخلي بے مرشده
د خوشحال خټک په پوهه تش ملخې دے

دواړه شونډے د شراب پرتګالی دي — په سره والی له یاقوته په سیالی دي
په سپین والي په ښائست په زیبائني — واړه غابن ئې مرغلرے لالي دي

په ښیوه ښیوه چه پل کښېږدي په لارې
کښلې پښې نې د ګلزار پایمالی دی

په کالیو سره مخ ښائسته کیږی
ستا په مخ ښائسته ستا د مخ کالی دی

په طلب په استغنا چه تجربه شول
عاشقان معشوقې دواړه جنجالی دی

نن هغه سړی که غوارم مونده نشی
چه خوشحال خما د زړه په خوشحالی دی

هره چارې قبلوه که پرې مئین ئې
ښائسته کله له خیاله نه خالی دی

په ریښمینو نهالیو دِ نورخوب کا
د کوځې خاورې ئې ما ته نهالی دی

د فراق په وخت خما سترګو ته ګوره
په ژړا ژړا شیبې پشکالی دی

تل ژړا نارې بلغا کی خوب په څو کا
چه میشته د فراق ژن په حوالی دی

زه د مستې په پیزوان باندِ مئین یم
که د مخ کالی ئې غوره غوتیالی دی

نوم نې مه اخله خوشحال وته په ژبه
مخ ئې تور که په یاری کښې تیتیالی دی

د هوښیار د نادان هومره تفاوت دې
څو د مزې د آسمان په مینځ کښې وت دې

نادان خوړ ب فراغت ګرځي خوښی کا
هوښیار تل تر اندیښنو لاندِ چت پت دې

که په ما باندِ خرخ خوری پروائې نکړم
د هر هر کله دانا سره په نښت دے

که حاتم شی یا رستم شی خوله ئې ګوره
چه ئې لاف د خولې وکړې نوراندت دې

عشق یو مست هاتی ولاړ سره خوزیږی
دا په ځان خونی عاشق ئې مهاوت دے

چه دِ کم اختر پرې وُشولوئې به هم کړے
چه خیرن در ځغه نشی دا یو وخت دے

څوک د بل کُرته خوری ورپسے ګرځي
چا خوړلے په درست عمر ښکار د ګرت دې

د تحصیل او د ترتیل بلا په ده شه
چه ملا د حق ګوئی په کار ساکت دے

حاجی لاړو و مکې ته راغے ده م
په دروغو په حرص ډک کړې کت دے

چه دیدن ئې د ګلرویو سره کیږی
مئې د خوری نوروز د کا بهار ئې نت دے

چه په کور کښې ئې کښېږدي په چائې نه خوری
خدایه مال ئې وما راکړه په منت دے

چه ګردار ئې د ګفتار موافق نه وی
همیشه د دروغژن په ږیره ټت دے

د باطن په سترګو ګوره هغه مخ ته
ظاهری نظر د نمر په لید و تت دے

د خوشحال کلام شیرین دے تر نبا تو
چه په خوند ئې خبر نه دې ورته ګرت دے

دَ سوختهٔ و یو وصال دے | چه هجران پکښې محال دے
دَ یار غم چه معشوقه شي | نور ئے وصل لایزال دے
کهٔ هزار پردے ترمینځ وي | هغه واړه اتصال دے
کهٔ راځي دَ یار له لوریه | ورته پس هغه شمال دے
چه په عشق کښې سوخته وي | ورښکاره هغه جمال دے
دَ هغه بیلتون له کومه | چه تل خوښ دَ یار په خیال دے

مخ دَ یار ګوره په تیل کښې
دَ خوشحال خټک مثال دے

دَ فساد فکرم نشته خدائے حاضر دے | خپل ساعت به تیروم عمر آخر دے
اطاعت دَ اولوالامر ځکه نهٔ کړم | خلیفه دَ زمانے په زړهٔ کافر دے
پلار ئے ووژهٔ په بند رونړه په ګوره | په آزار دَ مومنانو بهادر دے
دَ ابلیس غونډې مکرونه ئے په زړهٔ کښې | په فریب کښې ترا بلیسه لا ماهر دے
په باطن ئے وګړانئ ته نظر نشته | په ظاهر کهٔ و دانئ ته ناظر دے

دَ چا زړهٔ به ځنے روغ په دُنیا نهٔ وي
دَ خوشحال خټک چه چا وُ د ځنے خاطر دے

دا دُنیا ده چه په دا کښې څهٔ موجود دي | دَ دُنیا سره همه واړه نابود دي
بد هغه چه ئے نظر په سود و زیان دے | ښهٔ هغه چه نهٔ په زیان نه ئے په سود دي
نهٔ محمود شته نهٔ ایاز دور ئے تیر شو | په جهان پاتے خبرے دَ محمود دي
دَ خپل دین دَ خپل اُمت سلیمه ثنا کا | مومنان دي کهٔ ترسا دي کهٔ جهود دي
تربیت ئے دَ فلکه دے موندلے! | کهٔ پوهیږې چه دا درے واړه موجود دي
کهٔ آفتاب دے کهٔ مهتاب دے واړه ستوري | ورځ او شپه په عبادت کښې دَ معبود دي
په خپل حکم به ئے بیا سره تازه کا | دا هډونه چه په مزکه کښې فرسود دي
آغوستن کهٔ ئے زربفت وي کهٔ شړئ | په دا دواړه توکه ښهٔ سړي خوشنود دي
کهٔ دَ لرے کهٔ نزدے شمار و نه مهٔ کړه | چه به درومي یا را درومي دواړه زود دي
په قیامت به بل ژوندون چه شک ګمان کا | شک پرے مهٔ راوړه خوشحاله چه مردود دي

دَ هوښیار غلطي نهٔ وي اوکهٔ وي خو دَ خندا شي
په خپل عقل غره مهٔ شه کهٔ غره شې حیف دا شي

دَ دُنیا لالچ ډیر مهٔ کړه دَ دُنیا لالچ خو ډیر کړے
وزرهٔ ته به دِ هومره ډیر غمونه را پیدا شي

قربان ئے تر همت شم څنګه هسے لیونی شته
کهٔ تخت دَ سلطنت وي پرے دَ دوی کله پروا شي

چه ستا نصیب قسمت دے کهٔ طلب ور پسے نکړے
په غیږ کښے به دِ واړه خواه ناخواه درلره راشي

دَ یار دَ زړهٔ ساتنه په مثال دَ روغ کالی ده
هیڅ حال دَ کالی نهٔ وي کهٔ پیوند دَ کالی بیا شي

چه باز دِ پرواز وُکا په طلب ور پسے کړے
کهٔ بخت مددګاری کا چه ئے وُنیسے بیا ستا شي

نادان دے کهٔ هوښیار دے له هر چانه عقل اخله
یا تور غشے خطا کا دَ هلک غشے رسا شي

چه دِ وُخوړ هغه ستا دے مال چه نهٔ خورے بلا دا شي
په مرګ یا په ژوندون به په نصیب کوږ دَ چا شي

مدد دَ طالع بویه چه هُنر سره همراه شي
هُنر به سود ونهٔ کا دَ طالع کهٔ درته شا شي

په زړهٔ کښے خپل غرض دے چه هیڅوک څنے خلاص نهٔ دے
یا یافت دے یا نایافت دے چه خندا شي یا ژړا شي

خپل ځان وته ئے وائی خوشحال داخوږے خبرے
حلوا ده دَ نبا تو کهٔ تر خوله دِ دا حلوا ده

دُنیا بده بلا ده چه وما وته ښکاریږی
په دے له خپله پلاره سکه ځویه ویزاریږی

چه خوک وبله خپل دی ولے فهم فکر نهٔ کا
چه مرګ شته په دُنیا کښے سره ولے نهٔ ځا ریږی

په هر لوری چه ګورم وعالم و ته حیران شم
دُنیا دَ هیچا نهٔ ده په دُنیا سره خواریږی

وبل ته تُوره واخلے په دا کار کښے ډیر حیران شے
چه خپل دِ په بدئ شی ستا وجنګ ته تیاریږی

چه بخت را سره مل وو ماربه ما ته چرمُبنکئ شوه
چه بخت وما ته شا کړه چرمبنکئ را ته ماریږی

دُنیا دَ مست هاتی په خوئ خصلت ده که ئے ګورے
چه یو مهاوت وُمر بل ئے شا ته تیاریږی

عالم عالم غمونه چه خوشحال وینی له خپلو
غم خورئے کهٔ پیدا شی خپل پردی ته به شماریږی

دَ ناکس دَ تربیت سره څهٔ کار دے — دَ سنګیړ دَ زراعت سره څهٔ کار دے
کهٔ ترملا ړکه درسته په آس سور شی — دَ نامرد دَ شجاعت سره څهٔ کار دے
ورځ وشپه دِ په آرام باندِ تیریږی — دَ بے ننګ دَ حمیت سره څهٔ کار دے
په پالنګ کهٔ ورته کښینی کښلے حوره — دَ نامرد دَ ښهٔ صورت سره څهٔ کار دے
دَ ګا وزو ورمیږ ونه مزری نموړی — دَ ګیدړو دے قوت سره څهٔ کار دے
چه هوسئ په میدان وهی تازیان دی — دَ کُوته دَ دے حالت سره څهٔ کار دے
فصاحت دَ باغ بلبلو څخه غواړه — دَ قارغهٔ دَ فصاحت سره څهٔ کار دے
چه له ځایه ئے په بخره سلامت شو — دَ زاهد دَ ملامت سره څهٔ کار دے

درومه هر لوری ته ګشت کوه خوشحاله
دَ رندانو دَ خلوت سره څهٔ کار دے

دا دروغ دی چه په ستوریو سوُ وزیاںن شی — سُود وزیان واړه په حُکم دَ سبحاںن شی
کهٔ دَ رنګ خوبی ئے شته بوئ ئے له کومه — دَ کاغذ ګلونه هم دَ ګل په شان شی
زمانه په طبیعت ده دَ هلکو — هلک تل چه وچا ورکه زر پښیمان شی

دَ دُنیا اقبال چه مخ کا و نادان ته — دانشمند ئے دَ خبرو نه حیران شی

دَ منصب سره ځما خبرے دُر وے — اوس راضی یم کۀ په چا باندِ مرجان شی

کوره کومه چاربه کانده مخ بنکاره کا — دَ عالم خبرے ډیرے تردا میان شی

دَ دُنیا لالچ خو ډیراندوه ئے ډیروی — چه ئے ډیره تولوی ډیر پریشان شی

دانشمند ځکه چه مال دَ دُنیا نۀ وی — وعالم وته په مثل دَ نادان شی

زۀ خوشحال ختک هغه یم قدر نشته
دارم واړه له افغانو نه افغان شی

دَ باطن په تجلّی ظاهر صفا شی — دَ بد ذات په آشنایئ کښے سل جفاوی

لکه نوم چه دَ کیمیا دَ عنقا آورے — تردا دواړو نه نایابه لا وفا وی

دَ ناکس سری نه زر خبرے واوړے — په یوه وینائے کله اکتفا وی

دَ دے دور په یارانو غلط مۀ شه — مخامخ ئے درته مخ قفا قفا وی

دَ هغۀ طبیب طلب کوه خوشحاله
چه دَ مخ په تجلّی کښے ئے شفا وی

ډیر مئین په تازه مینه سره تیر شی — په هجران ئے خوږ ژوندون زهر کنډیر شی

لا یو غم م تمام نۀ وی ځکه نصیب دے — چه ناڅاپه نور غمونه را برخیر شی

زۀ په ویر دَ معظم په غم کښے ډوب وُم — خبر نۀ وُم چه طاهر به تیرو بیر شی

لکه ډیره دَ طاهر نۀ وے په زنی — دَ هر هر ویښتۀ ئے غم را باندِ ډیر شی

خدایه هسے غم بل ما ته پیدا مۀ کړے — چه په دۀ م طاهر خان له دِله هیر شی

"طاهر و مړ په شباب کښے" دا تاریخ دے
چه به کال دَ دۀ دَ مرګ ترے را برخیر شی

راستی لاره ده بادشاهی — پکښے نشته ګمراهی

دَ ربنتینو پروا نشته — دَ جهان په بد خواهی

دَ ربنتینو سره مل وی — تل نصرت دَ الهٰی

دَ ربنتینو ځائے جنت دے — دَ قرآن په ګواهی

بیا به نۀ موے خوشحاله — په راستیٔ کښے تباهی

رفتار ئې مستانه دے — په غمزه کښې یګانه دے
دا په سر په لب شکرے — چه هرغابښ ئې دُردانه دے
که په سترګو ئې نظر کړے — ګل له نازه هم خانه دے
که وګوره ته ئې ګورے — لاله ګل ئې نښانه دے
په دا پیچ و تابو زلفو — چه دَ مشکو خزانه دے
لاړ ئې پېئ خاخې دَ شونډو — په هرکار کښې فرزانه دے
ځما ځان تر دهٔ فدا شه — چه هم ځان هم جانانه دے
نهٔ چه زهٔ په دهٔ مئین یم — دَ همه خلقو ستانه دے
خپل صورت ستائې پخپله
دَ خوشحال زبان بهانه دے

رنګ دِ وُرک شه بدے روے — را پسے ئې سینه سوے
له یوے فتنے دِ خلاص شم — را پیدا کړے بله نوے
ستا غمونو هسے توُغ کړم — وُکښې نهٔ شمه سیلوے
چه اُودهٔ وے هومره ښهٔ وے — کشکے تل وے اُودهٔ شوے
پرے به کله باران وُشی — چه به وتوُکیږی سوے
فصل نهٔ کوی خوشحاله
خوږه نهٔ شی په یوے

رابنکاره دی دَ دے دورلنډ لستونړی — پردی مال و ته اوږ دهٔ لاسونه مونړی
که په باغ ئې دَ یتیم دَ کونډے ګډ کړے — دَ انګورو په خوارهٔ ږنکوری چونړی
دَ خوړو مزه پوښتی بزه ئې هیره — ښے خربے لنډے وهی وربا ندِ سونړی
کله سر په سینه وُمنډی شیږکے شی — کله سرموړی دَ مار لکه سر بونړی
چه په ښهر په اُولس کښې ساده هیښږوی — ورځ و شپه پرے حواله وی لکه کونړی
په خپل ځائے لکه شاخوږے خوخولهٔ خُشکه — په بل کور کښې لکه آس په راتب پونړی
که ځهٔ کار دے دَ رندانو دے خوشحاله
چه ظاهر باطن ئې دواړه دی مخ رونړی

راشه کوره نامردان بلا وهلی!
دَبری میدان پریږدی لړے ته زغلی

دَ آسمان دپاسه گشت نداره نهٔ کا
کور دَ مزکے دَ تلی په مینځ کښے ملی

کم دلیل دِ دَ سر دواړه سترگے وُخوری
په تورتم دَ جنازے سره ځملی

مړهٔ هغه چه نهٔ ئے نوم نهٔ ئے نشان شته
تل ترتله په ژوندون پائی بناغلی

څوک په خپل پټی کرل کا دَ اغزیو
چا په خپل پټی گلونه دی کرلی

پسینه کړنه هومره فائده نهٔ کا
چه په وخت کرل وکا برے آخلی

دَ کرلو وخت آخر شو تخم لږ دے
خوار هغه چه ئے له کره لاس ختلی

چه محنت په ځان قبول کا راحت مومی
رنځ و گنج سره دا دواړه دی تړلی

چه لذت شهوت ترک نهٔ کا ولی نهٔ دے
اولیاء نهٔ دی دَ نفس په خوښئ تللی

دَ هوی ترکول عروة الوثقیٰ دی
درویشان په دا وئیل دی پوهید لی

چه دَ نفس دَ ظلمانی کوهی را ووځی
دَ هغو سترگو ملکونو دی لیدلی

دُرخانئ پکښے یو آدم خان خوښ کړ
یوسف زی ځوانان ډیرو وسواره پلی

څومخلص تمام خالص نهٔ شے خوشحاله
خطرونه دی چاپیر درجا رو تلی

راشه کوره څهٔ کارونه درنگ په درنگ شی
په ساعت دَ دُنیا چارے په بل رنګ شی

واړه وُسوزی په اور کښے خبر نهٔ یم
پیاله کومه راپیدا هومره پتنگ شی

لا به کله مخامخ راسره خاندی
چه کا تهٔ ئے که کښے راته په څنگ شی

چا وئیل دَ بنکلیو جنګ پسے آشتی وی
ولے ما سره آشتی نهٔ کا په جنګ شی

په هرچا باندِ ئے زړهٔ دے لکه ژاوله
خو په ما باندِ چه راشی زړهٔ ئے سنګ شی

حال دِ وُکوری ځما بیا دِ آهنگ کا
دَ هرچا چه عاشقئ وته آهنگ شی

په فراق دَ مهوشانو لاچینه دی
کهٔ روان ځماله دواړو سترگو کنګ شی

تا په خپله رضا و نیوو په غوره!
اوس دِ ولے دَ خوشحال دَیارئ ننگ شی

راشه لیونے شه چه دِ نور خلق غمخور شی
څوچه هوښیاری کړے غم به لا درباندِ زور شی

هیڅ پرے نهٔ پوهیږم چه دَچا وئیل رښتیا کړم
سل رنګه خبرے په دا مینځ کښے لور په لور شی

صبر دَ دردمنو زړونو هر کله اثر کا
خدایه لا به کله دَ غماز سرے غر تور شی

زر هُنره وُکړه نصیحت په کوم حساب دے
ځائے خوئے وی فکر مهٔ کړه چه به نور شی

یو هند و بلا دے چه په مکر تیکه کښیږ دی
څوک به ترے خلاصیږی هغه ځائے چه درے څلور شی

چین جمال دِ ګوره ښا ئسته په تور خالونه
په کشیده بانډِ تکئ دَ انګور شی

درسته شپه مِ تیره په فریاداو په نارو کړه
شپه ئے دَ هجران وه سور پالنګ په ماسُوا ور شی

غیر بیګانه چه اخلاصی شی رور هغه دے
رور چه بیګانه شی راته وایه کله رور شی

ډیر دی په دا چم کښے چه پټ پټ دَ مینے لاف کا
وِلے اوس یوازے وخوشحال وته پیغور شی

رابښکاره چه دَ دلبرے دَ مخ خال شی — لکه ښکار دَ ښکاری وُلګی خوشحال شی
په څو ژبے شاعری په جهان کیږی — دَ هر چا ثنا صفت دَ ښهٔ جمال شی
دُنیا دار کره چه نهٔ وی ښے دلبرے — اور دِ پورے دَ دُنیا په ملک ومال شی
په وصال دَ سمنبرو زړهٔ تونګر شي — چه ئے نهٔ وینی په ستر ګو خوار کنګال شی
چه عاشق دَ معشوقے په عشق کښے غرق شی — جدائی له مینځه لاړه تل وصال شی
ارمان دا دے چه به زړهٔ همیشه نهٔ وُم — همیشه به سرهٔ ګلونه کال په کال شی
دَ ګلونو وخت تیریږی ساقی کرم ئے — کهٔ دَ جام په راکولو دِ اهمال شی

لکه باغ چه په ګلونو مالا مال دے
هُما جام دِ په شرابو مالا مال شی

راشه گوره د یارانو بے غمی — هومره مهر هومره مینه محرومی
زهٔ دا هسے په فراق په اشتیاق کښے — حقیقت ئے راته نهٔ کړ قلمی
آسمان لیږے مزکه کړوره عاشقان دی — چه په څو رنگه غمونه تل زغمی
ما په دا جهان کښے غوښته مونډ نشوه — کهٔ په بل جهان پیدا شی خرمی
خوک چه دم د همدمئ وهی ترے سور شوم — چه م ولیده د خلقو همدمی
چه په هیڅ ساعت خالی نهٔ وُ له غمه — مگر غم لره پیدا دے آدمی
هیڅ طبیب نشته چه حال ورته معلوم کړم — چه په کوم زحمت کښے پروت یم المی
ته چه ما ته عربی خبرے وائے — د عربو ژبه څهٔ زده عجمی
کهٔ خبر په دا مثال ئے وئے وایه — چه په گوته یوه گوته دوه غمی
بادشاهان به ئے هیڅ کم نهٔ کا خوشحاله — کهٔ یو خدائے د سړی نشی په کمی

کهٔ قدم د د وفا په لاره ټینګ کړ
د خوشحال په پوهه دا ده رستمی

راشه گوره خلقه نصیب په څو خوری — ټوړے نور څوانان وهی منصب صد خوری
په غارونو کښے مزری ختهی منگلے — په تیارهٔ کښے د کرگے وازدے پیشو خوری
هغه ډک طباخ په سپی خوړلے بنهٔ دے — چه ترخنگ ئے د عورتو په سوپرو خوری
لکه خوک چه ډک چلم خښنوی په غم کښے — فراق ژن هسے لوگے د اندیښنو خوری
د فلک د نا قابل سره غیرت دے — نا قابل به د نیا تو حلوا څو خوری

لا به کله هغه گنج وسکوے بخته!
چه خوشحال به ئے په پلیو په سورو خوری

رابنکاره شوے د جهان بے وفائی — نور م راڅکاوهٔ قلم په آشنائی
لکه اور په بوټی وُلگی بیا نهٔ وی — یو څو ورځے دی ارمان د جدائی
روښنائی د معرفت تر نمر والا ده — څوک د ونهٔ دوځی له هسے روښنائی
له یوهٔ څاڅکی نه څهٔ صورت پیدا کا — هم په خدائے بنائی کارونه د خدائی
تا هالهٔ وکل خپل زرهٔ ورکړے بلبله — کهٔ ئے تل وے دا بازار د زیبائی
په گلزار کښے نا ستے هم دا هسے نهٔ وی — چه خبر شوم ستاله قدره تنهائی

چه په خپل کوشش بهبود دَ دُنیا غواړی
راته هیڅ نهٔ دی دَخلقو دانائی

چه څما دَ درد علاج لرهٔ پیدا دی
زړهٔ له چا غواړم دا هسې مومیائی

چه بلا ورسره وصل دَ فراق ده
دَ دلبرو حُسن څهٔ لره ستائی

چه گوهر ترخرمهرو په قدر کم دی
مگر نشته جوهری دَ بینائی

چه په چرته بنهٔ صورت هوړےٗ زړهٔ ئے
خوشنا کړم دَ خوشحال دَ پارسائی

رحمت په اکوړی شه چه ئے دُ نیو ځائے سرائے
چه بنهٔ فهم ئے وُکړے باور وُکره ځائے دے ځائے

تورغرئے دَ هوډی دے ترتیراه پورے سم تللے
نیلاب ولنډی دواړه عجب سرایښے په پائے

پورے سازه لویه لار دَ هندوستان دَ خراسان ده
گذرئے دَ اټک دے چه ترے ترس کا شاه گدائے

هر فیض دِ دَ جهان څهٔ چه یادیږی پرې رادرومی
کهٔ ملک ئے بارانی دے څهٔ بهار لری هائے هائے

کهٔ سوات کهٔ اشنغر کهٔ پیښور دے دا ملکو نه
رجوع لری ودهٔ ته فیض وردرومی دَ هر ځائے

په هر لوری ئے ښکار رشته دَ شاهین دَ باز دَ هر څهٔ
واه واه کالا پانړی چه ئے ښکار دے دلربائے

ځوانان ئے چاق درست چُست وچالاک دی په هر کار کښے
خوبن سترگی سپین او سرهٔ دی چه بالادی په نمائے

پکښے میشته زم خویه خیلخانه لمسی اُولس دے
چه خوک پکښے میشتهٔ دی په امان وُسه دَ خدائے

آسمان څخنے جدا کړ لاس دَ چا رسی آسمان ته
خوشحال له سرا یه نهٔ دے جدا شوے په خپل رائے

زلفې دِ دلدارې چه زنار فرمائي — څه لره وماته څوک بل کار فرمائي

سهل دې دا امر که مې سرومال قبول کا — څوک به دا وانل کا چه دشوار فرمائي

څه لره اے عقله دې رله صبره راته وائې — زۀ بنده دَ عشق یم دے تلوار فرمائي

څوراته ناصحه نصیحت کړے لیونے یم — کله هسے کار کا چه هوښیار فرمائي

ما ترے توبه وکړه چه دَ عشق په شریعت کښے — دین مذهب هغه دے چه دلدار فرمائي

قطع لیونے دے چه دَ یار دَ مخ په دَور — څوک وماته سیر دَ ګلزار فرمائي

خپله رضا پریږده چه رښتینے ئے په عشق کښے
کړه هغه خوشحاله چه دِ یار فرمائي

زۀ چه ستا دَ مخ ګلزار ګورم په کور کښے — دَ بهار ګلونه وُ سیزم په اور کښے

ما په دا تندی اخستے ستا دیاره — کۀ زۀ تا غوندِ یار موم په پیغور کښے

دَ توتی په مخ کښے ځي په شین شین — لکه مست هاتی چه یُون کاندی په دَور کښے

اوس په هر چرته جهان په بلا ډک شو — کۀ بخوابه لباسی وو په لاهور کښے

په قراره قرارئ کښے عالم خوښ دے — ما دِ خدائے لری دَ عشق په شر و شور کښے

کۀ رستم دَ زمانے شے کمان مۀ کړه — زمانه به دِ پرے نۀ ږدی په خپل زور کښے

دَ سلیمانؑ په ګتی کښلی دا وینا وه — چه دا تخت دَ سلیمان به نۀ وی ګور کښے

دَ خوشحال دِ دَ هغو نه لاس په سروی
چه به ځائے دَ ګوتے غواړی په څلور کښے

زلفې ئے سبب دی دَ عاشق دَ پریشانئ — ننداره ئے بهانه ده دَ بیحدے حیرانئ

درد مې سرشته ده دَ هزار رنګه دارو وو — غم ئے لا تیرے کاندی ترږیرے بنادمانئ

زخم ئے ما یه ده لایزاله حیا تکی ده — ورانے ئے دے موجب په جا د دانه ودانئ

محتسب چه احتساب لره وځی بهالۀ نشته — دَ برند وسترګو مست ئے همیشه کاندورانئ

مایه عشق کښے رسولے دے خپل کار تر هسے حدۀ — لکه څوک په مټ دَ ټوټے سزاوار شی دَ خانئ

زۀ خوشحال ختک دَ عشق په کار هومره خوشحال یم
څو سلطان غره په خپله بادشاهئ او سلطانئ

زۀ او عشق بے قراری دم په دم ژړا زاری

تیغ ؤکښلے رانښکاره شوه خوار عاشق دَخان سپاری
چه هر دم په ما ستم کړے ستا دا هسے ده یاری
ستا له مهره ستا له لطفه زهٔ لرم اُمید واری
دایم ستا دَغم ورے وېهم شرط دَعشق دَے برد باری
خاکپائے اوسه خوشحاله
لوئے به کاندی خاکساری

زهٔ اول درخبر نهٔ وُم چه دا هسے بے وفائے
په ورځ سل سوګنده وکړے بیاله واړو بے پروائے
ماچه زړهٔ وتا ته درکړهٔ خلقے راباندِ غاؤ کا
ولے هسے خبر نهٔ دی چه تهٔ څهٔ رنګه زیبائے
اے چه ما وته وئیل کړے چه په کښلیو نظر مهٔ کړه
څوک به ستا په وئیل غوږ کا چه دَمرګ خبرے وائے
په ما یو ویښتهٔ دَخپلے معشوقے ترحورے ښهٔ دے
ملاځهٔ په هر زمان دَجنت حورے راته ستائے
دَګلونو قدر هر زاغ و زغن نهٔ زده طوطا زده
هسے مهٔ وایه نادانه چه په څهٔ صورت شیدائے
داخهٔ تورے سترګے نهٔ دی چه ځما زړهٔ کے ئے یووړ
داخهٔ لا نورے بلا دی خدایه تهٔ دا نابینائے
دا نهٔ خال نهٔ زنخدان دے نهٔ پریشانے تورے زلفے
دا یو رازِ الٰهی دے کهٔ تهٔ پوهه په دا وینائے
دا دَخلقو ملامت دے کهٔ بیغور دے دَ وکړی
دا همه ځما قبول دے خو کهٔ تهٔ له ما پخولائے
نن به څراغ په کور کښے نهٔ وی دم چه کمان هیڅوک ونهٔ کا
دا نزدے دَچم وکړے چه نن ښهٔ میلمه ځمائے

زړهٔ به ستا له جوره ظلمه په خوځان وړي
غم دَ درد به دِ ترکومه په دا شان وړي

ما دا هسې رنګ هندو لیدلې نهٔ وو
چه په حُسن دین و زړهٔ دَ مسلمان وړي

هغه لاس چه دِ کوتاه دې تر لمنې
هر زمان ئې په ډیر غم کښې ترګریوان وړي

دَ هغه عمر غهٔ حال حلاوت نشته
چه ئې بې له تا په غم کښې په پایان وړي

چه هوس دَ هغو شونډو وغا بنو کاندی
دَ ارمان ګوتې هر دم په خپل دندان وړي

ستا دَ زلفو وچوګان وته حیران یم
چه دَ ځنې ګوئې دِ ښکلو په میدان وړي

پکښې بند زړونه وُکاږی کهٔ ئې ګورې
چه دَ سرو لفینې تل دَ زنخدان وړي

چه دِ زړهٔ په ما هغه حکم فرمان کړه
خما زړهٔ به دَ ستا هر حکم فرمان وړي

دَ خاطر خوښی م هر کله په دا ده
چه دا ستا غمونه هر کله پریمان وړي

دَ نور چا په ما څهٔ کار دې زهٔ پرې خوش یم
کهٔ م دین و زړهٔ همه وار بُتان وړي

دَ وفا خصلت چه خدائې نهٔ دې ورکړې
څوک به څهٔ لره په کښلیو د ګمان وړي

دَ زړهٔ مینه ئې په کښلیو ما ته نهٔ کړه
خوار خوشحال به له دُنیا نه دا ارمان وړي

زر خما تر لاسه نهٔ راځي ویرېږی
کهٔ هر څوم دَ لاسه ور سره کیږی

خما لاس ورته تر اوره هم بتر شو
لا په اور کښې ئې یو در رنګ ساعت تیرېږی

زهٔ او زر سره له ځایه غلیمان یو
په جهان کښې غلیمان سره رغیږی

چه غلیم دَ مرنی په نظر کښیوزی
نور ئې زړهٔ دَ دهٔ و مرګ وته پر کیږی

شاه خُلمی به خپل غلیم کا تر ځان وړاندِ
و نامرد وته به سل حیلې دریږی

په قرآن کښې ستا اموال په غلیم یاد دی
بل به کوم حجت تر دا قوی یادیږی

کا نړې زر کهٔ سره و ګوړې یو رنګ دی
فرق ئې دا دے چه په زرو زړهٔ رغیږی

هغه زر تر کانې بوټې لا بتر دی
چه ئې وُمنډې په مزکه نهٔ خرخیږی

چه او به په ځائې حصارے شی نوخساشی
صفائی ئې هم په دا ده چه بهیږی

تل دِ لاس په غلیم برا وسه خوشحاله
غلیمان دِ شرمنده تر تا ځاریږی

ساقی ګل شګفته کیږی
خس له باغه رفته کیږی

کهٔ دَ باغ خوبنې په زرشي — د راغ هسې مفته کيږي
دُرګوهر ځما بې مېنو — په مژګانو سفته کيږي
کهٔ ئې پټ لرم له خلقه — رازم نهٔ نهفته کيږي
باد دِ زلفې آشفته کا — ځما زړهٔ آشفته کيږي
هغه راز چه به ما تا کړ — په محفلو ګفته کيږي

دَ خوشحال بخته بيدار شه
تل څوک کله خفته کيږي

ستمګر به هميشه په دُنيا نهٔ وي — پس له مرګه به لعنت لعنت په دهٔ وي
هسې خوښ دَ ظالمۍ په کار ولاړ دے — تهٔ به وائې مرګ ئې نشته تل به ژوي
ظالمان په نور څهٔ هيڅ راغلي نهٔ دي — خو دُنيا وته څوئيږي لکه سوي
چه دَ خپلې کامرانۍ په کار راشي — کهٔ عالم ته وبالاشي پرے ئې زړهٔ وي
په ګفتار کښې فرښتو سره سيالي کا — په کردار کښې شيطانان ترے پوړ څهٔ وي
کهٔ په شول ئې دَ دُنيا مقصود حاصليږي — دَ مکې په ورهٔ به هم پورے کا سوي
په خپل رور ځوئيه ئې زړهٔ نهٔ وي تړلے — دَ خپل پلار و مرګ ته هم مړي ورغوي
په هغه چارهٔ قلم روغ کا قرآن کښې — په هغه چارهٔ دَ رور مرئ سکوي
په رکوع کښې تسبيحات دَ مال و ملک کا — په سجود کښې خپل حشم غواړي کهٔ ښهٔ وي
کهٔ نيکخواه ورته دَ پند خبرے وُکا — چه دَ بدو خصلت پريږدي زړهٔ ئې چوي

زهٔ خوشحال چه دَ اورنګ بادشا نوکر يم
کهٔ وځويه ورکول کړم زړهٔ م نهٔ وي

ستا له جوره ظلمه هيڅ نهٔ کړلے ژړلے — چه له دره دِ په څو کرځم شړلے
هميشه ځما دُعا په غوږو آورے — يوه ورځ دِ په ښکنځا نهٔ يم ربړلے
رقيبان دِ لکه سپي په کوڅه غاپي — ترے هم څيرے جامې دروم هم خوړلے
چه به تهٔ دَ هغه تال په پړيو زانګې — هغه پړې دَ ريښمو دي غړلے
قافلې دَ همرهانو شوے روانې — ما هم بار دے دَ خپل کوچ پسې تړلے
حاسدان بې غمه خوب کا دريغه دريغه — چه په کورئې دَ بلا نقيل تړلے

دَ خوشحال ئې وکرم وته اُمید دے
کۀ هر څو په ګناهونو دے لړلے

ستا دَ کښلې مخ په خال م زړۀ په داغ کړ
په دا داغ م له عالمه زړۀ فراغ دے

سخ چه ناست یم دَ ګلونو په چمن کښې
بیا ساقي را ته نیولے ډک ایاغ دے

یا دَ ښو زلمیو خیال دے په شمله کښې
یا دَ ښو جونو دَ تور وربل دماغ دے

دَ زلفینو په تور تم کښې به ئے غوارم
دا ورک زړۀ کۀ را ښکاره کا مخ څراغ دے

چه دَ کښلیو دَ جمال ننداره کا ندی
وهغو وته سپیرۀ ډک سیل دَ باغ دے

په سپین مخ ئے تازه خط نوے توکیږي
زۀ به زړۀ ورځنې ژغورم رور دے زاغ دے

دَ ګلونو په بوئ څې په ګلزار ورشي
دَ ګلونو بوئ بلبلو ته سراغ دے

نۀ په اصل دومره ښۀ نۀ ښائسته ئې
تا په کوم توکی راوړے دا دماغ دے

دَ خوشحال سترګې هورې چه ښائسته دي
خلقه زړۀ ئے نۀ په باغ دے نۀ په راغ دے

ستا وصال لکه دریاب دے زۀ ماهي
په هجران دِ هر زمان دے په ماهي

په ژړا م ځنې خواست دَ سپینې خولې کړ
په خندا ئې وے چه ځۀ کا دا سرے

وے ئې څوک ئې چه ځما په کوځه ګرځې
ښۀ حاضر خواب م ورکړ ستا مرئې

هم په څو رنګه ناله هم په تن نال شوم
بیلتانۀ را باندې کړ کار دَ نے

دَ خوانئ بهار ځۀ ښۀ دے دریغه دریغه
دا بهار کۀ همیشه په دُنیا وے

ګل، سنبل، نسرین، نرګس، لاله غوټئ
دَ مقدم سره دِ راوړۀ درست پسرلے

چه ئے وښیسم په غیږ کښې را ته ګوری
لکه مست دَ مور په پیو کم کیلے

دا شیرین یاران به نۀ وینم چه ومرم
خدایه ما په جهان تل لرے ژوندے

غم خو ستا دَ رسوائئ کړم نۀ دَ سر کړم
کۀ م دا اندیښنه نۀ وے تا کتے

هسے ستا دَ بیلتانۀ په آتش سوزم
لکه څوک په لمبه کښیږدي وچ لرګے

ډیر صفت دَ ښاپیریو آوریدۀ شي
ولے ستا دَ مخ څوک نۀ وینم مخے

په ښائست کښې هیڅ لقب دربا ندِ نشته
کۀ دِ ځۀ خو دَ عاشق نمنځنه کړے

اورنګ زیب به دَ کابل دَ خلل غم کا
ساقي وخت دَ نوبهار دے راوړه مئے

چه زړه سوې دِ دَ خوشحال په فریاد نشي
په سینه کښې دِ سندان دے که زړګے

ستا په غم کښې لکه زړه یم بل به نهٔ وي
دروغژن یم که بل هسې لکه زړه وي

ستا له غمه م څیګر له وینو ډک شو
چا ته هیڅ وئیلے نهٔ شم زړه م چوي

تا وئیل خما دیدن قیمت بها دے
زهٔ حیران یم ستا دَ مخ بها به څهٔ وي

سر به درکړم په بها کښې دیدن راکړه
په سودا کښې خلل مهٔ کړه که دِ زړه وي

هسې ګل دَ ګلستان په مخ کښې نشته
هرچه ستا رنګ و بوئ پورې په ده وي

که تل تالره درځم ملامت مهٔ کړه
دَ بلبلو تل وګل وته ورتلهٔ وي

دَ ښهٔ څیز پوښتنه مهٔ کوه له اصله
دَ یو هر دوکان چه وي کالے دِ ښهٔ وي

که صورت ژغورے له غمه کاته مکړه
زړهٔ هاله په غم اخته شي چه کاته وي

زهٔ خوشحال چه آشنا وویم خوشحال شم
لکه ګل چه تازه شوے په اوبهٔ وي

سرے هومره ښوئے نیت وي
جامه هومره ښو قامت وي

کرګدن کردن دَ فیل خوري
څهٔ میرے څځئے قوت وي

نهٔ هر خرهٔ دَ عیسیٰ بار وړهٔ
نهٔ هر سر سره دولت وي

وصورت ته نظر مهٔ کړه
په کرده دَ مرد قیمت وي

زهٔ مرئیے دَ هغه کس یم
چه صورت وي هم سیرت وي

که صورت سیرت دِ جوړ شول
سر تر پایه عنایت وي

دَ خوشحال په وینا غور کړه
په وئیل کښې ئے لذت وي

ساقي تل به دِ داسې وي که به نهٔ وي
له جهانه به مهلت وي که به نهٔ وي

راشه ډک دَ میو جام په مئے ناب کړه
تل به هسې فراغت وي که به نهٔ وي

هر هوس چه دَ صورت کړے نن ساعت دے
ګوره کا نده به صورت وي که به نهٔ وي

په رښتیا وما ته دُوایه طبیبه
چه دَ رنځ م به صحت وي که به نهٔ وي

دَ وصال وعده دِ وکړه ستا سوګند دے
په دا کار کښې به غفلت وي که به نهٔ وي

کهٔ په تا پسے ملنګ دَ مصلے شم
شاه په تا م به قیمت وی کهٔ بمنهٔ وی

سپینه خولهٔ کهٔ بے ریباره ورپیشکش کړم
په خوشحال به م منت وی کهٔ به نهٔ وی

ستا په تورم مال تالا مانړئ نړیږی
راشد کوره کهٔ په داد زړهٔ سړیږی

ستا غمونو لره هر کله ژوندون وے
په دا لږ عمر م زړهٔ کله مړیږی

وائے ماویشتلے خهٔ کا حال ئے خهٔ دے
په کوخه کښے دِ لا دم وهی غړیږی

دَ فراق په شپه ئے خوب په ما حرام کړ
وائے ماګے م په سترګو کښے غړیږی

لا به ګوره خهٔ شان شان غوټئ واکا
دَ ښائست بهارئے اوس نوے غوړیږی

ما به هیڅ په رټ رټ نهٔ ژړل عالمه
ولے خهٔ کړم چه م ننه زړهٔ ژړیږی

دَ رښتیا خبرے خیر و برکت دے
په قاضی دَ دروغژن ژبه ادیږی

دَ خوشحال خټک په کار یورے حیران یم
مینه لا وربانډِ زورشوه ځوزیږی

سخ دَ آئینے دے چه دِ مخ وته تل ګوری
سخ دَ لونګین دے چه دِ پاس په تټر شوری

نهٔ دی ستا دَ غوږو غټے مرغلرے
وصل دی په میاشت یورے یو سربل سره ستوری

روغ م کړے له رنځه چه دَ خولے بنیرے دِ آورم
شهد وشکر راکړے چه م ستا شونډے وزوری

ظلم دِ دَ سترګو په ما خوار هرګوره ډیر شو
خهٔ کړم توان مجال دَ زورور لری کمزوری

زهٔ کهٔ ډوب په غم یم تل دِ ډوب وُم چه عاشق یم
تا دِ خدائے معشوقه تل له هرے بلا ژغوری

ما ته ارزان دی ډیر په مشکو په عنبرو
څوک به تورے خاورے ستا دَ پلهٔ نه بها پلوری

تل ځي ستا ولورته په ارمان ارمان کا تهٔ کا
سپين ږی په کاتهٔ شي دَخوشحال دسترګوتوري

ساقي راکړه وما مئے يوځو جامه پياپے
داهم ظلم دے کهٔ ګورے چه بے ميو ځي سپرلے
هغه ځائے چه ګل ومل وي ورع څوکاندی سرے
ګوره څهٔ وائی پړے غوږ کړه چه آوازکاچنګ وئے
بيابه تيرساعت رانشی آه ارمان ارمان هے هے
دَدُنيا ژوندون هم بنهٔ دے کهٔ ترتلو هميش وے
چه ترتلو هميش نهٔ دے نورے ګُوکنړه لاشے

ډير مئين ئے وبل تيرکړل
فلک نهٔ لري زړهٔ سوے

ستا په زړهٔ دَدُنيا غلے دَ دوزخ لمبے دی بلے
چه دَګور لړم ماران دی هم دا غلے دی پيئلے
کهٔ دِ يوځله ځان خلاص کړ غم دِ نشته هورے دلے
دالړم شلوه له دله کهٔ دِ نهٔ وی ليچے شلے
چه بهٔ وو تسپے په لاس کښے مځ ئے تور بهٔ يرے ئے کلے
تهٔ اصيل ځان دِ مريے کړه
هے تو به خوشحاله ولے؟

ساقي چه مهربان شي په پياله کښے مِ زياتيرى
چه مئے ورځنے اخلي دَ رقيب بنيښه ماتيږى
قربان ئے شم ترسترګو به طالع کښے زوروردے
چه هرکله ئے سترګے په زيبا جمال توانيږی
بوسه دَ سپينے خولے راکړه بدمهٔ وړه مستحق يم
دَحسن له نصابه دِ څو توکه ... کا تيږى

آفت دَ هلکوالی وو جمال دَ هغه تُرکے
چه کال باندِ تیریږی آفت لاسه تازه کیږی
ژوندون دَ عاشقانو دَ معشوقے په مثال دے
چه بیل شی له معشوقه ژوندے نهٔ دَے وفا تیږی
چه او سپینے ترے خیژی هغه کا نری رنګارنګ ګی
ترخے خوږے ترے خیژی څوک فولاد ترے مزا تیږی
دَ چا خونے چه وُمری پس له مرګه شی میراتے
دَ چا خونے خوشحاله په ژوندونے میراتیږی

سترګے دی کهٔ وروځے کهٔ نے زلفے کهٔ اوربل دے
څهٔ تورے بلا دی چه م زړهٔ پکښے قبل دے
چرته به خلاصیږے دا بلا تر زړهٔ چاپیرے
مخ ته کهٔ ئے ګورے لا په سرو لمبو اوربل دے
خیال ئے دَ زلفینو عقل و صبر و دین و زړهٔ وړی
نهٔ پریږدی په کور کښے بنهٔ کالے دَ خونے غل دے
نور عالم لا پریږده چه عاشق وته څهٔ وائی
پلار کهٔ نصیحت کا و عاشق وته خجل دے
قیس وو کهٔ وامق وو کهٔ فرهاد وریسے نور وو
ما را وړے نهٔ دے دا دَ مینے دود اول دے
مینه اَلستی شته لباسی شته نفسانی شته
مشک شته هم او ړه نفسانی لکه بصل دے
هر چرته یو مخ دے کهٔ په سترګو احول نهٔ ئے
یو چه ورته دوه شی خود پوهیږے چه اَحول دے
جام بینا ته ورکړه چه ئے ډک یوسی ترڅا یه
جام ورکړه ړاندهٔ ته هسے ووایه چه تل دے

عشق دے نور ځۀ نۀ دی چه غواص په دریاب ډوب کا
ځان سوزی په اور کښے شمع عشق ور سره مل دے
ځائے په ځلئے چه ګورم زۀ خوشحال ورته حیران یم
بله غوغا نشته هیڅکی دَ عشق کل کل دے

ستم دِ دَ عینینو یاره عین عنایت دے
بند دِ دَ زلفینو دَ خلاصئ کنایت دے
په شپه ځما وئیل کله آمیز وو له هستئ
په ورځ ځنے دور یم هغه خرچ شکایت دَے
خبرے دَ مجنون او دَ لیلی لاړے زړے شوے
ځما او ستا خبرے تازه نوے حکایت دے
ځما او ستا خبرے دی پټ راز ځۀ هسے نه
چه چا ته ئے پیدا یا بدایت یا نهایت دے
په مخ چه بنائسته شوے کۀ پسو لے پسلے نۀ وے
ساده دَ ورو ځیو خال دِ دَ درحسن کفایت دَے
هیڅکله دَ مرګه دَ خوشحال اندیښنه مکړه
چه وئے وژنے دلبر خون ئے روغ په روایت دَے

سر په بیدی بیدیا ونیوے ژړلے
په صحرا دَ ونو پانړه پټ خوړلے
کۀ آشنا کۀ نا آشنا واړه لیدل شی
دَ همه واړو په زیره ورخسړلے
چه دَ قام دَ خیلخانے واړه خبر شوم
ځۀ روزګار به پکښے شی په غم لړلے
په ناحق م آزادئ وته تلاش کړو
په زندان دَ اورنګ زیب بنۀ وُم تړلے
خپل پردی چه دَ دُنیا شکرخواری دی
لکه مچ هسے له ځانه وُ شړلے
ځما حال به وهغۀ وته معلوم وو
کۀ دا هومره ډیرآ هونه چا نغړلے
کۀ خوشحال پنجهزاری کړه مۀ ئے وینه
دَ مغل له نوکرئ دے اغیړلے

شین مزرے چه کینړی داړی
باندِ نۀ خیژی خسی زاړی
ځۀ عظمت ځۀ مهوتے دے
چه په مرګ به ئے ځوک ویاړی
دَ بنادئ ستر کے دِ وُوزی
پر یږدہ دے ور پسے ژاړی
په یوه غوته یو نیسی
باز نۀ دوه تا رو ونغاړی
عابد خا ځما شنتار دے
په غوته وهی دوه ځاړی
هم شنقارم هم شاهین شته
هم بنۀ باز لرم لک غاړی

وخت دَ ښکار دے سهیل وخوت — خپل خپل ښکار به پسے غواړی
زهٔ په ښکار یم دَ سرخابو — وړاندِ زاغ راځی مردارې
خرقه خیرے دَ زاهد شوه — رنګ ئے نهٔ وینم دَ نمازې
زر به ورک شی مدعی م — یوخو مچ دی دَ غوبارې
آزمیښت کوره دَ دهر — راته لیندی شول اوس شاړې

تیغ پرے سورمهٔ کړه خوشحاله
چه لائق دی دَ خوبارې

شفاعت دَ محمدؐ ثابت په نص دے — دا په دا چه دے دَ درست جهان اخص دے
دَ موسیٰؑ دَ عیسیٰؑ کله دا صفت وو — دَ لولاک نعت په دهٔ باندِ مختص دے
اولیاء ئے دَ امت واړه ممتاز دی — هر ولی ئے په ارشاد کښے مُرخّص دے
سرحلقه دَ اولیاؤ هغه شماره — چه شیطان ئے بندی کړے په قفس دے
دَ رستم دَ مړنتوب خبرے هیڅ شوے — ذوالفقار چه ئے یاد شوے په قصص دے
دوستداران دَ اهل بیت دا واړه خلاص دی — بے دوستئ ئے عالم کله مخلص دے

په وِلا کهٔ دَ علیؓ رافضی کیږی
سکه خوشحال ئے په وِلا کښے مشخص دے

ښے ښے شپے شی څنے پیښے! — غیږ په غیږ شے شفت زبیښے
څښے څښے ښیښے تشیږی — نن به شی بخښنے ښے ښے
چین چین څنړے ځی په شین — بُتے زشتے فتنے پیښے
شی په چین تشے پو ښستنے — چین چین څنړے ښستنے ښے

هسے ځی په شین شین
نخښے نخښے ختے پښے ښے

ښهٔ سرراست ټوپک دے چه نظر ځنے لر بر شی — کوره چه ګذار دَکم خطا په چرته سر شی
ولے هسے نهٔ وی چه وینسته چوی په عقل — بیا چه درے څلور مصلحت وکاندی ښهٔ چر شی
ځوک چه محز ولی لیندئی ډیر وبله کښینی — کله په سپینکی دَ هلک غشے برابر شی
نورے لویئ هیڅ دی دَ نسب کهٔ دَ نور څهٔ دی — ښهٔ لوئی هغه ده چه لوئی ئے په هنر شی

ډېر دَ سروری دعوی کاندي په جهان کښې | یو سړے په زر وکښې په بخت سره سرور شي
آس تر کتے لاندې شا په ځوځایه زخمي وي | ځانے دے دحیرت په راتبونو ساته خر شي
یو تر ویتي نشته چه خپل حال ورته معلوم کړم | کله به ځما دَ بخت دستورے لا اثر شي

زور لوړے که عقل په دا دواړه مه نازېږه
بخت راوړه خوشحاله چه دِ کار لکه سره زر شي

ښځه هغه چه لاړ بیخوده په خیال ستا دے | که اشغال دے په جهان کښې اشغال ستا دے
ښځه هم ولیدل په سترګو واړه کښلي | چه تر واړو لا تیره کا جمال ستا دے
دَ دُنیا په مخ به ډیروي ښځه مخونه | چه تر هر څه ډیر لذت کا وصال ستا دے
دواړه زلفې دِ حلقه کړے لکه لومے | چه دانه دے په دا لومه کښې خال ستا دے
دواړه ښې کلګونې سرے په دماغ دروے | کوره بیا خومره وکړے پائمال ستا دے
ته کشتن دَ غمزے کړه مه ودریږه | مقتولانو قبول کړے وبال ستا دے
تا خو نوم دَ جنجالي را باندې کښېښو | که په زړه کښې هم جنجال دے جنجال ستا دے
که همه دَ خلقو کښلي سره تول شي | خسته زړه هم په تولې کښې لیوال ستا دے
چه دِ خوک په کوځه تیر شي نور مټين شي | چه تمام له عشقه روغ دے دیوال ستا دے
که مثال دَ صورت غواړے کوره میاشته | چه پوره دَ دوو هفتو شي مثال ستا دے
چه صبا بېګانے لوند لوم په اوښکو | یا دکاري راښخه پاتے رومال ستا دے
خوریبار درسره ته بیانے دَ وړاندې | چه په چم به نے تیریږي مجال ستا دے

که په قهر ئے شړے په لطف ئے بولے!
چه ئے ته پریږدے په هیڅ کښې خوشحال ستا دے

ښاپیرک که په هوا ځي په تور تم کښې | په راتله دَ رڼرا ورځے دے په غم کښې
لکه چتے درسته ورځ دروي په پور ته | هغه هومره باز شاهین دروي په دم کښې
دَ چندڼرا و ښوانه فرق سره هیڅ نه وو | که چندڼر تر ښوانه ښه نه وے په شم کښې
چاله ړنده دُر ګوهر نه دي وکښلي | قیمتي لولو لالا غواړه په یم کښې
که ګیدړ په خُم کښې رنګ شو په دا ځنی | خو بیا هم هغه ګیدړ دے په شیم کښې
زاهدان شیخان هم ولیدل نامرد دي | مرد عالم ربّاني دے په عالم کښې

چرخ م خکه دا په سر لونی گلونه
چه ئے خاورے غونډ پرو یم په حرم کښے

که ها تی د بادشاه و مری غم ئے نشته
چو هړے د سپی په مرګ دے په الم کښے

عشقه واړه ستا د غمونو خرخشے دی
چه په سوات راسره ګرځی هم په سم کښے

ګوټے ومنړه په غوږ کښے ترے تیرېږه
ذاکو زر د کړونه کا زړه په درم کښے

که خوبنی ئے د وصال ورسره نهٔ وی
عاشقان که خوښيږی په ارم کښے

هغه چر دِ واړه ګوتو ته نظر کا
چه ئے وی ستر ګے نیولے په صنم کښے

آفرین دِ په وئیلو شه خوشحاله
چه د تورو رژول کړے په قلم کښے

بنهٔ هغه چه بنهٔ ئے رنګ بنهٔ ئے جمال دے
بنهٔ هغه چه په قوت د هر چا سیال دے

بنهٔ هغه چه په میراث خانی میری کا
فراغت بے غمه ناست صاحب اقبال دے

بنهٔ هغه چه کهٔ احمق وی که جاهل وی
په طالع په تخت صاحب د ملک ومال دے

بنهٔ هغه چه په رشوت قاضی ګری کا
په مسند د قضا ناست په قیل وقال دے

بنهٔ هغه چه ډیر لښکر ورپسے درومی
ډیرے کبر ډیرے جاه ډیرے جلال دے

بنهٔ هغه چه په مجلس د ملوک ناست وی
تمامی عمرے زیست روز کا رتیتال دے

په عالم کښے بدی نشته واړه بنهٔ دے
چه و بدو وَته روغ دے یو خوشحال دے

بنارونئ دِ غواشینئ پسے غواړی
باز د غرهٔ بنائسته زرکے پسے نغاړی

کهٔ په رنګ کښے لکه غلوځهٔ هسے روغ دے
د خوږ و هیله ومهٔ کړه له غوباړی

یو آواز د بنهٔ آسونو د ششنا دے
بل آواز د ګنده خرونو دے چه ناړی

خوک ژړا د آخرت د پاره کاندی
خوک د دے جهان د سود د پاره ژاړی

د ګذار د پاره لیندی په خو ناست دی
د قطرے په حرص ګرځی پسے ښاړی

مرتبے د دواړو نهٔ دی سره سمے
خوک د خا یه باز شهند خوک خوږے خاړی

کهٔ د ختنګ پرونه ئے هر څو کښلی روغ دی
د بازونو پرواز مهٔ غواړه له خاړی

بنهٔ سړے ګڼړه هغه چه په زړهٔ صاف وی
همیشه ورځنه شرم هم انصاف وی

چه دا خو توکړې نهٔ وی سړی نهٔ شهٔ | هرچه کاندی نور د ننګ کا هغه معاف وی
په دُنیا چه دا عالم سره خلاف کا | لکه سپی چه په مردار ه ئے خلاف وی
نوشیروان چه مخ په عدل په انصاف وُ | کهٔ ئے ګورے ترقیامته ئے اوصاف وی
کهٔ دا ناسړے بدرنګ وی په دا خهٔ شی | کهٔ د بنیے تورے سازشوے بد غلاف وی
دهیچا غرض په دا خبرو نشته | قلب سرهٔ چه سره پیژنی صراف وی
جوهری به ئے خود کا رسره بشکاره کا | تریاقو توکهٔ شبه په رنګ شفاف وی
دیارئ د پارهٔ کرخم نهٔ ئے مومم | چه وفالری هغه په کوم اطراف وی
د بخملو په اودل به خبر نهٔ شی | په شماره کهٔ اتیا زرهٔ بوریا باف وی
عشق په حق په باطل هیڅ نهٔ دے راغلے | تر کعبے ئے دیر و بت وته طواف وی

بنائسته هرګوره دیرشول پرے ویریږم
ما خوشحال چه دَ تقوی وهلے لاف وی

عاشقان کهٔ ستا دَ لاسه په جفا مری | بارے شکر چه په عهد په وفا مری
بیدلان م دَ هجران په تیغ قتیل وی | دا یو حرف دے چه په توره دَ قضا مری
زهٔ مرده وم ستا دَ جام په کوټ ژوندے شوم | چه ئے دا جرعه نوشلی غم په چا مری
زرهٔ م ستا طرے طرارے ته هوس کا | ځان م ستا غمزے بیمارے ته رښتیا مری
اے تازه ګله بلبلے ته نظر کړه | په نوا کښے ستا له شوقه بینوا مری

خوار خوشحال په مرګی حال دَ ځنکدن کا
راشه ګوره په ارمان دَ لیدو ستا مری

عاشقان له بیش و کمه آسوده دی | له وجوده له عدمه آسوده دی
دَ ساقی له لاسه ډکے پیالے آخلی | په مستئ کښے دم تر دمه آسوده دی
بُت پرست دی دَ مغان په خرابات کښے | خوش خرم خوشحال له غمه آسوده دی
ورځ و شپه باندِ تیریږی په ښادئ کښے | هر زمان م له صنمه آسوده دی
تل ساقی دَ میو داد کا بے منته | کریمان م له کرمه آسوده دی
همیشه شوندے دَ جام په مور که اینبی | په خاطر له جامِ جمه آسوده دی
بادشاهان کهٔ خزانے و بله آسپی | داګدائے م له دِرمه آسوده دی

په دریاب کښې نے دَعشق دے غُسل کړے — له حدثه له قِدمه آسُوده دی

اے خوشحاله که نظر دربانِدِ وکا
ډیرنے تا غوندِ له دمه آسوده دی

عاشقان چه دَمعشوقے دلداده دی — له همه واړو غمونو آزاده دی
په یوه لحظه کښې هست په بله نیست شي — که نے گورے عاشقان په زړه ساده دی
مگر زهٔ له خدایه غم لره پیدا یم — په هر دم راته غمونه آماده دی
نهٔ یوزهٔ دَ نظام پُور په گټ کښې پروت یم — سوختگان نے په هرلوری افتاده دی
په درون دَعاشقانو نظر وُکړه — دَلاله غوندِ دَداغ سره زاده دی
تُرک تاجیک عرب عجم عاشقان واړه — مست بیخود دَ دیو دَخمرو په باده دی
دَ هوی خدایان ډلړے کا له دله — یوهٔ خدائے وته چه ناست په سجادهٔ دی
چه تر خپلے رضا تیرشی اولیاء شی — اولیاء له هره غمه آزاده دی
غوبانهٔ شپانهٔ ظاهر سړی لیدل شي — په معنیٰ کښې دَ پاده سره پاده دی
شیخه ته چه ډیر طاعت کړے جنت غواړے — وجنت وته ورتلهٔ په اراده دی
عاشقان که معشوقه په تیغ ووژنی — ورمیړونه نے وتیغ ته نهاده دی

چه دَ ننگ په چارو نرنهٔ دی خوشحاله
که نے نروینے په ستر گوهم ماده دی

ارتینے په عقل کمے — خود بخود دَصورت غمے
ته دَ دیو سره سم نے — دوئ له تا سره نا سمے
زر نیکی ورسره وُکړه — په یوه ذره برهمے
درته زهر شی تاوُژنے — چه نے ته گنړے مرهمے
دَ وفا په خوئ کښې نهٔ دی — همیشه جفا شِیَمے
دَآدم په صورت ووغے — په معنیٰ کښې نا آدمے
تا به کرم په لږ گناه کا — دوئ په لوئے گناه ناکرمے
خوئے کج وړے هومره کجے — خوئے درد وړے هومره غمے
په هر کار کښې دیگرگونے — په خولهٔ رالے په زړهٔ رمے

پاسه تن ئې بنائسته دے    په درون لکه ارقم
نورخۀ مۀ وایه خوشحاله
تر وجود بنې دی عدم

غم آخر شو دَ بنادئ روز کار راغے    چه موسم شو دَ گلونو گلزار راغے
په تلوارئې تیارے دَ سیل کا نړئ    و بلبلو وته وایه بهار راغے
په دا هسے وخت دَ بنو گلونو    دَ مطرب دَ ساز آواز م په کار راغے
دائې واړه له خزانه نه فریاد شی    چه گلونو ته طوطی په چغار راغے
دَهجران مشقت ډیر وو خدائې آسان کړ    بیا م سخ دے چه عشرت دَ دیدار راغے
کۀ په نورو باندِ هرکله اختر دے    په ما دا زمان اختر دے چه یار راغے
لون لون کالی بیا پیری خواجه شو
چه خوشحال دَ یار دَ مخ په بازار راغے

غم بنادی چه په چا ویر شی    لکه ویر شی هسے تیر شی
سر رشته ئې مونده نۀ شی    گوناگون دَ دور پییر شی
چه په خوا په خاطر نۀ وی    هسے چارے په تا دیر شی
په هجران کښې غم دَ یار دے    چه همیش تر نړۀ چا پیر شی
هرچه وواتۀ له ستر گو    عاقبت له دله هیر شی
چه به سخه په خوشحال کا
گوندِ زر دۀ په خیر شی

غنیمت گڼره گلونه میخوری کړه په چمن کښې
چه به پس له هفتے نۀ وی دا گلونه په گلشن کښې
په غنچه چه تطاول کا صبا دا کله باطل کا
دَ بلبلو کام حاصل شی دَ گلزار په شگفتن کښې
وطن بنۀ دے کۀ غم خور ئې بنۀ یاران دِ لور په لور وی
خو چه شته کۀ هومره نور وی لاغریب یم په وطن کښې

هم مانړے شته هم عتاب شته هم ترخهٔ ترۀ ځواب شته
نهٔ ئے شمار نۀ ئے حساب شته څهٔ خوښی ډېره دیدن کښے

اوراوبهٔ نهٔ ده نورڅهٔ ده چه په تلۀ یا په راتلهٔ ډ
په راتلهٔ په اوراوبهٔ ده اوررابل کا په رفتن کښے

کۀ ئے تل په ظلم زړۀ وی کۀ م زړۀ له غمه چوی
خدائے دِ نهٔ کا دا به نۀ وی چه ئے خوږ کړم په گفتن کښے

چه بلبلے وته گوری له آوازه ژبه ژغوری
دَ بلبل په آواز شوری هومره ژبه په سوسن کښے

چه جداشی و دِ مرینه له غمونو چه خلاص شینه
ښوک چه بے یاره پائینه سودئے کوم دے په زیستن کښے

کۀ دَ سپی غوندِ ئے وٗلی په رو روبه پسے زغلی
خوارخوشحال به ئے آخلی ښوچه خان لری په تن کښے

کۀ مِ یاد کۀ مِ نا یاد کاندی مخدوم دے — دَ چاکړم له ښتنه حجت کوم دے
داگدائے وَ وصال ته څۀ هوس کا — چه بادشاه ئے له دیدنه نه محروم دے
په عاشق چه ستا له لوریه ظلم وشو — اوس په هرلوری چه دے دروی مظلوم دے
همیشه ئے سوړ سوړ آه وی گونه زیړه — دَ ویشتلو حال کۀ نهٔ وائی معلوم دے
په جهان کښے چه څهٔ رنځ وو څهٔ محنت وو — هغه وارهٔ سره تول شول عشق ئے نوم دے
هغه یار چه وفادار دے موندۀ نۀ شی — په جهان کښے دَ وفا هنر معدوم دے
دَ خاطر وینهٔ م خوری په ننگی ننگی — له گناهه ویره نۀ کاندی معصوم دے
کۀ یار سرغواړی له دۀ نه نۀ به نۀ کا — هرچه پوهٔ دَ عاشقئ په رسوم دے
چه په عشق کښے موافق نۀ وی اے دِله — دَ هغهٔ لیدل په څهٔ کوړے چه شوم دے
دَ دوزخ لمبے به نۀ رسی عاشق ته — چه دَ عشق په تورهٔ مړشو غه مرحوم دے

ماخوشحال ته ستا دَ خولے اسرار مکشوف شو
کۀ دا راز دَ چا له ستر گونه مکتوم دے

کۀ یو دم دَ یار په غم فراغت کښینے — په دا دم به له عالم فراغت کښینے

که دِ کار دَ محبت و نیو په لاس کښې — په دا کار به خوښ خرم فراغت کښېنې
که گدائے شے دَ مغان په خرابات کښې — همیشه به لکه جم فراغت کښېنې
دیر ولړ دَ زړهٔ زحمت دے که عاشق شے — تهٔ به تل له بیش وکم فراغت کښېنې
که اختر دے که نوروز دے خو هم دا دے — مخ په مخ چه له صنم فراغت کښېنې
که په کوئے کښې ئے مقام وکړے زاهده — په خاطر به له ارم فراغت کښېنې

لاس په لاسه بهشت دا دے اے خوشحاله
چه خپل یار سره یودم فراغت کښېنې

که دا عقل دَ همه خلقو یکسان وے — سکه بانده و وچه همه سړی لقمان وے
دَدے لال قدر به نهٔ وو په عالم کښې — که دا کانړی واړه لعل دَ بدخشان وے
په بیغرت به دَ هرچا کره پراته وُو — که دا دُرم دَ ژلئ غوندِ ارزان وے
هیڅ حساب به ئے په هیڅ ځنګل کښې نهٔ وُو — که دُرے واړه ګنی دَ هندوستان وے
په خوراک به خرو غویو نهٔ قبلولے — که دَ بړهٔ دَ وِنے پاڼے واړه پان وے
دا تپوس به هم په لاس دَ بادشاه ناست وو — که دَ باز و دَ شهند غوندِ ئے شان وے
دَ لیلیٰ او دَ مجنون مینه به هیڅ وه — که همه خلق لیلیٰ او مجنونان وے

ما خوشحال دَ حقیقت په ژبه ووے
دریغه دریغه که څوک پوهه په دا زبان وے

که صورت وَته دِ گورم په صورت کښې یو حیوان ئے
که معنو وَته دِ گورم شهزاده دَ کُل جهان ئے
چه ظلوم جهول یا دیږے کُنتُ کَنزًا هم پوهیږے
تهٔ و دا ته نظر مهٔ کړه چه دا غوښے اُستخوان ئے
چه مسجود وو دَ ملکو ځائے ئے پاس وو په فلکو
تهٔ خلف دَ هغهٔ هسے خلیفه پدر نشان ئے
غوښے هډ څهٔ پکار نهٔ دی دا دَ ګاډُو او دَ خرهٔ هم وی
دَ ګدائے په کند کښې پټه تهٔ یو څو رنګه سلطان ئے

چه ئے ستا په حال پېغور شو ترا بده ئے مخ تور شو
دَ چا نوش ئے دَ چا نیش ئے دَ چا درد دَ چا درمان ئے

دَ دُنیا عقبیٰ باغونه پکښې وارړه نعمتونه
وارړه ستا دپاره جوړ دي تهٔ مقصود دَ کن فکان ئے

کهٔ هر څو ګلونه ډیر دي تر حساب تر شماره تیر دي
دَ فطرت په حدیقه کښې نو باده دَ ګلستان ئے

نور به څهٔ وائے خوشحاله دَ حاله له احواله
هم دا هومره وئیل بس دي کهٔ پوهیږې نکته دان ئے

کهٔ په باغ کښې رنګا رنګ ګلونه ډیر وي — هسې نهٔ چه دَ ګلاب دَ ګل په څیر وي
آشنائي دَ ګبینهٔ ده کهٔ شکرے — چه خوارهٔ ئے په څو رنګه را برخیر وي
ستا دَ دَر دَ سپیو څهٔ ثنا صفت کړم — چه تر پیره میره زړهٔ وته راتیر وي
آرزو به دَ حیوان دَ اوبو نهٔ کا — عاشقان چه دِ دَ خولے په میو سیر وي
چه په عشق سره ژوندے دَ مرګ ئے نشته — کهٔ په ګور کښې تر داتوره خاورو زیر وي
دَ غمزے توره ئے هر چرته وژل کا — لور په لورے شهیدان په دا شمشیر وي
تل ئے لوبے دي حُما دَ زړهٔ په وینو — ستا دَ سترګو آهو ما ته لکه شیر وي
ستا دَ زلفو هر هر پیچ وته چه ګورم — همګي په رنګ و بوئي لکه کستیر وي
چه خوشحال دِ یو زمان دیدن ونهٔ کا — یو زمان ورته تر کاله هم لا ډیر وي

مګر هیڅ ئے دَ زړهٔ حال ورښکاره نهٔ دے
چه لیدهٔ ئے دَ خوشحال سره ډیر ډیر وي

کهٔ راضي یم په جفا او په وفا ئے — نور را درومه چه زهٔ ستا یم تهٔ حُما ئے
بے له ما کهٔ جهان ستا شي په او ربشه — چه زهٔ ستا شم کهٔ او ربشے خورے دا رائے
کهٔ دِ طمع دَ مخلوق له دره پریکړه — بادشاهي دِ مُبارک شه کهٔ ګدائے
غاړے غړونه خبر دار دي چه مجنون یم — کهٔ جهان په دا خبر دے کهٔ لیلیٰ ئے
جګي جګي په لیمهٔ یم قدم کښیږدهٔ — چه ړندے سترګے یم روغے شي توتیا ئے
کله ما وتا روزګار په یوهٔ ځائے کړه — برابر راشه دَ یار سپیه چه آشنا ئے

چه یاری له یاره کړې دَ سُود له مخه — په خاوندِ م دِ سوګند وی بے وفائے
چه دَ یار سره په خپل غرض یاری کړے — دَ یاریٔ بلا په تا شه یار دَ چائے
چه دِ بولم معطل مهٔ کړه را دروم ه — کهٔ دَ باز غوندِ حاضر په ژغ دَ بیائے
په دربار م چوترے دی دَ سرو نو — راشه وا وره چه په خپل کشتن شیدائے
چه دِ خویٔ خصلت دَ رنګ سرهٔ جوړ نهٔ دے — رنګ دِ ورک شه کهٔ هر خو په رنګ زیبائے
په دا هسے بنائسته جمال چه ستا دے — غم شدت آفت فتنو لره پیدائے

په اُمید دِ دَ دیدن په درکښے پروت یم
کهٔ تهٔ هر څو له خوشحاله بے پروائے

کله خپل بشر دَ ګل غوندِ نمائے — کله کله دَ بلبل په ژبه وائے
چه هر هر زمان په هر شکل جلوه کړے — عجائبه دلربایه خود نمائے
په یوهٔ ویښتهٔ دِ نهٔ ارزی دوه کونه — په غایت لکه ګوهر قیمت بهائے
دَ خپل درد دوا به زهٔ له چا نه غواړم — چه هم تهٔ محبوبه دردئے هم دوائے

کله ناز کله تغافل کړے کله مهر
له خوشحاله مروره کهٔ پخولائے

کهٔ ئے لرے له جماله نه جلباب شی — حبطه به ئے ترمخ پورے آفتاب شی
کهٔ ئے بویٔ دَ پیچاپیچو زلفو ورشی — په خطا کښے به بے قدره مشکناب شی
خو بوسے کهٔ له دشنام سره آمیز کا — شماتت به ئے په قندو په ګلاب شی
کهٔ هر څو له زیبا مخه خاطر نیسم — زړهٔ م بیا په اضطراب لکه سیماب شی
یکباره ئے قرارے له ما نه واخست — درسته شپه په ما حرام شه کهٔ م خواب شی
دَ هغو طاعت قبول نهٔ دئے نور څهٔ دے — چه سجده ئے تل دَ ورو څو په محراب شی
دا پیاله چه څما نوش دَ زهٔ پرے مست یم — دا مستی م نهٔ په بزم دَ شراب شی
دَ رندانو دَ شرابو هسے کار دے — چه زاهد ئے هم په بویٔ سره خراب شی
نامحرم م دَ صحبت ته څهٔ هوس کا — چه څما له محرومانو هم حجاب شی
کهٔ یو تول دَ بنائسته وُ سرهٔ کښیني — خو هم بویه دَ همه وُ انتخاب شی
غه روپیٔ چه دَ ټنګسال له لاسه نهٔ وی — وصراف و ته ظاهره په هر باب شی

دروغژن غشے کۀ هر څو ثابت روغ کړے
خو به بیا دَ هلکانو تیر په تاب شی

دَ خرما وُنه خو سازه کړے له مومه
دَ خرما غونډِ به کله ترے دوشاب شی

ما خوشحال چه په پښتو شعر بیان کړ
دَ پښتو ژبه به اوس په آب وتاب شی

کۀ په عشق کښے زړۀ دَ نورو په لیدۀ ځی
څما زړۀ په آوریدۀ ترلیدۀ بنۀ ځی

نورے مینے ئے څما له دِله یوړے
یکباره مِ په دیدن پسے لیمۀ ځی

هسے یاد بویه چه یوځله یار یاد کړے
نور دِ وینے لکه باز تو هرو یښتۀ ځی

پکښے خیال دَ سرو قدو دے پالم ئے
چه مِ هرکله تر دوو ستوګو اوبۀ ځی

کۀ په زړۀ شوے زۀ به اوس دِ یار غم وُم
چا وے دا چه پسے هوښ درومی چه زړۀ ځی

کۀ دَ مال وو کۀ دَ ملک وو کۀ دَ زر وو
وار په وار مِ دَ زړۀ مینه له هر څۀ ځی

دَ دُنیا مینه په زړۀ بانډِ لوئے بار دہ
آزاده به بار په زړۀ وګورته نۀ ځی

روغ به خوب دَ بیغمئ کاندی خوشحاله
چه څۀ خوږ دَ زړۀ لری خوب دَ هغۀ ځی

کۀ میوه دَ چند نړ نشته هسے شنړ دے
لائے بنۀ ترمیوه دارو و نوخنړ دے

وائے زۀ به په تاؤ کړم څنے چارے
زۀ دَ دے چارے ارمان لرم دیر څند دے

کۀ مِ خان څی کۀ جهان پړے به ئے نړ دم
ما نیولے اوس دَ عشق دَ سوز و منړ دے

په دالار دَ شهسوارانو ختل ګران دی
ګوړه څو به بانډِ خیژے ملکند دے

زۀ او دا دَ هر ناکس سازے ناسازے
کۀ ربښتیا وایم خپل خان را بانډِ ینړ دے

کۀ مثال ئے په دُنیا غواړے له مانه
چه اَلا بلا پکښے وی هغه ړنډ دے

دَ چرے دَ لارۀ کار نشته نادانه
چه تبروند پرے ما تیرِی هغه خنړ دے

یا صبا دے یا غرمه یا نماز پښین دے
نماز دیګر دَ ښکار تکل کړم ساعت لنړ دے

څوک دَ ج څوک دَ تلقین څوک دَ مکتب شول
یو خوشحال په وارو خلقو کښے لونړ دے

کام دَ زړۀ کۀ هر خوښۀ دے
ترا یمانه نه بنۀ نۀ دے

چه ئے دا اندیښنه نۀ وی
هغه کس سرے په څۀ دے

اعتبار په دا دُنیا کښې　　دَ سړی لکه لیمهٔ دے
دَ هرچا چه لیمهٔ نهٔ وی　　کهٔ بادشاه دے خوار په زړهٔ دے
سپے به ښهٔ کړم دَمړئي نه　　سپے دَ کور مـزرے دَ غرهٔ دے
خو کهٔ بد دے بیا ورے وړی　　بد سړے بدتر تر خرهٔ دے
تهٔ ئے ویښ وینے په سترګو　　غافل ویښ نهٔ دے اُودهٔ دے
په رښتیا کښې زوال نشته　　دا ځما کلام په ولهٔ دے
اولیاء بللے بویه　　چه حلال په خولهٔ په زړهٔ دے

تهٔ ئے سست وینے په سترګو
دَ خوشحال اختیار تیرهٔ دے

کهٔ په حسن دَ کشمیر خوبان اوخار دی　　یا دَ چین او دَ ماچین او دَ تاتار دی
ښښتنے جونه چه ما په سترګو ځیر کړے　　هغه ګل وارهٔ خجل دَ دوئ تر کار دی
په ښائست بانډِ ئے ختم دا وینا ده　　چه په اصل دَ یعقوب قوم وتبار دی
هیڅ حاجت نشته دَ مشکو دَ ګلابو　　په پښځهٔ وخته ما نځهٔ عطر عطار دی
کهٔ تیکه کهٔ کتهاله کهٔ نور سنګار دے　　دا همه تر تورو زلفو پورے خوار دی
کهٔ اوړنئ مقیش دوزی کهٔ سالُو دے　　دا همه وارهٔ تر سپین پړونی ځار دی
تر صورت ئے دَ سیرت خوبي اَفضل ده　　تر ظاهر ئے دَ باطن خوارهٔ بسیار دی
ګُل روزګار ئے سرتر پایه پرده پوښ دے　　نهٔ ګریوان تر نامهٔ څیرے په بازار دی
له حجابه پورته غټ کتلے نهٔ شی　　نهٔ آموخته په کنځلو په پاځار دی

ما خوشحال له ډیرو لږ دی څهٔ وئیلی
له دے حاله ګوئے مګوئے وئیل بے شمار دی

کله رِند غوندِ ملا واقف دَ راز دے　　دَ کتاب دَ مسئلو زبان دراز دے
زهٔ مرئیے دَ هغه چا یم ترے ځار یږم　　چه دَ زړهٔ سره ئے جوړ دَ خولے آواز دے
چه ئے روږ دَ خولے دَ زړهٔ سره یو نهٔ دے　　کهٔ په هر نمانځهٔ اودس کا بے نماز دے
وار په وار ځما په زړهٔ کا هسے چارے　　کهٔ دَ سترګو ئے غمزے دی کهٔ ئے ناز دے
لا به ډیر ګلونه واشی په دا باغ کښې　　دَ ګلزار دَ غوړیدلو ئے آغاز دے

څوک به نهٔ وی چه به غاؤ ورباندِ نهٔ کا
دَ هرچا وملامت ته عاشق ساز دے
ځان وتن سره مثال کړه دواړه توکه
محبت کهٔ حقیقت دے کهٔ مجاز دے
چه عزت ترے پیدا کیږی قناعت دے
چه خواری ورځنے زیږی هغه آز دے
زهٔ خوشحال له خپله بخته دلګیر نهٔ یم
چه ځما ستورے ځانی دشمن ګداز دے

کهٔ هرڅو په خپله پوهه کښے سقیم ئے
دَ حکیم په حکم کار کړه نور حکیم ئے
کهٔ په خولږ په غوږ په سترګو څهٔ زده نکړے
نور وردروه ازلی سیه کلیم ئے
دَ سیرت خوبی پیدا کړه چه جوهر ده
په صورت خوهر وغوبنه وینه ریم ئے
پیر اُستاد مرشد به واړه درته شاکړه
کهٔ په جهل مرکب کښے مستقیم ئے
عاقبت به دِ په بخره ندامت شی
چه داهسے دَ جاهل سره ندیم ئے
دا دانش چه دَ هندو دَ شمار حساب دے
کهٔ ته دا دانش ګڼړے لئیم ئے
سخاوت په روایت په روخ په رنګ کړه
نهٔ چه درسته دُنیا وبازے کریم ئے
همیشه په زړهٔ خوشحال وُسه غم مکړه
په اخلاص چه ودانا وته تسلیم ئے

کهٔ هرڅو په هوا پرونه وهی چتے
بیائے زړهٔ وی په ډکی دَ ونے نښتے
شاه خلمی تُورے نیزے خوری تردد کا
په بریښنا دَ تورے تښتی تیز آرتے
سترګه ور اوراورکے وینی چه بریښی
نوی میاشت په سترګو نهٔ وینی سترګ تتے
ناسوتی عالم په څو په دُنیا خوښ دے
هلک دَ مور په تی پورے وی نښتے
دے دَ خپلے ګوتے غم کا ندی کهٔ نهٔ وی
په شګون کښے عالم بنهٔ ګڼړی شپږ ګوتے
په هر کار به بے خطا چوړب آلوزی
ماخیل بازدے په پهړو پهړو پرلتے
کهٔ ئے بل له بدبوئی سپیړے نیسی
دَ خپل بوئی په بدبوئی خوش وخساکوتے
څوک به څهٔ لره خوشحال ته نصیحت کا
عاشق نهٔ دے نصیحت دَ چا نغتے

کهٔ هرتارئے دَ کوځئ مشک تاتار دے
دَ کوځئ تر تارئے بنهٔ دَ زلفو تار دے
هغه ځائے چه م دَ زلفو بازار جوړ شی
هغه ځائے م دَ ما تیوتش بازار دے

چه لذت دَ تورو زلفو را تر زړهٔ شي — دَ ماهیو زیست روزګار کله پکار دے
دا خبره څۀ عجب ده چا وئیلی — چه دَ تورو زلفو بد سوے ناتار دے
چه دَ تورو زلفو خیال ورته نشته — تورے خاورے ئے په سر عمر ئے خوار دے
کۀ دُنیا پرے وشندے هم هیڅ ده — هغه کَس چه مِ دَ زلفو خریدار دے

خوار خوشحال چه ډیر صفت کاندی دَ زلفو
په قیمت دَ تورو زلفو خبردار دے

کۀ هزار ځله هُنر کا هیلے بیلے — څوک به نۀ کا دَ ازل چارے تبدیلے
دَ ازل حکم په مثل دَ هاتی دے — دَ سړی فکر مثال پرے دَ ړ بیلے
دَ حیات اوبه سکندر په هیلو غوښتے — خضر بیاموندے عبث شوے دَدهٔ هیلے
یوه څۀ رنګه خونریزه لار دَ عشق ده — پکښے ډیرے قافلے شولے قتیلے
عشق یو هسے یو دیرشم توری راز ده کړ — چه په دیرش توری څکوم دَ قلم کیلے
عاشقانو ته اندک دَ دُنیا مال دے — تر همت پورے کثیرے دی قلیلے
دا دلبرے چه په داکشور کښے نن دی — په کشمیر کښے به ئے نۀ موے عدیلے
هغه ترکه چه ځان جوړ کا رابشکاره شي — تر جمال ئے حورے هم نۀ دی جمیلے
په ارمان ارمان مِ ځان راغے تر شونډو — تا دَ شونډو دارو نۀ راکړهٔ بخیلے
بیا هالهٔ دَ محبت په کوڅه پُل بړده — کۀ دِ وینے لکه ماء کړلے سبیلے

خپل پردی به دِ هیڅوک سیله ونۀ کا
اے خوشحاله کۀ دِ بخت نۀ شي په سیلے

کۀ خاطر دِ دَ خوشحاله نه دلګیر دے — په خوشحال باندِ هم ستا دَ ما نړی ویردے
دَ بیمار ساهه په شونډو باندِ راغله — دارو ګړے لاعلاج ته په تدبیر دے
دَ موسیٰؑ په معجزه به څۀ کړو هیږی — دَ فرعون چه دَ هامان غوندِ وزیر دے
یار ځما په پالنګ ناست زهٔ لاړ په خوب یم — سراسر ځما له لوریه نه تقصیر دے
ما خپل سر تر فلک ولیدهٔ په پورته — ددے خوب مِ معبره کوم تعبیر دے
بیا مِ کینړه ستر ګه لاندِ باندِ رپی — مګر بیا مِ زړهٔ یاری کښے تزویر دے
په ژړا پورے مِ خاندی چه مِ وکوت — دا همه واړه ځما دَ بخت تاثیر دے

هیڅ یو مخ به ئې مخې د بنائست نه کړم
ماچه ستا جمال لیدلے په خیر خیر دے

خما زړۀ د یار زلفینې سره کوره
لیونے په لیونتوب کښې په زنځیر دے

کۀ پکار د ده دخدائے پېژندګلي
پیروي د محمدؐ کړه د علیؓ

هر آیت چه به راته پاسه له عرشه
لا به عرش به ئې علیؓ وو متلی

محمدؐ چه هغه رازئې په معراج کړه
یکا یک وو د علیؓ وته جلی

په محشر به هغه تور مخونه پاسي
چه ئې نه دي تورے خاورے د تلی

محمدؐ علیؓ چه دوه وینې په سترګو
په دا کار کښې احولی ده احولی

د زړۀ زنګ په بل صیقل نۀ لرے کیږی
په دوستئ ئې د علیؓ ده مصقلی

کۀ دا هو مره وئیل کا ورته رخصت دے
محمدؐ دے پیغمبر علیؓ ولی

چه په بغض د علیؓ یا د عمرؓ دی
رافضی دی خارجی دی خللی

د علیؓ د آل دوستی د ایمان زړۀ دے
څوک د شک په دا په زړۀ نۀ راولی

چه تر مینځ د چاریارانو بد وئیل کا
په مذهب کښې د هغو ده درغلی

د علیؓ د آل په مدح کښې جنت دے
د خوشحال ختک په دا ده تسلی

کۀ رویت ئې ناممکن وې په دُنیا کښې
اَرِنی وئیل به نۀ وو په موسیؑ کښې

چه موسیؑ وته ځواب لن ترانی وو
څۀ عجب جلوه لیدله شي په دا کښې

چه په ملک په ملکوت کښې موندۀ نشی
هغه هسې څیز ئې اېښے دے په ما کښې

زۀ حیران په دا خلقو نۀ پوهیږم
تږی مری ولاړ تر حلقه په دریا کښې

چه په لا اُحصِی وئیل ئې خبردار کړم
چا خما ژبه ګویا کړه په ثنا کښې

د عاشق د معشوقے سره یو راز دے
چه هیڅوک ترے خبر نۀ دی په دُنیا کښې

چه لیلیٰ کړه د مجنون کونډئ ماته
خوار مجنون ئې سرفراز کړ په هر چا کښې

نور کۀ هر څو پاکیزه زۀ ګنهګار یم
غم م نشته بیا م ځائے دے په ما وا کښې

د خوشحال د هغو لار سره جدا ده
چه ئې غواړی په مسواک په مصلیٰ کښې

که ځرګان قرقره دار دي — بیا و باز و ته ناچار دي
نه یو باز د ښکار دپاره — نه که ځرک چرګ هزار دي
د معشوقې ښیوې واړه — د نور چا نه دي د یار دي
عاشق عشق لره پیدا دے — کفر دین ئې څه پکار دي
عاشقان د معشوقې دي — نه د مور دي نه د پلار دي
د خپل درعاشقان ګوره — چه په خو پرا تړ خاکسار دي
په هغو د خدائې نظر دے — چه مئین په ښه دیدار دي
عشق نا پوهـ وته آسان دے — ورته ګران دي چه هوښیار دي

په خوشحال به عیب نه کا
چه په حال ئې خبردار دي

که آسمان د چا په حکم جاروتلے — ځنې څه چارے به وشوے ناګتلے
په ړندو باندِ لاهسے توره شپه ده — که همه عالم ئې وینی نمر ختلے
هم ئې هیڅ راته پرے ښبول هم بیا وائی — چه داوړه اوسه لاهیڅ نه ئې نتلے
بیائې شکل په څه شان راته ښکاره کړ — لکه باز وی له ګریزه را وتلے
چه ادب ورځخه وی صحبت هغه کا — بے ادب له مجالسه وی ایستلے
هغه یارم لکه باز په پرواز لاړ شو — طالع بیا ځما تر لاسه را وستلے

ځان چه نن تر مئین ځار نه کړے خوشحاله
ځان به تا وی و نور چا وته ساتلے

که په کور کښې د سرو د بدخشان وی — یا ژنکوری د انګورو یا رُمّان وی
چه ئې زړه ورځخه موړ وي نړ ئې ګوری — د وړ ستر ګیو ورته څو رنګه ارمان وی
موړ به څه پوښتے له نغنه چه نغن څه وی — وږے سپے خوړلی نغن ته نګران وی
کله کښلے معشوقې ته نظر نه کړے — کله کوڅې درته هم راحت جان وی
په ساعت ساعت کښې حال باندِ نور ئیږی — چه م ولیده سرے کله یو شان وی
د سړی فکر په مثل د سیماب دے — اضطراب ئې هر هر خوا ارمان ارمان وی
کله کله ښائسته شی په ګلونو — کله کله لکه باغ باندِ خزان وی

کله کله دَخوښئ په صحبت کښېنې
کله کله په غمونو کښې حیران وی

چه دایم په یوهٔ حال دَ هغه خدائے دے
چه حالونه پرې وردرومې دا انسان وی

آخر تلهٔ دی له جهانه باور وُکړه
کهٔ هرڅو خوشحال ژوندے په دا آوان وی

کهٔ هرڅوئے په داخپل حسن کښې لویه
دَ یارئ حق هم پېژندے بویه

ما به زړهٔ له تانه وتاړهٔ په بله
کهٔ موندے شوې هسې تا غوندې دلجویه

دَ شرابو په خوړو کښې فهم وُکړه
چه دِ نهٔ شي دا پیاله له لاسه تویه

چه مکان ئے ناپیدا نشان ئے نشته
خوک به څهٔ غواړی دَ سپینو بازوهویه

دَ تشنه خوک اوبو سره مقصود دَے
کهٔ اوبهٔ ئے دَ دریاب وی یا له جویه

عاقبت به برخوردار په خپل مراد شي
کهٔ دَ بلار په نصیحت کښې دَرومې څویه

دَ خوشحال وئیل خوارهٔ ترنیشکر دی
کهٔ په خوند خبردار شې وئے ژوی

کهٔ تهٔ خولهٔ وماته نهٔ راکړې ملګئ
بلے هم راته نومړے دهٔ خولګئ

په غمونو کښې دِ هسې زنځیری شوم
لکه اوړکے چه زبون شي په بلګئ

په کړکیتو کښې دِ ډېر زړونه پراته دی
په دا دوهٔ زلفو دَ زړونو ئے غلګئ

چه څراغ ورځنې دروې پتنګ خوار شي
یو زمان له مانه مهٔ دروه دلګئ

ما دَ بنو مخونو بنه ننداره وُکړه
نشته تا غوندې زیبا بله جلګئ

ما ساده پښتانهٔ څهٔ زده چه ئے وائے
په پارسئ پارسئ خبرو سغلګئ

جدائی ئے هسې سخته په خوشحال ده
لکه څې دَ چاله ځانه نه سلګئ

کهٔ آشنا کهٔ ناآشنا دی
بولاق واړهٔ بے وفا دی

کهٔ ئے خویش کړې یا ئے خپل کړې
شاهی بیګ غوندې بلا دی

چه آصف خرّم بنهٔ نهٔ شهٔ
نور خرّم په یاد دَ چا دی

خوشحاله کهٔ یارِ غار وو
هم دَ دهٔ نه دا غوغا دی

کهٔ ئے ځان کرم یا ئے زړهٔ کړم
ځان وزړهٔ کله خما دی

نه ئې ننګ شته نه ئې شرم — نه په خپل قول وينا دی
چه کوتک وته ښکاره کړې — لکه ښځې واړه ستا دی
په خپل سود په خپل مقصود وی — بند په خپله مُدعا دی
دَ سيالانو خوئي ئې نه دے — په بيکار خصلت پيدا دی

محامخ وتا ته خپل شی
پردی واړه پسِ شا دی

کهٔ په فضل شی څهٔ غم دے — کهٔ په عدل شی ماتم دے
لهٔ ګناهه به خلاص نهٔ وی — چه په نوم بنی آدم دے
چه ظلوم جهول ئې ياد کړم — کهٔ پوهيږے ډير کرم دے
په لا تقنطوا تکيه ده — ګنړه اور ووری تورتم دے
زهٔ هغه نا توان ضعيف يم — چه ميږے ترما محکم دے
په دا ضعف هغه بار وړم — چه ترے تښتے درست عالم دے
کهٔ لويئ وَته مې ګورے — مياشت و نمر څما پرچم دے
آسمانونه مې خيمے دی — پرے دَ ستوريو زينت تم دے
لا مې نور باغونه نور دی — کمکے باغ مې دَ ارم دے

غم مې هيڅ نشته خوشحال يم
کهٔ خپل بخت را سره سم دے

کهٔ دَ يار د پاره غم شدت څوک مومی — په خندا خندا دِ مخے ته ورد رومی
دَ هغه سړی ياری څهٔ ياری نهٔ ده — چه بے ياره ئې اوبهٔ دروی تر کومی
زهٔ له ورايه ورته ګورم يار مې ګوره — دَ اغيار سره دَ ميو پيالے شومی
ما به څهٔ پوښتے څما دَ يار له نومه — يو بے مهره بے وفا بے مهر نومی
نهٔ ئې زهٔ يو ازے قتل په غمزو يم — خوئے ئې ماغوندِ په درکښے دی لړومی
په فراق ئې څما اوښے هسے تلهٔ کا — لکه څوک چه اخته شوے دی په دومی
دا دواړه بدان نهٔ ګوری له قصده — په بنهٔ مخ باندِ ومهٔ شه دانے سپومی
کهٔ تازه بهار ئې نښے نهٔ دی خوشحاله — څوک به نهٔ خوښوی غوښے دَ ورغومی

کۀ سړے په مصلحت کښے لر بر نۀ شي
وهغۀ ته سړے مۀ وایه چه پوخ وي
کۀ هر څو مشکل کار ونه درته پیښ شي
ماچه ولیدۀ خوزردي په دُنیا کښے
څو یه یار کۀ لاف کوي باوري نۀ دی
بخت چه ښۀ سوه یا ورشي هاله ښۀ شي
دَ رستم دَ مړنتوب خبرے آورم
چه دَ مرد دَ نامرد شناخت ورځنه نۀ وي

زۀ ضامن چه دَ دۀ کار به ابتر نۀ شي
آراسته څو سوتر پا یه هُنر نۀ شي
فکر مۀ کړه چه آسان به په زر نۀ شي
څو سړے دِے په مینه کافر نۀ شي
څو یه ډیرے حادثے دِ باور نۀ شي
دَ سفله دِ په لحظه کښے یاور نۀ شي
ولے څوک به بے لښکره صفدر نۀ شي
بد صاحب ځنے دِ هیڅوک نوکر نۀ شي

دَ خوشحال خبرے واړه نصیحت دی
مګر خروي چه په زړۀ ئے اثر نۀ وي

کۀ تا وته حیران دی دَلیلیٰ حکایت کړونی
وما وته په ځان دی دَ مجنون روایت کړونی

دَ هر وینتۀ په سر لوم زۀ تا سره زر کاره
خبر نۀ دی له حاله دا بیکار نصیحت کړونی

ځۀ ښۀ وشول طالع وے چه ئے ولیدے په سترګو
ترما پورے ځجل شول دا ځما ملامت کړونی

دَ حُسن یغماچي چه دِ اُلجه راوړی دَ زړونو
پنجک دستا وسترګو وته بیل کا قسمت کړونی

چه درد لری په زړۀ کښے دَ هغو دارو مونډل شي
هیڅ لیدلی نۀ دی دَ بے درد طبابت کړونی

چه زۀ دَ بُت سجود کړم مخامخ راته حاضر دے
ځۀ ځیز وینی حیران یم دَ مسجد عبادت کړونی

کوم ملک دے له ما پاتے چه مِ پل نۀ دے پرے ایښے
هر ځائے به ورته یاد کړم کۀ څوک شته سیاحت کړونی

چه دوه اویا مذهبه راته یو شول صلح کل یم
دَ کوم یوهٔ مذهب دی اوس څما عداوت کړونی

په هسې ځائې مېئن یم چه ئې نوم واوري وګړے
نور تبښتي تار په تار شي دَ خوشحال حمایت کړونی

کهٔ هر څو په سر دَ خیال دستار زرین بړدے
عاقبت به سر دَ خاورو په بالین بړدے

دَ سلیمانؑ غوندِ هم پر یوتل له تخته
په فرس با ندِ به څوک زرو زین بړدے

دغه پښې به دِ خوراک شي دَ چینجیو
چه ئې اوس په شین شین په قالین بړدے

په ارمان به خالي لاس ور ځنې درومے
کهٔ په کور کښې په هر لوري سرهٔ او سپین بړدے

په الا بلا کهٔ ټول دَ دُنیا ګنج کړے
په خپل زړهٔ به داغ په دمِ واپسین بړدے

چه کردار دِ له ګفتار سره سم نهٔ وي
تش ګفتار واړه په ځان با ندِ نفرین بړدے

تا په زړهٔ کښې سل خدایان دِ کښېنولي
راته وایه سر وچا ته په زمین بړدے

دَ غفلت تسپې په ورځ وشپه جار باسې
څو منت به په کرامؑ کاتبین بړدے

هر آیت ئې دَ معنو په سترګو ګوره
دَ صورت سترګې ترکومه په یاسین بړدے

یو قدم کهٔ په رښتیا له دُنیا واخلے
خدا ئګو بل قدم به پاس په علیین بړدے

کهٔ اسلام دَ خلقو دادے اوس څو بویه
چه هندو غوندِ ټیکه په خپل جبین بړدے

زمانے ځکه نا انصافه را ښکاره شوے
پا نیا تو نه په دا دورِ آخرین بړدے

شاه جهان غوندِ بادشاه په بند بندي کړے
په اورنګ با ندِ خطاب دَ محی الدین بړدے

دَ مچئ لاشهٔ هم جوړه ورسره وړے
په هر حلق کښې چه خوارهٔ دَ انګبین بړدے

دَ خوشحال خټک کوم جرم کوم ګناه دے
چه په زړهٔ کښې ئې آهونه آتشین بړدے

کهٔ منصور غوندِ کافر دَ محبت شې
تهٔ به هالهٔ مستقیم په شریعت شې

دَ هوښیارو مجالس به درته هیڅ شي
کهٔ دَ عشق دَ لیونیو په صحبت شې

دَ جهان خوارهٔ به تا وته ترخهٔ شي
کهٔ خبر دَ یار دَ مینې په لذت شې

فراغت به دِ هالهٔ و زړهٔ ته ورشي
کهٔ له خلقو کناره کنج خلوت شې

دَ جهان په خزانو به دِ خندا شي
کهٔ تونګر په خزانو دَ قناعت شې

کهٔ نظر دَ کیمیا کړ درباندِ وشی    کهٔ تهٔ خاورے ئے تر زرو به قیمت شے
دَ بے آبے مرغلرے هیڅ قیمت وی    په زیبا سیرت به قدر دَ صورت شے

اے خوشحاله بُتخانے دی زړے ړونده
خلیلی ناره پرے وکړه په همت شے

کهٔ په مخ باندِ خالونه عنبرین ږدے    هومره داغ به په خاطر څما مسکین ږدے
دَ پیالے اوبهٔ خوږے شی تر نباتو    په پیاله باندِ چه دواړه لب شیرین ږدے
خدایه زړهٔ په ما دَ کښلیو مهربان کړے    تهٔ په زړهٔ کښے دَ بتانو مهروکین ږدے
دواړه زلفے چه ولول سره حلقے کړے    په هرول کښے ئے ګلونه دَ نسرین ږدے
خدائے نهٔ کا چه ئے یو سر کړم یا بل سر    کهٔ تلی م په دا چشم جهان بین ږدے
ستا د پلهٔ خاورے رنځور غونډ اخلم    په هرځائے چه قدمونه په زمین ږدے
ستا تمامه خندا بخت دَ خوګ نے موی    په دا نیمه خندا طعن په پروین ږدے
چه لیدلے دِ دَ عشق قمارخانه ده    په ړومبی بازی به یارته دل و دین ږدے

آفرین دِ په ونیلو شه خوشحاله
په بیاض باندِ عجب شعر رنګین ږدے

ګله تهٔ چه زیبائی دَ دے چمن ئے    خار وخس وته په خندهٔ په خندیدن ئے
دَ خپل ځان په قدر وے نهٔ پوهیږے    په دا باغ کښے خو یو تهٔ نازک بدن ئے
دَ بلبلو ژغ به تل درباندِ نهٔ وی    کښلیه ګله په وفا کښے مبرهن ئے
په خپل بوئے دَ بلبلانو خاطر خوښ کړه    یو څو ورځے چه تازه په دا ګلشن ئے
کهٔ جفا وچاته وایم شمارے نشته    په دا هومره ستمونو جانِ من ئے
چه دَ یار له جوره چاوته شړا کړے    دَ یارئ بلا په تا شه دروغژن ئے

په یارئ پورے دِ پیچے کا خوشحاله
فکر بهٔ دَ کړه په چا باندِ مئین ئے

ګل کړم آغزی ترے زیږی    نوشدارو م زهر کیږی
چه م څراغ په ادبو بل دو    اوس به تیلو نهٔ بلیږی
کهٔ ئے مخ وی کهٔ ئے شا وی    په خپل بخت هرڅوک پوهیږی

هره ورځ کۀ سل غمونه — له جهانه سار سېرېږی
څما زړۀ په دا داد من دے — غم ښادی واړه تیریږی
هم خزان هم به سپرلے وی — چه آسمان په سر څرخیږی
څما اوښکے کرمے نۀ دی — کۀ سیلاب غوندِ بهیږی
په حضور دیدن نۀ وینی — طاهرخان ځنے بیلیږی

اوس خوا ور په خوشحال بل شو
بیا به څۀ رنګه سړیږی

لکه یار راسره یار وو هسے نۀ دے — چه ډیره ډیره به مینه دار وو هسے نۀ دے
کۀ په خو رنګه به ما وربانډِ ناز کړو — چه دَ نازِم خریدار وو هسے نۀ دے
دَ بهار بلبلے ژاړه خو به تا شی — لکه تل تازه بهار وو هسے نه دے
شکر شکر چه نے څۀ خو خوئ بدل شو — چه یک لخته ستمګار وو هسے نۀ دے
ستا دَ مهر دَ باران بانډِ کهے شو — چه مِ جور دَ زړۀ ګلزار وو هسے نۀ دے
یانے ویره شی له خونه یانے هیر کړم — چه مِ مرګ ته په تلوار وو هسے نۀ دے

ډیرے مینے دَ خوشحال عقل تغیر کړ
لکه نور کله هوښیار وو هسے نۀ دے

لاله ګل نے ترجمال پورے بد رنګ دے — دَ زلفینو نے دَ چین له مشکو ننګ دے
تورے زلفے نے لیندے بانړۀ نے غشی — دَ عاشق تر زړګی نے تللے هر خدنګ دے
دواړه سترګے نے په تن تورے بلاشوے — همیشه نے دَ عاشق له دله جنګ دے
تۀ به وائے حبشی شکرے پیری — هغه خال نے چه دَ دوو شونډو تر څنګ دے
تجلّی نے دَ جمال لکه مشال شوه — خوار عاشق په دا جمال بانډِ پتنګ دے
چه له غوږ وړونے مقصود مومی لښتی ده — چه له پوزے نے مراد مومی لونګ دے
په بنا نُست کښے نے تقصیر دَ صورت نشته — څۀ خو دا عیب لری چه په زړۀ سنګ دے

دَ هر چا په خپل غرض پورے کوشش دے
دَ خوشحال نے په جمال پسے آهنګ دے

لکه بخن چه حلوا خوری — عاشق سپینه خوله دَ شا خوری

ځوک دَ غاؤ ورباندِ نهٔ کا — واړه خپله خون بها خوری
زهٔ ئے تل خورم خوږ شونډے — کهٔ دا نور من وسلوی خوری
دواړه تی ئے ناشپاتی دی — چه ئے یو یو اُمرا خوری
هغه هیڅ مرنے نهٔ دے — چه به تورہ په قفا خوری
هم عاشق مری ستا له لاسه — هم سوګند په سر دستا خوری
ورے څهٔ پوښتے له حاله — چه روا کهٔ نا روا خوری

خولهٔ ئے پټه خوره خوشحاله
باز دَ ښکار غوښے په غلا خوری

له شیخه خبر نهٔ یم چه په کوم عمل مشغول دے
چه عشق ئے را فرمائی هغه کار زما قبول دے

عشق لکه بادشاه دے زهٔ په مثل دَ چاکر یم
چاکر چه دَ صاحب په رأئے نهٔ وی نامعقول دے

دَ صبا نسیمه پاڅه په تلوار تلوار درومه
په هغو مے سلام وایه چه په در کښے ئے نزول دے

بل اُستاذ دے دَ عاشق دَ معشوقے په مینځ کښے نشته
په دا میدان کښے ګوره محبت دَ دهٔ رسول دے

دَ یار غم مے له خلقه پټ پنهم در له په زړهٔ کښے
ولے څهٔ علاج ئے وکړم چه مے رنګ دَ غم په دول دے

چه په تور دَ لیونتوب مے هر سړے په زولنو شو
ګرم ئے خلقه مهٔ کړئ هم هغه ځما په کول دے

هم هغهٔ دے همیشه ژوندون موندلے کهٔ باور کړے
چه دَ مستے دَ غمزے او دَ جلوے په تیغ مقتول دے

دَ ګلونو پاڼړے بویه چه قمیص شی دَ ملوکے
دَ ریښمو دَ قمیصه ئے نازک بدن ملول دے

گوره ښۀ جمال چه لا به کله دړښکاره کا
داچه همیشه دَ خوار خوشحال و رپسې نول دی

لکه زلفې دَ هغوچه سودا ستا وی بویه داچه دې سرونه تر پا ستاوی
کۀ دَ سروِ ونه لاف کا ستا ترقد ه بویه داچه دا په قد و بالا ستا وی
هغه زړۀ چه تا ویشتلے زړۀ هغه دے تا ویشتلے زړۀ به تل په هوا ستا وی
په خاطر کښې به ئې ځائے دَ نور څۀ نۀ وی په هغه زړۀ چه هوا تمنا ستا وی
کله وی چه ستاله لاسه چا ته ژاړم کۀ هر څو بے حده جور په ما ستا وی
کۀ په سل رنګه زیبا دَ چمن ګل دے دے به څۀ رنګه په رنګ دَ لقا ستا وی
دَ خوشحال غونډِ به مست ګرځي په میو
چه هوا دَ برندو سترګو دَ چا ستا وی

له اوله په سرجوړے کا دړئ بیا تیکه په وروځو ایښې خونړئ
جړاوے حلقې په غوږ بیسر په پوزه قیمتي دَ مرغلرو دوه لړئ
مرصّع باهو په لاس ګوتے په ګوتو ژرنګهارئے دَ پائیلو دَ خړئ
په ښیوه ښیوه عاشق ته ځان ښکاره کا په غمزه غمزه ئې زړۀ کا ودوړئ
چه له هسې محبوبانے آشنائی وی پرے به کیږی پادیشونه دَ نړئ
په وصال به ئې په څو رنګه هوس کا په هجران به ئې ساه راشی ترغړئ
سرترپایه آراسته شی په څو رنګه په لیدلو ښاپیرئ ده نۀ سړئ
دَ زلفینو ښا ماران ئے هسے نۀ دی چه خوړلی ئې رغیږی په جړئ
خلقو زۀ دَ توروِ زلفو لیونے بیم لام ښۀ په رنځیرونو وتړئ
زړۀ ئے هسے دَ هجران غمونو موړکړو
دَ خوشحال ترستونی نۀ درومی نړئ

لکه زۀ په یار مئین یم بل به نۀ وی مئین هسے
لکه زۀ پسے غمژن یم بل به نۀ وی غمژن هسے
هم م ووژنی پخپله هم په ما باندِ ژړا کا
څۀ ښۀ یار دے ښۀ ئې مینه وژل هسے شیون هسے

مخ ئے درست سرہ گلزار دے رنګارنګ لری ګلونه
تفرج دَ بهار ګوره پکښے نشته ګلشن هسے

زړهٔ داغدار غرق په وینو لاله ګل وته ګوره
هیڅ شهید نهٔ دے راوړے له ازله کفن هسے

تورو زلفو ته ئے ګوره بنا نشته دواړه رخساره
دَجهان په مخ به نهٔ وی سنبل هسے سمن هسے

لکه زهٔ ئے ننداره کړم ورخ وشپه په خپله خونه
خوار مجنون لیدلے نهٔ وو په درست عمر دیدن هسے

کهٔ دَ ګل پا نړے ئے خط کړے لا به هم با ندِ خرخیږ
دا نازک بدن چه ستا دے دَچانهٔ دے بدن هسے

کهٔ ئے رسم یا کهٔ دود دے یا وفا دَ هندوګئ
چه له یاره سره کښیني ځوک به وکا سوختن هسے

چه ځوک تاپ درپسے وکا سره تک وهی لاسونه
دا ژوندون دے مردن نهٔ دے کهٔ دِ وشی مردن هسے

دَ اِرم آرام هم بیامومند ستا په غولی کښے خوشحاله
خوښ له بخته له قسمته چه ئے راکړو وطن هسے

چه خوشحال ختک ئے وائی په پښتو ژبه خبرے
په پارسی ژبه به نهٔ وی کهٔ پوهیږے سخن هسے

له غمونو به خلاص نهٔ شے دَغم خویش ئے
کهٔ بدګوئے وبدآموز وبداندیش ئے

مهٔ بد وایه مهٔ بد آوره مهٔ بد ګوره
درویشی دِ مبارک شه نور درویش ئے

ستا په زخم به دارو مرهم نور کښیږدی
کهٔ په ځان مرهم دارو دَچا په ریش ئے

کهٔ دِ ځان په خپله شمار تر هر چا کم کړ
نور ځما په پوهه ته نر هر چا بیش ئے

یا به دد یا به منګور یا به لړم ئے
کهٔ دا ړل کړے یا چیچل یا په چا نیش ئے

په خپل دین نظر له دیونه ډیر دی
ځهٔ جاسوس دَچا دَ دین دَچا دَکیش ئے

کهٔ هر ځو درنه غریږم بده خویه
ځهٔ په هره کوځه بیا وما ته پیش ئے

پہ کردار توره مشکنړه ئے خوشحال له
پہ گفتار سره دَ سپینو دُرو ویش ئے

مخ ئے راخرګند کړو وے ئے هسے ونګ آفتاب وی
زلفے ئے نمود کړے وے ئے هسے مشکناب وی

وے مِ خپلہ عمره پہ شتاب له ما نه مۂ ځه
وے ئے کۀ دِ عمر یم دَ عمر تلۀ شتاب وی

هسے ئے بے آبہ دَ ګلابو ګل تر مخ شو ! !
زر منه کۀ وسیزے حرام کۀ پکښے آب وی

هجر مِ وژلو ته تیار دے کۀ خولۀ راکړے
هجر به هلاک شی زۀ بہ خلاص شم ستا ثواب وی

مرم دَ عشق له لاسه نۀ دَ مستے پہ غمزه مرم
کار تیره چاړه کا لاس او زړۀ خودَ قصاب وی

هر چہ ته ئے ولیدے پہ تا ئے زړۀ بائے نۀ کړ
زۀ وایم سړے نۀ دے هغه بہ هم دواب وی

نن کا نده هر کوره پہ آزار دَ زړونو مټ کړے
هسے فکر نۀ کړے چہ آزار دَ زړۀ عذاب وی

نور بہ دَ خپل یار سره څرګند مهر آغاز کړم
خوړم بہ له خپلو له پردیو نه حجاب وی

ستا دا بے نظیر جمال چہ ووینی پہ دۀ کښے
تر زر سحرخیزئ بۀ خوشحال ته هغه خواب وی

ماچہ ستا پہ جمال سترګے کړے رنړے
کښلے واړه ستا دَ مخ دی رنړے

چہ پہ داد او پہ فریاد مِ نۀ رسیږی
دا دلبرے بے پروا دی کۀ کڼړے

ګوندِ وی چہ بیا مِ راشی پہ منګل کښے
لکه باز دَ زرکے توئے کا ندی بنړے

سپینه زنۀ ئے منړه سمرقندی ده
ګوره څوک بہ خوړ کا زړۀ پہ دامنړے

کۀ دِ سپین بارخو کبود کړم پہ چیچلو
اوس مِ نۀ کنړے هالۀ بہ مِ کنړے

بخته تهٔ کهٔ دَخوشحال سره مدد کړې
دَ رقیب په سرئے وشلوه پنړې
ماخو توبه وکړه کهٔ زړهٔ هم راسره مل شی
عشق دَ ے چه همیشٔ ئے په توبه باندِ یرغل شی

ډیر کاندی فکرونه دا سړے په ډیر رنګونه
کاشکی دَ چاچارے په داخپل فکر فیصل شی
څو وائے پندونه درومه اے نصیحت ګویه
زهٔ څهٔ هغه نهٔ یم چه وما وته اثر کل شی

هومره رسوائی دم وهل دَ پارسایئ
راشه کهٔ ئے ګورے چه دا څهٔ دغا دَ غل شی
کار دَ عاشقئ څهٔ آسان او سهل نهٔ دے
اوس چه پښیمانی کړې دله دا فکر اول شی

زهد په لاس واخلم چه به نهٔ ګورم دلبر ته
خیال ئے دَ زلفینو راته بیا دَ زهد غل شی
زهٔ وایم کهٔ تل دَ ښائسته وُ ښنداره کړم
شرم دَ پیریٔ تر دا مینځ راته خلل شی

تل به په ارمان ارمان مګس مری لاسونه
یادئے چه په زړهٔ دَ شاه دَ لام وبے عسل شی
اور دَ محبت دے چه څما په زړهٔ کښے بل شو
ګوره په دا اور به اور په څو ځایه نور بل شی

زهٔ په بیلتانهٔ کښے دَ وصال نعرے وهمه
څوک چه اوبهٔ واخلی وپایاب وته ئے زغل شی
کښینمه په طمع دَ مئین دَ مخ په اور کښے
نور ځایونه پریږده کهٔ تنور راته بورجل شی

نۀ رسی تریاره هرچه ډیرے اندیښنے کا
نورے قیصے پریږده دَ عشق کار په توکل شی

کړشم په ګلشن کښے لمن ډکه کړم دَ ګلو
بیا بیخوده لاړشم واړه ګل راڅخه تل شی

هرچه بدغلیم دے ګرفتار په عاشقئ شه
اورئ پیدا نۀ ولے دَ دهٔ سینه منقل شی

هومره دَ خوشحال ختک تقوی زهد پرهیزشته
ستاچه تورے زلفے په سپین مخ باندِ ولول شی

ملاحت چه صباحت سره آمیز شی
دَ دلبرو حسن هاله شورآنګیز شی

خدائے په خپله په ښۀ مخ باندِ مئین دے
خدائے واخله چه له ښکلیو په پرهیز شی

په زمان به دَ زاهد خونه اُولجه کا
کۀ دَ سترګو دَ تُرکانو ئے پرخیز شی

دَ غمزے سمند ئے جوړ کړو جولان ته
ګوره بیا به ئے په چا باندِ مهمیز شی

دَ دوزخ لمبے به هم ورځنے ډار کا
کۀ دا اورِ م دَ خاطر په حشر تیز شی

دَ عشق بوئ به م لاړنۀ شی له هډونو
کۀ هرڅو په تورو خاورو کښے ریز ریز شی

چه کۀ نازکا ګۀ عتاب کا کله مهر
دائے واړه له خوشحال سره مکیز شی

مخ دِ آئینه دے باندِ نۀ دے ترسیری
آه دَ خوار عاشق دے ډارئے وکړه دَ ډیری

سر ترپایه زیړے زعفرانے جامے اغوستے
راشه تور دے زلفے فلیل پورے اجمیری

تاوے چه دَ مخ قدر قیمت م په تا څو دے
څو به درته وایم په ما دوه کونه پیری

زار دَ خوار عاشق دے چه په شپه دَ جدائی
درسته شپه به خوابه دَ آسمان ستوری شمیری

تا وئیل څیر څیر م مخ ته ګوره ګوندِ موړشے
زۀ یم هغه وږے څۀ له ما غواړے سیری

تا سره په سیل دَ ګلونو سهیلئ
هسے نمائی کا لکه بلبلے دَ سیری

واړه راځرګندے دی دَ درست ګلی دلبرے
نۀ ګل دَ نرګس ئے نورے ګل دَ ګندیری

سترګے دِ بلا دی چه ئے واړه وے ملاے
زخم پیدا نۀ دننه زړونه زنځیری

نۀ چه په ښۀ حُسن جمال تیره تر لیلی ئے
خکه تر مجنون دَ خوشحال ژغ دے دَ تیری

مزری کله پرهیزګار دی
خوراغلي په خپل ښکار دی
خوره خوروه له خپلو لېچو
مزری دا کاچه رونیدار دی
چه په توره ترک تازی کا
هغه هرکله کامګار دی
چه اخلاص لری په زړه کښې
هغه واړه ایماندار دی
چه زړه نه وی د توره
هغه زړونه څه پکار دی
ننګیالی چه په ننګ راشی
نه په خویه نه په پلار دی
سل د ښکار تر تازی خارشه
کوتګان چه د بازار دی
مور د نه شی باند بوره
چه میرونه د کار زار دی
ښوک چه شته تر شرقه غربه
د تورزنو خدمتګار دی

سرد نه غروی خوشحاله
د بلا نه ، چه سردار دی

مخ دے په پلو کښې که چراغ دے چه بلیږی
خوله دہ چه وئیل کا که شکرے دی تلیږی
سترګے دی که وروځے که په ښو کښې تیرانداز دی
شونډے دی که غابن دی که دالعل و دُر څلیږی
زړه دے په کوګل کښې که دا کانړے په سپین زر کښې
قد دے که شمشاد دے چه تازه نوے څلیږی
مهر خندا پریږه دہ د دلبرو درته وایم
تش خالی کا تړنے هم په هیڅ نه چلیږی
چاړے چه په غولی باند ایښې چرے پل دے
بیا چه ځنے دروی په ځانے پاتے شی شلیږی
سنتغ لری هم خویږ لری د غره غوند سینه م
تل باند د اوبنکو کاروانونه دی چلیږی
څه حساب و شمار کړے چه په سرګرځی دا ژرنده
خو عالم ئے دل کړ لا به خو عالم دلیږی

لاف به میړهٔ نهٔ کا کهٔ ئے چیرے ترخولے ؤوت
بیا کهٔ نوروئیل کا نور دَ دهٔ ږ یـره کلیږی
هیڅ ائے صفت دَ مخ و مـو تر سـره نهٔ کړ
سل دَ سخندان په ورځ وشپه سره للیږی
زهٔ خوشحال پښتون چه په پښتو په فارسئ طاق یم
لام په پښ[illegible] ژبه کښې ژبه درغلیږی

ما خهٔ شونډے غابښ دَ هغه یار نهٔ دی ستائیلی
راشه کهٔ ئے گورے لعل و دُر م دی پیئیلی
هرچه عاشقی کا خوب خندا با ندِ حرام شی
نورعالم به خهٔ کړے ما په ځان دی آزمئیلی
ځنے عاشقان هوا هوس کا په وصال کښې
څوک جُدا له یاره په آه آه کښې زیړ زبیښلی
یو مزے وینسته په طریقت کښې لوئے حجاب دے
ځکه قلندر ږ یره بریتونه دی خرئیلی
ما په دا جهان کښې بل اُستاذ نهٔ دے لیدلے
پیر مرشـد م عشق دے واړه عشق کړ راښئیلی
سل سَرَبنی دِ تردا یو غزل ځاریږه
نن چه دا پښتو ده کړلا نړی خوشحال وئیلی

ما چه وُلید دَ دُنیا خلق مختورے
قا بوچی دِ واړه گوری پتاؤ سیورے
چه ئے څهٔ دَ دُنیا سود ځئے فائده وی
دَخپل زړهٔ په یرغ نیسی هغه لورے
خپل ئے لا په بدئ پاسی ترپردیو
خو دِ خدائے دَ بدونهٔ کا دَ چاستورے
یا دَ لیچو زور پکاردے یا دَ زرو
خوار هغه شو چه په دواړو وی کمزورے
سر تر پا یه منافق واړه بدبوئ دے
کهٔ په سرئے سپین مندیل دے لکه اورے
کال په کال چه ورته وگورم نور نهٔ شهٔ
دَ لاله دَ زړهٔ په داغ ختلے غورے

دَ ناپوهـ بخره بنادی دَ هوښیار غمِ ډَ      خوک بـه وران کا دَ ازل دَ قلم تورے
دَ یوهٔ گوله پـه خولهٔ دبل پـه زړهٔ کښے      پـه حساب لکه گړ ورے شهٔ دوه مورے

غل بے غمه ننداره کاندی خوشحاله
پـه تهمت ترلے ساد درومی سرتورے

ما فراق دَ حبیبا نو ژړوی      زړهٔ پـه ما دَ رقیبا نو سړوی
چـه سیلاب ځما دَ اوښکو رَوان شی      عمارت ځما دَ صبر نړوی
عشق ځما پـه عقل وکړے هسے چارے      چـه هلک م پـه خبره واړوی
مهٔ هجران وے مهٔ دَ دهٔ تراخهٔ غمونه      چـه م تل لـه خوږه عمره مړوی
دَ فراق پـه شپـه ئے خوب پـه ما حرام کړ      دایم مالگے م پـه سترگو دوړوی
پـه پیغام ئے دَ وصال هسے تازه شی      لکه باد دَ گل غوټئ غوړوی
یمه پوخ دَ عشق پـه کار لکه کودرے      نور م څهٔ دَ غم وَ اورته کړوی
پـه لیدو یسے ئے مرم سخ دَ هغو دے      چـه وږو وته ئے سترگے غړوی

کهٔ دَ زړهٔ پـه محبت شی خوشحال خوان ډ
پـه دا سپین وینبته ئے خلق زړوی

ملک افشانه پـه کاکل ئے      عنبر بیزه پـه سنبل ئے
چه وږو وته دِ گورم      پـه مخ درسته لکه گل ئے
تنگه خولهٔ دِ غنچه گل ده      پـه لبانو لکه مُل ئے
پـه رفتار کښے لکه زرکه      پـه گفتار لکه بلبل ئے
پښتنه ئے پـه بد جهل      ستمگره تر مغل ئے
پـه دا تورو شهلا سترگو      هم شاهین هم ئے منگل ئے
څو خوبئ دَ جهان دی      آراسته پـه واړه کل ئے
لکه سروِ پـه چمن کښے      پـه قامت پـه تجمل ئے

دَ خوشحال و مرگ ته ناسته
پـه غمزه پـه تغافل ئے

مار کهٔ هر څو پیچ وخم څُی      خپلے سوړے لره سم څُی

دَ غفلت له خوبه ويښ شه — شيرين عمر دم په دم ځي

مرګ به هيڅ سپے پرے نږدی — وار په وار به درست عالم ځي

بے دليله به ځان ورک کا — مسافر چه په تورتم ځي

دَ پښتو وارے خطا کيږی — چه قاضي لره څوک ګرم ځي

کۀ قضا وته تسليم شي — هم په دا له دله غم ځي

دَ دوزخ دَ اور علاج کا — چه سحر تر سترګو نم ځي

هغه عمر لکه باد دے — چه په غم دَ بيش وکم ځي

چه تور مشک دِ حبطه کړل — په کافور و خۀ ستم ځي

چه نۀ تول لری نۀ پول — هغه هرچرته خرّم ځي

منهے پرے مۀ بږده خوشحاله
کۀ دِ سر لکه قلم ځي

مګر رسم دين آئين هسے لرے — چه دا خوار زړۀ م غمګين هسے لرے

دا دَ زړونو مينے ورانے پرتے بنے دی — چه تل آس دَ جفا زين هسے لرے

عاشق به لکه مچ ورباندِ ګرځي — دواړه لب چه شکرين هسے لرے

خۀ نسرين دِ دَ سنبل سره دسته کړۀ — چه دَ تورو زلفو چين هسے لرے

دا يو ستورے دَ آسمان دے کۀ ټيکه ده — چه ئے ايښے په جبين هسے لرے

کله کله به مرهم ورباندِ کښيږدے — کۀ هميش م په زړۀ خوږين هسے لرے

لکه مخ ځما دَ يار دے اے باغوانه — په درست باغ کښے يو نسرين هسے لرے

په کوځه کښے ئے خۀ تۀ ګرځے زاهده — کۀ داخپل عقل دوربين هسے لرے

مياشت به خۀ لره اوس لافے دَ خوبئ کا — تۀ دلبره چه مخ سپين هسے لرے

کۀ هرڅو بنائسته ډير لرے کشميره — لکه يار يو نازنين هسے لرے

چه ئے پورته کړے کلونه ترے بنکاره شي — يو پلوُ دواړه آستين هسے لرے

دَ خوشحال په حال به څرے ترحم کړے
مستے تۀ چه زړۀ سنګين هسے لرے

نصيحت دَ دانايانو دَ کتاب دے — دَ احمق جواب هم نۀ جواب جواب دے

چه عیسیٰ په غرو نو تښي له احمقا نو — دا تعلیم ئې را ته پاتې په دا باب دے
لکه دد دَ صحرا ډیر دی په هر لوری — په هر ځائې دَ احمقانو څه حساب دے
سړی واړه سره سم نهٔ دی په عقل — یو آفتاب دے بل مهتاب دے بل شهاب دے
یو په قدر شهنشاه دے په دُنیا کښې — بل دَ دین په مرتبه قطب اَقطاب دے
دَ هوښیار چه له نادانه زیست روزګار شی — کهٔ ئې ګورے دا هم سخت کندهٔ عذاب دے
دا سرے دے چه اغزے دے سر تر پا یه — دا سړے دے چه همه ګلِ ګلاب دے

ماخوشحال چه خان له خلقو کناره کړ
دا په دا چه نادان ډیر دانا نایاب دے

نهٔ دَ عشق مدار یوازے په دیدن دے — په دا کار کښې لا په هور ته شنیدن دے
بنه چه شپه دَ جدایئ خدائے آخر کړه — صبا کیږی اوس دَ صبح دمیدن دے
تل په ستغ په خوږ یړدا وښکو قاصدان دی — چه طلب ئې دَ دلبرو دَ دیدن دے
دَ خطا آهو په بوئ دَ نافې ښکار شی — را ته بس دَ هغه زلفو شمیدن دے
دا ستم په عاشق هغه کا نهٔ نور څوک — چه دَ ښلیو ئې ورکړے دا دیدن دے
کله کله به آرام حُما دَ زړهٔ شی — چه یک لخته ئې زده کړے رمیدن دے
خوند دَ شهدو دَ شکرو راته هیڅ دے — خوږ یاد دَ هغو شونډو مکیدن دے

نور دارو ورلره مهٔ کوه طبیبه
چه خوشحال ورپسے مړ هغه دیدن دے

نفس شیطان دواړه بلا دی — را پسے څرګند په غلا دی
ځنې چارے لرے پیتې — ځنې چارے ئې ملا دی
دَ هغو جزا سزا کا — چه په جهل مبتلا دی
خدائے ئې خلاص لره له عجبه — څوک چه ناست په مصلیٰ دی
دَ دُنیا دَ هوا چارے — سر تر پایه ابتلا دی
جاه په چاه شی وهغو ته — چه دَ جاه په تولا دی
دَ دُنیا ښادئ واړه — کهٔ باور کړے واویلا دی
اندیښنې ګوره خوشحاله — چرته سړے په قلا دی

ناقرار زړونه قرار شوي | دَ زړهٔ غم يې تار په تار شوي
دَ هجران غمونه لاړې | بيا دَ وصل دندوکار شوي
هغه لاس چه بې حنا دے | بيا جفا سره نګار شوي
شانه ورغلے تر زلفو | رانجهٔ سترګو سره يار شوي
دَ پائيلو دَ ځړئ ! | په هر لورى شرنګهار شوي
په ګنګو دِ زير پرونے | په چوره سره خالدار شوي
وار دَ غم دَ ژړا لاړے | وار دَ بوس او دَ کنار شوي
په عذار دَ مهوشانو | بيا کبود کبود پرهار شوي

چه خوشحال ورپسے مرينه
وربشکاره هغه ديدار شوي

نن ځما کره ميلمه عزيز دَ خدائ دے | چه ئے پاس ځما په سترګو باندِ ځائ دے
په خپل ځائ باندِ قايم دے لکه قطب | هميشه دَ ګم گشتهٔ رهنمائ دے
چه پرے ځۀ خو توجه دَ فکر وکا | يو زۀ ځۀ چه دَ هرچا مشکل کشائ دے
چه ګذرئے په دا غولى باندِ وشو | سعادت ئے ورسره راورهمائ دے
ما پرے اوس دَ غلطئ کرښه وکښه | په خپل رائ م چه منلے دَدهٔ رائ دے
دَ بادشاه خزنه ئے مۀ غواړه چه نشته | هغه ګنج لکه په کور کښے دَ ګدائ دے
تناوونه به ئے ورسى تر نمره | لکه زلفې چه ئے سرايښے په پلئ دے
دَ ښهٔ حُسن به ئے څوک کاندي ستاينه | چه دَ خپل حسن پخپله خودستائ دے

لکه عمر لاړغهٔ رائشي زر دروهي !
په هجران ئے دَ خوشحال ختک هائ هائ دے

نن دَ يار دَ لاسه بيا يو تير راغلے دے | بد رسا دَ ځان په وړلو خير راغلے دے
زۀ چه دوا سپر له عشقه تنم پتيدم | بيا را پسے ګوره ګيرا ګير راغلے دے
ښهٔ چه پکښے بند شوے مۀ شلوه له زلفو | زړهٔ م ليونے دے په زنځير راغلے دے
چرته ئے اے عشقه چه ور بوزے راته مات کړے | بيا ګوره چه عقل په تدبير راغلے دے
څومره ښائسته ئے چه دَ مخ په ننداره ودِ | درست وکړے مات شه ماو پير راغلے دے

تول محبوبے راغلے سمن بویہ سیہ چشمے ... ماوے چہ تہ راغلے درست کشمیر راغلے دے

ځوک کۀ جهان نیسی پہ لښکرو هغۀ تُرک م ... گوښے خان دَ زړونو پہ تسخیر راغلے دے

زړونئے زخمی کړۀ چہ ئے کوتے پہ ہم کیښوے ... غوږ باسه لہ بمه اوس پہ زیر راغلے دے

وچولے چہ تریو کړے ورته نۀ گورے پہ مهر

وایہ لہ خوشحالہ کوم تقصیر راغلے دے

نادان پہ خپلے چارے بنۀ پوهیږی ... دانایان کۀ ئے پہ چارو اندوهیږی

چہ نادان ئے پہ مخ وخوری هالۀ پوهه شی ... کنړه هومره پہ خبره نۀ کړوهیږی

کانړی بوټی وچ لامدۀ هرڅۀ پہ مخ وړی ... مشیت لکه دریاب دے چہ بهیږی

چہ سړے اوبۀ ئے کښیوزی پہ نظر کښے ... کله تږے لہ سړو اوبو سخیږی

پہ هغو خوږو پیښن مۀ شے چہ ئے نۀ خوړے ... سړے هسے پہ لیدو ورته سوهیږی

کۀ وئیل ئے پہ هزار رنګه سودمن دی

دَ خوشحال پہ وئیل کله ځوک کړوهیږی

نن ځما پہ خیلخانہ کښے څومره غم دے ... چہ حیران زمونږ پہ کار پورے عالم دے

ناخلف ځویہ اغزی کړی خپل پلار ته ... دَ خلف ځویہ گلزار لہ عمره سم دے

ناقابل ځویہ دوزخ غوندې پیدا دی ... بنۀ قابل ځوئ پہ خونه کښے ارم دے

بنۀ فرزند دَ پلار پہ خونه چراغ بل شی ... بد فرزند دَ پلار پہ خونه کښے تورتم دے

پہ لوئ والی کښے ئے خوئ دَ دام و دد دے ... اوس دَ ځوئ خوبی هومره وی چہ کم دے

نالائق ځویہ ننګ نام دَ بابا ورک کا ... کۀ ولاړ ئے دَ نیکۀ دَ پلار عَلَم دے

دَ قابل سړه بہ غم دَ نام وننګ وی ... ناقابل پہ غم نیولے دَ شکم دے

چہ دا هسے رنګه سپی ځنے پیدا شول

لا پہ شک یم چہ خوشحال کله آدم دے

نۀ م زړۀ پہ سرداری درست خوشحال دے ... نۀ ځما دَ خیلخانے څۀ حال احوال دے

دَ خټک اولس پہ ننګه نۀ پوهیږی ... کارئے درست دَ نادیده ډوپہ خصال دَ

پښتانۀ لکه مګس وربانده ګرزی ... ورته ایښے دَ مغل دَ حلوا تال دے

نورئے واړه ګټے تار پہ تار خورے شوے ... اوس پہ منځ کښے یو کرم دَ ذوالجلال دے

ایمل خان دریا خان دواړه خوږ دبین لاړل
اوس خو پاتو و مغل ته یو خوشحال دے

وسړی و ته داخپل عیب ویښتهٔ دے دبل عیب ورته لاکټه تر غرهٔ دے
په خپل ځان پسنده نیکه په بل بده دا مذهب د مؤمنانو مذهب نهٔ دے
هنر ور ئے نیک سیرت بلند اختر ئے کهٔ بل تا وته ترخپله ځا نه ښهٔ دے
چه مې یو ځله اخلاص ورسره وشو یار کهٔ سل ځله جفا کا تورلیمهٔ دے
بیا دخپل مئین ځماله سترګو نهٔ ځی کهٔ په سترګو کښې مې خرخ لکه بانړهٔ دے
چه غموند ورته راوړی سترګے غوړ دے چه د ځان دبل مړئیے کا هغه زړهٔ دے
کهٔ خوارهٔ خوری کهٔ اوبهٔ ښخی به داخه شی مرده دل کهٔ ژوندے وینے شمار یه مړ دے
ځما زړهٔ توکا نړی سخت دوښو ئے تر پریوت تر الماس ئے د غمزے غشے تیرهٔ دے
کهٔ یاران مې ترحساب ترشماره تیر دی په کوکل کښې مې زړهٔ یو دے د یوهٔ دے

د سړی د صورت کار دا هسے نهٔ وی
چه ئے زړهٔ د خوشحال یو ور لانو رخهٔ دے

وچراغ ته د اور پښتی حال معلوم دے په دا منځ کښې د خبرے حاجت کوم دے
یو د بل له حاله نهٔ کاندی پوښتنه د دے ښهر په عالم کښې بد رسوم دے
یا یک لخته هغه یار واړه جفا زده یا له ما سره جفا کا بخت مې شوم دے
ن چه زهٔ باندې مئین یم په ډیر رنګه درے وښیم چه کوم دے څهٔ ئے نوم دے
یو په حسن بل په دا چه عاشق وژنی په دا دوه توکه په درست جهان کښې سلوم دے
ننداري ئے د جمال دی نور څهٔ نهٔ دی چه په هر لوری هر ځائے خلق هجوم دے
چه ګلونه د بهار باندې لیدل شی د بلبلو سیل تل په هغه بوم دے

څهٔ به هر یوهٔ ته حال وائے خوشحاله
د لیمو په حال خبر کله اُدوم دے

ورځ په ورځ د باغ غنچے دی چه غوړیږی د بلبلو ورې سترګے پرے مړیږی
چه ښهٔ مخ وته نظر کاندی لازم دی کهٔ ئے سترګے و بل مخ وته غمیږی
جګی جګی مانړے مهٔ کوه پخولا شه چه په ما د رقیبانو زړهٔ سړیږی

دَ عاشق خاطر په مثل دَ نافې دے ‌‌ ‌ کۀ کاونه پرے تیریږی نۀ زړیږی
زۀ جدا له یاره خوب په شپه ونۀ کړم ‌ ‌ وائے مالکه م په سترګو کښے دوړیږی
روغ عالم خندا خوښی هوا هوس کا ‌ ‌ پرهار زړلے په غمونو کښے نړیږی
نورعالم ئے تار په تار تښتی له غشیو
یو خوشحال دے چه ئے غشیو ته بریږی
وایم خلق نۀ درځ ‌ ‌ زړۀ م یو وړیو زمرئ
داخبره چه زۀ وایم ‌ ‌ تر ویښته دۀ لا نرئ
چیرے نۀ وی لیونے شم ‌ ‌ چه په خوب وینم پرئ
زۀ له یاره سره څۀ یم ‌ ‌ دَ یوۀ مزی مـرئ
چه ئے خوند دَ میو خوړ وی ‌ ‌ هم هغه بوټے کرئ
تۀ هم خر ورسره مړشه ‌ ‌ کۀ څوک خرشی په خرئ
په کهترو دِ نظر کا ‌ ‌ څوک چه غواړی مهترئ
بله نۀ ګوری بل مخ ته ‌ ‌ تل دِ سترګو کړم زغرئ
دَ رُستی پسرلی نرګس وی
دَ خوشحال قـدر لرئ
وښۀ مخ وته نظر دے هرچا کړے ‌ ‌ نۀ دا دود دے په جهان کښے ما راوړے
زۀ په هیڅکله له عشقه نه وانړوم ‌ ‌ کۀ هرڅو راته دَ ئیل کاندی وګړے
ما وئیل چه زړۀ به نۀ ورکوم چا ته ‌ ‌ ولے څۀ کړم چه بد زړۀ لرم بد ورے
دَ عاشق دَ رشتینئ نخښه دا ده ‌ ‌ چه په عشق کښے سرحساب کاندِ خسرے
په یو ګوټ کښے به ئے دَ عشق دَ میو هیر کړ ‌ ‌ کۀ دِ واړه دَ جهان لذت دے نغرے
چه په ښاخ باندِ ئے اوړے زړے ګل وی ‌ ‌ خدائے دُما په زړۀ نهال کړے هسے زړے
چه به بیا په څۀ علاج په لاس کښیوزی
دَ خوشحال خاطر ئے نۀ دے هسے وړے
و مجنون ته دَ لیلیٰ دَ شونډو وایه ‌ ‌ لال و دُر یاقوت د نورو وته ستایه
دَ مجنون له ودانئ سره څۀ کار دے ‌ ‌ هرچه ورانه ویرانی هورے ئے بیایه

چه به بله اندیښنه کاندی اغیار دے    یار دِ څوک دَ چه دِ ننهٔ ووزی له رایه

درست جهان دِ تیرے ګوزے درته واخلی    یو وینښتهٔ به دِ کنډاؤ نهٔ کا بے خدایه

ما داهسے دماغ اوس نهٔ دے راوړے    زهٔ داهسے دماغی راغلم له ځایه

ولے ګانده به خپل درته ښکاره کړم    زهٔ په ګانده مانده نهٔ یم نن ئے نمایه

دَ دولت شهپر کارغانو څخه نشته    کهٔ ئے غواړے خوئے غواړه له همایه

تهٔ دَ زړهٔ اغزے په کوم طبیب وکاږے    چه وکښلے ئے اغزے نهٔ دے له پایه

دَ منصور په حال خبر نهٔ ئے خوشحاله

درته چا وے چه دَ راز خبرے وایه

ورته ګوره ځما یار څهٔ ننداره دے    لکه اوړ مکئ په ستورو کښے ښکاره دے

څوعاشق په معشوقے باندِ مئین شی    هومره دے و معشوقے ته بیچاره دے

ما وے عشق خو یو ښهٔ خیز دے خبر نهٔ وم    چه دے لا ترمست هاتی نه خونخواره دے

چه نصیب ئے دَ ښهٔ مخ ننداره نهٔ شوه    هغه څوک ځما په پوهه آواره دے

غم ځما له دله نهٔ دروی بل لور ته    تهٔ به وائے چه ځما په اجاره دے

عقل علم هُنر مهٔ یادوه ما ته    چه مِ ولیدهٔ مدار ئے ستاره دے

هغه زهٔ یم چه دَ اوښ ورے په شا وړم    دَ غوایهٔ ورے ځما په پشتاره دے

چه علاج ئے په چانهٔ شی څوک ئے څهٔ کا    چه په ما باندِ ئے زړهٔ سنګ خاره دے

غم په نوړو یو ځل وریشی بیا تیر شی    خو په ما باندِ کهٔ ګورے سل باره دے

چرے هیڅ دَ ښا نُسته ځ مینه نهٔ وی    رنګ ئے مهٔ وینے چه نفس اماره دے

دَ ښهٔ مخ ننداره نهٔ کا خلوتی شو    زاهد ځان ژاړی بے ځایه هیڅکاره دے

بادشاهان دِ هم سیالی ورسره نهٔ کا

خوشحال ستا دَ درمرئیو په شماره دے

لا په م قلندر شوم دا هم مال دا هم احوال دَے    مات کچکول په لاس کښے بل م کند دَ دُنیا مال دَے

وران وکړے ګوره په څو قلپ کا رونه کاندی    واړه اقبال غواړی ولے لا بقا اقبال دے

زهٔ ترهغه ځار شم چه ئے داکړه ترځان ځاره    ځار ترما هغه شه چه ځار شوے ترمتقال دے

هیڅ په منځ کښے نشته په خالی دوکان غوغا ده    ما چه فکر وکړو واړه وهم خوب وخیال دَے

یو پهٔ کور کښې نشته کا بل په کور کښې نهٔ کا فکر
دریم ورځې ماتم دے څلورمه ورځ بل حال دے
ماخولاس پهٔ غوړ کړل ځکه تښتم کهٔ خلاصیږم
خلق پرے خوار یږی شهر تخت د عظیم جهال دے

نورعالم به څهٔ کړے دَ خپل ځان په خلاصی مټ کړه
لاندې خوشحاله دا یوځهٔ دَ بلا جال دے

همیشه مې تر پرهار وینے بهیږی
کهٔ هر څو باندې دارو درمل نهٔ لګیږی
کهٔ فریاد له درده کړم ملامت نهٔ یم
چه پرهار په پرهار وشی خو خوږیږی
همیشه مې دَ یار یاد دَ زړهٔ سبق شو
چه دیر دیر ئے یادوم زړهٔ مې خوږیږی
زړهٔ مې ګل دَ نیلوفر مخ ئے آفتاب دے
نیلوفر مې وآفتاب و ته کړیږی

دَ خوشحال دَ خوشحالۍ وخت هم دا دے
چه رباب سرینده جوړ سره غږیږی

هیڅ صفت ئے نهٔ ځائیږی په تحریر کښے
چه دِ زلفے مشک عنبر کړم په نظیر کښے
ستا دَ مخ دَ شونډو مثل را معلوم شو
لکه نهر دَ جنت شهد په شیر کښے
نهٔ چه خولهٔ دننه زړهٔ مې هم پرې خوږ شی
چه دِ نوم دَ شونډو واخلم په تقریر کښے
ماچه ستا دَ چهرے بنه ننداره وکړه
څوک به ستا په حسن نهٔ وی په کشمیر کښے
زړهٔ مې ستا په زلفو بند شو پرې خوشحال شوم
لیونی ترلی بنهٔ دی په زنځیر کښے
کهٔ هوا ده کهٔ سودا ده پکښے ستا ده
بل خیال فکر مې هیڅ نشته په ضمیر کښے
زهٔ چه ستا په تیر زخمی شوم فراغت شوم
چه عجب دارو دِ ایښی وو په تیر کښے
لکه بوئ دَ یار دَ زلفو دے عطاره
هسے بوئ نشته په مشک و په عبیر کښے
محبت مې هډو پلو سره مخلوط شو
ناصحا نو راته شاکړه په تدبیر کښے
چا به هومره دَ عشق ګنج را عنایت کړ
کهٔ مې نهٔ وے خپله برخه په تقدیر کښے

دَ خوشحال وئیل په نورو کښے څرګند دی
لکه زاغ چه دَ ویر زلی په ګنړ ویر کښے

همیشه مې له بنهٔ مخه ګفتګوئے شی
چه په لوبنی کښے څهٔ وی هغه ترے توئے شی
ذ بلندے په قامت باندې مئین شوم
هرچه لوئے چارے کاندی هغه لوئے شی
چا خپل یار په غیږ کښے ونیوهٔ خوبنی کا
لا دَ چا ورپسے هسے جستجوئے شی

دَ منصور غوندِ به غل دَ خاص وعام شی　　کهٔ ښکاره مِ وعالم ته کوڼے مکوئے شی

په زړهٔ هومړ پروتی نهٔ ګی چه ئے شمار شته　　اوس ئے چا وته سپړنه موئے په موئے شی

خار وخس سره ئے څهٔ مهر پیوند دے　　دَ بلبلو مینه تل په رنګ و بوئ شی

نهٔ به زهدوی نهٔ علم نهٔ څهٔ نور څهٔ　　کهٔ خرګند ه مِ عالم ته په دا روئے شی

څکه هرکله خوشبوئ او معطر دے　　دَ صبائے چه په چم کښے تګ و پوئے شی

دَ ناپوهـ یاری په مثل دَ ډک جام ده　　کهٔ هرځوئے ښهٔ ساتم راڅخه توئے شی

دَ خوشحال ژړا څهٔ مړ ناحقه نهٔ ده!

چه ئے تیره درسته شپه په هاؤهوئے شی

هرګناه چه په توبه په استغفار ځی　　دَ هغهٔ ګناه به څهٔ په زړهٔ کښے دار ځی

ساقی راشه سرهٔ شراب راکړه سره شونډ ے　　تر چشمانو دِ ځار یږم چه بهـار ځی

په هرچین کښے ئے دَ څنړو مشک چین ځی　　لګلنځنے څنے توئیږی چه په لار ځی

دَ خپل زړهٔ خبرے واړه ویرانی کا　　یار هغه چه همیشه په زړهٔ دَ یار ځی

جهان ځلئے دَ خوښئ نهٔ دے دَ ناورین دے　　چه طوطا له ګلستانه په چیغار ځی

په وار وار چه په دُنیا باندِ راغلی　　عاقبت به څنے واړه وار په وار ځی

کهٔ له درده مِ خبر نهٔ دے وګړے　　چه مِ سرے وینے تر ستړګو په رخسار ځی

دَ هغهٔ طبیب نوم څهٔ اخلے په ژبه　　چه بیمارو لره رائشی بیمـار ځی

کهٔ مِ پیژنے هغه لیونے زهٔ یم　　چه نادان را لره رایشی هوښیار ځی

دروغژن به همیشه وی په خزان کښے　　دَ ربښتینو په مخ هرکله بهار ځی

دَ رقیب خلل به زر وُوځی له میانه　　وخت نزدے راغے دَ وصل د ندو کار ځی

چه محروم ئے دے له میُو خوشحال دے

ګنړه واړه حریفان څنے سرشار ځی

هره مینه چه په خال په زخه کیږی　　هغه واړه دَ ښهٔ مخ له محخه کیږی

زړهٔ دلګیر مهٔ شه دَ خلقو په جفا کښے　　په عاشق دَ رقیبانو رخه کیږی

خاوند خدائے دِ سرزنش دَ هغو وکا　　چه په حال ئے دَ دردمنو سخه کیږی

غه مرغهٔ به له همایه څهٔ پرواز کا　　چه لا اوس ئے تن وجود په نچه کیږی

کهٔ هوس کوی خوشحال هوس ئے نهٔ یل شه
غهٔ هوس چه به بے ستا له مخه کیږی

هر زمان چه د فلک مهر بنیاد شی
نامراد د زمانے په خپل مراد شی

په هر شام پسے سحر شته نظر وکړه
عاقبت چه څوک غمژن شی بیا به ښاد شی

ساقی نن د سرشارئ شراب را کړه
محتسب چه حاضر نهٔ دے څهٔ احداد شی

چه نن ئے نهٔ معشوقه بهار رفتن کا
نن څما له بخته نه فریاد شی

یو له بله زده کوی د جهان دود دے
له اوله چه شاگرد شی بیا استاد شی

یار به مخ راته ښکاره کا لکه شمعه
عاقبت به رقیب خوار او نامراد شی

یا د یو زر بویه یا بخت بویه یا توره
چه په سپینه بیره څوک د جاد اماد شی

د ملحد په زړهٔ به نهٔ لگی خبرے
کهٔ وئیل دِ ورته تل د نون و صاد شی

زمانه به ئے پرے نږدی و ثبات ته
په هوا چه د حباب غوندِ پُرباد شی

صورتی عمر فانی دے باقی داد دے
چه ئے پس له مرگه نوم د نیکو یاد شی

عقله ته له عشقه لرے لرے گرځه
مخالف چه سره ورئیشی فساد شی

د هغه سړی په مرگ ژړا هیڅ مهٔ کړه
چه د بد و نوم ئے خور په هر بلاد شی

په هر چا باندِ ئے زړهٔ دے لکه ژاولے
په خوشحال باندِ ئے زړهٔ لکه فولاد شی

هر سړے کهٔ ریښتیا گوئے وی
نهٔ دِ مړ کهٔ سړئے گوئے وی

د لویئ لافے به نهٔ کا
چه په اصل هُنرجوئے وی

کهٔ ئے نغارے پټ به نهٔ شی
په هر ځائے چه رنگ و بوئے وی

چه خپل یار له مابیلتون کا
څما سترگے پسے جوئے وی

په بیلتون د میینا نو
زړهٔ تر دؤو سترگو راتوئے وی

چه قیمت د کالی څومره
پسے هومره جستجوئے وی

څو جفا کا زهٔ خوشحال شم
یار دِ هر کله بدخوئے وی

هرنا یوه ځلموتی څځ زده چه څځ ده دَ عشق بازی
تروخځ مخ څځ ئے مجال چه په هوا کا پروازی
هرقلاش چه خپل صورت په عشق بائے کړکځ باورکړے
په مذهب دَ عاشقانو هم شهید وی هم غازی
کځ دَیار په غم کښے ومری خاصګی ژوندون هغه دے
کځ په پښوئے تندے کښیږدی هم دغه ده ممتازی
حقیقی سجده هغه ده چه دَ یار په لورئے وکړے
وکعبے ته چه سجده شی دا سجود دے مجازی
تورو زلفوئے په بادکړځ ډیر سرونه دَمظلومو
تورے سترګے ئے په زړونو کا همیش ترکتازی
اے خوشحاله چه عاشق شوے اوس له خپله شته تیر
داخما خندا خندا ته بازی مځ ګڼړه بازی

هغه دم چه مِ له یار سره صحبت وی
دَ فرښتو آواز په ما باندِ رحمت وی
چه له یار سره باده خورم په خلوت کښے
باده ستادِ له غه ځایه نه رخصت وی
بنځ یاران چه سره ناست وی محبت کا
چه اغیارو باندِ راشی قیامت وی
تل ګدائے په بادشاهانو مئین شوے
نځ دا کار به له ماخوارونه بدعت وی
عاشقی مِ خدائے له ځایه خوئے خصلت کړه
هم هغه کاندی سړے چه ئے خصلت وی
ستادَ شونډو تر لذت به نځ رسیږی
کځ هرخوږم دَ شکرو زیات لذت وی
ما به زړځ دَمعشوقے له لاسه خلاص کړ
ولے دریغه کځ له عشقه اجازت وی
دَ زنخ دَ چاه دَ بند فراغت غوارم
په تنور کښے پراته کله فراغت وی
بنځ صورت خو هم هغه چه زړځ ئے یوړ
نځ چه کړځ او وړځ ئے بنځ وی بنځ صورت وی
ما به سترګے لکه باز درلے آندرے
کځ مِ زده وے چه دَ سترګو بد شدت وی
خو به مځ راځه په ملک خما دَ سترګو
ګڼړه ځان به دِ په وینو کښے لت پت وی
شیخ به ولے دَ رندانو عیب نځ کا
تل له مرد سره نامرد په غم غیرت وی
ستا په زلفو کښے مِ خوار خاطر پنا دنشو
دَمومن په کفرستان کښے څځ حرمت وی

مګر واره جوهري په مرګ تمام شول چه تر دُر به د زُلئ زيات قيمت وي
بل جنتئ شيخه تا وته بخښلے
د خوشحال دِ هم د يار کوځه جنت وي

هغه مخ چه ښا ئسته د نندارو وي چه ئے وينے وهرچا پسے هوهو وي
د بلبلو له بلغاک نه دلګير مهٔ شه هغه ځائے چه رنګ و بوئ ګفتګو وي
کهٔ هرخوښا ئسته ډيردي ګمان نکړم چه به بله لکه تهٔ پاکيزه رو وي
تورګيسو پرے همګی صورت خوارهٔ کړه چه دِ درست صورت همه د مشکو بو وي
زهٔ به ستر ګے ستاله مخه نه وانخلم مخا مخ کهٔ تيرانداز را ته يو څو وي
قاصدان ځما د اوښکو کښته پورته هميشه د کښلی مخ په جستجو وي
نن چه تهٔ له ما نه ځے، زړهٔ م خوشحال کړهٔ يا ره ستا وعده به کله د راتلو وي
کا تبان به ئے په کوموګوتو کښينه غم خبره چه سوز ونګے تر لمبو وي
د سحر په بلا تهٔ يا د شے اے چرګه ستا په ژغ د عاشق زړهٔ په پرهر و وي
د خوشحال خټک له حاله خبردار شوے
چه په زړهٔ به ئے د عشق داغونه څو وي

هغه څهٔ دے روغ صورت دے چه بهتر تر سلطنت دے
د دُنيا دولت کهٔ ښهٔ دے تر دولت نه ښهٔ عزت دے
چه ډير ښهٔ دے تر توقيره يو عفت بل صداقت دے
چه سړے له غمه خلاص کا هغه څهٔ دے قناعت دے
په طاعت کهٔ تهٔ لوئی کړے حبطه هغه طاعت دے
چه فائده لری بے شماره هغه څهٔ دے مصلحت دے
په منت چه ورکول کا هغه کله سخاوت دے
چه دوزخ دے په دُنيا کښے د نا پوهه سره صحبت دے
خيل نيت ښهٔ لره خوشحاله
کهٔ څهٔ ښهٔ دے خو ښهٔ نيت دے

هغه يار کهٔ په ظاهر له ما جدا دے په باطن کښے هر زمان را هويدا دے

د ژړوند یو سره ګرځي په عالم کښې / خوار عاشق په معشوقه باندې فدا دے

کښت که د وسیزي باران ورباندې مشه / که په خوار و به کرم کړې ساعت دا دے

که ئې غواړم په کوګل کښې موندۀ نشي / زړۀ مې لاړ د ښائسته ؤ په سودا دے

خدائے به امن د هرچا له سترګو وکړه / یو عجب صحبت د مینې ابتدا دے

زۀ به زار کوم له دله هم له یاره / چه په څۀ په بے پروا باندې شیدا دے

خپله مینه په عاشق باندې سور اور شوه / چه پرے سیزي خبردار باندې خدا دے

ګوره څو قرنه کالونه باندې تیر شو / چه فرهاد په بے ستون کښې لاصدا دے

زۀ خوشحال به چا ته څۀ وایم له حاله
د زړۀ حال د مخ په رنګ پورے پیدا دے

هر سړے چه د اخلاص په لارے دروي / که هر څو په غرونو دروي نۀ به نغوي

نومیدي د ښۀ بادشاه په درګاه نشته / هر سړے چه خدمت کا نتیجه موي

څما زړۀ د ښکلو دلبرو ترمیان ورک شو / نوم د کوم یوے اخلم چه څۀ نومي

ښۀ چه زړۀ په عاشقۍ کښې شهید شوم / په دا لارے کښې څۀ لږ نۀ دي لړومي

ما د سویو ښکار کاوۀ هوسۍ مې ښکار کړه / څما رزق به کله تلۀ د بل تر کومي

نور دې صافې پیالې خوري نصیب ئے غم دے
که خوشحال په درد و ډوک کښې پیالے شومي

هغه یار چه له ما لرے په هواد دے / همیشه را ته حاضر د زړۀ په یاد دے

د وصال خوښي ئے هم لاهومره نۀ ده / چه مې زړۀ د دۀ له خیاله سړښاد دے

بیهوده له یاره څار کوم و چا ته / د خپل یار له جوره چا موندلے داد دے

په ما واړه چارے وکړے آشنایۍ / په ناحق مې له بیلتونه نه فریاد دے

چه مې هیڅ اثر د آه ورباندې نۀ شي / دا ناترس خاطر ئے کانړے که فولاد دے

د خطا هوسۍ په بوئ د نافې ښکار شي / راته بس د هغو زلفو بوئ مراد دے

ته چه ما وته ارشاد کوے په عشق کښې / کله غور د عاشقانو په ارشاد دے

چه په هیڅ توکې څما له زړۀ نۀ نۀ ځي / د خپل یار د مینې څۀ محکم بنیاد دے

یو زمان ورځنے خلاص نۀ یم په عمر / په ما خوار باندې د عشق جور معتاد دے

څهٔ عجب بنهٔ بوئ راځي د يار له لوريه　　نن ځما د زړهٔ دمه دَ صبا باد دے
تل ګريوان په اوښکو لوند ساړهٔ آهونه
چه خوشحال مئين کيدهٔ دائے احداد دے

هر خاطر چه ناقرار شي　　قرارے ئے په ديدار شي
چه خپل زړهٔ وچاته ورکا　　هغه څهٔ په خوارئ خوار شي
هسے سيند لرم په سترګو　　چه جمنا ورته روديار شي
يو څهٔ راز لرم په زړهٔ کښے　　هيڅوک نشته چه رازدار شي
هسے ژاړم له بيلتونه　　چه غليم راسره يار شي
زهٔ هم عار لرم له خلقه　　کهٔ دَ خلقو له ما عار شي
واويلا علاج ئے څهٔ کړم　　پرهارونه په پرهار شي
هومره ډير پيران شيخان دي　　نشته يو چه مددګار شي
په بيلتون دَ خندهٔ ږويو
دَ خوشحال ژړا آزار شي

عقل سل دَ مصلحت بندونه جوړ کا　　چه دَ عشق سيلاب پرے راشي وا ړه نوړ کا
ما ته مهٔ وايه عاقله چه عشق څهٔ دے　　کهٔ مئين شے تا به هم له عقله موړ کا
عشق به هيڅ له خپله هوړه نه وانهوړي　　عقل څو به قهر تل دَ ګوتو مروړ کا
زهٔ کهٔ هر څو خپل پيوند شلوم له عشقه　　ولے ما او عشق خدائے لا دبله جوړ کا
ځما عمر بے حساب له شلو زيات دے　　دَ عشق غم به مِ په لږ کاله کښے زوړ کا
کهٔ ئے چيرے دَ خپل يار په وصال لاس شي
بيچاره خوشحال به هم خاطر پرے سوړ کا

چه مِ کښته پورته اوښکے تک و پو کا　　دَ خپل يار به طلب ګرځي جستجو کا
زهٔ به دا طمع دَ شاه دَ سپينو مل شوم　　ګوندِ ما دَ خپلو سپينو سره تو کا
هرچه ستا به کښلي مخ باندِ مئين دي　　هغه درسته شپه له ماهه ګفتګو کا
کهٔ زهٔ رووايم خبرے ګوم مِ مکړه　　ځائيکي ويشتلے تل خبرے ږو کا
ستا له غمه چه وچا وته وئيل کړم　　لام حرف دَ ئيلے نهٔ وي چه هوهو کا

په هر ځائے چه د بخلو روبله ناست وی
چه پرے غوږ باسم خبرے د مهرو کا
بادشاهان ئے آرزومند د ننداره دی
ګدایان به ئے د خولے طمع په څو کا
د ملونو دور تل نهٔ وی خوشحاله
ښائسته به په خپل حسن کبر څو کا

هرچه ستا کوڅه مقام کا
ترتلی دِ ننګ و نام کا
زهٔ چه ستا ترفهم خوار شوم
نورڅهٔ غم د احترام کا
غمزه څهٔ اَستوے بل ته
پریږده کار دِ ما تمام کا
نازنینے د دے ښهر
فتنے ستا له ستر ګو وام کا
ستا مخمورے ستر ګے دواړه
مست م لا د مے ترجام کا
چه سوانه په ښیوه شی
غزال څهٔ دبے چه خرام کا
ورته وګوره په مهر
خوشحال تا وته سلام کا

ستا له چمه به وانړ وړی عاشقان ستا
کهٔ هر څو تیرهٔ غا ښونه وی سکان ستا
چه قدم له تانه اخلم زړهٔ م نهٔ شی
پابسته یم د زلفینو په ریسمان ستا
ته لا اوس لکه غنچه په غوړیدو ئے
د ښائست خبرے لاړے په جهان ستا
په ښائست د ښائسته یوسف ثانی ئے
په دوه کونه ښهٔ دیدن دے رائیګان ستا
په جهان کښے کهٔ ترمرګه ګران څهٔ نشته
زهٔ ترمرګه لا بهتر ګنړم هجران ستا
زهٔ به نوم د سلطانئی با ندِ کښیږدم
کهٔ تش نوم د خوشحال تیر شی په زبان ستا

ور په ورځا روګرزم لورپه لورے په طلب ستا
له خپلوله پردیوم بلا شوه په سبب ستا
مستی د نور وګړی د شرابو په پیالو ده
څما مستی په څهٔ ده درته وایم په دوه لب ستا
پخپله عاشق وژنے بیا پخپله پسے تاپ کړے
چه چارو ته د ګورم واړه چارے دی عجب ستا

څهٔ ما سره غضب کړے چه په غټ کا تهٔ دِ زهٔ مرم
هغو سره غضب کړه چه ئے توان دے دَغضب ستا

کهٔ ځان م په سوزانو لمبو کښېږدَ خدائے دِ نهٔ کا
چه زهٔ بنده به وغواړم یا تبه یا سروب ستا

په دا دور راغلے په طالع دَ مشتری ئے
خاوند دِ تل تر تله رخشنده لری کوکب ستا

چه مسته په خمار کښے دَ غمزے سمند جولان کړے
له قتله له کُشتنه به هم څوک نیسی جلب ستا

کهٔ بیا دِ له اغیاره سره نهٔ ده باده څښلے
سکه ووایه دلبرے چه په څهٔ دے دا طرب ستا

کهٔ تهٔ به له خوشحال سره یاری خو په دُنیا کړے
را درومه یاره وی دِ دَخوشحال واړه منصب ستا

هغه هغه توبه له تا نه ستا له خویه بویه تښې
ځما خاطر دِ وریت کړ لکه سیخ په لمبو ایښې

له سترګو ورُوځو زلفوله بنړو به دِ ځان څهٔ وړم
دَ مخ سپاهیان دِ هسے را ته جوړ لښکر زهٔ ګوښې

ځما په بخره نیاز دے چه عاشق یم زهٔ به نیاز کړم
دَ ناز اسباب م واړه معشوقے وته پرے ایښې

په مخ دَ مهوشانو چه څهٔ خال وخط لیدهٔ شی
بلا دَ ځان دَ زړهٔ دی کهٔ ئے ګورے ګوښې ګوښې

عاشق په اندیښنو کښے دَ تازی غوندِ نس نغښتے
غافل په بے غمئ کښے دَ سنډا غوندِ بد غوښې

بدخواه دِ په قصد کړے ده خوشحاله ملا محکمه
څهٔ ویره څهٔ اندوه کړے تهٔ هم وردننه ئے چه بلښې

هر چرته چه کښېنې هغه ځائے دَ ګلو باغ شي
چه دروې په چمن کښې دَ لاله سینه داغ شي
چه باد دِ تورے زلفے په سپین مخ کاندي پریشانے
دَ مشکو دَ عنبرو بوئ پریشان په هر دماغ شي
په زلفو کښې دِ ورک ځما زړګے شو مخ څرګند کړه
دَ ورک کالي غوښتنه تل په توره شپه په څراغ شي
چه ما مزه موندلې ستا دَ شونډو دروغژن یم
که دا مزه به هم مونده دَ میو په ایاغ شي
پیغام ځما اے باده تر شیدا بلبلو وروړه
لا شک چه په دا باغ کښې دَ ګل بوئ دَ ګل سراغ شي
یو دم دَ خوار خوشحال سره ته هم فراغت کښېنه
چه زړه ئے له دیو ډیرو اندیښنو څه خو فراغ شي

یا مازده یا م ستر ګو چه نن شپه را باندِ تیر دی
یا مازده یا هغو زده چه وهلی په شمشیر دی
دارو ئے دَ دردمه کړه نه ئے روغ دَ رغید و دے
چه خود په زړه دا ړلی دَ خوبا دَ چشمو شیر دی
له درده نه خلاصیږم چه طبیب پسے طلب کړم
ګنړه هیڅ کړے ئے نشته طبیبان په جهان ډیر دی
عاشق دِ لا دَ وخته خپله زیرمه دَ کفن کا
چه تور با نړه ئے غشي وکښتن وته دلیر شي
عاشق وته ښکاریږي لکه مخ په آئینه کښې
دَ شاه دَ جمال نخښې که تر زر تتق تیر دی
څه ته وما وائے اے ناصحه چه عشق هیر کړه
چه بے دَ عشق دَ کاره م نور ټول کار ونه هیر دی

خوشحال ختک چه بیاموندهٔ لذت دَ یار دَ شونډو
وده وته نور واړه دَ جهان خواړهٔ ګندیر دی

یا خومهٔ کړه لیونی سره یاری
یا دَ کند د پهوړئ کړه تیاری

چه په نور خټه ئې حساب ګڼړی هغهٔ زړهٔ
زړهٔ بې یاره عمر کل ګڼم خواری

چه د یار دَ راغلو زیرے په ما وُکا
تر هغهٔ سړی به زړهٔ شم بلهاری

په خرام کښې دَ آهو علامت ګوره
دَ ګذار وارنے خطا کړ دَ ښکاری

خُما حال به وهغهٔ وته معلوم وی
چه تمامه شپه بیدار ستوري شماری

خدائے دِ تا په جهان تل لری اے باده
چه خُما دَ یار تر مینځ کړے ریباری

معطر دَ شاه دَ زلفو نه را دروے
ستا له بویه نلفے زار شه تاتاری

چه وعده دَ یار دَ وصل نزدے کیږی
دَ عاشق له زړهٔ نه درومی قراری

کهٔ نے ستا دَ سړو خوشحال په نظر کښیوت
دَ خوشحال شی نور له غمه ویزاری

یو قدم چه په خلاف دَ نفس روان شی
په هغه زمان ولی هغه انسان شی

چه دَ نفس په حکم درومی هغه خواری
سړیتوب ورځنه هغواړه شیطان شی

دا سړے چه فرښته دے هم شیطان دے
کهٔ سړے وخپل عمل ته نګران شی

یو په بد عمل کښې ځی تحت الثریٰ ته
بل په ښهٔ عمل کښې پاسه په آسمان شی

دا سړی دی چه په عقل کښې سړی دی
دا سړی چه په عقل کښې ددان شی

دا خو نو نه په توپک په توره نهٔ شی
دا خو نو نه چه دَ خلقو په زبان شی

تربیت کهٔ دَ باغوان دَ لاسه مومی
په هر ځائے باندِ ګلونه دَ بوستان شی

هر اُستاد سره چه کښینی یو څو ورځے
دَ هغهٔ هُنر په دهٔ کښې نمایان شی

دَ نیکانو په صحبت کښې به ښهٔ کیږی
اولیاء له اولیاء نه راعیان شی

چه مغلو سره کښیناستے مغل شے
دَ افغان سره چه کښینی نور افغان شی

دَ خوشحال سره چه کښینی یو څو کاله
دا دَ غرهٔ ختک به واړه شاعران شی

... ... ...

باپ تخت باندِ بادشاه وے — یا درویش دَ خانقاه وے

چه په لار دی هغه ډیر دی — یو څو ما غوندِ گمراه وے

زۀ هر دم په بسم الله یم — کۀ یاران به بسمِ الله وے

چه ئے کار دَ میړۀ نۀ وی — هغه نۀ وے میړۀ داه وے

په شماره مِ څوئیه ورک دی — کۀ یو څو پکښے واه واه وے

غاړے غرونه ځنے ډک دی — سرانجام کۀ دَ سپاه وے

ابلقی په کار کښے هیڅ وے — یا درست سپین وے یا سیاه وے

توره شپه ده دَ غمونو — دَ ښادئ صبحگاه وے

په خوشحال به ئے بد نۀ وے
کۀ ئے څوک په حال آگاه وے



کتابت : غلام لطیف ۔ چپرړے ۔ دسمبر / ۱۹۹۸ء

جګې جګې نفسه ډیر درپسے لاسړم
چه دِ ویے هغه خوار ډوم وتا درکړه
ډیرم ستا په رضا خوب ترښا بنته کړے
زۀ ښځلو بښت کاله له تا سره کافرؤم
حمیده م دَ بدل په ضمیمه کړل
په هر در دِ لکه سپے وُدرؤلم
په یوۀ خاطرم زر اندیښنے تولے
پیمانے دِ دَهوا ښما په لاس کړے
کله ماوته وئیل دَ مال و ملک کړے
هرچه پلار نیکۀ دِ کړے هغه کار کړه
کله ماوته وئیل دَخان او میر کړے
کۀ دروغ دی کۀ رښتیا ورته ئے وایه
کله ماوته وئیل کړے چه خدمت کړه
حق ناحق خونونه کړه دَ مُسلمانو
کله ماوته وئیل کړے هرڅۀ پریږده
په هرلوری درته ښښینوه پرښنګ ښښے
کله ماوته په یاد تازی ترکی کړے
په صحرائے زغلوه هوا هوس کړه
کله ماوته وئیل دَګل ولائے کړے
کۀ په مُزد کۀ په بیګار ځایونه ساز کړه
په حشمت دَ زلوچو د پاسه ښښینه
کله ماوته وئیل ښاری جامے کړے
کله ماوته وئیل کړے شعر ښۀ دے
داشماره ډیره مجمل ده چه م اووے
هرچه تۀ وماته وائے هغه کار کړم

تۀ هم څۀ خواوس په ماپسے روان شه
دَ ترو و دَ ترخو هم مزه چشان شه
اوس راضی له مایه خوب ښیے تراڈان شه
تۀ له ماسره څو ورځے مُسلمان شه
څۀ فساد دِ په ما وکړ کوردِ وران شه
له دے تکه پو په منع یو زمان شه
داهمه شومیت دِ تادے ورک دِ ځان شه
واړه باد پرے پیمایم سوړ دِ دوکان شه
چه عزت په مال و ملک ښیے دَ پوهان شه
دَ ناموس دَ ننګ په کار ښیے نامی ځوان شه
چه ورځه له خان او میره همزبان شه
مسخره غوندِ دَ دۀ سره خندان شه
په خدمت ښیے دلنشین دَ شاجهان شه
په هر شان ئے خوار روه باندِ خرېزان شه
په جمال دَ ښو محبوبو نګران شه
بهره مند ئے له صحبته په هر شان شه
چه دَ ښکار په هوا سور په عراقیان شه
دَ بازونو ښکار کوه غوره په ځان شه
چه بانی دَ عمارت باغ و بوستان شه
ښکښیے ناست وُسه صاحب دَ ښه مکان شه
په دا کار ښیے یا فرعون یا هامان شه
چه زرینے جامے اغونده رخشان شه
سخندانو سره ښښینه سخندان شه
مفصل ئے تۀ ښچپاله ترجمان شه
ولے کوم ښکښیے حاصل دے خودګویان شه

زۀ چه ستا په رضا درومم سوځم کوم دے
چه به ستا په رضا درومی سوځی زیان شهٔ

آواره دِ په خوښئ د اماره کړم
له دے هسے بده خویه لرِ پښیمان شه

چه دا هسے بے حسابه فرمائش کړے
په دا هسے فرمائش څۀ خونادان شه

مطربان دِ سرودونه درتهٔ کاندی
تهٔ ئے خوښ په صوتوا وغاړه په الحان شه

وازه کړے دِ دَ آز دَ حرص خولۀ ده
ستام مات دَ قناعت په سنګ دندان شه

دَ غفلت په ګهواره کښے فراغت کړے
غوښ دِ تا دَ ګهوارے دغه ریسمان شه

ستا لښکرو م په زړۀ ده میشته کړے
دا لښکر دِ په تیره تُوره طوفان شه

کۀ قدم په نفس کښیږدے اے خوشحاله
نورتهٔ هاله دَدے دوه کونو سُلطان شه

په هیڅ رنګ به دَ عالم له خُلے خلاص نۀ شے
کۀ په خوئ کښے له فرښتو شے برابر

په ځوانئ کښے کۀ تقویٰ کړے دا به وائی
له هوسه وُوت خاورے ئے په سر

په پیرئ کښے کۀ هوس کړے دا به وائی
چه په سپینه ږیره څۀ کاکیدی خر

له خبرو کۀ خولۀ ونیسے خاموش شے
نوم به زرکښیږدی په تا دَ غوبل شتور

کۀ خولۀ پرانزے هرچا دا به وائی
چه ګړبیږی ماغزۀ نۀ لری دَ سر

کۀ له خلقه ګوښه ګیر شے دا به وائی
چه خان روغ په خلقونۀ وینی مکر

کۀ هرچا لره وردرومے دا به وائی
چه صبا په بیګاه ګرځی در په در

کۀ دُنیا دیره ګټے په ځان ئے نۀ خورے
دَ شوم نوم به په تا کښیږدی خیل پسر

کۀ په هرچا لوستهٔ کړے دَ خپلو زرو
دا به وائی چه دَ غلائے دی دا زر

کۀ توانګر شے دَ قارون په نوم بالۀ شے
بے شعور کم بخت بالۀ شی نا تونګر

کۀ بنے بنے خبرے وکړے په خُواب کښے
وائی څۀ حرامزاده دے لسنهٔ ور

کۀ جواب وچا ته نۀ ورکړے سرکوز کړے
وائی هیڅ نۀ دے غووے بے هُنر

کۀ په تُوره مړنے شے کړ وے ئے
لیونے جاهل دِ بولی هم ابتر

کۀ له جنګه په ستنه وُسے وارګورے
وائی خان ساتی نامرد دے نۀ زړۀ ور

کۀ زربفت او میلک اغوندے تکلیف کړے
وائی دا دَ بنځو خوئ دے نۀ دَ نر

کۀ ساده جامے اغوندے درته وائی
چه دَ شوم او دَ ممسک دے هسے چر

کۀ سفر دَ هر دیار کړے درته وائی — چه حرص ئے ګرځوی په هره لیَر
کۀ په کور کښینے هیڅ لوری وته نۀ ځے — وائی کښیناست په خپل کور لکه دختر
کۀ لوند ګرځے وادۀ ته هوس نکړے — بیا دِ بولی حیز، نامرد، مُرده ذکر
کۀ وادۀ وکړے بیا دا درباندِ وائی — آزاده بنځۀ نۀ وو؟ شو په بلا سر
داځۀ زرد اهسے رنګ ملامت نور شته — کۀ ئے کښنم درته به ساز کړم یو دفتر
خدائے لا هم ځنے خلاص نۀ دے کۀ ئے ګورے — چه ترسائے دَ عیسیٰ بولی پدر.
زۀ او تۀ دَ چا په یاد په څۀ شمار یُو — دَ عالم له خولے خلاص نۀ وو پیغمبرؑ

نیت دَ هر چا سره بنۀ لره خوشحال له
په هر کار کښے دَ سړی دے نیت رهبر

چه صرفه کاندِ په سر — یا صرفه کاندی په زر
نۀ به خان نۀ به سُلطان شی — نۀ به خپل کاندی کشور
چه په ځان مړنے نۀ وی — مړنتوب نۀ کا لښکر
یا تخت دے یا تخته ده — دَ شاهانو ځائے مقر

کۀ ئے ګورے بد ژوندون دے
په جهان تر مرګ بتر

قسمت خوچارے را وکړے — نندارہ دَ درست جهان شوم
نۀ ګناه نۀ مې تقصیر وو — دَ بادشاه په بد زندان شوم
عالمګیر چه په تخت کښیناست — له قرانه په قران شوم
له بګرامه پینے تړلے — هندوستان لره روان شوم
په دهلی په رنتهبور کښے — درے ځلور کاله حیران شوم
په اګره کښے مې پښے وا شوے — بیا نوکر دَ بد سلطان شوم
دَ شجاع په شور وشر کښے — خپل وطن وته روان شوم
زړۀ مې درست سره داغ داغ دے — په تلاشے دَ درمان شوم
لنګرکوټ مغلو ساز کړ — زۀ په ننګه دَ افغان شوم
کۀ یوسف وو کۀ مندړ وو — زۀ دَ دواړو نګهبان شوم

دا یمل فتور آغاز شو | د مهمندو هم عنان شوم
د مغلو م بلا شوه | غر په غر په کوهستان شوم
خپل اولس م مغلی شو | نا اُمید له خاندان شوم
شوم بهرام م د ځان غم شو | زه هم غم د ده د ځان شوم
په خوکاله دا شورش وو | په ملکونو سرګردان شوم
که اُولس م بیګانه وے | په هر کار به زه کامران شوم
سمه سوات په یوسف زئ | د هرچا کره مهمان شوم
فضولی راکړله نه شی | خو همت په هسے شان شوم
په تول د یوسف زئ | مظفر په هر میدان شوم
بیا م سوات سے ته شا کړه | په خپل غره په خپل مکان شوم
نا خلف م مخالف شو | زه د ده په کار حیران شوم
په شامت د ده تر اوسه | در ته زه وایم څه شان شوم
په ګنبت چه خټک وُمړل | یا چه زه زخمی په ځان شوم
یا چه راغلم چوترے ته | شاهزاده لره روان شوم
یا چه ناست په نظامپور وُم | د هر کام به په ارمان شوم
خو تری دی خو بولاق دی | نندارچی ئے د زبان شوم
که م زور لکه د فیل دے | و هرچا وته ناتوان شوم
دا همته شامت د ده دے | چه محتاج د آب و نان شوم
که م خپل دی که پردی دی | زه له واړو په فغان شوم
و هرچا وته لښکر یم | ناخلف و ته کاروان شوم
دے لښکر را پسے بیائی | زه له ده نه ګریزان شوم
ناخلف را پسے سر دے | زه په کوه په بیابان شوم
چه کوکب م یاری نه کا | په دا څه که کوکب دان شوم
چه م کار شو له نادانو | که هوښیار وُم هم نادان شوم
چه م بد زوول له خانه | خود په خود بلا د ځان شوم

داځهٔ چرخ څهٔ ګردش دے — ګول په چارو دَآسمان شوم
زرځلور اویا هجرت وو — هغه کال چه بند یوان شوم
اوس زر نوی کال دَ هجرت دے — چه بانی دَ دے بیان شوم
هغه زهٔ هغه یم زړهٔ دے — په کالونو کهٔ کلان شوم
کهٔ م بخت کهٔ م لښکر دے — لا پخته په امتحان شوم
خود به دے هسے ګردش کا — چه په کام دَ دشمنان شوم
کهٔ م آرزوی له هوده — نهٔ یم مرد کهٔ ترے ترسان شوم
واړه وشول شپاړس کاله — چه په دا طور پریشان شوم
په اتهٔ شپیتهٔ کښے زهٔ یم — پسرلے تیر شو په خزان شوم
دا هم هیڅ کهٔ په دا عمر — دَآسمان په سود و زیان شوم
زیان ئے هم راته آسان دے — چه له سود ئے پښیمان شوم
ځوانی لاړه پیری راغله — برمنډ ګل دَ ګلستان شوم
کهٔ م غاښ نشته په خولهٔ کښے — مست هاتی یم بے دندان شوم
لکه نمر په وخت دَ عصر — په هر کار هسے ناتوان شوم
اوس نور غم راسره نشته — خو په غم دَ عابدخان شوم
خو چه کام دَدهٔ دَ زړهٔ دے — کهٔ کامران شی زهٔ کامران شوم

کهٔ م دا مقصود حاصل شی
ګنړه سر دَ سره ځوان شوم

کهٔ بادشاه دَ درست جهان شی په تخت کښینی
ترس به کا دَ بادشاهئ له زوال نه
کهٔ لوئی دَ سکندر وه خو بیا هیڅ شوه
کهٔ قصه شی دَ یوسف له ښهٔ جمال نه
خو سکندره خو یوسف به درته یاد کا
کهٔ خبر واخلے له نمره له هلال نه

کهٔ جمشید وو کهٔ کسریٰ وو کهٔ خسرو وو
واړه وکړله وداع له ملک ومال نه

دَ شاهانو کیږئ دی خاورے نهٔ دی
چه پراتهٔ دی وکړه سوال له هرسفال نه

دا قحبه کهٔ په رنګ ښه ده خوئے ګوره
جدائی ورځنے ښه ده دَ وصال نه

کهٔ لقمان کهٔ افلاطون وو واړه تیر شول
چه مِ داد ورکړ دَ عقل قیل وقال نه

هرکمال سره زوال عاقلان وینی
خکه تښتی دَ دُنیا دَ هرکمال نه

دَ دُنیا عیشونه واړه درګذر دی
غواړه عیش دَ عقبیٰ دَ ذوالجلال نه

عاقلان کهٔ دَ دُنیا په حال خبرشی
زر به غواړی خپل خلاصے دَدے جنجال نه

کهٔ طوعًا ده کهٔ کرهًا په دا هفتاد کښے
ما رخصت وکړ دَ ملک مال ومنال نه

دَ ایمانه سره مرګ عظیم نعمت دے
خدایه دا نعمت اوس زر ورکړه خوشحال نه

کهٔ خوشحال به په دُنیا لرے خو کاله
سکه بهرام به تهٔ تیرنکړے ترسږ.کال نه

بد قرین لکه دوزخ دے په دُنیا کښے
مائے خلاص کړه له عذابه له وبال نه

هر سړے کهٔ په دُنیا کښے ژوندے ګرځی
خلاص به نهٔ وی دَدُنیا له قیل و قال نه

په حيات صورت هر ګوره دِ ير ضرور شي
لاس وګښنه دَ دُنيا له ملک و مال نه
هر ساعت په ما يوحال دے چه تير يږي
چه جدا يم له اطفاله له عيال نه
خپل پردي م څوک ونهٔ ليدل رښتيني
چه خبر شوم دَ وګړي له احوال نه

يو هسے ستوري وخوت په دا بده زمانه
چه ګرزئے دَ لمبه غوندِ ترخولهٔ ځي زبانه
عالم وائي چه نخښبه دَ وبا ده يا دَ قحط
زهٔ دا وايم چه نهٔ دَ قيامت ده نشانه
قيامت دا هسے رنګ نهٔ وي نور څهٔ وي
چه څوئ ئے بادشاهي کا پلارئے ناست بنديخانه
دا کال م په حساب کښے پوره عين غين هے وو
پخپله به پرے پوهه شي چه سړے وي فرزانه

دَ عالم په جفا هيڅ خبردار نهٔ وُم
لکه کونړ سړے په ډيرو نارو آوري
چه م کل ګنړل همه واړه اغزي وو
چه هميش به ئے ځما په سر دُعا کړه
بے وفا يارانو واړو راته شا کړه
په زړګونو کښے م يو سړے بيا نهٔ موند
کهٔ دِ عمر بقا شته ساعت نزدے دے
سَلَم تور غوندِ فلک هسے پرے نښبول
چه کفران ئے دَ نعمت کا وهٔ ليدل م

نيک و بد وما ته دواړه وفادار وو
دا يُو اوس دَ نيک و بد وجفا آر وو
چه دا رو م ګنړل کل واړه پرهار وو
چه م وليدل همه واړه مکار وو
بنهٔ چه واړه له مالاړل په څهٔ کار وو
چه ئے ماسره ياري کړه بيا کنار وو
څوک دِ هيڅ بنا دي ونهٔ کاخوښه وار وو
ډير نا اهل دَ کردار له لاسه خوار وو
فضيحت رسوا په خلق خوار و زار وو

دے روزګار د هغو واړو کار تمام کړ — څوک چه ماحواله کړی په روزګار وو
آوریدل م به غلط غلط حکمونه — روستائی قاضی دوه مل سره په دار وو
هیڅ حکیم به نے د رنځ علاج وتۀ کا — د هرچا چه خپل خویونه لړم مار وو
چه م مسلۀ ګنړل په دواړو جهانو — هم هغه له ماپه دا جهان ویزار وو
ما ډیر ولیدل د بام په سر ختلی — بیا د بام له سره کښته نګونسار وو

یا وه سړے هغه دے — چه نے غیږ نۀ وی په واک
صحبت په هفته بویه — کۀ هر څو نے قوت ناک
وجود لکه مایه دے — دا اوبۀ نے دی او تاک
څو غوړو هومره بل وی — څراغ بے غوړوی هلاک
له څوانو صحبت بنۀ دے — له زړو دِ نۀ شی ژواک
چه تیر شی تر پنځوسو — ډیر دخول دِ ګنړی باک
صحبت دِ کا په منی — یا په حُوت یا په ویساک
په باغ کښے صحبت بنۀ دے — چه بلبلے کا بلغاک
چه دا هوسناکی کا — تل دِ کا کرم خوراک
په عطر کښے دِ اوسی — بنۀ مهین دِ کا پوشاک
تودے اوبۀ دِ تل وی — چه په غسل کا ځان پاک
دخول د حیض بد دے — یا پرمی شی یا سوزاک
له پاکے دِ صحبت کا — د ناپاکے په سر خاک
کۀ څوړے — فلاسفه خوره
هم نے باه شته هم امساک
ځما مشران څو یه — چه نے کار شو اِمتحان
اشرف خان هم کارفرمائے دے — هم کارکن دے هم کاردان
سدو په کار پوهیږی — کۀ کارکن نۀ دے په ځان
یحیٰی وکار ته زغلی — کار ویران کا په زمان

عابدخان په کار کامل دے — کارفرمادے په ښهٔ شان
خالدخان په کارو بار کښې — کله ښهٔ کله نادان
ښهٔ خوئ دَ بابا دل دے — تل دِ ژوی په جهان
په بازچه نظر وکړے — پکښې شته دَ مردئ شان
کهٔ خدائے ئے راته پرېږدی — ذوالفقار دے صدرخان
بهرام هم کار فرما دے — هم کارکن دے زړهٔ پریشان
دا نور څهٔ غټ وارهٔ دی — واړه ښهٔ کړه پاک سبحان
پوره په اویا ساغلم — چه رِم ووے دا بیان
زر دوه نوی دَ هجرت — گوره څهٔ وکا آسمان

په سوئ سُور سالُو دے — هم دَ کور سره لمن
په سر سره سور اور څی — لکه گل دَ لاله تن

سره ورغلل دوه غرونه — یو مغل دویم پښتون
رنځ شدت ئے هسے نهٔ دے — چه څوک صاف کا خپل لړمون
خدایه تهٔ دانا بینا ئے — هم بیچون هم بیچگون
تهٔ حکیم ئے پرے پوهیږے — زهٔ پرے نهٔ پوهیږم چون
واړه ستا په حکم کیږی — کهٔ کنړون دے کهٔ شلوون
داغمونه تهٔ توانیږے — کهٔ له ملکه شی بیرون
کهٔ بیرون نهٔ شی له ملکه — غم لړے پکښې زرغون
کهٔ رودونه پار پرار وو — سره دَ وینو دی جیحون

په هرحال شکر باندهٔ دے
تبه ښه ده نهٔ طاعون

دَ خوشحال خټک دَحال پوښتنه څهٔ کړے — په درون کښې ئے گرومونه دی څیگر
له وجوده ئے بو هسے خیز پیدا شو — چه په خوئ تر خرس وخوگه دے بتر

په دروغ په بې شرمئ په بدګويئ کښې
يا جهود دے يا ترسا دے يا کافر

په خسّت په بخل لا بده بلا دے
يو درم به پيز و نهٔ کړي په پدر

خويک لخته دَ خپل ځان په بنيرازي دے
بنيرازي ئے پکار نهٔ ده دَ پسر

په خسّت ئے خو زرګونه سره تول کړه
لا هم هسے ورپسے دے ګيدي خر

کهٔ دَ پلار خوني ئے مري په دوه روپئ
هغه دوه روپئ به زار نهٔ کا تر سر

دے په مثل لکه تروږي زړئے پوست شول
ګوره خوک به ئے له تنه کا بدر

په وسواس په نامردئ په وهم ويره
لا په زړهٔ به وي ګيدړ ترد هٔ ږه ور

پلار نيکهٔ ته ئے نهٔ خوي دے نهٔ ئے رنګ دے
درست په خوئ په بوئ پيدا دے دَ مادر

دَ مور پلار نيکهٔ ئے وار په پدر کش وو
دَ چار پايو دَ ددانو په سير

دَ هر خيز رجوع دَ اصل وته کيږي
په فرزند کښے زيات دَ مور کيږي اثر

پنجشنبه م وار پرے سازشه
څهٔ جمعه څهٔ پنجشنبه

يکشنبه ته ئے پرے مهٔ يږده
کهٔ تهٔ موے ګنج شنبه

ارتينے په مثال ګل دے
ګل تازه ښهٔ دے خوشحاله

ترشل کاله تازه ګل ده
بده نهٔ ده تر ديرش کاله

چه تر ديرش کاله زياتيږي
پريوا تهٔ ئے دې له خياله

چه دَ سر ويښتهٔ ئے سپين شي
نورئے څهٔ له خط و خاله

کهٔ درست ځان زر و زيور کا
سُود ئے کوم دے له جماله

زوړ چه ښهٔ جمال ته ګوري
بيائے ځوان شي له وصاله

چه مرګ شته په دُنيا کښے
ښادي نشته په جهان

دَ خيال ميرمنے جُونه
دَ دماغ ښتن خوانان

هرچه راشي هسے دروي
لکه ګل دَ ګلستان

تلهٔ دی له جهانه　　　په افسوس او په ارمان
مونږ لکه لاله یُو　　　په دا لږ عمر خندان
بلے شمعے ته نظر کړه　　　چه په څهٔ ژاړی خپل ځان
بار در وُتړه خوشحاله
دَ جرس آورے فغان

سخاوت او شجاعت سره زیبا دی　　　بهادر به خالی نهٔ وی له سخا
بهادر نخه چه خوئ دَ سخا نهٔ وی　　　خرس او خوږ غوندِ ئے وګڼړی دانا
خرس او خُوږ کهٔ هره ورځ کاندی خونونه　　　خرس او خوږ څهٔ مړنے نهٔ شو په دا
په سړیو سرآسان دے زر پړے ګران دی　　　سرشندی دَ زرو نهٔ کاندی عطا
هغه هسے سرچه غوږ ورسره نهٔ وی　　　سر دَ خرهٔ دے چه هیڅ نهٔ لری بها
مرتوب دَ دانا یا نو په بنهٔ رنګ وی　　　نادانان دَ کُشتن نهٔ لری پروا
ځوانمردی په سرشندل په زرشندل ده　　　کهٔ ځوان مرد ئے راوړه خوئ دَمرتضا
نهٔ به مال دَچا نقصان په ورکول شی　　　نهٔ به وُمری چه دَ چا نهٔ وی قضا
نامردا نو ته دا دواړه توکه ګران دی　　　ځوان مردان دی په دا دواړه بے هتا
مهٔ په حلق کښے دَ مزری دَمار پریوزه　　　مهٔ ممسک شه مهٔ مسرف زده کړه له ما
ځوان مردان تِرسودَ ننګ دپاره تیرشی
نروسکه مال په کوم حساب دے دَ دُنیا

مصلحت لکه توپک دے　　　ستا مراد لکه نخچیر
کهٔ دِ بنهٔ ګذار پکار وی　　　تر اول ئے کړه بنهٔ ځیر
په ګذار کښے هول مهٔ کړه　　　په خپل ځان وُسه خبیر
نورماشه کړه باندِ کوزه　　　لرو بر مهٔ کړه نظیر
زهٔ خوشحال خټک ضامن یم　　　کهٔ خطا دِ شی یو تیر
چه دَ مرګ اسباب پوره شو
هم دغه ګنړه تقدیر
شیطان په مثل باد دے　　　څوک خلاص نهٔ وُی له دے باده

سرے دے لکه بُوټے | دا دُنیا مِ لار دَ باد ده
چه بیخ دَ وُنے ټینګ وی | غم ئے هیڅ نهٔ وی له باده
چه بیخ ئے برخیرن وی | خلاص به نهٔ وی له فساده
علم څو دَ سړی ډیر وی | عطائی وی له اُستاده

کهٔ دا وُنے دی کهٔ بوټی
واړه ټینګ دی له بنیاده

سړ کال چه دَ غواصؒ دے | په هر لوری دی تبړن ډیر
دَ مرګ تبے یو څیر دی | دَ ژوندون تبے بل څیر
ترمیاشتے تبړن ورشی | لا ترمیاشتے تیر و بیر
بخت ناک په دوه هفتے شی | دَ فانی جهانه تیر
ژوندے وو درویشت کاله | څلمی توب شو باندِ زلیر
څو بنهٔ کبنلی مخونه | دی تر تورو خاورو زیر
په رنګ دَ چنبے ګل وو | چه ترے تیل شی دَ اجمیر
په خوبئ لکه ملک وو | په تقویٰ په طاعت ډیر
دَ پلار په زړهٔ ئے مرګ دے | لکه زخم دَ شمشیر
یو څهٔ دَ بلا غم دے | چه آسمان کړ را برڅیر
کهٔ ډیر وو نور غمونه | په دا غم شول واړه هیر
ارمان چه په دیدن ئے | مئین نهٔ شول واړه سیر
غلیم ئے کهٔ بادشاه وی | پلار ئے کړے باندِ پیر
چه وړ به ئے له ورونړو | نهٔ وو کار دَ شرزه شیر

دَ خدائے سره جنګ نهٔ شی
کهٔ هر څو وی څوک دلیر

نژدے راغے ساعت | چه په خاورو شی صورت
بند په بند به سره بیل شی | ترمر دارے فضیحت
چینجی به ترے خوځیږی | یا به هسے شی لت پت

صفت دَ صدف مهٔ کړه     دَ ګوهر کوه صفت !
ګوهر مغه ګوهر دے
چه یکانه دے په قیمت

لکه مست هاتی زنځیر کا ترے ترمے     چه په خوب کښے وربشکاره شی هندوستان
زهٔ هم هسے ترتقوی ترزهد تیر شم     چه را یاد شی دَ شرابو حریفان
ساقی نن دَ میو جام راکړه وماته     څهٔ شیخی ده په دا هسے ګلستان
په طاعت به ترجنته څوک ورنشی
څو پرے فضل کرم نهٔ وی دَ سبحان

داطالع ځما څهٔ اوس نهٔ دے ځائی دَ     چه په چا باندِ منین شم دماغی شی
چه ترے مینه پېتوم هومره ایلی کا     چه پرے مینه ښکاروم هومره یاغی شی
هغه زړهٔ به فراغت آرام په څهٔ کا     چه دَ ښکلیو دَ جمال په خال داغی شی
په هجران ئے په سنګیر میشتهٔ ځما وی
په وصال دَ مهوشانو زړهٔ باغی شی

غم په زړهٔ کښے بد غلیم دے     څو توا نیرے خوا رَوه ـــئ
یا تیره توره ساوا خله     خوچه وی هموار وه ـــئ
یا غمخوار چرته پیدا کړه     ورته کښینه ښکاروه ـــئ
یا فریاد فریاد فریاد کړه     ژاړه تار په تار وه ـــئ
یا خوشحال غوندِ زړهٔ راوُړه
ځائے ئے کړه انبار وه ـــئ

یو بیان به درته وایم کهٔ ئے آورے     ځما دا خبرے نهٔ دی دروغژنے
دَ غلجیو ځو نه سپی سره یو ځائے خوری     هم کی واړه بد یو بنے دی سپړنے
دَ شیرزا دو ځونه بازے دَ سپین غرهٔ دی     په شینوارو کښے هم شته یکښے ښنے
فیروز خیلے اکاخیلے دَ صفت دی     نورے زیرے خربیشئ دی چینجنے
دَ مغل دَ پښتانهٔ دمه پرے کیږی     دَ کوهاټ بنګښے مه شه ستړګ بیښنے
په بنګښ کښے بړه خیلے بدے نهٔ دی     نورے واړه خود نمائے دی نیازمنے

دَ توریو دَ ځاځیو ځونه ښے دی
کهٔ جدرانړے کهٔ وزیرے کهٔ سارنګے
دَ هندکیو په حساب دی عیسیٰ خیلے
دولت خیلے لوهانړیٔ دی لوټے چارے
دَ شیتکو ځونه سالے پښتنے دی
دَ ابدالو ځونه واړه ګهڼے دی
دَ دُړو جونه واړه لکه باغ دی
دَ ختکو ځونه واړه غوبنے دی
دَ مهمندو جونه سرے لکه ایماغ دی
په خلیلو کښے سکنړیٔ پیدا کیږی
داوُد زیٔ ځونه چینګے خولے حیرانے
څو صفت دَ ګګیانړیو ځونو زهٔ کړم
مهن زیٔ جونه واړه لکه خرے دی
چه په خویشکیو روهانړیو باندِ راشے
ماندوړیٔ پُرملئ بیچاره دی
دَ لازاکو ځونه پټ سپاهیان پریباسی
چه په ملک دَ هزاره ترین مرین دی
په مندوړو کښے خال خال چیرے پیدا شی
دَ بنیر دَ جونو نوم په خوله وامهٔ خله
اکوزیٔ ځونه واړه لکه باغ دی
په اړهنګ بړهنګ کښے هم شته اتمانخیلے
دَ صافیو جونه صافے په صورت دی
خوګیانړیٔ واړه خوګے دَ صحرا دی

بلادا چه دی له سیلے لوړنے
داخو واړه نهٔ سړیٔ دی نهٔ ځنے
دَ سنبلو جونه څهٔ خوسرپیږنے
نورے واړه پوَنده دی غوشینے
خو په ژبه په پوشاک دی برخیرنے
کهٔ ترینے دی دَ پشین دی دَ دستاڼنے
کشیده پکښے ملئ دی دَ ستنے
خو یوازے اکوړخیلے دی میرمنے
کته سرے وړے سترګے پوزے پلنے
هغه هم بدے بخیلے سرکودنے
دَ وادهٔ په ورخ ودیږی سرخیرنے
واه واه واه داګګیانړیٔ په یار مینے
دَ سړیو په شان روغے ځنے ځنے
داخو واړه دَ بغړیٔ دی دَ میچنے
نهٔ دَ خواښے دَ جواب دی نهٔ دَ بنے
چه په قهر غصه راشی قهر ژنے
دَ سنګړی جونه داغ کښیږدی په ینے
نورے واړه کیږ وړے دی پړس بنے
دود آلودے غوړیالئ زیږ بخنے
مولی زیٔ پکښے شته دَ چندنړ وُنے
دَ سړیو په جامے جامے ریمنے
ولے ډیرے په روزګار کښے دی خیچنے
په نغری ناستے ډوډیٔ وهی پلنے

په جهان ترلغمانیو نورے نشته
ګنده بویٔ ګنده بغلے پچ بیزنے

په جهان کښې د زړهٔ غوره دي درے توکه
یو ښهٔ حُسن بل ښهٔ ځائے دریم ئے بوئی دے

هم بل هم ورسره شته دے څلورم
بیا سرے او بهٔ چه زړهٔ شي پرے خورم

یا دا درے توکه ځما له دله واخله
اول ښهٔ ښکلی محبوبه چه ئے ګورم

یائے زر وماته راکړه لاس په لاس
دویم باز د مهورے دریم ښهٔ آس

بے صبری کهٔ ډیره ځله
دا د بله مخه نهٔ شی

زار ژړا مانړی ډیر ځله
واړه مینه ده بے تله

تهٔ له خپله لوریه ښهٔ اوسه خوشحاله
کهٔ ومشکو ته څوک ووائی چه هیڅ دی

نور دِ سل رنګه خبرے ماته وائی
لاس په لاس به مشکخیل بوئی ورته نمائی

چه مرے خوښے ومره
مهٔ مارشه مهٔ لړم شه

چه څوک تاپ درپسے وُکا
چه په مرګ دِ څوک زړهٔ ښهٔ کا

یو چه ډیر خوری سوګندونه
آشنائی ورسره مهٔ کړه

بل چه ډیر کاندی پوررونه
دا بے پته دی خویونه

چه مئین په وسله نهٔ وی
لاس دِ سرهٔ کا سترګے تورے

مرد دِ نهٔ وائی خپل ځان ته
ځان دِ وجوړوی ځوان ته

مستظهر په عفو شوے
دا کار د مردئ نهٔ دے

بیا پرخاش د انتقام
پرے پوهیږی خاص وعام

مُسلمان وئیل رب رب کا
هندو وائی چه رام رام

هر یوهٔ وته چه گورے دواړه بولی دَ خدائے نام
دَ خوشحال ختک تسبیح دِ
زنّار نهٔ شی والسلام

کهٔ بادشاه شی په تخت کښینی هم گدائے گڼړه طامع
کهٔ حشمت دولت ئے نهٔ وی هم بادشاه گڼړه قانع

مخزن دَ درویزه دَ میان نور شیخی پیری
الثالث بالخیر دَ حمزه خانی میری
دا درے توکه ډیر قدر ډیر عزت لری په سوات کښے
وخدائے وته بنکاره دی وئیل نهٔ شی په خیری

څما له غیره ترپ لے خو چه وکړ بیړی ور
دَ مور تر کُس دِ تیر شی یارچه نهٔ وینه زړهٔ ور

دَ زړهٔ غلا په زړه کښے غم ده لا به تیره دَ سردار
هر سردار چه په زړهٔ غل شی ځان رسوا کا خلق خوار

کهٔ نظر وکړم په کانړی سوے زړهٔ به ترے اخراج کړم
تهٔ تر کانړی لا بتر ئے کم دلیله څهٔ علاج کړم

یو صحت بل عقل دواړه تهٔ په دا کښے خوبی غواړه
چه دا دواړه توکه نهٔ وی نوره هره خوبی لاړه

یا هرگز مهٔ کړه له هیچا سره بده کهٔ ئے وکړے نهٔ ترتل وتر ابده
چه دَ چا سره دِ کار دَ نیکئ وکړو نور نیکی ورسره تل بویه سرمده

کۀ هندو دَ مسلمان سره رفيق شی
په دروغ کښې مومنان سره زيست نۀ کا
په رښتيا کښې ئې روزګار په ښۀ طريق شی
چه دروغ ئې مکر سره تحقيق شی

کم دليل په سترګو ړوند شه
باز په کور کښې کښينولے
لکه ړوند وی په دوو سترګو
ګرځی ښکار کاندی په چرګو

ځلبلاند درپسے زۀ يم
خو به ما په مانړی وژنے
کۀ تۀ نۀ ئې ځلبلانده
پلو لرے کَه وُخانده

چه مړۀ دی په وفا کښې
ژوندی چه بے وفا دی
دَ هغو ترګور ځارېږه
تۀ دُعا کړه چه خوارېږه

چه مِ وُليده په سترګو
نه بتر تر شانه بين يم
لکه زۀ ترمِ په بند
نۀ زبون تر ژاله بند

عقل زور صورت ته ښۀ دی
چه له بخته يارى نۀ وى
چه يارى موى له بخته
اور ورُو لګه دَ وخته

شپږ اوۀ مياشتې په هند په خراسان — چرته ونۀ شۀ پرسم په غرۀ باران
دَ اوبو دَ وښو دِ يرکمامت وشو — ځائے په ځائے شول دَ غلے نرخونه ګران
چه باران پرجهان وشو پس له يأسه — فتح الباب وو په تحويل دَ سرطان
دَ اسد تر نوبشتمه ورځ په ورځ شی — په باران سره نهال شو درست جهان
په دا کال چه شاه عالم راغے له هنده — صلح وشوه دَ مغلو دَ افغان
دا سږ کال چه ئے تاريخ رحمت تم دے — په وګړی مُبارک دے په هرشان
يو دا کار هرګوره سخت پکښې پيدا شو — چه هلک پکښې نۀ وينو، شول طوفان

ډیر مومنز دَ خیلخانے هلکان و مړل — داغ دَ زړهٔ دے عبدالله دَ یحیٰی خان

په نیکنام پسے کهٔ زړهٔ دَ رانړئ چوی
دَ بهاګو خاطر خوشحال شو په کامران

ګوښئ ګوښئ خما خان لره بلا شول — چه پیدا دی همګی خما له ځانه

کهٔ پنځوس دی کهٔ شپیته دی داغ دَ زړهٔ دی — یو ځو لا پکښے آفت شول تردا میانه

چه نے ورځ و شپه په ما باندِ یوه کړه — دریغه دریغه جټ و باز و صدر خانه

خو ګردش دَ زمانے سره څرخیږی — زنده سر به پاتے نهٔ شی بے خبر یزانه

چه دِ زهٔ دَ ښو یارانو نه جدا کړم — راته وایه سود دِ کوم وُ شو آسمانه

په یرغ په مصلحت په پیرین نهٔ دهٔ — آسمانی بلا پر یوزی ناګهانه

چه همیش په یوهٔ حال دے هغه خدائے دے — په سری باندِ ورځی ګرانه آسانه

دَ سړیو حال کهٔ تل په یوهٔ شان وے — دَ سلیمان ګوته به نهٔ تله له سلیمانهٔ

دَ دهلئ تخت کهٔ تل په یوهٔ کس وے — تل به نهٔ وو باندِ بے شاهِ جهانه

هیڅ په داخبره ځائے دَ بلے نشته
له فانی جهانه تلل دی له ارمانه

وعالم ته خوشحال زوړ خویه نے خوانان دی — دَ زاړهٔ بلا په سر دَ دے ځوانانو

پلارئے درسته ورځ په ښکار و ژنی آسونه — په پالنګئ کښے ځی په رنګ دَ سنځورانو

کهٔ په شمار په حساب دیر شوته نږدے دی — همه واړه دی په شمار دَ نامردانو

په یوهٔ کښے هومره کار برکت نشته — لکه کار دَ نام ونګ دے دَ خانانو

دا دَ کا نړی کاک خما دَ عابد خان دے — دَ مغل پلاؤ دَ نورو فرزندانو

کهٔ دا هومره ناخلف واړه خلف وے — نن به ما نوبت واههٔ دَ خسروانو

کم ګوتړے دَ لویو سپیو هُنر اخلی — پیروی کا کشران دَ مشرانو

دَ دمړیو دَ کنجکو حساب غواړی — په لیکه په جوکه ځیردی ترهندوانو

په جهان کښے چه محنت دی یا راحت دے — په وار وار واړه ورځی په ملوکانو

کهٔ خزان دے کهٔ بهار دَ هرچا نهٔ دے — دواړه توکه دی دَ باغ دَ صاحبانو

دَ آسمان وګرځیدو ته نندارهٔ دهٔ — ګوندِ وی چه پیره بیا راوړی یارانو

فلیل څوره رانجهٔ نکریزے ورته پیری — مشاطے غوندِ خدمت کا دَ زنا نو
خوئ دَ پلار دَ نیکهٔ هیڅ ورځنه نشته — په خصلت دی همګی دَ پراچګا نو

دَ محنت دَ مشقت دَ تالاش نهٔ دی
دَ راحت دَ فراغت دی دَ ریځا نو

شپږ اُوهٔ پیړئ څما وګورته لاړے — همګی په وینو رنګ په تیغ ورژلی
اشرف خان به یو پړهار په څان واغلی — نهٔ دا نور دَ دهٔ دَ موره چه زوولی
توخلو یښتو کالو تیر شو لا تر اوسه — دوه تیرهٔ اغزی پړے نهٔ دی څرخیدلی
خو دَ پلار په نام ئے خوری چه مشران دی — نور دَ تورے دَ کار نهٔ دی دا غوولی
خو حسد بخل نفاق ئے دے په بخره — کله لو یو لو یو چا رو وته زغلی
اکوړے شهباز په دوئ پورے بدنام شول — دَ پدر په خوئ و بوئ نهٔ دی راغلی
مګر مور دَ دوئ باز رنګه پلار ئے باز وو — په آشیان وو سره دواړه ورغلی
هیڅ تا ودهٔ سارهٔ په ذم په مدح نهٔ دی — دا بے شرم مِ څهٔ لږ نهٔ دی غندلی
دَ پلاؤ دَ دوپیازو دَ نازنعمت دی — دَ چوړے دَ ارګجے دی سپین سپیڅلی
دَ صندوق دَ بخګئ په غم اخته دی — دَ روپئ دَ آدیلے خبر آخلی
روزنامه ئے چه حاصل خاطر نشاط شی — بیا هاله ئے سترګے پټے شی څملی
دَ بکری نه بخری پنځ پیدا کا — دَ بتي بخری نهٔ دی چا لیدلی
حقیقت ورځنه نهٔ تقلید دَ پلار کا — چه تر پلار تر نیکهٔ مونږ یو خوریدلی
نهٔ ئے مټ وی په غلیم نهٔ فیروزی وی — کهٔ زرګونه ورسره وی سوارهٔ پلی
دَ دُنیا په حرص غرق وی سرتر پا یه — په پدر په برادر نهٔ دی ترلی

دَ کلاغ غوندِ غُل خوری څانګونه هسک کا
چه څانګونه مِ دَ غُلو دی ساتلی

زهٔ د غینې دَ لاسه چا وته فریاد کړم — مونځ څماله لاسه ډُځی چه کښ یاد کړم
په درست کال په مځ نا ولی کښ ته پرتو دُم — په حیرت شم چه په یا دهغه فساد کړم
دَ ځوانئ حال مِ نهٔ دی چه مِ ووے — دا خبره دَ پیرئ دَ هفتاد کړم
له پردیو مِ توبه واړه په خپلو — دَ ځوانئ حال به هم درته په یاد کړم

کله لس کله زیات کم کله تر شلو
د دخول وئیل وچاوته تعداد کړم

چې ملا به بانګ نماز وې مابه کښ غو
د روژې په بنۀ ثواب به نۀ نابناد کړم

نۀ په حیض نۀ په نفاس له ماخوک خلاص وو
خۀ د غیږ ناسازې چارې په فریاد کړم

ورځ وشپه راته مخ ښې وې لس پنځلس
کوم مکوه وئیل لر نۀ دی کښې یاد کړم

په ځوانئ کښې م کار لکه د دۀ وو
په پیرئ کښې خدائ خۀ خو آدم زاد کړم

چه م غیږ دا هسې بد دې ګمان مکړه
ځکه خدائ په ډیر اولاد کښې بد اولاد کړم

له ناپاکو نه ناپاک له پاکو پاک وی
زۀ دا نقل دکتاب دخپل اُستاد کړم

که څوک شته چه نۀ د زړۀ په غوږ وآوری
مسخرې مذاق م نۀ دی دا ارشاد کړم

دکشتن دی د زدن دی د تاختن دی
یو ورکزئ بل بنګښ دریم بولاق

د ورکزئ د بنګښ د بولاق نشته
یو انصاف دویم حکمت بل اتفاق

خدائ دِ ورک د پښتنوکا دا درې توکه
یو بدجهل بل بدنیت دریم نفاق

سرداری لره بویه دا درې توکه
یو همت دویم توره دریم اخلاق

خو دا مزکه دا آسمان شته دا به هم وی
یو روزګار دویم وصال دریم فراق

دمغلو حال هیڅ نشته که نۀ وی
یو دولت دویم شوکت دریم وفاق

چه له قومه نا اُمید شوم ځکه زۀ یم
یو بې ملکه بل دلګیر دریم فراق

په بدقام دِ نن ځما له لوریه تل وی
یو نفرین دویم لعنت دریم طلاق

د تیراه په ملک چراغلم دا م بویه
یو ډیر عزم بل ایلاق دریم قشلاق

په صورت په تیراه ناست زړۀ م په یوه دې
یو په ذکر بل په یاد دریم مشتاق

حقیقت د یوسفزی راته معلوم شو
کاروبار به نۀ بنکاره شی په دوه رنګه

یا به کور په کور اخته شی په میرخیو
یا به ملک و مغل ورکاندی بې جنګه

خدائ چه ورک کا بنۀ مړونه په اُولس کښې
پیښنوی هغه اُولس وته بیا ننګه

اوس په درست اُولس کښې بنۀ ملک عبدل دې
که نۀ زر کا خدائ ښره په مرګ بدرنګه

حمزه خان هغه چمند دې په جنګو کښې
وراندِ روستو پرې پرې کا له غورزنګه

دَ طالی ملکی تتـه آئینـه ده!
چه څهره پکښې لیده شی رنګارنګه

طالے چرګه نر ښځے دے په دیدن کښې
لوئے چار خویل لکه دَ چرګ په هویکړنګه

الهداد لکه لګے په جیـفه ګرځی
دَ مردارے بوئے ځی له دواړه چنګه

مصری خان مندړ دَ غاړے ماهی اخلی
سګ لاهو غوندِ ځان ژغوری له نهنګه

مصری خان مندړ پټ شخوندکوی په ورځ کښې
لکه پیغله جل په حیض کښې روژه ړنګه

نوم ئے څهٔ دَ کشرانو په خولهٔ اخلم
چه ئے واړه ملکان وینم بے ننګه

مختصره وینا دا د بازار سپی دی
په ړودیو پسے دړومی څو فرسنګه

بس دا هومره نور څهٔ مهٔ وایه خوشحاله
دَ ختکو لښکر نهٔ لرے ترخنګه

نهٔ حمید شته نهٔ کجے شته نهٔ کاچوشته
څهٔ له نورو سره سر وهے له سنګه

کهٔ دَ سوات په هوا خوښ ئے پکښے ښکار کړه
اوکهٔ نهٔ ورځه تښته په فرسنګه

دَ بی بی په کورنے ووری کټ کاڼړی
چه دَ سوات ځلمی بیلیږی له پالنګه

لس به ملهٔ سره ونهٔ وینے په ننګ کښې
کهٔ درست ملک سره پره کړے ترتور سنګه

دَ اُوموخاورو کَندُو دے
تا زیبا کړه په څورنګه

عجب زرهٔ دِ پکښې کیښو
تا دانا کړه په څو رنګه

دَ ثنا ژبه دِ وکړه
تا ګویا کړه په څو رنګه

معرفت دِ پکښے کیښــو!
تا آشنا کړه په څو رنګه

وخت دَ اورنګ شاه دے
دَ هرچا قسپے په لاس دی

خدائے خپے خبر دے
په اخلاص کهٔ په لباس دی

په هرچا دَ سپینے ږیرے حرمت ډیر دے
خو په جونو قدر نشته دَ سپین ږیری

هرکلی واړه خریدارے دی دَ مشکو
یوه نشته چه کافور په بها پیری

تفاوت دَخپل پردی وربانِدِ نشته
کهٔ ئے گوړے اورنګ زیب بادشاه گمراه دے

مستجاب غریب ئے ووړے په ظلم
دَخوشحال منصب ئے واخست کوم گناه دے

دَمنصب په اخستهٔ خهٔ دلګیر نهٔ شو
دَخوشحال خاطر خوشحال دَخدائے ګواه دے

په منصب پورے خوشحال خټک نوکر وو
چه منصب ورځنے لاړ شهٔ اوس بادشاه دے

اُوهٔ میاشتے دی چه لار دَ کابل بندشوه
حال احوال دَخلائق واړه تباه دے

دا لاځهٔ په هندوستان توره تیارهٔ ده
په هر ځائے دَدهٔ دَخویه بویه آه دے

دَ اورنګ بادشاه په دور آرام نشته
چا وئیل چه جهان ځائے دَ آرام ګاه دے

لکه مخ دپاسه تور سیاه لیدهٔ شی
اندرون ئے هغه هسے تور سیاه دے

کهٔ ونیت وته ئے ګورے یو یزید دے
کهٔ طاعت وته ئے ګورے اهل الله دے

دَدهٔ خیر واړه دهٔ وته بخښلے
خوله شره به ئے ړارکاچه آګاه دے

په بناد ئ سره شریک دی اُولسونه
غم یوازے دَخوشحال خټک دَخان دے

چه پرآن وآن په مزکه په آسمان دے
په غمونو په بنادیو کښے انسان دے

دا یوه خصلت دَخان وینه بلا شوے
چه سرے سره ئے غم په هر زمان دے

دَنامرد دَمرد پردا تفاوت وشهٔ
په نامرد شرم آسان شهٔ په مرد ګران دے

مست هاتیان خونی مزری تورے وکښلی
کهٔ دَ سرتر ویرے تیرشوے کار آسان دے

کشکے تهٔ په ډیر احتیاط همیشه پائے
په احتیاط احتیاط کښے ډیر عالم طوفان دے

کهٔ دَخان کهٔ دَ ایمان بدخواهِ ډیر دی
ما په خدائے باندِ سپارلے خان ایمان دے

ننګیالی چه دَ اخلاص توره ترملا کا
ډیر لښکرے ترهمت پورے کاروان دے

ترآوله ترآخره چه روزګار شته
چه عالم باندِ غوغا کا داجهان دے

اَتهٔ ویشت لرم خویه
نشته یو دَ بل په رنګ

اَشرفِ م لائق خوئے دے
دریغه نهٔ وے په خوئ پرنګ

صدو دَ نور خهٔ نهٔ دے
خوئے غواړی په پالنګ

بهرام هغه خنزیر دے
چه لائق دے دَ تفنګ

خانان هغه شاهین دے — چه ئے سرۀ په وینو چنګ
باز په لاس دَ عظیم کام دے — یا مزرے دے یا پلنګ
نظام ریښمین رومال دے — پورے غوټه موټے بنګ
یحیی خالد دا دوا ړه — بوالعجب لړی فرهنګ
په واړو کښے آزاد دے — هم دَ روغے هم دَ جنګ
بخت ناک هغه ځلمے دے — نشته بل دَ دۀ په رنګ
ما لوجلو دا دوا ړه — ژک ژوندی په مزکه ړنګ

نورغشے آغرین دے
سرا غزے دے یا خدنګ

ځما پلار په ګورے نور شه — یو ربښتینے وو هر ګوره
تل دَ خپل عزت د پاره — تیر تر سروو تیر ترکوره
دَ بادشاه زیاتے ئے نۀ وړۀ — سرئے خلاص نۀ وو له شوره
تل په خیال دَ مرتوب وو — خوچه ورغے تر ګوره
یاګټل یا ئے بخښل وو — چارئے دا وه نۀ وه نوره
خرڅ ئے زر دخل ئے یو شو — تل به خلاص نۀ وو له پوره
بل په غشی کم خطا وو — دَ ښکار مینه وه پرے زوره
چه دَ دۀ خویه نمسی دی — دا خو یونه پکښے ګوره
کۀ دَ خپل بابا په رنګ دی — بنۀ زوولی دی له موره
تراو بۀ ئے حلم زیات وو — تیر په قهر وو تر اوره
بل دَ دین په کار متین وو — له دُنیا نه ئے خوا توره

نارواکۀ بنا پیریٔ وے
پرے ئے نۀ وه دَ تن سیوره

اورنګ چه عدل نۀ کا — ظالمی ئے کړه ښکاره
کۀ خدائے په دا راضی وی — دَ خوشحال تروخۀ چاره

پہ ځوانئ چہ پرهیزګار شي　　دَجنت دَ بڼ طوطا دے
پہ دا وخت کښے چہ لوبر شي　　ندامت ورته زیبا دے
پہ پیرئ کښے چہ بدکار وي　　کۀ ابلیس غواړے هم دا دے
پہ سړي کښے هرهرخوئ شته　　چہ پہ خوګڼه پیدا دے
دَ فرښتو خصلت پکښے دے　　دَ شیطان پکښے ماوا دے
پہ ښۀ خوئ ترفرښتو ښۀ شي　　پہ بدتیر ترشیطان لا دے
دَ فرښتو سره شماره دے　　هغه کس چہ تل پارسا دے
چہ ئے تل دَ بدو خوئ دے　　هغه کس ترشیطان لا دے

کۀ لږ بدکا ندی ډیر ښۀ دے
سرپیتوب باندې روا دے

نۀ دَ سوال پہ هُنر پوهـ یم　　نۀ طالع لرم دَ پیوس
نۀ زاهد دَ شکرانو یم　　نۀ ملایم زکوٰۃ خور
نۀ دهقان نۀ سوداګر یم　　نۀ حرفت لرم ځۀ نور
ځانے ګهی لرم پہ سر کښے　　پہ میراث دَ تُورو شور
وهفتاد وته نژدے شوم　　هر نعمت راځي پہ کور
کۀ پہ کور راشي زرګونه　　هسے دروی لور پہ لور
خپل روش بہ اوس نورنۀ کړم　　کۀ م نور کړ مخ م تور
کۀ ځما ترلاسه راشي　　خزانے دَ درست لاهور
تار پہ تار بہ ئے خورے کړم　　ځان بہ نۀ کړم دَ پیغور

زر دَ نوم دپاره ښۀ دی
هیڅ پہ کار نۀ دی پہ کور

سرلے هرګوره بد ولد دے　　چہ پہ حال ئے شوم خبر
دیرش ځما لس دَ قاضی دی　　واړه یو تر بل بتر
مشران م لا بلا دی　　کشران دی لا لچر
مصطفیٰ وته وګوره　　پہ بهرام وګړه نظر

چه دا هسې څنې زووال — تُو په پلار هم په مادر
زهٔ په خان بانډ سرے یم — کُوټه سپی م شول پسر
قاضی خود لکه غوټکے وو — له غوټکی پیدا شو خر
بښهٔ پټے غنم غنم کا
بد پټے ئے کا جودر

په دا هم لا راضی من یم له آسمانه — نندارهٔ دَ اَباسین له میر کلانه
په تیراه په سوات په خوږ دربه درشوم — بیا م کوم لوری ته تهٔ بیائے آسمانه
لکه ګوټے هسې په حکم دَ چوګان یم
درست وجود پرهار پرهار یم له چوګانه

ښهٔ عزت ښهٔ اعتبار — ښهٔ ئے زیست ښهٔ ئے روزګار
دَ نادان بخره خواری ده — عزت بخره دَ هوښیار
نادان هسې څهٔ ښکاره کا
چه خپل خان کا خوار و زار

کهٔ څما ژبه پښتو ده — په پښتو وایم خبرے
یو پښتون رانهٔ ښکاریږی — چه پرے پوهه شی نزدے لرے
په خوږ والی کښې ئے فرق دے — ښهٔ تر ګوړو دی شکرے
کبینهٔ لری مچیځ — ډُنبکے لری بنبرے
له یوهٔ دریابه خیژی — مرغیچے مرغلرے
تفاوت ئے ترمینځ ډیر دے
په قیمت دی سره لرے

جهانونه څهٔ لږ نهٔ دی — تهٔ ئے نهٔ وینے نادانه
ګوره څودی هسې مزکے — ګوره څو هسې آسمانه
واړه ځائے دی ستا په زړهٔ کښے — اے تر عرش لو یه انسانه
آئینه دَ زړهٔ صیقل کړه — چه ئے وینے اے جانه
کهٔ دِ دا نندارهٔ وشی — جدا نهٔ ئے له سُبحانه

لکه مونږ د رزق مشتاق یو
کۀ صله حرص دِ نۀ وی
هسې رزق زمونږ مشتاق دے
رزق به رسی خدائے رزاق دے

چه فاضل دَ زمانے دی پرے به پوهه شی
دَ خوشحال خټک دا شعر مزه ناک دے
سک مکس خوسک مکس دَے نور به نۀ شی
کۀ هرخوئے اړوے کا واک کا واک دے
په دا شان مرد دَ دِرم دَ دِرم شی
کۀ ئے وکورے په دار تګے بیا کاک دے

کۀ جمال دے کۀ ډیر مال دے
کۀ ډیر علم بنـۀ نسب
دا په هرلوری لږ نۀ دی
هُنرو نه بو العجب
کۀ صفت کړے دَ بنۀ خوئ کړه
په بنۀ خوئ کوه طرب
دَ بنۀ خوئ منصب باقی دے
باقی نۀ دے بل منصب

دوه سرکښ لرم په کور کښے
چه مِ تل لری په تبه
کۀ هرخوئے جلب نیسم
نۀ سهیږی بے مراتبه
دواړه پټ نۀ دی څرګند دی
یو ذکر دے دوئیم ژبه
دا راتب غواړی دَ شعر
هغه کوزه عجائبه

دَ بهرام له حاله څۀ وایم وچا ته
حال دَ خپل خویه بنکاره دَے وبابا ته
هم فضول هم مزوّر هم مذبذب دے
هم یکرنګ وئیل به نۀ کاندی وچا ته
په یوه ذره کښے پاسه پهٔ آسمان شی
په یوه ذره کښے ځی تحت الثریٰ ته
دَ خپل خوئ په ګردا بو نو کښے غوټه خوری
دا عادت به ئے رد نۀ شی ترمماته

په ګنګلو کښے چه ګرځی
په الګه یو کښے چه پرزی
په اغزیو به خوږیږی
په زور په لوړ به پرزی
دیره کا له غور کمانی
په آسمان چه مرغۀ ورزی

وجاهل وته چه واۓ — نیمه به یره دِ شی چاله
واحمق ته چه وئیل کړے — درسته سپینه شی خوشحاله
چه جاهل درته څۀ وائی — جواب ورکړه څما لا له
چه احمق درته وئیل کا — ورته تف کړه بے مقاله
وَجاهل وته اُمید کړه — گوندِ واوړی له افعاله
له احمقه طمع پرے کړه — نور به نۀ شی په سل کاله
جاهل دروهی په تورتم کښے — ځکه چارۓ ده محاله

په احمق باندِ ورځ شپه ده
وبه نۀ ووزی له اشکاله

یوه ښه وینی عورته — خوش صورته خوش سیرته
بل ښۀ آس بله ښه تُوره — بله زغره پُر قیمته
په دا جهان کښے دا پکاردی — نور همه وهه په لته
کۀ تر دا پاتے څۀ نورشته — نشته بے له ښۀ نګهته

چه بهتر تر دا همه دے
نشته بے له عبادته

چه زر لری په کور کښے — هاله شی ښه سرداری
دوستی ۓ بده چار ده — بده نۀ ده زر داری

دَ بنګش په تُوره مات نۀ یم باور کړه — دَ ګنبت په جنګ م ماتی آسمانی ده
نۀ بنګش وو نۀ ۓ تُوره نۀ ۓ زور وو — دَ موشکو دَ سینیو شیطانی ده
چه وغرۀ وتړۓ تیښت وکړه بے جنګه — دَ ځینی تنبه له ځایه نقصانی ده
چه م ښۀ سوارۀ دَ ځان دَ وړاندِ نکړل — هم په دا سبب را پیښه پښیمانی ده
چه م تول دَ وړاندِ نۀ تلل په جلب کښے — همګی دَ حسن خیلو نادانی ده
سل رحمت دَ مهمندیو په تنبه شه — چه دَ دیو چار له ماسره جانی ده
بر تویو تُورے لروند په وهل کړے — په مردئ دَ هر یوۀ جانفشانی ده

چه په تُوره ئې شیرخان پریوست لا آسه
چه سردار دَ بنګش پریوت ختک مات شهٔ
عابدخان چه په مردئ راغې له جنګه
پروکی پروکی ئې دَ سرشالونه لاړل
لاس په لاس ئې انتقام دَ بابا واخست
چه ئې جنګ په میدان کړو یو خوسوارهٔ وُو
دَختکو په سورو باندِ لعنت شه
چه اول ماتی ئې کړه په سورو کړه
بنهٔ ځوانان چه دَ ګنبت په میدان وُمړل
همګی ځوانان ځما دَ زړهٔ ارمان دی
دَ غلیم سره په آس غاړه غړئ شو
ما داهسې جنګ هرګز لیدلے نهٔ وُو
ځوانان جنګ تمام ورځ کا نهٔ ما تیږی
نهٔ په طمع په اُمید نهٔ شرم ترس وو
یا لبنکر دَ نام وننګ وی یا دَ زرو
همګی په یوهٔ سیر راسره تول وو
چه نهٔ دین وی نهٔ دُنیا جنګونه څوک کا
چه په خواست و په ضرور سره تولیږی
چه م داځله غلیم له ډکے خلاص شو
لکه ځاړے چه وَباز وته ځان څیر کا
کهٔ زهٔ روغ په ځانئے ولاړ وَغلیم څهٔ وو
کهٔ طالع م په طاهر مدد ونهٔ کړ
زهٔ دَ عمر دَ بنادئ دواړه اُمید کړم
داځهٔ مرهٔ ځما ځوانان نهٔ دئ په جنګ کښې
کهٔ م خپل کهٔ م دشمن مری په دا کار کښې

په میدان دَ عابدخان پهلوانی وه
په داهسې رنګے چارے حیرانی وه
وخپل پلار وته ئې بنه ارمغانی وه
په سرو وینوئې چهره ارغوانی وه
په دا کار باندِ سزا ثنا خوانی وه
نور دَ وارو بخره تیښت تن آسانی وه
په یوه جاوئې تیښته ځان ځانی وه
په سورو کښې چار دَجت دَ عثمانی وه
دَ هر ځوان په زړهٔ کښې ننګه افغانی وه
پکښې بیله دَ عبدل تانده ځوانی وه
دَ عبدل دَ مړنتوت بخره کانی وه
څوم عمر څو ختک څوم خانی وه
په یوه لحظه لمحه ماتی آنی وه
دَ لبنکر م سررشته الّمانی وه
ځما دا تولهٔ دَ ننګ نهٔ وه نانی وه
په یوهٔ ساعت ئې ځکه پریشانی وه
مګر سهله جانبازی جانستانی وه
دَ هغو لبنکرو کله ودانی وه
پړے یکباره دَ فلک مهربانی وه
هغه هسې دَ فلک پر افشانی وه
دَ پرهار په کار م درسته ویرانی وه
توجه ئې په ما ډیره نهانی وه
دَ غلیم کهٔ م څو ورځې بنادمانی وه
داځما دَ ننګ په کار کښې مهمانی وه
په هر توکی م حاصله کامرانی وه

مخالف م په دا کار کښې پاتې نهٔ شو
چه فاسده اندېښنه ئې وجداني وه

سل خلوېښت ځوانان م قتل په میدان شول
دَ اختر په عرفه کښې قرباني وه

دَ هجرت دَ کال غفو (۱۰۸۶) وو په حساب کښې
په غرهٔ واوره وریدله نساني وه

چه بې زخمه له میدانه ځي نامردي
زهٔ زخمي لاړم دَ ځان نګهباني وه

یوه تېښته نامردي بله مردي وي
ودانا وته دا دواړه عیاني وه

انتقام وَته م تېښت وو له میدانه
نهٔ م یاده دَ دُنیا زندګاني وه

تل خوني مزري هم جنګ کا هم ځان زغوري
دَ مزري دَ تېښته څهٔ بدګماني وه

پیغمبرؐ چه له کافرو نه فرار کړ
وکافر ته ئې په زړهٔ کښې تیغ راني وه

کهٔ ظفر کهٔ هزیمت بیا م میدان دے
چه دَ پلار نیکهٔ م بخره میداني وه

کهٔ ژوندے په دُنیا پایم خود به ګورے
چه په تیغ م څهٔ ورانی څهٔ وداني وه

دَ خوشحال اختیار تر واړه بنګش تیر دے
کهٔ بنه ننګ دَ ختک دَ کرلاني وه

یا سردار لره خپل عقل
یا وزیر صاحب تدبیر

کهٔ هرخوئے عقل ډېر وي
بیا هم بویه بنهٔ وزیر

کهٔ دا نهٔ وي نهٔ هغه وي
په ژوندون ئې بویه ډیر

بنهٔ سردار لره دوه کاره
دایم بویه په ضمیر

یو دِ هسې رنګ بخشش کا
چه پکښې نهٔ وي تبذیر

چه بې ځا یه تربیت شي
دَ تبذیر لري نذیر

دَ تازي دِ تربیت کا
په کوته دِ نهٔ شي خیر

باز دَ چرګ چرګ دَ دانو دے
بنهٔ دِ بوهـ شي په دا خیر

بل چه ننګ ته تیاري کا
په دشمن دِ شي خبیر

کهٔ لښکرئے یکانه وي
بیا دِ کا دَ جنګ تدبیر

کله جنګ وته هوس کا
چه آشتي مومي بشیر

کهٔ په صلح کښې روزګار شي
څهٔ حاجت دَ تیغ و تیر

په دُنیا دِ سرشندل شي
یا چه حکم وي دَ پیر

یاچه کار دَ ناموس پیښ شي  هورته هم نهٔ شي تقصیر
کهٔ نهٔ څوک نیسي ځان تیغ ته  نهٔ شلغم دے نهٔ پنیر
چه نیولے په عقرب کښې  نوے باز وي بے نظیر
یا وه میرشکارۓ مړ کا
وائي مړ شو په تقدیر

چه لاف وهي دَ شعر  نن په دا دور دي ډیر
خدائے دِ نهٔ کا چه به وایم  حال دَ دویو تیرو بیر
څوک پا وے څوک نیم پا وے دے  قلندر پکښې نیم سیر
زمونږه په حساب دے  هیڅ م نهٔ دے واصل هیر
بل دولت فقیر درے پاوه  زهٔ ترے څوسرشاهي تیر
چه په سرائے کښې به پیدا شي
پس له قرنه پُوره سیر

په داهومره قباحت اشرف عاق نشو  چه بهرام داهسے عاق شوځهٔ حکمت دٔے
چه وعقل ته دَ دواړو نظر وکړے  پروت دَ دواړو په وجود کښې حماقت دٔے
دَ بهرام تیرے په دادے په بدئ کښې  چه لړلے دَ دُنیا په محبت دے
خدائے دِ داعلت نصیب دَ هیچا نهٔ کا  دَ دُنیا محبت سر دَ هر علت دے
لکه نیت دَ بهرام ځهٔ وو هسے وشو  دَ سړي دَ چارے کل مدار په نیت دٔے
په داهسے وخت چه دور دَ فساد دے  پلار ناحقه دَ فرزند په تربیت دے
چه خپل پلار شړي په تُورو په لښکرو  په داهسے ځویو سل ځله لعنت دے
کهٔ څوک شته چه په داچارو نظر وکا  ځائے دَ پند دَ نصیحت ځلۓ دَ عبرت دے
ځوۓ له پلاره نه ویزار شي پلار له ځویه
قباحت دے قباحت دے

چه م بنهٔ په زړهٔ کښې فهم فکر وکړ  احمقان راته ښکاره شول په خویونو
یو هغه سړے احمق بللے بویه  چه باور کا دَ غلیم په سوګندونو
بل هغه سړے احمق بللے بویه  چه پاړ وشي دَ لړمو دَ مارونو

بل هغه سړے احمق بللے بویه — چه په سپینه ږیره خیال کاندی د ځونو
بل هغه سړے احمق بللے بویه — چه د ښځو سره پاسی په جنګونو
بل هغه سړے احمق بللے بویه — چه د خسرکوه به اوسی په کالونو
بل هغه سړے احمق بللے بویه — چه ویښته به تورَوی په خضابونو
بل هغه سړے احمق بللے بویه — چه بزرګانو سره خیر شی په جنګونو
بل هغه سړے احمق بللے بویه — چه یک لخت به اعتبار کا په توبرونو
بل هغه سړے احمق بللے بویه — چه په هرطبیب داروکا د رنځونو
بل هغه سړے احمق بللے بویه — چه به بے تُورے دعوی کا د ملکونو
بل هغه سړے احمق بللے بویه — چه به جنګ وته پریکړے ځی ترملونو
بل هغه سړے احمق بللے بویه — چه لوئی کا په لباس په کسوتونو
بل هغه سړے احمق بللے بویه — چه به دے غواړی لوئی په نسبونو
بل هغه سړے احمق بللے بویه — چه د تیښتو ګمان ورک کړه له مړیونو
بل هغه سړے احمق بللے بویه — چه به مال د دُنیا نهٔ خوری په کورونو
بل هغه سړے احمق بللے بویه — چه بد خواه سړے به پریږدی په رویونو
بل هغه سړے احمق بللے بویه — چه بے ځایه زغلول کا د اسونو
بل هغه سړے احمق بللے بویه — چه پیران به کښینوی په ځپلو خونو
بل هغه سړے احمق بللے بویه — چه بیحده تکلف کا په ځانونو
بل هغه سړے احمق بللے بویه — چه خبرےکا په سترکو په لاسونو
بل هغه سړے احمق بللے بویه — چه به لوړی د سړیو په سرونو
بل هغه سړے احمق بللے بویه — چه د غوښتو کر به کاندی په ډاګونو
بل هغه سړے احمق بللے بویه — چه به سُود او سودا کاندی د بانړونو
بل هغه سړے احمق بللے بویه — چه بربنډه کونه لامبی په سیندونو

بل هغه سړے احمق بللے بُویه!
چه غوږ نهٔ کا د خوشحال په دا حرفونو

پریږده کورا و ودانیه راته څهٔ ستا ئے تهٔ ښځه
سر دَ هغې ښے ښځے ورو وورکړئ په تربشځه

نیک وبد به هرڅوک فکر کا دَ خپلے چارے
فهم کړه خوشحاله کهٔ څوک بد درومی تهٔ ښهٔ څه

کهٔ په مینه دَ صدیقؓ ولاړ صادق یم — هسے ما کښېږه په مهر دَ عمرؓ
په عثمان باندِ به څهٔ وایم چه څو یم — په هزار رنګه مئین یم په حیدرؓ
محبت دَ خاندان لرم په زړهٔ کښے — دولس واړه امامان م دی بصر
پاکیزه سنی مذهب یم نورڅهٔ نهٔ یم — چه م نور څهٔ کښېږی خاورے ے پهٔ سر
رافضی خارجی دواړه توکه ښهٔ دی — دَ یوهٔ سترګے په شیخ دَ بل څئیګر

زهٔ خوشحال چاریاری یم خوښ له خدایه
چه سنی راغلم په دین دَ پیغمبرؐ

په ژړا ژړا سیلاب دَے یا دریاب دے — قرارے مهٔ کړه یودم ځانے دَ ژړا وو
ستر ګو تاسو پهِ شماره څاڅکی راتوئے کړهٔ — دَ نظام دَ آشنایئ درد خو دا وو
دَ اورنګ په تفرقه کښے چه غوغا وه — په ارمان ومړ له پلاره نهٔ جدا وو
خدایه وبخښے نظام ځانے جنت کړے — کهٔ دَ پلار په رضا شی ځنے رضا وو

په دریمه خور کښے ومړ کال عفو وو
شپږ ویشت کاله ے دَ عمر وو برنا وو

په بناس ندئ چه راغلم — په نظر راغلهٔ سارس
په بل لوری م نظر کړ — راته ژغ وکړ طاوس
وے ے غم ښادی خوشحاله — دواړه توکه دی تس پس
پرون ورځ دِ مخ په کړ وو — نن دِ بیا په خپل اولس

حکایت شو ځنے پاتے
نهٔ ماهی شته نهٔ یونس

آفرین دَے په انصاف دَ عالمګیر — چه په دا هنر کښے نهٔ لری نظیر
نهٔ په غلهٔ نهٔ په رهزن نهٔ په پاسبان دَے — خوک دِ وی چه ے کښیوزی په زنځیر

موږ زادي کم عقل هيڅ نهٔ هوښيارېږي کهٔ په يا د لولې خلور واړه کتابه
کهٔ هزار زمئ صابون ورباندِ مږے دَ توروالي رنګ به نهٔ ځي له غرابه
لکه رنګ چه دَ چا ښهٔ شي دَ چا بد شي
عقل هم هسے عطا ده له وهابه

يو تازه دولت موندلے بل ځواني درېم شراب
چه دا هسے کس حاکم شي عالمونه کا خراب
بهتر سړے هغه دے چه ئے هيڅ نهٔ کا جواب
چه خلاص کړے خدائے لربنده اوس خوشحاله ځهٔ شتاب
اعدادِ شرمنده شوه لوئے کرم وکړو وهاب
اشرف دِ په ځائے کښيناست خدائے تل لره کامياب
تهٔ ناست ئے په اګره کښے دا هم بويه په حساب
کړته کوځه يو څو ورځے سير ځهٔ وُکا شهاب
خودا درے دي بله نشته اوس آخر دے پيچ و تاب
يا خواه ناخواه منصب دے يا يو ګُنج په لاس کتاب
يا ژغ دَ سپينے تُورے
کوهستان مرجع مآب

دوه پرهاره ښهٔ دي پرے لوئي دَ مردو زن
يو پرهار غيږ بل پرهار دَ غاښ په مخ
زهٔ خو وايم بند شوم اوس نهٔ داشته نهٔ هغه
چه دواړه ورته جوړ وي دَ هغو ځلميو سخ
چه له خلقه لرے ګُوزے وخالق ته نزدے کيږي
زړهٔ له واړو خلقو پريکړه
ايمان دا دے کهٔ پوهيږے

پس له بنده دِ دا عزم دَ خوشحال دَ خاطر جزم
يا نيولے مخ مکے ته يا مغلو سره رزم

یا یو کُنج دَ غرۂ نیولے
نموںځ روژه دَ لوستو بزم

مولانا عبد الحکیم    دَ دُنیا دَ دین حکیم
دَ جوګیانو وګروه ته    په تعظیم وو به تسلیم
چا انکار ورباندِ وکړ    وے نے هیڅ نۀ یم فهیم

دَ هرچا سره سلوک کړه
دا صراط دے مستقیم

چا په وخت دَځنکدن وے محنون ته    وخت آخر دے په زړه یا دلره خپل خدائے

ده وے زړۀ م دَ لیلی په یاد ډک دے
پکښے نشته دے دَ نورو یادو ځائے

تۀ لا اوس دَ الف بے سبق آخلے    تکی هم په دروغژنو غشیو وُلے

بے هوده لافے دَ کنز دَ قدوری کړے
په ناحقه دَګا وزو په ښکار ښغلے

کۀ دِ مکر مکارت شته    خود به وینے خپل حال
راښکاره دی ستا مکرونه    راڅرګند دے ستا تیتهال

تۀ ګرم نۀ ئے په سیرونو
زۀ ګرم نۀ یم په مشقال

کۀ ښے دی خو فرښتے دی    چه نس نۀ لری خوشحاله
هرچه نس ئے وچا ورکړ    خلاص به نۀ وی له جنجاله
چه هرڅوک سره ویزار کا    دا دُنیا ده بے مآله
کۀ پخوا تر دا اخلاص وو    اوس څۀ نشته بے تیتاله
قیامت را نزدے کیږی    بد ترینه کال تر کاله
باور هیڅ نشته په څو یه    وایم څۀ دَ بل له حاله
چه په خولۀ کلمه لولی    زړۀ ئے درست په قهر ځاله
چه احوال دَ خلقو دا دے    ولے نۀ پاسے دجاله

يا خو تلے له خلقو تښے يا څۀ نۀ کړے بے قتاله

کۀ شيخان کۀ عالمان دی

نور څۀ نۀ دی بے له قاله

نن مِ وکړه له اُستاده نه ښو سوال سرفرازئے په جواب کړم دهر سوال

وے مِ څوک دے چه هميش په يوۀ حال دے وے ئے تل په يوۀ حال دے ذوالجلال

وے مِ څوک دے چه هميش په بل بل حال دے وے ئے خوار بنی آدم لری دا حال

وے ئے سرد فراغت دی دا درے څيزه تندرستی او ايمنی دَ دُنيا مال:

وے مِ کوم سړے لائق دے دَ يارئ وے ئے هرچه دروغ نۀ لری تيتپال

وے مِ څوان دِ په څوانئ کښے کومه چار کا وے ئے هرزمان دَ علم اشتغال

وے مِ زوړ دِ په زوړوالی کښے کوم کار کا وے ئے جور دِ کاله علمه خپل اعمال

وے مِ کوم سړے به تل وی په حرمت کښے وے ئے هرچه له چا نۀ کا ندی هيڅ سوال

وے مِ طمع قطع نۀ بويه له چا نه وے ئے هرچه ښه ئے اصل ښۀ خصال

وے مِ څۀ دی دَ دُنيا دا ښه ښے چارے وے ئے واړه افسانے دی خواب وخيال

وے مِ کوم بحث وجدل دے چه تل ښۀ وی وے ئے دا دَ علم بحث دے جدال

وے مِ کوم رښتيا چه ووائی پرے سپک وی وے ئے خپل هُنر چه وائی دم درحال

وے مِ کوم يو بے نوا بللے بويه وے ئے هرچه ئے په غاړه ډير عيال

وے مِ کوم سړے نيک بخت بللے بويه وے ئے هرچه سخاوت کا په اموال

وے مِ کوم سړے لائق دے دَ ستائنے وے ئے هرچه په بخښلو شی خوشحال

وے مِ خلاص به شم په څۀ له بده يا ره وے ئے تل څنے پو ښتنه کا کړه دَ مال

وے مِ ډار او ترس له کومه شخصه بويه وے ئے هرچه ورته يو حرام حلال

وے مِ څۀ څيزونه ګران په مرد ترځان دی وے ئے دين او بل دانش دے دَ رجال

وے مِ څۀ دی چه دانش پرے ضائع کيږی وے ئے لاف دَ دروغو قيل و قال

وے مِ لاف هوډ په څۀ ترسره کيږی وے ئے زر بويه څوانان بويه قتال

وے مِ څۀ دے چه نشان دَ څوان مردئ دے وے ئے عفوه په هنګام دَ استقلال

وے مِ څۀ رنګه به والوزم آسمان ته وے ئے دا شی دَ همت په پروبال

وے م کومه چار بهتره تر هر څۀ دہ — وے ئے هر چه نیک عمل کړے نیک افعال
وے م څۀ کړم چه محتاج دَ طبیب نشم — وے ئے لږ خوره لږ دخول کړه لږ مقال
وے م څۀ کړم چه هر څوک په ما مئین شی — وے ئے مۀ وایه دروغ مۀ کړه جنجال
وے م چا سره تدبیر کوم په کار کښے — وے ئے هر چه رسیدلے تر کمال
وے م چا سره یاری دَ کړلو نۀ دہ — وے ئے هر چه ابلهان دی غیر سال
وے م کوم سړے دشمن بللے بویه — وے ئے هر چه په ښادئ دِ شی ملال
وے م چا سره خویښی دوستی دَ کړو دہ — وے ئے هر چه ترتا کوز لری احوال
وے م کوم سړے مؤمن بللے بویه — وے چه هر چه راضی نۀ وی په وبال
وے م کومه چار جنت دہ په دُنیا کښے — وے ئے ښځه چه هم ئے خوئ وی هم جمال

وے م څۀ دی دَ خوشحال خټک خبرے
وے ئے واړه دُر ګوهر دی عقیق لال

کۀ بد ګناه څوک وکا — تۀ ګناه ورته معاف کړے
نشان دَ مردئ دا دے — چه زړۀ درست ورسره صاف کړے
کۀ بیا دِ په زړۀ بد وی
نور ناحق دَ مردئ لاف کړے

یا زۀ څۀ لیونے شوم — یا دَ خلقو روش نور شو
څوانمرد په څوانمردئ کښے
دَ هر چا دَ سترګو تور شو

زر په بده ورځ پکار وی — هوښیار خکه ساتی زر
دَ زردار بلا په زرو — دَ نادار بلا په سر
چه سپړوی ګذار په سپر شی
چه سپر نۀ وی لاس شی سپر

په بهار کښے رنګارنګ تاروګی ګموره — چه په ګلو را پیدا شی لور دَ لوره
خود بخود له یوۀ لوریه را پیدا شی — نۀ اثر دَ دوئ له پلاره نۀ له موره
چه دا هسے رنګه حال په سترګو وینے — په دویم ژوندون څۀ شک کړے خما روره

داڅوځیزه که ونهٔ خوری هم خر بیبری پرسری
چه بنهٔ جمال ته ګوری بل دا نا سره نا ستے
بنهٔ بوئ جامے مهینے
چه دَجنګ راوړی برے

سرود هورته دے روا چه نهٔ غاؤ وی نهٔ غوغا
سامعان ئے صاحب دل وی نهٔ ئے نفس وی نهٔ هوا
اوکهٔ نهٔ دا هسے نهٔ وی
آورېدل ئے دی خطا

دَ شرعے حکم دوه دی یو جواز دے بل افضل
کهٔ مردئے له جوازه و افضل ته وهه زغل
کهٔ دواړه سره نهٔ وی
سړے نهٔ ئے تهٔ بیتل

راشه وغړوه سترګے دَجهان ننداره ګوره
چه بنا شت لری په ستوریو دَ آسمان ننداره ګوره
دَدےخپل وجود په باغ کښے په هر شان ننداره ګوره
چه هر ګل وته نظر کړے
دَ باغوان ننداره ګوره

ما دَخپل بابا هډونه په مړو پټ کړهٔ په هرهډ به ئے شل شل وی ما غوښتلی
کهٔ دَ چاله لاسه ومړم ګمان مهٔ کړه چه بهرام سدو به روغ کا دَچا خلی
چه نهٔ ننګ نهٔ ئے غیرت په دا حیرانت شوم چه خدائے ځهٔ لره پیدا کړهٔ دا غوولی
چه حیات په دُنیا ګرځی هم اموات دی
دَ ژوندیو له مړهٔ لږ نهٔ دی زوولی

په خویونو کښے ډیر فرق دے کهٔ سړے پرے خبردار شی
ځنے هسے خوئ آغاز کا چه خپل هم ځنے ویزار شی
ځنے هسے خوئ آغاز کا چه پردی ئے خدمتګار شی

کۀ څوک خپل خصلت د ښو کا
ترسرو زرو به روښيدار شي
خپل شاګرد وَته طبيب دا نصيحت کړ رنګ ئے ګوره چه رنځور د دارو خوړي
دَ هغه رنځور دارو کړه چه رغيږي
دَ هغه رنځور دارو مۀ کړه چه مري

چا ته سهل نظر مۀ کړه پـه هرسر کښے سِر دَ خدائے شته
دَ مزری څخه کۀ زور دے دَ لومبړے څخه رائے شسته
زيرکی دَ کارغـۀ ګـوره کروفر کۀ دَ همائے شـته
هيڅ مکان ترے خالی نۀ دے
په هرلوری کتخدائے شته

دَ هرچا دَ زړۀ مرهم شـه کۀ نيکان دی کۀ بدان
خپل عمل وته ئے پريږده
تۀ به څۀ کړے تردا ميان

خوچه خولۀ کا سره وازه حال دَ دواړوشی څرګند
کۀ جاهل دَ کوهستان دے کۀ دَ ښهر دانش مند
په وئيل کښے يو پريشان څی بل وئيل کا بند په بند
دَ جاهل وئيل خوند نۀ کا دَ دانا وئيل کا خوند
دَ جاهل وئيل سرکه دی دَ دانا وئيل دی قند
خاموشی ورلره سُود ده
کۀ جاهل م مخی پند

په باران چه ودانی دَ درست عالم ده په باران سره کۀ خونه دَ چا خاځی
دَ باران په وريدلو راضی نۀ وی کۀ دا نورعالم همه په باران ياځی
په هرڅۀ کښے دَ سری دا خپل غرض دے
چه په زړۀ کښے ئے جنبش دَ زړۀ راپاڅی

خبردار شه په ابدالو — کهٔ په ویښ دی کهٔ په ناست دی
په حواس ئې زیست روزګار دے
ترحواس وتلی ناست دی

بے تاواړه ودانئ دی ویرانئ — دریغه دریغه بیا به رانشے ځوانئ
په پیرئ کښے فکرونه اندیښنے دی
چرته لاړے دَ ځوانئ نادانئ

یوه بیره دویم قهر — په سرِی پریباسی قهر
کهٔ څوک داخوبونه ورک کا — تل به خوښ اوسی په دهر
دا هرچا لره بلا دی
لا ملوک لره دی زهر

اندیښنه کهٔ په غرهٔ کښیږدے — غر به هم لکه ویښتهٔ کا
خوار سړے ملامت نهٔ دے
کهٔ په غم کښے ځان اوبهٔ کا

دَ ملک اوَ دَ دولت خښتن خطا کا — چه په مخ نیسی په خمر په خمار
چه خدائے په چا دَ چا حکم روان کا — څهٔ آسان وسهل نهٔ دے دغه کار
کهٔ یوه پښه دَ کوډماته شی په لار کښے
خدائے به دے پوښتی په ورځے دَ شمار

وهغهٔ وته په قهر نصیحت کړه — چه په نوم نوی پندو نهٔ بندیږی
چه څپله سرو ملونی وَته اوږد کا
هغه آس م کله بند په کمند کیږی

هر څوک دِ خپل یون کا — کهٔ کارغهٔ دے کهٔ کوتره
څوک چه خپل هنر بدل کا — خپله چار کاندی اوتره

بسهٔ دهٔ دا خبره — کهٔ ئے پند کړے دَ خوشحال
داد په خرواړو کړه — حساب وکړه په مثقال

په هرچا کښې عقل قاضي کړه        ورځنې غواړه روایتونه
دَ هرې چارې چه فتوی درکا
ترخولهٔ وباسه هغه حرفونه

غلوېښت کاله کښې چینې شي        پرې شندلې شي سرې سپینې
کودی منګی په ورځې سل شي
خو دې قدرقیمت وینې

خوشحال خټک کهٔ زوړ شو        عیب ئې کوم دې ګیدی خرو
دَ آسمان په دَور نوړی        بوئی دَ مشکو دَ عنبرو
چه د پیر کاله پرې تیر شي        بوی لا ښهٔ شي دَ اګرو
چا پرې ګوته ایښې نهٔ ده        دَ نورو والي په ګوهرو
په هر بازار چه ورشي
قدر نهٔ څې دَ سرو زرو

دَ سیالانو په جرګه دِ ناستې نهٔ کا        چه له سیاله نه ئې نهٔ دَ خپل ګټلې
چه ونهٔ وهي په دوارو لاسو توره        چا ملکونه په میراث نهٔ دي موندلې
چه ترسرو ترمال تیرنهٔ شي په عشق کښې
څوک دَ جونو په پالنګ نهٔ دي ختلې

چه دَ بل قاضي مفتي دَ کتاب نهٔ دې        دَ خوشحال سبق له چا دې له منصورهٔ
په سولئې کښېنوهٔ په اورئې سیزه
انا الحق وینا به نهٔ شي ځنې دُوره

دَ جهان په حال اول خبردار نهٔ وُم        دایم اوس په سینه زیره خبردار شوم
چه هرچا به راته لاف دَ یارئ کړې        په اخلاص به تر هغه سرې ځار ځار شوم
چه مې ولیدل چه واړه دَ خپل زړهٔ دي        دَ هغه واړه جهان نه ویزار شوم
چه مې یار دې یا قلم دې یا کتاب دې        اوس له دې یارئ پاتې په ابصار شوم
دَ بازو نو ښکار مې هم دمه دَ زړهٔ وه        دَ نظر په کمی کم دَ باز په ښکار شوم
په طاعت په عبادت کهٔ څهٔ حاصل وي        شکر دا چه وطاعت وته وزګار شوم

زهٔ خوشحال ختک حیران یم نهٔ پوهیږم — چه دَ چرخ دَ لاسه څهٔ وم په څهٔ شمار شوم

پو ستم دا ورنګ زیب بله پیری شوه — په دا دوه توکه دا هسې خوار و زار شوم

کهٔ دَ ځوېوم لښکر دے هیچکاره دی

لا دَ دوئ له غمه هسې تار په تار شوم

تر هغهٔ نه به بل بد په جهان نهٔ وی — چه تهٔ راز دَ زړهٔ ورهٔ ته کړے آغاز

دے دستا په کمی پاسی ستا بدخواه ته — یکا یک واړه بیان کا هغه ساز

په قیامت به چه جزا دَ دخپل عمل وی

دواړه لوړیه به مخ تور وی دَ غماز

په هر کار کښې مصلحت شته — کهٔ دَ سترګو اړول وی

نادان پرے نهٔ پوهیږی — پرے پوهیږی چه عاقل وی

هرچه کار په مصلحت کا — هغه هر کله خوش دل وی

کار چه کا بے مصلحته — په غمونو کښې بنخ تل وی

فرض واجب سنت شته نفل — مراتب ته ئے کتل وی

دَ دین کار په سرشته دے — چه به وحی پرے نازل وی

هسې کار دَ دُنیا هم دے — چه په عقل ئے موندل وی

چه ئے عقل پوهه نهٔ وی — دَ هغو چارے باطل وی

یا دَ نفس په هوا دروی — یا ګمراه ګرځی جاهل وی

راته څهٔ وائے خوشحاله

دا دِ چا وته ویل دی

تر مشرقه تر مغربه — درست جهان واړه خبر دے

زیست روزګار دَ واړو خلقو — چه راوخیژی په نمر دے

ښاپیرک ورځے تښتی — دَ نمر کوم خلل خطر دے

ړوندے نهٔ وینی په سترګو

وینی نمر چه سترګه ور دے

چه مغل وته م وتړله تُوره
درست پښتون م وعالم وته بنکاره کړ
خټک کله په شماره په حساب یاد وو
خټک ما دَ اُولسونو په شماره کړ
اتفاق په پښتانه کښې پیدا نهٔ شو
ګنړه ما به دَ مغل ګریوان پاره کړ
څهٔ په عقل په تدبیر په تُوره نهٔ دہ
حواله م مرشدکار په ستاره کړ
خپل تدبیر تُوره م کښیښوه په کندُو کښې
دا دے خان م له عالمه کناره کړ
اوس م نور غمونه نشته غم م دا دے
چه اولاد م خدائے دا هسے هیڅکاره کړ
سره یو تربل اخته دی په خپل کور کښې
په نفاق ئے غم وماته اِجاره کړ
دَ مغل په منصبونو غوسه ګرځی
یکباره ئے مخ په نفس اَماره کړ
ما دولت ورته ګټلے وو په تُوره
دا څما دَ تُورے نقش ئے آواره کړ
خودَ خدائے فضل وکرم وته اُمید دے
ګنړه حال م دَ څامنو نندارہ کړ

په منصب چه غلول نهٔ کا نور به څهٔ کا
مغل خدائے وپښتنو ته بیچاره کړ

بنا نشته عالم خانه دہ
پرے تکه ئے واړه ستا دی
ورته ګوری حیرانیږی
چه دَ چا سترګے بینا دی
په هغهٔ م رحم کیږی
چه هیڅ نهٔ وینی اعما دی

چه وماته نصیحت کړی چه زر بنهٔ دے
تولول به کا دَ زرو چه خبر دے
چه په کور کښې خزانے لری دَ زرو
هغه کس چه یک تنها دے زورور دے
هر بادشاه چه خزانه ورځنه نهٔ وی
عاقبت ورځنه تار به تار لښکر دے
هر سړے چه به نام لوئے په دولت کم وی
په معنیٰ بد رنګه ښځه سپین خادر دے
په مثال ئے دَ هغه مرغئ مثال کړه
چه سینه ئے کشاده تن ئے لاغر دے
ګوره ما دَ هغهٔ څهٔ رنګ جواب ورکړ
چه به پوهـ شی هر سړے چه دانشور دے
ما وے مرد لره خو نام بویه نادانه
نهٔ دَ زرو تولول چه بد هنر دے
کهٔ هندو ځنے انبار انبار مُهران وی
په مُهرانو به بنهٔ نهٔ شی مختصر دے
کهٔ په خرهٔ باندِ دَ زرو صندوق بار کړے
خر به هیڅ په دا بنهٔ نهٔ شی خر خر دے

چه هُنرئے دَ لویئ ونیو په لاس کښې
دَ هغهٔ وجود پارس شو واړه زر دے

یوَ بله زده کوی دَ دُنیا دود دے — چه شاګرد نشی اُستاد نهٔ شی سړے
زبونی به ئے په دین کښې پیدانهٔ شی — کهٔ زبون په اعتقاد نهٔ شی سړے
خواست دُعا په آسانئ کله قبلیږی — دَ تقوٰی په کار خوراد نهٔ شی سړے
دَ زحمت علاج ئے کله طبیبان کا — څو په آه و په فریاد نهٔ شی سړے
کهٔ لږ خوری لږے خبرے لږ دخول کا — په زحمت به هرګز یاد نهٔ شی سړے
کهٔ ئے زړهٔ نهٔ دے په خپلے رسوایئ — راضی من دِ په فساد نهٔ شی سړے
زمانه به ئے دَ باد په ستنه نهٔ کا — کهٔ شنا زغوندِ پُرباد نهٔ شی سړے
په خالی ونیل به نهٔ آدم زاد کیږی — په عمل چه آدم زاد نهٔ شی سړے
کهٔ په عمر صد ساله شی لا آدم دے — چه سیّاح دَ هر بلاد نهٔ شی سړے
په اولاد کښې ئے اثر دَ اصل وشی — دَ بد اصلو دِ داماد نهٔ شی سړے
لکه بنهٔ غنم چه وکرے جودر شی — په دُنیا دِ بد اولاد نهٔ شی سړے
دَ روزئ به ئے هیڅ حلاوت نهٔ وی — چه وَ رور ته په سداد نهٔ شی سړے
چه مدد ئے آسمانی نهٔ وی له بخته — لوئے په اصل په اجداد نهٔ شی سړے
بیدادی به دَ هیچا باندِ ونهٔ شی — په خپل ځان کښې کهٔ بیداد نهٔ شی سړے
کهٔ کوشش کا په اخلاص زړهٔ ئے ضامن یم — کهٔ کامران په خپل مراد نهٔ شی سړے
لا به چارے دَ څوانئ ترے پیدا کیږی — چه په عمر کښې هفتاد نهٔ شی سړے

بهتری دَ خوئ خصلت بویه خوشحاله
خام طمع دِ په نژاد نهٔ شی سړے

کهٔ ژوندے شی افلاطون — سوات کښې و نسی سکون
اکوزیو ته بیان کا — کتابونه دَ فنون
هدایه کفایه دواړه — په پښتو کاندی موزون
دوئ به وائی چه دا څهٔ دَی — مخزن ښهٔ دے دَ اخون
نیشکر به غوایهٔ خهٔ کا — په واښهٔ ئے دے ژوندون

چه درو له په ملک کښې بنهٔ پښتون یا دیږی
نن مهمند بنگش ورکزی آفریدی دی

دَ مهمندو سپی بهتردی تر بنگښو
کهٔ هزارخاله مهمند بتر ترسپی دی

چوهړی دَ افرید یو نه ورکزی دی
آفریدی کهٔ همه وا پړه چوهړی دی

هرچه بنهٔ دَ پښتونخوادی حال ئے دا دے
هغو بد وته خوګ وائی چه سړی دی

له ژوندیو پښتنو بنیګړه نشته
هرچه بنهٔ وو هغه کل دَګوربندی دی

نن دَ وا پړو پښتنو بهترمهمند دی
هغه هم و وا پړ خلقو ته څرګند دی

چه مغل ورته ووائی "دولتخواه است"
نور حرام شه کهٔ په خپله کونه بند دے

پښتانهٔ دِ ننګه و باسی له دله
اوس ترلی د مغل دَ آش په خوند دے

کهٔ آزاد دی هغه مرغونه دی
چه هم بے رنګ دی هم بے الحانه

په بند بندی دی خو هم هغه دی
چه هُنرئے یا سیدهٔ له خپله ځانه

چه تا نهٔ وینم په کور کښې
اور به پورے په درست کور کړم

کهٔ یم لاس په ځان رسیږی
ځان به هم تر بلا هور کړم

خوئ دَ ها تی دا دے
چه خرورشی دَ وړاندِ

کهٔ نهٔ غریږی له دهٔ نه
دے ترے ځان کناره کاندی

یو کانړے دَ بیدیا
ترتندی لاندِ کړم عیسیٰؑ

چه بنهٔ فهم ئے وکړ
هم ترے بوئ تهٔ دَ دُنیا

شریعت دَ ونے بیخ دے
طریقت لکه ښاخونه

حقیقت دَ ونے پانړے
معرفت میوه ګلونه

چه کبنل کا سپینه ټوره ډُنیا لونی بازینه
تیمُر غونډِ کۀ نۀ شی
دَ عنبر غونډِ دِ شینه

کۀ ټورے کۀ توبری دی کۀ مزری دی کۀ مارونه
داهمه واړه آفت دی
ژبه لاده ګُونا ګُونه

یو بنۀ مخ دے بل بنۀ آواز دے چه ځان له تنه صبر له زړۀ وی
چه دا دوه توکه سره سره شی
ځان او زړۀ م دواړه سره وړی

مجنون چه ومړ په ګور کښے پریوت فرښتو ترے سوال کړ چه څوک دِ خدائے دے
دۀ وے په نور څۀ خبردار نۀ یم
دَ لیلیٰ خیال م په زړۀ کښے ځائے دے

چه نادان چیرے غلط شی ورته و وائی نادان دے
خدائے به واړه چارے بنے کا
دَ هرچا سره شیطان دے

چه اَشرفِ میرباز دِ هم غلوی خوشحال له ورسره لا دَ یحییٰ غونډِ دهمن
کار دَ بلے هوښیارئ پاتے نۀ شو
اوس یا مرګ دے یا مکّه ده یا دکن

چه م ولیدۀ وګړی دَ دُنیا تر قضا پورے اَصم وی هم اَعما
دانائی عقل دَ هرچا حبطه شی
په هرچا باندِ چه رائِشی قضا

څۀ کم عقل نادانان دی دا ړاندۀ بے بصارته
نعمتونه په خپل کور کښے
مری له لوږے له هیبته

بهرام غر دَ خیرآباد په حماقت دے آب سیند دَ خیرآباد دے په دروغ

دا نړا دَخرونو نهٔ ده پورے خاندی
دَخبروئے فروغ نشته دَ کار ئے — چه په څو سرهٔ پیوند کا سروغ ناروغ
په خبرو کښے ئے ګچ دَ رشتیا نشته — لکه پئی دَ اوښانو واړه دوغ
په دا هسے قباحت چه دے پیدا دے — هم په دا سبب اصلاً نشته فروغ
دَدهٔ سر دَ سردارئ دَ دستار نهٔ دے — دَ سری نه به هم بل پیدا وی بوغ
بیګانه غلیم پروا. وسخهٔ نهٔ کا — دَدهٔ سر له پیدا شوے لچوغ
خو په خپلو باندِ دانګی دَدهٔ توغ

خوشحاله څانه نهٔ وے پیدا شوے
زهٔ خوشحال ئے په جهان کړمه تور وروغ

چه خار به مړ.ونه جغدی کیږ.ئ دَ مردان دی — تو یوی په سپینو وریژو زیږغوړی
مرتبه اچار شربت په څو څو رنګه — و میلمه ته مهیا ګړی ګړی
مرد به تل دَ میلمانهٔ خدمت په څان کا — تفقد به باندِ کا ګړی ګړی

څوک په زور میلمه وخوئے وته بیائی
څوک په زور میلمه له خوئے نهٔ شړی

بدخوئی راسره یار شوه — خدائے دِ امن څنے راکا
چه تش وګورم وچاته — نور څما جزا سزا کا
کهٔ لږ وُوے وبله وکړم — په ما نړی شی راته شا کا
مګر بخت په میان کښے راشی — چه ئے ماسره پخولا کا
هیڅ څما په رضا نهٔ وی — څو چه شی خپله رضا کا
چه منئین شوے قبلوهٔ ئے — کهٔ هر څو جورو جفا کا

دا دِ یار نهٔ دے خوشحاله
دا خپل زړهٔ چارے په تا کا

خپل مزاج دے ګوښے ګوښے — هر څوک کار په خپل انداز کا
چه قدرت لری دَ پرو نو — پرنده هوسره پرواز کا
مجال نهٔ رسی دَ چتی — هغه څائے چه دورے باز کا
سپے دُرمه چیچی دَ غشی — پړانګ حمله په تیرانداز کا

لکه غشے ترسپر پریوزی ترهوسئ کهٔ هسے پریوزی
لوئے مقصود به دِ حاصل شی
په عجب خوبنئ به کښیوزے
کهٔ څوک دا وینا وتا ته کا معلومه چه دَ نوح دَ طوفان ماء راغی له کومه
ورته وایهٔ نه دَارض نهٔ دَ سما وے
هغه ماء دَ نوح دَاوښکو وے مخدومه
چه په کور کښے دِ گمان دَ مار لړم وی له هیبته به دِ خوب چیرے رضا شی
دَدوزخ مار ولړم دِ په یاد نهٔ دی
په قراره قراری دِ نموغځ قضا شی
دَ مجنون په نظر کښیوته اَ رهنډه سر تر پایه سره درسته کنډه کنډه
وا رهنډے وته ډنگ په سجود پریوت په دا حال کښے دَعالم په نظر کښیوت
ورته ئے وے چه داځهٔ کړے لیونیه مجنون ورکړ دا جواب چه اے ځلمیه
دا اَرهنډه په ما ونه دَ جنت ده کهٔ سجود کړم ورته ځائے دَعبادت دے
یوه ورځ په لارے تلم له خپله کوره
لیلیٰ ناسته وه دَدے ونے تر سیوره
سودا قرض له چا غوښتل تاخت و باخت رهزنی غلا
دا تا واړه ناروا کړل ما هم پریښول ناروا
وائے زهٔ دَ رزق ضامن یم
خود به وکوړو چارستا
یو یوځوان دَ سپینے تورے حق په ځائے کا کهٔ نهٔ هرگیدی ئے وتړی په ډوډی
وا یه څویه برابر نهٔ دی زوولی زیات کهٔ وکورے اورنگ ئے دَ مور چوډی
ځان دَ خلق سره خلق کړه خوشحاله
دا زیاتی خبرے ومنډه په کوډی
ملائی په ډیر تحصیل شی شاعری ده له حکمته
ملکی خو بادشاهی ده خانی هم له سلطنته

پیری لا لویه پایه ده | ده له ډیره ریاضته
مفت آسان ګڼړی دا واړه | پښتانهٔ له جهالته
هر سړے ورته ملا وی | چه په یاد کا خو آیته
چه پیرو هغه شاعر دے | قافیه غلطه کته
هغه سګ ورته ملک دے | چه کلے وړی له محلته
خان هغه چه توکس پریوزی | په زانګو کښیے وهی لته

پیر هغه چه پسے درومی
څو سرتوری په دا لته

آفریدی په خوئ پردی دی | په یارئ ئے نفرین
څهٔ تیراه څهٔ ئے وکړے | څهٔ ئے ملک څهٔ ئے آئین
دوه درے سپے غله واخلی | څوک چه ښهٔ وکا سادین
نهٔ ئے مونځ نهٔ ئے روژه شته | دَ شیطان لری تلقین
خکه هسے اولجئ دی | چه نهٔ رزق لری نهٔ دین
یو لعنت په آفریدی شه | سل لعنت ئے په دے شین
آفریدی لاڅهٔ په رنګ دی | دیشین لادی ترے بے دین

خدائے دِ دواړه قومه ورک کا
په دا ښار ورځے آمین

چه زړهٔ دَ چا ژوندے دی | هغه مینه کا په ښکار
له ښکاره ئے څهٔ کار دے | چه په زړهٔ نهٔ وی بیدار
کهٔ ښکار کا دَ مرغونو | دَ بازونو دے پکار
دَ سپي ښکار هم درومه | کهٔ میدان دے کهٔ کوهسار
دَ غشی ښکار ډیر ښهٔ دے | کهٔ باتور دے په ګذار
کهٔ ښکار دے دَ توپک دے | کهٔ پرے تهٔ وکړے تلوار
نن خوشحال په دا دوه کاره | په جهان کښیے دے اوخار
دَ بازدَ توپک دواړه | هم په دا دے مینه دار

لويه چار دَ پښتانهٔ له لاسه نشي مګر چارې آسماني ده کمه کوزه

کهٔ هر څوئې سمُوم رانهٔ سميرې چه کارهٔ دي دَ بدبختو څو وربوزه

په فساد کښې هيڅ فائده نشته خوشحاله دَ فساد په اور کښې سيزي وابښهٔ دروزه

هغه چار چه عاقبت لره ښهٔ نهٔ وي دَهوښيارو په مذهب ده لايجوزه

يوسفزي ننګيالي پښتانهٔ نهٔ دي دَ بې ننګو پښتنو له مينځه وُوزه

يا دَ بنو په لور درومه ټوله وکړه ترخوشا به پورې ملک کړه شنه ډډوزه

يا په کُنج کښې دَ عزت کښينه طاعت کړه

يا مکې لره ځه بس دا درې رموزه

دايم راغلم په دا عمر چه م سپين شو تور وېښتهٔ

يا خاورې دي يا کاڼړي راته واړه سپين او سرهٔ

هيڅ کار نهٔ شي بې له زرو چه پرې وپوهيدم زهٔ

کرم نهٔ دې دا وګړې چه پرې وباسې ليمهٔ

چه سپين و سرهٔ پرې ورکا هغه کُنبل کا سپينه خولهٔ

هم زر دي کهٔ ئې ګورې چه په غرهٔ بيائي او به

کهٔ هر څو له تا زړهٔ بدوي بيا په زر سړ غيبړي زړهٔ

خدائې رسولؐ سره خپليږي

په زر نورې چارې څهٔ

کني کبر، مزرې يارهٔ، وړې هم، دا دوه شهورهٔ

صحبت مکړه له ښځې کهٔ په رنګ ده ښځه حُورهٔ

کهٔ ليندهٔ ده، کهٔ ورغومې، دا دوه شړهٔ هم ځانځغورهٔ

چه پيدا دَ نرګس ګل شي، له سينې ئې مهٔ کړه دُورهٔ

څولا ګل شته په ګلزار کښې نې ومې معشوقه واړهٔ

کهٔ دِ لاس باندِ رسيږي لحظه مهٔ شه بې سرورهٔ

ستا به څهٔ يا دَکړم تيراهٔ چه دَ زړهٔ وکړم پرېښنړ

هر بيګاه به دِ باران وو په شيبو شيبو ډېر ګنړ

د ورکزیو آفریدیو — په هیواد باندِ دروند
لوئ نښتر لوئ خیبرئ — بې میوې نا بوده بنږ
د پوزیو کمې خونې — سپې سرې پکښې سجنږ
د رنجرو د بویه ډکې — پمن والې پکښې گسنږ
خسی ورغومې پکښې کوتې — خا ورې سرې درست انگنږ
چه په ښک پکښې سرې ږو — یواحمدوو بل چند نږ

چینې د تیراه ښې دی
لا اوبه ده د پښتنږ

زلفې ستا نافهٔ ناب دی — لب شراب دی د فرنګ
کُنبلې مخ دِ نسترن دې — ستا بانړهٔ تازه خدنګ
په مخ ډیرهِ ښا ښنه ئې — لږ دی کُنبلی ستا په رنګ
تل تل غم باندِ نایاب دې — خانې د خوا ب دې ستا پالنګ
ښا پیرئ م کنړلې — دَخړې دِ ښسهٔ ژرنګ
په تا ښائې چه آخلې — دَ پریو نه قلنګ

بدن سیمه خوباتهٔ ئې
قلب دِ نهٔ دې، دې دې سنګ

ختک چه په آس سورشی — درسته وترې په کونه
شمله دَ دستار پریږدی — په تندی کښې اوږده پلنه
سایه دَ شملې گوری — دَ خپل آس په ترپونه
جنجو ته کا ښنګلې — په کولک کاندی پوښتنه
دعوی دَ خانئ واخلی — په فساد کاندی جستنه
حسد بده بلا ده — دَ سرې په ورکونه

دهیچا څهٔ ونهٔ کا
حاسد شنه کا خپله ینه

ناګاه به دِ په ګور با ندِ غوغا شي
چه فلانه ترجهان تیرشو فلا نه وخت

دَغسل دَ کفن زیرمه ئې کا نړئ
وکفن لره ئې راولئ بسه رخت

په ګور کښې به دِ کښیږدی څویه رونړه
بیا به کوره وته را ئشي یک لخت

حساب به دِ دَ مال کا ندی په زرهٔ کښې
په دا کار کښې ګرفتار وی واړه سخت

ملګیری به دِ په ګور کښې څوک و نهٔ کا
کهٔ دِ مل خوبه عمل وی هغه وخت

خپل عمل به دِ په ګور کښې پکار کیږی
په عمل کښې کهٔ نیک بخت وې کهٔ بد بخت

دَ بادشاه دَ سره لعل په بنکار کښې پریوت
چه شعلې ئې ځلیدې تر بله اوره

ناګهانه دَ شپانهٔ په لاس کښې کښیوت
زرو مورلوه شپانهٔ راوړ تر کوره

یوګړورې ئې په خونه کښې عادت وو
دَګړورې ئې په غاړه کړهٔ اې رورره

هغه لعل دَ جوهری په نظر کښیوت
په بهائې څنې یوړ په یوه توره

لک روپئ دَ هغه لعل قدر وقیمت وو
نا دیده عالم په توره وسرکړ ګوره

دا دَ سر په سترګو مهٔ ګوره خوشحاله
دَ باطن سترګې پیدا کړه ته ئې ګوره

سړې وباسی له کاره
پکار نهٔ دے ډیر خربنت

ناقابل څویه لوئې مهٔ شه
لا تر ډیر خربنت دے زبنت

تربیت دَ قابل بنهٔ دے
په بنه مزکه بنهٔ شي کبنت

ناقابل دَ بنورې کبنت دے
تربیت ئې دے کا هبنت

چه ناکس هم تربیت کړ
ما خپل ځان ته آفت غوښت

دواړه توکه ئې بلا شوه
هم ساتنه هم نوشت

بل علاج نشته بې صبره
اوس هم صبر دے بالبنت

غنځ خوش رنګ زیبا ګلونه
له دیو خاورو نه پیدا شي

بیا په څو ورځو معدوم شي
په دا خاورو کښې فنا شي

حبش په مکه راغے — چه مکه کاندی ویرانه
قریشو جنګ ونهٔ کړ — تاریه تار لاړل له میانه
چه وخت دَ محمدؐ شو — عرب سلوم شول په مرانه
مدار په ښهٔ سردار دے — نور خهٔ مهٔ وایه اے خوانه
چه میر دَ لښکر مرد وی — ګرانه چارشی پرے آسانه

کهٔ صبر کهٔ همت دے
فتح یوسی له میدانه

حمل ثور دا دواړه فروردین اُردی بهشت دی
پښتو به درته وایم اول ورے دویم غوئیکے
جوزا سرطان خرداد و تیر دی په حساب کښے
پښتوئے خینور او کُنی کبر حساب دے
اسد سنبله دواړه امرداد شهر پور دی
پښتو سنبله ویږے اسد وګنړه زمرے
میزان عقرب دا دواړه مهر آبان سره حساب کړه
پښتو تله لړم دی دا دِ یاد لری سړے
لینده ورغومے څهٔ دی لادا واوره درته وایم
یو قوس دویم جدی دواړه دا دی آذر دے
چه دلو حوت ووائی یو بهمن بل اسفندیار کړه
پښتوله مانه واوره یو بوکه دویم ماهے

کدوم دَ چنار په ونه وخت — وچنار ته ئے آغاز کړهٔ دا مقال
چه تهٔ دَخو کالونو ئے چناره — راته ووایه خپل عمر خپل احوال
چنار ووے چه دَ دوه سو کالوزهٔ یم — په حساب کښے ګوندِ کم وی یونیم کال
کدو ووے هائے خوتهٔ پهمُدت لوئے شوے — دایم زهٔ درسره سم شوم دم درحال

چنار ووے چه وخت سخت دَ خلد راشی
زهٔ او تهٔ به سره زده کړو هالهٔ حال

هوښيار به پرے پوهيږي هيڅ باور نشته په بخت
که په بخت کله باور وے تل به يوناست وو په تخت
بخت ياران دے چه وريږي چرته نرم چرته سخت
کله وُوړی په کانړي کله وُوړی په درخت
بخت خوشحال سره غليم دے
چه لري دَ هُنر رخت

درست عالم تيرسو شپيتۀ بخرے حساب کړه
هغه تيرسو بخرے واړه ناکسان دی
په شپيتۀ کښے پنځوس بخرے هوښياران دی
په داهومره کښے لس بخرے غازيان دی
درست جهان په ناپوهانو سره ډک دے
ولے زيات که پکښے وګوري افغان دی
هوښياران يکان يکان په هرمکان شته
چه کثرت ئے دے په ملک دَ خراسان دی
چه داخل حه جمع خرڅ نۀ دی په دا کښے
هغه واړه جټ هندکی دَ هندوستان دی

که فرزند غواړے له خدا يه چه لري حيا وفا
چه حيضه پاکه نۀ شي دخول مۀ کړه دَ نسا
که له حيضه پاکه نۀ وی بد فرزندشي ترے پيدا
که دليل غواړے له مانه لاس په لاس دے دليل دا
وبهرام وته نظر کړه
هم ئے وفا هم ئے حيا

په يوۀ باران کښت ورک کا خلقے کا سره خوارے
رهزنان باندِ تعيين کا مسافر وژني په لارے
يسيران کا تندی اوړکی چه له لوږے وهی نارے

ناوې ژړېږي سره بېل کا  دَ مرګوتي په چيغارې

خدائے عادل دے ظالم نۀ دے
نۀ په ظلم کا دا چارے

په ډېر رنګه فضيلت شته په جهان کښې  دا يو خو به درته ياد کړم زۀ خوشحال
فضيلت دَ بنۀ نسب دَ اصالت دے  فضيلت دے دَ بنۀ حسن دَ جمال
فضيلت دَ شجاعت دَ مړنتوب دے  فضيلت دَ سخاوت دے دَ ډير مال
فضيلت دَ ډېر هنر دے دَ ډېر علم  فضيلت دَ ډېر اولاد دے دَ عيال

نۀ دا کُل فضيلتونه منونه منونه
نۀ چه بخت دَ چاځخه وي يو مثقال

لږ خوراک تنګے کلمے بويه دَ ښځے  مرد هغه چه ډېر خوراک کا ډېر خبرې
چه خاربۀ مړ ونه جغدي کښېږي دَ مردان دي  تو يوي په سپينو ويږو ډېر غوړي
دَ هغو دُنيا نابوده نۀ ده ښۀ ده  چه پيسے په کور کښې ږدي اوګړے لړي
مرتبے دَ هرچا راغلے بېلے بېلے  سره نۀ دي برابر واړه سړي

خوک په زور ميلمه وخونے لره بيائی
خوک په زور ميلمه له خونے نه شړي

په اتم دَ سنبلے! منتهي شي دوه خېلے
اباسين په ته کښے کښېني په تن وچے شي خولے
وزې وخيږي دَ شولو کار ښکاره شي دَ غلے
هونږائی وغرۀ ته جوړ شي دَ خېل ښکار په مشغلے

زانړے ووهي غړنګے
لور په لور هوړے دلے

کۀ ئے کښېنوے په باغ کښے  مرد به ونۀ کا آرام
خو پوره په غليم نۀ کا  هره چار دَ انتقام
فراغت کا خبر نۀ دي  نامردان په ننګ و نام
بهرام وته وګوره  درست بنده دے دَ خېل کام

دَصورت په زور قوت غرنۀ ما تیږی
کۀ خبرې دَ کوهکن په زور قوت
چه دَ روح قوت پیدا شی قم شق کا
په هر لوری ئے په مخ دروي نصرت

کۀ هر څو باندِ باران دَ بهار ورری
گل سنبل به ترے پیدا نۀ شی له سنګه
امتحان لره خاورے کړه وګوره
چه ګلزار له تا پیدا شی په څو رنګه

کۀ واړه جهان په لاس را وړے
دَ قارون ترخزانو دِ ګنج بسیار شی
دا کل واړه م تردا پورے هیڅ نۀ دی
چه دَ لاسه دِ ناحق سړے آزار شی

پلار هرګز په بد دَ ځویو راضی نۀ دی
ولے بد ځویه آخر دَ پلار بد خواه شی
چه دَ پلار په بد راضی شی هغه ځوئے
په محشر به ئے بیشکه مخ سیاه شی

نن چه په جهان باندِ لاس ستا دے
دَ نیکئ تخم کره خودِ په دست شی
ستا پخوا دَ دے دُنیا صاحبان نور وو
پس له تا به هم دَ نورو بندوبست شی

په کوم ګرداب کښے ګرځے
ګردابونه صد هزار دی
په هسے دریاب ډوب ئے
چه موجونه ئے خونخوار دی
راشه ځنے ووزه!
دا واته ځنے پکار دی
نۀ ئے غم نۀ ئے اندوه شته
چه وتلی په کنار دی

دَ مغلو سره ګډ په زیست روزګار کښے
غوریه خیل دی یا ترین دَ قندهار
کۀ سودا ده کۀ خوښی کۀ نوکری ده
نور پښتون دے له مغلو نه ویزار
په دا دور چه کوټونه پکښے ساز شول
یوسف زئی تردا دواړو دی مردار
کشمیری به هم دا هسے رنګه نۀ وی
چه نر ښځے دَ مغلو خدمتګار

دَ یوے ښیښے شراب دی | سره ګرځی دست په دست
چه اصیل سړے ئے وڅښی | نۀ بدګوئے شی نۀ بدمست
سل ناسازے په لاس واخلی | چه بدذات شی مئے پرست

دَ شرابو ګناه کوم دے
ګناه ستا دے هرچه هست

څو نړۀ پایم په دُنیا کښے | دا دوه خواست کوم له تا
یوم روغے لړے سترګے | بل مِ تېښګه لره ملا
ښائسته ؤ لره غواړم | دواړه توکه هغه دا
کۀ دا دواړه توکه نۀ وی | ماهم بیایه له دُنیا
هرڅوک پلار دَ لونړو مۀ شه | په ډیر غم شی مبتلا
څوچه لُونړے وی په کور کښے | په کور وی هومره بلا
څما په کور کښے دیرش دی | کۀ تردیرش دی ډیرے لا
کۀ غم وهم دَ دے وو | را سره صبا بیګا
پخپله خدائے وادۀ کړے | چه له سرایه شوم جدا
چه تۀ کړے واړه ښۀ کړے | یوه خدا یه ربّنا
ترکار دِ نۀ رسیږی | عقل فکر دَ هیچا

کۀ چار ده هم هغه ده
هرچه پسندے وی په تا

دَ نړے ښځے په کوس کښے | دا جلاب جمال کوته وی
بند په بند ئے سره بیل کا | غوئے رغښتۀ ترکوته وی
په کمر دِ درد پیدا کا | پکښے دا هومره تروته وی

رنګ ئے مۀ ګوره په سترګو
کۀ ډنګره کۀ موته وی

مُسلمان سړے به څۀ لره دروغ کا | چه په کفر کښے دروغ دی هم ناروغ
کۀ دِ سرځی کۀ دِ مال ځی دروغ مکړه | اعتبار دَ سړی لاړ شی په دروغ

کهٔ په هره کوځه کرځے پکښے دروے پهر پهر
لا به هم پرے خبر نهٔ شے بے رهبره تلهٔ دی زهر
کهٔ ځما په نغوته دروے لویه لار نیسه دَ ښهر
درویشان لکه ماران دی هم مهره لری هم زهر
په آزارے راضی مهٔ شه
چه اخته نهٔ شے په قهر

میاشت دَ ومړئ خور وه چه داخل شوم په میدان
کال څهٔ وو هفخ ۱۰۹۵ دو بیا تحویل دَ سرطان
هسے شان ساړهٔ وو لکه نرم زمستان
سرے اوربشے لَو وے
غنم داړه تنکی شان

چه دَ پلار دَمرګ م تیرشو پوره قرن دَ صفرے په میاشت ومړه ځما مور
پوره زر اتیا کلونه دَ هجرت وو چه دَ مور په خوام ومړ مشرکور
چه دَ مور تر مرګ م ومړهٔ وړاندِ رو ستو یوه لور دَ شاه بانو وه پسے خور
خدائے دِ باغ دَ جنت ځائے کاندَ دواړو
چه به باغ دَ دُنیا نهٔ وُوینی نور

په جهان کښے خوسړی دی شلور قسمه دی پیدا
زدهٔ ئے زدهٔ ئے چه مهٔ زدهٔ وے دا فریق دی مقتدا
زدهٔ ئے نهٔ زدهٔ چه ئے نهٔ زدهٔ خبردار کړه دَ ایذا
زدهٔ نهٔ زدهٔ م مونږه نهٔ زدهٔ دَ تعلیمه دی پیدا
زدهٔ نهٔ زدهٔ چه زدهٔ م
تر شیطان بتر دے دا

حمزه خان دَ رستم باد دے چه په خور رنګه پیرے کا
کله هسے خوږ سراپا سی چه مشکی کوځے ډیرے کا
کله هسے راپیدا شی چه عالم وته بښیرے کا

آخر یاد دے په دا څۀ شی
کۀ په ګرد ږیرے سپیرے کا

ګُلمے دَ سرې خُوږ شی
هم ئے نۀ پریوزی خر

شودۀ دِ ښځې دَ میږے
چه په نس کښے ئے شی ارړ

دارو دَ ثنا بویه
یا دِ دَ حنظل جرړ

کۀ زر دا ړو ونۀ کا
دَ مور رنګ به ئے شی زیړ

اړچه لړغونے شی
پریکوی دَ ګُلمے سر

لګړ دَ بنارونیو په سیل ګډ شو
له هیبته ئے درست سیل شوتار په تار

تپوس له بله لوریه را پیدا شو
په یوۀ باندِ دۀ هم وکړ ګذار

خوشحال خټک حیران شو ورته پا تو
چه ئے ولیدۀ دا هسے رنګه کار

په خټک کښے یو هوښیار سړے ولاړ وو
دا خبره ورته وکړه غه هوښیار

چه هیڅ ورته حیران مۀ شه خوشحاله
تل په مات ښنګو سوپړے کاندی ګذار

دَ تیراه په ملک کښے نشته
دَ اَذان اَللّٰه اکبر

دَ خپل غیږ منت راباندِ
چه مِ ویښ کاندی سحر

چه بهرام ځنے پیدا شو
ماوے غیږ مِ دَ کافر

هم ډیر کافر هم نۀ دے
په تیراه کښے شۀ په چر

دَ دُنیا دَ دولت ویش دَ چا په لاس دے
چه ئے ورکا په اړاؤ ګیدی خر ته

کۀ ځما په لاس ودست دَ دولت ویش وے
ما به ورکړے یو چونګ خا ورے بے هُنر ته

په هر فن کښے چه مِ غواړے هغه زۀ یم
قرینه مِ به بیا رانشی په قرنه

په دا هومره ډیر هنره لکه زۀ یم
یو هُنر ئے فلک ورنۀ کړ هُنر نه

نا دیده ګواهي ملهٔ هم له حقه نه ویزار یم
حلال نهٔ دی زهٔ ئے خورمه دَ فتنو ئے مینه داس یم
دا څلور کاروونه کړمه خدائے دِ نهٔ کا چه بدکار یم
کهٔ په ما باندِ خفهٔ وائے
زهٔ هم تا وته تیار یم
چه وُزیږی له تانه بیائے تا ته درځی عیب
له ځانه دِ پیدا شی په ګندګئ ګوښی حیات
دخل دَ ساعت په طبیعت دے دَ سړیو
چه بد زیږی له نیکه له نیک ذاته نه بد ذات
کهٔ نهٔ دی کهٔ څلور دی کارئے چا ته بښکاره نشو
سردرګم دریاب دے دا آبا و امهات!
قدرت دَ هغه خدائے دے چه قادرِ برکمال دے
خاموش وُسه خوشحاله تر دا دم مهٔ وهه زیات
کهٔ دِ توان رسی خوشحاله تقوی مهٔ پریږده له لاسه
او کهٔ نهٔ په فتوی کار کړه مخ له شرعے مهٔ جاربا سه
کهٔ دا دواړه توکه نهٔ وی
سکه بترئے ترکناسه
کهٔ بادشاه له تخته پریوزی ګدائی واخلی په لاس
کهٔ دَ خدائے سره آشنا وی زړهٔ به نهٔ کا کوزو پاس
ترغنا نه فقر بښهٔ دے نهٔ ئے غم نهٔ ئے هراس
دَ ژوندون اساس په باد دے څهٔ ژوندون څهٔ ئے اساس
کهٔ ژوندون دے هم هغه دے
چه ئے نهٔ وی هیڅ وسواس
ما په عمر مدح نهٔ ده دَ چا کړے چه دَ مدح خښتن یو نهٔ وو پیدا
په غندل م پوست دَ ډیرو دے وُکښلے چه دَ هجو لائق ډیر وو هویدا

په صفت م دَ هغو کړه بزیره سپینه
چه ئے زهٔ وُم په سپین مخ باندِ شیدا

خدایه مهٔ وے هسے ذکر چه ئے خلق سر هوا کا
درویشان دَ "لا" په تُورِه همیش لودما سوا کا
دیو دَ "لا" تُوره وکښلی
پوو دَ غیلو یا دَ غوا کا

عمر ډیر وو عقل لږ وو عمر لږ شو عقل ډیر شو
یو ژوندون وو په جهان کښے په دا شان سره تیر بیر شو
دَ ځوانئ ساعت خَوشحاله
خوب وو ولیدهٔ شو تیر شو

زهٔ چه زوړ یم حال م دادے دَ ځوانانو به څهٔ حال وی
درسته شپه دَ غیږ لهٔ لاسه درازی په ما محال وی
ورځ وشپه م دا فکرونه کهٔ وادهٔ م کال په کال وی
تر اویا کالونو تیر شوم
وا ویلا م په جمال وی

راشه هومره جور ظلم ستم مهٔ کړه دَ دردمنو آهِ سرد دَ خدائے بلا دے
خوک چه درد رسوی چاته درد وردرومی چا ته مهٔ رسوه درد دَ خدائے بلا دے
چه انصاف عدل تمیز ورځنه نهٔ وی
رنګ ئے ورک شه هغه مرد دَ خدائے بلا دے

عیسیٰؑ یو نادان هوښیار نهٔ کړ په عمر په اعجاز ئے کهٔ ړاندهٔ بینا کول
خوک چه خدائے په ازل نهٔ وی بینا کړے کار دَ چا دے دَ نادان دانا کول
چه نادان په سبق زده کا حال ئے څهٔ وی
په خضاب سره زاړهٔ برنا کول

مار په مثل دے دَ ښځے دے په سوړه کښے بهتر
چه له سوړے نه بیرون شی خلاص به نهٔ وی له خطر

چه له سترګو بنځه وُوځي
نور پرے وار شي دَ ذکر

دَ نوروز په دولسم ! میاشت صفر کال دَ غفط وو [۱۰۸۹]
غله ګرانه کښت زبون وو په عالَم نازل سخط وو
لوئے باران وشو په خلقو
دَ وګړی وار غلط وو

هیڅ ناکس به په تعلیم سره کس نۀ شي داخبره دَ داناشوه راپه بیاده
سراغزے به نورخۀ نۀ شي سراغزے دے کۀ په باغ کښے ئے پیوند کړے له فرصادۀ
ادم دیوال به په کهګل سره پوخ نکړے کۀ هرڅو باندِ هُنر کوے اُستاده
دَ نادان دَ غلطئ عیب کوم دے غلطي خوذ هوښیار بده بلا ده
لا دَ حرف دَ عبارت غلطي پریږده رسوائي په زیر او زور کښے دَ ملا ده
چه حاذق طبیب په چارکښے تیرو بیرشي
پښیماني دَ زړۀ اندوه ئے په دا لاده

ما تازه ګلونه ولیدۀ په باغ کښے همګی په رنګ وبوئ سره زیبا
ماوے تاسے غوندِ هسے ښۀ ګلونه له دیو هسے تورو خاورونه پیدا
وے ئے هرچه خپسر خاورے کاخوشحاله
مرتبه به بهه بیا مومي تر دا

کۀ همه عالم په عقل زیست روزګار کړي هیڅ بدی فتنے به نۀ وی په دامیان کښے
حماقت جهل ګنده خویونه بد دی شور غوغا بلا پیدا کا په جهان کښے
وارۀ نفس دے چه په مونږ کافساد ونه
ګنړه کومه ګمراهی ده په شیطان کښے

چه سری له وردرومی عیب عار په هیڅ رنګ دِ سرے نۀ کا هغه کار
چه سرے له عیبه ځان ساتی کۀ ښۀ کا لا دِ وی دَ دین په کار کښے استوار
دَ دُنیا چارے فاني دی باقي نۀ دی
همیشه به تل باقي وی دَ دین کار

بے دَ خولے دَ کلمے تفاوت کوم دے
پہ دا دَور پہ ھندو پہ مُسلمان کښے
سل دانے تسبیح پہ لاس زر گناھونہ
دَ ھغو بہ څۀ بنا دی وی پہ ایمان کښے

پہ توبہ پہ استغفار پہ پینځہ وختہ
ورځ او شپہ دَ معصیت فکر پہ ځان کښے

پہ بائن کښے زیست روزگار شی
اوس خو پاتے یو طلاق دے
کجی بنہ دہ پہ لاس پوھ شوم
نور ځما لہ تا فراق دے

وھغۀ تہ ورکڑہ کونہ
چہ دے تل دَ تا مشتاق دے

نن دا پند پہ خاطر راغے زۀ تے وائیم
څوک کۀ پند ځما منی کۀ نۀ منی
دَ کم ذات پہ آشنایئ کښے سود نشتہ
پہ دُرمے کښے کلہ خوندوی دَ گنی
دَ توپک گولہ پہ خولہ خوڑلے بنہ دہ
نۀ چہ وخوری څوک نمړئ دَ دَنی

بیوفا سڑے بتر تر کوتہ سپی دے
چہ ژغرئ کا دروغ دَ لیونی

دَ آسمان پہ کجروئ
چار پہ ما وہ ونشینہ
غر فرھاد پہ تیشہ غوځ کڑہ
خسرو بیا موندہ شیرینہ

یو لاشۀ خوری دَ مچئ
بل خوانږۀ لہ انگبینہ

یو دولت تہ رسیدل دی
بل دولت تر سرؤل دی
دَ نادان سرہ گڈ ود شی
دوارہ توکہ دَ عاقل دی

بخت خو آس وسڑی ورکا
گران دَ آس تیزل ساتل دی

پہ ذرہ کښے روغ رنځورے
پہ لحظہ کښے بناد غمژن
بځن ستا پہ کبر خیال شۀ
پہ دا ھومرہ بادی من

درست غفلت خود ستائی
لاف وشاف دَ دروغژن

بهرام بنځه دے بدرنګه رنګارنګ زیور پرے پورے
که زیور ورځنې واخلے نور به نه پیرے په تورے
که احمق په دولت بنه شی
که ترے لاړ شی خود به ګورے

خوګ چه سپینه ږیره رنګ کا بیا ځوانی غواړی په زوره
په مثال کښے غلګے سپے دے په کتوه وربوز توره
که قوت د مرد په ځائے وی
سپینه ږیره څهٔ پیغوره

د دے دور شیخان ډیردی لور په لور اورنګ زیب بادشاه د واړو دے انځور
په هغه چاره قلم ساز کا قرآن کښے په هغه چاره شهرګ پریکا د رور
په رکوع کښے تسبیحات د پلار د مرګ کا
په سجود کښے نوری خپله مشره خور

خدایه واخلے هسے ذکر آلوده په ډیر غفلت
خدائے د ځان دیاره بولی په عالم کاندی منت
په الله الله وئیلو
تاخت تاراج کا درست محلت

کلیله دمنه چه لولی دانایان ګنړی خپل ځان
که په دا کښے څهٔ فائده وے بند به نهٔ وو شاه جهان
چه آسمان فتنے برپا کا
هورته څهٔ کا دانایان

منجّم که درته نحسه آدینه کا یا طبیب وتاته بدے کا شکرے
په جمعه به ومانځهٔ ته ونهٔ ووزے له شکرو به هم ګرځے لرے لرے
په قرآن کښے چه شراب دی منع شوی
ته ئے ولے لګه بیخ د مور نغرے

دَ مغل په طباخ ډیر یوسف مندړ دی
لکه وړی مچ ډیر ېږی د رنګ تر د رنګ
کهٔ کعبه کهٔ نے قبله ده خو تنګه ده
په پیسه پسے به دروهی تر فرسنګ
کهٔ پیسه دَ ملنګئ په لباس مومی
مصلے به دَ ګیدړ کا پسے لسنګ
چه بنهٔ وخوری بیا بنهٔ کښینی      بنهٔ خوب وکړی په پالنګ
کهٔ په اصل نامرد نهٔ وی      تل به نوند لری خپل ننګ
کهٔ دِ دا صحت نصیب شی
دَ طبیب مهٔ ګوره رنګ
کافری لکه بیزو دے      دا مثل دے دیرینه
چه جفتی شی له ناجنسه      ضائع کیږی قرینه
چه اولاد له بیزو وشی
نیم آدم نیم بوزینه
چه نظر مِ دُ دنیا په روزګار وکړ      بل خصلت م بنهٔ ونهٔ لیدٔ ترجُوده
ورپسے مِ بنهٔ وئیل دَ عقل خوښ شوهٔ      دا هغه دواړه بے ځایه دی بے سُوده
جود هغه وی چه اسراف ورسره نهٔ وی
بنهٔ وئیل هغه چه نهٔ وی بے مقصوده
چه اوبهٔ په ځانے حصارشی نورخسا شی      صفائی نے هم په دا ده چه بهیږی
کاڼی زرکهٔ سره وګوری یکرنګ دی      فرق ئے دا دے چه په زړه د زړهٔ رغیږی
هغه زرتر کاڼی لوټے لا بتر دی
چه ئے وُمنډی په مزکه نهٔ خرځیږی
آل اولاد چه دَ آدم دے      بنهٔ ئے خوئ دے بنهٔ ئے روئ
هندکے آل اولاد دَ کوم دے      چه نهٔ روئ لری نهٔ خوئ
خود طمع یا دَ ډار دی      د وفائے نشته بوئ

دَ دے دور سوش دا دے چه په مرهٔ پسے تپاپ نشی
نهٔ خویښی شته نهٔ خپلوی شته په خپل سود دَ هرچا زړهٔ شی
نهٔ حیا شته نهٔ وفا شته
تپاپ په چا پسے په څهٔ شی

کهٔ اوبۀ سرے په تنده په خوارۀ ښبی دَ باړے اوبهٔ خونړ نا حقه وښبی
پسته وئے پلوسین باړه ماترے دَ تیراه دپاره غا بښی مابښی ؤمبښی
یوجوزا دویم خرچنګ مزرے بل ورېے
پکښے هو مره مدت تیر کړی نور ترے تښتی

خدائے کم ذات سرے دَ علم ښښتن مکړه دَ کم ذات دَ علم چا رهسے لیدهٔ شی
چه کم ذات ته څوک ښئینه کا دَ علم
په خمتا باندِ دَ زرو کشیده شی

مشکے چه لړ سُورے شی وار په وار کا اوبهٔ تویٔ
په کور کښے فتنه لړه
را پیدا کا فتنے لویٔ

چه بَل خراغ سرے په ساهه سره وژنی دَ ګدائے دَ کچکول توک خوری لړ بسیار
یو اودس په چا رچوبئ کښے څوک چه کاندی
درے څلور کاسونه منع دی په شمار

نمرسا و خیزی صبا بیګاه پریوزی چالوئ خوبی ترسره نهٔ ده وړی
چه کمال لری زوال ورلره تل وی
اوبۀ مکه کله پوره کله نیمګړی

یا یاری له هیچا مهٔ کړه یا چه یار شے دَ چا تهٔ
بنهٔ خوبنهٔ دی کهٔ یار بد کا
هم ئے ونیسه په بنهٔ

کهٔ په مال دَ مالدار زړهٔ نهٔ دے تړلے په داخه کهٔ کوته کوته سره پریوزی
تر بیرئ لاندِ نهٔ دی اوبهٔ بدے بدی داکهٔ دَ بیرئ په منځ کښے کښیوزی

کهٔ ملحد سړے مالدار شي　　مال به خرڅ کا په فساد
مُسلمان ځکه مال بنهٔ دے
چه ئے مال شي دَ دین زاد
کهٔ عزیز دے کهٔ ذلیل دے　　په خپل خوئ کښې دے مدار
په خپل خوئ دَ باز قیمت دے　　په خپل خوئ دے تپوس خوار
یو په لاس دَ بادشاه ناست دے
دویم گرځي　　خوار بے کار
کهٔ دَ سر م دستار نشته　　کهٔ دَ آس م نشته زین
هومره مال هومره م ځویه
دا په چا باندِ نفرین
برائی په ما آواز وشوله غیبه　　چه ډیر مهٔ شه په فکرونو ممتحن
چه دَ دوست سره دِ دوست دَ هغه دوست دے
چه دَ دوست سره دشمن هغه دشمن
سړی پیری کهٔ کل تورے نیزے شي　　کهٔ همه وا ړه جهان شي دیو وَ دَد
چه تا نهٔ وی دَ چا سره بد کړی
له تا به هم څوک نهٔ وکاندی بد
رسم دَ دوستئ شرط دَ یارئ　　نهٔ دے دا چه تهٔ م عیب را ته هُنر کړے
شرط دَ یارئ دا دے کهٔ څهٔ عیب م ووینے
تهٔ به را ته ووائے په غوږ عیب م خبر کړے
رښتیا کړه له هیچا نه مهٔ ویریږه　　رښتیا سړے له هرے بلا خلاص کا
شب گرد دے چه ئے ډارشي له عسسه
خونیان دی چه به ویره دَ قصاص کا
اے چه دَ سرو بخملو په نهالیو پروت ئے　　دَ ښو زربفتو په بالښتو نه
پاسه له خوبه ویښ شه سر په سجده کړه
کهٔ دا راحت غواړے په بهشتو نه

کۀ بنۀ دی خو هغه مرغونه بنۀ دی  چه نۀ ئې رنګ شته نۀ آواز شته نۀ مرانه
په بلا کۀ ګرفتار دی خو هم هغه دی  چه هُنر ئې پاڅیدۀ له خپله ځانه
چه زور لری دَ لیچو  زور دِ نۀ کا په ناتوانو
او کۀ نۀ ترهر چالوئې دے
سیال نۀ دے دَ ضعیفانو
میلمانۀ وته یا شا کړه  یائې بنۀ وکړه خدمت
یا په تُورو ورتلۀ مۀ کړه
یا ښکاره کړه شجاعت
سر دِ خوړشی له کمینه  مۀ کمین دے مۀ ئې مینه
دَ دمړئ ورکول کا  دَ مهرانو منت بِه دینه
مګر سګ وی سړے نۀ وی  چه بہ دا منت خوک وړینه
دَ مردانو روش نۀ دے
چه خپل ورکړه یا دوینه
چه صبا صبا او بۀ څښی دَ انارو  زۀ حیران یم چه هغه سړے به څۀ مری
کۀ له مرګه چاره نشته وبه مرینه
باور وکړه په زحمت خو به ونۀ مری
ژبه بند کړه له ګفتاره  لاس خوندی کړه له آزاره
نور غم نشته نۀ اندوه شته
فراغت ګرځه بے ډاره
چه تور مُشک راپاتے نۀ شول  سپین ګوهر نۀ شول راپاتے
نور به هیڅ نۀ شی راپاتے
قصئ نشته کښے زیاتے
هسے خوئ مکړه خوشحاله  چه خپل هم له تا ویزار شی
ولے هسے سلوک نۀ کړے
چه پردی دِ خدمتګار شی

هم دا ژبه ده چه غم ده　　هم دا ژبه ده ښادی
کهٔ څوک خپله ژبه ښه کا
نورئے هیڅ نشته بدی
چه څهٔ غم شدت رارسی　　همګی شامت څما دے
چه څهٔ عیش فرحت موم　　واړه فضل وکرم ستا دے
په خپل زړهٔ کهٔ سازیدے دَ هر چا کار
هیڅ حاجت نهٔ وو په مینځ دَ کردګار
په زمان په سړی هسے چارشی　پیښه
چه دَ چا په فکر نهٔ وی　هغه چار
کهٔ کیدلے په خپل زړهٔ دَ هر چا کار　　سکه حاجت نهٔ وو په مینځ دَ کردګار
چه رضا دَ کردګار وی هغه کیږی
دَ سړی فکر تدبیر کنړه بے کار
هیڅ زار دِ څنے نهٔ کا　　چه له غیره څوک آزارشی
دا هم دَ مینے کار دے　　چه له یاره نه ډیر زار شی
واړه سپی خوړونی بد دی　　چه دِ ډُوری څهٔ بدکار شی
چه خپل سپی دِ سپینه پرے کا
هغه لا یو کُوټ کوپار شی
چه په هو په نهٔ پوهیږی　　پوره مرد کنړه هغه
هو دِ هو وی نه دِ نه وی
یاره نهٔ وی هو دِ نه
خواست په هیڅ توکی ښهٔ نهٔ دے　　چه ئے څوئ کاندی له پلاره
چه په خواست سره څهٔ موے
تر دا بخره نشته خواره
تهٔ په کوم توکی دماغ کړے　　خپسر وګوره چه څهٔ یئے
چه ئے حیض و بول بولے　　هغه وینه زوه تهٔ یئے

چہ ہاتیان ساتی پیدا کا لویہ خونہ — چہ ہاتیان پرے ننوزی ہسے ور

گیدڑ ہر چر تہ خپل وخت ساعت بدل کا — لوئے ځنګل بو یہ مزری لرہ یا غر

لوئے نہنګ لرہ عمان و قلزم بو یہ — پہ بیلہ کښے ئے تمام شی او بۀ خور

ہر مہتر چہ حاجت مند شی دَ کہتر — کۀ با ور کړے دغہ مرګ دے دَ مہتر

کۀ حاجت ئے پورہ نۀ شی ورتہ شاکا

دغہ کار کړنہ تر مرګہ لا بستر

دَ احمق سړی زړۀ نۀ دے پہ کوګل کښے — زړۀ ئے ځائے لری پہ ژبہ کښے ترتلو

چہ ئے څۀ پہ زړۀ کښے ورشی یا څۀ واوری

خپل پردی وتہ نو رسو شی پہ وئیلو

باداے دی راالوزی — پہ ہر لوری دَ بدیو

چہ پہ خپلو زړۀ بسۀ نۀ شو — بسۀ بہ نۀ شی پہ پردیو

خپل پردی واړہ وہلی

کۀ یاران وی دَ غدیو

اصیلتوب پہ نور څۀ نۀ دے — اصیلتوب دے پہ خویونہ

پہ مریونو کښے اصیل شتہ

پہ اصیلو کښے مریونہ

دَ فرعون دَ جادو ماران باطل وو — دَ موسیٰ دَ معجزے دَ مار دَ وړاندِ

عاقبت بہ فضیحت او شرمندہ شی

دروغژن چہ لہ رښتینو حجت کاندی

لہ ہیچا نہ طمع مۀ کړہ کۀ ہوښیار ئے — چہ طامع سړے تر ہر چا پورے خوار دے

طمع درے حرفہ لری واړہ بے تکیہ

ہر یو حرف ئے غورزندی دتہ تیار دے

دَ بخیل سړی کار بد دے پہ دوہ رنګہ — کۀ پہ زړۀ کښے فکر وکا نړئ یارانو

پہ ہغہ جہان حساب دَ توانګرانو

او پہ دا جہان معاش دَ نادارانو

عاقلان به په وئیل کښې زړهٔ رهبر لري دَ ژبې
اول فکر دَ زړهٔ وکا بیا قصې کا عجائبې

دَ هوښیار و ژبه پټه وي په زړهٔ کښې راز به نهٔ وائي اشنا و نا اشنا ته
لږ او ډیر وئیل به نهٔ کاندي بې ځایه
هیڅ باطل وئیل به نهٔ وائي وچا ته
دَ هندکي په زړهٔ کښې مکر حرکت لکه پیاز پکښې دَ پیاز گنده نکهت
لکه خوند دَ هر یړې په هریړه کښې هسې کار دې دَ افغان دَ جهالت
کهٔ هر څو پکښې دَ نیکو بوئي پیدا شي
له مغلو نه به لاړ نشي ظلمت
چه لښکرئې یکانه نهٔ وي په جنګ کښې هغه کس به و دشمن ته وي مقهور
چه لښکرئې یکانه وي غم دِ نهٔ کا
په غلیم باندِ به دې وي تل منصور
ونا پوهه ته داد ډیر ورکړه په غم کښې عاقلان په خپله پوهه مردانه وي
وهلک چه دَ لاسه ورکړې قرار شي
بیائې بل زمان ژړا په بهانه وي
غم ئې هیڅ مهٔ کړه خوشحاله کهٔ هر څو په ګناه ډک ئې
آدم ئې نفس درپورې
نه چه پاک پیدا ملک ئې
چه دَ چا سره فلک په کمې پاسي واړه چارې په لاس واخلي بې تدبیره
د ترږي چه دَ خوارئ ساعت راشي
دَ هلکو په پړکه کښیني په خیره
ګهړیالي دَ شپې له حاله خبر نهٔ دی چه ګهړیال وهي بې وخته بې هنګامه
دَ خوشحال دَ سترګو کړهٔ دَ شپې پوښتنه
چه بې خوبه پرې تیر بړي شپه تمامه

کۀ شیخان کۀ زاهدان دی توړے خاورے ئے په سر
کۀ قدم کښیږدی بے شرعے
په خلاف دَ پیغمبرؑ!

هر نعمت دَ خدائے لهٔ لوریه په سړیو عنایت دے
تندرستان دِ شکر کاندی
تندرستی یو لوئے نعمت دے

کۀ شیخان کۀ عالمان دی واړه ښهٔ راته ښکاره دی
په هر څهٔ کښے عشق بازی کا عاشقان ګریوان پاره دی

دوه ښادئ دَ جهان دی یا ښهٔ ځویه یا یاران
چه دا دوه ښادئ نهٔ وی څهٔ نر ښځهٔ څهٔ آسمان

هغه یار چه بے وفا وی رنګ ئے ورک شه
سپے چه ځان سره آشنا کړے له تا نهٔ ځی
تر یارئ نه ئے ښه ده نهٔ یاری
بے وفا په لږ ما نړه کا ویزاری

کۀ هر څو چه مړنے وی
دَ ښځو سره ناست وی
چه وسله نهٔ لری مرد
نندارہ کا دَ نبرد

عاقلان چه دَ دُنیا خصلت وُوینی
دا دُنیا لکه زندان ورته ښکاریږی
دَ دُنیا دولت و دوئ ته لکه بادشی
په واتۀ له دے زندانه په زړهٔ ښادشی

دَ بهرام په لښکر مهٔ څهٔ
خو چه څهٔ خو توربریښ وُشی
په ورتللو کښے درنګ نهٔ کا
نور دَ تیښتے نه ننګ نهٔ کا
مګر هورته ئے برے وی!
چه خوک هیچرے جنګ نهٔ کا

هسې غلهٔ راکړ شول په دا دَور آخرین کښې!
چه فیل له اَنبالئې پښتوی په خپل آستین کښې
زر دانې تسبیح لری شملې د روستو پریږدی
لوڼې کتاب په لاس کښې بل سیال نهٔ گڼری په دین کښې

دَ پردې په پریکوُ نه دَ پردې شی پټېدِ نه
یا څما تبرېږ نهٔ وو یا خو سخته نهٔ وه وُنه
هسې رنګ په وُنه لاړشو چه ئې نهٔ وه کشرید نه
دا چیستان عجب چیستان دے
کهٔ ئې حل کړے عقل منه

په جهان کښې گرځید لم په طلب دَ یوهٔ سیار
ښهٔ چه رنځ م ضائع نشو په لاس راغې ښهٔ نګار

دَمزری غوندِ ځان ژغوره مهٔ سرژه شه سرغنده
مزرے ځان په وقار ژغوری سرژه تیښت ته پرنده

ملک په مثل لکه غوا دے چه تندان وربانډِ جنګ کا
هریو تند چه زوروَر شی تند غیمه هغه ترځنګ کا

تر دیوال د ننه ښځې وی چه په کور کښې لکه خم شی
چه بیرون تر دیوال شی ښځهٔ نور زن دَ مردم شی
اول ښځې له پسه بدے
خو دِ رنګ دَ واړو کم شی
دا حدیث دَ پیغمبر دے لکه کړ هسې دروه شی
خوک چه بد نهٔ دے پخپله
هیڅ بدی به پرے ونهٔ شی

کۀ په ملک چیرے پیدا شی هنرور    دَ هغۀ په کمی سرشی بے هنر
کۀ دَ تخت دپاسه کښینی بادشاهی کا
آخر بیا دَ بے هُنر خاورے په سر
دَ خوشحال دیوان دوکان دَ جوهری دے    پکښے واړه لعل وُدُر یا قُوت الماس دی
دَ جوهرو قدر چا زده جوهری زده
نۀ هغه چه مرغیچے ئے په لاس دی
اورخوهومره چه دَ چاپرے زیست روزگار شی    چه په هر لورے ئے لیبےشی خیر کوم دے
دَ خانانو خو یه رونړه واړه اور دی    خو دَ اور لمبے ډیریږی کار معلوم دے
چه غم یږی له بلا نه    له بلا نه امن مومی
هغه سړے دا ړهٔ شی
چه په پړانگ باندِ وردرومی
دَ سړی چه قضا نۀ وی    دَ غلیم په زهرو نۀ مری
چه قضا دَ سړی راشی
دَ طبیب په دارو وُمری
دَ ځوا نمردئ روش درو بنیُم    کۀ ته ځوا نمرد ئے پرے به عمل کړے
چه دِ په کف دی هغه په کف دی
چه یو سر بل سر شو ځۀ پسے زغل کړے
دَ غفا په بوکه پریوتے په غرو نو    ترکا بله ترا ټکه سپینے واوُرے
١٠٩١
شکرزر به درست جهان سره گلزار شی
دَ بدکال په سرخو بیا شوے تور خاورے
خو ژوندے په جهان کرځئ    خوری خوړل کا دَ چیړ و
دَ مزری دستور دا نۀ دے
چه جو ته خوری دَ گیدړ و
کۀ دُعا ده کۀ توبه ده کۀ دارو    وخوشحال خټک ته خدائے ورکړه شفا
په دوه کاله دَ اسهال په رنځ اخته وو    ترے خلاص په ذوالحجه دو دَ غفا
١٠٩١

په جهان کښې دی دوه توکه بښۀ آواز دویم ښۀ مخ
چه لری دا دواړه توکه
دَ هغو کسانو سخ
کۀ ته هر څو کینه کښ ئے دَ غلیم وهے ورمیږ
وګردش وته ئے پریږده سره ګوره لیونۀ میږ
لکه زلفې دَ دلبرې پیچ در پیچ دی په صفت ئے زۀ هم هسے پیچ در پیچ یم
نۀ پخوا دَ پښتو شعر وو نه اوس شته
په دا کار کښې خو یوزۀ لعنت په هیچ یم
کۀ یار غواړے خوشحاله چه درست سرتر پایه ښۀ وی
ورځه بے یاره ګرځه سکه دا هسے یار به نۀ وی
په وریځے م کار نشته کۀ آسمان وریځ وریځ شی
له باران سره م کار دے
کۀ په شپه شی کۀ په ورځ شی
دَ صحرا ښۀ دی دوه توکه یو ژوره دویم لوړه
په لوړه ننداره کړه
په ژوره کښېږئے رغړه
په سپین مخ بانډ تور خال آرائش دے دَ جمال
په تور مخ بانډ چه خال وی هغه نۀ لری هیڅ حال
دَ ښۀ مخ ترسیری څۀ وی
لکه تندر دَ هلال
چه په حکم دَ حکیم کاندی انکار ترهغۀ نه به بل نۀ وی ناپکار
دَ نادان دَ هوښیار فرق وی په دوه رنګه چه نادان به محتاج نۀ وی دَ هوښیار
دَ هوښیار نخښه کۀ ډیره هوښیاری وی
بیا به دے دَ نصیحت وی طلبګار

... ... ...

A.S.KB

خساجو چه مردار هړ و نه سپي ګيدړ شرمخ ګفتار خوري
دَ مزريو هُنر دا دے
چه يا صبر يا خپل ښکار خوري

چه ئے واخلے ورته ګښيني درته ګوري ورته ګورے
دا الذت په جنت نشته
چه هم شوري هم پرے شورے

اوس دوه خيزه له تاغواړي يو ساتنه دويم سور
چه دا دواړه توکه نهٔ وي
نهٔ په غرهٔ ښهٔ نهٔ په کور

څُوانه ښځه لکه باد دَ نوبهار ده دَ بهار په باد دننه زړهٔ خوښيږي
زړه ښځه په مثال دَ منى وخت ده
چه علت او رنځوري ترے حاصليږي

رنځوران مري په درے رنګه ځنے وُمري بے طبيبه
څوک ناقص طبيبان وژني
دَ چا مرګ وي له نصيبه

نهٔ دَ پينډے برکت شته دَهندکيو نهٔ دَ تُورے برکت دَ ايرانيو
دواړه توکه مسلم دي کهٔ ئے ګورے
په دا ملک ښيے په افغان په تورانيو

خدائے دِ سترګے دَ بدخواه سرې رنډے کا ستا ګلونه به اَغزي ورخړ ګنديږي
کهٔ په باغ کښے دِ يو ګل وي زرخارونه
دَ نيکخواه به دِ په ګل سترګے لګيږي

چه لباس کا چه تقليد کا چه تيتال را ښکاره شو واړه په وار دَ هرچا حال
کهٔ شيخان کهٔ عالمان کهٔ زاهدان دي
له هيچا نه زړهٔ روغ نهٔ دے دَ خوشحال

لافې دَ هُنر کړه چه تر هرڅهٔ ښهٔ هُنر
څو وائې له زړۀ و
کانړے مهٔ وهه په سر

هغه يوڅهٔ مرتوب کا دغه دوه دی دَ دهٔ ملے
يو حيوان دے په تورتم کښے بانډ تل وهی حملے

چه ئې وُوينې په سترګو دَ خوړونی حرص زيات شی
چه وُوته له خونے تو دَ ښځې اودس مات شی

ښځه چه زړه شوه ور په لاس کړه نورڅيځه
وايه چه دا ته ئې دا نغرے دے دا اوګره

صغيره کبيره هرګناه چه وُشی هرګناه لره راځی پکار توبه
هم توبه له بدو وکړم هم ګناه کړم
له دے هسے شان توبه هزار توبه
يو حريص بل دروغژن دے هم احمق هم ترسمنده
دا څلور کسه سړی دی دَ يارئ په کار ګنده
که ئې ياری ورسره وکړے
زر به تا کا شرمنده
دَ دے زمانے خُويه چه بے بدو نور څهٔ نهٔ کا
کهٔ ئې وکورے له پلاره دَ مور غو ګټی که څهٔ کا

يو باز چه ښهٔ آلوزی نهٔ ګنده بازونه لس
يو باز چه ښهٔ آلوزی
هم هغه درلره بس

په قلم م رضانۀ دہ چه خبرېږی ذ رازمنو به رازونه روبرو شی
په زړۀ هومره پرتے نۀ دی چےئ شمارشته
اوس ئے بیا ورته سپړنه موبه مو شی

چه اصیل سړے کم ذاته بنځه کاندی په مثال سرۀ ګډیږی غوړی تیل
بل دلیل به ترداپه درلره راوړم
دَ سرو زرو سره ویلے کړه سرویل

هیڅ باور پرے نشته ترین واړه منافق دی
دَ بخو سپینو تورو
واړه توراو سپین لایق دی

چه پرے رانشی حیران شی دارډکو دارو دَ چا کا
دَ دے کلی رسم دا دے
روغ رنځور واړه زګیروا کا

چه ئے تولہ کا په کور کښے پریشانی به ئے هغه وی
عاقلانو نۀ کړۀ جمع
پریشانی به ئے په څۀ وی

بنګ شراب دربانډ څکه ناروا شول چه په بدو چارو نۀ شے مبتلا
نۀ بنګ خورے نۀ شراب څښے بے مستۍ
آلوده ئے په هزار اُلا بَلا

دویم دَ محرم ورځ دَ شنبه کال دَ غفج ۱۰۸۳ نۀ غشی وو نۀ تورے چه مغلو کړ بج
شنوارو آفریدیو دَ ډکے خوارو مهمندو
رویښې په خروار یورے مهران واړه په ججم

آفریدیو، شنواریو زړۀ په اُلجه بنۀ کړ ایمل خان مهمند په ننګ په اُلجه دواړه
دَ خوشحال ختک په بخره خویونګ دے
ترنظر پورے ئے هیڅ دہ دُنیا واړه

مالہ عقل لہ تمیزہ بنۂ بد بیاموندل دوہ ځیزہ
بنۂ تر و رکړو نورځۂ نشته بد تر غوښتو اے عزیزه

واړه سرچپتان دی کۂ واړۂ دی کۂ غتان دی
شرم ننګ ئے نشته دَ لوړ دی دَ وندرے

کوم دے چه اقرار دے چه ځما شنوبے تروُ دی
څوک به هسے وائی چه وئیل م خاورے سرے

ځان په ځان ویزار دی یالیوان دی یاګفتار دی
لویه چارئے نۂ زده دَ اړخی دی دَ شوورے

لنډ ورمیږ اُوږدے پنډئ لویه ځوړندہ لکئ
نور به ځۂ کوړم و تاته دَ بازونو لانکی تۂ ئے

چه ئے سرتر پایه درست په غم کښے لیوکړم
راته وائی اوس خوشحال وُسه ځۂ غم کړے
دَ هجران ورځے چه کښے په شمار دَ عمر
دَ قضا کاتبه عدل کۂ ستم کړے

ابدال په داخلورخویه ابدال دی کم وئیل کاکم دَ چا سره ګنډ ون
کم ناستے کا په خوراک کاکمه مینه
په داشان ئے په عالم کښے وی ژوندون
هرڅوک هسے وائی چه کۂ بنۂ وی ځماکار
کار دَ هغۂ بنۂ شی چه خپل بخت ورسره یار
نیت دَ هرچا سره بنۂ لره خوشحاله دَخپل نیت نتیجه رسی و هرچاته
شمشیرخان ترین چه تا سره بدی کړه
خپل نیت وجوړیدۂ دۂ ته ستا وماته

حلاوت دَ جهان واخلي بدسړي — حلاوت دے دَجهان په ښوسړيو

ښهٔ کچرې لره غوړي پاکيزه بويه

دَ کچرې لذت ګنده کا بد غوړي

دَ بدانو صحبت پاک سړے پليد کا — دَ بدانو سره کم کښينه کهٔ ښهٔ کړے

راشه نمرود ته نظر وکړه چه نمرود

په څو يو ذره ئے ابر ناپديد کا

ميږې لا په بلا يادې — چه وربوړے شي وزر

هنج خو هنج ئے دَ مشک به نشي — کهٔ څوک سل وائي کهٔ زر

خو به نهٔ رسي ترآسه

کهٔ هرڅو درومي ځرځد

شيطانان لکه مچان دي — چه ناستے په چرکين ځائے کا

په پاکانو ئے کار نشته

حفظ ئے تل کرم دَ خدائے کا

کهٔ بدخوئ له مزکے لاړشي وآسمان ته

په آسمان ئے دَ فرښتو سره روزګار کا

نهٔ به خندا نهٔ به لا رغهٔ وي چه بدخوئ ئے

هورے هم په سل غمونو ګرفتار کا

کهٔ دَ نظم کهٔ دَ نثر کهٔ دَ خط دے

په پښتو ژبه م حق دے بے حسابه

نه مخوا ليکښے کتاب وو نهٔ ئے خط وو

دا دي ما ليکښے تصنيف کړل څو کتابه

کهٔ هرڅو دَ صفت دے — کهٔ مخ ښهٔ لري ګلشن

دَ موړ تر کُس دِ تيرشي — يارچه نهٔ وي مهرژن

کهٔ ته په ګور دَ مهرويو راشے

بلچهٔ ئے واخلے دَ لحدونو

نورڅهٔ به نهٔ مومے دَ دوئ په ګور کښے

بے تورو خاورو سپينو هډونو

سپے چه وږے وی ډیر بد وی    شوکوی وا ړه مردا ره
څو چه موړ وی هومره ښهٔ وی
بله نهٔ کا بد ه غا ړه
دَ مجلس ښائست په څهٔ دے    په نغمه او په شراب
له شرابو م توبه ده
زهٔ ماهی یم نغمه آب
چیرے نهٔ وی چه دلګیر شے وار خطا کړے    کهٔ په تا باندِ محنت دَ سفر ډیر شی
کهٔ سفر دَ ډیرو کالو وی غم مهٔ کړه
دَ سفر عمر کوتاه دے زر به تیر شی
چه وبریښی سپینکئ    دَ لنډ پریو شورهار شی
بویو مرد بویه خوشحاله
چه په ځائے باندِ قرار شی
چه ژغ شی فلانه ومړ    خلق ژاړی زهٔ خندا کړم
ډیر غم م دَ ځان وکړ
څهٔ به اوس اندوه دَ چا کړم
هغه کار چه غره توب وی    تهٔ ئے دوست پریږده له لاسه
په خپل ځان غلطی مهٔ کړه
نور به هم وی ستا دپاسه
خپل کار وسپاره وخدائے ته    نور خوشحال کښینه خوشحال
دَ هغو چه وکیل خدائے شو
لاړل خلاص شول له جنجاله
دوه کاره دی په سوات کښے کهٔ خفی دی کهٔ جلی
مخزن دَ درویزه دے یا دفتر دَ شیخ ملی
دا دوه نشته په سوات کښے خوک چه وائی یا علی
اَلصَّالِحُوْنَ لِلّٰهِ وَالطَّالِحُوْنَ لِیْ

چه وهرسړی ته وګورے نظر کړے　　چه تر واړو پښتنوئے دی ډیر کلی
درے خلور تکبیره ووایه ترے تیر شه
دَمرده ؤ هدیرے دی دَسوات کلی

کله مار وکه حمله په سمساره　　ترے پیدا شی مار بخړی په انګاره
ولے نهٔ ئے مارمهره وی نهٔ ئے زهر　　نهٔ ئے توان دَ نمرودَ باد نهٔ دَ واوُره
چه دَ پلار نشان ئے نهٔ وی څوئے دَځهٔ وی　　لکه مار په سمساره جوهر سپارهٔ
عشقه تهٔ ئے کهٔ ځهٔ نور عیب وعلت ئے　　چه په مرد کړے رڼړا ورځ توره تیارهٔ
لکه مار په زور په هرځهٔ بانډِ سورشی
دَ خوشحال غونډِ هم شته څُنے سوارهٔ

# مُسَدَّس

مکره روخ دِ نهٔ دے دَغمزے په تیغ خونونه　　خون دَعاشقانو خون بها لری لکونه
تهٔ چه را ښکاره شے په وربل ایښی ګلونه　　نرناحقه لاڼے دَ ښا نُست کا نورجونه
تهٔ چه په ګلرنګو جامو درسته شے ګلګونه
سرے لمبے کړے بلے دَحیران عاشق په خونه
خولهٔ دِ غنچه ګل ده تیار یږی شګفتن ته　　تور بانړهٔ نیزے لرے دَ زړونو وسفتن ته
مهٔ پریږده زلفینے په عذار وآشفتن ته　　ورځ دَعاشقانو نزدے کیږی وخفتن ته
تهٔ چه پلو واخلے دَجمال ونهفتن ته
ولے هسے کار کړے چه بے اوره سیزے زړهٔ نه
ستر ګے دِ دَبازدی وخپل ښکار و ته نیولی　　شونډے دِ مهرے دی وبیمارو ته نیولی
زلفے دِ زندئی ګرفتار و ته نیولی　　زندِ منزهٔ ده وخپل یار و ته نیولی
سپینے لیچے تورے وګذارو ته نیولی
سرهٔ دِ دَ عاشق په وینولاس ترمروندهٔ

هیڅ ګناه مې نشته ویره وکړه له آزاره
واچوه له مخه بیا پلو د خدائے د پاره
برنده راته کښینه چه دِ بنه کړمه نندارِه
ته چه هسے نۀ نے چه جفا کوے له یاره
واړه غمازان دی چه بلائے کړه دوچاره
مۀ لیدے په سترګو د غمازو تور مخو نه

وروځے دِ محراب دی د عاشق ورته سجود دے
مخ دِ سپین کاغذ دے د خط کښلے پرِ درود دے
خال دِ چه د وروځو په پیوند باندِ نمود دے
واړه د آهونو په لوګیو تور کبود دے
درست دِ سرتر پایه نندارِه سره وجود دے
ونه د جا ثقلو واړه ګنج وړی ویخونه

ناز دِ عاشق کُش وو اوس دِ خال باندِ ثانی شو
رنګ دِ ودانی کا خوئ دِ خیر په ویرانی شو
تا ګیسو پریشان کړ درست جهان په پریشانی شو
تا چه مخ ښکاره کړ درست جهان په حیرانی شو
خلق ځان ځانی شو د خپل ځان په آسانی شو
څوک دے چه به آخلی د خوشحال ختک غمونه

# ترکیب بند

دل آرامه کۀ څما د درد دوا کا
سکه اول دِ هم د مهر دارو راکا
د دلدارو هوا دار له درد و دوکه
څما دم د آه سوړ سره وا وا کا
د وصال سودا سودا د سرومال ده
هر ګدا کله دا سوداو دا سودا کا
د آدم د آل اولاد سره ګل مکو
کۀ د دور رسم دا وواوس هم داکا
درومه درومه کله مۀ کوه له دوسه
کله کله دور هم مراد ادا کا
دا مهر و ملوکه وکوره له اصله
کله دے و مرد مراد ورکړۀ له وصله

دل آزارے کۀ دِ څۀ له ربه دار دے
زړونه مۀ آزاروه روئ د دا دار دے
ته چه ژاړے په زار زار ژړا دِ آ درم
دا دِ واړه درد او دوک زړۀ دِ آزار دے

چه اول دِ دَ زړهٔ داغ وَته آرزو وه ⠀⠀ اوس ور درومه زړهٔ دِ بنهٔ شهٔ چه داغدار دے

دَ زړهٔ دردکهٔ په زارئ په زوراو زر وے ⠀⠀ اے دَ زړهٔ له درده روغ په دا ډار دے

چه دَ زړهٔ له درده روغ دے په زړهٔ روغ
داچه ژاړی ژړا بنهٔ ده په دروغ

تاچه کړے له هرچا سره یاری ده ⠀⠀ بنکاره کړی دِ له یاره طراری ده

تهٔ چه ځان کنړے دلداره اے دلداره ⠀⠀ کله چا له تا لیدلی دلداری ده

ستا دَ قهر طاقت هیڅ زاغه نشته ⠀⠀ راشه قهر له زړهٔ لرے کړه زاری ده

داچه کله عاشق خاندی کله ژاړی ⠀⠀ دائے تللی له خاطره قراری ده

کهٔ دَ سرشند نه ګرانه تر هرڅهٔ ده ⠀⠀ چه له یاره سرساتهٔ شی اغیاری ده

تهٔ چه سرساتے له یاره اَغیارے کړے
شیرین ځان ترآشنا ځار کړه کهٔ یاری کړے

زهٔ زاړیږم خاندستا تر تَله تَله ⠀⠀ ترتا ځارشم ځانه ډیربنهٔ ئے تر بله

چه دَغم په ګزهٔ دِ زهٔ زهیر شهید یم ⠀⠀ تل تل خانده تل تل خانده تهٔ قا تله

چه تل تل په قهقهه خاندے زهیریږم ⠀⠀ خونا نرخه توبوے دَ خوږو تله

یو په شلَه بناسته دَجونو خانه ⠀⠀ تابه ستایم تابه ستایم یو په شله

تهٔ جانا تره تازه تر نسترنه ⠀⠀ زهٔ زهیرخسته جلیا یم تر بلبله

تر بلبلے جلیا زهٔ زهیرخسته یم
چه بلبله په غوغا زهٔ بسته یم

نن ئے لوئے څنړے کج کړے خوخوخمه ⠀⠀ لوئے څنړے ئے خم خم ترقامت سمه

عاشق کله یو ساعت بے جانا پائی ⠀⠀ کج لوکه ماهی هم پائی بے یمه

مخ په مخ شه ماته خانده چه خاطر م ⠀⠀ هوسی شی په خوبنئ شی بے غمه

خوخوبئ لرے ګل برے قد عرعرے ⠀⠀ په بنهٔ مخ لکه لاله ئے لا پر نمه

ګل وګل چه مخ په مخ شی پرخوبنی شی ⠀⠀ طوطا کله ګویائی کا بے موسمه

ګل خوبنی شی په موسم ګلِ نرګس
خولاله بالا لولوکا عالم کس

# ترجیع بند

ستا له لوري که هزار جور و جفا وي — له عاشقه به په سل رنګه وفا وي
په عاشق باندِ معشوقه عنايت کا — ستا مدام په خپل عاشق باندِ عنا وي
بنه ما ومنل چه ته بې حد زيبا ئے — په جهان به کم څوک تا غوندِ زيبا وي
ولې خدائے چه بنۀ جمال وچا ته ورکا — نۀ په دا چه دے بې مهره کبريا وي
که قضا په ما زړۀ سوے کا هم به ومرم — که يو څو ورځے دِ جنګ و فتنے دا وي
که تل ما سره غوغا جنګ وجدل کړے — خدائے دِ نۀ کا چه له تا به تلۀ څما وي

ستا دَ در په خاورو پروت بيقدره بنۀ يم
په بل لوري که په تخت کښينم بنۀ نۀ يم

هومره ډيره بدي مۀ کوه بد موره — هومره ډيره جفا بنه نۀ ده بد موره
کوم مُلا درته بنئيلے دا سبق دے — چه بدي کوه له يار سره بد موره
چه م زړۀ ساتي هغۀ ته به زړۀ ورکړم — تا دَ زړۀ ساتنه هيڅ نۀ زده بد موره
خو فتنے او خرخشے دِ دي په ملک کښے — که بې دا دِ هم څۀ نور څۀ شته بد موره
دَ عاشق سره تل جور هم بنۀ نۀ دے — کله کله څۀ خو مهر کړه بد موره

ستا دَ در په خاورو پروت بے قدره بنۀ يم
په بل لوري که په تخت کښينم بنۀ نۀ يم

په چشمانو دِ مئين يم را ته ګوره — دَ زلفينو دِ هندو يم مۀ م پلوره
په دا شکل شمايل چه لکه ته ئے — لا عجب که څوک زوولے وي له موره
په بنائست کښے دِ مخے دَ بنائست نشته — حيف خو دا دے چه بې مهره ئے هر ګوره
چه زړۀ ستا له دوکه مرم را ته دِ شا کړه — مکر مينه دِ دَ زړۀ شوه له ما توره
ستا له دره له درباره به لاړ نۀ شم — که هر څوم په جفا سيزے بے اوره
که هزار جور و جفا کړے ګمان مۀ کړه — چه له تا به م دَ زړۀ مينه شي نوره
ستا دَ در په خاورو پروت بيقدره بنۀ يم — په بل لوري که په تخت کښينم بنۀ نۀ يم

که په ما باند خوک زړه سیزی ښایئه
نه په حال م رحم کاندی ځائے لرینه

کله خوک له خپله یاره هسے کا
چه هلک ئے له مرغئ سره کو یینه

تږئے ولے له آزاره نه ویریږے
مبتلا خاطر م ستا له غمه مرینه

خبردار دِ په وفا په جور نه یم
درست صورت م آغشته شو ستا په مینه

په جفا به جور دِ هسے رنگ عادت دے
چه خاطر م ستا بے جوره نه پائینه

چه دِ زړهٔ هسے جفا جور په ما کړه
اوس ځما ده ستا د ورخښته بالینه

ستا د در په خاورو پروت بیقدره بنده یم
په بل لوری که په تخت کښینم بنده نه یم

ته هم څه خو فهم کړه ځما له آهه
هسے جور په ما مه کړه بے گناهه

یکباره په خپل ښائست غلطی مه کړه
که په حسن کښے تیرے لرے ترماهه

که په تا باند زړهٔ نه وے مئین شوے
خلقه به په تا هم نه وه آگاهه

چه مجنون باند مئین شو نوم ئے وشو
گنړه نه وه لیلی توره خانه سیاهه

محبت م دم په دم په تا شیا تیری
په دا حال م دا ده زیره گونه گواهه

په دربار دِ درویزگر د دیدن پروت یم
یو قدم به دِ وانخلم له درگاهه

ستا د در په خاورو پروت بیقدره بنده یم
په بل لوری که په تخت کښینم بنده نه یم

د رقیب په وئیل مه وژنه ما یاره
د یاری حق په تا کښنم بسیاره

که م وژنے بل گناه په ما ثابت کړه
چه را بنه د رقیب زړهٔ نه شی یکباره

که زړهٔ ستا له لاسه ومرم بختور یم
خو وینا ده د رقیب په ما دشواره

ستا د مخ محبت هسے به ما ډیر دے
لکه مینه د بلبل په گل بسیاره

تل جفا د ښائسته وُ سره مل وی
په جهان کښے به هیڅ گل نه وی بے خاره

که ته هر خو جفا کارا و دل آزارے
زهٔ خوشحال به دِ لاسه نه شم له درباره

ستا د در په خاورو پروت بیقدره بنده یم
په بل لوری که په تخت کښینم بنده نه یم

# مُخَمَّسْ

گوره مونږ به څۀ شو هیڅ خبر نۀ یو له حاله ... ورځ او شپه چه درومی خالی نۀ یو له جنجاله
مونږ به په مرګ ومرو که مو عمر شی زر کاله ... ګور لره به ورشو ډک لرلی له وباله
بله تکیه نشته خو هم ستا ده ذوالجلاله

شی د مرګ له لاسه په هر لوری طوفانونه ... درومی په ساعت کښے د کالونو سامانونه
پاتے شی په زړۀ کښے په زرګونه ارمانونه ... کانړی یو که څۀ یو بلا سخت لروځانونه
حال مو بدل نشی نۀ څۀ کم له خپله خیاله

کله خیال د ګُولو د پتیو د باغونو ... کله خیال د دشتو د الکړیو د راغونو
کله خیال د زرو د ګوهرو د لالونو ... کله خیال د عیش د عشرت د ایاغونو
کله خیال د ښکلیو د جمال له خط وخاله

لږ خیالونه نۀ دی که ئے وایم په زرګونه ... هر زمان راځیږی وا ړه ستا له اندرونه
ورځ وشپه پړے درومی د خیالونو کاروانونه ... هم په بیدارئ هم په شپه وینے خوبونه
ستا ده د زړۀ مینه په خیالونو مالا ماله

کله کوز په مزکه کله پاس په آسمان شے ... کله ګدائی کړے کله خان لره سلطان شے
کله شیخی واخلے په حلقه د درویشان شے ... کله دانشمند ملا دانا د درست جهان شے
سر شے په وئیلو په خورنګه قیل وقاله

خورنګه ستاینه د خپل علم کړے آغازه ... هم له خپله علمه هم له زهده له نمازه
تۀ که غلیوازئے خپسر واړه کړے تربازه ... نورے بازئ څۀ دی بازی خدائے سره انبازه
شرم حیا نۀ کړے نۀ نادم شے له افعاله

ماروی هغه علم چه په تن د چا لګیږی ... یار وی هغه علم چه وزړۀ وته رسیږی
درست تحصیل حاصل کړه چه خصلت دِ نۀ بدلیږی ... خرئے کتابونه په تا کښلی سوا نیږی
هیڅ دے هغه علم چه خالی دے له اعماله

کله درویشان دی چه دَخدائے په نامهٔ غواړی — در په درجار وُزی لکه خرونه هسے ناړی
هیڅ پوښتنه نهٔ کا چه څهٔ مومی واړه نغاړی — کوم ته چه څُوسی په خندا خندا وویاړی
تش خالی چه ورشی خوب ئے نهٔ کیږی په ساله

بنهٔ سړے هغه دے چه ځان کم گنړی تر بله — مکر دروغ نهٔ کا په رښتیا کښے وی هر کله
چار چه بانډِ ورشی بله لا بنهٔ کا تر خپله — شکر په نعمت کا په بلا صبر تر بله
زړهٔ ئے خالی نهٔ وی همیشه له اشتغاله

عقل آسمانی دے ته ئے مهٔ غواړه په مزکه — ځائے دَ گومی راغے په حکیم په پنډت څکه
خپله پوهه واړه شریعت وته کړهٔ ورکه — سپک به شی بے شکه څوک چه شرع گوری سپکه
لار دَ شریعت ده بے آفتابه بے زواله

څو رنګه عالم ئے دَ خوښ خورم په خپل روزګار کښے — هر چا ته چه گورم واړه ښخ دی په خپل کار کښے
واړه خپل مراد غواړی په صبر په تلوار کښے — سود گوری مقصود گوری په هر هره چار کښے
واړه خپل قسمت خوری دَ دُنیا له ملک وماله

ولے کناس نهٔ دے چه مالک دَ زرو پلو شی — کبر لوئی واخلی عجب خیال بانډِ نزول شی
دے که نا قبول دے په هر چا بانډِ قبول شی — کله ئے نظر دَ چا په فرع په اصول شی
څهٔ به درته وایم زهٔ دَ زرو له احواله

خدائے گوکهٔ خبر وُم چه دا زر هسے بلا دی — اوس چه پرے خبر شوم راته بدترا ولا دی
څکه راته بد شول چه دَ هر سفله تر ملا دی — نغ دَ هغو تور شه چه په زرو مبتلا دی
نام لره پکار دی که نه کم دی تر سفاله

پاک دی که ناپاک دی دَ خپل ځان ثنا صفت کا — خوښ له خپله ځانه په خپل کار کښے فراغت کا
هیڅوک محتاج نهٔ دی چه به غور په نصیحت کا — خپل غرض ته گوری کار دَ زړهٔ په مصلحت کا
ولے فضولی کړے دم په خود اوسه خوشحاله

# ترکیب بند ذوالقافیتین

څهٔ دَ بد وخوب ووچهٔ م وُلید و سحر
پا سیدم له کټه لکه خُوږ شی دَ چا سر
لاهم ترمبرزه هسے را غلمه اوتر
درست خلق اودهٔ وو واړو خوب کاوهٔ خرخر
هرچه نصیحت وو لکه بویه دَ پدر
جوړ شوم پیښور ته چه را وام خست جدر
ورځ وه دَ جُمعے رجال الغیب وو برابر
ښوک به وجاربا سی مبرم حکم دَ داور
لاهم ترمسجده نمونځ م وکړ پکه تر
هسے په هوا تلم لکه باد دِرومی صرصر
نهٔ وو لا دوپهر چه م ځائے شو پیښور
وے م دایم راغلم ستا په خط ستا په خاطر
داخواب ئے راغے چه را تلهٔ دِ وو بهتر
درځورځه شوے تیرے دیوان نهٔ کړ کیدی خر
شیخ دَ گجرات دَ دهٔ پیشدست ووپوبشر
دهٔ وے ترما راشه چه کنکاش کړو مقور
ورغلم تردهٔ پورے زهٔ پاک په خپل باور
لور په لور مغل ترما چاپیر شو په هُنر
ژغ وشو په شهر دا خبر شو منتشر

سترگے م رنړے کړے نا قرار شوم په بستر
هسے شان اوتر شوم نهٔ م لیرلیده نهٔ ور
غُسل م په ځائے کړ په سنت دَ پیغمبرؐ
هیڅوک خبر نهٔ وو اشرف خان م کړ خبر
ما په کتابت ورته ادا کړ مختصر
ونږل سروِ نازه په دوه ځا یه مکرر
تلهٔ مغرب رویه وو په داما نهٔ کړ نظر
ډیر دِ فراست لری هُنر گنج و لښکر
سور شوم په سیلئ نور م واچوهٔ په لیر
کوښے تنها تلمه په نوښار وخوت نهر
واستوهٔ مغل ته ما هغه ساعت نفر
کوم ساعت حاضر شم په ما کومه لرے چر
کاندهٔ په دیوان دِ رابنکاره کړه خپل پیکر
دے په څو وماته زهٔ له ځانه بے خبر
سر تر پایه واړه په دیدن کړیه نظر
بیا به دِ نواب ته ویل کړو زیر و زبر
تړُونه م نااهل مغلی شوی په داشر
مفت ئے په لاس کښیوتم په حکم دَ قدر
هیڅ نهٔ پسندل په خدائے پسنده وومکر

کُوزئے کړم له کوټه چه ئے کښیوتم په جال
زرئے را په پښو کړے پنج سیرئ بیړئ کوتوال

خو رشو په ملکونو دا خبر په درست دیار
هر چه اُمرا کان وو په صوبه کښې منصب دار
لاړل په صبا د وخته ټول شول په دربار
دا رنګه نیوهٔ شي نواب بنهٔ کړي داچار
پاسیدل له ځایه اُمرا کان شول تار په تار
ورغلل مغل لره قبول یې کړل مدار
ملک یې ځما ورکړ نالایق یې کړل سردار
درست ختک د دیو وکُشتن ته شو تیار
ما وخیلخانې وقام ته ووې په زنهار
یو به دشمن بنا دشي چه یې ورک کړ خپل تبار
دوئ او درست اُولس په زیارت وشیخ رحمکار
خو یې م نادان وو په خطا لاړل بسیار
بل فکر یې نهٔ وو در پیدا شو دَ ځان دار
دوئ په زړهٔ کښې داوې چه کهٔ سل کړو که هزار
تیرې شوې په بند کښې ځما دوه میاشتې په شمار
وغوښتې پنځوس زره روپئې صوبه دار
دواړه لوریې وکړهٔ سره دا قول اقرار
اوس خو باندهٔ دادي چه یې ځلئې وهندو بار
زر یې دا لاخوښ وُم چه کړهٔ ورشم تر دربار

درست عالم دلګیر شو لا پښتون یارو اَغیار
کل عالم حیران شو چه یې ولیدهٔ دا کار
وې وې دا هسې رنګ نیکخواه دَ شهریار
چه خوله یې شو پاتې هیڅ یې ونه کړ ګفتار
درې ورځې شوې تیرې ځما ترونه ناپکار
آس او خلعتونه مغل ورکړل په اقرار
کور او خیلخانه اُولس همه شو خبردار
روح دَ دیو والوت په بلا شو ګرفتار
مرګ کُشتن نهٔ بویه نه ځهٔ نور شر و اشرار
بل به فساد کړ شي دَ بادشاه دروهي اعتبار
ټول شول له دې کاره په قریب شول توبه کار
مرګ کُشتن کهٔ نه وي دَ دې مهٔ پریښوو وقار
مرګ وته م کښیناسته په لیل و په نهار
هرکله چه خلاص شي فلانه مونږه یو په دار
ملک واړه ویران شو خلقه شوه په کهسار
ماوې دربه نهٔ کړم یو پوچک نهٔ یو دینار
یو مغل بې پته بل م ترونه شرمسار
زړ یې فکر بویه په تعجیل او په تلوار
دَ عمر دولتخواه وُم دَ عزت وُم طمع دار

هند ته یې روان کړم بدرقه م مستجاب
هم ملک هم خان هم دَ همه غوري ارباب

زهٔ یې کړم له ننداره په شتاب شتاب روان
درسته شپه ښوکنۍ دَ محب خیلو په خپل ځان
راغلم تر نوښاره په صباهم په دا شان
ځهٔ به دَ نوښار دَ شپې زهٔ کوم بیان

راغلم نرم نرم په رباط دَ شابیګ خان
بل وو مصري خان داؤد زي یو ټول احدیان
خلق په ژړا په ننداره راته حیران
درسته شپه زلزل وو په هندو په مسلمان

صبح ئې کوچ وکړ پښتانهٔ مغل لرزان
ما وو پیغام کړے په اُولس په اشرف خان
مونږه د بادشاه یو قدیمي دولتخواهان
راغلمه ترسوا یه سرائې یک لخته وو ویران
څهٔ به درته وایم څهٔ پیرے لری آسمان
ډیرے ګرانے راشي په سړیو په جهان
ګران ساعت هغه ووچه م ولیدهٔ عثمان
راغلهٔ په اَرمان خُله جدا شو په ارمان
راغلو په تړئ ننداره چې مردان زنان
راغلو په ګړئ دَخیرآباد پیچان پیچان
هرچه راسره ووهغه واړه وو ترسان
ما خو پیغام کړے ووهم دا م ووګمان
هسے جنګ به وشي په دا آخر الزمان
جنګ جنګ جدل ونشو حکم دا وو دَیزدان
درست اولس م واړه په غوغا پریشان حیران

لور په لور فوځونه ووځما تو له ترمیان
نهٔ بویه دَجنګ دَخرخشے فکر سامان
یوم نام بدیړی بل ستهیړی افغانان
تا به وے هرګز نهٔ وو میشته دلته انسان
خوک ورته توانیږی چه شدّت کاندی عیان
خدائے وسړی ورکا بیا دَهرے چارے توان
بیا راغے زینو دَخیلخانے یو خوځوانان
زهٔ او دوئ دَ سرائې جو شجړ واړه کریان
هسے رنګ ولاړ وو لکه بے روحه بُتان
پورے کهٔ راپورے خلق واړه ننداره چیان
چا وے چه ختک به حاضر نشي په میدان
اوس به راځرګند شي له یوهٔ لوریه نشان
ګوره خو به شمار شي دواړه لوریه کُشتګان
پورے شوم ترسینده په اټک شوم نګران
ویړم په کورونو په هلئې هلئې م فرزندان

راغے په ختکو باندِ هسے یو ساعت
تا به وے نازل شو په جهان کښے قیامت

زهٔ ئے له اټکه نه روان کړم په دا حال
بیا له هغه ځایه په پنډئ په استعجال
راغے په رباط کښے له نوابه یو مثال
راغے په پنډئ کښے یو خط په دا منوال
لاړم له پنډئ شپه ترمینځ دَګګړ تهال
خُویه سعادت باقي میر باز پریشان احوال
وړاندِ ترما لاړل و دربار ته په ارغال
خُوئے دَمیر جمله دے میر بخشي په استقلال

ورئے وړم په پړه په بابا حسن ابدال
بیا له هغه ځایه تر رباطه وشو چال
بیائے بیرته یوړم تر پنډئ دم درحال
وانړی ئے په وړاندِ ودربار ته بے اهمال
لاړم ترلاهوره کوچ په کوچ په ارتحال
راغلهٔ په لاهور کښے راپسے دوئ په دنبال
وئے کړه بخشي ته له دے حاله قیل وقال
ډیر مهرئے وکړ دَ لا سا جوال جوال

وے ئے راورسی دربار وته خوشحال ۔۔۔ نور به سرفراز شی غم ئے نشته یو مثقال

زۂ هم په وسط دَ رمضان کوچال کوچال ۔۔۔ ورغلم دربار ته زر خلور اویا وو کال

ډیر درد وبدل شو په دا مینځ کښے ځواب سوال ۔۔۔ حکم دَ خلاصی په ضمان وشو په اجمال

ځائے په حویلئ کښے ترخپل خټک راکړ کوتوال ۔۔۔ جوړ شو ضمانی ته سید شمس دَ جلال

مونږ په دا فکرت وو چه په میاشتے دَ شوال ۔۔۔ راغے عرض داشت دَ سید میر په دا مقال

مۂ پریږده خوشحال دَ دۂ پریښوول دی اختلال ۔۔۔ بیا په مینځ کښے پریوت دَ خلاصی ډیر جنجال

ملک منصب جاګیر ځما تغیر شو مال محال ۔۔۔ دولس منصبدار م تابینی شول پائمال

نرناحق په کښل دَ بدوئیل دَ بد سګال ۔۔۔ وپسندۂ ظالم بادشاه په ما بانډِ اشکال

زۂ دلے په بند هورے ځما اهل وعیال ۔۔۔ تار په تار په غرونو په عذاب او په وبال

ھسے چارے وشوے چه دَ چا نۂ وے په خیال ۔۔۔ نشته دَ اورنګ بادشاه په عدل اعتدال

لوریه لور خورے شوے رالښکر دے دَ دجال ۔۔۔ نشته یو مهدی چه را ښکاره کاخپل جمال

دور دَ آخر دے فساد ګډ شو لور په لور

یو تر بل اَخته شو جهان واړه کور په کور

خدائے را بانډِ راوست دا همه واړه محنت ۔۔۔ خو چارے سبب شوے درته وایم حکایت

یو چه زۂ مغرور وم په راستئ په خدمت ۔۔۔ بل دَ مغل طمع ځما نۂ وه کړل عادت

بل م ناشکری بل دَ رونړو حماقت ۔۔۔ بل چه فرزندانو م خطا کړه مصلحت

یو ځله هم نه خطا خطا کرت کرت ۔۔۔ واړه مشرانو اشرف خان بهرام سعادت

وم کړ اشرف وته دَ تورے اشارت ۔۔۔ هیڅ عمل ئے نۂ وکړ ځما په نصیحت

څۂ خدا یار خلیل څۂ ئے حیا څۂ ئے حرمت ۔۔۔ څه ئے جګرام هندو څۂ دَ هندوانو برکت

یو یو ځوان پو هیږی دَ غلیم په حرکت ۔۔۔ زهر ګډ وُل شی دَ شکرو په شربت

څو یه هغه څو یه چه هُنرلری حکمت ۔۔۔ پوه وی دَ دښمنو په فریب په خدیعت

ونیسی په لاس کښے سخاوت وشجاعت ۔۔۔ نۂ صرفه په ځان نۂ په جهان اعلیٰ همت

دریغه اشرف خا نه دستیاری هومره قوت ۔۔۔ درست اولس په لاس کښے هیڅ درو نشو جرأت

وراغلل مغل ته دَ اشرف وو قباحت ۔۔۔ هم ځما آفت وو هم هر چا لره آفت

خو چه ملک ویران وو دَ مغل وو ډیر هیبت ۔۔۔ وشوه ودانی دَ ملک پوره ئے شو حجت

وئے کښل بادشاه ته دَ جګرام مجرا عزت
بوت ئے ووکابل ته اشرف خاں په شرارت

پاسیدهٔ بهرام ته په دا مینځ کښے یو غیرت
درست اُولس ئے ټول کړه په نړئ را اوخت

ټشے سرهوا غوټے دَ بازنهٔ وی خصلت
بازنهٔ ووباز رنګ ووچه ښکار ئے شو حالت

زهٔ وُم په دهلی کښے ګرفتار په دا زحمت
تیرے شوے په بند کښے پنځه میاشتے زیادت

بیا دَ میر جمله څو یه بادشاه نهٔ په خلوت
غرض ئے څما وکړ دَ میرخان په کفالت

داووے بادشاه فلانه به خلاص کړم سلامت
زن بچه کهٔ را ولی د هند ته په سرعت

حکم ئے دا وکړ امیرخان ته وشول کښل
زهٔ په بند بندی څما کورونه راوستل

واوریدهٔ دا حکم سعادت باقی میرباز
راغلهٔ یکایک ئے حقیقت کړه را آغاز

میاشت وه دَ صفر چه دے واړه لکه باز
وئے کړ وطن ته په رخصت څما پرواز

لاهل تروطنه په شل ورځے یکه تاز
یو په ځائے رانغے چه زمونږ ووسړ راز

غرب وته قبله وه و مشرق وته نماز
تلهٔ ووکربلا ته دَ حج لورے وو حجاز

څهٔ به درته وایم له دے حاله دور دراز
کوټے کوټے حال دے مختصر بویه ایجاز

واړه لوئے هلک چه م ساتلی وو په ناز
واړه په نعمت کښے پرورده مَلوک شیراز

تار په تار خوارهٔ شول مبتلا په ډیر نیاز
دَور دَ ګردون کړل دَ بلا سره آشناز

هره ورځ فلک لری تازه تازه طراز
هیڅ باور ئے نشته په نواخت او په نواز

وولی په مزکه یو ساعت کښے سرفراز
پروت په تور وخاورو په زمان ئے کا ممتاز

ډوب کا په دریاب کښے چه محکم لری جهاز
و باسی له مینځهٔ چه ئے نهٔ زده وی شناز

څهٔ کړم چا ته آه کړم هیڅوک نهٔ لرم دمساز
چا وته ناره کړم څوک م نهٔ آوری آواز

دروم په بل لوری په فلک راشم بازباز
مهٔ وے دا فلک مهٔ ئے دا هسے امتیاز

اهل په خوارئ کښے نا اهل په اعزاز
خیرے خط میرمنے خدمتګارے په پیشواز

هرچه ابلهان دی روغنئ خوری دَ خباز
هرچه دانایان دی نان خورش نهٔ لری پیاز

نشته دَ ریښتینو کره یو ګُهنه پلاز
سرهٔ تغر په کور کښے دروغژن لری غماز

نور مرغونه ګرځی په باغونو په طناز
بندی دی هم هغه چه یلئے رنګ شته یا آواز

آس واړه شاخوری په نشیب او په فراز
خر و هی خر تیزے په آخور کښے په رباز

خو به درته وایم حقیقت دے که مجاز — بس کړه داخبره مختصره هم ایجاز

خهٔ کرم نهٔ پوهیږم دا فلک سفله پرور
لاس رسیدے دریغه چه پرے سوړ کړلے تتر

دوه ځله سرائے مات شو یو ځاېه بندیدل — بل د سعادت باقي میر باز په رسیدل
یو ځله په ماتے تر هنګاله ورغلل — بل داکوزیو په سیکری ننه وتل
نهٔ ئے توره سره وه نهٔ د سرو ماتیدل — خویه م له ملکه له اوله ووتل
زهٔ په هند کښے بند وُم اشرف خان وو په کابل — وارهٔ زن بچه م په سیکری کښے داغیدل
راغلل د بادشاه ته د کابل د صوبے کښل — ملک د سرائے ویران شو پرے بیحد وُ شو زلزل
ځائے په ځائے فوځونه په خوګئ کیناستل — لار د سرائے نیولے مسافرے چلول
جوړ شول یوسفزئی خټک سرائے ته په وهل — خو تهتوان ئے بوتلل په سحر ترے وختل
بارے خهٔ ختل وو نهٔ ختل وو نهٔ متل — بارے خهٔ وهل وو نهٔ وهل ؤ ونهٔ مهل
نام ناموس م لاړ شو چه اعتبار وو د مغل — نوم م د بدخواه وو چه نیکخواه وُم تل تر تل
ملک ئے وو راکړے په پنجاب کښے متصل — حکم د بادشاه وو صادر شوے په پرینهول
لیرے د که محنت دے که کشتن دے که شړل — وارهٔ په قسمت کښے په سړی باندِ نازل
داچارے چه وشوے بیا ترمینځ شو فکر بل — څوک ئے په چا نهٔ کا د سړی دے نصیب خیل
زهٔ د یوسفزی په ځان زهر وُم قاتل — بل مقصود م نهٔ وو په خدمت کښے د مغل
دیر شاهان خوانان م یو د بله وُ وژل — تیر ساعت ارمان دے پښیمانی نشته حاصل
دا په خیال د چاوو یا په فکر جارو تل — خواست رضا د خدائے وه په هر شان چه شول
شاباش په هغهٔ شه چه د ننګ وکا پالل — راغلے یوسفزئی لکه پیښ شو کار مشکل
یو وو ها ئیزے را نیزے ورسره مل — لوئے هلک م وارهٔ تر دریاب پورے وتل
لاړل تر سیکرئی ورسره مل کوروند سل — نور خټک م وارهٔ په خپل ځائے وُ دریدل
خهٔ بلا د خدائے ده د وطن جدا کیدل — رونړه عزیزان خویشان و بله بیلیدل

یو هے هائے هائے وو په ژړا وو لوئے هلک
درست عالم حیران شو چه خهٔ کار شو په خټک

خدائے خو خبردار دے کۀ بنکاره نۀ دی په چا
خپل وو کۀ پردی وو کۀ آشنا کۀ نا آشنا
هرچه مخامخ دُم هسے شان دُم پسے شا
هیڅکله په ظلم رضا دار نۀ دُم اصلا
هرچه رعیت وو خۀ غریب وو خۀ غربا
زرکۀ زرینه کۀ مال وملک وو دَ دُنیا
بد دُم له هغو چه مبتدع وو ناصفا
قصد م له هغو وو چه مفسد وو بے وفا
عمر م چه تیر شو په راستئ په رښتیا
پلار نیکۀ م ځان کړ دَ نمک په کار فدا
څویه م په بندشۀ له وطنه شوم جلا
تار په تار م لاړے خیلخانے کجا کجا
ملک واړه برهم ودان ښهرونه یو پنا
څو میاشتے په بند دُم په دهلی کښے په عنا
هیڅ دَ اورنګ زیب بادشاه په دانشته پروا
کوښی په مانۀ ده ډیره وشوه په هرچا
هرچه کتهکان دی په صوبه کښے کد خدا
یو په رنتنبور کښے دوه سوناست دے مبتلا
رومبئ ئے تر واړه په خپل پلار سره کړه خوا

بندیم خلاص دِ نشم کۀ دروغ وایم په دا
چا سره م نیت دَ بدو نۀ وو دَ جفا
بل فکر م نۀ وو نۀ دَ روئ نۀ دَ ریا
هرچه ظلم کار وو له هغۀ م وه بلا
دام وو په نیت کښے چه آزار نشی له ما
واړه م پیرزو په خیلخانه وو دَ آشنا
درست په زړۀ منین دُم په فضلا په عُلَما
غم م له هغو وو چه غلیم وو دَ بادشا
نۀ م وه په کار کښے دَ مغلو هیڅ دغا
بل پښتون م نه وو په راستئ کښے همتا
څو چارے را وشوے نۀ ګناه نۀ م خطا
واړه په ډیر غم کښے مبتلا جدا جدا
تار په تار له ملکه درست عالم په واویلا
اوس په رنتنبور کښے بندی پروت یم یکتنها
خلق کۀ دَ دۀ له ظلمه کاندی تل ژړا
شل صوبے دَ هند دی په هرلوری دَ غوغا
څوک په بند بندی دی څوک لاکړئ ناویسا
څوکو ټونه نور دی پکښے بند دی بے احصا
بیا ورپسے نور وهی چه دی اعلیٰ ادنا

رنګ دَ هغو ورک شه چه آوته وائی دروغ
نشته څوک په ملک کښے چه له دۀ وی په زړۀ روغ

ده چه له دکنه نه راهسک کړ خپل علم
ورک ئے کړ په ظلم هم په مکر ډیر عالم
وئے کړ اول له مراد بخش سره قسم
راغے په اُجین جسونت سنګه ئے کړ برهم
بیا په آګره راغے په دارائے کړ تورتم
بند ئے شاه جهان کړ تر ئے بیل کړ دَ رست حشم
بیائے مراد بخش دَ شاهجهان سره کړ سم
یو ړ ئے ترملتانه په دارا پسے برچم

بیا راغے په بیرته په شجاع نے وروست غم
جنګ وو په کجوه کښے چه شجاع شۀ منهزم
بیا دارا جنګ وکړ په اجمیر کښے بیش وکم
مخ په مغرب وتښت دارا شا برهم درهم
ونیوۀ جیونړ پنړی په کور کښے په خپل چم
راۓ وست دهلی ته دَ دهٔ سرئے کړ قلم
بیا سلیمان شکوه دَ دارا خوۓ مکرم
را وست راجپوتانو ګرفتار شو په اَلم
لا ړ شو شاه شجاع ته مشرخوۓ شو دَ دهٔ رم
بیائے ځنے بیل کړ په ډیر مکر په ډیر دم
بیا په شاه شجاع پسے دلیر وو معظم
وئے یوست له بنګه ګوره چرته ځکوی دم
راۓ وست په خونه دَ خپل پلار هسے ماتم
کار ته ئے حیران شو هګلی عرب عجم
دا ترۀ دَ واړه په دوه کاله بیش وکم
وشهٔ دَ دهلی سلطنت پرے مسلم
وشوۀ اوۀ کاله زر ادیا کاله دوه کم
دۀ چه دَ دهلی په سریر کیښودۀ قدم
یا آزار دَ پلار دے یا اثر دے دَ قسم
یائے له غروره مبدل شو خوئ شیم
یو هے هائے هائے دَ په انواع انواع ستم
خو کاله کۀ نو روی درست عالم به کا عدم
هسے په ظاهر صورت په مکر دے محکم
واۓ چه پیدا شو ثانی براهیم اَدهمؔ
فعل ئے چه ګورے هلاکو دے یا اظلم
چا دی آوریدلی په اولاد کښے دَ آدم
پلار په بند ترلے قتل کړی ذی رحم
واړه ئے دَ خپلے خود کا منی لا په غم
هیڅ دَ خوار مظلوم په حال پوښتنه نۀ کوم
دواړه ورته یو په تفحص کښے کرم ناکرم

داهسے بادشاه دے داانصاف داۓ تمیز
خداۓ به ناانصاف په جهان نۀ لری عزیز

واوره دا خبره درته وایم ممتحن
واړه کار په بخت دے په طالع دے نور سخن
چیرے دارا شاه چیرے دَ دهٔ جاه و مخزن
چیرے دَ دهلی زمزمه زغرے جوشن
چیرے اورنګ زیب خهٔ ئے پایه خهٔ ئے دکن
خهٔ دَ دهٔ سامان خهٔ ئے لښکر ځپن مچن
راغے په آګره دَ دهٔ په سرا یښے کفن
تار په تار فوځونه دَ دهلی برهم نن دن
بخت چه چاته مخ کا دَ هغهٔ چمن چمن
ګل شګفته کیږی په بنوړ کښے په ګلخن
بخت چه چاته مخ کا ورد بند کا په آهن
ګنج ورننوزی تر دیواله تر روزن
بخت چه چاته شا کا کهٔ دانا وی دَ زمن
خپله دانائی ئے سرے لمبے شی دَ خرمن
بخت چه چاته شا کا مرغلرے دَ عدن
نۀ پیری دَ دهٔ دَ مرغیچو په ثمن

کار د دې اوده په هیچا نه دے مبرهن — دولس ځایه کړې په ځائے نه لری مسکن

هر لوری ته گرځی هم پاسبان دی هم رهزن — خوک تر خوف تیر کا د چا ووهی گردن

څۀ به در ته دایم چه نے خو دے مکر و فن — خلاصے له آسیبه نۀ دے هیڅ نو او کهن

اړه یو نفس دے نتیجه نے ما و من — واړه په تکېنې دی چه نے وځی له دهن

ورک شو د یزید په هغه خوکاله دیدن — پاتو شۀ پرے لعن د حسینؑ او د حسنؑ

تل به دا ورنگ نۀ وی دا کرو فر و فن — پاتو به په دۀ شی تل نفرین د مرد و زن

څۀ شوکۀ دولت نے آویزاند شی په دامن — بیا کله سفله دے د اعلیٰ یائے خبثن

هرچه په فطرت کښے پیدا شوے دے خیرن — پاک اوصاف به نشی کۀ ئے تل وینځے بدن

څۀ شوکۀ د بازله ځاله والوزی زغن — بیا زغن زغن دے کۀ هر څو دے پنجه زن

هرچه پاکیزه لری خپل اصل خپل گوهر
مه کړه خدائے چه راض شی په آزار د خپل بدر

خدائے وکړے دا چارے په ما واړه وکړے زړه — خو چارے غلط شوم چه م لوئے کړ احمق تره

بل چه د دۀ لور م امرا ته کړه واده — بل چه م په کور کښے څۀ کښے نښول سپین او سرۀ

بل م چه کوټ محکم بنا نۀ کړه په غره — بل چه م په توره په خدمت غرور کاوه

بل چه م مغل په ورکړه مرکړه نۀ غلاوه — بل چه م په وخت د نیو ملک نۀ ولاړه

بل م چه قوت د یوسف زئی ورکاوه — بل م چه په اصل غوریه خیل پښتون نۀ زړه

وائی چه له ځانه په اولاد وی پیرزو بنۀ — خدائے به کاروانے په اصلی ویلو اوبۀ

دا یو خو خبرے چه ما راوړلے په خوله — بویه چه همه واړه وکښلے شی په زړه

نرد دے کۀ شطرنج دے کۀ چوپړ دے وایم زۀ — دا واړه چه نے زده شی نو لوئے لویه شی هاله

هرچه به دا کار کښے خوک اومۀ دے کۀ پاخۀ — وکاندی پاخۀ په زمان چارے په ومۀ

هیڅ په خپله پوهه هنرمند شه غرۀ ته — هرچه تر تا بهه دے عقل زده کړه له هغۀ

وائی چه په پوهه بو علیٰ چا وویشته — بیا په ډیرے چارے خلقو احمق باله

هیڅ سړے هغه دے چه برځی په هره خوله — کار په توکل بویه نۀ خلقو ته کتۀ

یار چه هسے بنۀ وی چه نے ځائے کړے په لیمه — بیائے په یاری مۀ کړه هیڅ غلطیده

څۀ بلا دی بنۀ دی د دوو سترگو توربانړه — سترگے د رندے کا مشه سترگو ته کره

مل هغه باله شي چه تیر بیر نه ځي تر مله
نه وي دچا ترستونی تیر چیرے ترخه
څوک چه په لوستو لوستو ملانه زده کا خه

مل دَخپل مقصود دے چه نے ورانډِ روستو تله
بوتي دَسپلمئ دَکندیري کنړی خوار.ه
څوک دَمور په نس کښے زده کا وزیري هاله

دوه سو شل بیتونه دی یو ولس بنده بشه
ما په رنتنبور کښے دَ زړه تا ؤ پرسړاوه

# مربع

دَ شهئ تورو سنبلو
پړے غوغا کا نړئ بلبلو

په سپین مخ ئے تسلسلو
تل به وخت نه وی دَ ګلو

له ما ګرځئ دُوره دُوره
نور که مری په تیره تُوره

نظر نه کا له غروره
زه ئے مرم په تغا فلو

زه هغه اخلاص لرمه
چه ما نړے کړے له ما مرمه

ستا په سترګو سوګند خورمه
مخ دِ تورشی دَ چُغلو

راته نه خاندے غمګین شم
نه به باز نه به شاهین شم

ستا له جوره په زړه خوږین شم
نه به راشے په منګلو

خپل انداز ورلره بس دے
خان ته ګل وائی که خس دے

خوښ په خپل هُنر هرکس دے
هر یو مست دَ خپلو ملو

کۀ مې زړۀ کۀ مې دماغ دے    نۀ ئے باغ پکار نۀ زاغ دے
پۀ دا بوټۍ مې زړۀ فراغ دے    چۀ ئے راشي لۀ کاکلو

همیشه ورپسے ښامارم    په موندنه به ئے ویارم
کۀ ئے موم زړۀ ئے غوارم    په اوراد دَ څلور قلو

شکردا چه په پرواز یم    وَ ښکارونو وَته باز یم
زۀ خوشحال دَ غرونو باز یم    چه په بند وُم دَ مغلو

# معشر

تۀ خپل خوب کوه بُتا    کۀ زۀ زړۀ درسته شپه بے تا
سترگے سرے کړم په ژړا    نارے وهم په واویلا
چه ترکا نړی سخت دے لا    هغه هسے زړۀ دے ستا
خولا پا یم په دُنیا    کۀ زړۀ سوے دِ شي په ما
نور څۀ نۀ غوارم لۀ تا
مکړه دا هومره جفا
کۀ تیره تُوره وکښلی    راشے تۀ قهر نیولی
رقیبانو سندُولی    دواړه لیچے دِ غښتلی
بیا یو خو کلے وهلی    وکُشتن ته جوړیدلی
ما دِ دا جفا منلے    خون بها م دربخښلی
هومره مهر وکړه کښلی
را ښکاره کړه خپل لِقا
هغه ورځ چه مئین کیږی    عاشقان تر سر تیریږی

کۀ عالم ورته وتېرېږی　　نۀ ئې ننګ وی نۀ شرمېږی
نصيحت پرې نۀ لګېږی　　له کُشتنه نه وېرېږی
لا يعقل شی نۀ پوهېږی　　خو مجنون شی ودرېږی
پورې خلق حيرانېږی
له هرچاوی شا په شا

نورې هېڅ نۀ وی په دِل کښې　　په سکوت او په وېل کښې
په خوړلو په نوشل کښې　　په خلوت او په محفل کښې
په مېدان او په ځنګل کښې　　په لېدل او په کتل کښې
په فروخت په پېرَوُل کښې　　په ولاړ په پرېوتل کښې
په آسان او په مشکل کښې
دَ خپل يار لرى هوا

کۀ هجران وی کۀ وصال وی　　دواړه دۀ ورته يوحال وی
کۀ هزار غرونه جبال وی　　د پرسيدونه ډيرا طلال وی
تردا مېنځ پرده محال وی　　ورښکاره دَ يار جمال وی
جلوه ګرې خط وخال وی　　خوښ خورم دَ يار په خيال وی
هم په دا ليدۀ خوشحال وی
نۀ کا بله تمنّا

## مُسَدَّسْ

محبوبا پری رخسارې
دوه دِ سترګې دی کتارې　　سرتر پايه قلم کارې
　　تل په لاس تيرې کتارې
چه ئې واړوې بيمارې
خونريزی کاندِ خونخوارې

دوه د وروځے دی مهینے دوه دِ زلفے عنبرینے
دوه دِ شونډے شکرینے نازنینے مه جبینے
سروِ قدے تن سیمینے
جفا جوئے دل آزارے

تور گیسو دِ مشک افشان دی په سپین مخ دِ پریشان دی
تار په تار پیچان پیچان دی په هر تار ئے آویزان دی
کۀ شیخان کۀ زاهدان دی
په هر چا دِ وکړے چارے

ډیر په تا پسے افګار دی په فریاد او په کوکار دی
ستا دَ وصل طلبګار دی صبر نۀ کا ناقرار دی
عاشقان دِ صدهزار دی
ما به چا سره وشمارے

بیا دِ ولے مهر نور شو چه نظر دِ په بل لور شو
په ګوګل کښے م بل اور شو فراق ډیر را باندِ زور شو
رود دَ اوښکو دِ راخور شو
زۀ ئے خو لړم حصارے

څۀ خو مهر تۀ دلبر کړه نۀ تل جور سراسر کا
په ماخوار باندِ اختر کړه له برقع نه مخ بدر کا
څما اوښکو ته نظر کا
چه په مخ څی لاړے لاړے

چه م یار ګنړۀ یار نۀ وو بیهوده م زړۀ پرے بنۀ وو
په خپل رائے وو په خپل زړۀ وو څما ډیر امید په دۀ وو
دے دَ هر غماز په خوله وو
تل په ما پسندی دشوارے

چې ئې بیا ترکش په میان کړ چه ئې عزم دَ میدان کړ
چه سمند ئې په جولان کړ واړه خلق ئې حیران کړ
زغ ئې ګډ په درست جهان کړ
خلقې ئې کړې هموارې

آرائش دَ خط وخال کا ستائش دَ خپل جمال کا
تل تل کبر تل تل خیال کا تل تل پېچې تل ناخوال کا
خو نا سازې په خوشحال کا
سل فتنې لري تيارې

# مخمّس

وعاشق ته دوه قدمه بحروبر دے نهٔ ئے ګرد په لمن پرونهٔ دامن تر دے
په فریاد ناره وهي په نارو سر دے چه دَعشق په ګرانه لار کښې ډیر خطر دے
هر قدم چه پکښې اخلې ډار دَ سر دے

عاشقان دَ شاه دَخولے په جامے سپينے قلندر دی نهٔ لباس جامے رنګينے
اندرون م واړه ډک شو درست په مينے کهٔ سينه م سره چاق کړے وبه وينے
چه م ستا له غمه وينے درست ځيګر دے

بنائسته چه په بنائست کښې دلنشين شي دَعاشق سره ډير مهر لرے کين شي
نهٔ چه تا غوندِ آفت دَ دل ودين شي ستا دَ مهرباران نهٔ وُوري چه شين شي
ما په زړهٔ کړے ستا دَ مينے کر دے

عاشقان په عشق کښې نهٔ کا دَ سر ويره دَ سر ويره انديښنه ده مختصره
کهٔ دراز پيالهِ ، هر خوده تيز تره ستا په راز به ژبه هم نهٔ کړم خبره
تل تر ژبے رسيدلے راز سمر دے

نتیجه ئې سوړ سوړ آه سپینې اوبه وی آبله دننه زړهٔ لیمهٔ ئې سرهٔ وی
مشقت ئې هم په ځان هم ئې په زړهٔ وی زړهٔ خبر نهٔ یم له عشقه چه عشق څهٔ وی
هو مره آورم چه له حُسنه ئې اثر دے

عاشقان په غم خوشحال دلګیر بے غم دی په هوا د یار د زلفو پیچ وخم دی
فارغ شوی له وجوده له عدم دی چه ئې عشق ترسره کړے هغه کم دی
په دا کار کښې لاف وهلے یوهٔ هر دے

د بلبلې خوشحالی وی په ګلزار کښې د عاشق د زړهٔ خوښی وی په دیدار کښې
خو به عمر تیروم په انتظار کښې صبر مهٔ غواړه له ما د عشق په کار کښې
جو دا نه صبر په ما باندِ لوئې غر دے

اول مینه د یوسف په زلیخا وه بیا له پسه د مجنون او د لیلیٰ وه
له غه پسه د وامق او د عذرا وه عاشقی لا نهٔ ته نهٔ وو چه پیدا وه
نهٔ چه ما او تا ګډ کړے دا هُنر دے

کهٔ پلو له مخ لرے محبوبا کا بیدلان به پروانه په خپل لقا کا
تل له ما سره فتنې جنګ وغوغا کا خو خُما طالع بشهٔ نهٔ دے یا رجفا کا
ګنړه کوم یو په وفا ترما بهتر دے

یو زمان م خالی مهٔ ږُسه له خیاله په خپله کونګ او سه د عشق له قیل وقاله
په ناله دِ کهٔ بترشی تن تر ناله د عشق غم له خلقه پټ لره خوشحاله
څه ئې پټ کړم چه عالم ځنې خبر دے

تل دِ ستائی په درست ملک کښې کښلی سل څوک یو به نهٔ وی په دا شکل و شمایل څوک
حد د چا دے چه دِ پل ږدی په بورجل څوک کهٔ زهٔ نهٔ وے ته به ځان لره بلل څوک
په پالنګ به دِ دا هسې راختل څوک

خدائے خما په زړهٔ کښې ځائے محبت ستا کړ نهٔ چه ما په خپله زړهٔ په تا شیدا کړ
کور په کودم د زړهٔ راز مینې رسوا کړ واړه عشق دے چه ئې سر راته ګیا کړ
ګنړه زهٔ په ځان منین د سر بسند لڅوک

عاشقان په عشق کښې خوار و بیچاره شی     لور په لوری په جهان ګرِیوان پاره شی
آواره د یار د مخ په ننداره     شی     چه پتنګ ته روښنائی د چراغ ښکاره شی
نور له چراغه د ده غواړی جار و تل څوک

کهٔ په زړهٔ کښې م د مینې ذره نهٔ وے     هو مره ستا په مهر مینه غره نهٔ وے
لکه زر د اور په تاؤ کښې سره نهٔ وے     بدرقه کهٔ محبت راسره نهٔ وے
یک تنها به په خونخوار و لارو تلل څوک

راته وائی د رندئ په کار کښې سست ئے     دروغژن په میخورئ کښې نا درست ئے
ما په سر د دروغژنو خاورے لوستے     د دیو میو پیالے ډیرو دی اخیستے
ولے ما غوندِ به نهٔ وی لا یعقل څوک

عاشقان دِ د چشمانو مے پرست     دی     همیشه د بیخودئ پیالے په دست دی
په مستئ کښې له بلا سره پیوست دی     د زنخ په چاه د بند د شونډو مست دی
روغ هوښیار به په کوهی کښې پریوتل څوک

چه نا ترسه بے پروا راغلے له خایه     نورے نشته لکه ته ئے خود آرایه
خود آرایه خود پسنده خود نما یه     ته پخپله راته وائے چه ئے وایه
کنږه زهٔ د مینې راز ښکاره وئیل څوک

د مجنون او د لیلیٰ وئیل یا دیږی
خما ستا وئیل په هر لوری زبا دیږی     همیشه م زړهٔ په دا وینا ښا دیږی
ښهٔ خو دا چه د چا نوم پکښې یادیږی     په فانی دُنیا به نهٔ وی ژوندے تل څوک
وارهٔ تازده درته نهٔ وایم چه زده کړه
لون لون طور طور کرشمه کړه     د غمزے توره لا ښه په څرخ تیره کړه
تهٔ م وژنه د قصاص اندیښنه مکړه     د خپل خون په تور به ونیسم یو بل څوک
بے له تا به د نور چا هسے شمشیر وی
چه ئے بے قتل وکشتنه نور څهٔ هیر وی     په دا کار کښې ئے نظر تر هر چا تیر وی
د سرونو شمار حساب بویه چه ډیر وی     نور دِ مری په دا میدان کښې پردی خپل څوک

خلقه دِ هملګی واړه تر پښې شوه
ماوے اوس دِ دَ غمزے تورهٔ بګښې شوه
بیا دِ جنګ وته خونریزه شمله پریښوه
چه دِ تُوره دَ غمزے په غاړه کښیښوه
حق ناحق به دِ په دا تُوره وژل خوک

ډیرے سمے کړے آؤرم غنچے مرمه
چا ته دم وهلے نهٔ شم غصے خورمه
چه دَ واړو خواب وګرم توان لرمه
دَ وګړی جفا ستا دپاره وړمه
کهٔ نهٔ زهٔ دا رنګ وګړے دا زغمل خوک

په دا شکر چه نے هومره خوبی درکړه
تهٔ هم تل په خوار عاشق باندَ نظر کړه
دَ رقیب او دَ غماز خاورے په سر کړه
تا پخپله سپینه خولهٔ خوشحال ته وَرکړه
ګنړه دے دا هسے شونډے کښلول خوک

# مربع

دریغه بیا مو دوه په دوه وبله راز وے
لا یو راز وشیلے نهٔ دَ بل آغاز وے
ستا له لوریه واړه ناز له ما نیاز وے
په مزه مزه خوارهٔ وشیل بار بار وے

همیشه په هغه خوئ کښے چه دِ خپل وو
هغه خیال چه دِ دَ زلفو دَ وربل وو
دا خسته خاطر م هسے لکه تل وو
فراغت بے غمه تا سره دمساز وے

چه به تا پیاله دَ میو را کوله
ستا دَ شونډو دَ بوسے سره م څښله
زهٔ هم مست وے تهٔ هم مسته لایعقله
میخوری دِ په سر تور په ګریوان واز وے

له همه واړه عالمه وَز تړلے
ستاله لاسه دما دم باده خوړلے
صراحئ خندا کړے شمع ژړلے
په جهان کښے خو دا دوه توکه انباز وے

په دماغ کښې پرنده ناسته وي مخ برنده | التفات دِ له خودئ نه کړے وماته
دَ خُواب په ځائے چه سوال وکړے وتامه
زهٔ خسته دِ په ښکنځلو سرفراز وے

ښهٔ آواز کهٔ دَ بربط دَ موسیقار دے | یا دَجنګ دَمغني یا دَ مزمار دے
دَ رباب دَ چارتارے یا دَ بل تار دے
مهٔ وے دا ستا دَچوړاؤ ښهٔ آواز دے

دَ وصال په کامرانئ دست رَس وے | لکه وه ترهغهٔ مینه یو په لس وے
په نیک خواه باندِ ښادی هوا هوس وے
په ډیر غم کښې څهره زرده دَ غماز وے

چهٔ ولیدے دَ یار په خط وخال کښې | په هزار رنګه خوښئ ئے په وصال کښې
هومره غم بیلتانهٔ کښیښو په خوشحال کښې
مهٔ بیلتون وے مهٔ ئے داسوز وګداز وے

# قطعات

راشه مهٔ کړه په دُنیا تهٔ اعتماد | دا دُنیا ده سرله سره بے بنیاد
په یوهٔ ساعت کښې هسے رنګ تیریږی | لکه تیرشی په یوهٔ ساعت کښې باد
شیرین عمر په هوس راځنه درومی | لکه سرهٔ زر چه څوک .......
نفس شدید خرګند غلیم راته پیدا شو | شیطان ګرځی دشمنی ئے پټ په غلا دَ
دَ غفلت له خوبه زر پاسه بیدا رشه
دَ همت نمری درتول کړه

له لسو پورته تر شلو پورے | ښځے دغه دی چه څوئے ګورے
له شلو پورته تر دیرشو پورے | دغه هم ښے دی کهٔ نهٔ وی نورے
تر دیرشو پورته خلویښتو پورے | زهرِ قاتل دی کهٔ څوځان ژغورے
ترشپیتو پورے ورله آنا ده | دَ لحد ورکړه وریسے پورے

کۀ په مذهب دَ خوشحال ختک دی
کښینه دَ تورو زلفو په سیورے
دَ مزریو نه خالی نۀ وی هیڅ ور
خدائے به ډیر پکښے پیدا کاشیرِ نر
دَ بی بی اولاد همه گیدړ میدړ دی
په افضل به مَعظم لگی نظر
کۀ طالع ورسره مل شی ځان ځرکند کا
بیا به هالہ تهتریخ کا دَ پدر
خوږ دوه اویا مذهب وته شا نۀ کړه
هومره نۀ شوم خبردار دَ عشق لکیشه
تۀ به چیرے دَ خوشحال په خوږ خبرے
چه دِ بوئ تر سپیږے تیونۀ ډلہ ریشه
په څو ډیر شوے دَ دُنیا پریشانه غمه
په هر زړۀ دِ سیاهی پڑ یسته محکمه
دَ هجران دَ لمبو تاؤ ترخلقو وخوت
دریغه دریغه دَ بهار سره شبنمه
په سرد سُور سالو دے هم دِ کوره سره لمن
په خوسره سُوز اور ځے
لکه گل دَ لاله نن
چرگ چه بانگ کا په خپل وخت څوک ئے نۀ بولی کم بخت
چه بے وخته بانگ آغاز کا
سیخ ته وروله خپل رخت
رسوُل دَ طالب څوک کا ترمطلوبه درځۀ وبښیم په کوته هغه شوق دے
عاشق څکه دَ دلبر له چمه نۀ ځی چه په غاړه ئے دَ شاه دَ زلفو طوق دے
چه دِ زړۀ دَ یکرنگئ په ملک پرے میشت کۀ ځیره دِ سره کۀ زیړه واړه ذوق دے
په هرچرته چه نظر کړم یو یار وینم
په یمین کۀ په شمال کۀ تحت وفوق دے
اور دے سره سکروټه پرے سینه کباب ځما شوه
زۀ عذاب دَ خیلخانے شوم خیلخانه عذاب ځما شوه

چه لیندئ ئے دی په غشی | خورنده وی په خواړهٔ
جاے اغوندی سپینے | بدئ نهٔ وُځی تر خولهٔ
دورنګئ پکښے نهٔ وی | لکه خولهٔ هسے په ژړهٔ
په خپلوئے نظر وی | په پردئ نهٔ کا کاتهٔ
په ښترسحر بیدار شی | مشغولا کا په نمانځهٔ

جهان ترما قربان شه
زهٔ قربان شم ترهغهٔ
واورئ یارانو چه خوشحال ختک ځهٔ وئ
دَ سپی آشنائی بنه ده نهٔ یاری دَ یوسفزئ

چه چا سره آشناشی یا له ویرے یا له طمع
چه ځانے دَ کوتے مومی غبرګ لاسونه پکښے بیائی

دَ بادشاه دَ ژمی شپه وه په سموکښے | لیونی کړه درسته شپه په دوهه تیره
چه محنت په سری راشی هسے تیر شی | دَ راحت ساعت هم نهٔ کا میشته ډیره

---

دَ سترګو په ځنبلو یا سپاهی یا ناسپاهی | دَ خولے په پرزولو یا واهی یا ناواهی

---

جهان ډک دے له اغیارو ننداره کړه | کهٔ یو یار په جهان شته راته ښکاره کړه

---

یا یوزهٔ دَ درست جهان په لار فقط یم | یا دا درست جهان په لارے زهٔ غلط یم

---

چه رنځور درته محتاج نهٔ دے طبیبه | ځهٔ دَدهٔ دَ رنځ علاج کړے بے تقریبه

درویشان لکه ماران دی | هم مهره لری هم زهر
په آزارئے راضی مهٔ شه | چه اخته نهٔ شے په قهر
یوشان راته ښکاره شو | کار دَ شعر دَ شهرت
کهٔ دا دے کهٔ هغه دے | دواړه غواړی ښهٔ صورت

چه ښهٔ حسن ښکاره شي شګفته شي طبيعت
بل چه ښهٔ صورت ووينې نور آنګيز وکا آلت
غزل بې غزاله نهٔ وي
جلق واههٔ شي ضرورت
په کاغذ به خط باقي په ډيرمدت شي تار په تار به ډکا تب شيرين صورت شي
آه افسوس ارمان ارمان ډکچه په مرګ به
دَ قالب دَ روح بيلتون په څهٔ زحمت شي

عادل بادشاه پيدا شو اورنګ شاه دَ دين غم خور
عملې په کتاب دے له علماؤ نه بيوو ر
خپل پلار ترې په عدل په فتوٰی وژنی خپل رور
ښهٔ حق په ځايوينه تار په تارئے کړ خپل کور
دَ دين طلب ئے دا دے دَ دُنيائے په سرتور
دَ نکولی حاجت نشته امر کان کهٔ مومی سپور
چه پښنه ئے په رکيب کړه له دکنه شو راسور
له مخهٔ ئے بلا تله په جهان ئے بل کړ اور
کهٔ قحط کهٔ وبا وه کهٔ جهان شو شورماشور
دَ دهٔ دَ نيت اثر دے
چه په درست جهان شوخور
مونږ محمدی يُو نحوست زمونږه نشته
توکلتُ علی الله هم په داکښے مونږ څهٔ شته

مونږ هغه کسان يُو چه ژوندون مو دے په سور
نن په ګورستان دلستان وکښلے توره

زر کهٔ هر څو ښهٔ دی ننګار ورلره بويه لور کهٔ بادشاه وی هم روزګار ورلره بويه

دَ دوستانو په دوستئ نشته اُمید
دَ دښمن په تملق څهٔ اعتمید

په هر رنګ چه مې لړے هسے به اوسم
ښه خو دا چه خپل خواهش له مینځه یوسم

کهٔ حساب شی کهٔ کتاب شی کهٔ پوښتنه
حال به څهٔ کړے دَ خوشحال خټک څښتنه

# مثنوی

له هرچا سره چه یو نفس قرین شوم
زړهٔ مې خوړ په هیچا نۀ شو په عالم کښې
خو دَ سُود له مخه څوک را سره یار شو
چه ئې مخ په مخ له تا سره وفا وی
چه ئې شا کړے هغه درسره بد شی
هرچه تا سره یاری کا نۀ یاران دی
څویه وارهٔ دَ زړهٔ رنځ دَ خپل بابا دی
کهٔ دِ یار دے کهٔ دِ خویش دَے کهٔ دِ رور دے
تش دَ خولے لباس مباس دَے سره کیږی
دَ راحت په وخت سل لاف دَ یارئ کا
شاه جهان بادشاه څهٔ لږ نۀ وو تمځلی

دَ هغوله څوئیه بُویه په زړهٔ شین شوم
له عالمه سره زیست کړم په ډیر غم کښې
چه ئې خپل مقصود پوره شو نور ویزار شو
په قفا درسره خیر په سل جفا وی
تل له تا سره په رخه په حسد شی
همگی وارهٔ لړم دی یا ماران دی
لونړه کل دَ زړهٔ ژورے دَ ماما دی
دَ خپل ځان دے دَ خپل سُود دَے دَ خپل کور دے
دَ هرچا خاطر خپل سُود وته پرکیږی
دَ محنت ساعت چه راشی ویزارئ کا
چه په بند شو همگی وو ځنے تللی

هے توبه! له دے جهانه تښنې تښنې
په صحرا کښې یک تنها ګرځیدے ګوښې

پیرازمے پرستی توبہ فرماید مرا
اللہ اللہ وقت گل این توبہ میشاید مرا

ہرکہ از نظارۂ روئے بتان منعم کند
پند او گیرم بدل در دل نمے آید مرا

شوقِ زلفِ یار دارم برجنونِ خویشتن
خود گواہی میدہم زنجیرمے باید مرا

غم چو آتش دل سمندر وار میر قصد در و
راستی جز غم کنون فاطر نیاساید مرا

از جفائے خار بلبل بر نمیگردد زگل
چون جفایش بیش بینم مہر افزاید مرا

نامِ لبت گرفتن شیرین کند دہان را
خوش وقت آنکہ بوسد پیوستہ آن لبان را

دردِ درونِ دل را گر درکشم بپوشم
لیکن چہ چارہ سازم این چشمِ خونفشان را

از لولو دو گوشش کامے ہر آنکہ دارد
از ما رسان سلامے آن نیک اختران را

آن گفتگو کہ باشد جز ذکر روئے آن بت
نامردم از نہ بندم زین گفتگو زبان را

برخالِ آن نگارے شہرے دہم دیارے
آن عاشقم کہ بازم برخالِ او جہان را

مجنون و ذکر لیلےٰ فرہاد و یاد شیرین
درپیش شان چہ خوانی صد گونہ داستان را

درکارِ عشق بازی مجنون وقتِ خویشم
جز خونِ دل چہ آرم بیوقت مہمان را

در دل خیال رویت مہمان ہم لیلےٰ
در دہ زعشقِ لیلےٰ برباد خاندان را

در ہر رہے کہ بیند کوہی سگانِ کویت
برچشم خود گذارد پاہائے آن سگان را

نوبہار و مئے و معشوقہ و جام ست اینجا
زہد و پرہیز و ورع راچہ مقام است اینجا

قصہ کوتاہ کہ درمذہب ما اے صوفی
غیر مئے ہرچہ بود جملہ حرام است اینجا

یارب آن مغبچہ را ہیچ گزندے مرسان
کہ بروئش نگران خاص وعوام است اینجا

شاہ من تند بران رخش کہ بس مردم شہر
بہر نظارۂ تو بر در و بام است اینجا

پیشم از مشک خطا دم مزن اے مشک فروش
کہ پراز نکہتِ آن زلفِ شام است اینجا

می نوازم نئے خوش لحن بجادوئے نفس
آہوئے کوہ و بیابان ہمہ رام است اینجا

یا نوائے سخن ننگ مگوئید دگر
مست عشقست نہ ننگ است نہ نام است اینجا

*

ازو دل برگرفتن کار من نیست
که از جان سبرگشتن کار من نیست
چمن را گرچه گلها بس شگرف است
ولے ہمچون رخت گل در چمن نیست
مراگوئی بگو وصفِ دہانم !
چگونه چون درو جائے سخن نیست
من و سودائے رویت تاکه ہستم
اگرچه خود ترا پروائے من نیست
غمت تا در دل و جانم وطن کرد
مرا درکوچۂ شادی وطن نیست

چرا خوشحال را پرسی که چونی
مگر از چہرۂ او مبرہن نیست

این زر و زلفِ سیه خم نجم است
دستۂ سنبل و نسرین بہم است
لاله ہرچند که زیباست بباغ
پیش رخسار توبسیار کم است
غم از آن ست که میرم به اجل
گر ز تیغ تو بمیرم چه غم است
بجزازمن بکسے جور مکن !
زانکه جور تو سراسر کرم است

از جفاہائے بتان گر میرم
تا نگوئی که نکوئے کرم است

پیر فرتوت وضعیفم دیده برخوبانِ وقت
یامنم سلطان وقت ویا منم شیطانِ وقت
میرسد صیتِ بگوش اہل دل شام وسحر
اینکه درمانم نشیند عاقبت چندانِ وقت
آه واویلا که دیدم بے ثبات وبے بقا
عمرچون باو بہار وعیش چون پیمانِ وقت
نالۂ مرغانِ این گلشن بمن معلوم شد
آه و فریاد دفغان دارند بربستانِ وقت
دشمنِ وقت خودیم وخود روا داریم ما
صدستم از دست خود درساعت جانانِ وقت
چون ز دستت شد بدر مانند تیرے از کمان
باز در دستت نیامد ہیچگه تاوانِ وقت

میزنم خوشحال خرم ہر زمان بر یاد دوست
گرچه از ما برده نقد وصل را ہجران ددست

بیرون زیادِ لعل تو گر لاله در دل ست
داغ دلِ خراب از آن لاله حاصل است
باران دیده را به تردد ہمے دہم
خلقے بگشتِ باغ ومرا پائے درگل است
از کشته پشته درین ره بہر طرف
یا رب نگاه دارچه خونخوار منزل است
ماندن زیار دور وشب و روز زندگی !
یک لحظه دوربودن من زہر قاتل است

سیر آمدن زجان خود آسان بود بسے — سیر آمدن ز روئے بتان سخت مشکل است
انگشت عیب جوئے بجائے نمیرسد — درحسن و درجمال بغایت مکمل است
مستور گشت شاہد و معلوم شد شراب — افغانِ من زدستِ شہنشاہ عادل است
از دست دِل خجل شده ام آه چون کنم
پیرانہ سرجنون جوانی کہ در دل است!

دلم ربودۂ آن زلف وخال و ابرویست — چہ خوش ہلال چہ خوش دام ورانہ دلجویست
لبت مسیح صفت مرده را روان بخشد — عجب طبیب طبیعت شناس ہر خویست
مرا کہ دل بشد از دست اے نصیحت گوئے — گذر ز بیہوده گفتن بیا دم آن کویست
گذر زقصۂ فردوس وجنت طوبٰے — کہ این متاع گرامی بہائے یک مویست
اگرچہ تیر عدو جانستان بود خوشحال
مرا خدنگِ بلا آن دو چشم جادویست

شاہِ مرغانِ شکاری باز است — آنکہ محبوب شماری باز است
آنکہ بردست شہان دارد جائے — بوالعجب صنعت باری باز است
کوہید بحری وشنقارِ ترا — گر بما باز گذاری باز است
ہمہ مرغانِ شکارند بکار — راستی از ہمہ کاری باز است
آنکہ از چنگل خود نگذارد — دلِ این خستہ بخواری باز است
مال واسباب جہان جملہ ترا — بو منِ تحفہ گر آری باز است
دِل بہ مرغانِ ہوا نسپاری — اے پسر ورنہ سپاری باز است
شاد و خوشحال در آندیم باشم
بینم از ورکہ در آری باز است

وصل او با محنت ہجران خوش است — درغمت گراین بود گر آن خوش است
چون مراد ما نشد حاصل ز وصل — از وصالش حاصلم ہجران خوش است
درجہان چون راز دار کیمیا ست — راز او در سینہ ام پنہان خوش است
اشک راغماز میدانیم ما — چند گوئی دیدۂ گریان خوش است
مشک سلطان ومنم درویشِ او — مہر شاہان ہان بدرویشان خوش است

گہ عتاب وگاہ صلح وگاہ جنگ
این ہمہ از جانب خوبان خوش است
ناصحا از ما نصیحت وا بگیر
درد سر دادن لعاشق ہا خوش است
زخم تیغ عشق را درمان مجو
زخم تیغ ہجر بے درمان خوش است
درفراق روئے او خوشحال را
روز وشب با نالہ وگریان خوش است

ایزد چو چشم شوخ بتان را بیافرید
جادوئے بردنِ دل وجان را بیافرید
تا صید عاشقان کند از بہر دلبران
زانروئے پلک تیروکمان را بیافرید
نازم بقدرتش کہ چو آئینۂ حلب
صافیٔ جان سنگدلان را بیافرید
بنگر کہ باغبان قضا در ریاض حسن
سرو روان غنچہ دہان را بیافرید
گویا برائے خاطرِ عشاق در ازل
سیمین برآن وموے میان را بیافرید
میخواست تاکہ قدرتِ خود را عیان کند
فصل بہار وفصل خزان را بیافرید
کوہی اگر زمانہ فرستد ہزار غم
ازغم چہ غم چو رطل گران را بیافرید

باش تا امروز را فردا کند
عیب پیری عیب ما پیدا کند
مرگ مے پوشد خداخیرش دہاد
ورنہ پیری شخص را رسوا کند
برسرما ہرچہ راند گو بران
عقل کامل کارکے اینجا کند
من ہمان مرغم کہ ازشاخے لشاخ
برنشیند بر پرو ماوا کند
درمیان خرقہ پوشانیم ما
چون شہ کز خود لباسے وا کند
برفراز نہ فلک پرواز ماست
باز تا شہباز ما پردا کند
آمدم خوشحال وخوشحالم ہنوز
بخت با من مرحبا ابلا کند

چشم مخمور تو آخر کار کرد
زاہد صد سالہ رامے خوار کرد
من مگر ازحالِ عشق آگاہ نیم
شیخ صنعان را ز دین بیزار کرد
سخت مے پیچد برو عشقِ بتان
ہرکہ امروز ازبتان انکار کرد
باز را دربند عشق آوردہ است
شیر را در بیشہ عشق آشکار کرد

در درونِ عاشقان راز نہان — عشق اندر کوچہا اظہار کرد
عاشقِ بیچارہ اندر عاشقی — برجنون خویشتر اقرار کرد
روئے زرد و آہ سر و چشم تر
عشق کوہی راچنین بیمار کرد

حدیث روئے او با من بگوئید — بہ بلبل از گل و گلشن بگوئیہ
بہ آن چشم و نہ آن مژگان نہ ابروست — بلائے دین و جان وتن بگوئید
زسیل اشک من پروا ندارد — دلست این سنگ یا آھن بگوئید
شب وصل است مو آنجا نماندہ — تو کے گنجی بہ پیراہن بگوئید
زلعل شکرینِ او نباتے
بکوہی میرسد من من بگوئید

خال مشک آسائی تو آسایش جانم ربود — ترک چشمان تو غارت کرد بیشم ہرچہ بود
صورت چین ہر کجا بینم بسانِ برہمن — مے برم بر یاد رویت پیش آن ہر دم سجود
عاقبت خود را زشاخ افگند از شرم رخت — گرد داز وے درچمن گل رنگ و بوئے خود نبود
عابد شنامے زتو خرسندم وخرم زبخت — صد سعادت از زبانت ہر کہ دشنامے شنود
با وجود وسعتِ کام دل وجمع بتان — زاہد افسردہ دل در کنج تنہائی غنود
ما زیانِ عاشقی بگزید زاہد سود زہد — آن زیان را دوست میداریم زین بیہودہ سود
قتل کوہی را بہ تیغ غمزہ خواہد آن نگار
کاش باشد این کرم ایدوستان زانشوخ زود

لالہ درموسم بہار بود — عیش با روئ گلعذار بود
با رخ وزلفِ او سرد کارم — در شب و روز روزگار بود
آہوئے چشم تو چہ آہوئیست — کہ درا شیر نر شکار بود
رخِ تو ہمچو نو شگفتہ گلیست — عندلیبان او ہزار بود
قدِ تو در میانِ دیدہ ما — ہمچنان سرو جوئبار بود
وقت آن خوش کہ بعد ہجرانت — یار ہمچون تو در کنار بود
قصہ درد ماچہ مے پرسی — حالم از چہرہ آشکار بود

همچو خوشحال عاشق رخِ تو
نیست ممکن که در دیار بود

مرا بدور لبت باده یاد مے ناید
بیاد روئی تو گل در فواد مے ناید

چرا بشہر دگر پا برہنه نگریزم
که در ولایتِ تواز تو داد مے ناید

مرا ز روئے بتان سوئے خلد میخوانی
برو برو که زمن این فسانه مے ناید

چه جائے قاصد و پیغام و نامه و مکتوب
ز کاتب تو بسویم جو باد مے ناید

بحق زلف دل آویزت اے پری پیکر
که غیر خالِ تو ام در سواد مے ناید

اگر بکشتنِ خوشحال مائلی برخیز
کز و بغیر رضایت عناد مے ناید

ہر که در کوچهٔ آن ماه مکانے دارد
کفر محض است اگر میلِ جنانے دارد

کامِ دل یافت که از چشمهٔ خضر افزون است
آنکه از لعل لبت روح روانے دارد

شانه را وصفِ دو زلفین سیاہت شاید
که بہر موئے ازین شیوه زبانے دارد

اے نسیم سحری غنچه دل را بکشائے
بلبل سوخته دل باز فغانے دارد

کنج وصلش که درو ہر دو جہان زان گنجے
نیست این گنج که اکسیر بیانے دارد

گر نیم اہل ورع عیب من اے شیخ مکن
ہر کسے در دلِ خود زعم و گمانے دارد

چند پرسی که ترا تیر ز شصتِ که رسید
آنکه او زابرو مژه تیر و کمانے دارد

تو مپندار که تنہا دلِ خوشحال ربود
کیست که او عاشقِ او نیست که جانے دارد

با تو خلوت برگزینم در تو بینم سیر سیر
گرچه وقتِ نوبہار ست باوجودت ہیر ہیر

پنجروزے بیش نبود صحبت گل با ہزار
اے دریغا در گلستان گر بماندے دیر دیر

آہوئے چشمِ تو از شیران عالم دل ربود
گرچه با شیران ندیدی ہیچ آہو چیر چیر

گفتم اے ایجان جہان از من گھے یاد آیدت
گفت وقت قتل مے آئی بیادم ڈیر ڈیر

مے نیا ساید دمے خوشحال بید ردت بلے
لشکر درد تو اکنون کرد دل را زیر زیر

خه خه بخ بخ دلداره    وفاجویه غمگساره

چه کنم چه چاره سازم     چه دِ زړهٔ کړم راکناره
بکه گویم از فراقت     چه مِ زړهٔ شهٔ پاره پاره
نکند بدل سرایت     کهٔ زاری کوم بے شماره
گر از فرقتت بمیرم ؛     لا بہ خوبش شے لہ دے کاره
تو چه سنگدل نگارے     چه مِ ستا وکړه نندارہ
بعشاقِ بے سرو پا ؛     ستم مکړه ستمگاره
بہ نگاه گا گا بے     مهر کړه دَ خدائے دپاره
اے نگارِ من حذر کن     دَ ویشتلیو دَ آزاره

نہ رود ز در گہے تو
کهٔ خوشحال شي سل واره

بکامِ دل نرسیدم بہوئے زلبش     اگرچہ جانمن آمد بلب درین طلبش
نگارِ من غضب آلوده من زساده دلی     بقهر خندوے اگه نگشتم از غضبش
دو هفته شد که درون پرزکین من دارد     ازینکه ماه تمامے نہاده ام لقبش
زحور زاده پرے شکل کار آدم نیست     چه حاجت ست که پرسم زنسل و زنسبش
بکوئے آن صنمے رفت دل نیامد باز     زباز نامدنش شد دو زلفِ او سببش
گہے بروئے رباید گہے بزلف کشد     بدل ندارد کارے جزاین بروز شبش

زتیغ غمزهٔ او سرمتاب خوشحالا ؛
فزون زکشتنِ عشاق مے شود طربش ؛

یارمن یار زاغیار نمیداند حیف     قدر یاران وفادار نمیداند حیف
جز جفا وستم وجور که میداند خوب     مهر را اندک وبسیار نمیداند حیف
آنچنان بیخبر از بادهٔ دوشین دیدم     کین زمان هست زهشیار نمیداند حیف
رنج دبیماریم از نرگس بیمار ویست     سنگدل پرسش بیمار نمیداند حیف
روز وشب در غم او خون شده میرانم     حالتِ دیدهٔ خونبار نمیداند حیف
یکدم از گوش کنے باتو دو حرفے دارم     دلبران حالِ دل زار نمیداند حیف
لطفہائے کہ زمعشوق بہ عشاق سزاست     روبہیا جمله بیکبار نمیداند حیف

راشه برچشم نشین اے شاہِ خوبانِ چگل
لمعۂ خورشید را برچشم باشد جائے تل
تاویل قند ونبات وشهد یکجا دیده ام
آرے آرے آن دہان وآن لبان وآن ویل
سرد ہم تا ہرچہ فرمائی ترا فرمان رواست
از توحکم اے بادشاہ مہوشان وز ما منل
زار وقربان تو گردم گر بہ تیغ خود کشی
نے بہ تیغ دیگران خونم ترا باشد مبہل
نن بمن میگفت درکو یتو میرفتم رقیب
شوخ چشمی برنمی گردی ازین کو بر شمل
چون بہ تن گشتم ضعیف ولاغر وخوار ونخیف
نیست اندر فرقتت خوبا مرا خواب وخول
تاجفا وجور از حدِ نہایت بیش کرد
من نیاز وعجز وزارے مینمایم یو پہ سل
تل صبا بیگاہ آہ ونالہ وفریاد ماست
بردلِ سختت نشد تاثیر زاری وشہ ول

هیچرے مثل تو دلبرے نیاید درنظر
زان سبب خوشحال میل دل نمیدارد بہ بل

بہ پیش رویت اے نازکبدن گل راچہ یادآرم
بہ پیشِ لعلِ میگونت می ومل راچہ یادآرم
بہ پیش قامت دلجوی وپیش زلف شبگونت
نگارما درختِ سرو سنبل راچہ یادآرم
چو شد یکبارگی درعشقِ مہرویان دل ازوستم
دگر اے پندگو صبر وتحمل راچہ یادآرم

چو روہی درحدیث آید نبات وشکرافشاند
درآندم طوطی خوشگوئے بلبل راچہ یادآرم

چون نظر برحال خوبان داشتم
تخم غم را دردِل خود کاشتم
تا شدم مفتون زلفِ آن نگار
خود برسوائی علم افراشتم
خوبرویان را وفا کمتر بود
برغلط بود آنچہ من پنداشتم
گوش ازآن کردم بقول پندگو
از تو میگوید سخن انگاشتم

روہی ام از پیشی خوبانِ چگل
میروم دل پیش شان بگذاشتم

شمع سان سوختن آموختہ ام
چہرۂ خویش برافروختہ ام
تاسحر آہ کشان نالہ کنان
فرق تا پائے بدل سوختہ ام
نیست یک لحظہ زعیشم خبرے
ہمہ اسباب غم اندوختہ ام
نام خوشحال وخوشے نادیدہ
واژگون نعل مثل دوختہ ام

زلطافتِ رویت چو لاله در بستان
زہے طراوت حسنت چو گل تر و تابان

زہے قدرت کہ بسرو التفات او نبود
زہے چہ ذقنت چاہِ یوسفِ کنعان

زہے دو زلف کجت تیرہ روزگاران را
سلاسل ست ہمہ اُفتادہ اند در آن

بگاہ خندہ چو لبہائے خویش بکشائی
درو جواہر و یاقوت می شود ارزان

کرشمہ کن و بخرام و طرف بستان آئے
کہ در ہوائے تو گلہائے گلشن اندگران

زحسن دلبری و خوبی و کرشمہ و ناز
ہمہ تو داری اے دلبری و شاہِ بتان

بہ این لطافت و خوبی دریغ و افسوس است
کہ نیست در دل سنگین تو زمہر نشان

بزلف و خال تو روبہی مگر سرے دارد
کہ شد شکنج پریشان و تیرہ و ژولان

ہر کرا یار وفادار گزید این دلِ من
غیر نومیدی از و ہیچ ندید این دلِ من

از غم و غصہ ہر ناکس و کس ہیچ نشد
ہست از آہن و فولاد پدید این دلِ من

ترک مقصود بمقصود رسیدن باشد
شکر للہ کہ بمقصود رسید این دلِ من

عاشقی چیست غم و درد و بلا بودن
سالہا شد کہ ز روئے تو کشید این دلِ من

اہلِ نایاب چو عنقا شدہ در دورِ قمر
زین سبب از ہمہ آفاق برید این دلِ من

سینہ را کرد تہی از غم ہجران شب و روز
از رہِ دیدہ بدامان بچکید این دلِ من

شاہبازست کہ ہر ساعتِ شہ را شاید
گرچہ بیہودہ بہر گوشہ پرید این دلِ من

سینہ را چاک کنم حالِ دلِ خود بینم
ہمچو خوشحال چہ در گوشہ خزید این دلِ من

دل طلبگار تو چندانست چو مطلوبی تو
جان خریدار تو چندانست چو محبوبی تو

کانِ حسنی و لطافت ہمہ سررشتہ ناز
چشم بد دور ز شائستگی خوبی تو

سرو در باغ سرافگندہ از آن ست کہ او
قامتِ راست ترا دید و خوش اسلوبی تو

روہیا یوسفِ عہد ست نگارِ تو ولے
نیست آگاہ ز دردِ دلِ یعقوبی تو

ما را چو دل بعشق نگارینہ شد گرد
اے ناصح این چہ درد سرے میدہی برو

ما مست ساغرِ مئے عشقیم پیش ما
این وعظ و این نصیحتِ عالم بہ نیم جو

چشم و چراغ دیدهٔ عمدیدٔ چون توئی — بهر خدا که لحظه ز چشم نہان مشو
ہان ای دلِ رمیده صیاد چشم او — چون صید زخم خورده اگر میدوی بدو
با ہر دو دیده آفت دین و دل آمدے — با ہر دو لعلِ آفتِ جان و تنم مشو

روھی قماش شعر تو نوکہنہ زا صفی
فرق معین آمده از کہنہ تا بنو

اے شیخ این چہ حجت و برہان نموده — این دلقِ رقعہ رقعہ که برخود فزوده
پیوند غصہ ہائے تو بس نیست ای عجب — پیوند ہائے دلق بر آن برفزوده
این دلق طیلسان تو چندان بکار نیست — چون واقف از رموز محبت نبوده
ما زہد خشک از تو بیک جو نے خرم — ور زہد خشک خویش زا جناس بوده
بیرون بر آ ببین که جہان بر تو تنگ نیست — تا کے درون گوشهٔ خلوت غنوده
عفو خدا ز جرمِ من و تو زیادت است — لا تقنطوا از آیتِ قرآن شنوده

مخمور عشق باش چو خوشحال تا بکے
مغرور زہد و شیوهٔ شیطان ربوده

بخط نو رسید آن نو رسیده — بقتل عاشقان خط برکشیده
بدین غنج و دلال او را چه خوانم — درون تن روان و نور دیده
ز آب و گل نظیر او چه جویم — که رضوان اینچنین حورے ندیده
بکام ہر دو عالم دست دارد — ہر آن کو آن لب میگون کمیده
ہمه روح و ہمه لطف ست و خوبی — بنامِ ایزد چه نیکو آفریده

ز روھی میرود آن گلشن حسن
ز گلزارِ رخش وردے نچیده

لبت از آب حیوان آب برده — رخت نور از رخ مہتاب برده
ندانم در دو چشمِ او چه جادوست — که از چشمانِ عاشق خواب برده
بتاب زلف و بیچ جعد مشکین — صبوری از دلِ بے تاب برده
گر آن بت را چو محراب است ابرو — منم چون سجده در محراب برده
بعارض دل بچشمان دین بلب روح — سلامت را ہمه اسباب برده

نہ تنہا دل زخوشحال خٹک برد
کہ زہد از دستِ شیخ و شاب بردہ

اول بہ تیرِ غمزہ دلم را بدوختی آنگہ کرشمہ کردی و جانم بسوختی
ما بر سر آمدیم چو پروانہ جانفشان چون شمع چہرۂ رخِ خود را فروختی
گفتی کہ بوسۂ رخ خود را بجان دہم وا یوسفِ جمال بہ ارزان فروختی

آثار غمزۂ تو اثر بر ہمہ نکرد
از تاب غمزۂ دلِ روہی بسوختی

اے دلبر لاہوری باللہ کہ برخ اوری
خوبان جہان پیشت چون پیش مہ ستوری
پروائے شکر دارد آنرا کہ تومے زوری
خواہی کہ کنی شادم یکخندہ بدین لوری
غمہائے تو برجانم چون ابر اسد اوری
عالم بہ تو مے بینم در دیدۂ من توری
مے جنگی و میخندی اینہا ست زخمسوری
سودائے رخِ خوبت اندر دلِ من شوری

درکوئے تو چون کوہی
صد شیفتہ سر توری

بر و عالم عیان بودے چہ بودے برایم یک زمان بودے چہ بودے
وصال او کہ چون عمر عزیز است دریغا جاودان بودے چہ بودے
دریغا دائما پے کان تیرش مرا در تن چو جان بودے چہ بودے
لب لعلش چو کانِ انگبین است نصیبم زان دوکان بودے چہ بودے
برغم مدعی گہ گہ نگاہے بسوئے عاشقان بودے چہ بودے
خدا در دل بتان را مہر دادے و یا صبر از بتان بودے چہ بودے

بکوئے او کہ رہ دارند روہی
زخیل آن سگان بودے چہ بودے

بگرد کوئے تو کشتن مراد خما دے
بود کہ روئے تو بینم کہ کعبۂ ما دے

من این جمال ترا خود مثال کے یابم
کہ خود جمال تو از مہر و ماہ پیدا دے

منم کہ غیر ترا در جہان نے بینم
خلاف نیست خبردار حقتعالےٰ دے

نمے شوم متحمل بروز وعدۂ وصل
بیا بیا کہ دلم خوار و زار بے تا دے

بہ آرزوئے تو چونم بگویم اے ہمدمن
چنانچہ تشنہ و اُبو تہ ناشکیبا دے

گمان مبر کہ زعشق تو بگردد خوشحال
چراکہ بر رخ خوب تو دیر شیدا دے

بہار گشت در افغان ہمان کہ میدانی
بنوش مے برخ آن ہمان کہ میدانی

برائے دفع گزندِ پری رخان خواہم
شوم بر آتش سوزان ہمان کہ میدانی

بغیر وصل تو مارا قرار حاصل نیست
رسد ز شصت تو برجان ہمان کہ میدانی

مراکشی و بدل نادرے زکشتن من
کہ عدل باشد و میزان ہمان کہ میدانی

نظر بروئے تو روبہی ز دور میدوزد
تو خوش نشین بحریفان ہمان کہ میدانی

خود را بروئے خوب چو مفتون کند کسے
وانگاہ یاد محنتِ مجنون کند کسے

کائی بچشم آدمیان آن پری نہ !
از بہر دیدنِ توچہ افسون کند کسے

ساقی بیار بادہ کہ فرداست آن ظہور
دل را ز بہر نسیہ چہ محزون کند کسے

بیگانگیست مذہب خوبان بہ آشنا
باور بعہد و قول بتان چون کند کسے

با داغ دل چو لالہ درین باغ زادہ ایم
از ماست ہر کہ زاویہ درخون کند کسے

دارم متاع دُرِّ گرانمایہ کے دہم
سوداگر بملک فریدون کند کسے

دیدم عطائے چرخ از آن تو بہ کردہ ام
باشد روا کہ منت گردون کند کسے

آدم صفت ز روضۂ رضوان بدر شوم
مارا اگر زکوئے تو بیرون کند کسے

اول وفا نکرد بہ خوشحال بیوفا
رسم وفا بجاست گراکنون کند کسے

دلم بردی کنون در قصد جانی
بکن بسم اللہ اینک ہرچہ دانی

بہ تیغ غمزۂ تو گر بمیری
بیابم از تو عمرِ جاودانی

لبانت راچه گویم در دو زلغت میان ظلمت آن زندگانی
وصالِ آن پری روانیگان نیست بباید باختن جان رایگانی
اگر روّهی ترا در دل اَلم نیست
چرا از دیدگان خون میچکانی

لطفِ بیحد وبیعدد کردی اینکه قتلم به تیغ خود کردی
تیغ توآب زندگانی داشت کشتی و زندهٔ ابد کردی
هرجفائیکه ازتو بر دل ماست صد وفا را بر و حسد کردی
فارغست از سریر وافسرو جاه کز گدایانش نامزد کردی
دل زمن خواستی وجان دادم جانمن بازگو که بد کردی
چه شرابیست اینکه روّہی را
به یکے جرعه بیخرد کردی

من آن صیدم که بر فتراک بستی به تیرِ غمزه جانم را به خستی
غبارِ بودم و دامان بدستم توچون بادے زدستِ من بجستی
نخواهم یکزمانے زیست بے تو که درچشم بجائے جان توہستی
چسان زین جورجان تسکین بیابد مراکشتی وبے پروا نشستی
نمکدانِ دلم ازخون تہی ماند نمک خوردی نمکدان راشکستی
بجان مشتاقِ دیدار تو ہستم یکے بنگر ببے دانم که مستی
ترا خوشحال این دولت پسنداست
که پیش پائے اوچون خاک ہستی

من مظلوم را بر ہر نگاہے تظلم میکند آن کج کلاہے
چه مے پرسی که چونی درغمِ دوست دوچشمِ خونفشان دل پرز آہے
دلم چون بلبل شوریده در وے دلم چون جالۂ خاشاک وکاہے
دلاور عاشقے بنگر بعالم که دارم ہمچومن حالِ تباہے
نظر بر روئے خوبان گرگناہست ندارد طاقتے پس جز گناہے
برآن لب خال مشکین راچه خوانم دوکان قند وہندوئے سیاہے

ندارم طاقت روز جدائی
فغان گر بگذرد این سال و ماہے

توا ے بر راه او افتان و خیزان
زدور برمتاب از داد خواہی

چشم ظاہربین مردم مردم چشم سراست
عاشقان را در درون چشم چشم دیگراست

سوسن آزاده دارد ده زبان درحمد او
راستی درباغ وصحرا برگلے پیغمبراست

دل که قانع گشت اوراگنج قارون گومباش
گربنارد زآسمان باران غم نیلوفراست

من غلامِ ہمت آن کوطمع راسد به بست
گرچه نان جوندارد جانمن اسکندراست

شیوۂ جود وکرم ہرکس که دارد حاتم است
آنکه نستاند نخواہد او زحاتم خوشتراست

شاه باش ومیرباش وعاقبت ہیچ است وہیچ
ازبرائی عشرتِ ده روزاین شوروشراست

برفرازچرخ بالا برشدن دشوارنیست
ترک دنیا درز بالا برشدن راشہپراست

نفس نافرمان درونم دیو بیرونم غنیم
ازکجا یابم رہائی من که ہرسو چنبراست

داژگون جامے ست چرخ نیلگون ہمچون حباب
تانه پنداری که درجامِ نگون شربت درست

دل منه بر دنیاؤ برجاه و براقبال او
بیوفائیہائے دُنیاپیش دانا اظہراست

ملک سنجرازحدود کاشغر تا شام بود
ملک ازآنِ دیگران مانده ونام سنجراست

دردرون گور او باشد مگر عظمِ رمیم
گرچه گور بادشاه ملک ازخشتِ زراست

عاقبت برخاک خسپی زیر سربالینِ خشت
گرترا بلغاربالین وز بریشم بستراست

بگذارند دردل این اندیشه خواہم شدضعیف
ہرکه درنازونعیم دہر رون تن پرورست

زہر درکاست بریزد زینہار از وے حذر
باتو از راهِ خدیعت خصم شیر و شکرست

یارآن کز وے ترا یاری رسد دروقت کار
ورنه منگر روئے او ہمچون درخت بےبرست

باغبانا ازخزانِ وے یکے اندیشه کن
گرچه دروقت حمل باغ تو پازیب وفرست

حرف خاص ازبہرخاصان حرف عام ازبہرعام
گوش نامحرم سروش غیب راکے درخورست

معصیت مقبول طاعت روچه استغنااست این
کس ندارد دم زدن اینجا که حکم داورست

قاصدآمدازدیار یارمن آورد خط
گوئیا ہرحرف اوخوشبو زمشک وازفرست

یاردرعالم نماندازہیچکس یاری مخواه
درچنین عہدے کسے کو یارمیخواہد خرست

عہد بے تدبیر و بیداد و دہش انصاف تو
حَبَّذا و وا بہ میزد چہ صاحب افسر است

تا چہ بازی رخ نماید تا چہ آید از فلک
ماہ بختم در محاق و مہرہ ام در ششدر است

شاہ عالمگیر را باید ثبات عدل و داد
گر ندارد این دو چیز آخر زوالِ کشور است

قیمت گوہر نمیداند مگر گوہر شناس
از زبان مرد صاحبدل سخن چون گوہر است

راستی را پیشہ کن وانگہ دمے مردی بزن
مرد گر مے بود در عالم چو شاہ خیبر است

منکہ خوشحال ختکم زِچہ رُو
منت سفلہ و رزالہ کشم

وقتِ مردن ز دستِ ہر دونے
شربتِ آب زندگی بچشم

یک نیمہ بلہو عمر باطل بگذشت
بر رخ بغمِ شکل و شمائل بگذشت

اے دل پس ازین مباش چون بیخبران
از بہر خدا کہ عمرت از چل بگذشت

امروز بہ از قصر شہان خانۂ ماست
چون آن بتِ بگذیدہ بکاشانۂ ماست

گنجے کہ بکنجِ ویران طلبند
اینجا بطلب کہ کنجِ ویرانۂ ماست

پیرے کہ در وقوت و اوراکے نیست
وز عشق بتان در دلِ او جاکے نیست

ریش پدرم سیاہ در عمر دراز
ریش من اگر سفید شد باکے نیست

* ..........

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ ۝

کل ثنا په هغهٔ شائی — چه ثنائے هر څوک وائی
کهٔ څوک کوز دی کهٔ څوک پاسٔ دی — دَ دهٔ واړه په سپاس دی
چه موجود تر ماهی ماه دی — په وحدت دَ دهٔ گواه دی
کهٔ مومن دی کهٔ کافر دی — په خدائی دَ دهٔ مُقر دی
هسے لوئے عظیم بادشاه دے — چه آسمان دَ دهٔ مزکاد دے
مزکه فرش وړ باندِ غوړنه — ځائے په ځائے لکه میخونه
دا همه دَ دهٔ صفت دے — چه دَ ملک زیب و زینت دے
په سجود ورته حجر دے — په قیام ورته شجر دے
دهٔ آفتاب هسے رخشان کړ — دهٔ مهتاب هسے تابان کړ
دے دَ مزکے مخ زیبا کا — پرے زیبا گلونه وا کا
خولے ته خوند ورکړے دهٔ دے — توان دَ شخوند ورکړے دهٔ دے
تکړه غوبنه دے گویا کا — قطره واز ده دے بینا کا
دے شیخان مناجاتی کا — دے رندان خراباتی کا
دے بنانست ورکا وګل ته — دے پرے عشق ورکا بلبل ته
دے آواز کښیږدی په نے کښے — دے مستی کښیږدی په مے کښے
دے افسر ورکا خروس ته — بنهٔ منظر ورکا طاوس ته
دے آهو ته نافه ورکا — له غوایه پیدا عنبر کا
دے آواز ورکه رباب ته — دے گداز ورکا گلاب ته
دے پیدا که نازنینے — آهو چشمه مه جبینے
دے عاشق باندِ شیدا کا — عاشقی باندِ پیدا کا
دے باران وکا یا واورے — مرغزار کړ سپیرے خاورے
اول شنه بوټي پیدا که — بیا گلونه باندِ وا که

بیا دے بوټي کښیږدي په ګل کې    ښکلې پاڼې و په سنبل کړې
ښائسته کاندي باغونه    په ګلاب نه هم ... نوې
شو د باغ د بوستان ونې    لونې ګې نوې ښکلې
واړه و ونو ته بار ورکه    لون لون اثمار ورکړه
ونې پوره په انګور که    تور وسپین په لذت پوره کړه
چه باران ئې د احسان شي    په حنظل په سیب یکسان شي
لکه ګل خوږم تازه شي    هسې ښاد په نم تازه شي
چه د دۀ د احسان خوان خوري    واړه خلق به یکسان خوري
هم عاصي بانده مرېږي    هم متقي بانده رسیږي
چه په تخت کښینوي دے دے    چه له تخت لوړوي ته دے
که کرم په عزازیل کې    نشته خوک چه قال وقیل که
که آدم اچوي اور ته    خوک به سرنه کا ورپورته
بادشاهي که په منۍ دے    ذات د دۀ دے چه غني دے
نۀ د دۀ د ملک زوال شته    نۀ ئې مل نۀ ئې خوک سیال شته
سلطنت ئې لا یزال دے    لایزال دے ذوالجلال دے

## صفت د پاک رسولؐ

مشک ګلاب د واړه سره کړه    خولۀ صفا په غرغره کړه
ورک د خپل خولې بوئي بد کړه    بیا ثنا د محمدؐ کړه
چه د دوه کونو بادشاه دے    محمدؐ د عبدالله دے
د دۀ حکم په هر جنس دے    که ملک که جن که انس د
دے په خان د علم کان دے    نازل شوے پرے قرآن دے
دے منذر دے، دے بشیر دے    شریعت ئې بے نظیر دے
که تورات که انجیل ښکاري    په وار وار په را نزله ښکاري
په وار وار پورته قرآن راغې    نجم نجم شان شان راغې

دا په داچه دے کامل وو
درست قوت دَ دهٔ حاصل وو

هرآیت به چه نازل شهٔ
درست به ځائے دَ دهٔ په دل شهٔ

دَ نسیان ویره ئے نهٔ وه
دَ نقصان ویره ئے نهٔ وه

دَ موسیٰؑ کهٔ دا قوت وے
دَ عیسیٰؑ کهٔ دا فطرت وے

خله تورٰیت وانجیل دواړه
کښلی ولے راتلهٔ دواړه

درست قرآن واړه اعجاز دے
چه تربے تر سینه ساز دے

چه هوښیار دَ درست جهان دی
په قرآن پورے حیران وی

تتبّع کهٔ دَ قرآن کا
په آیت به رسوا ځان که

محمدؐ په علم ډیر وو
تر موسیٰؑ تر عیسیٰؑ تیر وو

دَ دهٔ علم ډک قلزم وو
درست وشیش علم ترے کم وو

تر لکه زیات پیغمبرانؑ دی
ریزه خوار دَ دهٔ دَ خوان دی

په هرشان محمدؐ ستایه
خو یو خدائے ورته مهٔ وایه

## بیان دَ چار یارؓ

چاریاران ئے برگزین دی
خلور ستنے ئے دَ دین دی

اول یار ئے یارِ غار دے
دویم یار ئے دُره دار دے

دریم یار دَ دهٔ عثمانؓ دے
خلورم شاهِ مردانؓ دے

دوه سخران دوه ئے زومان دی
په بزرگئ کښے په یکشان دی

بزرگه لور ئے فاطمهؓ ده
دَ بزرگئ پرے خاتمه ده

مرتضیٰؓ دَ دے شوهر دے
چه تربور دَ پیغمبرؐ دے

امامان دی ترو زړولی
پاک نبیؐ واړه ستائیلی

شواهد دَ نبوّت دی
ښائسته دَ امامت دی

صلوات له ما په واړو
تحیات له ما په واړو

زهٔ دوستدار دَ دهٔ دَ آل یم
په دوستئ کښے ئے خوشحال یم

چه دښمنهٔ ئے دَ اولاد دی
هغه کل په بلا یاد دی

# ذکرِ اَسامی دَ امامانو

دَ جهان دولس امام دی
په حدیث کښې نام په نام دی
یو علیؓ دویم حسنؓ دے
بل حسینؓ پاکیزه تن دے
چارم زین العابدینؓ دے
بل باقر ستنه دَ دین دے
بل جعفرؓ ورپسے هم دے
بل امام موسیٰ کاظمؒ دے
بل امام، علی رضاؒ دے
محمّد تقیؒ بل بیا دے
بل امام، علی نقیؒ دے
بل حسن عسکریؒ دے
بل امام، امام مهدیؒ دے
چه دَ درست جهان هادی دے
دَ بی بی زهراؓ اولاد دی
پُښت په پُښت داهسے یاد دی
پاک سُنی هغه آدم دے
چه دَ آل په عشق محکم دے

## ذکر تالیف دَ کتاب

دا سږ کال چه دَ غفط دے
یو کتاب م په نمط دے
چه ئے نوے بنیاد کښیږدم
یو دا کار په جهان پریږدم
ساده نظم بے دِقته
بے اشکال بے لُغته
په خفیف بحر وئیلی
تکلّف ځنې وتلی
چه آسان په یادوُل وی
مختصر بشکلی په کښل وی
چه هرڅوک ورته وګوری
نیک عمل وته وشوری
چه لازمے مسئلے دی
دَ رسولؐ دَ پاکے خولے دی
له حدیثه له آیته
له توحیده له طاعته
زهٔ یاری غواړم له خدایه
چه حرف ونهٔ کښم بے ځایه
خاص اخلاص راکه ومانه
بل غرض وُځی له میانه
کار پرے سازاول ګُماشی
دَ هرچا په غرض بیا شی
دَ حکمت له کتابونو
راوتلی له بابونو
دَ دُنیا دَ زیست خبر
پکښے هم شته دی نادر

دین دُنیا به پکښې مومی
کهٔ په حکم ئې ځوک دړومی
دا کتاب چه درست زیبا دے
سراسر فضل عطا دے
چه عطا نهٔ وی له غیبه
کار خالی نهٔ وی له عیبه

## باب دَ معرفت دَ پیغمبرانوؑ

ترلکه زیات پیغمبران دی
ځوک نبیؐ ځوک مرسلانؑ دی
همه واړه نیک کردار دی
امینان دی وفادار دی
عالمان دی راست گویان دی
دَ وګړی نیک خواهان دی
نهٔ ئې نفس نهٔ ئې هوا وه
هره چار ئې په رښتیا وه
یا به وحی یا الهام وو
چه ئې چا وته کلام وو
زیات وکم ویل ئې نهٔ کړهٔ
چه ئې کړهٔ واړه ئې ښهٔ کړهٔ
محمدؐ پکښې افضل دے
هم آخر دے هم اول دے
دَ دین کار په دهٔ تمام شهٔ
خاتمت دَ دهٔ په نام شهٔ

## فصل ذکر دَ موت

ولاړ په دا قلم مطلق دے
مرګ په واړو باندِ حق دے
هرچه ژوندی له موره
بیا به وری شی ترګوره
عزرائیلؑ په دا مامور دے
چه هرځوک وژنی دستور دے
ترقیامته شر وشور دے
له اول منزل دَ ګور دے
سوال جواب دَ ګورا ے یاره
نیک وبد ئې حق وشماره
په نیک بخت به ګور ګلزار وی
په بد بخت به غردَ نار وی

## فصل ایمان راوړنه په حشر

حشر حق دے وبه شینه
نیک وبد به مو تلینه
اویزانده به کا تله
عدالت به کا پخپله

جبرائیل به وزن کا ندِ
چه کفی دَ ترازو دی
چه دا درسته دُنیا داړه
دَ هرچا چه څهٔ کردار وی
هرکلی به وزن کیږی
که نیکی زیاته وی خومره
هغه کس به جنتی شی
چه ئے تله سپکه شینه

حکم دا دے په دهٔ باندِ
برابره په هر سودی
خوارلس ځله به وی دواړه
دَ اخیار کهٔ دَ اشرار وی
جبرائیلؑ به پرے خبریږی
چه دَ ژرنو دانه هومره
په حساب به فرحتی شی
و دوزخ لره به ځینه

## باب - خلق درے گروهه پیدا دے

په قرآن کښے حکم دا دے
مومنان منافقان دی
لاربښیونے دَ هرچا دے
هدایت کهٔ ضلالت دے
مَنْ هَدَی اللّٰهُ ته نظر کړه
دَ طاعت توفیق له دهٔ دے
معصیت دَ کافرانو
په قضا په تقدیر وینه
امادا نهٔ حجت کیږی
کهٔ مومن طاعت ته شاکه
دا په شرعه ناروا دی
کافران کهٔ دا حجت که
په دا باب قرآن گویا دے
په قرآن دِ عمل کا ندِ
په قرآن چه عمل نهٔ که

خلق درے گروهه پیدا دے
بیاله پسه کافران دی
ضلالت کهٔ دَ هدیٰ دے
کل دَ دهٔ په مشیت دے
مَنْ یُّضْلِلْ هسے باور کړه
دَ عصمت توفیق له دهٔ دے
ضلالت دَ کافرانو
دا هیڅ بے حکم نهٔ شینه
هر سړے دِ و پوهیږی
په تقدیر حواله دا که
چه دا کا لاس به خطا دی
واړه کار به ضلالت که
لاربښیونے دَ هدیٰ دے
پل دِ نهٔ ږدی دوستو پاندِ
و دوزخ وته به تلهٔ که

چه په خپل عقل څوک درومي — په دا لار زوال به مومي
دا ځائے کار دَ هيچا نهٔ دے — کهٔ هرڅو دانا په زړهٔ دے
په قضا په قدر جانه — مرسلان دي بے سامانه
په بلالؓ عنايت وشهٔ — په بوجهل باندِ نهٔ شهٔ
جَاهِدُوا فِيْنَا وار وکړه — نور غلط فکرونه مهٔ کړه
مدعي کهٔ مبتدع دے — فلسفه کهٔ مخترع دے
ډير ګروهونه ګمراهان دي — چه دَ دين مخالفان دي
څنے لرے لرے ګرځه — دَ ړندو غوندِ مهٔ پرزه
په قرآن باندِ نظر کړه — چه غلط نهٔ شے باور کړه
دا قلزم خوني قلزم دے — تل په موج په تلاطم دے
دَ قضا دَ قدر جانه — الحذر الحذر جانه
چه په دا قلزم کښے غرق شي — هم بے پائ هم بے فرق شي
درست وشرع ته تسليم شه — په دا بحر کښے بے بيم شه

## فصل- ذکر دَ پُلِ صراط دَ ګذر

مومنان دِ وګروهيږي — په صراط به ګذر کيږي
صراط جسر په سقر دے — تر تيرے تُورے تيز تر دے
تر الماسه برنده دے — جهنده دے خيزنده دے
تر ويښتهٔ باريک ښکاريږي — تور تر تورے شپے ياديږي
په زرګونه کروهه لوړ دے — بے حسابه ئے تيغ جوړ دے
خلقے به پرے تيريږي — له هيبته به لرزيږي
په ايمان به تيريدهٔ وي — په طاعت به خلاصيدهٔ وي
څوک به برق غوندِ تيريږي — څوک به باد غوندِ بهيږي
څوک به څي لکه مرغونه — يا تيز پر يا سُست پرونه
څوک اَس غوندِ پرے زغلي — څوک به يون کاندِ دَ پلي

ځوک به تیر په روزانه شي
ځوک به کال وربانډِ دروُمي
په پینځه ویشت زره کاله
روښنائي به دَ ایمان وي
مومنان چه په صراط ځي
فرښتې به ورسره ځي
بشارت به باندِ کاندِ
په صراط مشکلې ګرانه
هسې رنګ به دَ دهٔ تلهٔ وي
په جنت کښې به داخل شي
په صراط فرښتې یاره
یو توحید ایمان صلوٰة هم
شپږم حق دَ مور و پلار دے
چار دَ غسل دَ وضو ده
کهٔ په دا کښې دِ کارسازوي
کهٔ په دا کښې لرو برېږي
مؤمنان چه ترې ګذران شي
په صراط چه ګذر کاندِ
فریادونه به آغاز کا
حجابونه به پیدا شي
و دوزخ ته به پریوزي
دَ بد بختو به مخ تور وي
و دوزخ ته به روان شي
په عذاب کښې به تل اوسي
مصاحب به ئې شیطان وي

ځوک به تیر په ماهیانه شي
په رنګ رنګ به خلاصے مومي
حال به داوي خما لا له
په طاعت به کار آسان وي
ځکې به په نشاط ځي
خوښ به دے په بدرګه ځي
ورسره دَ روستو ورانډِ
په مومن به شي آسانه
چه په هیڅ به خبر نهٔ وي
یو نشاط به ئې په سل شي
له تاغواړي یو خو کاره
روزه حج پینځم زکوٰة هم
هم دَ خویش و دَ تبار دے
چه پاکي ئې مو په مو ده
په صراط به دواړه سازوي
خود به خود دَ جان خطرې
بیا به وار په کافران شي
تاریکي به وي پرې باندِ
پریوتو ته به ځان ساز کا
ځائې په ځائې پرې ژړا شي
په آتش کښې به کښیوزي
واړه تن به ئې تور سکور وي
غم به ساز دَ ددئ په ځان شي
کل ښادي به ځنې یوسي
په دوزخ کښې به حیران وي

چه ئے کړي معصیت وي
هغه دم به فضیحت وي
خپل دفتر وته به ګوري
شرمنده به وي مخ توري
جاودان به ئے عذاب وي
په دوزخ کښے به کباب وي

## فصل - دَ بعث یعني پس دَ مرګه ژوندون

لکه ګورو ته چه یون شته
پس له مرګه بیا ژوندون شته
خدائے په هر چاره قادر دے
بل ژوندون تر والا زر دے
چه په دا باندِ ځوک شک کا
ځان به درست له کفر ډک کا
په آواز دَ صور له ګوره
پا سیدل دي ځما ے وره
صور شپیلئ دَ اسرافیل ده
لوئ دَ پونسو لکهه میل ده
فراخي ئے ځما لا له
چه سرے ځي په زر کاله
څلور ښکر دَ صور یا دیرې
هریو ښکر ئے جهان کیږي
دَ عمل نامے به واشي
په هر لوري به غوغا شي
ځوک نیک بخت ځوک به بدبخت وي
دَ بدبخت حساب به سخت وي
چه نامه په ښي لاس ورکه
نور قیامت به پرے اختر که
چه نامه په کینړ لاس مومي
و دوزخ لره به درومي
دَ دۀ مخ به واړه تور وي
درست وجود به ئے تور سکور وي
دَ نیک بخت مخ به تابان وي
تر مهتاب به لا رخشان وي
راضي من به ځنې خدائے شي
جنتونه به ئے ځائے شي
تل به اوسي په جنت کښے
په خوشئ په راحت کښے
ورسره به وي تل حورے
په هر دم ورته حضورے

## فصل - دَ دوزخ او دوزخیانو

دا حدیث دَ مصطفیٰ دے
دوزخ شو رنګه پیدا دے
دی اُوۀ درکه کل واړه
تۀ امان له واړو غواړه

جهنم اول دوزخ دے
بیا لظیٰ دے بیا حطمیٰ دے
بیا پینځم سقر اے یاره
قعر هومره دَ هریک دے
عرض وطول ئے په حساب کښے
هر هر ګروه چه کافران دی
هر یو ګروه برسره یک کا
دوزخیان به وی مخ توری
په ګردن کښے ئے طوقونه
دَ قطران جامے دَ واړو
چه خوراک ئے تل زقوم وی
دَ اوبه تل مشتاق وی
چپ و راست دَ روستو وړاندِ
هم به پوست دَدوئ رژیږی
په دا رنګ به پرے تیریږی

په عذاب هر ګوره شنخ دے
خلورم ئے هاویه دے
بیا سعیر جهنم وشماره
چه حساب ئے لکه درلکه دے
ډیر یا ډیری په کتاب کښے
مشرکان که فاسقان دی
هر دوزخ به باندِ ډک کا
سترګے شنے بد بد به ګوری
په زنځیرے ئے پښے لاسونه
ترے به بوئ ځی دَ مردارو
بنهٔ ځیزونه به معدوم وی
یا غسلین یا به غساق وی
سرے لمبے به وی پرے باندِ
هم به بیا ور باندِ کیږی
جاودان به عذابیږی

## فصل۔ تعریف دَ جنتونو دجنت دَ نعمتونو

دَ جنت صفت به وایم
دَ جنت لائق نیکان دی
ځو فراخ دی جنتونه
خو آسمان مزکه دا واړه
اتهٔ ورونه دَ جنت دی
دی لوئ لوئ ئے قصرونه
په هر لور ښکلی باغونه
سنګریزے به ئے ګوهر وی

نعمتونه به ئے ستائیم
پرهیزګاردی مطیعان دی
په صحیح روایتونه
اُوهٔ خُله تهٔ دا واړه
وبله پاس په درجت دی
دَ یاقوتو محلونه
مشک عنبر مزکه راغونه
دَ دیوال خښتے به زر وی

مخامخ به شي تختونه
تل ترتله به بهار وي
واړه ونې ئې باردارې
کۀ ئې خوند د میوو کښېنم
په هرلور به څې جویونه
يو عسل بل به شراب وي
تل به وي د ونو سورې
څو صفت ئې کړم له خونده
نۀ به رنځ نۀ به زحمت وي
نۀ به تاؤ نۀ به غارمۀ وي
نۀ به ترس وي نۀ به بيم وي
نۀ به مرګ نۀ به فنا وي
جنتي به تل ځوانان وي
شائسته به ترمهتاب وي
هرثمر ته ئې چه زړۀ وي
چو بۀ اس څې په سل کاله
ملک به هومره د جنت وي
کۀ د حورو صفت غواړې
نظروکړه په قرآن کښې
غټې غټې سترګې واړه
سترګې قاصرات الطّرفِ
رنګا رنګ حُلې مهينې
تراويا حُلو د لاندِ
هم به حورهم به غلمان وي
په مړوند وشي د زرو

په هرلوری نعمتونه
په هرلوری به ګلزار وي
تل ترتله ميوه دارې
ترې به کله ورسم
په څلورسرګه تویونه
بل به پئ بل به آب وي
رنګا رنګ میوې برپورې
ترمرئ به څئ بې شنخونده
نۀ به غم نۀ به محنت وي
نۀ به باد نۀ به سارۀ وي
نۀ بد خواه نۀ به غليم وي
تل ترتله به بقا وي
زور قوت به ئې چندان وي
د تخرګ بوئ به ئې ګلاب وي
بې تکليفه به خوله وي
د کمتر مومن اې لا له
مُلبّب به په نعمت وي
په قرآن کښې به وويارې
په سورۀ الرّحمٰن کښې
مکلّل مِنئ په غاړه
په سپين والی لکه برفِ
زرغونې زيړې سرې سپينې
د دوئ تن به بريښناکاندِ
ښائسته به په دا شان وي
مرصّع په څو ګوهرو

مخامخ به وی تختونه
فرش فروش بښکلی رختونه
خوښ به ناست پرې مومنان وی
خادمان به ئې غلمان وی
تحیت به سره وائی
په سلام به سره بیائی
ننداره به د دیدار کا
حمد به واړه د دے کار کا

## دریم باب

### ذکر عبادت ومعرفت چه سره لازم وملزوم دی

عبادت بے معرفته
واړه هیڅ دی پر غفلته
اول پوه په معرفت شه
بیا خبر په عبادت شه
ځان ساته له معصیته
موافق شه له طاعته
کۀ خبر په معرفت شی
لګ په امر په طاعت شی
په ایمان کښے دِ خلل وی
شناخت طاعت سره اول وی
کافران په خدائے خبردی
چه طاعت نۀ کا کافر دی
حقیقی مومن هاله ئے
ګنږه زده کړه مومن نۀ ئے
کۀ دِ شناخت هم د طاعت شته
هم دِ ترس د معصیت شته
کبیره د ایمان زیان دے
هر طاعت لره نقصان دے
زد کړه شه له ما بے درنګه
ګناهونه دی دوه رنګه
هرچه کم دی صغیره دی
هرچه لوئ دی کبیره دی
کۀ سړے کبیره نۀ کا
صغیره به ئے خدائے بښنۀ کا

### فصل د اهل کبائر او کبیره ګناهونه چه څو دی

کبیره واړه اتۀ دی
شپږ ویشت هم په آوریدۀ دی
چه په ژبه شی یا زده دی
بښۀ ئے زده کړه کۀ دِ زده دی
کبیره د نفس اوۀ دی
زیات وکم تر اوۀ نۀ دی
په لاس درے دی نه څلور دی
یو په پښو په فرج دوه نور دی

دوه په درست واړه ازام دی | شپږ ویشت و شماره تمام دی
چه په ژبه یازده یاد دی | تعداد کړی م اُستاد دی
دروغ کل واړه ناروغ دی | کبیره هغه دروغ دی
چه پرے زیان دَ مُسلمان شی | لس درمه دَچا زیان شی
ګله شه دَ هغهٔ بنیره | چه دروغ وائی په بنیره
بل چه چاوته دشنام کا | په زنا سره ئے بدنام کا
بل غیبت دے بل بهتان دے | سخن چین هم په دا شان دے
چه لقب په مومن ساز کا | چه مومن په غم ګداز کا
بل سوګند په دروغ شماره | بل ګواهی په دروغ یاره
چه دَخدائے شریک پیدا کا | بل چه سحر په عمدا کا
چه په نفس وی هغه دا دی | تهٔ ئے ومنه رښتیا دی
چه مالونه دَ یتیم خوری | سوائی خمرے بیم خوری
چه ستم په مُسلمان کا | مال ئے خوری ناحق ئے زیان کا
چه دَکوس غوښے خوک خورینه | یا مردارے پخوینه
چه کښتار دَ کافران دی | چه ئے غوښے خوری دا شان دی
چه په لاس کبیره کیږی | هغه دا رنګه یادیږی
اول قتل په ناحق دے | بل دَغلا نقل مطلق دے
بیا چه ظلم بیدادی که | ښکاره خلق فریادی که
چه په پښو کبیره یاد دی | هغه یو دا هسے زباد دی
چه په جنګ کښے له کافره | پښه عقب که له مقره
چه په فرج دی یو زنا ده | لواطت بده بلا ده
چه په درست اندام ئے شمار دے | یو آزار دَ مور و پلار دے
بل چه فرض دَخدائے قضا که | کبیره ګناه هم دا که

## فصل خلود دَ اهل نار چه تل په دوزخ کښے وی

چه ظالم دے یا فاسق دے | دَ دوزخ دَ اور لائق دے

که کافر دَ حقیقت دے
جنازه دِ ئے وشینه
دَ لحد کانے پرے کیږدی
شرمنده به ګور ته درومي
چه به خوله کلمه ګوئ دے
په دا باب قرآن ناطق دے
جاودان به ئے عذاب وی
څوک چه امر دَ خدائے نهٔ کا
په دُنیا به ئے مخ تور وی
دا یوڅو فرقے نامردے
هر سړے چه ناحق خون کا
چه دوزخ لره رخت یوسی
څوک چه مال دَ یتیم خورینه
څوک چه مال دَ رباخورینه
داخبر دَ پیغمبرؐ دے
چه عاصی دَ مور و پلار وی
تر جنته به ورنهٔ شی
سخن چین په دا حساب دے
بل چه ځان پخپله مړ کا
ترکمر که ځان پریباسی
اغلامي غمازی دواړه
دے وعید نره هغه دی
خلاص کړه ځان له کبائره
صغیره دَ آدم زاد دی

نمونځ پرے روغ به شریعت دَ ے
چه ترګوره ورنے شینه
دے عمل دو بله پریږدی
خود به خپله جزا مومي
ظن پرے بنهٔ کړه که بدخوئ دے
خلاص به نشی چه فاسق دے
په دوزخ کښے به کباب وی
په خلاف دَ رسولؐ تلهٔ کا
په قیامت به ئے ځائے اور وی
یا دے شوی دی لا بد دے
په دوزخ به ئے درون کا
همیشه به پکښے اوسی
په سفر کښے به تل وینه
دوزخی دے چه وُمرینه
تواتر دے معتبر دے
له هغهٔ به خدائے ویزار وی
که هرڅو په عمل بنهٔ شی
بل چه مخ ئے په شراب دے
په چاړهٔ یا په لوړ کا
یا په اور ئے ننه باسی
خُلد حرام دی په دا دواړه
چه مصر په کبیره دی
مکړه غم له صغائره
کبیره دَ بد نهاد دی

## فصل۔ ذکر دَ خیر او دَ شر

خیر او شر چه له چا کیږی | کفر ظلم پیدا کیږی
په بنده ویاړه په بد ژاړه | دَ سړی فعل دے واړه
که وخدائے ته ئے نسبت کړے | دا خطا په شریعت کړے
څوک چه ظلم معصیّت کا | خدائے ورلے عقوبت کا
که دا فعل دَ دا دار دے | سکه دا دار دَ ظلم کار دے
چه پخپله فعل وکا | حواله په تا بد بنده کا
که وخدائے ته ظالم وائی | صریح کفر به ونمائی
چه بدی کړے ته ظالم ئے | که ظالم دَ مظالم ئے
مشیّت واړه دَ ده دے | مشیّت چه کل دَ ده دے
فعل کړونے ئے سړے دے | په بنده بد نیولے دے دے
دا ځائے، ځائے دَ شبهه دے | فکر ډوب په اندیښنو دے
ځان لازم بوله په بدو | مکړه نور فکر دردو

## فصل۔ ذکر دَ گناه او په گناه باندِ توبه

کبیره گناه چه وکا | خوار شه دے که توبه نه کا
که توبه ئے په اخلاص وی | له دوزخه نه به خلاص وی
دَ عاصی توبه قبلیږی | مغفرت ورباندِ کیږی
ځان چه چرک دَ گناه مومی | دَ توبے په صابون دروی
چه توبه ئے دَ نصوح وی | دَ توبے به ئے فتوح وی
دَ توبے شرطه څلور دی | پښیمانی په زړه درنوردی
استغفار ویل په ژبه | بیا گناه مه کړه تائبه
ټینگیدل په توبه جانه | چه بیا نه کړه توبه ورانه
په دا رنگ که توبه کا رشے | له توبے به برخوردار شے
که قضا دِ وی نمونځونه | یا عشرونه زکو تونه
په قضا چه روژے ستا وی | یا دَ خون دعوی په تا وی

کۀ علاج دَ واړه وکړې | په توبه به نور زړۀ بنۀ کړې
ستا توبه ده دَ خاصا نو | ئې له خاصو مُسلما نو
کۀ توبه دِ په غرض ده | دا توبه نه دَ مرض ده

## تعریف دَ اخلاص دَ طاعت نه دَ ریا دَ عبادت

راشه واوره هسې دین | مُخْلِصِیْنَ لَهُ الدِّیْن
په عمل کښې پیچا هیچ دے | طاعت بې اخلاصه هیڅ دے
هر طاعت چه په ریا وی | دَ سرې دَ ځان بلا وی
په پېنځه رګله ریا ده | دا خبره په ربښتیا ده
اول دا چه طاعت کاندِ | چه عالم ئې صفت کاندِ
دا طاعت ئې هم خراب دے | خوئې کاندِ لا ثواب دے
په قیامت به روسیاه وی | دا طاعت به ئې ګناه وی
بل چه هسې طاعت کاندِ | بله خلق ئې خدمت کاندِ
بل دُنیا په طاعت غواړی | چه دُنیا مومی ویاړی
بل چه مټ په طاعت ډیر کا | خپل شهرت په زړه کښې تیر کا
هغه هم څۀ طاعت نۀ دے | چه ئې کاندی کله بنۀ دے
بل چه خلق وی طاعت که | چه تنها وی معصیّت که
دا ریا ده ډیره بده | ترې ئې وساتے اَحده
دَ اخلاص طاعت هغه دے | چه غرض ترې په ستنه دے
بې غرضه وی اے یاره | خاص ئې کړه دَ خدائې دپاره
له ریا نه زړۀ خلاص بنۀ دے | یو سجود په اخلاص بنۀ دے
دَ ریا طاعت اے جانه | لږ و ډیر دے له نقصانه
فریضه طاعت سرګند کړه | پټ دِ نفل کا پسند کړه

## فصل۔ صفت دَ علم او دَ علم دَ فضیلت

زده کول دَ علم فرض دے — په میړو په ښځو فرض دے
صد رحمت په هغهٔ باندِ — چه طلب دَ علم کا ندِ
پیغمبرؐ دی فرمائیلی — دهٔ ترپاکے خولے ایستلی
کهٔ ترمنځ دریاب یا اور وی — په بل لور دَ عالِم کور وی
وَ عالِم ته به هورے ځی — کهٔ غرقیږی یا کهٔ سوزی
علم واړه عبادت دے — څوچه کیږی سعادت دے
یو ساعت له عالمانو — ناستے څو دے مُسلمانو
چه یو کال په کعبه تیر که — څوک طاعت پکښے ډیر که
چه دَ علم په طلب ځی — کهٔ په ورځ ځی کهٔ په شب ځی
په هرگام به ثواب مومی — چه ترکور ترمکه دروی
چه یوه مسئله زده کا — خدائے به دے آمرزیدهٔ که
نه هزار رکعته نفل — نهٔ یوه مسئله نقل
چه عالم نهٔ وی په کلی — هغه کلے دِ وهلی
دَ عالِم مرتبه خویه — ترشهیده لا ده لویه
فضیلت دَ علم ډیر دے — ترحساب ترشماره تیر دے
چه دَ شرعے بندوبست دے — داهمه دَ علم دست دے
کهٔ حلال کهٔ حرام دواړه — علم زباد کړه ورته واړه
کهٔ گفتن کهٔ شنیدن وی — کهٔ رفتن کهٔ نشستن وی
کهٔ خواړهٔ کهٔ اوخښل وی — کهٔ دَ سترگو اَړول وی
کهٔ سجود دے کهٔ طاعت دے — کهٔ ادب دے کهٔ خدمت دے
کهٔ غزا ده کهٔ زکوٰة دے — کهٔ حاجی دے عرفات دے
کهٔ عابد دَ عبادت دے — کهٔ زاهد کُنج وَخلوت دے
کهٔ بادشاه دَ مملکت دے — کهٔ دهقان دَ زراعت دے
کهٔ نکاح کهٔ زیست روزگار دے — کهٔ صائم کهٔ نمازگذار دے
کهٔ زکوٰة کهٔ مزکی دے — یا کهٔ فعل دَ زکی دے

داچه ډیر داهسې کاره
چه بې علمه طاعت کیږي
چه بې علمه قیل وقال کا
چه کرم باندِ دَخدائے شي

نۀ شي بې علم اے یاره
کۀ هزار کا نۀ قبلیږي
هغه کل دَ جان وبال کا
زړۀ هاله دَ علم ځائے شي

## فصل۔ اِثبات دَ نبوّت

محمدؐ چه پیغمبر دے
دلیل دا چه معجزات
معجزه ئے قرآن دے
عرب ډیر فصیح زبان وو
اتفاق ئے په دا کار وو
مُدعی دَ مصطفیٰ وو
څۀ کۀ دین دَدۀ باطل کړو
جدلونه ئے برپائے کړۀ
یو آیت لکه قرآن وو
په دا کار کښې سرګردان شول
همګی واړه عاجز شول
قرآن درست واړه متین دے
دَ عیسیٰؑ معجزه دا وه
دَ موسیٰؑ عسا یه مار شوه
معجزه دَ محمدؐ شته
کۀ ترشرق ترغربه واړه
یو آیت لکه قرآن دے
په اعجاز ئے کړه دوه نیمه
بل ګویا ورته کباب شۀ

ستا په کوم دلیل باور دے
لرې دے بې نهایات
چه راغلے په بنۀ شان دے
دانشمند دَ خپل اَوان وو
له قرآنه ئے انکار وو
په بطلان ئے په غوغا وو
سحر کړیائے چه بل کړو
کوششونه ئے په رائے کړه
چا ونه وې هسے ګران وو
آخر خا ورے دَ قرآن شول
دَ رسولؐ په دین فائز شول
معجزه ترېے وسین دے
دَ مړ دۀ په احیا وه
یا به ونه په اثمار شوه
یو قرآن دے کښې سرمد شته
فصیحاف سازه کا غاړه
را به نۀ وهې هسے ګران دے
هومره اُوزمکے جسیمه
بل ئے لاس چشمه دَ آب شۀ

بل سوسمار ورنه خبر
په بښکاره وکړه نادر

په اعجازئے وبله پور
او بهٔ بنیے شوے تلخی شور

په فراق د دهٔ نالانه
دَ مسجد ستنه شوه جانه

په هوا دو اُوهٔ پاسه
غردی دهٔ دَ سر د پاسه

چه ئے و بلله ونه
ورته را غله لویه پلنه

دهٔ به وښئیل څیزونه
چه به ورک شول په ملکونه

معجزے ئے وے بے شماره
زهٔ ئے څو کښنم درته یاره

کهٔ ئے کښنم کتاب اوږدیږی
دا نا یان به خود پوهیږی

## فصل

## فضایل دَ رسولؐ دَ اصحابو او خلاف په مرا تبو دَ دویٔ

دَ رسولؐ چه لوئے اصحاب دی
خدائے یادکړی په کتاب دی

سَابِقُوْنَ الاَوَّلُوْنَ
راشه واوره په غوږ ونه

فضیلت دَ واړو ډیر دے
ترشماره ترحساب تیر دے

کهٔ دَ دوئ فضیلتونه
غواړے گوره آیتونه

هر اصحاب ئے چه په نوم دے
لار ښیونے کالنجوم دے

چه اصحاب ته ئے دشنام که
په لعنت به ځان بدنام که

دَ شیخینو سَب چه کاندِ
صد لعنت په هغو باندِ

دَ اجماع په حکم یاره
کُشتنی هغه وشماره

لس یاران ئے صحبتی وی
شک ومهٔ کړه جنتی دی

یو بوبکرؓ بل عمرؓ دے
بل عثمانؓ دے بل حیدرؓ دے

پینځم سعدؓ دے اے یاره
بیا شپږم سعیدؓ وشماره

وریے طلحهٔؓ زبیرؓ دے
خپل وجود ئے دَ ننهٔ غیر دے

بیا ابوعبیدهٔؓ نهم دے
بیا عبدالرحمانؓ لسم دے

دا یاران دَ دهٔ عشره دی
چه عشره مُبشِّره دی

خلافت دَ چار یارانو په دیرش کاله وو یارا نو
بیا دَ پسه بادشاهي شوه په سپیدئ کښې سیاهي شوه
اول بغي را پیدا شول څوک بادشاه څوک اُمرا شول

## فصل- تعریف دَ امام اعظمؒ او دَ هغهٔ دَ مذهب

له کتابه له اخباره په اجماع دَ اُمت یاره
چه مذهب دَ دهٔ مذهب دے دَ امام اعظمؒ مذهب دے
چه له خدایه ډیر ویرېږی امامت بانسدِ ژغیرې
ډیر په ویره په اخلاص وو امام څکه خاص الخاص وو
دَ رسولؐ انسؓ اصحاب وو روایت ئے باصواب وو
چه نعمانؒ بن ثابت دے دَ دین کار په دهٔ ثابت دے
دَ رسولؐ دَ خولے خبر دے شک ومکره معتبر دے
چه نعمانؒ به را پیدا شی څما دین به پرے رنړا شی
دا لفظ درے ځلے منهاج دے دے سراج سراج دے
دَ اجماع دلیل معلوم دے ترکستان کهٔ هند کهٔ روم دے
په مذهب دَ لوئے امام دی دلیلونه لا کلام دی
بادشاهان کهٔ امیران دی کهٔ قاضیان کهٔ عالمان دی
دَ امامؒ دَ مذهب ډیر دی ترحساب ترشماره تیر دی
دَ امامؒ مذهب ماهتاب دے نور هر یو لکه شهاب دے
دَ امامؒ علم وافر وو زیات ترکښلو تر دفتر وو
زر دلیل زرے حجته دهٔ راوړه له روایته
دائے داب وو څلوېښت کاله تر بامداد له عشا لا له
په یوهٔ اودس ئے نماز وو کوره هسے سر فراز وو
درست قرآن ئے په رکعت لوست دهٔ به درست آیت آیت لوست
په طاعت کښې بے نظیر وو په جمله علم خبیر وو

کهٔ ورع کهٔ پارسائی وه
کهٔ زړکونه سره تول شی
په حجت تر واړو تیر وو
دَ امام جعفرؓ تلمیذ وو
تابعین ئے وو لیدلی
دَ هارونؒ په خلافت کښے
پلار نیکهٔ ئے دَ کابل وو
په کوفه کښے ئے میلاد وو
بیا دَ دهٔ وطن بغداد شهٔ

همګی دَ دهٔ ځائی وه
عالمان واړه غول غول شی
دَ دهٔ زبان تیرهٔ شمشیر وو
واړه کار دَ دهٔ لذیذ وو
په تقوی په دین بناغلی
دَ دهٔ کار وو په رفعت کښے
بیا په بلخ کښے مقابل وو
په مکتب کښے دَ حمادؒ وو
هومره خلق ځنے بناد شهٔ

## څلورم باب

## ذکر دَ طهارت او دَ فرض واجب او سنت

چه ایمان په خدائے راوړینه
دَ رسولؐ سنت دِ کاندِ
خو چه شته معصیّت واړه
په توحید چه ایماندار شی
اول مونځ بیا نور طاعت دے
اَلَّذِیْنَ یُؤْمِنُوْنَ!
دَ نمانځه په باب راغلی
دَ اودس سره مونځ بنهٔ دے
بے اودسه چه مونځ کاندِ
طهارت دے په دوه رنګه
له حدث طهارت دے
دَ حدث چه وضو وکړے
چه درست تن په اوبو تر شی

فرض واجب دِ ګذارینه
چه لازم دی داپرے باندِ
چه دَ دهٔ نه شی په غاړه
کهٔ هر څو طاعت بسیار شی
دَ نمانځه هومره قوت دے
هسے ډیر دی آیتونه
په قرآن کښے خدائے وئیلی
بے اودسه مونځ هیڅ نهٔ دے
کفر ورشی په دهٔ باندِ
له دا نشه له فرهنګه
طهارت دَ جنابت دے
پاک شوئے نور به نماز تهٔ کړے
دَ جنب طهارت وشی

## فصل - ذکر دَ نمانځهٔ دَ فرضیت

نموځ په دا په سړي فرض شهٔ — په معنی کښے لکه قرض شهٔ
سړے نهٔ وو خدائے پیدا کړهٔ — مکرم ئے په دَ نیا کړهٔ
په صورت کښے سر تر پائے — نعمتونه دی له خدائے
سر په تن سور کړے دهٔ دے — مخ ته نور ورکړے دهٔ دے
سترګے وروځے بانړهٔ ګوره — زیبائی لری هر ګوره
کهٔ دِ تور دَ سترګو نهٔ وی — ستا به زړهٔ له غمه چوی
پوزے خولے وَته نظر کړه — پکښے ځیر لعل و ګوهر کړه
دوه غوږونه دوه رُخساره — دَ زنخ وکړه ننداره
لاس و پښے درکړی چا دی — بند په بند جوړ کړی چا دی
هر وینسته دَ صورت ګوره — په وجود کښے نعمت ګوره
درست ظاهر باطن نعیم ئے — تهٔ یو احسن التقویم ئے
کهٔ په زړهٔ دِ دانائی ده — کهٔ دَ ژبے ګویائی ده
دائے وارَه وَتا درکړهٔ — شهٔ ئے وارَه وتا درکړهٔ
په هرځهٔ ئے مکرم کړے — خلیفه ئے دَ عالم کړے
یو سجود له تا نه غواړی — په یوه سجده دِ ویاړی
دے دِ رب دے، دے معبود دے — ځکه فرض په تا سجود دے
دَ نعمت شکر بائیدهٔ دے — ناسپاس سړے بندهٔ نهٔ دے
مونځ چه فرض شهٔ پینځهٔ وخته — په وخت وخت ئے کړه نیکبخته
چه له فرضه نمانځهٔ دورئے — بد بنده دے ناشکور ئے
هر بنده چه ناشکور شی — دَ صاحب له فهمه دور شی
دَ صاحب اندوه ئے کوم — چه بنده لری ستر سروم
په طاعت دَ بنده سود دے — خدائے غم نهٔ لری معبود دے
په طاعت بنده مانځهٔ شی — په عناد سره شکانجه شی
په قیامت به دا مونځونه — دَ سړی شی براقونه
وار په وار به پرے سوریږی — وجنت ته به رسیږی

## فصل - ذکر علامت دَ بلاغت

چه په عمر دوارس ده شی
دَ هلک دِ هومره زده شی

دے دِ مینه په نمانځه کا
وتنبیه ده که نمونځ نهٔ کا

نمونځ هاله ورباندِ فرض شی
چه بالغ په طول وعرض شی

دَ بلوغ نخښے ځلور دی
احتلام دے درے دانور دی

چه په سال هژده ساله شی
یا ترے بنځه حامله شی

چه لذت دَ دخول موم
جهند منی ترے دروم

بلوغت دَ بنځے دا دے
حیض نخښه دَ نسا دے

یائے وی اُولس کاله
یا چه حمل واخلی لا له

ځلورم دا روایت دے
احتلام ئے بلاغت دے

هرسړے چه مکلّف شی
په مانځه دِ مشرف شی

دَ اودس په کاردِ پوهـ شی
چه دے بیرته له اندوه شی

## فصل - دَ فرض دَ واجب دَ سنت دَ آدبونو

هرسړے چه ایماندار وی
په اخلاص به نمونځ گذاروی

پس له شناخته له توحیده
دَ نمانځه دے دیر تاکیده

فرض واجب زده کړه دادواړه
وسنت ته کیبږده غاړه

موافق په شرعه کار کړه
په ادب کښے زیست روزګار کړه

په ولاړ په ناست په تله کښے
ادب بویه په هرځهٔ کښے

دَ سړی چه ادب نهٔ وی
ترسړی نه ښاروے بنهٔ وی

## فصل - ادب دَ خلا چه چارچوبئ یا صحرا له تلهٔ کا

چه حاجت دِ دَ خلا شی
لرے ځائے تردِ تلهٔ ستا شی

پټ له خلقه لرے کښینه
ورکړه زور وکینړے پښے نه

وقبلے وته مخ مهٔ کړه
په قمر په نمر هم زده کړه

ځان جامه ساته له بو له
غائط وروکوه له هو له

په صحرا مهٔ کړه خبرے
کنه غول خورے چه نغرے

یاچه وني وي باردارے
یا سایه لرى دَ لارے

یا دیوال چه سایه داروي
یا دَ رود غاړه یالاروي

دا خوځایه غائط مهٔ کړه
کهٔ سړے ئے ادب زده کړه

په غایط په بولِ ځوانه
حذر کړه له ګورستانه

بول مهٔ کړه په سوراخ کښے
یا په ورخ کښے یا په کاغ کښے

هورته خونے دَ پیریان وي
خپل مکان په هرچاګران وي

چه فارغ شے له صحرانه
تهٔ دِ نهٔ وځے بے دُعا نه

کهٔ پوهیږے خدائے بهٔ ستائے
تهٔ به دا دُعا وائے

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ اَخْرَجَ عَنِّیْ مَا یُؤْذِیْنِیْ

ځان به پاک کړے په درلوطِ
یا دړے کانړی شو کهٔ غوطِ

کهٔ دړے کانړی نهٔ وي یو بس
خود پوهیږی په خپل ځان کس

خو پاکی دَ وجود بویه
لوټه کمه وي کهٔ لویه

وچے پانړے وچ وابنهٔ هم
استنجا لره دي بسهٔ هم

پشم جیره خاوړے بیا کے
استنجا ته وي بے باکے

بیا چه واخلے یو څو ګامه
استبراء وکړه تمامه

چه وسواس لرے په زړهٔ کښے
هیڅ تعطیل مهٔ کړه په ولهٔ کښے

په بنی لاس اوبهٔ اَخله
په کینړو نیځه پیتے خپله

په ولهٔ کار مکړه دَ سستو
ځان بنهٔ پاک کړه وړاندِ روستو

کهٔ ککړ تر درهم کم ئے
اوبهٔ مهٔ اخله بے غم ئے

چار چوبئ لره کهٔ دروے
دا ادب بویه چه موے

اول کینړه پښه دروڼ کړه
په واتهٔ کښے ښئ بیرون کړه

دا دُعا دَ هغه دم ده
دَ دانا ده دَ اَعلم ده

اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَعُوْذُ بِكَ مِنَ الرِّجْسِ النَّجَسِ الْخَبِیْثِ الْمُخْبِثِ الشَّیْطٰنِ الرَّجِیْمِ

اهل کار دَ دین پاکی ده
په پاکئ کښے بے باکی ده

له دړے تو که پاک صورت کړه
هاله څه په عبادت کړه

له اوله معصیت دے　　بل حدث بل نجاست دے
دَ گناه پاکی توبه ده　　تل پاکی دَ توبه ښه ده
دَ حدث پاکی آبدست دے　　دَ هوښیار دے که دَ مست دے
نجاست په غسل درومی　　ځان جامه پرے پاکی مومی
پاکی درے اوبهٔ هم درے دی　　دَ باران کهٔ دَ چینے دی
بیا دَ سترگو اوبهٔ جا نه　　چه پرے پاک شے له عصیانه
چه دا درے پاکی لرینه　　غم دِ هیڅ نهٔ کا کهٔ مرینه
په صحیح چه دوست دَ خدائے دے　　دَ پاکو جنت ځائے دے
په قرآن کښے دا آیت دے　　راشه واوره چه آیت دے

قولهٗ تعالیٰ : إِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ التَّوَّابِينَ وَيُحِبُّ الْمُتَطَهِّرِينَ ۔

## پینځم باب

### ذکر دَ وضو دَ هره کاره

هر سړے چه اودس کاندِ　　تسمیه بویه دَ وړاندِ
بیا دِ نیت دَ اودس وکه　　مونځ دِ یاد په زړهٔ په خولهٔ که
بیا دِ داخلی اوبهٔ پاکے　　نهٔ بد بوئے بد خوراکے
پرے دِ دوینځی لاسونه　　بیا دِ وینځی اندامونه
په کینم لاس دِ طهارت که　　لاس دِ پاک په سمکوت که
بیا دِ خولهٔ په درے کرته　　په اوبو کهٔ لته پته
بیا مسواک بویه په نغته　　کهٔ لرگے نهٔ وی په گوته
بیا دَ پوزے استنشاق دے　　په درے ځله اتفاق دے
بیا دَ مخ ولنه درے ځله　　بیا ښے لاس دے له اوله
بیا کینم لاس دے ترڅنگلے　　بیا به مسح لره نه غلے
بیا اوبهٔ وروره ترغوږه　　مسح دا ده وئے نغوږه
دَ سر مسح ربع سر ده　　دَ درست سر هم اولیٰ تر ده
بیا دَ پښو ولنه اے یاره　　تر ښنگریه نه بسیاره

درست کامل اودس هم دا دے
چه م ووت په رښتیا دے
په اودس کښے یو ځل ولنه
فریضه ده په پوښتنه
دویم ځل چه اندام وے شی
د واجب په نام بونے شی
دریم ځل ولنه سنت ده
داوینا په روایت ده

## فصل - فرائض د وضو

د اودس دی څلورخیزه
فریضه دِ ما عزیزه
اول ولهٔ د مخ چه کنج دے
بیا لاسونه ترارنج دے
وریسے مسح د سر ده
د پښو ولنه پس داچرده
کهٔ په دا کښے څهٔ نقصان شی
نمونځ په تا باندِ تاوان شی

## فصل - ذکر د وضو د سنتونو

د اودس سنت چه زده دی
درته ووایم دوازده دی
تسمیه د اودس نیت دے
بیا د لاسو طهارت دے
استنجا هم په دا شمار ده
چه د حکم په مقدار ده
بیا مسواک اوبهٔ د خولے دی
بیا اوبهٔ د پوزے ملے دی
بیا د غوږ مسحه هوښیاره
بیا خلال د ږیرے یاره
بیا ساتنه د ترتیب ده
ولهٔ د وچولی نصیب ده
ولهٔ د هر اندام درے واره
دولس وشو وے شماره

## فصل - د اودس مکروهات

د اودس مکروه شش دی
ترے حذر کړه چه ناخوښ دی
یو چه مخ په قبله میږی
یا تطهیر غایت ترے خیږی
بل چه خپل عورت ښکاره کړه
نامحرم ئے ننداره کړه
بربنډ ځان چه د بل کوری
بول که په ماه کښے شوری
استنجا چه په ښی لاس کا
اوبهٔ ډیرے توئے ناس کا

## فصل - د وضو د دعوات

په اودس کښې دا دُعا ده — په حدیث دَ مصطفیٰ ده
تهٔ چه نیت دَ اودس وکړې — په خپل لاس توئې اوبهٔ کړې
په اودس کښې له اوله — دُعا دا ده وئې لوله

الحمد لله الّذی جعل الماء طهورًا وجعل الاسلام نورًا دلیلًا قابلًا الی الجنة

هغه وخت چه استنجا کړې — بویه داچه دا دُعا کړې

بسم الله العلی العظیم

والحمد لله علیٰ دین الاسلام الاسلام حق والکفر باطلٌ

چه فارغ له استنجا شې — تهٔ به سر په دا دُعا شې

اَللّٰهُمَّ اجْعَلْنِیْ مِنَ التَّوَّابِیْنَ وَاجْعَلْنِیْ مِنَ الْمُتَطَهِّرِیْنَ وَاجْعَلْنِیْ مِنْ عِبَادِكَ الصَّالِحِیْنَ وَاجْعَلْنِیْ مِنَ الَّذِیْنَ لَاخَوْفٌ عَلَیْهِمْ وَلَاهُمْ یَحْزَنُوْنَ ○

چه اوبهٔ دِ په دهان کړې — دا دُعا دِ په زبان کړې

اَللّٰهُمَّ اَسْقِنِیْ مِنْ حَوْضِ نَبِیِّكَ كَاْسًا لَاظَمَأً بَعْدُهٗ -

چه اوبهٔ دِ کړه په پوزه — دا دُعا تر ژبه بوزه

اَللّٰهُمَّ اَرِحْنِیْ رَائِحَةً مِّنْ رَائِحَةِ الجنة وَارْزُقْنِیْ نعمائها

تهٔ چه مخ وینځې مومنه — دا دُعا دِ ده سو دمنه

اَللّٰهُمَّ بَیِّضْ وَجْهِیْ بِنُوْرِكَ یَوْمَ تَبْیَضُّ وُجُوْهٌ وَ تَسْوَدُّ وُجُوْهٌ -

چه ښې لاس وینځې داوایه — مزد به بیامومې له خدایه

اَللّٰهُمَّ اَعْطِنِیْ كِتَابِیْ بِیَمِیْنِیْ وَحَاسِبْنِیْ حِسَابًا یَسِیْرًا -

چه کینړ لاس وینځې دا لوله — نهٔ یو ځل په څو څو لوله

اَللّٰهُمَّ لَاتُعْطِنِیْ كِتَابِیْ بِشِمَالِیْ وَلَامِنْ وَرَاءِ ظَهْرِیْ وَلَا تُحَاسِبْنِیْ حِسَابًا عَسِیْرًا

بیا چه مسح دَ خپل سر کړې — دا دُعا به مکرر کړې

اَللّٰهُمَّ اَعِنِّیْ بِرَحْمَتِكَ عَلٰی رَأْسِیْ

بیا چه ما وروړی ترغوړه دا دُعا لوله ونغوړه

اَللّٰهُمَّ اجْعَلْنِیْ مِنَ الَّذِیْنَ یَسْتَمِعُوْنَ الْقَوْلَ فَیَتَّبِعُوْنَ اَحْسَنَهٗ

بیا چه مسحه دَ کردن کا دا دُعا دِ مرد وزن کا

اَللّٰهُمَّ اَعْتِقْ رَقَبَتِیْ وَ رَقَبَهٗ آبَائِیْ وَاُمَّهَاتِیْ مِنَ النَّارِ

بیا په وخت دَ پښو وللو دا دُعا ده دَ وئیلو

اَللّٰهُمَّ نَجِّنِیْ مِنْ غَضَبِكَ یَوْمَ یُؤْخَذُ بِالنَّوَاصِیْ وَالْاَقْدَامِ وَجَاوِزْنِیْ عَلَی الصِّرَاطِ وَاَدْخِلْنِی الْجَنَّةَ یَا ذُوالْجَلَالِ وَالْاِکْرَامِ

بیا چه وینځې پښې دویمه دا دُعا لوله دا یمه

اَللّٰهُمَّ ثَبِّتْ قَدَمِیْ عَلَی الصِّرَاطِ یَوْمَ تَزِلُّ فِیْهِ اَقْدَامُ الْمُنَافِقِیْنَ فِی النَّارِ

چه فارغ شې له اودسه دا دُعا لوله له پسه

سُبْحَانَكَ اَللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَاَسْتَغْفِرُكَ وَاَتُوْبُ اِلَیْكَ

چه اودس اوکړې روان شې دا دُعا وایه مرخان شې

اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِیْكَ لَهٗ وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ

په مسجد چه قدم کښېږدې دا دُعا وایه چه پسې بږدې

اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِیْ ذُنُوْبِیْ وَفْتَحْ لِیْ اَبْوَابَ رَحْمَتِكَ وَاَبْوَابَ کَرَمِكَ یَا اَرْحَمَ الرَّاحِمِیْنَ.

## فصل ـ ذِکر دَ هغو څیزونو چه اودس تباه کوي

چه اودس تباه کوینه    کل اته ویشت توکه دینه

اول بول غایط زده کړه    بیا مذی ودی شمیره کړه

بیا چینجی تر دوه سوراخه    بادهم دے تر دوه سوراخه

دَ پرهار وینے یا ښوے    کهٔ جاری زیړے اوبهٔ وے

دَ حلق وینے لړے ډیرے    دَ ناف وینے تیر وبیرے

تے دَ خولے وینے دَ پوزے    دَ اورئ وینے دی بدبوزے

کهٔ اوبهٔ وځی له نافه    اودس مات که بے خلافه

چه له مغزه بلغم بیل شی    بیا ترحلق وُځی دے غل شی

دَ نامهٔ اوبه هم هسے    دَ سرِی دی بے اودسے

دَ ذکر چینجے هم بد دے    دے په دے شمیره نامزد دے

وینے ښوے کهٔ زرد آب دے    دَ بینی په دا حساب دے

ښوے زیړے اوبهٔ وینے    کهٔ دَ خولے دَ پوزے وینے

کهٔ خندا په قهقهه وکړه    په مانځه کښے هم بسنهٔ نهٔ کړه

بیهوشی که لیونتوب دے    بل تکیه وهلے خوب دے

بنځه نرچه سره ورشی    بسوده فرج او ذکر شی

یا بربنډ سره کنار شی    سره دواړه نا قرار شی

چه جاری پرهر لرینه    اودس مات شهٔ چه وقت ځینه

په دا شان استحاضه ده    مبرهنه مسئله ده

زُرک وهل هم اودس مات که    یا کهٔ کم یا ئے خوک زیات که

## فصل - دَ اتو مسئلو دَ وضو دَ نمانځه په کار

دا اتهٔ مسئلے بنے دی    په نمانځه په اودس کښے دی

په درے نمونځ اودس ماتیږی    په درے نمونځ دَ کس ماتیږی

په دا درے توکه نمونځ مات شی    دَ اودس کله آفات شی

اول توک خندا قهقهه ده    دَ اودس چار په عمدا ده

بیهوشی د سویدا دہ — د نمانځه د اودس دا دہ
یو د پوړے وینه چا نه — د اودس دی دا نقصانه
چه خواړه وخوړے نوموځ مات شی — بیا ویل چه کم وزیات شی
بل کثیر فعل اے ناسه — یعنی کار په دواړه لاسه

## فصل۔ ذکر د تیمم

کۀ اوبۀ نۀ پیدا کیږی — تیمم په تا فرضیږی
تیمم په خاورو روغ دے — دا خبر نه په دروغ دے
روغ په گچ هم په آهک دے — هم په سنگ هم په نمک دے
په کالی کۀ پروت غبار وی — باندِ درست د تیبون کار وی
چه اوبۀ په نظر کښیوزی — نور تیبون له تنه پریوزی
چه اودس په څۀ ماتیږی — په هغۀ تیبون ورکیږی
په اودس کښے نیت سنت دے — په تیبون کښے فرض نیت دے
د سړی چه اودس نۀ وی — یا جنب غسل په دۀ وی
کۀ حائض نفساء وی — تیمم باندِ روا وی
کۀ ئے توان د اودس نۀ وی — تیمم کا رنځور بنۀ وی
یا چه رنځ د چا زیاتیږی — په دا هم تیبون رغیږی
کۀ سړے د اودس نۀ وی — تیمم کا مریض بنۀ وی
کۀ اوبۀ ترنزدے تۀ ئے — تیبون کړه کۀ خبر نۀ ئے
حد یو میل د تیبا نۀ دے — کۀ څۀ کم دے روا نۀ دے
کۀ اوبۀ دی ترمیل کمے — یا په غرۀ وی یا په سمے
په ورتلۀ کۀ وخت تنگیږی — په ضرور تیبون رغیږی
وخت دِ نۀ پریږدی له دسته — بیا دِ کا د قضا مرسته
چه تیبون وهے هوښیاره — یا که خاوره کړه اختیاره
دواړه لاس په خاورو کښیږده — بیا ئے پاس په مخ ورپریږده

دویم ځل دواړه لاسونه    وُمړه دواړه ساعدونه
هر سړے چه نموڅ گذاروی    خبرداره په دا کار وی
نیت ئے پټ نهٔ دے آشکار دے    کار دَ نظم اختصار دے

## فصل- په موزه مسح کول

په موزه مسحه روا ده    معتبره دا وینا ده
درست تمام اودس چه وکړه    بیا په پښو په موزه تهٔ کړه
بیا کهٔ تهٔ شے بے اودسه    په موزه کړه مسحه کسه
دَ مقیم شبانه روز ده    مسافر لره سِه روز ده
په حساب ئے هغه دم دے    چه حدث شی نهٔ بل دم دے
کهٔ موزه له پښو بدر کړے    بے حدثه پښے به تر کړے
مسح دړے خط چکول دی    موزه باندِ لاس منبل دی
کهٔ موزه شی هومره څیرے    چه دړے گوتے ځی پرے څیرے
نور پرے مسح نا روا ده    دَ موزے خبره دا ده
کهٔ دَ لاسو پښو پرهار وی    ښوړ لته تر پرهر جاروی
کهٔ صورت ته زیان رسیږی    مسح هم باندِ رغیږی
کهٔ ئے زیان په وله کښے نشته    تهٔ ئے پرے وینځه اوبهٔ شته

## فصل-لس څیزه سنت دَ ابراهیمؑ پیغمبر

په اوبهٔ په خولهٔ په پوزه    بل مسواک کول به روزه
بل دَ سر وینښتهٔ خرئیل دی    زیر ناف دی دَ بغل دی
بل ختنه کول اے جانه    استنجا په اوبهٔ ځوانه
بل اخستل دَ بریتونو    بل اخستل دَ نوکونو
دَ نساء دَ سر وینښتهٔ دی    چه ئے نهٔ گلوی بنهٔ دی
دا سنت لس دَ خلیل دی    دَ مومن دی دَ اصیل دی

چه په ځائے که دالس خیزه　　اولیاء دی اے عزیزه

## فصل- ذکر دَ نارینه دَ عورتنی دَ اوبو

کهٔ دَ مرد کهٔ دَ نساء دی　　ځلور رنګه اوبهٔ دا دی
اول بول بیا مذی وی　　بیا ودی وی بیا منی وی
کار دَ بولو خود څرګند دے　　کار دَ نورو په بند بند دے
مذی پاځی له شهوته　　منی وُځی له آلسته
ترمذی ودی وی زیات　　وُځی پس له بوله پات
اودس مات په دا درماشی　　لړ و دِ پرځهٔ چه پیدا شی
په منی غسل لازم شی　　کهٔ دخول کهٔ محتلم شی
په لذت چه را پیدا شی　　په هر رنګ غسل رواشی
کهٔ مخفی وی په ذکر کښے　　غسل نشته په داچر کښے
دَ نساء حکم جدا دے　　په پیدا په ناپیدا دے
دوه پردے دَ ښځے فرج وی　　دړونی بیرونی درج وی
اعتبار دَ دړونی وی　　چه مدار په بیرونی وی
احتلام دخول دَ دواړو　　حیض نفاس دَ څلور واړو
چه دړون ئے آلوده وی　　نمونځ بے غسله بیهوده وی
اول ښځے لره بویه　　پرے دِ بوزی ګوته لویه
پاکیزه دِ خپل اندام کا　　بیا دِ درست غسل تمام کا

## فصل- دَ غُسل په څونوعَ

څوارلس غسل فریضه دی　　په کتاب کښے عریضه دی
یو دخول دَ مرد وزن دے　　کار ئے پټ نهٔ دے روشن دے
په منی په نامنی هم　　غسل بویه کهٔ منی هم
دَ شیطان غلطوُ نه　　دَ منی په تو یو نه

ښځه نر چه سره ورشي ... بې منۍ ئې حشفه ورشي
دَ نفاس غسل لازم دے ... بیا دَ حیض غسل هم دے
چه نظر وکړه په ښځه ... په انزال غسل ته ته ځه
که څوک یا دیه زړه کښې ته کړے ... په انزال به غسل وکړے
یو دخول پست ورسا دے ... که څۀ غسل دے هم دا دے
بل صحبت دَ مرد له زَنه ... دا هم چار ده مبرهنه
که جُنب شے خوب ونۀ کړے ... نۀ پیشاب غسل زر وکړے
بیا منی له تا جدا شي ... دوباره غسل روا شي
که دوه ښځے سره ورشي ... فرج په فرج ئې برابر شي
په انزال په نا انزال هم ... که دِ غسل دم درحال هم
چه انزال شي له چارپایه ... مرد لا نبه ورته وایه
غسل نشته بے انزاله ... له چارپائې دِ ما لا له
چه حشفه په دبر لاړه ... غسل ورغے په دواړه
چه له خوبه سرے ویښ شي ... په منی کښې په تشویش شي
که ئې خوب په یاد هیڅ نۀ وي ... دا ځائې هم غسل بایده وي
په کندګۍ چه ناپاک تن شي ... غسل فرض په مرد و زن شي
دَ جُمعے غُسل سنت دے ... دَ عیدین په دا نیت دے
دَ مُرده غسل واجب دے ... دا دِ نړه کا چه طالب دے
چه کافر مومن په دین شي ... نفل غسل پرے تعیین شي

## فصل ـ صفت دَ غُسل

غسل فرض دَ جنابت دے ... په قرآن کښے روایت دے
چه جُنب شے دخول وکړے ... بویه دا چه ځان اوده کړے
یا پیشاب وکړه اے ځوانه ... منی لرے کړه له ځانه
بیا وغُسل ته ځان ساز کړه ... غسل دا رنګه آغاز کړه

اول ولنه دَ لاس بویه
له لاس وللوچه وزګار شے
نجاست له تنه دور کړه
کهٔ دیوال کهٔ خاورے پاکے
لاس پرے ومږه خوواره
ماء په خولهٔ کړه له اوله
بیا و پوزه اوبهٔ ورکړه
کهٔ تمام اودس تهٔ وکړے
وج کهٔ پاتے تار دَ موئ شی
چه کوځئ دَ سر وو دوی
چه ترتهِ ئے اوبهٔ یوسی
دَ کوځیو بیخ چه ترشی
جنابت دے کهٔ نفاس دے
دَ جُنب غسل چه شان دے
کار دَ درے واړو یکسان دے
چه په خولهٔ اوبهٔ اندر کړه
په وضو کښے داسنت دی
تهٔ چه غسل کړے اے ځویه
دَ تنها طهارت من دے
کهٔ ئے زیات کړے تبذیر شی
کهٔ په کور کښے ئے دا دود دے
تر خلورو منو کمے
کهٔ جنب په سیند کښے دوب شی
کهٔ باران باندِ وریږی
بویه دا چه اودس دَ کا

بنهٔ کوزه کړه باندِ تو یه
استنجا له به تیار شے
بیا لاس نورعلی نور کړه
وچے خشک یا نم ناکے
لاس بنهٔ پاک کړه یار دَ یاره
غرغره وکړه درے ځله
بس دا غسل دے باور کړه
غسل بیا وکړه هم بنهٔ کړے
جُنب پاتے زنو شوی شی
کهٔ بے شماره ډیر هرځوی
نور دِ هسے وچے وُسی
وج ویښتهٔ ئے هم بهتر شی
کهٔ دَ حیض کوز و پاس دے
دَ نفاس غسل آن شان دے
پرے به پوهه شی چه انسان دے
یا و پوزه اوبهٔ ورکړه
په تغسیل کښے فریضت دی
خلورمنه اوبهٔ بویه
هغه نور دَ درست تن دے
کهٔ ئے لږ کړے تقصیر شی
هیڅ اسراف نشته که زود دے
بدے زیاتے شی دی سمے
کار دَ دهٔ دَ غسل خوب شی
تن ئے لوند شی غسل کیږی
بیا دِ نمونځ سره هاله کا

A.S.KB

کارچه ستا دَ جنابت وی — تهٔ ئے زده کړه چه سنت وی
یوچه لاس په دیوال پاک کړے — بیا چه مشته ئے په خاک کړے
یوچه واړه اودس وکړے — بیا تمام غسل هاله کړے
بیا چه پاسی پرېږدی خپل ځائے — پښے بښے پریونحی بل ځائے
په هنګام دَ غسل یاره — وِرد دا سود لری بے شماره

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ط

بِسْمِ اللهِ الَّذِیْ لَا یَضُرُّ مَعَ اِسْمِهٖ شَیْءٌ فِی الْاَرْضِ وَلَا فِی السَّمَاءِ وَهُوَ السَّمِیْعُ الْعَلِیْمُ ط رَبِّ اَعُوْذُ بِكَ مِنْ هَمَزَاتِ الشَّیَاطِیْنِ وَاَعُوْذُ بِكَ رَبِّ اَنْ یَّحْضُرُوْنَ وَاَعُوْذُ بِكَلِمَاتِ اللهِ التَّامَّاتِ كُلِّهَا مِنْ شَرِّ ذِیْ شَرٍّ وَضِدِّ كُلِّ ذِیْ خَیْرٍ یَا مُجِیْبَ الدَّعْوَاتِ الْمُضْطَرِّیْنَ بِرَحْمَتِكَ
یَا اَرْحَمَ الرَّاحِمِیْنَ ط

چه تمام غسل اداکه — بویه داچه دا دُعاکه

اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَسْاَلُكَ
تَمَامَ الْوُضُوْءِ وَتَمَامَ النَّحْرِ وَتَمَامَ الْغُسْلِ وَتَمَامَ الصَّلٰوةِ بِمَغْفِرَتِكَ وَرِضْوَانِكَ یَا اِلٰهِیْ بِفَضْلِكَ وَبِرَحْمَتِكَ
یَا اَرْحَمَ الرَّاحِمِیْنَ ط

چه دَ ښځے وینے وینے — په درے رنګه به ئے وینے
حیض نفاس استحاضه دے — سرهٔ وَ زیړ وَ بیاضه دے
دَ زنانو له زِه دانه — راځی نهٔ له پاسه جانه
داقل ئے دی درے ورځے — واکثرئے لس چه خوځے
کهٔ تردریو ورځو ندکم وی — ترلس ورځوافزون دم وی
کم و ډیر استحاضه دے — تیرو بیر استحاضه دے
چه ایام ئے خطا نهٔ وی — پرے اودس په هرنمانځه وی
چه ایام ځنے خطا شی — په هروخت غسل روا شی

دَ نفاس اقل پاکي ده
تر ځلو ينبت کښه زياده وي
يو دخول دَ حيض عار وي
لکه حيض چه دَ نساء دے
نمونځ روزه نشته په دواړه
دَ روژے قضا دِ کاندی
چه نساء مستحاضه وي
دا دِ کار که لکه پاکه
دَ حيض وينے دی سرے غوړے
دَ پاکئ دی اوبهٔ سپينے
چه عادت دَ نبځ ځلهٔ وي
حيض کهٔ کم شی له عادته
دا دِ ځان په غسل پاک کا
يو دخول دِ هله کاندِ

ځلو ينبت ورځے بيباکي ده
هغه هم استحاضه وي
نور سوا واړه روزګاروي
هسے کار دَ نفساء دے
هم لوستل تلاوت واړه
دَ نمانځه نشته پرے باندِ
حکم دا دی کهٔ دِ زده وي
په دخول کښے ده بيباکه
پاکبود تورے زيړے
پاکيزه په رنګ مهينے
هغه وخت سپينے اوبهٔ وي
نشته غم له طهارته
نمونځ روژه دِ په تپاک کا
چه عادت ورشی دَ وړاندِ

## فصل - ذکر دَ ځلور و پاکيو

مونځ ګذار لره مسطوردی
اول پاکے اوبهٔ بويه
تن جامے ځلورم ځائے دے
کهٔ اوبهٔ شی مستعملے
چه پرے غسل اودس وکړه
بيا پرے غسل ناروا دے
چه خيرن نمری پريول شی
هغه هم دی مستعملے
مستعملے اوبه ياره

دا ځلور پاکئ ضرور دی
دَ آسمان دی کهٔ له جويه
واړه پاک حکم دَ خدائے دے
په پاکئ کښے شی در غلے
مستعملے دا اوبهٔ کړه
اودس هم باندِ خطا دے
رنګ و بوئ دَ اوبهٔ بل شی
شی دِ زيات تردرے ځلے
پليدی سره وشماره

که کثیر فاحشے نهٔ وی
کاروبار ئے څهٔ خوښهٔ وی

په صابون یې شنخا رچه نور
کهٔ زعفران وی یا سرهٔ تور

دَ اوبو چه رنګ بل شان شی
اودس غسل ته نقصان شی

کهٔ ئے بوئی طعم بدل شی
هغه هم هسے خلل شی

همګی وینه روانه
پلیدی لری اے جانه

دَ پرهار کهٔ دَ بسمل وی
دَ ښاروی کهٔ دَ ښځهٔ بل وی

هغه واړه دی ناپاک
پس دَ غوښو دی بے باک

دَ امام اعظمؒ په قول
پلیدی لری هر بول

اِلّا بول دَ ښاروی
چه ئے غوښے خوری سړی

چه په دا کښے اختلاف دے
په اندک سړے معاف دے

غُشایهٔ واړه پلید دی
پرے پوهیږی چه سعید دی

هر مارغهٔ چه دَ خوراک دے
دَ همه و پنچال پاک دے

یو دَ چرګ پنچال ناپاک دے
بل دَ بطے هم پُرباک دے

هر مارغهٔ چه ښکار کوینه
چه خوراک ئے غوښے وینه

دَ هغهٔ پیخال مکروه دی
پرے خبر بویه چه پوه دی

یا چه قے په ډکه خولهٔ وی
دَ هغهٔ بلغم اوبهٔ وی

دا همه واړه پلید دی
چه ئے ښهٔ ګنړی کور دید دی

پس خوردے په دړے سلوک دی
پاک، پلید، مکروه مشکوک دی

دَ سړی پس خورده ښهٔ ده
دَ کافر هم پاکیزه ده

دَ جُنب دَ نفساء هم
لا دَ حیض دَ نساء هم

چه ئے غوښه سړے خورینه
کهٔ ښاروی کهٔ مارغهٔ وینه

پس خورده ئے ګنړه پاکه
مګر چرګ بطے بدتړ واکه

چه ګنډګی منډګی سرګند خوری
هاله ښهٔ له علف بند خوری

پس خورده دَ سپی سعیده
دهر دوه ګنړه پلیده

چه مکروه ئے پس خوردے دی
مار وَ موش ګربه دا دړے دی

که د شلاند که د نول
سره یوکنره دا قول

چه د مزکے خښنده دے
همکی د موش سره دے

چه پیشو وے مږک خوړلے
اوبهٔ خښبی اوربوز لړلے

تهٔ ئے وګنره پلیده
لایجوز نا مفیده

پس خور دے دی چه مشکوک
نهٔ پلیدی نهٔ ملوک

کهٔ په ماءِ ئے پوره خولهٔ ده
دَ قچرے ده دَ خرهٔ ده

هم اودس باندِ رغیږی
کهٔ تیبون وکړه مونغ کیږی

کهٔ عرق کهٔ ئے لعاب دے
په مشکوکو ئے حساب دے

چه ئے نهٔ وی جاری وینه
لکه مچ مچئ چه وینه

کهٔ دَ دوئ غوندِ څهٔ نوروی
تاروګے کهٔ کونکټ تور وی

په اوبو کښے کهٔ دا ومری
خوک دِ بدګمان پرِنهٔ وړی

کهٔ چیندخه کهٔ ماهی دے
چه په ماء سره ژوندے دے

په اوبو کښے کهٔ پرا تهٔ وی
مره، سرواهغه اوبهٔ وی

کهٔ اوبهٔ دَ خُم دَ چاه وی
یا دَ حوض پرے تباه وی

مږک، مرغئ یا چرمبکئ
چه کم زیات وی تر مرغئ

کهٔ په چاه کښے ومری پریوځی
دَ سری په نظر کښیوزی

ترے بیرون دِ بوتے شل که
هم وضوء هم دِ خښل که

کهٔ یو نهٔ وی پکښے دوه وی
مره، هاله چهل دلوه وی

کهٔ پکښے اما سیده شی
واړه چاه دِ پاکیزه شی

کهٔ سرکه ده کهٔ ګلاب دی
کهٔ د ونو پئ آب دی

کهٔ خوړے شی شودهٔ پئ
کهٔ کنی وی کهٔ مولئ

په دا واړه جامه وله شی
کهٔ جامه دِ آلوده شی

نجاست کهٔ دِ په تن وی
په دا واړه دِ شستن وی

هغه ځائے چه دَ سجود وی
یا تر ښبنو لاندِ موجود وی

کهٔ نجس دِ درم زیات وی
مسئله ده، نمونځ ئے مات وی

که کُشتا روی که مردار وی ... چه ئے پوست دَ چا پکار وی
په بِسمل سره پاکیږی ... بے بسمله نهٔ رغیږی
مګر پاک په دباغت شی ... هاله زړهٔ ترے فراغت شی
په سپی وو چه تکبیر وکړه ... دے به پاک په بِسمل تهٔ کړه
نمونځ پرے کړه بے دباغته ... وایم زهٔ له روایته
دَ سړی دَ ګوشت پوست دواړه ... نا روا روا نور واړه
شرط په مینځ کښے دباغت دے ... چه بسمل شی بے آفت دے

## شپږم باب
## ذکر دَ نمانځهٔ دَ هر باب

دَ نمانځهٔ نه م آغاز دے ... په څلور قِسمه نماز دے
فرض، سنت، واجب دا درے دی ... تطوّع هم ورپسے دی
لکه فرض په مراتب دی ... تر سنت هسے واجب دی
درجه دَ فرض بالا ده ... تر واجب، مسئله دا ده
تطوّع نفل نماز دے ... چه ئے کړے هومره جواز دے
سود ثواب ئے دے په کړهٔ کښے ... عذاب نشته په نهٔ کړهٔ کښے
په قرآن کښے چه صادر دی ... یا ثابت په تواتر دی
هغه کل نمونځونه فرض دی ... ګذارل ئے لکه قرض دی
چه له فرضه څوک منکر شی ... په تحقیق هغه کافر شی
چه ئے زده نهٔ ګذارینه ... له فاسقه شماره دینه
چه ادا کا قضا واړه ... پرے خلاصیږی دَ دهٔ غاړه
چه قضا که درے مونځونه ... دَ امام په قول څو نه
دَ هغهٔ قتل روا شی ... کهٔ دا کار ئے په عمدا شی
بے واجبه کهٔ انکار کا ... کافر نهٔ شی نور بدکار کا
کهٔ واجب دَ چا قضا شی ... اعاده دَ واجب بیا شی
سنت مونځ دِ زر ادا شی ... قضا نشته کهٔ قضا شی

فریضه نمونځونه پنځه دی — په پنځه وخته پنځ ګنج دی
دَ صبا دی دوه رکعته — چار دَ ظهر بې سنته
بیا څلور دَ مازیګر دی — دَ ماښام درې مقرر دی
بیا څلور دَ ماسختن دی — بې سنت واجب په تن دی
نمونځ دَ وتر دَ عیدین — جنازه ګڼره بیا عین
دَ طواف بل نمونځ دَ نذر — واجب دا دی شپږ په جهر
سنت واړه ګڼره دولس — چاوشیلی دی اتلس
دَ بامداد دَ فرض پخوا دی — دوه څلور دَ ظهر دا دی
دوه دَ ظهر تر فرض پس دی — بیا دَ عصر څلور بس دی
دوه په وخت دَ ماښام بیا دی — وریسې دوه دَ عشا دی
تحیّت دَ مسجد دوه دی — دا حرام دوه په مکه دی
دا دَ عصر څلور جد دی — تحیّت چه دَ مسجد دی
کهٔ ګدا زې ثواب ډیر دے — ګڼره حکم ئې تیر هیر دے

## فصل - دَ مانځهٔ دَ نیت

په مانځه کښې لازم نیت دے — فریضه دے کهٔ سنت دے
نیت دَ وخت نیت دَ امام دے — په څلور نیت تمام دے
تطوّع چه ګذارینه — بس چه نیت دَ مانځهٔ وینه
په قیام پښه لرو بر کړه — سجده ګاه ته دِ نظر کړه
په رکوع کښې دِ پښې ګوری — له نورڅهٔ دِ نظر ژغوری
په سجود نهٔ په بل لوری — هغه وخت دِ پوزه ګوری
شل سرونه دی دَ ګوتو — په قبله بویه دَ بختو
چه پاسینه چه کښینینه — په ښئ پښه دِ آغاز وینه
تحیّات چه ابتداء کا — په زانو دِ نظر واکا
هغه وخت چه مونځ تمام کا — انتها دِ په سلام کا

په سلام کښې دا نیت بنائې — په فرښتو دِ سلام وائې
په هغو چه څوک شریک دے — په نمانځه کښې په تحریک دے
په نمانځه کښې تسبیحات — خود ښکاره دی تکبیرات
چه درست مونځ واړه ادا کا — بویه دا بیا دِ دُعا کا
اول بویه چه ځان ژاړی — مور و پلار دِ بیا وغواړی
مومنان دِ واړه یاد کا — په دُعا دِ هرڅوک ښاد کا
دا حدیث دَ پاک رسول دے — پس له نمازه خواست قبول دے

## فصل - دَ نمانځه دَ فرضونو

په نمانځه کښې دولس څیزه — فریضه دی اے عزیزه
شپږ بیرون شپږ اندرون دی — درته وایم چه بیرون دی
دَ لاسونو دَ مخ وِلل وی — په جامه ځان پټول دی
چه پرے نمونځ کوی پاک ځائے دے — بل په وخت دَ نمانځه رائے دے
وقبلے ته مخ کول دی — نیت دَ مونځ په ځائے راوړل دی
دَ تکبیر وئیل اے یاره — درونی سره وشماره
بیا په پښو ودریدل دی — وریسے قرآن لوستل دی
بیا رکوع دے بیا سجود دے — دَ قعدے روستئ نمود دے
چه په دا کښې یو نقصان شی — واړه نمونځ دَ سړی وران شی
چاچه نهٔ کړه دا واړه — خلاصه نهٔ وی دَ دهٔ غاړه

## فصل - دَ نمانځه دَ واجبات

دَ نمانځه چه واجبات دی — اُوهٔ څیزه دی، نهٔ زیات دی
فاتحه ضم له سورته — په اول دوه رکعته
دویم سم چه ودریږی — په رکوع سجود کوزیږی
تشهد ناستے دریم دے — آخرین ئے څلورم دے

پینځم لوستل دَ قنوت دی
دَ عیدینو تکبیرونه
اُوم لوستل دَ امام دی
بیا سرګند دَ ماسختن دی
کهٔ په قصد کهٔ په نسیان وی
کهٔ واجب پاتې عمداً شی
کهٔ په هیر وی عمل نهٔ وی
کهٔ سنت پاتوله چا شی

چه په وترکښې ثبوت دی
واجب وشول شپږ خیزونه
په سرګند چه صبح وشام دی
دوه نمونځونه یې خواندن کی
فرض چه پاتې شي درست زیاتوی
نمونځ نقصان سره ادا شی
سجده سهوه وکړه بنهٔ وی
قضا نشته نور بلا شی

## فصل- دَ نمانځه دَ سنتونو

څلیریشت خیزه دَ نمانځه دی
قولی دولس دی عزیزه
چه قولی دی درته وایم
یو سُبحَانَکَ اَللّٰهُمَّ
بیا وئیل دَ بسم الله دی
لِمَنْ حَمِدَهٗ پینځم شی
په رکوع کښې تکبیراته
په رکوع کښې تسبیحاته
فاتحه لوستل یوولس
چه فعلی دی سنتونه
چه تکبیر تحریمه کړے
چه برحال دِ انګشتان وی
هم قومه دهٔ هم جلسه دهٔ
بیا سلام داستا چپا دے
دَ امام متابعت دے

چه سنت دی زیاتی نهٔ دی
بیا فعلی دی دولس خیزه
واړه بنهٔ دی چه دے وستایم
بیا اَعُوذُ دهٔ دویمه
بیا وئیل سَمِعَ الله دی
رَبَّنَا لَکَ شپږم شی
دَ سجود وایم وَ تاته
دَ سجود غوږ کړه وَ ماته
تحیات لوستل پس دولس
په اکثر روایتونه
هسک لاسونه تراوږه کړے
ښے په کینږ پسے عیان دی
بیا په دا پسے سجده دهٔ
ګستردن پسے دَ پا دے
دَ قنوت تکبیر سنت دے

په قعده کښې ناستې بيا دے | په دويم هم احصا دے

## فصل - دَ نمانځه دَ ادبونو

دا پينځلس دی آداب | په نمانځه کښې اے احباب
په تکبير کښې لاس ترغوږه | وروستنه ده ونغوږه
پښې چه بيرته سره کښيږدے | يو څپک ئے ترمنځ پريږدے
په تکبير کښې چه لاس کوز کړے | بيا سرپورته سم وربوز کړے
په رکوع کښې چه ئے کوز کړے | په ادب کښې دا يجوز کړے
ښے اول په زانو کښيږدے | په اخسته کښې کينړ پريږدے
چه رکوع وکړے بيا سم شے | لاس اوږده کړه سينه خم شے
وسجود ته چه کوزيږے | ادب دا دے که پوهيږے
اول کښيږده زنګونه | ورپسے کښيږده لاسونه
ښے زنګون ښے لاس اول ږده | خپل اندام ورسره مل ږده
په اخستل کښې کينړ آخله | که زنګون که لاس اے دِله
له سجدے ئے پورته بوزه | اول وُچولے بيا پوزه
بيا کينړلاس ورپسے ښے دے | په کيښنو کښې که پرو ښے دے
تمام قد چه ودريږی | قرأت ته وجوړيږی
لوستل زيات تردرے آيته | تسبيح زيات تردرے کرته
تشهد دراز ويل دی | دا څو توکه فضايل دی

## فصل - دَ نمانځه دَ مکروهات

دَ نمانځه چه مکروهات دی | دولس څيزه دی نه زيات دی
په تکبير چه لاس بالا کړے | ته ئے پورته ترسر لاکړے
قرأت لوستۀ په بيړه | خولۀ بے رنګه پټه ويړه
بيا دَ سترګو پټول دی | يو سربل سره غړول دی

په رکوع کښې سر کوز پاس کړې
بنځۍ پښه په تشهد کښې
منګل تولَه کړه په نماز کښې
تر سلام پخوا چه وکړه
دولس دا دي چه انشاء دي
څوک چه نمونځ کاندِ سرتورو وي
یاچه نمونځ وي سربرهنه کا
چه ملا وتړې نمونځ کاندِ
چه نمونځ کاندِ مخ صورت ته
نمونځ چه کا په شاهراه کښې
نمونځ چه کاندِ په آسیا کښې
رود خانه چه ځائے نمناک وي

یکلخت کوز مړوند دَ لاس کړې
کښېنې تهٔ په تردد کښې
لاس کړه تول دَ نماز په راز کښې
سجده سهوه هم بنه نه کړه
آتهٔ نور موضوع هم دا دي
چه نمونځ کا مخ ئې په اور ئے
دا مکروه دي کهٔ سجده کا
جامه نغښتې روستو وړاندِ
چه نمونځ کاندِ مخ تربت ته
په حمام یا په پائیکاه کښې
یاچه کا په استبرا کښې
احتمال دے چه ناپاک وي

## فصل - فرق دَ مردانو دَ زنانو

په څو توکه دَ مردانو
په تکبیر کښې لاس تر دوش
تولے پښې دِ وُدرینه
نشته بانګ نماز په ښځو
نهٔ پرے بانګ نهٔ پرے قامت شته
نهٔ پرے نمونځ دَ جمعے دین دے
کهٔ ئے که ثواب به مومي
لاس دِ کوز کښېږدي تر تیو
رو پرے لوسته دَ نمانځه شته
په قیام کښې چه درینه
چه ئے ناست په تشهد وي

کار چه نور دے دَ زنانو
وړې دِ ښځه، نر تر ګوش
چه کښېني یاچه پاسینه
دَ قامت جواز په ښځو
نهٔ پرے نمونځ په جماعت شته
نهٔ په دوئ نمونځ دَ عیدین دے
پوشیده دِ صف ته دروي
پټ لاسونه تر وشیو
پرے بلند قرأت نشته
پښې دِ وصلے سره ږدینه
ناست په کیڼ سرین لابد وي

ښځې پښه دِ نژدې ږدي ... ځان دِ ټول وبله کښېږدي
سرترپایه دِ ځان پټ کا ... نامحرم وته دِ چپټ کا
که هلک ئے په دوش ناست وي ... یا وَدهٔ په غېږ کښې نماست وي
که جامے ئے پاکیزه وي ... دَ نمانځه کله بزه وي
که جامه ئے وي چرکینه ... یو درم نمونځ ئے نهٔ شینه
پیئ دَ تی که هلک روي ... په نمانځه کښې نمونځ ئے نهٔ وي
مخ وسغوے، تلے نهٔ دي ... عورت۔ نور عورت هرڅهٔ دي
که سینه وي که پهلو وي ... که ورمېږ که دَ سرمو وي
که ئے لیچے که ئے ساق وي ... په دا کار کښې اتفاق وي
څلورویک چه برهنه شي ... نمونځ دَ ښځے حبطه شي
که کمتر تر څلورویک وي ... سکه روا ئے نمونځ په شک وي
که ئے ګیډه یا ئے لنډه ... کوز دَ پرتا که تر ګنډه
که برېنډ تر درم زیات شي ... اتفاق دے نمونځ ئے مات شي
مګر ډېر ضرور پرے پېښ شي ... حادثه وي یا ئے ریش وي
چه مېړو شي دي مېرمنے ... پرهیزګار دے پاک لمنے
مخ تلي دَ پښو رخصت وي ... ورته نور واړهٔ عورت دي
نابالغ جینئ یا وینځه ... داخوک توک څنے وینځه
که برمنډ ئے سر یا مُو وي ... یا ئے ساق ګردن باهو وي
باک ئے نشته نمونځ ئے کیږي ... په دا کار دِ وپوهیږي

## فصل دَ هغه فعل چه خلل دَ نمانځه لري

په لړم په مار که وکړے ... په نمانځه کښې ګذار ښهٔ کړے
دَ یوهٔ ګذار غم نشته ... که دوه دړے وي باک هله شته
که دَ خدائے له ترسه ژاړي ... په نمانځه کښې به دے ویاړي
که ته ژاړے له ماتمه ... یا دَ دے جهان له غمه

نمونځ دِ مات په دا ژړاشي
کۀ په ړو وي کۀ نړاشي

کۀ تۀ یو سر بل سر کوړے
په جامه لوبے کړے شوړے

یا وینښتۀ نموړے په کوتو
یا څان تۀ نموړے په کوتو

دا شان هر فعل چه شینه
دا نمانځه خلل لرینه

یائے نمونځ شي بے ثوابه
یائے درسته چار خرابه

کۀ سرفه وي کۀ عطسه وي
لکه حق دي هسے بنۀ وي

کۀ اَخ اُخ پکښے پیدا کړے
خپل نمانځه لره بلا کړے

کۀ تۀ حرف پکښے پیدا کړے
نمونځ دِ مات په دا دا کړے

کۀ څوک با دَ خولے پو کینه
په آواز سره نمونځ څینه

## فصل - دَ نمانځه دپاره شناخت دَ قبلے

چه ئے شناخت دَ قبلے نۀ وي
مسافر وي کۀ نورځۀ وي

دَ قبلے تحقیق دِ   وکا
بو یه دا چه نمونځ هالۀ کا

کۀ څوک نۀ وي دَ پوښتنے
وخت ئے دړومي په مرستنے

خپل یقین ته دِ   وګوري
نمونځ دِ کا په هغه لوري

په نمانځه کښے کۀ خبر شي
چه ئے نمونځ په بل مقر شي

په نمانځه کښے دِ څرخ وکا
وقبلے ته دِ مخ بنۀ کا

کۀ ئے شک وي تحرّي کا
مخ په کینږ کله په بنی کا

کۀ څلور لوریه څرخیږي
لازم نۀ دي نمونځ ئے کیږي

په تحرّي چه نمونځ ادا کا
چه خبر شي نمونځ دِ بیا کا

په بیړئ کښے نمونځ روا دے
کۀ ولاړ کۀ ناست برجا دے

په هر لور چه بیړئ غورزي
وقبلے ته دِ دے ګرځي

کۀ تړلي سره دړومي
دو بیړي امام څوک مومي

اقتدا پسے   روا ده
دا خبره په رښتیا   ده

نفل نمونځ کۀ سور په آس کا
مسافر به څۀ وسواس کا

فرض واجب سنت دِ دواړه
په ضرورت جواز غواړه
کهٔ دشمن یا باد باران وی
مونځ دِ کړه کهٔ ساعت گران وی

## فصل ۔ ذکر دَ سجده سهوه

فرض واجب چه پیش وپس کړے
یائے زیات وکم ته کس کړے
یا سورة ورځنه هیر شی
یوالحمد ورته ډیر شی
لوست په رو یائے بلند کړے
یا بلند په رو سرگند کړے
قرأت تحیات دواړه
پیش وپس کړه په دا واړه
سجده سهوه شی واجبه
کهٔ تهٔ سهوه شے طالبه
کهٔ دا کار تهٔ په عمدا کړے
نمونځ دِ مات شهٔ نمونځ به بیا کړے
کهٔ په سهوه په عمدا وی
کهٔ سنت پاتے له تا وی
سجده سهوه نشته جانه
مونځ دِ کیږی له نقصانه

## فصل ۔ ذکر دَ مانځهٔ دَ موافقت یعنی وختونه

شب و روز چه فریضه وی
په کتاب کښے عریضه دی
همگی نمونځونه پنځ دی
په پینځهٔ وخته پنځ گنج دی
اول نمونځ، نمونځ دَ سحر دے
حکم هسے دَ اُستاد دے
چه رښتینے صبح کیږی
گذاره شی چه نمر خیژی
چه زوال دَ آفتاب وشی
نماز پیښین گذارهٔ هالهٔ شی
چه دَ خیز سایه دوچند شی
ترهغهٔ گذاره سرگند شی
نماز دیگر دِ گذارینه
چه لا نمر په غرونو وینه
چه شفق دے تر غروبه
چار دَ شام ده هومره خوبه
چه سرخی دَ شفق ولاړه
ماسختن روا په واړه
کهٔ تر نیمے شپے گذارهٔ شی
گذارل دَ عشا نبهٔ شی
گنړے وخت ئے همدمه
دَ صبا تر صبح دمه

وتر نمونځ هم د عشا دے     د کتاب روايت دا دے

## فصل

چه م ياد کړۀ پينځه وخته     فضيلت لري نيک بخته
کۀ په ژمی په ترتاب کښې     بامداد نمونځ کړه شتاب کښې
ظهر نمونځ په غارمۀ مات شي     په ګذارل ئې ثواب زيات شي
ميانه وخت مازيګر بنۀ دے     څو زيړ شوے نمر لا نۀ دے
خوما بشام اول ادا کړه     فضيلت لري سود دا کړه
درنګ بائدۀ په ماسختن دے     بنۀ په پهر ګذشتن دے
وتر نمونځ هاله بهتر وي     چه چرګ بانګ وکا سحر وي
په آسمان کښې ميغ باران وي     ګرد غبار چه په دا شان وي
مازيګر وي کۀ عشا وي     په وريځ د نمر ادا وي

## فصل په دا درے وخته چه نمونځ پکښې روا نۀ دے

په دا درے وخته هوښيارۀ     نشته نمونځ له نماز ګذارۀ
يو چه نمر علم سرکند که     سر د مزکے نه بلند که
بل چه تکنرۀ غرمه شي     لانۍ لږ سايه کږه شي
بل چه نمر ترغرۀ پنهان شي     بے له عذرۀ بل نمونځ ګران شي
نمونځ د عصر يا د شام دے     تر دا منځ سجود حرام دے

## فصل- درے وخته چه نفل نمونځ نۀ کيږي

په دا درے وخته کښې زده کړه     ګذارل د نفل مۀ کړه
يو چه وخت د صبحدم شي     د بام داد د نمانځه غم شي
بل چه وخت د استواء شي     نفل هورته ناروا شي
هر چه نمونځ د عصر وکړه     چرے نفل نمونځ به نکړه

نو دا درے وخته روا دی کۀ قضا ګذارل دَ چا دی

## فصل۔ ذکر دَ اذان دَ اقامت

بانګ اقامت ویل سنت دی پۀ ښۀ صوت پۀ ښۀ نیت دی
مؤذن چه بانګ آغاز کا غوږ دِ هرګوټ پۀ آواز کا
دَ دُنیا ویئیل دِ نۀ کا دَ حق ذکر دِ پۀ زړۀ کا
کۀ تنها سړے نماز کا بانګ نماز دِ پۀ آواز کا
کۀ ئے نۀ کا هم ګفتار دے قامت بویه کۀ بیدار دے
بے اودسه اذان روغ دے دا وانۀ پۀ دروغ دے
کۀ مجنون دے کۀ کودک دے یا جنب له ګندګئ ډک دے
لا بانګ وائی نساء وی پۀ مکروه ئے بانګ روا وی
کۀ پۀ لاره ځی اذان کا یا ګوټ نابست اذان عیان کا
یا چه مخ پۀ قبله نۀ وی دا مکروه اذان دَ دۀ وی
کۀ اذان دے کۀ قامت دے پۀ دا دوه ځایه سنت دے
یو لازم پۀ فریضه دے وړپسے هم پۀ جمعه دے
کۀ سنت ګذاری کۀ نفل پرے آذان نشته پۀ نفل
پۀ قضا باندِ اذان شته روایت ښکاره عیان شته
یو سړے پۀ تمام ښهر کۀ سړے واوُری پۀ جهر
بس کافی هغه اذان دے پۀ قامت ئے نمونځ روان دے
مسافر دَ اَس دپاسه کۀ اذان کۀ روا نا سه
نۀ پۀ دۀ باندِ آذان شته نۀ قامت پۀ دۀ روان شته
کۀ پۀ مزد بانګ نماز کا روا نۀ دی لاجواز کا
کۀ بے مزده عطا مومی ښۀ کۀ دے ئے له چا مومی
کۀ هلک کۀ بالغ نۀ وی بانګ نماز روا دَ دۀ وی

## فصل۔ ذکر دَ امام چه حق لری

چه دریږی څوک د وړاندِ
چه لوستل د قرآن بنهٔ کا
یا هغه چه فقیهه تر وی
چه په دا کښے واړه سم وی
چه عالم راضی په دهٔ وی
کهٔ امام ګنده نعل وی
چه سر وړاندِ ښه دی یا روستو
بزهٔ ګار شی نهٔ پوهیږی
مونځ بنهٔ سبک ګذارل بویه
قرأت صحیح ادا کړه
شام خفتن صبا درے واړه
په فرښتو د سلام نیت که
کهٔ امام عورتینه وی
مونځ د ښځو پسے کیږی
کهٔ خښتن د جراحت وی
کهٔ امام تړلے نیت وی
تهٔ په دهٔ پسے نیت وکړه

امامت دِ هغه کاسد
مدو شدئے خطا نهٔ کا
یائے زهد معتبر وی
په قامت دِ مقدم وی
دَ هغهٔ امامت بنهٔ وی
امامتئے په خلل وی
یا تلوار کا په اخستو
کهٔ فتوی دهٔ نمونځ به کیږی
کهٔ امام شی چرے څو یه
خلق سبک خلاص کړه هم داکړه
جهر دا دی په درو واړه
هم سلام په جماعت که
ماموم ښځے نرینه وی
دَ مردانو نهٔ رغیږی
وړاندِ کیږی قباحت وی
فرض ګذاری به قرأت وی
تطوّع ګذاره بنهٔ کړه

## فصل - دَ نمانځه دَ قرأت

دَ نمانځه قرأت فرض دے
په اول دوه رکعته
فرض څو یو آیت دے یا ره
کهٔ په وئیلو کښے خطا شی
یو آیت کهٔ دراز وی
کهٔ کوتاه وی درے آیته

په میرهٔ په ښځه فرض دے
واجب شوی دی آیته
دیر سنت سره وشماره
لوست آیت په تشی بیا شی
چه ئے ولولی نمونځ ساز وی
دَ الحمد له سورته

په صبا کښې چه آګاه دی
یا چهل دی یا پنجاه دی

دیرش په وخت ماسپښین دے
شل دیګر عشا تعین دے

سورتونه چه کوتاه دی
د ماښام په وخت دلخواه دی

دا دِ زده کا چه طالب دی
قرأت لوستل واجب دی

په آخر تشیو روشن دی
چه الحمد لوستل سنن دی

## فصل - دَ قضا نمونځونو

چه یو نمونځ په قصد قضا کا
کبیره ګناه عمدا کا

هغه کس ترخدائے عاصی شی
که ئے بیا وکا خلاصی شی

نور دِ هسې توبه ګار شی
چه نمانځه ته تل تیار شی

څوک چه درے شبانه روزه
نمونځ قضا کا نورئے بوزه

سرئے ووهه بے درنګه
مکره غم دَ ده له جنګه

حکم دا دَ لوئے امام دے
دَ بے نماز شرونه ونه حرام دے

روایت په تحقیق دا دے
دَ بے نماز قتل روا دے

که یو نمونځ سرے قضا که
شافعیؒ روایت دا که

په هغهٔ قتل روا دے
که بنده دے که مولا دے

که په عذر نمونځ قضا شی
اعاده دَ نمانځه بیا شی

عذر ځهٔ دے عذر خواب دے
یا کهٔ اور و باد و آب دے

یا په بند هسې بندی وی
چه او به ځنے خوندی وی

یا بیهوش یا دیوانه وی
یائے سهوه په خانه وی

یا په رنځ هسې بیمار وی
چه سجود بانږِ دشوار وی

په دا هسې شان عذرونه
کهٔ قضا شی شپږ نمونځونه

دَ ترتیب فکرئے نشته
کهٔ پینځهٔ وی بانږِ ځنه شته

فوت نمونځونه دِ ادا کا
ورپسې دِ وقتی بیا کا

کهٔ قضا وی ډیر نمازه
واړه شمار کړه له آغازه

په هر هر نمانځه دوه منه غنم ورکړه ده روښنه
دَ نمانځه قضا په دا شی دَ سړی غاړه ادا شی
عالمانو دی ویلی چه دوه منه دی پسندلی
چه قضا شبانه روز وی په ادا کښے نے فیروز وی
کهٔ وارث نے ګردن خلاص که په دا کار کښے بنهٔ اخلاص که

## فصل - چه په نمانځه کښے اودس مات شی

کهٔ حدث شی په نماز کښے غلطمهٔ شه په دا راز کښے
کهٔ امام نے خُما جانه خلافت ورکړه له چا نه
زر اودس وکړه بیا راشه مقیّد په اقتداء شه
خلیفه چه نمونځ تمام که نمونځ تمام په بنهٔ سلام که
هله پا سه نمونځ تمام کړه هم ماموم هم خان امام کړه
کهٔ تنهائے نمونځ تنها کړه کهٔ حدث شے هم تهٔ دا کړه
په راتلهٔ په تلهٔ کښے بویه مهٔ څهٔ وایه مهٔ څهٔ ژویه
مهٔ څهٔ کار کړه مهٔ وئیل کړه مهٔ عورت وته کتل کړه
کهٔ په دا کښے څهٔ پیدا کړے نمونځ دِ مات شهٔ نیت بیا کړے

## فصل - دَ بیمار دَ نمانځه

کهٔ بیمار پا سیدے نهٔ شی بل سړے دِ یار دَ دهٔ شی
کهٔ ولاړ نهٔ وُدریـنه بل سړے دِ نے ساتینه
کهٔ څهٔ توان لری اقدام که فریضه دِ په قیام که
کهٔ سنت نشسته کاندِ ملامت نشته ورباندِ
کهٔ نے توان نهٔ وی په ناستے ګذاری دِ نمونځ په ملاستے
دَ قبلے په لور دِ روکه اشارت دِ په ابرو که
کهٔ نے توان دَ ایما نهٔ وی ګذارل دِ نے په زړهٔ وی

دَ صبا دوه رکعته | دَ ماښام درې له سنته
داچه دی واړه ګذارل شي | فرض سنت وتر دِ تل شي
کۀ پېنځلس ورځې نیت که | چه په ښهر اقامت که
هورته قصر نا روا ده | چارګانی نماز روا دے

## فصل دَ سجدۀ تلاوت

تلاوت چه کړے اے خوږیه | څوارلس ځایه سجده بویه
کۀ بل کس تلاوت کاندِ | ته ئې آورې ستا دَ وړاندِ
په سجده باندِ چه راشي | په تا هم سجده روا شي
کۀ اودس دِ په ځائے نۀ وي | په اودس دِ بیا هالۀ وي
په سجده کښې تسبیح وایه | درې کرته صحیح وایه
په قهقهه کۀ ته وخاندِ | په سجده کښې سجده غاندِ
سجده نۀ وشوه کۀ بنۀ کړے | بیا به بله سجده وکړے
کۀ ته سور په اوښ په آس وې | یا په خرۀ په غوائیږ پاس وے
کۀ سجده په اشارت کړے | ته دا کار په روایت کړے

## فصل دَ جُمعې دَ نمانځه

په پینځۀ شرطونه فرض دے | دَ جمعې صلوٰة چه فرض دے
اول وخت سُلطان دویم دے | دَ خطبې حکم دریم دے
څلورم جماعت یاره | پینځم ښهر جامع شماره
وخت دَ دے دَ ماسپښین دے | په بل وخت کله تعین دے
یا سُلطان یائے نائب وي | یائے حکم کۀ غالب وي
جماعت کۀ یو امام وي | درې ماموم حکم تمام وي
کۀ اقل وي حکم دا دے | دَ اکثرو لا احصیٰ دے
خطبه څوچه حمل ادا کا | په منزل دَ خدائے ثنا کا

شرط دَ شهر جامع دا دے
چه حاجت پکښے روا دے

په څلور گروه فرض نهٔ ده
جمعه نور په هر ځا بنه ده

په زنانو بندګانو
مسافر په روستایانو

## فصل دَ عید دَ نمانځه

ادینه چه څوک گذارینه
دَ عید نمونځ پرے واجب شینه

دَ کتاب له روایته
دَ عید نمونځ دے دوه رکعته

په څلور شرطه گذارهٔ شی
کهٔ تر کم دی گذارهٔ شی

اول ښهر جامع ځوانه
بل سُلطان بویه اے جانه

کهٔ سُلطان پخپله نهٔ وی
کهٔ نائب ئے وی هم ښهٔ وی

بل چه جمع جماعت وی
بل په وخت قدوقامت وی

درے شرطونه هم هغه دی
لکه یاد په ادینه دی

امّا وخت دَ عید دا حال دے
چه نمر وخوت تر زوال دے

کهٔ څوک څملی نمونځ پرے نشته
چه بیدار وی پرهغهٔ شته

خطبه پس له نمانځه بویه
مختصره وی کهٔ لویه

کهٔ خطبه په نساء وی
مکروهات سره روا وی

له نمانځه پخوا روا ده
خطبه پس له نماز زیبا ده

کهٔ بے عذره نمونځ قضا شی
فطر نمونځ په صبا بیا شی

کهٔ دَ لوئے اختر قضا وی
نمونځ په درے ورځے روا وی

تکبیرونه ئے ښکاره دی
په حساب دی په شماره دی

په اول رکعت اوهٔ دی
په دویم رکعت پینځه دی

## فصل ذکر دَ کسوف وخسوف دَ نمانځه

خدائے په هر چارے قادر دے
چه پرے شک راوری کافر دے

چه نمر تندر وُکماریږنه
تندر او ژمکه هم ورینه

دا په داچه هرڅوک زده کا — وخپل خدائے وته سجده کا
ودريږي په طاعت شي — دخپل ځان په مغفرت شي
نمرچه تندر ونيسينه — دوه رکعته سنت دينه
په مسجد دِ امام سراشي — ورسره دِ انام سراشي
نمونځ دِ دکا له امامه — ترآغازه ترانجامه
ترهغه چه نمرخلاصيږي — بس دعا زاري دِ کيږي
که امام دَ مسجد نه وي — نمونځ تنها گذاره بنه وي
که سخت با دکه زلزله وي — هورته هم زاري لا بنه وي

## فصل دَ استسقاء دَ نمانځه

څوک چه نمونځ د استسقاء کا — په زاري دِ ے ادا کا
که تنها که جماعت وي — له امامه برکت وي
په صحرا دِ امام ولاړ شي — نور دِ هم درپسے ولاړ شي
دوه رکعته نمونځ فروغ دے — قرأت په سوره سروغ دے
چه امام نماز ادا کا — مخ وقوم وته بيا کا
په خطبه دِ شي په مزکه — بے منبره خطبه ځکه
له خطبے نه چه ساکت شي — په سرداء روبروت شي
ترخپل سر دِ ے جاربا سي — په رداء دِ لاس کښيباسي
په بني کيڼ پهلو پس وړاندِ — استغفار دعاء دِ کاندِ
په دا رنګ دِ باران غواړي — په توبه زاري دِ شاړي
په خطبه کښے که تکيه لي — په لنده په توره بنه لي
په درے ورځے دِ دا کاندِ — کوندِ رحم شي وربا ندِ
خدائے باران په خلق وکا — دَ وګړي نهرونه بنه کا
دَ امام حکم هم بويه — په دا کار کښے ځما ځويه
دَ امام حکم که نه وي — يک تنها گذارل بنه وي

پہ دُعا پہ زاری بویہ — جد وجهد څما خویه

## فصل دَ تراویح دَ نمانځه

وارہ شپږ لودی رکعته — تراویح دی تیر سونیته
کهٔ زنان دی کهٔ مردان دی — تراویح بانډِ تاوان دی
شل رکعته هره شپه دی — دَ روژے سره همره دی
دوه رکعته چه تمام کا — بیا دِ دوئ هله سلام کا
کهٔ ضرور بانډِ قائم شی — یو نیت لس رکعته هم شی
پہ رکعت لس لس آیته — یو هم شته له روایته
چه په ورځ روژه لرینه — تراویح په شپه پریدینه
په معنیٰ هغه طعام شی — چه نمک سره تمام شی
دَ روژے طاعت مرغهٔ دے — دواړه پرونو سره بنهٔ دے
یو ښانگ سپین دویم تور دے — صدق اخلاص ئے قوت زور دے
چه سپین ښانگ هغه روزه ده — چه تور ښالگ هغه ئے شپه ده
چه یو ښانگ دَ مرغهٔ نهٔ وی — په یوه به ئے تلهٔ څهٔ وی
چه ادا فرض دَ عشا شی — تراویح هله روا شی
تر سحر پورے ئے وخت دے — پڑے به پوهه وی چه نیک بخت دے

## فصل دَ نفل دَ نمانځه

مکروهات لری لس وخته — نفل نمونځ لره نیک بخته
قضا نمونځ پکښے گذارهٔ شی — نفل نمونځ گذارهٔ نهٔ شی
یو چه وخت دَ صبحدم شی — ترصبا دِ نفل تم شی
بل چه نمونځ دَ صبا وکړه — زر به نفل پسے نهٔ کړه
بل چه نمونځ دَ عصر وشي — تر ما بنامه نفل نهٔ شی
بل چه بانگ دَ جُمعے وشي — بے جُمعے دِ نور څهٔ نهٔ شی

بل چه نمونځ په ادینه کا — په منبر خطیب خطبه کا
چه قامت دَ جمعې او کا — تطوّع دِ هیڅوک نهٔ کا
چه خطبه دَ عید شروع شي — نفل هورته نامشروع شي
چه خطبه دَ عرفې کاندِ — نفل نهٔ شي هورې باندِ
چه خطبه دَ تراویح شي — نفل هورته ناصحیح شي
چه خطبه دَ استسقاء شي — نفل هورته ناروا شي

## فصل ذکر دَ نفل نمونځونو

تطوّع کهٔ فضائل دے — نفل واړه یو وئیل دے
دا نهٔ فرض دی نهٔ واجب دي — نهٔ سنت دی نهٔ راغب دی
کهٔ ګذاری ډیرے ثواب دے — او کهٔ نه کله عذاب دے
په الحمد په سورة ده — دوګانه په یوهٔ نیت دے
یوئے نیت څلور رکعته — هر رکعت ئے له سورته
نفل نمونځ هسے هم کیږی — مُصلّی به پرے پوهیږی
رکعتونه کهٔ اتهٔ دي — یوئے نیت کهٔ کړی هم بنهٔ وی
تراتهٔ چه زیاتی کیږی — دَ مکروه سره یادیږی
چه ورځ زیات تر څلور نشته — په یوهٔ سلام نور نشته
څوک چه نیت دَ نفل وُکا — کار پرے پیښ شي وئے نهٔ کا
پرے قضا لازمه کیږی — کهٔ ئے نهٔ کا ماخوذیږی
چه تازه اودس څوک وُکا — په مسجد ورشي کهٔ بنهٔ کا
دوګانه دِ ګذارینه — دَ مسجد تحیت دینه
پیغمبرؐ ګذارل اے یاره — ثواب ډیر لری بے شماره
نفل نمونځ سهوه لرینه — کهٔ څوک سهوه پکښے شینه
نمونځ دَ چاشت ګذارئ یارانو — چه لازم دی په بزرګانو
چاشت چه نهٔ ګذاری غافل وي — غافلان واړه باطل وي

دوه څلور اته شته دولس — دا رکعت دی نیت یئ ولس
په یوه سلام کښ چار کا — هم مختار دے چه بنۀ چار کا
چه ګذاری دولس رکعته — خوش به وړشی ترجنته
کۀ قضا وی فرض نمونځونه — ځائے نے ونیسی نفلونه
پرے به یوه وی چه عاقل وی — خدائے ته قرب په نوافل وی

## فصل - دَ نفل نمانځه وختونه

درته وشمارم وختونه — کۀ څوک کا نفل نمونځونه
یوئے وخت دَ ماسپښین دے — دَ نمانځۀ په خواه تعیین دے
بل چه نمونځ دَ مابنام وکړے — اختیار لرے چه تۀ کړے
بل چه نمونځ دَ عشا وشی — کۀ څوک نفل کا هم بنۀ شی
بل چه وخت دَ سحر راشی — تهجد به تا روا شی
تهجد اَته رکعته — دی په شمار له روایته
په څلور نیته رغیږی — چار کا نه هم اداکیږی
فضائل لره چه ښے وی — میاشتے ورځے پاکے شپے وی
درست رجب تمام شعبان هم — ورځے شپے دَ رمضان هم
دَ شبقدر شپه تمامه — دَ حاجیانو ده عامه
ورځ وشپه دَ جمعے درسته — ورځ وشپه دَ عرفے درسته

## فصل دَ شپے دَ نمونځونو فضیلت

چه ګذاری دَ شپے نمونځونه — خدائے به ورکا نهۀ خیزونه
شک په دا کښے نه روا دے — چه حدیث دَ مصطفیٰ دے
پینځه خیزه په دُنیا کښے — څلور خیزه په عقبیٰ کښے
له بلا به ئے امان وی — تل به زړۀ ئې دَ دۀ روښان وی
مینه دار به پرے عالَم وی — په دوستئ به ئے محکم وی

فیض به مومی له نیکانو
یا رسائی به ئے نصیب وی
غم به نهٔ کا له بدانو
له نیکانو به قریب وی

پس له مرګه به له ګوره
په صراط به غم نهٔ مومی
رونړ مخ پاسی ځما زوره
لکه برق هسے به درومی

واړه دا حدیث صحیح دے
ګناهونه به ئے پټ وی
پوشیده نهٔ دے صریح دے
تهجد به ورته خټ وی

په بنی لاس به نامه ورکا
تر دا درسته دُنیا واړه
په بنادئ به ئے سر کا
کهٔ دُنیا ما فیها واړه

بنهٔ دَ نیمو شپو سجود دے
خوږ دَ شپو نمونځونه خومره
دوه رکعته ډیر لاسود دے
درجے دَ جنت هومره

دَ جنت چه درجات دی
رونړه وی دَ شپے نمونځونه
سکه دلیل په صلوات دی
په صبا په ورځ مخونه

تحیّت دَ وضو بویه
وتر نمونځ چه تهجد وکړے
چه تهجد ګذار دے ځو یه
ورپسے به ئے بیا تهٔ کړے

# فصل- ثواب دَ نمانځه چه بنهٔ ئے ادا کا

نمونځ چه بنهٔ سره ادا کا
په دُنیا به ئے مخ رونړ وی
خدائے به خلد ورته عطا کا
ونیکا نو ته به چونړ وی

کام به مومی له نیکانو
چه ئے بنهٔ له لاسه کیږی
په دُعا دَ بزرګانو
په درګاه به ئے قبلیږی

برکت به ئے په مال وی
په دُعا چه لاس بلند کا
په دُنیا به کلان سال وی
اجابت به پرے خرګند کا

له دُنیا نه چه روان شی
هم به مور هم به سیراب وی
ځنکدن به پرے آسان شی
نهٔ به دے په غم دَ آب وی

سوبنائی به ئے په ګور وی
ګور به دهٔ ته لکه کور وی

په بنادۍ به پکښې وينه — نو جنت لره ورځينه
په قيامت به ئے مخ رونړ وی — تر مخه به به لاجونړ وی
پرے به بند د دوزخ وروی — پرے به واز د جنت وروی
دا به هيڅ د هغه نۀ وی — چه ترک کړونے د نمانځۀ وی

## فصل - عذاب عقوبت د تارک نماز

چه ترک کړونے د نمانځه وی — د هغۀ به بنادی نۀ وی
په دُنيا په دين به خوار وی — خدائے رسولؐ به ترے ويزار وی
رزق روزی به بانډ تنګ وی — د مخ رنګ به ئے بدرنګ وی
بد ژوندون به ئے نصيب شی — له بدانو به قريب شی
کۀ ئے بنۀ له لاسه کيږی — د دۀ بنۀ به نۀ قبليږی
کۀ ئے تل زاری دُعا وی — د دۀ خواست به ناروا وی
چه سفر که له جهانه — د مرګ چار به وی پرے ګرانه
چه د مرګ په خوږو کښيوزی — د غم غر به بانډ پريوزی
هغه شپه چه ئے په ګور وی — د دۀ ګور به لکه اور وی
هميشه به عذابيږی — تر قيامته به خوږيږی
په قيامت به کار پرے سخت وی — شمار به سخت به د دۀ بخت وی
چه له ګور نه به پاسينه — د چارپائے په څير به وينه
په صراط به په شکم ځی — تر ميږی به په تله کم ځی
د خدائے خشم به پرے وروی — مؤمنان د خدائے ترے ژغوری

## فصل - ثواب د جماعت او د تکبير اولے

چه پخوا پيغمبرانؑ وو — چه د ديو اُمتيان وو
نمونځ د دوئ تنها تنها وو — جماعت پرے ناروا وو
يو نمونځ بنۀ دے له امامه — نۀ تنها پونسواے عامه

دا کرم په نبیؐ و شو — جماعت حکم په دهٔ شو
جماعت چه ترلس تیر شي — ترهر څهٔ ئے ثواب ډیر شي
کهٔ سیاهي شي کل سیندونه — کاغذ مزکے آسمانونه
قلمونه شي دا ونے — همه ئے پانړے وړے پلنے
دا ثواب به تمام نهٔ شي — کهٔ سړي فرښتے په کښنهٔ شي
دَ امام له جماعته — کهٔ نمونځ وشي دوه رکعته
له امام سره چه نماز شي — له اول تکبیر دَ ساز شي
تردُنیا چه پکښے شته څهٔ — دے تکبیر اولیٰ لا ښهٔ
چه ثواب دَ جماعت دے — دَ تکبیر اولیٰ نیت دے
چه امام تکبیر کوینه — ستا تکبیر دِ پسے وینه
کهٔ ترنیم الحمد رسینه — هم تکبیر وُدِ شینه
کهٔ په دا کښے هم درغل شي — په اول رکعت کښے مل شي
دا لاهم اولیٰ تکبیر دے — روایت رِم په ضمیر دے

## فصل- عذاب عقوبت دَ تنها کذار

دَ سرورؐ دَ خولے حدیث دے — چه نمونځ کوښی کهٔ خبیث دے
کهٔ ئے عذر وي بے باک وي — کهٔ ئے عذره وي هلاک وي
جماعت چه ترک کوینه — کهٔ تل نمونځ کا نمونځ نهٔ شینه
چه تارک دَ جماعت دے — تل په دهٔ باندِ لعنت دے
ترهغهٔ خوني بهتر دے — چه خوني دَ خپل پدر دے
پیغمبرؐ ځنے ویزار دے — دے بتر تر شراب خوار دے
نوحه گر بهتر تر دهٔ وي — جادوګر و ځنے ښهٔ وي
عیادت دِ ئے نهٔ کیږي — جنازه ئے نهٔ رغیږي
دَ سړیو زړهٔ ترے شین وي — دَ فرښتو باندِ نفرین وي
کهٔ مسجد کهٔ جماعت دے — کهٔ اذان کهٔ اقامت دے

دا همه شعار دَ دین دے    دَ اسلام زینت آئین دے
داچه هر چرته نهٔ کیږی    په هغو قتل رغیږی
کهٔ څوک جنګ ورسره کا ندِ    هیڅ بدی نشته ورباندِ
کهٔ توبه کاله دے کاره    بیا خلاصیږی له آزاره
کنږه هیڅ دَ پریښونهٔ دے    کهٔ نابود شی واړه ښهٔ دے
دَ دوئ مرګ دے دَ دانو    دے په شمار دَ مشرکانو

# اُوم باب

## ذکر دَ زکوٰة دَ عشر دَ هر باب

په اُوهٔ نوعه زکوٰة دے    فرض زکوٰة لکه صلوٰة دے
زر و سیم دا واړه څیزه    دَ سودا په مال عزیزه
آس وا وښ غوئین بیا غیله    اَتهٔ توکه شول ولویله

## فصل - شرطونه دَ زکوٰة

دَ زکوٰة چه څوک طالب شی    په اتهٔ توکه واجب شی
پینځهٔ شرط په مالدار دی    دا په مال باندِ په شمار دی
کهٔ دَ مال څښتن آزاد وی    بیا هاله زکوٰة پرے زیاد وی
دویم شرط دَ بلاغت دے    نابالغ ترے فراغت دے
مُسلمان دِ وی اے یاره    څلورم شرط دا وشماره
پینځم شرط ئے دوامدار دے    کهٔ بے قرض دُنیادار دے
چه په مال دی درے شرطونه    دَ ما یاد دی له اخونه
اول داچه درست نصاب وی    کم نصاب په څهٔ حساب وی
بل چه تیر وربانِدِ کال شی    هاله فرض زکوٰة په مال شی
بل چارپائے چه همګی وی    اخوری نه رمګی وی

کهٔ ئے نهٔ وی دا شرطونه — زکوٰة نشته په مالونه

# فصل دَ زکوٰة

کهٔ دَ مال خښتن بنده دے — دَ بنده زکوٰة کنده دے
کهٔ دَ مال خښتن مجنون دے — په هغهٔ هم زکوٰة چون دے
کهٔ کافر دے یا وام دار دے — ترے ساقط دَ زکوٰة کار دے
زر کهٔ هومره تر وام زیات وی — څو نصاب فرض پرے زکوٰة وی
چارپایان چه تیر تر کال شی — صحرا چروی هاله مال شی

# فصل۔ ذکر دَ زکوٰة

دَ زکوٰة مقدار اے جانه — ثابت نهٔ دے له قرآنه
چه مقدار پرے مقرر دے — په حدیث دَ پیغمبر دے
دَ طلا نصاب اے یاره — په فتویٰ دی شل دیناره
دَ نقره دوه سو دیناره — په نصاب یا دیرې یاره
کهٔ سیم زر تر دا اندک وی — زکوٰة کله باندِ لک وی
زر و سیم چه دَ نصاب شی — کال پرے تیر په شمار حساب شی
هاله فکر دَ زکوٰة کړه — په وکښلئے مهابات کړه
کهٔ زر کم وی تر نصابه — سیم هم کم وی تر حسابه
دواړه توکه سره شمار که — بیا هاله دَ زکوٰة چار کړه
کهٔ نصاب شی دواړه توکه — زکوٰة ورکړه وچار وکه
کهٔ په دوه سو چل زیاتی شی — هغه چل هم زکوٰتی شی
چه خلویښت پرے زیاتیږی — تر هغهٔ چه چونسو کیږی
شمار کړه زکوٰة ورباسه — کهٔ پوهیږے پوهشناسه
کهٔ مضروب کهٔ نامضروب دے — زر و سیم په زکوٰة خوب دے
کهٔ دَ زر و سیم سودا کړے — یا حلی یائے عصا کړے

یا زیور وی دَ زنانو | یا وښی دَ کودکانو
زر و سیم کهٔ دیګ ابلق وی | کهٔ دَ زین دَ یرق وی
همه واره سره شمار کړه | بیا هاله دَ زکوٰة کار کړه
کهٔ دِرم بیرون تر شمار شی | په درم په بزه ګار شی
په مضروب باندِ زکوٰة شته | دَ شیعه وُ نه په مات شته
شافعی هم په دا ولاړ دے | شیعه ځکه پرے ولاړ دے
کهٔ نهٔ زر وی نهٔ نقره وی | نور چه مال دِ تا کره وی
په سودا په تجارت ځی | سرے پلوری په قیمت ځی
په هر کال واره حساب کړه | په زکوٰة ئے ځان مثاب کړه
چه قیمت دَ متاع څو وی | زکوٰة هومره دَ یستو وی
چه قماش دَ سودا نهٔ وی | فرش فروش جامه یا څهٔ وی
کهٔ ستا بے زر و آلات شته | دَ روزګار لوښی یا مات شته
دَ روزګار خیمے تنبوان وی | توشکونه فراوان وی
دَ سوارئ لری آسونه | غوا دَ لویغ لرے پخسونه
کهٔ غوا یهٔ دَ زیست روزګار وی | کهٔ اوښان دَ کاروبار وی
میرے بزے دَ دوشیدن دی | چه په کور دَ شیر دادن وی
کهٔ وی و بیخے کهٔ مریونه | چه خدمت کا ستا په خونه
کهٔ غله کهٔ حبوبات وی | کهٔ خوراک لره کم زیات وی
کهٔ دِ ملک کهٔ دِ ضیاع وی | کهٔ څهٔ نور دَ کار متاع وی
کهٔ دَ فروخت د پاره نهٔ وی | تر نصاب کم تر دا څهٔ وی
په دا واره زکوٰة نشته | دَ یو بستِنے حاجت نشته
کهٔ زکوٰة دِ پخوا ورکړو | کهٔ دِ عشر و چا ورکړو
دابد کار نهٔ دے بندٔ کار دے | چه ئے وقت راشی بیا شمار دے

## فصل - زکوٰة دَ اوښانو

کهٔ اوښان دَچا پینځهٔ وی
یوګوسفندے زکوٰۃ کیږی
کهٔ ډیر کور لړ په صحرا وی
تر اتهٔ پورے یو مړ وی
په هر کال چه اوښان لس شی
چه اوښان پوره پانزده شی
تر پینځلس کهٔ یو کم وی
کهٔ اوښان دَ سړی شل وی
کهٔ په دا بانډِ زیاتیږی
چه په شپږ دیرش ورسیږی
چهل اوښ چه په شماره شی
شپږ او یا چه اوښان چون شی
دوه حقے په نوَد یاره

صحرا چر وی دَکور نهٔ وی
چه نصاب بانډِ رغیږی
پړے زکوٰۃ کله روا وی
کهٔ همه ستا په دروږ وی
بانډِ دوه مږونه پس شی
درےګوسفنده دِ درزده شی
دوه ګوسفند بانډِ رقم وی
څلور مړونه ورکول وی
زکوٰۃ بنت مخاض کیږی
هورته بنت لبون کیږی
زکوٰۃ اوښه سه ساله شی
هله دوه بنت لبون شی
ترسل شلے بیا وشماره

## فصل - زکوٰۃ دَ غواوُ

دَ بقرے نصاب په سی دے
یکساله خوسے دِ ورکا
تر څلویښت څاروی چه تیرشی
آسان تر قول هم دا دے
دوه څاروی ئے تر شپیتهٔ شی
دوساله دِ په څلویښت وی
کهٔ دَ میښے کهٔ دَ غوا وی
اوښ کتی کهٔ ګوساله وی
کهٔ یو کم څلویښت بره وی

پس له کاله په سړی دے
په صحرا چه کار دَ چر کا
په دا باب قولونه ډیر شی
تر شپیتهٔ یو یو روا دے
کهٔ څاروی په زیاتیدهٔ شی
دا حساب دِ په زرهٔ تل وی
دوارهٔ توکه لرهٔ دا وی
معاف دا هم بزغاله وی
یوګوسفند زکوٰۃ سره وی

## فصل - زکوٰۃ دَ پسونو دَ بزو

که مرئ که بز که پسونه — ښځې نر که بزه که مېږونه
په نصاب کښې برابر وي — که دکال شي صحرا چر وي
په څلویښت پسونو یو پسه وي — بیا هغه چه پکښې ښه وي
که سل یو ویشت په شماره شي — بیا زکوٰة پرے دوباره شي
چه دوه صد شي یو دپاسه — باندې درے پسونه شي ناسه
که رمه شي څلور سو پسونه — څلور پسونه باندې شونه
چه پانصد باندې پینځه وي — په هر صد یو ورکړه ښه وي
که څلویښت پسونه دیرش غوا وي — یا پینځه اوښان دَ چا وي
په شرکت ئے خښتن دوه دے — سود وزیان دَ دوئ سره دے
پرے زکوٰة نه واجب کیږي — چه ئے اخلي نه رغیږي
که دَ دوو تنو اتیا وي — رمه غوائے شته سره وي
یو پسه یو څاروے پرے کیږي — په هر دو زکوٰة رغیږي
که همه آسان نران وي — له زکوٰة خلاص آسان وي
که همه واړه ماده وي — یا نر ښځے ګډ سره وي
په هر سر باندې دینار دے — دَ امامؒ دَ خولے ګفتار دے
په اکثر روایتونه — زکوٰة نشته په آسونه

## فصل - دَ عُشر دَ خراج

راشه واوره له خطکه — دوه حکمونه لري مزکه
یا عشري یا خراجي ده — دا فتوٰی دَ سراجي ده
عشري مزکه ده شپږ رنګه — چه نیولي وي بے جنګه
دَ عرب ملک درست یاره — ته عشري سره وشماره
نور په جنګ امام نیولي — په غازیانو ئے ویشلي
چه په چاه په باران کیږي — هغه هم عشري یادیږي
خراجي مزکه چه یاد شي — په احیاء ئے عشر زیات شي

مُسلمان چه بستان ساز که
چه تردا مزکه هوا دی
چه غازیانو دی نیولی
خراجي ده هغه وا ړه
خراجي ده دَ هند مزکه
ترنیمگی که زیات اخلی
چه دَ مزکے نه څۀ زیږی
په همه عُشر واجب دے
اول کار دَ عشر بنۀ دے
بیا سند بانډ نظر کړه
که غله ده که میوه ده
که پنبه که توت که نورڅۀ
واجب شوی پرے همه وی
په وابنۀ په لرګی نشته
که ګلونه دَ بوستان وی
په هغه هم عُشر کیږی
که وبلئ که سبزه ده
لس ګیډئ ګنی اے ځویه
که مولئ دی که کاڅرے
په وام دارشته په کودک شته
که ئے باغ په چاه ودان وی
که په خواست وغواړی مزکه
کار دَ عشر په تا نۀ دے
چه عسل په مزکه کیږی
که دَ مزکے ګنجینه وی

په هغه عشر جواز که
خراجي سره احصا دی
مزکه دوئ نۀ وی ویشلی
که آبی که للمه دواړه
چه ویشلے نۀ ده څکه
دَ خراج دَ ملک بد زغلی
وچ لامدۀ چه پیدا کیږی
په لږ ډیر بیا چه طیب دے
که په لوکۀ په ریشه دے
بنه غله په عشر ورکړه
که تره که خربوزه ده
که ووزی سپین وتور څۀ
لږ یا ډیر که تاڅۀ زده وی
په ګیاه نور په هرڅۀ شته
که ترے نفع دَ انسان وی
نور به څۀ څنے خلاصیږی
په هرلس دستې یوه ده
یوګیډئ ترے عُشر بویه
په هرلس یوه ده غورے
دَ مجنون په بیش اندک شته
عشر نیم درست په باران وی
یا په اجر اے هلکه
ملک دَ چا دے په هغۀ دے
په عسل عشر رغیږی
زرو لیم یا مسینه وی

A.S.KB

کهٔ تا نزه دَ مُسلمان ده — کهٔ ئې ورنکړه تاوان ده
دَ خښتن طلب ئې وکړه — حواله ئې په هغهٔ کړه
گنجينه کهٔ دَ کافر وه — لرغونئ پټه مضمر وه
پنځ ويک ځنې بدر کړه — درويشانو ته ئې ورکړه
نور همه په تا حلاله — خلاص ئې تهٔ له قيل وقاله
کهٔ ياقوت کهٔ جواهر دي — واړه ستا کهٔ لک کهٔ زر دي
په درياب کښې کهٔ تهٔ دروې — واړه ستا دي چه ځهٔ موې

## فصل - ذِکر دَ هغو چه مستحق دَ زکوٰة دي

دَ زکوٰة دي اُوهٔ گروهه — چه پړې روغ دے بے اندوهه
اول روغ په فقيران دے — دويم روغ په درويشان دے
دويم روغ په عاملين دي — په تحصيل ئې تعيين دي
بيا مؤلف القلوب دي — کهٔ اوس نهٔ اخلي هم خوب دي
بيا هغه چه في الرقاب دي — ځان ئې وبيرود کړياب دي
شپږم گروه ئې غارمين دي — چه تر قرض لاندِ غمگين دي
اُوم في سبيل الله دي — چه غازيان دَ حق دَ راه دي
بيا دَ لارے مسافر دي — چه خوردن وته ناظر دي
کهٔ صدقه وي کهٔ زکوٰة وي — پرے روا په روايات وي
نهٔ په پلار زکوٰة رغيږي — نهٔ په ځوئ روا کيږي
کهٔ نمسے وي کهٔ نيکهٔ وي — روغ زکوٰة په واړو نهٔ وي
کهٔ درهم وي کهٔ دينار وي — په دا واړه ناروا دي
کهٔ عورته زکوٰة ورکه — وه ميړهٔ ته بده چرکه
کهٔ خښتن ورکه برده نه — زکوٰة نهٔ دروی له دهٔ نه
دا وئيل نهٔ په دروغ دے — په سيد زکوٰة ناروغ دے
هرچه کل بني هاشم دي — په زکوٰة کږلي هم دي

کۀ کفن دَ مړ ده وکړه
دَ زکوٰة په مال بنۀ نۀ کړه
کۀ مسجد کۀ خانقاه دے
دَ زکوٰة په مال تباه دے
کۀ میلمه په زکوٰة تیر کړه
یا تۀ عشر تیر و بیر کړه
کۀ زکوٰة کۀ عشر یاره
مستحق ته ئے وسپاره
هاله ستا غاړه خلاصیږی
په بل رنګ نۀ ادا کیږی
په زکوٰة کښے نیت بانډه دے
زکوٰة بے نیته روغ نۀ دے
په تونګر زکوٰة روغ نۀ دے
کۀ ئے ورکړه کله بنۀ دے
په خطا کۀ زکوٰة ورکړه
دَ تونګر نور به حذر کړه

## فصل۔ ذِکر دَ هغو دَ ثواب چه زکوٰة بنۀ وُباسی

دا وئیل دَ پاک رسولؐ دی
کل وئیل دَ دۀ قبول دی
چه زکوٰة بنۀ ورکوینه
درے بنادئ به پرے ورځینه
خاندان به ئے آباد شی
رزق روزی به ئے زیاد شی
برکت به ئے په مال شی
ډیرۀ به ئے هر کال شی
په قیامت به پرے سایه وی
کۀ زکوٰة کۀ صدقه وی
دے به خلاص وی له زحمته
دَ غارمۀ له حرارته
بل به پټ په اغوستن وی
پوشیده به دَ دۀ تن وی
بل به هسے پرده وشی
چه دوزخ به لیدۀ نۀ شی
دے به خلاص وی له هیبته
دَ دوزخ له قباحته
هول وترس به بانډ نۀ وی
هر احوال به دَ دۀ بنۀ وی

## فصل۔ ذِکر دَ هغو دَ عذاب چه زکوٰة نۀ ورکوی

هر سړے چه لا زکوٰة دے
کۀ صلوٰة کۀ لاصلوٰة دے
دا وعید دے په قرآن کښے
هغه خوار دے په ایمان کښے
چه زکوٰة نۀ ورکوینه
په دوزخ کښے به سیزینه

که روپئ که مهران وی — په دوزخ کښې به تابان وی
د دوئ مخ به پرې داغینه — په درست ځان به ئې کیږدینه
په قیامت به ئې کټ کوټ کا — لاس وپښې به ئې سوټ بوټ کا
که ئې غوا دی که ئې غیله — پرې به پاس خیژی خوځله
درست به دې په پښو پائمال کا — په وهل به ئې بد حال کا
وار په وار به باندِ خیژی — پرې به رغړی پرې به میږی
چارپایان به زبان پیدا کا — دوئ به واړه وئیل دا کا
چه قرآن درته گویا وو — په نه زکوٰة کښې غفلت ستا وو
اوس پیچه دا عذابونه — ورکوه دا حسابونه

# اتم باب

## ذکر د روژې د هره بابه

روژه فرض ده اے یارانو — په همه مسلمانانو!
که مردان دی که زنان دی — که آزاد که بندگان دی
چه بالغ په طول وعرض شی — دیرش روژې ورباندِ فرض شی
میاشت ئې میاشت د رمضان — په بزرگئ ده په هر شان
واورهٔ تهٔ له نوا نیته — روژه نهٔ کیږی بے نیته
که بے نیته روژه دار ئې — د قضا روژې فرضدار ئې
که ځوک پوهه په مسئله شی — روژه دوه لونه درله شی
یو روژه درله شی عین — دویم رنګ درله شی دین
عین روژه ماهِ رمضان ده — تطوع هم په دا شان ده
بیا روژه د نذر یاره — دا درې عین دی وشماره
نذر ستا هغه روژه ده — چه دِ درخ یا میاشت وعده ده
چه به دا روژه لرم — بے روژې نهٔ وودرږم

چه سوا تر دا لرینه　　هغه واړه دین دینه
که ئے نیت په شپه ونکړه　　روژه عین وی بنهٔ ئے نکړهٔ
په صباځ تر زوال له　　نیت داروغ ګڼړه اے لا له
تر زوال که وخت تیر بیر شی　　نور نیت نشته وخت ئے تیر شی
دَ نیولو وخت ئے کوم دے　　صبحدم په تا معلوم دے
چه آفتاب له تا پناه شی　　دَ کشایلو وخت هغه شی
دَ شعبان چه دیرش پوره شی　　که میاشت میغ وی هم روژه شی
دیرش پوره دَ رمضان کړه　　نور اختر شهٔ ورک ګمان کړه
که سحر وخوری صبا شی　　یا افطار وکړه نمر وا شی
که دا کار په عمدانه وی　　اندوه مهٔ کوه چه بنهٔ وی
کفارت نشته قضا ده　　یوه ورځ روژه په تا ده

## فصل - روژه دَ کفارت

مسئله به درته وایم　　بنهٔ ئے واوره نیکخواه ستا یم
که معتاد خواره په ورځ خوری　　یا اوبهٔ کشته تر حلق وُری
په روژه کښے کفارت دے　　منکرهٔ شه روایت دے
که دارو که زعفران خوری　　مشک دا نور چه په داشان خوری
که دا کار دِ په عمدا شی　　کفارت په تا روا شی
که دا کار دِ په نسیان وی　　خو قضا ده کار آسان وی
که لرګی خوری کانی مانی　　کفارت نشته په کانړی
په دا جنس قضا روژه ده　　باور وکړه مسئله ده
که جماع په دبر فرج وی　　چه حشفه دِ پکښے درج وی
کفارت په مرد و زن دے　　روایت ئے مبرهن دے
که په بنځه زور ستم وی　　یا له عقله بیګانه وی
په دا هم کفارت نشته　　په مرد شته په عورت نشته

دَ چار پلۂ دخول ډیر بد دے    چه دا کار که هغه رد دے
په انزال ئے قضا بو یه    کفارت نشته اے ځویه
که انزال ونۀ شۀ نشته    هم قضا غسل چه څۀ شته
که دخول کاندی له نره    راشه واوره دا خبره
که رضا وی په دا غاره    کفارت راغے په دواړه
که په ظلم وجور وضرب وی    دَ مظلوم کفارت سلب وی
که په ښځه ښځه خیژی    کفارت باندِ راغیږی
کفارت چه واجب کیږی    قضا هم باندِ رغیږی

## فصل۔ ذکرِ دَ هغو چه خوراک پرے رغیږی

که روژه خوری ښځه گروهه    کارِدِ کاندی بے اندوهه
خبردار ئے خدائے فتاح دے    په ضرور افطار مباح دے
مسافر که روژه خورینه    باندِ هیڅ بدی نۀ وینه
دَ بیمار افطار روا دے    په کتاب کښے حکم دا دے
که باردارہ عورتینه وی    که روژه خوری چار ئے ښۀ وی
که هلک دَدے شیرخوردی    که روژه خوری ښۀ ئے موروی
وزاړۀ وته رخصت دے    که روژه خوری روایت دے
په ځلور گروهه قضا ده    چه روژه وخوری فتوٰی ده
که طاقت دَ زاړۀ نۀ وی    نیمکی صاع غنم په دۀ وی
دیرش روژے پنځلس صاع شی    خود کاشته که اتباع شی
مستحق ئے درویشان دی    که دَ کلی که خویشان دی
که بیمار ومری په رنځ کښے    مسافر وی که په ونځ کښے
پرے قضا نۀ واجبیږی    پرے دِ هر څوک وپوهیږی
که بیمار له رنځه روغ شی    مسافر په کور فروغ شی
نیم نیم صاع غنم پرے شینه    و درویش دِ ورکوینه

کهٔ ئې نفل روژه وینه — په افطار قضا پرې شینه

## فصل- چه دَ روژو دَ کفارت غاړه خلاصیږی

کفارت چه په چا واوړی — دے دِ خلاص کړ دن په دا کړی
یا دِ یو بنده آزاد کا — چه آزاد شی زړهٔ دِ بناد کا
کهٔ دا نهٔ وی دی دوه میاشتے — پیاپے روژے پیوستے
یا شپیته دُوړی ماړهٔ کا — چاشت وشام هسے خواړهٔ کا
آزادی دَ بنده بنه ده — تر روژے مسئله ده
روژه بنه ده تر طعامه — مسئله زده کړه تهٔ عامه

## فصل- ذکر دَ نذر دَ روژے نیت

کهٔ دَ نذر نیت څوک وکا — پیوسته دِ خوراک نهٔ کا
کهٔ دَ میاشتے روژه وینه — پیوسته دِ ئې لرینه
کهٔ تر یا تو هغه ماه شی — بله میاشت دِ ئې په راه شی
کهٔ درست کال ئې وی یاد کړے — پیوستون ئې وی نومړے
په درست کال باندِ ورینه — پیوسته دِ ئې لرینه
پنجشنبه کهٔ دوشنبه وی — واجب کړی روژه به وی
کهٔ ئې وخوری کفارت دے — دَ سوګند کهٔ ئې عادت دے
تطوع په رمضان کښے — دَ روژے نشته په آن کښے
رجب میاشت دَ شعبان دواړه — فضائل لره شی واړه
بنه دَ هم دَ ذوالحجه ده — بیا دهم دَ عاشوره ده
بیا ایام بیض اے یاره — ډیر ثواب لری بے شماره
دَ شوال شش هم بنه ده — پس له عیده چه شش ده

## فصل

راشه واوره دما جوُنده — روژه نۀ ده لوږه تنده
ورسره دی ډیرے چارے — له ما واوره یوڅو بارے
چه روژه ئے یاده کړی — د الصوم ئے نومړی
په " اَنَا اَجزِیٓ " ده یاده — دا وئیل دی له اُستا ده
دَ روژے اجر په ما دے — خدائے په دا وئیل ګویا دے
روژه خاص طاعت دَخدائے دے — دا کلام ځما په ځائے دے
پیغمبرؐ هسے وئیلی — په کتاب کښے ما لیدلی
کۀ بنده وی کۀ آزاد وی — چه په حقه روژه شاد وی
درسته میاشت روژه ادا کا — نیت سنت واړه پرجا کا
هر اندام لکه یو باب دے — دَ وبال یا دئے ثواب دے
دَ وبال ورباندِ بند کړه — دَ ثواب په لوری پند کړه
ګنړه تۀ دَ غوبل ستورے — خولهٔ تړلے په څۀ شورے
دا روژه نۀ ده صرفه ده — درته پاتو سیر غله ده
دَ ثواب نصیب روژه — راڅکوه تنده یا لوږه
چه په خولهٔ نۀ ده تمام — روژه ده په هفت اندام
لکه خولهٔ دَ خوړو نیسی — فرج له نوروخیزو نیسی
سترګے غوږ داهسے نیسه — مهٔ بد آوره مهٔ بد کسه
له ګفتاره ژبه ژغوره — له غیبته له پیغوره
خولهٔ ساته لهٔ مُسکراته — دَ حرامو له آفاته
زړهٔ له بدو اندیښنو نه — له آشوبه له فتنو نه
لاس له بدو هسکیدلو — پښے له بدو ګرځیدلو
هر اعضاء له بدو ژغوره — په روژه کښے ځما روره

## فصل- دَ روژے دَ ثواب

خدائے برلس خیزونه ورکا — شک په دا مکر کافر که

لکه اوزیږی له موره — تازه وړوکے خما ړوره
له ګناه به هسے خلاص وی — چه روژه ئے په اخلاص وی
کهٔ شُبه وی کهٔ حرام وی — تل به خلاص دَدهٔ ترکام وی
بل به تل رحمت پرے ورِی — له بلا به ئے خدائے ژغوری
بل په هره روژه جانه — دے به ورشی تر جنانه
دَ یاقوت محل به مومی — له جهانه به خوش دروحی
بل کهٔ تنده وی کهٔ لوږه — دَ قیامت به وی پرے لږه
بل به خلاص وی له هیبته — غم به نهٔ کاله قیامته
بل چه ورشی تر ګوره — خوش خورم به وی اے روره
بل په ګور کښے دیرے حورے — تل به دهٔ ته وی حضورے
بل به هسے مشال ورکه — په صراط چه ترے ګذرکه
بل تیار به ورته خوان وی — چه فراخ تردا جهان وی
ترعرش لاندِ به ئے ویشی — دے به کښینی باندِ ګویشی
کهٔ ئے شمار کړم نعمتونه — مګر وکښم دفترونه

## فصل- دَ روژے دَ اعتکاف

په روژه کښے اعتکاف شته — فکر ذکر حق انصاف شته
اعتکاف دے په دوه شانه — ته ئے ونغوژه له مانه
یو واجب بل فضایل دی — پرے به پوهه وی چه عاقل دی
چه په ځان ئے نذر کاندی — شی واجب په هغهٔ باندِ
چه په ځان ئے نذر نهٔ کا — کهٔ ئے که نفل دِ بښهٔ کا
دَ روژے سره روا دے — نذر بے روژے خطا دے

## فصل- دَعید فطر سرسایه وغیره

دَ اختر په ورځ عزیزه — له تا بویه اُوهٔ څیزه

اول غسل بیا مسواک دے    بنهٔ پوشاک دے بنهٔ خوراک دے
خوشبوئی کا په خان پورے    سرسایه ده کهٔ ئے کورے
بیا به نمونځ دَ اختر وکړے    دا سنت به په ځائے تهٔ کړے
سرسایه په تا واجب ده    لا دَ وخته مناسب ده
لوئے هلک سره وشماره    کهٔ آزاد کهٔ بنده یاره
په هر سر نیم صاع غنم دی    پوره صاع اوربشے هم دی
کهٔ خرما دی کهٔ مویز دی    دَ اوربشو غوندِ نیز دی
سرسایه په تا هاله شته    کهٔ نصاب دے دَ کالهٔ شته
نهٔ دِ ئے وام وی نهٔ دِ پور وی    سرانجام دِ دَ خپل کور وی
چه زکوٰة ورباندِ شینه    سرسایه دِ ور کوینه
شوی وزن په سرسایه کښے    سره بیل دی په مایه کښے
کهٔ مجنون مالک نصاب وی    یا هلک په دا حساب وی
په زکوٰة کښے کهٔ معاف وی    په صدقه کله معاف وی
دَ سودا په مال هم نشته    سرسایه نور په هر خهٔ شته
کهٔ دَ عید په خوائے ور کا    سرسایه هم دا بنهٔ چر کا
په اخترئے کهٔ ور نهٔ کا    په هر وخت چه ور کا بنهٔ کا
کهٔ غله نهٔ ور کوینه    په حساب ئے وکه هم شینه
صاع اتهٔ رتل حساب دے    رطل نیم من په کتاب دے
دَ مکے من دا جائے بویه    نهٔ شهنګ پیمانه لویه

## فصل۔ ذکر دَ مال چه حج پرے فرض کیږی

په اوهٔ شرطه فرض کیږی    حج په دا کهٔ خوک پوهیږی
په عاقل دے په بالغ دے    چه بنده نهٔ دے فارغ دے
بل کافر نهٔ وی دیندار وی    بل تندرست بل چه مالدار وی
چه خطر نهٔ وی دَ لارے    اوهٔ وشول کهٔ ئے شمارے

که ئے نهٔ وی دا شرطونه | ورته بنه دهٔ خپله خونه
کهٔ وچ لره روان شی | گرفتار به په تاوان شی
دوه شرطونه دَ زنانو | زیات یادیږی ترمردانو
خپل محرم دِ ورسره وی | بے محرمه کله بنهٔ وی
بل عدت دِ تیر په ځان کا | بیا دِ حج ته ځان روان کا

## فصل - دَ عید دَ قربانئ!

اختلاف په دا کښې ډیر دے | دَ مال حکم تیر و بیر دے
اما هومره مال بائد دهٔ وی | چه دَ لاسه زاد دَ دهٔ وی
چه خپل وام واړه ادا کا | نفقه کور ته مهیا کا
ښو چه درومی خو رادرومی | لوئے هلک ئے هرچه مومی
لا په کور ئے هومره مال وی | چه دوئی راشی پرے خوشحال وی
فراغت پرے کشت و کار کا | لا پرے دے دَ سودا کار کا
چه محتاج په هیڅ کښې نشی | چه په کور دَ دهٔ راتلهٔ شی
سور دِ ځی سور دِ رادرومی | چه راحت دَ سفر مومی
کهٔ دا هسے مال لرینه | حج پرے فرض دے دے دِ ځینه
کهٔ علت لری معذور دے | حج ئے حکم په مزدور دے
بنهٔ دین دار ته دِ مُزد ورکا | دَ حج کار دِ ورته سر کا
یا کهٔ ښوک دَ دهٔ دپاره | حج په ځائے راوړی اے یاره
پرے خلاصیږی دَ دهٔ غاړه | کهٔ دے نهٔ وو کا دا دواړه
پس له مرګه تاوان دار دے | دَ دهٔ مال په څهٔ مقدار دے
دَ دهٔ مال دِ په قسمت وی | کهٔ ئے کړے وصیت دے
دوه حصے دَ وارثانو | یوه شی دَ درویشانو
وصیت کهٔ ناصادر وی | په درست مال وارث قادر وی
کهٔ معلول حج گذارینه | تطوع دِ حج نهٔ شینه

چه تندرست شي ج دِ بيا کا    خپله غاړه دِ ادا کا

که درویش وي چه ج وُکا    په غنا کښې دِ بيا نهٔ کا

## فصل - ذکر دَ کشتا یعنی دَ مذبوح

واجب شوے قرباني ده    په شهري بيا باني ده

چه بالغ وي چه مقيم وي    دُنيا دار په زر وسيم وي

سرسايه چه وړ کو ينه    هغه هومره مال لرينه

قرباني دِ هغه کاندی    چه واجبه ده پرے باندِ

مسافر که ډير مالدار وي    په قربان ناتوان داروي

هلک څوئے دَ بابا دے    په قربان کښې لوے جدا دے

ورځ دَ عيد دوه ورځې نورے    دَ قربانئ دي که ئے کورے

په درے ورځې روغ قربان دے    تردا تيرش وندون تاوان دے

دَ قربان په نيت که پسهٔ وي    و درویش ئے ورکړه بنه وي

که لنډئ کړوډ وي    يا ډنگر چه پوست وهډ وي

که يک چشم وي يا لنگ وي    قربانئ لره ئے ننگ وي

په اوهٔ تنه که غوا ده    قربانئ لره روا ده

يوهٔ تن لره گوسفند دے    يا وُز بزه داکار پسند دے

غوا که اوښ په اوهٔ تنه    مسئله ده مبرهنه

اوهٔ واړه دِ نيت يوکا    په قربان دِ هله رو کا

که په نيت کښې يو ناساز شي    قرباني دِ واړه باز شي

که ميرهٔ قربان دَ ژکے کا    کار بيرون ترمسئلے کا

که دَ شوئ په نيت قربان کا    داکار بد نهٔ دے په کار کا

دَ قربان که غوښے خورينه    په ميلمه په ځان بنهٔ کړينه

له کشتاره درته وايم    ذبح کړونے درته ستايم

که هلک که مست که لال وي    چه بسملٔ کا چه حلال وي

لیونے وی که نساء وی ‌ ‌ یا جُنب جهود ترسا وی
دَ دیو واړه بسمل روغ وی ‌ ‌ دا وائی کله دروغ وی
که کافر مشرک که گبر ‌ ‌ له کشتاره ئے کړه صبر
خواجه سرائے که ځوک لوینه ‌ ‌ هیڅ کشتار دِ ئے نهٔ خورینه
که تیرهٔ کا نړے که نے وی ‌ ‌ که هډوکے که لرگے وی
په دا واړو کشتار شینه ‌ ‌ چه رگونه ئے پریکوینه
دَ کشتار دی ځلور رگه ‌ ‌ دَ حلقوم سره اے ډکه
ځلور واړه رگه پریکړه ‌ ‌ او که نهٔ بریده درے کړه
که تر دا بریده کم وی ‌ ‌ دَ کشتار خوړنه غم وی

## فصل - ذکر دَ ښکار دَ جواز

دَ گذار په وخت چه ښکار کړے ‌ ‌ که په تیر تکبیر آشکار کړے
که په ځائے پریوزی ولاړ شی ‌ ‌ یا په ځائے بانِدِ مردار شی
په تکبیر سره حلال دے ‌ ‌ خوره ئے ستا کله وبال دے
له طلبه ئے که پریوزے ‌ ‌ که ئے خورے په وبال کښیوزے
که تکبیر دِ له زړهٔ هیر شی ‌ ‌ خوری ئے ترڅه په ښهٔ چیر شی
که عمدًا تکبیر ونهٔ کړے ‌ ‌ بد که غوښه ئے په خوله کړے
که دَ سپی دے که دَ باز دے ‌ ‌ په تکبیر ئے کار جواز دے
که مجروح که نا مجروح وی ‌ ‌ صید دَ باز کشته فتوح وی
خو دَ ښکار مرغونه دینه ‌ ‌ حکم باز غوندِ لرینه
نا مجروح که دَ سپی مړ وی ‌ ‌ دَ خوړلو نهٔ دے نغر وی
که ځهٔ وینه ترے جدا وی ‌ ‌ په تکبیر سره روا وی
په اوبو کښے چه چوریږی ‌ ‌ په دخول کښے چه ښخیږی
هر لیوهٔ گیدړ که تروړ دے ‌ ‌ بد که غوښوته ئے جوړ دے
چه چنگال لری اے پوهه ‌ ‌ لکه باز شاهین دا گروهه

غوښې بدې وي د وارو
ناروا دي تر مرداره
د کور چرگه که چارپائے وي
چه ئے گشت په گنده ځائے وي
چه خوراک ئے نجاست وي
که ئے خورے کراهیت وي
مگر بند شي علف وخوري
ښهٔ سره دِ هله وخوري
که په اور په طشت ئے نسي
په حیلت سره لوغسي
که مرغهٔ دي که ماهي دي
چه ئے خور وربانده هي دي
چه ماهي په رود کښې ومري
بے سببه بد چه وخوري
که خاروي په چاه کښې پریوزي
په نظر د سړي کښیوزي
که بسمل ئے ممکن نهٔ وي
په سلاح سره مرېښهٔ وي
پرے تکبیر و ئیلے بویه
چه ئے وینے شي چه تو یه
نور که ومري هم حلال دے
سر تر پایه لا وبال دے

# نهم باب

## ذکر د جهاد وغزا ثواب د غازیانو وشهیدانو

په قرآن کښې د غازیانو
صفت شوے دے یارانو
په غازیانو خدائے مئین دے
په غازیانو دین روشن دے
چه پسند لی د واحد دي
زهٔ سوگند خورم مجاهد دي
چه د تیغ روشنائي نهٔ وي
د جهان صفائي نهٔ وي
د غزا ثواب که کښم
په کښل کښل به نهٔ رسم
خو غازي په غزا دروي
په هر پله به ثواب موي
چه له کوره نه روان شي
گناهونه ئے پریشان شي
له عذابه غازي خلاص وي
آمرزش ئے په اخلاص وي
تر بهشته به ورشینه
گمان مهٔ کړه چه ورشینه
خو چه حج وي د حاجیانو
خو کوشش د عالمانو
تر دا وړو چه بالا دے
د غازیانو کوروالا دے

ځو طاعت واړه جهان کا | ښې ښې چارې مومنان کا
ورسره غازیان شریک وی | که ترکان وی که تاجیک وی
چه غازی له چا آزار شي | په دُنیا په دین به خوار شی

# فصل

## ذکر دَ شهیدانو چه دوه رنګه دی

شهیدان دی په دوه رنګه | سره بیل دی له فرسنګه
یو په غسل ښخاوهٔ شی | بل بې غسله وسپارهٔ شی
چه شهید شی په غزا کښې | نشته هیڅ شُبه په دا کښې
بې کفنه دے ښخیږی | غسل هم پرے نهٔ رغیږی
دَ شهید کفن پوشاک دے | ځهٔ حاجت دَ غسل پاک دے
په خپل مال چه په تیغ ومری | حقیقت وی شهید بنهٔ مری
ښخاوهٔ دِ شی بے وللو | مغفرت ئې دے تر تلو
هر چه مړوی په خپل ځائے کښې | دارالحرب سره په سرائے کښې
دَ خپل رخت سره ښخ بنهٔ دے | هیڅ حاجت دَ غسل نهٔ دے
دَ اسلام په دار کښې مړے | چه په تیغ وی چا مړ کړے
هغه هم دَ غسل نهٔ دے | دَ جامو سره ښخ بنهٔ دے
چه شهید وصیت وکه | بیا هاله دَ دم وا تهٔ کا
مسئله دهٔ دَ وُلو نهٔ دے | روایت دے وللے بنهٔ دے
که په خولهٔ ذکر دَ حق کا | دَ هغهٔ جهان نطق کا
دَ هغهٔ غسل نهٔ بویه | مرتبه ئې دهٔ لا لویه
که لږی هسے نر خمونه | پټه خولهٔ وسے په خونه
مړشی دے په بیخودئ کښې | کار دَ وُلو دے په بدئ کښې
شهیدان چه دَ ثواب دی | هغه دا رنګه حساب دی
حقیقی شهیدان نهٔ دی | په ثواب شهیدان مړهٔ دی
ځوک چه لاندِ تردیوار شی | مړ دَ نفس په بدآزار شی

یا په اور کښې لولپه شي
یا په بحر کښې غرقه شي
یا په وخت د لنګون ومري
ښځه یا په حد چه ومري
چه مقتول د حرامي وي
په زندان صمصامي وي
که بې او سپینې څوک ومري
په ناحق شهید دے بښه مري
که مجروح داخلي له ځایه
په لار د مرې ورته وایه
په دا وا ړو غسل روغ دے
شهادت ئې نه دروغ دے
حرامي چه مال د بل خوري
تیره تُوره غشے بل خوري
هغه هم د وللونه دی
عقوبت لره نه ښه دی
نه دِ مونځ ورباندِ کیږي
بلکه دے دِ نه بښخیږي

## فصل

## ذکر دَ مرده دَ غُسل

دَ مرده غسل ثواب دے
خبر هسې په دا باب دے
چه مرده ته غسل ورکا
په ښه رنګ ئې وجود تر کا
څو په تن دَ مړه ویښته وي
مزد به دا هومره دَ ده وي
چه بنده سړے آزاد کا
په ثواب ئې خاطر ښاد کا
هسې رنګ د مرده وله وي
چه ئې عیب ښکاره نه دي
شرمګاه ئې پوشیده دی
نور غاسل آمرزیده وي
که ئې عیب آشکاره کا
غاسل ځان لره بلا کا
مزد ئې وا ړه حبطه دے
دیر ګنده کاندی ګنده دے

## فصل

## ذکر د جنازے د نمانځه د ثواب

دَ ښه خدائې په قول اے یاره
نمونځ واجب په مړه وشماره
څوک چه نما ز جنازه کا
باید دا دی دادِ نر ده کړه
دَ قبلے په لور دِ کښیږدی
مرده درے صف د یلیږی
برابر په سیلنه څو یه
دَ امام د ریدل بو یه

چه صغیر وی که کبیر وی — جنازه په چار تکبیر وی
تکبیرونه چه ادا کا — په آخر دِ سلام بیا کا
په اول تکبیر لاس ونه — دروره بو یه تر غوږ ونه
چه اول تکبیر ووائے — بیا سُبْحَانَ هم ووائے
تَحِیَّات پسے ولو له — په دویم تکبیر دا لو له
اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰی مُحَمَّدٍ — تا حَمِیْدٌ مَّجِیْدٌ ط
په دویم تکبیر دا وا یه — په حاضر خاطر ترځا یه

اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِحَیِّنَا وَمَیِّتِنَا وَشَاهِدِنَا
وَغَائِبِنَا وَصَغِیْرِنَا وَکَبِیْرِنَا وَ ذَکَرِنَا وَاُنْثَانَا
اَللّٰهُمَّ مَنْ اَحْیَیْتَهٗ مِنَّا فَاَحْیِهٖ عَلَی الْاِسْلَامِ وَ
مَنْ تَوَفَّیْتَهٗ مِنَّا فَتَوَفَّهٗ عَلَی الْاِیْمَانِ ط

چه څلور تکبیره وشی — ستا سلام دِ بیا هاله شی
په اول تکبیر لاس بو یه — چه ته هسک کړے ځا ځو یه
یا امیر یا قاضی بو یه — چه امام شی راضی بو یه
یا امام جُمعے یا ره — یاخطیب پنځم وشماره
که دا هیڅوک حاضر نهٔ وی — هر سړے چه پړے لوست بنهٔ وی
یائے خویش یا اقربا وی — یاچه حکم پړے دَ چا وی
چه امام جنازه کاندی — یا چه لولی په دهٔ با ندِ
مقتدی چه ور پسے وی — په لوستن دِ هم هسے وی
که سری په شمار اندک وی — هم په درے صفه دِ لک وی
داحدیث دَ پاک رسولؐ دے — چه هغه مرده قبول دے
چه دَ دهٔ جنازه کیږی — پړے درے صفه ودریږی
که حاضر پړے ډیر عالم وی — په مرده دَ خدائے کرم وی
جنازه چه شی خبرے — خوک دِ نهٔ کا نږدے لرے
دَ نمانځه چه تکبیر چار وی — په څلور رکعته شمار وی

چه داخل په هر تکبیر شی    له امامه دِ خبیر شی
چه امام سلام وکاندی    تر روستی ماموم دَ وړاندِ
دے دِ پاتے تکبیر درست کا    دَ سلام دِ هاله لوست کا
کهٔ مرده خلق په ګور کا    بے نمانځهٔ ندئے نسکور کا
پس له دړے ورځو کهٔ کاندی    نمونځ پرے کیږی روستو وړاندِ
چه تر دړے ورځو نه تیر شی    نمونځ پرے نۀ کیږی نور دِ تیر شی
کهٔ پړیوزی له موره    کهٔ مرده وی وئے ګوره
په جنین باندِ نمونځ نشی    بے نمانځه دِ ښخه وشی
کهٔ ډیر مړهٔ سره انباردی    نمونځ په واړو یو ګذاروی
کهٔ ډیر نر ښځے ګډ وډ وی    هلک هم ورسره ګډ وی
دَ مردانو صف اول وی    ورپسے دَ ښځو بیل وی
بیا دِ وړوکے پسے کښیږدی    جنازه دِ دئے ویلیږی
نمونځ په واړو یو ګذاروی    نهٔ په هر مُرده باربار وی
کهٔ ولی ئے حاضر نهٔ وی    دوباره پرے نمونځ هاله وی
جنازه چه په لار درومی    چه ئے ښهٔ سړے بیا مومی
کهٔ نماز ورباندِ کاندی    صد رحمت په هغهٔ باندِ

## فصل

له رسوله روایت دے    په مشکوٰة کښے په صحت دے
جنازه چه دَ مړهٔ وکا    پس له دفنه سړے تلهٔ کا
دړے قیراط مزد به مومی    پس له دفنه کورته درومی
هر قیراط په حساب څومره    لکه غر دَ اُحد هومره
په مرده باندِ سل تنه    مسئله ده مبرهنه
چه حاضر شی نمونځ وکاندی    مغفرت ورشی ورباندِ
چه پرے زیات سړی حاضر وی    مغفرت دَ مرده زر وی
په توریت کښے روایت دے    چه رښتینے حکایت دے

موسیٰ خواست وکړله خدایه څُما خدایه راته وا یه
چه دَعرش تر سا یه لا ندِ څوک به وی چه راحت کا ندی
دَموسیٰ وینا بنهٔ آغله دا ندا په موسیٰؑ راغله
دَ بیمار چه عیا دت کا تعزیت دَ مصیبت کا
په مرده باندِ حاضریږی چه ئے ګور جنازه کیږی
چه دا درے چارے څوک کا ندی ځائے دے دَ عرش دَ لا ندِ
ګور په ګچ په چونه بد دے بدکهٔ پوخ دَ چا لحد دے
پخه خښته هم ګنده ده کهٔ په ګور کښې دَمرده ده
تابوت هم کراهیت دے نهٔ روا په روایت دے
کهٔ دَ کا نړی ګور څوک کاندی بدی نشته په دهٔ با ندِ
کهٔ په مړهٔ سړی ژړا کا بنهٔ کهٔ ډیره ئے لالا کا
چه ژړا نا روغه وینه آشنائی دَ روغه وینه
په فراق دی سترګے ګرے کهٔ په عمر شی بے نمے
چه مٹین سره بیلیږی پسے نول پسُوته کیږی
په فراق چه ژړا نهٔ کا دروغژن وی نور به څهٔ کا
چه لړګی سره ماتیږی دَ لړګیو طراق خیږی
دَ لړګیو لا بتر دے چه بیلیږی بے اثر دے
خو چه ژاړے ژاړه ژاړه ولے نهٔ چه ویر یا غاړه
څوک چه مخ وهی دا بد کا چه کوځئ شلوی دا بد کا
چه جامے پاره کوینه یا خپل سر په ډاک وهینه
یا فریاد نعرے فزع کا یا افغان نوحه جزع کا
دا په شرعه نا روا دی چه دا چارے کا خطا دی

## فصل۔ ثواب دَ صبر په مُصیبت کښې

داحدیث دَ پیغمبرؐ دے تواتر دے معتبر دے

مصیبت چه په چا ورشی / دے په صبر ښهره ورشی
اِنَّا لِلّٰهِ دِ وَوائی / تر څلوېښت کاله څو بائی
خدائے به هومره ثواب ورکا / چه مخ رونړے په محشر کا
په جنت کښے به ئے ځائے وی / راضی من به ځنے خدائے وی
وَ جنت لره احبا به / صابران ځی بے حسابه
نه ئے سوال نه ئے حساب وی / نهٔ په دهٔ باندِ جواب وی
مصیبت په مړهٔ په مال وی / یا دَ ملک دَ تن زوال وی
په هر څهٔ صبر بائدهٔ دے / په هر غم کښے صبر ښهٔ دے

## فصل۔ عذاب چه په مرده پسے جزع فزع کوی

دا حدیث دَ محمدؐ دے / ناصبور په غم کښے بد دے
دور عزیز چه دَ چا مړ شی / بویه دا چه غم دِ نغړ شی
کهٔ نارے فریاد غوغا کا / واړه ځان لره بلا کا
یا جامے کهٔ پسے تورے / یائے نهٔ اغوندی نورے
یا جامے خیری کوینه / نهٔ دستار په سر تړینه
یا خپل کور پسے ویران کا / دغه واړه دَ دین زیان کا
په قیامت به شرمنده وی / په عذاب کښے به اخته وی
په دوزخ کښے به ئے ځائے وی / همیشه به پرے هائے هائے وی
په مردن به ئے تور رنګ وی / ګور لحد به باندِ تنګ وی
خوئے تورے جامے وینه / عبادت به ئے نهٔ شینه
په محشر چه حساب شماروی / حساب شمار به پرے دشوار وی
کل فرښتے به پرے لعنت کا / همګی به ترے نفرت کا
چه له ګوره نهٔ پاسینه / برهنه به وُ درینه
په صراط چه ګذر کاندی / درمانده به شی پرے باندِ
نوحه ګر چه مړهٔ ستائی / په رنګ رنګ ئے ثنا وائی

په قیامت به دا پیشو وی | یا به سپے یا به بیزو وی
دَ قطران جامے اغوستے | پلیتی په سر اخستے
تن پاره پاره دَ دوئ | ترلرمون بشکاره دَ دوئ
دَلعنت چادر پرے باندِ | چه دَ اورلنبے به کاندی
فرښتے به دا ونمائی | دوزخیان به په ویرستائی
چه بدبختو اوس راځئ | دوزخیان په ویرستایئ

## فصل۔ عذاب دَ هغو ښځو چه په مُرده باندِ ویر کوی

پیغمبرؐ دی فرمائیلی | دهٔ ترپاکے خولے ویستلی
چه په ویرکښے مخ وهینه | په محشر به تورمخ وینه
زرلعنته به پرے وُوری | خلقے به ورته گوری
دا به وی لکه زنا کره | یو یو زنا دَ ویر سندره
دا دوه ښځے به اوچار وی | په قیامت چه گیرودار وی
یو چه خپل میرهٔ پریږدینه | دا په نورو پسے ځینه
بله ښځه چه مړهٔ ستائی | په صوتونو دَ ویر وائی
خلاص به نهٔ وی له عذابه | دَ دوزخ دَ اور له تابه
په ژوندون کهٔ توبه وکا | خدائے به کار دَ واړو ښهٔ کا

## فصل ۔ دَ کفر دَ کلمات

کهٔ جنت دے ښهٔ خصلت دے | کهٔ دوزخ دے بدعادت دے
مُسلمان دِ ژبه ژغوری | چه غضب پرے نهٔ وُوری
چه وئیل کا څوک بے ځایه | پرے لعنت وُوری له خدایه
په زبان وی چه ایمان وی | کفرهم په دا زبان وی
کهٔ څما نغوړی څرک ښهٔ کا | مسخره دِ هیڅوک نهٔ کا
مسخره چه په زبان ځی | په خندا خندا ایمان ځئ

زده کړه ته له روایات — دا د کفر کلمات
په درې ځیزه کافر کیږي — هر سړے دِ وپوهیږي
اول کار د اعتقاد دے — بل د ژبے اقرار یاد دے
بد عمل په درست اندام دے — درست اسلام په دا تمام دے
دا نیت که مسلمان دے — چه په کفر داخل ځان کا
پس په دا نیت کافر شي — په دا نیت تر کفره ورشي
چه کافر وي نیت دا کا — چه ایمان قبول صبا کا
په دا نیت مسلمان نه وي — اعتقاد د کافر څه وي
د اسلام شرطونه بویه — چه په یو ځائے راوړي ځویه
د مومن کفر که غواړے — چه کافر شوے په دا ویاړے
په دا کار نه کافر کیږي — دا کار مکړه که پوهیږي
چه ګوندي د کافر کاندي — کافري ده په ده باندِ
چه له فرضو څوک منکر شي — په انکار سره کافر شي
چه ئے نه زده وي فرضونه — یا چه نه کا فرض نمونځونه
مسلمان نه دے کافر دے — تر کافر نه لا بتر دے
چه حلال حرام ګڼړینه — یا حرام حلال شمیرینه
یا خونونه په ناحق کا — کبیره ګناه مطلق کا
یا زنا یا لواطت کا — یا په ظلم مال غارت کا
که حرام ئے نه ګڼړینه — په دا کفر پرے ورځینه
چه د خدائے په وعده شک کا — په دا کفر په ځان کاک کا
عزرائیل که بد ګڼړینه — په هغه کفر ورځینه
مؤذن چه بانګ نماز کا — استحقاق په سړي ساز کا
څوک چه علم زده کوینه — بد هغه ته څوک وائینه
یا قرآن و راندِ آلت کا — باندِ چار د معصیت کا
د قرآن چه آیتونه — لولي څوک په سرودونه

په دا واړه چې نه کاندي
که ارمان وکه وواني
یا فلانه حرام حلال دے
دا ویل دَ کفر دینه
که څوک وائي چه نمونځ کړم
یا نمونځ نهٔ کا ورته وائي
دے جواب ورکړه نمونځ نهٔ کړم
کافر شي په دا خبرے
چه دَ شرع استخفاف کا
کفر ورغې پرے باندِ
که ظالم دَ مظلوم مال خوري
مظلوم ووائي وده ته
که نهٔ حق به له تا غواړم
ظالم هیڅ پرواه و نهٔ کا
دا هم کفر دے چه کیږي
که څوک ووائي عیب دان یم
دا ویل دَ کفر دینه
چه غیبت دَ پیغمبرؐ کا
که څوک ووائي له خدایه
ویل وکا نهٔ ویریږم
چه عالم وته بد وائي
که بے ځایه دا کار کاندي
که عالم فاجر فاسق وي
که څوک ووائي بالغ یم
یا څوک ووائي وچا ته

کفر ورځے شي پرے باندِ
چه حلال وے شراب ستائي
یا حلال دَ ولجے مال دے
ترے دِ ځان مومن سا تینه
ولے هیڅ ترے نهٔ مومم
چه نمونځ کړه ورته ئے ستائي
که نمونځ نهٔ کړم هم دا بنهٔ کړم
مُسلمان دِ وی ترے لرے
چه فرمان دَ خدائے کذاق کا
مؤمنان دِ حذر کاندي
خوش خرم ئے په وبال خوري
مال م مهٔ خوره وکړه نغته
په قیامت به خدائے ته ژاړم
بلکه لاظلم په دهٔ کا
له قیامت چه نهٔ کروهیږي
هسے شیخ دَ خپل زمان یم
چه ئے وائي کافر شینه
شک ومهٔ کړه ځان کافر کا
وویریږه دی بے ځایه
دا هم کفر شي پوهیږم
په شدت ورسره پائي
کفر ورغے پرے باندِ
دَ بدئ خودے لایق وي
نمونځ که نهٔ کړم خوش فارغ کړم
په نمانځه کړه مینه زیاته

دے جواب وهغهٔ ورکا نموځ وتاوته څهٔ درکا
نموځ به هله ګذارم ګنړه څهٔ دی نهٔ ئے کړم
داویل د کفر دینه منکری له فرضو شینه
کهٔ زنیار کهٔ څوک پړغاړه یا سجده د بُت دا دواړه
چه ئے کا هغه کافر دے له کافره برابر دے
کهٔ غلول کا دا کارونه یا ضرور وی یا پچونه
کافر نهٔ شی واړه بد کا چه کارونه د مرتد کا

## فصل - کلمات د کفر د زور د مخه نور مکروه کارونه

کهٔ په لاس د کافر کښیوزی مومن غم ورباندِ پریوزی
ورته وائی چه کافر شه یا وتیغ ته ترک د سر شه
یا نقصان قبول وجود کړه یا بت وته سجود کړه
یا شراب راسره وخوره یا روژه ماکره وخوره
کهٔ څهٔ داغوندِ نور ګران وی چه آفت د دین د ځان وی
کهٔ غم خورئے هیڅوک نهٔ وی دادِ کار ورلره بنهٔ وی
کهٔ دا کار کراهیت دے هم روا په شریعت دے
له ضروره هرڅهٔ کیږی کهٔ په ژړئے نهٔ رغیږی
کهٔ د سر ضرورئے نهٔ وی په څِه نورچه زیان د دهٔ وی
نهٔ دِ کفر قبلو ینه نهٔ دِ خمرو روژه خورینه
کهٔ په بنځو ریښمین بندِ دی په مردانو روا نهٔ دی
په هلک په لوئے په دواړه مکروهات دی ریښمین یاره
کهٔ بالښت وی یا بستر وی لوئے هلک لره بهتر وی
د جامے کهٔ تار ریښمین وی پود نور چه کار مهین وی
چه بوسے سره لاسونه یا بوسے سره مخونه
په مردانو روا نهٔ دی مګر شیخ ملا دا څهٔ دی

دَ تعظیم د پاره ناسه    تهٔ ئے کښل کړه دواړه لاسه
ابتدا کهٔ دَ سلام کړے    یا لاس ورکړه په اکرام کړے
کهٔ جهود وی یا ترسا وی    دواړه توکه ناروا وی
مے فروش چه دَ مے مال خوری    دے دا مال کله حلال خوری
په وارث ئے هم حرام دے    په درویش بنه کهٔ انعام دے
کهٔ دَ ځوئ زر خلخال کا    یا وښی مکروه په قال کا
حامله کهٔ رګ وهینه    په دا کار مکروه کوینه
چه بچه ئے وشوریږی    فصد هاله باندِ رغیږی
چه نزدے شی لنګیدو ته    فصد هم بد هم بدئے عورتینو ته
کهٔ تر سر لاندِ کتاب کا    دَ بالښت په ځائے عذاب کا
مکر ویره وی پرے باندِ    نګاهداشت دَ کتاب کاندی
چه پاټزار سره بدل شی    یا څادر سره درغل شی
په دا کار دِ نهٔ خوښیږی    کهٔ لری ئے مکروه کیږی
کهٔ خښتن ئے نهٔ مومینه    ودرویش ته دِ ورکړینه
چه ویښتهٔ کلوی بنځه    یا ویښتهٔ لنړ وی بنځه
دواړه توکه ناروا دی    کهٔ بے عذره یا پیدا دی
دَ قرآن لوستل روا دی    ترلوړ نوم لوستل زیبا دی
چه نوسیلی په قرآن وی    یا پرے ثبت نوم دَ سبحان وی
کهٔ زیور کهٔ زر کهٔ نور څهٔ    پکښے مهٔ ساته سپین تور څهٔ
کهٔ دَ خونے نه وتښتی    زلزله شی بنهٔ وړغښتی
چه دَ علم بحث کیږی    سکوت بویه چه ئے نغوږی
چه تکیه ولی طعام خوری    یا مکروه خوری یا حرام خوری
خوک چه چاکره میلمه وی    چه وچا ورکه کنده وی
سړی ځهٔ چه سپی پیشو نه    ورکړه بد دی دَ خوړو نه
دَ یوے نمړئ رخصت دے    نړیات تر دا کراهیت دے

که آوند د سیم و زر وي — پکښې خوړې د دین ضرر وي
درس بهتر تر نوافل دے — پړے به پوهه وي چه فاضل دے
تلاوت مکروه تعلیم کړه — په دا کار کار د رحیم کړه
په پېښځه ځایه خبرے — مکروهات دِ شه ترے لرے
یو چه وخت د تلاوت وي — بل چه وخت دِ د صحبت وي
بل چه مړهٔ په جنازه ځي — بل چه ښوک په آوازه ځي
بل چه وخت د استنجا وي — په خطبه کښې ناروا وي
نظر مهٔ کړه پېښځه ځائے — چه دا کار وي د بد رائے
د نمانځهٔ په وخت کهٔ بښهٔ کړے — چپ و راست به نظر نهٔ کړے
د هرچا کره چه ورشے — بدګوهر ته بدنظر شے
په عورت د چا دا پند کړه — چه بربند وي نظر بند کړه
بل چه ښځهٔ ترد احال وي — یائے کم تر تا نه مال وي
په دا دواړه نظر بد وي — چه ئے کړے، مکروه حسد وي
آورېدهٔ دا پېښځه خیزه — مکروهات لرے عزیزه
اول لهوه بازي یاره — بل سرود ورود وشماره
بل نوحه شیون مهٔ واوړے — بل باطل فضول چه آورے
بل چه ښوک د راز ویل کا — غوږداري چه ورته بل کا
دا خبره له ما زده کړه — پېښځه ځایه خندا مهٔ کړه
ښو په ګور باندِ حاضر وي — په تابوت باندِ ناظر وي
چه حاضر په مصیبت شي — چه قادر په تلاوت شي
چه مجلس د علم وینه — یا چه ذکر د خدائے شینه
دا ویل دي د بزرګانو — نصیحت دے مومنانو
چه بے روخ سرے خاندي — خپل حرمت سره وغاندي

چه بے ځایه ښوک خندا کا
لیونے بویه چه دا کا

# لسم باب

## ذکر دَ کفارتونو په څو نوعه

په څو رنګه کفارت دے — چه ثابت په شریعت دے
یو دَ صوم بل دَ ظهار دے — دَ یمین ورسره شمار دے
بل دَ قتل دےاے جا نه — دَ ایلا دے له قرآنه
چه ہم ویلشه دا طرحه — درته ووایم په شرحه
کفارت دَ یمین کوم شی — چه سوګند ترخولهٔ معلوم شی
په دے رنګه یاد سوګند دے — کفارت ئے ناخر ګند دے
چه دیده دانسته لوړی — کار کړی دے بیا لو خوری
کفارت دَ غموس نشته — په توبه ئے خلاصیدهٔ شته
بل سوګند لغو بالهٔ شی — چه لو وخوری یا دهاله شی
چه سوګند ہم په دروغ وو — پریشان شی چه ناروغ وو
چه سوګند په لغو وشی — سوګند خورئے وباخښنهٔ شی
کفارت چه دَ یمین دے — هغه دارنګ تعیین دے
هر سړے چه سوګند وکا — بیا ئے مات کار نور دِ څهٔ کا
یا دِ لس وږی ماړهٔ کا — یا دِ پټ لس په واړهٔ کا
یا غنم په دوه دوه منه — چه ئے خوار واخلی لس تنه
یا دِ یو بنده آزاد کا — نور به خلاص شی زړهٔ دِ ښاد کا
کهٔ دا نهٔ وی روژه بویه — پیوسته درے ورځے څویه
کهٔ په لس ورځے یو موړ کا — هم به کار دَ سوګند جوړ کا
کفارت دَ سوګند وشی — دروغژن خو به بالهٔ شی

## فصل دَ ظهار دَ کفارت

دَ ظهار کفارت بل دے — پرے به پوهه وی چه عاقل دے

وظهار د روژے یاره
د روژے کفارت څۀ دے
ظهار چه دے درته وایم
کۀ عورتے ته ووائے
یائے کیږه یا ورنو نه
په دا واړو مظاهر شی
کۀ ئے خور کړی یائے مور کړی
یائے خواښے یائے نیا کړے
چه روا ورباندِ نۀ وی
تۀ په دا مظاهر کیږی
کفارت اول ادا کړه
په قرآن کښے دا آیت دے
آزادی د بنده ښه ده
کۀ دا نۀ وی بیا طعام دے

کاریکړنګ سره وشماره
کفارت هسے د دۀ دے
لږ و ډیر په دا دانا یم
چه ډمور لنډه په ماے
یا سرین هسے ځایو نه
کفارت وته جوړ زر شی
یا عمه کړے یائے ترور کړے
یائے لور یائے چه دا کړے
هغه رنګ ترخولۀ واتۀ وی
دخول مۀ کړه کۀ پوهیږے
نزدیکی له ښځے بیا کړه
ثابت شوے کفارت دے
کنړه دوه میاشتے روژه ده
په فقراء په چاشت پرشام دے

## فصل- کفارت د ایلاء

کفارت بیا د ایلا دے
کۀ سوګند وخوری اے روره
یا سوګند دا هسے وکړی
یا به زۀ او دا سرونه
کۀ صحبت ورسره وکا
کفارت پرے د سوګند دے
کۀ څلور میاشتے شی تیرے

کۀ پوهیږے ایلا دا دے
چه به زۀ نۀ ملم له کوره
چه دخول ورسره نۀ کړی
په بالښت سره نۀ ږدو نه
په څلور میاشتے کۀ ښځۀ کا
دغه کار د دۀ پسند دے
و نزدے نۀ شی یا چیرے

یو طلاق باندِ پریوزی
قباحت پکښے کښیوزی

# یوولسم باب

## ذکر دَ نکاح دَ استبراء

کهٔ پیدا شي پرستاره | آهوچشمه ګل رخساره
ځوک ئې خپله په بیها کا | یوه میاشت دِ ئې رها کا
چه پوره ئې استبراء شي | بیائې هره چاره روا شي
کهٔ مشکول وي کهٔ جماع وي | ګنړه هومره امتناع وي
چه یوځل دِ وینې وینه | بیا له حیضه پاکه شینه
هغه حیض که شمار شینه | چه په وخت دَ بیها ځینه
داهم عین استبراء ده | نور پرې هره چاره روا ده
کهٔ دَ دوو خوبیندو سودا کا | دواړه خپلې په بیها کا
په دخول یوه رغیږي | بله کله روا کیږي
کهٔ له وینځې فرزند وشي | کهٔ مرده کهٔ زنده ځهٔ شي
کهٔ خواجه ئې نهٔ پسندینه | وینځه هم آزاده شینه
نهٔ روا په فروختن ده | نهٔ روا په بخشیدن ده
کهٔ دخول ورسره کاندي | رواکیږي په دهٔ باندِ
بیائې بل میړهٔ ته ورکا | په نکاح هم دا بنهٔ چر کا
کهٔ اولاد ورځنې کیږي | کار خدمت باندِ رغیږي
چه ښښتن ئې په مرګ یادشي | نور آزاد وینځه اولاد شي
چه آزاده شوه مملوکه | ورنزدې مهٔ شه ملوکه
کهٔ دخول کاندې نکاح | د دهٔ چار ده نامُباح
په ژوندون هم آزادیږي | کهٔ خواجه پرې رضا کیږي
چه ئې بل ته ورکوینه | چه له حیضه پاکه شینه
ورسره دِ دخول نهٔ کا | دَ بل زېږهٔ دِ باندِ بنهٔ کا

کهٔ ئے بیا ورته زړهٔ وشی — په طلاق به بیا دَ دهٔ شی
چه عدت دَ طلاق تیر شی — بیا صحبت ئے په څهٔ خیر شی
عدت درے میاشتے باندهٔ دے — استبراء غوندِ دا نهٔ دے
کهٔ دخول کا بے عدت ته — خلاص به نهٔ وی له شدت ته
مدبره پرستاره — خلاصه مهٔ گڼره له کاره
کهٔ دخول ورسره کیږی — روایت دے چه رغیږی
کهٔ مال ورکا مکاتبه — نور ئے مهٔ نیسه په تبه
کهٔ عاجزه شوه له ماله — بیا پرے ستا حکم دے لا له
دَ بنده غوندِ پرے کار کړه — چه دِ زړهٔ پرے هره چار کړه

## فصل

## ذکر دَ نکاح دَ ایجاب و قبول وغیره

بنځه نر چه سره یار شی — په نکاح سره لوئے کار شی
سره یو تن شی دوه تنه — دا وینا ده مبرهنه
لکه دوه ونے پیوند شی — ترے پیدا دَ میوے خوند شی
چه حلال نکاح مهر شه — وی ترجان ترهرچه خوشه
چه نعمت ترے پیدا کیږی — چه فرزند ورځنے زیږی
فرزندان دی چه شاهان دی — اولیاء هم فرزندان دی
صد رحمت پرے شی میرمنے — چه درے راوړی په لمنے
نکاح فرض دے حُما یاره — له قرآنه له اخباره
کهٔ څلور میرمنے کاندی — په نکاح رحمت ورباندِ
کهٔ یوه که یوه بشه وی — چه یوه ئے اندیښنه وی
په دولت به ورک پیغور کا — چه دوه درے کا یا څلور کا
گڼره ولاړ ترکمر پریوت — چه دَ ډیرو به غم کښیوت
کهٔ څوک ما پوښتی له حاله — یوه هم مهٔ دے اے لا له
چه دوران دَ عالمگیر شهٔ — درست جهان اخته په ویر شهٔ

خپل با ور نهٔ شي په کو ئيتې    څوک به څهٔ کا ندي نور پيتې
چه بادشاه په عقل پور وي    پريشانه تر خلق جوړ وي
کهٔ بالغه حره غواړي    پينځۀ شرطه دي دَ غاړے
يو حضور دَ خواهنده دے    بل حضور دَ دهنده دے
بيا رضا دَ مرد اے ياره    بيا رضا دَ زن وشماره
بيا حضور دَ ګواهان بو يه    يا يو نر دوه ښځے څو يه
کهٔ خندا وکا رضا ده    کهٔ ژړا وکا رضا ده
کهٔ خاموشه وي خوله پټے    هم رضا ده غټے پټے
کهٔ ولي ئے حاضر نهٔ وي    درست جواب دَ ښځے ښۀ وي
ياچه هسے څهٔ څرګند کا    چه رضا غوندِ پيوند کا
کهٔ دَ کونډے ګنړه کيږي    په ښکاره دِ وو ئيږي
دَ کابين طلب دِ وکا    دَ رضا دليل دِ ښۀ کا
په زبان دَ مرد رضا ده    هسے نه چه په ايما ده
کهٔ دَ بيع په لفظ کيږي    هم ايجاب قبول رغيږي
په سرود کهٔ درته وائي    چه فلان کي تهٔ حُمائے
ښځۀ هسے چه څرګند کا    چه رضا غوندِ پيوند کا
دا لا هم ايجاب قبول دے    چه ئے نهٔ مني فضول دے
دَ هلک حکم نور دے    دَ دوئ واک دَ پلار ومور دے
کهٔ دا نهٔ وي بيا نيکهٔ دے    کهٔ دا هم نهٔ وي بيا ترهٔ دے
يا ئے مور بو يه حاضره    چه پرے غوته شي خبره
کهٔ دا هم نهٔ وي اے ياره    نيا وراره ولي وشماره
چه دَ دے ذوالارحام دي    دَ مور پلار قائم مقام دي
کهٔ عمه وي کهٔ خاله وي    چه دا کار پرے حواله وي
دَدے واړو رضا شينه    چه غم خور دَ جينئ وينه
کهٔ يو بل مصلح ولي کا    دَ نکاح کار دِ جلي کا

چه نکاح ئې منعقد شي
نور په نور چا نۀ رغیږي
بنۀ دَ شرع نکاح دا دے
چه دا لور دَ فلان فلانه
مرد ووائي په ژبه
هم په دا کښے کارِ دَ مهر
چه دا هسے نکاح وشي
یا په خلع یا طلاق دے
کۀ کابین ترلس درمه
یاچه نیات وي له دیناره
چه نکاح شي بے کابینه
کۀ دعوٰی وکا پرے بانډِ
کۀ نکاح ورسره وکا
پرے مُتعه واجبه شینه
یو څادر بل پیراهن دے
مُسلمانه کۀ کافره
کۀ جهود کۀ ترسا کا
کتابي کۀ کا مومنه
کۀ جهود کۀ ترسا وي
په نکاح ئې کړه عورته
چه اسلام ورته عرضه شي
اول دین به دِ قبول کړه
کۀ په خپل ملت آشنا وي
بیاچه بنۀ مناکحت شي
کۀ په کار کښے وي ابتره

بنځه نر سره نامزد شي
کۀ ئې کاندي حرامیږي
چه په هر توکي روا دے
په نکاح درکړه ما تا نه
چه قبوله نور دَ دۀ ده
په ویل دِ کا په جهر
غوریدۀ ئې په بل رنګ نۀ شي
په دا دوه توکه فراق دے
کم وي بد شي مکرمه
یا ترلس درمه یاره
شک و مکره کابین شینه
مهرالمثل به ورکاندِ
بے دخوله بیائې نۀ کا
متعه درے خرچوړي وینه
بل مقنع چه مبرهن دے
روانۀ ده برابره
عیب هیڅ نشته روا کا
بده چاره ده عیب ژنه
یا کۀ کبر خوک نساء وي
بویه دا له روا یسته
هر احکام ورته عرضه شي
بیا دِ دے سره دخول کړه
کۀ جهوده کۀ ترسا وي
نور دَ دۀ سره صحبت شي
په خپل دین نۀ وي خبره

دا دَ اهل کتاب نهٔ ده | چه دَ سوال وجواب نهٔ ده
په نکاح نهٔ روا کیږی | کهٔ اسلام راوړی رغیږی

## فصل

## دَ محارمو چه نکاح ئے نهٔ رغیږی

چه حرامے په نکاح دی | محارمے نامباح دی
اول مور دویمه خور ده | نیاو لور ورپسے ترور ده
بیا نمسئ ده بیا وریره ده | بیا خورزهٔ هم ورسره ده
میره هم لکه مادر ده | مبرهنه بشکاره چر ده
خوابنے ترورهم په داشان دی | خبردار پرے مُسلمان دی
چه دَ هرچا وخوری پئ | خوئے دَ رور دَ هغوتهٔ ئے
نهٔ ئے لُور په تارغیږی | خورئے هم ناروا کیږی
چه دخول ورسره وکړے | بدکهٔ لور بهٔ ئے بیاتهٔ کړے
کهٔ ئے وکړے بے دخوله | دَ میرے لور ده قبول
کهٔ و دے ته طلاق ورکړے | لورئے وکړه همه چرکړے
کهٔ دَچاسره عقد وکړے | کهٔ صحبت ورسره نکړے
مورئے شوه په دا حرامه | چه ژوندئ ده لا کلامه
په حلال کهٔ په حرام وی | چه په چا دِ ولاړ تمام وی
یا بوسه په شهوت ورکړے | یائے فرج وته نظر کړے
هم ئے مورشوه لکه خوابنے | لورئے لور پوهه شه کهٔ واشے
ستا دَ خوئ هغه مور شوه | پرے حرامه نور ترګور شوه
کهٔ دِ خوروی دَ عورتے | کهٔ دِ ترور وی دَ عورتے
کهٔ دَ دے خاله وریره وی | په یوه نکاح ګنده وی
کهٔ طلاقه کړی عورته | یا په مرګ شی لته پته

روا وی پس له عدته
له دیو هرچه کړے عورته

# فصل

## دا یه چه په پیؤ محارمے دی

له نسبه چه حرام دی — له شیرهم هسې په نام دی
پښځ که کال روی یا ګوټ وی — په نکاح وبله تروټ وی
د رضاع حکم مسطور دے — په دوه نیم کاله منظور دے
چه ئې ورودہ مادر شوه — لور د دے د ده خواهر شوه
د هغې میړه ئې پلار شه — کار خدمت باندې ئې بار شه
چه د پیو د پسر دے — شه که شوئ ډِ د خواهر دے
چه د پیو برابر دے — شه که شوئ ډِ د مادر دے
په نسب کښې دی حرام — د شیر نهٔ دی بد فرجام
په قرآن کښې هسې دینه — واوره قل للمؤمنین
یَغُضُوا یَحفَظُوا یاره — تهٔ ساته دواړه ابصاره
په څلور رنګه نظر دے — پرے به پوهـ وی چه خبر دے
چه نظر کړه برېنډ تن ته — مرد ومرد ته زن وزن ته
بل چه مرد ښځے ته ګوری — بل چه ښځه مرد ته ګوری
یو نظر ضروری شیینه — بل نظر اختیاری وینه
ضروری نظر د چا دے — د جرّاح طبیب دا دے
په هرځائے چه نظر کا ندِ — اجازت دے په ده باندِ
که نظر ئې په شهوت وی — په اختیار شی قباحت وی
په عورت ډِ نظر نهٔ کا — په هرځائے چه نور کا ښهٔ کا
کوز تر ناف تر زانو پاسه — دا همه عورت دے ناسه
مرد چه مرد وته نظر کا — په شهوت ناروا چر کا
ښځه ښځے ته ئې ګوری — په شهوت غم به پرے ووری
ضروری نظر روا دے — د طبیب که په نساء دے
که نظر ئې په شهوت دے — په هرځائے چه شی آفت دے

که نظر کا څوک ومور ته — یا وخور ته یا وترور ته
یا میرهٔ یا څوک محرمه — په نکاح له موره سمه
که ویښته که ئې باهو وی — که ګردن وی که ئې زووی
نور کاته بده بلا وی — دا یو څو ځایه روا دی
په شهوت که نظر کاندِ — بدګمان وی په ځان باندِ
سکه ومور ته دِ نهٔ ګوری — چه ئې زړهٔ وته وشوری
نور دَ دهٔ معشوقه کیږی — په پدر ئې نهٔ رغیږی
که نظر په میرهٔ کاندِ — په شهوت لعنت پرې باندِ
میرهٔ نهٔ شوه ناروا شوه — دَ پدر دَ دهٔ بلا شوه
نهٔ په دهٔ باندِ رغیږی — نور په پلار نهٔ رواکیږی
که نظر په وینځه وینه — چه په بیع شرا شینه
چه محرم ته نظر وکړے — دا هم هسے که باور کړے
مخ مرووند ویښته ئې ګوره — ساق سینه په شهوت زوره
اول ښه وګوره ننداره — بیا سودا کا آشکاره
که مرئیه دے یا خادم دے — بیګانه دے نا محرم دے
په خاتون که نظر کاندِ — دے دِ لاډیر حذر کاندِ
که میرهٔ نظر په زن کا — سر ترپایه بربنډ تن کا
واړه ښهٔ چه روا کار کا — هسے نهٔ چه سړے خوار کا
که وفرج وته ئې کسی — که په ګوتو کښیے ئې و نیسی
دا همه واړه روا دے — که دوه تنه خوش په دا دے
که دَ ښځے شرم شینه — بویه داچه دانهٔ وینه
په هر رنګ چه نهٔ شرمیږی — هسے رنګے زیست دِ کیږی
بیګانه عورته خوا نه — نا محرمه ده اے جانه
لاس ئې مهٔ نیسه په لاس کښیے — ځنے اوسه په هراس کښیے
که زړهٔ دَ مور په ځائے وی — لاس نیول ئې نور په ځائے وی

که ئې سړی وهي حجام دې
مګر هومره قمیص بڅره کا
هم په لېچ که زړی نمائې وي
زړی ښه نه دې د زنانو
که ژورې نه کوینه
یا رګه یا رګړه ور دړومي
بې رخصته که قدم ږدي
نابینا که ور تله کاندِ
عورتینه دِ سترګې ژغوري

په بل ځائې نظر حرام دې
دَ زړی ځائې برهنه که
ضروري نظر په ځائې وي
نبې ژورې دي یارانو
عورتینې دَ سره وینه
بیا هاله که رخصت مومي
یارئې یارګره ماسم ږدي
نشته عیب په ده باندِ
نابینا ته دِ نه ګوري

## فصل- ذکر دَ طلاق

روایت په اتفاق دې
یو سنت دې بل بدعت دې
بل رجعي دې وئې نغوږه
په دا باب قرآن ګویا دې
چه سنت دې ځما جانه
که دِ ښځه شوه بد ژواکه
نزدیکي ورسره مه کړه
چه عدت ورباندِ تیر کړه
چه دویم حیض پرې تیر شي
چه دویم طلاق هم ویر کړه
نور په درې طلاق ولاړه
که دِ زړه ورته بیا وشي
که هغه ئې کا طلاقه
بیا پرې نوې نکاح وکړه

په څلور رنګه طلاق دې
بل بائن په شریعت دې
پُښنه وکاږه له غوږه
څلور رنګه طلاق دا دې
ته ئې ونغوږه له مانه
چه ښه شي له حیضه پاکه
یو طلاق ورکړه دا زده کړه
بل طلاق به هله ویر کړه
په دویم طلاق به ویر شي
بیا به بل حیض پرې تیر کړه
نامحرمه شوه مرداره
بویه دا چه په میړه شي
نور دِ بیا شي ورته حاقه
چه پوهېږې هسې ته کړه

حلاله دا کار بالهٔ شی ۔ چه عدت تیر کا هاله شی
کهٔ عورته حامله وی ۔ حکم دا دے کهٔ دِ زده وی
چه فارغه شی له باره ۔ دا عدت سره وشماره
دَ بدعت طلاق دا شینه ۔ چه په حیض ئے ورکوینه
یا چه درے طلاقه ورکا ۔ یوځل دا هم بده چر کا
دَ بائن طلاق پوهیږے ۔ خبردار شه کهٔ خبریږے
چه طلاق سرګند ورنکړے ۔ کار په رمز کنایت تهٔ کړے
چه م لا په تا پرانستے ۔ نهٔ ئے نور را سره نشتے
یا ځما په ملک کښے نهٔ ئے ۔ یا دَ مور وُ دَ پلار تهٔ ئے
مامور پلار وته بخښلے ۔ یا نور ګرځه مخ پوشلے
یا م تهٔ آزاده کړے ۔ بیګانه م ئے نوموړے
یا نکاح موسره نشته ۔ یا مُباح مو سره نشته
یا م تهٔ عورته نهٔ ئے ۔ یا پردئ دَ خپل زړهٔ ئے
کهٔ دا هسے څهٔ سرګند کا ۔ چه په زړهٔ کښے طلاق بند کا
چه بائن طلاق وی دا وے ۔ دوه کهٔ نیت که یوا دا وی
کهٔ په نیت کښے درے لرینه ۔ واړه درے طلاقه شینه
کهٔ تهٔ ووائے اے عامه ۔ چه په ما ئے تهٔ حرامه
یا نور زړهٔ حرام په تا یم ۔ په دا څهٔ شی درته وایم
کهٔ دِ نیت دَ طلاق وینه ۔ شک ومهٔ کړه طلاق شینه
کهٔ تهٔ وائے مادروغ وے ۔ طلاق نشی دا تا دروغ وے
کهٔ په زړهٔ دِ طلاق وینه ۔ یو بائن طلاق دا شینه
دا طلاق بائن طلاق دے ۔ دخول بویه کهٔ مشتاق دے
یا دِ لمس ورسره وکا ۔ په بوسه دِ ئے زړهٔ بنهٔ کا
کهٔ حلال دَ خدائے ووائی ۔ چه په ما حرام ونمائی
دا هم هسے رنګه کار دے ۔ ستا په نیت سره مدار دے

کهٔ نکاح میرهٔ ته پریږدی
کهٔ په دائے کا طلاقه
بائن یو طلاق کهٔ دوه وی
کهٔ عدت و ربانډِ تیر شی
دَ بائن نکاح مباح دے
حلاله دَ بائن نشته!
چه بائن طلاق صادر شی
ژکه مور د ځما دله
چه په یو طلاق واقع شی
کهٔ ئے بیا شوه چرے یاده
بل طلاق رجعی دے یاره
کهٔ تهٔ وائے ناچاقه
یا دِ لفظ ترخولے بدر کړو
کهٔ دا هسے ځهٔ ظاهر کړی
کهٔ دِ درے طلاقه دینه
چه عدت بانډِ تیرنهٔ وی
یا دخول ورسره وکړه
وایه تهٔ مِ ئے عورته
یا کنار ورسره وکړه
یائے تن ته نظر بویه
کهٔ عدت پرے ګذاران شی
نوے عقد نوے کابین دے
او نساء وی په عدت کښے
نفقه دِ ورکوینه
رنګ و بوئ جامے رنګینے

یا پُل زر ورباندِ کیږدی
بائن شی له اتفاقه
په عدت عورتینه وی
ترعدته ډیر لا تیر شی
کهٔ ئے کا نوے نکاح دے
مسئله ده بے کا هشته
په دا کار دِ مرد حاضر شی
بیوه کلنئے دَ خپله
نور دِ دے ځنے دافع شی
حلاله ده له اُستاده
تر بائن سپک ئے وشماره
خپلے ژړکے ته طلاقه
چه م تا ته طلاق در کړو
یو رجعی طلاق ظاهر کړی
په زړهٔ هم یو طلاق شینه
رجعت وکړه رجعت بنهٔ وی
په خبره ئے زړهٔ بنهٔ کړه
یائے کښل کړه له بنهٔ نیته
یا درست کار ورسره وکړه
رجعت دا دے ځما خویه
بویه کار دِ په دا شان شی
کار دا هسے شان یقین دے
نشته شک په روایت کښے
په بنهٔ ځائے دِ ئے ساتینه
کهٔ ګډ کینے کهٔ ریښمینے

آرائش دَ ځان خوږ تګ — زیب زینت په خو آهنګ
په عدت کښې کۀ ئې کاندِ — نشته دا په ښځه باندِ
ځان دِ خوار حیران سا تینه — چه و نۀ شی ورته مینه
په رجعی طلاق کښې بو یه — چه جدا نۀ دۀ له شو یه
آرائش دِ ورته کاندِ — ګُندِ باندِ شی پرے باندِ
په رجعت کښے رجعت وی — دَ ګواها نو څۀ حاجت وی
دَ هلک طلاق هیڅ نۀ دے — کۀ ئے ورکاندِ هم څۀ دے
لیونے هم په دا شان دے — چه طلاق ئے بے نقصان دے
کۀ دَ خمر مست مخمور دے — دَ هغۀ طلاق منظور دے

## فصل۔ ذکر دَ طلاق دَ نکاح

دَ رسولؐ دَ خولے حدیث دے — دۀ یاد کړے دا تثلیث دے
کۀ نکاح دے کۀ طلاق دے — دوه شول دا دریم عتاق دے
په ربښتیا کۀ په دروغ وی — کۀ په هزل وی هم روغ وی
کۀ بنده و ته وواے — چه تۀ یار خدائی ځما ئے
کۀ ئے خوئے یائے رود کړے — کۀ بنده ئے ګنړی زور کړے
کۀ دَ چا مریونه سل وی — یا لږ ډیر دا ئے وئیل وی
چه آزاد هم بنده واړه — نور دَ دواړو خلاصه غاړه
مکاتب پکښے خلاص نۀ وی — نور کل خلاص شی خود دَ دۀ وی
کۀ وینځے ته وواے — چه میرمن هم په ربښتیا ئے
کۀ دروغه دا وینا وی — آزادی ئے په ربښتیا وی
کۀ ئے خور کا یائے لور کا — بندګی دِ دور کا
کۀ مور وینځه پلار آزاد وی — کۀ ئے پلار په بندګی یاد وی
کۀ هلک فرزند پیدا کا — خوک دِ وینځه ناروا کا
کۀ ئے پلورے یو ځائے بو یه — چه بهائے شی اے ځویه

# فصل۔ دَ طلاق دَحلالے

چه پردئ په طلاق شي
چه په درے حیضه صفاشي
که زړه وی نا بالغه
که درے میاشتے شي پړے تیرے
که په ذات وی پرستاره
که هلک وی یا پسره
یو نیم حیض دَ عدت دے
که میړهٔ نه پا تو کنړه
په روزګار کښے زړه ځوانه
څلور میاشتے ئے عدت دے
که عورته حامله وی
په عدت اُمُّ الولده
که آزاده په شیوه شي
که درے حیضه په ځان تیرکه
که په حیض کښے طلاق ورکا
که چنغول لیدلی نهٔ وی
که طلاقه ئے کا خویه
نیم کا بین ئے هم رسیږی

سړے بیا دَ دے مشتاق شي
بیا نکاح باندِ روا شي
حکم دا لری دا لغه
دَ نکاح شي بِنے لا ډیرے
دَ دے دوه حیضه وشماره
وینځه اے روشن ضمیره
چه پرے تیرشي نور رخصت دے
زړه ځوانه پیغله غونډه
یا تنکئ جینئ نادانه
لس ایّام پرے زیادت دے
کونډه یا مطلقه وی
په دے حیضه دهٔ نامزده
له خواجه نه که بیوه شي
نورئے زړهٔ که ځوان که زوړ کا
تر عدت دِ ئے بدر کا
دَ چا هسے چنغله وی
دَ هغې عدت هم بویه
پرے دِ هرڅوک وپوهیږی

# فصل۔ لقطه چه څوک بیا مومی

که سړے په لارے درومی
دوه سړی دِ شاهدان کا
چه دا څیز خکه ساتم

ناګهانه چه بیا مومی
دَ زړهٔ حال دِ ورعیان کا
چه څښتن ته ئے ورکړم

قیمت چه د هغه مال وی
هم د درست څرګند احوال وی

مال د وساتی درې کاله
که ئې څوک پیداشی لا له

مال د ورکا وهغهٔ ته
هرچه ورکاند ودهٔ ته

که هیڅوک ئې پیدا نهٔ شی
په درې کاله نور د دهٔ شی

که مال درست واړه په ځان خوری
که ئې درست په درویشان خوری

دے که وی له توانګرانو
به که ئې خوری په ناتوانو

مال که ډیر ترسل درم وی
ترهزار درمه کم وی

پوره کال د ئې ساتینه
هغه پس د ئې خورینه

که ترلس درم تا صد وی
ترهفته ساتل په ید وی

که ګواهان نیولی نهٔ وی
درست تاوان د مال په دهٔ وی

که لقطه هسې ناچیز وی
چه ساتل ئې سهل نیز وی

په فقراء د ئې قسمت کا
ځان د خلاص په روایت کا

## فصل- ذکر د بیع و شراء

پوهه د شرع په هرکار شه
چه سودا کړې خبردار شه

ورته وایه چه څهٔ پیری
په څرګند وایه چه جیری

چه دا څیز پیرم له تا نه
په سل رائې کړه و ما نه

چه د مال څښتن ووائی
چه درکړی دا نهٔ بنائی

مشتری د هم ووائی
چه ماو پیرود دا بنائی

مګر دواړه وخوښیږی
نور د بیع نهٔ غوړیږی

که په لاړه ځی دوه تنه
مسئله د ده مبرهنه

بیعه نهٔ کیږی په لارې
په دا وپوهیږې بارې

مشتری که وشینه
چه ما و پیرود په سپینه

بیا څښتن د مال ووائی
چه خرڅ کړی بها بنائی

که څوک هسې ووائینه
چه لنده لرم مهینه

ما په تا ده خرڅه کړی
بها هم وی د نومړی
مشتری که نور وئیل کا
پس له دے رنګ جامائل کا
پیرودنے و وائیـنه
زده کړه دا بها نه شینه
ولے درنګ په مبیع کښے تیر شه
لفظ د بیعے تیروبیر شه

## فصل د حلال د حرام د بیع

یوه بیعه ده حلاله
پاکیزه د خپله مـالـه
که پیر سود پکښے پیدا شی
په فرمان د خدائے روا شی
خوچه سود د ربا وینه
هغه وارده حرام شینه
چه په ثله خه تلل شی
یا په اوړی پیمائل شی
په دا دوه توکه کښے شینه
ربا نور چرته نه وینه
پس علت د ربا دله
یا په کیل وی یا په ثله
په یوجنس وی دوه څیز ته
که کیلی کا که وزنونه
راس په راس چه برابروی
خرخول د دوئ بهتر وی
که تفسیر ئے له ما غواړے
وایم وادره که پرے ویاړے
د کوړوی غنم اوربشے
دوه کړوی که پوهته شے
دستا دست ئے که خوک پلوری
کارئے روغ دے چه ئے کوری
په نسیا نه روا کیږی
مومنان د و پوهیږی
په دا شان یو من شکرے
په سودا دوه منه کړے
دست په دست سودا روا ده
په نسبا نا روا بیا ده
چه په کیل په تول خه وینه
وارد کار دا هسے شینه
که یو من غنم خوک ورکا
بیا یو من داخلی بهتر کا
که یو سیر پرے زیات اخلی
دا ربا کیږی بد زغلی
که غنم په اوربشو پلوری
دا ربا کیږی بدشوری
که په یو رنغن وکوینه
هم ربا غوند دا شینه

کهٔ دُنیا روړکا وه چا نه    خهٔ چه زیات راکړه وما نه
سوائی کیږی بد کار دے    چه ئے خورینه حرام خوار دے
کهٔ څوک سیم په زر بدل کا    لاس په لاس ورکا اول کا
کهٔ نسیه ئے سودا کیږی    په بها سره غوریږی

## فصل- دَ ګواهی دَ شاهدی

قضیه چه چرته کیږی    څوک ګواهان پرے ودریږی
کهٔ قاضی په عدل کار کا    نهٔ دِ عیب نهٔ دِ دوئ عار کا
په رښتیا دِ ګواهی وُلی    وثواب وته دِ ښ غلی
کهٔ قاضی کار په رشوت کا    په څرګنده قباحت کا
شاهدان دِ ګواهی نهٔ لی    قباحت دے کهٔ ئے وُلی
چه عادل قاضی پیدا شی    بیا دِ هاله پکار دا شی
چه ګواهی په دروغ لینه    پاک رسولؐ وئیلی دینه
په قیامت چه ژوندے شینه    دَ دهٔ ښ به به نهٔ وینه

## فصل- ذکرِ دَ ایمان دَ ښپږ وحصارونو

چه بزرګانو دی وئیلی    هغه واړه ما منلی
دا وئیل دی دَ بزرګانو    تا سے واورئ اے یارانو
ایمان چه دے لکه شهر    ښپږ حصاره لری جهر
دوه دَ سرو دَ سپینو زرو    بل حدید بل دَ مرمرو
بل دَ خښتو بل دَ ګل دے    پرے به پوهه وی چه عاقل دے
چه ئے کوټ دَ ګل محکم وی    کوټ دَ خښتو مسلم وی
کهٔ دَ خښتو کوټ ویران شی    وبل کوټ وته نقصان شی
په هر کوټ چه رخنه شینه    خلل بل لره ورځینه
په ښپږم باندِ چه ورشی    خلل درست شهر اوتر شی

ایمان هم په هسې شان دے
اول کوټ دَ تا یقین دے
بیا اخلاص دے بیا فرضونه
بیا په دا پسې آداب دی
په آداب چه څوک محکم وی
کۀ شیطان په سنت څیرشی
په واجب کۀ خلل کړ کا
فریضه چه خلل مومی
دَ اخلاص په رخنه کړ شی
په یقین پسې ایمان دے

پرې به پوهوې چه پردان دے
سراسر وارہ دَ دین دے
بیا واجب بیا سنتونه
شپږ پورۀ په دا حساب دی
دَ سنت به ئې څۀ غم وی
ستا واجب خلل پذیر شی
فریضه به بیا کړوړ کا
غم اخلاص لره ورد روی
په یقین باندِ به ورشی
خدائے دَ هرچا نګهبان دے

## فصل- ادب دَ طعام دَ خوراک

په طعام کښې څلور څیزه
بیا څلور پکښې سنت دی
دوه څیزونه دارو دینه
فریضه څلور څیزونه
چه روزی له خدایه شماره
چه توانیږے قناعت کړه
په طعام کښې سنت دا دی
تسمیه اول ووایه
چه فارغ شې له طعامه
کۀ بسم الله نه ووائې
چه څۀ خوری وارۀ کندۀ خوری
بیا اول آخر اے عامه
بیا په کینږ نشستن دے

فریضه دی اے عزیزه
آداب هم څلور شهرت دی
دوه مکروه پکښې شمارینه
په طعام کښې داچه شونه
تل حلال خوره بزرګواره
چه قوت لرے طاعت کړه
چه څلور درته پیدا دی
بیاله پسه لقمه بنا یه
بیا الحمد ووایه عامه
نۀ الحمد لله نهائې
یا حرام یا افګنده خوری
دَ لاس وُله پس له طعامه
هنځ پښه برا فراختن دے

ادب دادے ځما جانه — نمړئ کمه خوره له خوانه
په خپل لوری خواړه اخله — مۀ وبل لوری نه اخله
نمړئ ښه سره وژویه — بیائے ونغړه اے خویه
بل نمړئ دَ چا مۀ ګوره — داخلور آدابه ژغوره
چه دَ خوان څخوزی خورینه — یا کاسه طباخ ښتینه
چه دارو دی هغه دا دی — په هرچا باندِ روا دی
چه طعام څوک بویوینه — یا نمړئ پوکوینه
یاچه ګرم طعام خورینه — دا څو توکه مکروه دینه
ابتداء په نمک یاره — انتها په نمک یاره
دا داړو سره وشماره — فوائد لری دلداره
دَ صبا طعام اے څویه — په تلوار خوړلے بویه
دړے فائدے دی پکښے یادے — لا تر دړے نه هم زیادے
یو صفراء له دله وړینه — بد بوئ دَ خولے نۀ وینه
مروّت دَ سړی ډیر کا — نغن دَ نورو خوراک هیر کا
چه دَ بل په خوراک شوری — هغه خپل مروّت پلوری
چه دَچا په دعوت ورشی — چرے نه چه لکه خرشی
ترهرچا دَ وړاندِ مه کا — درست بل برسره چټ پټ کا
چه اسراف کا هغه رد دے — اسراف لا تر بخله بد دے
وبزرګانو وته ګوره — چه دوئ څۀ کا هسے شوره
چه څوک لاس په طعام کیږدی — یا نور نۀ خوری طعام پریږدی
په هرڅۀ موافقت کړه — زر مۀ پس شه مۀ سبقت کړه
یک خوره کۀ سړے خورینه — رنځ علت به ئے نورخینه

## فصل - ادب دَ اوبو دَ څښلو

ادب دادے چه اوبۀ څښے — په دړے دمه بهٔ ئے ته څښے

چه نے نوش په یوه دم ڈ — هغه اوبۀ دے نۀ آدم دے
بسم الله اول وواییه — دَ اوبو په څښنه خوش را یه
کۀ دِ یوه په لار ولاړے — اوبۀ مۀ څښنه په ولاړے
خوک چه کښینی اوبۀ څښینه — رنځ زحمت به نۀ ورځینه
بیا الحمد لله زړه کړه — په اوبو سینه سره کړه
ښے سړے اوبۀ په اوړی — پسے زړۀ یم بوری بوری
دا نعمت کۀ سړے موی — چه یخ آب په اوړی شومی
په هرکوټ چه سپاس نۀ کا — ناسپاس دے کله بنۀ کا
کۀ دَ ماتے کوزے ماءِ خوری — سراسر واړه بلا خوری
چه په مات لوښی کښے څښینه — بد کۀ څښینه یا کۀ خورینه

# فصل دَ خلال

چه خوا رۀ وخورے پسره — بیا خلال ترغابنو وروړه
چه خلال سړے کوینه — فائده ډیره سره شینه
یا دَ ولے خلال خوب دے — یا دَ توت خلال مرغوب دے
چه خلال دَ هرد رخت کا — خود بخود رخنه دِ بخت کا
چه په ژبه نے راوُزی — بنۀ کۀ نفس وته پریوزی
په خلال چه جدا کیږی — په خوراک نۀ روا کیږی
توکول هم هسے بویه — چه نے نۀ وینی خوک څوبه
چه خلال وکا دَ وهاندِ — بیا زولنه دَ لاس کاندِ
آفتابه چه راکښیباسی — پښے لاس دِ نے جارباسی
اول حق دے دَ پیرانو — بیا دے حق دَ عالمانو
په لاس وله هرڅۀ چه کاندِ — کار دَ دوئ بویه دَ وهاندِ

# فصل۔ دَ مهمان دَ ادبونو

مهمانی کول سنت دی
ضیافت چه دَ کریم دے
چه اول ئے میلمه سیرکړ
چه اولاد دَ ابراهیمؑ وی
په اولاد کښے ئے هاشم وو
میلمنو د ته ډوډئ
هشم چه دے په لغت کښے
پیغمبرؐ بنی هاشم دے
څوک چه کا ضیافتونه
اول دا ادب پرے شینه
بل خو توان دَدهٔ رسیږی
بل چه نمونځ ئے ناوخت نشی
په میلمه دی څلور خیزه
هغه ځائے دِ دے کښینینه
نورچه څهٔ ورلره راشی
بل چه اذن بانډِ وشی
بیا چه ځی دَ چاله کوره
په میزبان دی درے شرطونه
تکلّف دِ هومره نهٔ کا
چه په کور کښے څهٔ لرینه
ضیافت هم ناروا دے
پته ئے مهٔ کړه له مهمانه
چه میلمه ته خوارهٔ کیږدی
چه عیال دَ چا محروم شی
و میلمه ته چه ولاړ وی

دَ مرد کار بنهٔ ضیافت دے
دا سنت دَ ابراهیمؑ دے
دهٔ په نغنوئے میلمه تیر کړ
ترقیامته به کریم وی
دَ میلمه په کار قائم وو
ماتوله ده په پېځ
ماتول دَ نغن په ست کښے
په انام ئے فخر هم دے
بانډِ وی درے ادبونه
چه حلال دِ پخوینه
پخول دِ هومره کیږی
مقیّد دِ په نمانځهٔ شی
ادب اے څما عزیزه
چه میزبان ئے کښینوینه
په هغهٔ دِ اکتفا شی
بیا دِ چا کړه ورتلهٔ شی
بنهٔ دُعا دِ وکاروره
څوک چه ورئے شی په خونه
چه یا پور یا ډیرخوارهٔ کا
په مقدار دِئے پخوینه
کهٔ میلمه وته په غلا دے
چه په کور کښے لرےجانه
وعیال ته دِ هم پریږدی
هم بیداد دے هم په شوم شی
په خدمت دِئے جوړجاړ وی

کۀ میلمه ئے یو یا دوه وی
نۀ دِ قهرکا پسر ته
کۀ بنده کۀ خدمتګاروی
په هیڅ دِ غصه نۀ کا
دَ خوړو ېخلے آسان دے
چه په څۀ ئے زړۀ رغیږی
چه په کورکښے څۀ حاضروی
بیا ېخلے دَ خوړو بو یه
ومیلمه وته کم بخت وی
یو ځل دوه ځله ووایه
په میلمه چه الحاح کیږی
میلمانۀ لره هم بو یه
چه وهرچرته نۀ ګوری
په خپل لورطعام دِ خورینه
کۀ اوبۀ کۀ مالګه غواړی
کۀ غوښتل کا میلمه نۀ دے
کۀ څۀ بل منګ یاچه شۀ خوری
په خوشی ئے خوره مهمانه

په خوراک دِ ورسره وی
نۀ دِ قهرکه دختر ته
چه داخل په کاروبار وی
چه ملول دَ میلمه زړۀ کا
راضی توب دَ میلمه ګران دے
هم هغسے کار دِ کیږی
ماحضر راوړل دِ زر وی
چه په وخت ئے وکړځو یه
چه خوارۀ دَ چا ناوخت وی
ډیرخوره خوره ورته مۀ وایه
دَ خست نخشه بنکاریږی
ادب دا دے ځما ځو یه
چه خوړل کاندِ وشوری
لاس دِ کوژ نۀ اچوینه
په نور غوښته به نۀ ویاړی
تاراجی یا نور نوخۀ دی
یا اوګره دَ چا دَ کورخوری
آزار مۀ شه له میزبانه

## فصل دَ مهمانی دَ ثواب

حکم دا دَ شریعت دے
که چه ډیر یا تو میلمه شی
میلمانۀ دوه رنګه وینه
یو خوانده بل ناخوانده وی
ناخوانده میلمه دَ خدائے وی

چه درے ورځے ضیافت دے
چه خوری واړه صدقه شی
پرے دِ پوهه و پوهیږ بینه
چه په خوان ئے نشانده وی
چه خوانده وی ستا برائے وی

چه دَخپل میلمه عزت کړے — دَخدائے به لاحرمت کړے
په هرکورچه ورځے شینه — سړے خپل قسمت که خورینه
دَکاله څښتن نیکنام کا — په لقمه چه ئے خوړ کام کا
تردا بله بِه به کوم وی — نیکنامی ئے ورمعلوم وی
راشه واوره له ثوابه — روایت له بو ترابه
هرسړے چه میلمه دوست وی — چه دَدهٔ به هډوپوست وی
په امان بویه له ناره — که ګناه لری بے شماره
ګورستان به ئے جنت وی — چه ژوندون ئے په قیامت وی
چه له ګوره نه پاسینه — دَدهٔ مخ به روشن وینه
روښنائی به ئے ترماه — دَمخ ډیر به وی آګاه
جنتی براق به راشی — چه دَدهٔ صفت په چا شی
دَجنتی سروپایونه — دَجنت کښلی تاجونه
تاج په سرحلّی اخستے — دَبراق واګے اخستے
وجنت نه به روان شی — په څورنګ به دا شان شی
اویا زره روستو وړاندِ — فرشتے به جلب کاندِ
په دا شان به دَدهٔ تلل شی — په جنت کښے به داخل شی
په محشرکښے به غوغا شی — دا ویل به دَ هرچا شی
چه ئے هسے کروفر دے — مګر دا یو پیغمبرؑ دے
فرښتے به جواب ورکا — په دا رنګ به ئے خبر کا
چه دا مرد پیغمبرؑ نهٔ دے — میلمه دوست وو خکه ښهٔ دے
په دُنیائے چه بخښلی — اوس دا نه دا نه اخلی
نن ئے کارپه کرامت دے — پرے بنائی ځائے ئے جنت دے
چه دَچا کره ورځینه — میلمه داوره هسے وینه
چه آوازئے دَ ښنوآوری — یا نظرئے په دیدار وی
دَکاله څښتن پرے خوش شی — نور حرام په دهٔ آتش شی

په میلمه چه څوک خوښیږي
چه میلمه ته ښهٔ نظر کا
خوځے شاد وي په وزلنه
څو دَدهٔ په خدمت شوري
څو دَدهٔ کره چه خوريږه
څو دَدهٔ په دیدار شادوي
چه میلمه سره لاس نیسي
چه کنار ورسره کاندِ
کهٔ گناه ئے ترشمار تیر دے
چه میلمه له تا نه ځینه
ورسره ځه اُوهٔ گامه
په هر گام چه مقرر شي
څو چه ډیر کیږي گامونه
دَخلد ورونه به پرے واشي
پیغمبرؐ دی فرمائیلي
په جنت کښے به تحقیق وي
چه خالي وي له مهمانه
له فرشتونه به خالي وي

هومره نور باندِ وریږي
هومره بخره به خدائے ورکا
هومره غم به ځي له دهٔ نه
برکت به باندِ ؤوري
گناهونه به ترے ځینه
په نیکئ به دَخدائے یادوي
په خنداشي ورته کسي
خورمی شي په دهٔ باندِ
پاک شي دے کهٔ هر څو ډیر دے
ورسره وکړه تهٔ مینه
مسئله ده له کلامه
باندِ بند دَدوزخ ورشي
ډیر به ډیر موي گامونه
په اُوهٔ گامه سود داشي
په میلمه چه وي بناغلي
بیا به ماسره رفیق وي
اُوهٔ ورځے کورائے جانه
پکښے ځائے دیواوپري وي

## فصل - آداب له کوره واتهٔ په چرته تلهٔ

چه له کوره نه واتهٔ کړے
لکه ښئ پښه وُباسي
په واتهٔ کښے سترگے ژغوره
چه څوک ووینی اے عامه
په خوشئ ښهٔ وُموسیږه

ښئ پښه به بیرون تهٔ کړے
هم به ښئ ننه باسي
یو سر بل سرته مهٔ گوره
پرے ئے مهٔ ږده بے سلامه
لاس ئے ونیسه تیریږه

کهٔ په مخه درشی ښځه | کناره ورځنې ته ځه
مهٔ وَ دے وَته ځهٔ وایه | مهٔ نظر ورته کشا یه
کهٔ دَ ښځې ځهٔ شعور وی | دا به خود له مزده دور وی
په گوشه به کښینی بیا رته | دا به نهٔ گوری خپل پلار ته
چه مردان په لارے نهٔ وی | دَ دے تلهٔ به بیا هالهٔ وی
لعنت څو ځایه وریږی | پرے دِ هر څوک وپوهیږی
یو چه مرد ښځې ته گوری | په شهوت ورته وشوری
بل چه مرد وته کاتهٔ کا | ښځه بے حیا به تلهٔ کا
عاقلان سړی کهٔ ښهٔ کا | ناست دَ ښځو سره نهٔ کا
نهٔ دِ ناست که له کودکو | چه بازی کا له باغکو
نهٔ ناستے له لونډانو | نهٔ ناستے له فاسقانو
نهٔ ناستے له حرص ناکو | نهٔ یارئ له بے باکو
چه له دیو فرقو کښینینه | ډیرے شندے به پرے شینه
دا مثل دَ فرزانه دے | چه مشهور په زمانه دے
چه دَ بدو سره وُسی | کهٔ بد نهٔ کا بد به یوسی
ناستے ښهٔ دے له هوښیارو | له پاکانو پرهیزگارو
چه ځهٔ پند وتاته وائی | تا و ښے لاسرے ته بیائی
دَ هغهٔ صحبت درمان دے | کهٔ قضائے کړے ارمان دے
دَ نمانځه قضا به وُشی | ښهٔ صحبت به بیا رانشی
پُشک کهٔ کړ کا څوک په مښکو | دَ مښک بوئ دروی له پُشکو
دَ دانا صحبت اکسیر دے | مِس دِ زر کا بے نظیر دے
دَ دانا صحبت کیمیا دے | مِس دِ زر کا بے همتا دے

## فصل - آداب دَ نماستی

په نماستی کښے دا ادب دے | ترک ئے مهٔ کړه مستحب دے

بے اودسه نماستے مکروه — په اودس سمله ازده کړه
کهٔ نماستے دِ په آبدست وی — کهٔ شیطان دِ په قسمت وی
فرشتے به په هر لوری — درته کښینی تا به څغوری
درسته شپه به تر بامداده — آمرزش غواړی ساساده
همیشه په اودس وُسه — ډیر ثواب ورسره بوسه
په اودس چه مومن مړ شی — په حدیث شهید نومړ شی
په اودس چه مومن خواب کا — دَ دهٔ ځان پورته شتاب کا
دَ آسمان دپاسه گرځی — په سجود پریوُزی غورزی
خواب مکروه دے په درے وخته — تهٔ ئے یاد لره نیک بخته
یو صبا بل پس له ظهره — قیلوله ده تر منځ ظهره
بل چه نمونځ دَ مابنام وکړی — تر خفتنه به خوب نهٔ کړی
قیلوله دَ وریځے خوب دے — نیمه ورځ فراغت توب دے
قیلوله ده مستحبه — په جواز ده لا عجبه
خوب په دے رنګه یادیږی — چه درے ورځے نماستی کیږی
خوب دَ خلق چه قیلوله دے — وهرچا ته ستوده دے
خوب دَ خلق چه دَ صباوی — دیوانه لره سزا وی
خوب دَ حمق دَ آخر ورځ دے — واحمق دے دَ بدروز دے

## فصل - جواب دَ ونژی دَ عطسی

دَ عطسی جواب واجب دے — په هغهٔ چه مصاحب دے
چه سپاس باندِ ووائی — چه ئے وار وی جواب بشائی
کهٔ عطسه دَ زکامی وی — کهٔ جواب ئے کړه خامی وی
دَ یوهٔ جواب کافی دے — نور مجلس په معافی دے
پیش دستی په عطسه یاره — دواړه و سره ؤشماره
درد دَ گوش کهٔ دَ دندان وی — درد دل لره درمان وی

# فصل

## ادب د سلام

په آیت په حدیث یاره — سلام فرض په ځان وشماره
چه سلام وکاد تا ته — راشه غوږ باسه وما ته
د سلام جواب بنهٔ ورکړه — لا تر ده ئے ته بنهٔ ورکړه
تر رحمت کهٔ دا ثبات کړې — پوهـ ئے اوژد تر برکات کړې
سورکهٔ پلي ته سلام کا — حبّذا کار د اسلام کا
کهٔ سلام کا اِستاده ته — رَونده بنهٔ نشسته ته
ډیرو لږ و ته سلام کا — ځان دِ شاد په دا اکرام کا
چه خپل کور لره ور د روے — په سلام به ثواب موے
ښځې پښه کښیږده د وړاندِ — کهٔ څوک نهٔ وي په تا باندِ
هم سلام دے چه روایه — برکت غواړه له خدایه
کهٔ مسجد خالي له چا وي — هم لازم سلام په تا وي
کهٔ ډیر ناست وي یو پرې ورشي — هم سلام ورباندِ زبر شي
په سلام ئے معافي وي — یو جواب ورکا کافي وي
د دانا د ژبے پند دے — ترشکروئے بنهٔ خوند دے
څوک چه ناست وي سلام وله — ورسره کښینه اے دله
کهٔ د ښو خبرے کاندِ — برکت ووړي پرے باندِ
په صحبت ئے بهره مند شه — په خبروئے خورسند شه
کهٔ د شر کاندِ خبرے — ځنې پاسه زر شه لرے
په اُوهٔ ځایه اے یاره — تهٔ سلام مکروهه شماره
یو چه لوستل د قرآن کا — چه قامت کا یا آذان کا
په نمانځه چه څوک ولاړ وي — د خطبے په فکر ولاړ وي
یا په کار د استنجا وي — یا طعام خوري په غوغا وي
لیوني ته سلام مکړه — مست د میوهلک زده کړه

چه له دے نه بیګانه وی
کۀ په عقل فرزانه وی

وهغو ته سلام بد دے
لا په تیره چه مرتد دے

دَ سلام جواب ئے نیک دے
هم دا هومره یوعلیک دے

# فصل

## وجوب دَ کسب

هم واجب دے هم مباح دے
کسب کله ناصلاح دے

چه حلال کسب څوک کا ندِ
صد رحمت په هغو باندِ

چه له خپله کسبه نۀ خوری
کۀ ولی دے کله بنۀ خوری

دَ ضرور په وخت واجب دے
کسب بو یه چه دستوب دے

چه عیال ئے بے نوا شی
په وبال به مبتلا شی

څۀ په کسب چه حاصل کا
خپل عیال وا ړه خوشدل کا

دا تالاش ئے کا خبر دے
له جهاده برابر دے

په حلال کسب چه ګرځی
بنکته پورته سره غورزی

چه هرپل په مزکه ږدینه
دے به بے مزده نۀ وینه

هره شپه چه سملی ستړے
په صبا پاسی خوب وُړے

چه له خوابه را بیدار شی
دَ بخشلیو سره شمار شی

چه حلال کسب نۀ کا ندِ
پریشانی بو یه پړے باندِ

چه لۀ کسبه بے حاصل وی
دا درے چارے به ئے تل وی

له هرچا به طمع خواست کا
کَس ناکَس سره به زنادت کا

مسرّت به خنے ولاړ شی
برکت به خنے ولاړ شی

خوشامد به دَ هرچا کا
یا به خوار شی یا به غلا کا

دَ هغۀ کسب مُباح دے
کۀ صباح دے کۀ رواح دے

چه ئے قوت دَ ورځے وینه
عبادت دِ دَ خدائے کړینه

جن وانس چه په دُنیا دی
عبادت لره پیدا دی

A.S.KB

# فصل

## مذکور د صحبت د ادبونو

د صحبت ادب هم بويه چه دا چار ده ډيره لويه
دا ونيل د شهسوار دی د زاړهٔ د ځوان پکار دی
څوک چه نوے واده وکړه ناوے راوړی دے دِ څځهٔ کا
وُ دِ کړه له سره ابتده تطوّع دوه رکعته
چه فارغ شی له نمازه بيا دِ بر وُخوری له رازه
په ادب دِ دخول وکا سره دواړه دِ زړهٔ بنهٔ کا
کهٔ روزی ئے خدائے فرزند کا خدائے به دے سعادتمند کا
مرتبے به لوئے مومی د مور پلار به لار به درومی
اول شپه صحبت نهٔ بويه نوے مياشت چه وی اے خويه
کهٔ فرزند ئے کښے پيدا شی دے به تا لره بلا شی
د زند يقو خوئ به کاندِ درست به غم وی لاندِ باندِ
په ميانه د مياشتے جانه هم آخر واوره له مانه
په دا هم صحبت نهٔ بويه چه بدی ده پکښے لويه
چه له حيضه پاکيزه شی بنځه غسل وکا بنه شی
بيا هاله دخول باندهٔ دے د اولاد دپاره بنهٔ دے
په خصلت به خوئ بيکار شی مور و پلار لره آزار شی
اِستاده صحبت هم بد دے د دوابو دے ياد دے
چه صحبت سره وُشينه زوړ ديو سره نهٔ وينه
چه پرے ځان پاکيزه وينه گنړه ډير آفت لرينه
جنگ نفاق به ترميان شی يا طلاق به ترميان شی
د اختر به شپه اے جانه د صحبت چار ده ويرانه
کهٔ د عيد قربانه شپه ده په صحبت باندِ نابنه ده
کهٔ فرزند پيدا د چا شی دے به شوم بخيل پيدا شی

چه باردارة ونه وینه
چه فرزند ئې پیدا شینه
بربنډ ځان صحبت بنهٔ نهٔ دې
درویشی وی په داچار کښې
چه اذان دَچا ترغوږ شی
هغه وخت هم صحبت بد وی
بے وضو صحبت بنهٔ نهٔ دے
کهٔ وضو نهٔ وی قبول کا
کهٔ په ځائے دِ دا ترتیب وی
کهٔ صحبت په تابستان وی
تیره ماه کهٔ په خزان وی
ځان په ډیر غارمهٔ کښې نیسه
صحبت بنهٔ دے په بهار کښې
په پسرلی وینه زیا تیږی
دَ سحر په وخت صحبت کړه
چه ترحلقه سرے موړ وی
چه ئے کاندِ کا ژُخر دے
ناسته کیږه صحبت روغ دے
چه په ورځ په شپه دخول کړے
هر سړے چه صحبت وکا
په بنی لوری دِ زور وکا
چه صحبت دَ وجود تل وی
په تودو اوبو لامبل کړه
دَ سړو اوبو لا مبنه
په جماع پیغمبرا نوٚ

ترسا یه ئے صحبت شینه
یو جلاد خونی به وینه
په ځهٔ پټ شه هال بنهٔ دے
هم په ځان هم په تبار کښې
دَ صلوٰة دَ قامت زوږ شی
زیان دَ ځان زیان دَ ولد وی
له وضو سره ډیر بنهٔ دے
تیبون وکړه بیا دخول کا
سعادت به دِ قریب وی
سرا سر دَ صورت زیان وی
دواړه وخته صحبت زیان وی
بل دَ بنځے رنګ مهٔ کسه
چه ئے کاندِ په ګلزار کښې
په جماع سره کمیږی
په مړه کیږه نفرت کړه
هغه وخت صحبت ناجوړ وی
کا ژُخر په ځهٔ خبر دے
ډکه کیږه نا فروغ دے
په دا شان به کار قبول کړے
پا سیدل دِ هم زر نهٔ کا
یو زمان دِ ځان اُودهٔ کا
په تودو اوبو لامبل وی
اوړے ژمے صحبت خپل کړه
دَ وجود نهٔ ده بساتنه
ځکه مینه کړه یارانو

سخت دلی د رومی له د له — زړهٔ پرے نرم وی هر کله
چه د زړهٔ په آرزو دروی — سخت شی زړهٔ چه آرزو موی
د صحبت په آرزو جا نه — زړهٔ نرمی موی خوشا نه
په صحبت فاسده وینه — له صورته کمه شینه
د شیطان وسواس له دِ له — په صحبت دروی عاقله
چه حلال صحبت دِ نهٔ وی — په زنا ته دِ زړهٔ چوی
څهٔ چه دی حلال صحبت دے — چه په قدر په قیمت دے
صحبت واړه ګل شکر دے — په افراط کښے ئې ضرر دے
چه حلوا وخوری بے رنګه — رنځ ترے بیائی تر درنګه
خوان چه سترے په یلغار شی — نور دخول وکا بیمار شی
چه په حیض کښے ئے صحبت شی — ترے پیدا ګنده زحمت شی
زرد ژیره مشک کافور کا — خوک چه ډیر دخول منظور کا
ډیر دخول سرے رنځور کا — د بصر پیدا فتور کا
خوان کهٔ ځان ورځنے نیسی — په پیرئ کښے به زور کسی
تر پنځوس کاله چه تیر شی — نور بښهٔ نهٔ کا دخول ډیر شی
زور سرے کهٔ ډیر دخول کا — د بصر زیان دِ قبول کا

## فصل - آداب دَ عورتِ دَ میرهٔ دَ زیست روزګار کښے

وصیت دَ مرتضیٰ دے — چه راوی ئې مرتضیٰ دے
چه دِ ناوے په کور راشی — نصیحت دِ ورته دا شی
په اول هفته عزیزه — دا دِ نهٔ خوری پینځهٔ څیزه
یو تریو سیو بله سرکه ده — یو کشنیز بله ګنده ده
پینځم څیز دوړئ سپوره — چه رحم سوړ کا اے روره
له فرزنده شی مایوسه — حمل نهٔ اخلی عروسه
کهٔ په کور کښے زوړ بوریا وی — بښهٔ تر شنړے ښځے لا وی
پکار نهٔ ده ښځه شنړه — کهٔ دَ وازدو لری لنړه

دَجماع په کار ده جانه
دَ زړې صحبت زحمت دے
چه دَ خوارلسو تیریږی
په دا منځ لکه نبات ده
چه بی بی پنجاه ساله شی
چه تر دیرشو کالو ورشی
ترخلو ییښتو چه تیریږی
خصمانه دِ دَ اولاد کا
هسے رنګ دِ سپین سرلوب کا
چه سپین سر پریوزی وتاته
په جماع سره تن سپک شی
په جماع عقل زیا تیږی
دَ سیری ترګرم سیره

لکه نوش ده ښځه ځوانه
دما روش دَ دے صحبت دے
ښځه شلو ته رسیږی
نبات څه آب حیات ده
نور دَ کور په حواله شی
نبات نه ده نور شکر شی
نور دَ کړو په نرخ کیږی
ندارہ دِ دَ داماد کا
چه نور که ګنده آشوب کا
ته مولئ کړه پکښے ماته
بد وسواس له دِله ورک شی
حرارت دَ تن کمیږی
ښځه بهه ګنده ډیره

# فصل
## تعریف دَ عورتینے

وصیت دَ پاک رسولؐ دے
دَ امت نیک زنه واړه
چه میړهٔ لره عورته
تل دِ وُسی خنده رویه
خدائے دِ ډیر ډیر یا دوینه
همیشه دِ غُسل کاندِ
په نمانځه دِ وی حاضره
چه ئے واړه دَ زړهٔ راز دی
تن دِ تل خوشبوئ لرینه
په رنجو دِ کاندِ شینه

چه ئے حکم په قبول دے
په دا کار دِ کیږدی غاړه
دا دِ نهٔ وی بے طبیعته
دَ میړهٔ سره خوش خویه
پاکیزه دِ ځان ساتینه
چه هیڅ چرک نهٔ وی پړے باندِ
په ربښتیا دِ کا خبره
خپل میړهٔ ته دِ آغاز دی
چه بنهٔ بوئ ورځنے ځینه
چه ئے زیب دَ سترګو وینه

چه ئې هر و یښته برېښنا کا — سر دِ هسې جوړ صفا کا
چه دَ ښځې سر صفا وی — دَ شیطان وَ دے ته شاوی
چه نظر ورته شوهر کا — دا دِ مزکے ته نظر کا
چه نظر کا په بل لوری — دا دِ مخ دَ میړهٔ کوری
چه نظر ئې په خپل یار وی — عبادت سره په شمار وی
چه میړهٔ ئې پرے خوښیږی — هسې رنګه دِ کار کیږی
مسخرے خندا بازئ — خوخو رنګه طنازئ
دَ میړهٔ سره دا بویه — خوخو کیږی چار ده لویه
چه شهوت ئې پرے زیاتیږی — هم هغه چارے دِ کیږی
چه طلب دَ صحبت وکا — نور دِ هیڅ عذر ونهٔ کا
چه رضا ئې دَ شوهر وی — هسې رنګ دِ دے چر وی
کهٔ میړهٔ ئې عیب ناک وی — تر نظر دِ دَ دے پاک وی
چه خوک کا ځنې پوښتنه — بد دِ نهٔ وائې دَ دهٔ نه
کهٔ میړهٔ ئې جفا کار وی — هم دِ دے ته وفادار وی
لکه فرض دَ خدائې طاعت دے — هسې فرض دَ شوئې خدمت دے
مرد چه ښځې ته هوس کا — دَ وادهٔ هوا هوس کا
یکباره دَ شهوت جله — پسنده نهٔ ده اوله
دَ اولاد اندیشنه بویه — حفظ دَ مال چه چار ده لویه
صالحه ښځه صاحبه — دَ مال ملک ده هم نائبه
دَ میړهٔ دَ کور غم خواره — کور په دے خوندی دے یاره
په حاضر غائب یکرنګه — زړهٔ ئې خلاص له هره رنګه
ښځه کومه ده بهتره — چه عفت لری پسره
دیانت حیا لرینه — عقل و هوش ورځنه وینه
زړهٔ ئې ډک وی له اخلاصه — له تلپئې له ټګئې خلاصه
فهمیده کوته ژبانه — قاصرات الطرف جانه

دَ میرهٔ په مینه مسته    خپل میړهٔ ته نیسته هسته
کهٔ بل کَس وی لکه کسی    نهٔ ئے ګوری نهٔ ئے کسی
په رموز په هُنر پوهه    زړهٔ ئے خلاص له مکره روهه
په ادب په سترے سترے    کوز کاتهٔ په سرو خبرے
ښځه آزاده حره شماره    نهٔ کم ذاته پرستاره
هسے جن وجان ته ګوره    له ښځهٔ ځایه له ښځهٔ کوره
چه ئے پلار نیکهٔ نامدار وی    هم دیندار وی هم کامګار وی
لکه نیانه دَ فرزند وی    یا نیکانه دَ فرزند وی
فرزند هم په هسے شان شی    په هغه فطرت عیان شی
ښځه کړه له خپله ذاته    نهٔ ناجنس ته بدصفاته
ترځان کوزه کړه یا سمه    نهٔ ترځان لویه اعظمه
په کالونو ترځان کشره    نهٔ په عمر ترتا مشره
هر بهار نوے نګار    کم نهٔ دے تر ګلزار
کهٔ په دا هومره صفته    ښایسته وی خوش صورته
مُبارک دِ دا دولت شه    مبارک دِ دا جنت شه
کهٔ په رنګ کِهٔ وی کهٔ مِهٔ    تربیوه وی بکره بِهه
چورچه غابش دَ بل په سیب شی    هغه سیب لکه آسیب شی
له ښځهٔ ځایه له ښځهٔ ګوره    ګوره دا بله مهٔ ګوره
په دُنیا کښے ښځه عورته    کمه نهٔ ده تر جنته
حکیمانو دی وئیلی!    دُر و لعل ئے دی پیئیلی
ښځهٔ مهٔ کړه پینځهٔ کروهه    چه تل خلاص وے له اندوهه
حنّا نه منّا نه یاره    انانه ورسره شماره
بیا کَیتُ القفا پُر دانه    بیا خِضرُ الدّا مَن جانه
چه اولاد لری له بله    حنّا نه ده هغه دِله
مال دَ نوی میرهٔ خورینه    خوئ لونړه پرے لرینه

متّانه ده هغه کنده　　چه لری خزانه غنده
غره توب په زر په مال کا　　میره وکا باندِ خیال کا
آتّانه عورته دا وی　　چه ئے ښه میره په خواوی
بل میره ورته هیڅ نه وی　　خو په ذکر دَ هغهٔ وی
په مخ ستا دَ بل په شا ده　　زده کړه دا کَیتُ القفا ده
چه حاضر وی درته باغ وی　　چه غائب شی نور دِ داغ وی
مخامخ درته خندا کا　　چه ته نهٔ وے بل آشنا کا
اوس خضراءُ الدّامن واوره　　دَ دا ناکیسه په وار وه
ښائسته صاحب جماله　　آهنګره - ډم - کلاله
یا نیل ګره یا چمیاره　　یا قصابه یا مالباره
لنډی ماره نیکوره که　　بد تباره په خوئ سپکه
مے فروشه بوزه ګره　　زکوتی درویزه ګره
بے حجابه ګرځیدلے　　لره بره غوږیدلے
چه په ذات وی نا اصیله　　په جمال ښکلے وی جمیله
کهٔ په مخ ښکلے لکه ګل ده　　بیا په ذات په اصل غل ده
په ښائیست ښکلے چراغ بل ده　　بیا سبزه دَ مزا بل ده
کهٔ په مخ ښه وی ترماهه　　چه په ذات نهٔ وی دلخواهه
ځما پند تر دِ له یوسه　　دا وُمکړه غرب وُسه
نهٔ یوه په خوئ ښاغلے　　نهٔ دوه درے بدخویه ښکلے
ښځے ټولے خرخشے دی　　دوئ ترو کله ټولے ښے دی
ملوکان کهٔ ښځے کاندِ　　ډیرے ښائی په دوئ باندِ
ښځے دوئ وته بنده وی　　په خدمت سرفګنده وی
لا ملوک لره هم بویه　　چه یوه ښه وی دلجویه

## فصل
## تعریف دَ حمام

د حمام ده ډیره نفعه  تن د سبک کا نرم طبعه
ما زغۀ صاف که مشام وا کا  تن له چوکه نه صفا که
ستوماني له تنه دور کا  زړۀ دننه په سرور کا
پاکیزه کړه زړۀ وینه  صاف کا درست کوګل دننه
خلط جدا کا نډ له تنه  د سود چارئے ده روښنه
په ساړۀ د برد دافع دے  په غارمۀ کښے لا نافع دے
چه حمام لره ورځینه  مره ګیډه بنه نۀ وینه
دے د لوکوتی وخورینه  چه حمام لره ورځینه
په حمام کښے چه تودخان کا  کۀ زر وځی د خان زیان کا
مۀ سړے اوبۀ بیا ګوره  خان له باده نه وژغوره
طعام وخوره بیا اوبۀ څښنه  مۀ ماء هیچا مۀ طعام څښنه
چه بیرون شے له حمامه  هغه ورځ هم شپه تمامه
دخول مۀ کوه اے ځوانه  کنړه نۀ به وی بے زیانه
کۀ جنب وی آهنګ مۀ کړه  مسئله ده دا هم زده کړه
کۀ جنب آهنګ یا کل کا  ویښتۀ دین لره خلل کا
نۀ د نوک جدا کوینه  جنابت چه پکښے وینه

## فصل

## ذکر د ادویات

په دارو کښے چه بنۀ نیت وی  دارو نۀ وی عبادت وی
عبادت په روغ صورت شی  کنړه کله عبادت شی
ما د طب په کتابونه  نظر وکړه په بابونه
چه هر رنځ لره فائده ده  هلیله ده هلیله ده
کۀ درست عمرئے څوک خورینه  هیځ علت به نۀ ورځینه
هم د مرد ده هم د زن ده  هلیله شفا د تن ده
په ترتیب ئے خوره هوښیاره  مصالح ورسره یاره

په ماهي په حمل ځويه | له عسل ئے خوراک بويه
په غوايۀ په جوزا ياره | مله ئے کړه ګړه اختياره
کۀ سرطان وي کۀ اسد وي | له نمکه سود بے حد وي
سنبله وي کۀ ميزان وي | دَ شکرو سره جان وي
په لړم په ليندۀ ښۀ وي | کۀ ښۀ سونډ ورسره ملۀ وي
جدي دلو چه ئے مره کړي | بويه ښه غنيه خسته کړي
نيمائي مصالح بويه | نيمائي هليله رسويه
دواړه توکه سره تۀ کړه | هرصبائي خوړل تۀ کړه
هليله ده اوۀ قسمه | خبرے تۀ له اسمه
کۀ ئے کشم ويل اوږ ديږي | هوښياران به خود پوهيږي
هليله چه ځو خربه وي | پاس په ونه ښۀ پخه وي
ښه درنه په وزن ګوره | هم هغه ښۀ وي اے سوره
چه دوه درے کاله زړه شي | تازه نوے دِ خوږه شي
هليله کۀ پروردة شي | په عسل کښے هم لا ښۀ شي

## فصل

## دَ سترګو دَ دارو

ګرکمن فلفلين وروره | بيا دَ کانړي مالګه ګوره
يا بيرنګ سونډو کو تۀ هم | يا رهمي بج و چتره هم
دَ نِم پانړے موته وياړه | دا دارو دَ سترګو غواړه
داهمه برابر جانه | واخله نوله شه دوکانه
ورسره دَ بزے متيازے | نورخۀ هيڅ نۀ خويوازے
دَ متيازو ئے تۀ آس کړه | ترګولئي سازے په قياس کړه
په سايه کړه ګولئي اوچے | چه کمترے وي تر پچے
سائيده کۀ له اوبو شي | ستا به سترګو پورے تروشي
دَ نزول مرض به ورک کا | په فرصت به بيمارسپک کا

کۀ شهد له روغنه
پورے کیږی ده روښنه

دَ تپل مرض به دور کا
خوش به زړه به دا رنځور کا

له هندی سرکے اے یاره
کۀ ئے پورے کا خو واره

چه دِ باد یا یرقان وی
دَ بیمار به ورک آسان وی

کۀ ئے پورے کړه له بوله
خلاص به شی دَ سریش له هوله

دَ بنګرے له اوبو یاره
شبکوری وړی له بیماره

کۀ دَ بنجے پئ پرے کړه کا
دَ لیمو کل به کړه وړه کا

کۀ یوه پوړئ وخوری
دَ منګور په وش به ندمری

کۀ پوړئ وخوری خوک خوارلس
سم خوړلی لره دی بس

## ایضاً

کۀ رانجۀ سرے تاودۀ کا
اطریفل سره اوبۀ کا

پکښے ډوب تاودۀ رانجۀ کا
اوۀ ځله دا رنګ وکا

په دا رنګ دَ بنجے پئ
اوۀ ځله ډوب به دے

بیا دواړه بښه میده کا
په لیمه دِ سائید کا

چه دَ سترګو هر زحمت وی
په رانجۀ به ئے صحت وی

## ایضاً

غوړ دَ غواچه زاړۀ ډیروی
ده ساله یا تر ده تیروی

هغه هم بښۀ دی هر ګوره
دَ لیمو زحمت ته روره

مامیره هم په داشان ده
چه دَ دوؤ سترګو درمان ده

## دارو دَ سترګو دَ کدورت

کۀ سرے په سترګو تت وی
دَ نظر ئے تفاوت وی

اول سنګ بصری یاره
مهلطی دویم وشماره

بیا دریم غنیمۀ خشته وی
ځلورم دارچینی بښۀ وی

بیا پینځم آمله ده
فلفل ګرد بیا بلیله ده

بلبله چه بنهٔ پخته وی
دا اُوهٔ واړهٔ سره کړه
چه په وزن په تول سم وی
له سرو او بوئے کډ کړه
خو حبه گولئ کړه سازے
څهٔ حاجت دَ هغه کس وی
له او بو دِ حل شی
داعمل دِ په عشا کا
ورته بنے سرے او بهٔ وی
کدورت به ئے او بهٔ کیږی

چه ماغزهٔ ئے دَ خسته وی
بیائے بنهٔ سره میده کړه
نهٔ دِ زیات وی نهٔ دِ کم وی
بنهٔ ئے تهٔ سره گډ وډ کړه
واړه گردے نهٔ دے ازے
خو یوه گولئ ئے بس وی
چه په سترگو کښے ئے تل شی
دَ بصر وُلهٔ دِ صبا کا
چه دَ سترگو ولهٔ پرے بنهٔ وی
بنهٔ دی دا دارو خو کیږی

## د دارو دَ سترگو دَ نزول چه آب مروارید ئے بولی

دَ نزول علت بلاوی
چه جراح ئے پرده وا کا
مایو نقل دے لیدلے
هغه نقل درته کښم
دَ دوهو وازده حاصل کړه
دوهٔ سر وازده گډار کړه

دَ چا مهٔ شه لا دوا وی
مګر هاله څوک بینا کا
په "شفاء علیل" کښے کښلے
زهٔ له خپلو نهٔ وایم
فراشتک مرغئ بسمل کړه
چه ښکاره شی بیائے ساز کړه

## دارو دَ نزول یعنی آب مروارید

دَ نزول دا بنه دوا ده
بنه توتیا نیلا توتا وی
چه تول سم سره میده کړه
تل دوه دریه میله آخله
چه دَ درست زحمت وُرکیږی

کهٔ دَ رنځ په ابتدا ده
چه بنهٔ شنه وی بے همتاوی
په بصر کښے ئے سیده کړه
بیا پرے خوب وکړه سمله
په بصر دِ پوره کیږی

تر دا پورته دارو نشته
په دُنیا کښې کۀ هر څۀ شته

## دارو د یرقان

دارو د یرقان دا دی
کۀ یې وګورې آسان دی

پښتانۀ یې زیړه بولی
سرې زیړ پریوزی له غولی

او سپین خرې چه ډیر زوړ وی
دې علاج ته هغه جوړ وی

تۀ یې واچوه په اور کښې
بښۀ سوړ کړه په تنور کښې

واخله بیا د غوا متیازې
نور څۀ هیڅ نۀ خویوازې

په متیازو کښې یې جوړ کړه
اُوۀ څله یې تود سوړ کړه

چه بښۀ سوړ شی بیا یې آس کړه
یو درم څښې په لاس کړه

چه ناشته یې په هفته خوره
اُوۀ ورځې یې پوره خوره

بیا یې بله هفته جانه
خوره له شهده له روغانه

شنوبې هم ورسره بویه
غوړ شنوبې د غوا اے څویه

د صحت طمع اُمید کړه
بښۀ دارو دی اعتمید کړه

## علاج د پشِک

د پشِک دارو دی جانه
تۀ یې وُنغوژه له مانه

کنبیله تور وا نجو دواړه
سره آس کړه وُیې نغاړه

هره ورځ ترې لږ واخله
د کنځلو تیل هم دلـه

دا دارو ورسره ګډ کړه
بیا یې بښۀ سره ګډوډ کړه

په پشِک یې کړه تۀ پورې
نفع سُود به یې وګورې

هغه د رنګ ناستې پۀ نهر کړه
یو څو ورځې دا اکثر کړه

خدائے دِ روغ کړه له علته
پا تو بښۀ شې بے صحته

## دارو د ګنده دانې

کهٔ دَ چاګنده دانه وی
چه زرداب ئے نشانه وی

چه ئے زیړے او به دروی
زیاتیدهٔ کاخاربښت موی

واړګونه اغزی لرینه
شته بوټے هرځائے شینه

په هندکو اَپټ کنده دے
فارسی خارَ واړګونه دے

چه ولی ئے دی ترے لاندِ
ملوکان ترے مسواک کاندِ

دَ دهٔ پانړے بښے میده کړه
بیائے پورے په دانه کړه

مجرب دارو دی جانه
تهٔ دا وُمنه له مانه

چه خوټله ئے کړے پورے
رنځ به ورک شی خود به ګورے

کهٔ دَ چاګنده دانه وی
دَ نښتر ژاوله هم ښه وی

دَ مولو تخم هم ښهٔ دے
دے زحمت لره بدنهٔ دے

دَ اوبو سره ئے آس کړه
په دانه ئے پورے پاس کړه

## دارو دَ ټوخی

ښه پخه کرکنړه ګوره
څنے زړی ئے واخله روره

هغه زړی ئے بیا وراټهٔ کړه
آس ئے ګړه له ګبینه کړه

دَ هر ټوخی دارو دا دی
چه آسان دارو دی دا دی

## ایضاً

پانړئے بیغ واخله دیغی
چه ورته ئے ګرځو ورځی

دا دارو خوره په نهاره
شهد هم ورسره یاره

## نورهم

دَ سیارِ دوا دوا ده
تجربه ئے په هرچا ده

دَ خرے پئی خښه په نهاره
خو دِ رنځ دروی بیماره

## دارو دَ استسقاء

استسقاء دَ چا ومهٔ شه
کهٔ ئے وشی دائے زده شه

تل دِ خښنی دَ اوبنو پئ
نۀ خواړۀ نۀ دِ اوبۀ خښنی
استسقاء هغه زحمت دے
دَ سړی کیږه مشکے شی
لاس و پښے نے ویږ سیږی
دارو هم دَ استسقاء شته

ورځو شپه تته تښتئ
خو دا پئ دَ ناږه خښنی
چه کنده ترهر علت دے
ډک په زیږو اوبو دے شی
په رنګ زیږ بلا ښکاریږی
خو دَ اوبنو پئ رسا شته

## دارو دَ نۀ چړولو

واخله سنځاوږه بیماره
دواړه سم شپږ شپږ درمه
زنجبیل دولس درمه
هلیله اتلس زر ده
کته شل خلور درمه
واړه بښۀ سره میده کړه
دوه درمه هر صبا خوره
کُنډ وی چه رنځ دِ ورک شی

پلپل دراز ورسره یاره
هنځه هم درواخله همدمه
جوائن یا نزده اکرمه
حبّه یو درم باور ده
واړه یو ځائے کړه پرغمه
په تودو اوبو دازده کړه
پرے لطیفه غذا بیا خوره
په صحت دِ وجود سپک شی

## بل رنګ

لونګ ویشوه جانه
دَ لونګو اوبۀ نوش کړه
نۀ ځړدل په دا ورکیږی
شوه په دوه درے رنګه
کۀ ناشته نے هر صبا خوری

دوه درمه اے پردانه
بښۀ دارو دی له ماګوش کړه
قے لاهم په داکمیږی
آس پرے کړ ډے له فرهنګه
بښۀ اعلیٰ کۀ تل داخوری

په زورِوالی په برنا وی
خورنده به ترهر چا وی

# دارو دَ قوت باه

وا ړه سونډ غنیه خشته وی
چه دَ تی دیا ره بنهٔ وی

دواړه سم دوه دوه درمه
کنډ کیږئے کړه همدمه

په اوبو کښے ئے په جوش کړه
پرے شیر کوے اوبهٔ نوش کړه

# دارو دَ قوتِ باه مباشرت

نک چھکنی ادرک دلداره
دَ غوا پیئ سره کړه یاره

تاوده ئې په پئ دِ اومهٔ وی
چه ئے ښئے قوت ته بنهٔ وی

سونډ جائفل کبابه جانه
دارچینی واخله پردانه

داخلور دوه دوه درمه
چار دَ واړو په تول سمه

بیا لونګ عاقر قره هم
یویو داکړه ورسره هم

کُندر وچو پنځه درمه
بیل بیل آس کړه داهمدمه

دا دارو شی اُوهٔ خیزه
چه ئے وشمارے عزیزه

په عسل کښے ئے معجون کړه
وایم ته ئے خوراک چون کړه

دوه درمه په صبا خوره
دوه درمه په مسا خوره

ذوق به دِ یرموے خوشورے
خځهٔ به وایم خود به ګورے

کهٔ دِ یرسوړئے داهالهٔ کړه
غم خوری دَ خپل کالهٔ کړه

# داهم دَ قوتِ باه دارودی

دارچینی لونګ اے یاره
بیا عاقر قره دلداره

زعفران داخلور خیزه
برابر سره عزیزه

خځهٔ خو مشک هم ورسره کړه
واړه بنهٔ سره میده کړه

ګبینهٔ سره ئے ګډ کړه
ته ئے بنهٔ سره ګډ ورځ کړه

ګوله سازه کړه خو بیرے
په حساب یا تیرو بیرے

په ساعت دَ صحبت روره
دا دارو دی بے آفته
ښځه نر سره راضي شي
چه تر دانه ډیره ښه ده

یوه وخوره ګوله ګوره
خالی نۀ دی له لذته
ښځه لا متقاضي شي
کۀ ئے خورے فلاسفه ده

## معجونِ نبیؐ

فلفلین واخله اے جانه
زنجبیل وقرنفل هم
برابر په وزن واړه
چه بیل بیل سره آس کړے
کۀ په تول دا اتۀ توکه
قندخلور شیر شاهي بویه
اوۀ ورځے نګاه کړه
دوۀ درمه په خفتن خوره
دا دارو لکه سرۀ زر دے
هم صحت دَ تن پیدا کړه

فلفل مول دَ خولنجا نه
یکهرمول دیبا کهل هم
کُشے کُشے وُنغاړه
بیا یوځائے بۀ ئے تۀ ناس کړے
شرشاهي شي دماړو که
سره ګډ ئے کړه اے خُویه
پرے عمل صبا بیګاه کړه
دوۀ درمه په خواستن خوره
هر نرحمت لره بهتر دے
هم قوت دَ تن پیدا کړه

## علاجِ مردِ بسته

کۀ دِ سسته شي خنډه
په ښي لاس کښے ئے ونیسه
په خُلمي چه شرم زور شي
دارچیني په خولهٔ کښے ژویه
ستا ذکر دِ ستا نګاره
دارچیني دِ باندِ مرږي
دا دِ کا بوس و کناره

واخله بیخ دَ مرونډه
ورنزدے شه [illegible] کسه
له حجابه ډکه خور شه
په ذکر کړه وژکه تویه
په خپل لاس وُنیسي یاره
ګُنډِ ګرم شي ستا شزی
په هوس کا له [illegible] یاره

خپل ذکر ورکړه په خوله کښې
چه ئې خشی عشق په زړه کښې
چه حجاب شرم ورکیږی
هسې رنګه دِ څهٔ کیږی
چه ځلمے حجاب زده وی
په دا مرد شی که چازده وی
معشوقه بویه طنازه
چه دَ مرد سره شی سازه

## دارو دَ بواسیر

یو څمڅوټے دَ شجر دے
په خنسر یو کښې مضمر دے
په خنسر یو کښې روان څی
حنس چا پیره دوه ترجان څی
کهٔ هغه واخلی بیماره
لږ ژور وکړه اے یاره
پکښې واچوه سکروته
کهٔ وړی وی که چه غټه
په سکروتو څمڅئ کیږده
ومقصد ته ئې ورپریږده
باندِ کښینه تر ساعته
مویشی کا لته پسته
په څو ورځې دا علاج کړه
له زحمته ابتهاج کړه

## دارو دَ نفس دَ خلط دَ هر خلط وا شتها و پیرول دَ رنګ دَ ښهٔ کیدل

هلیله څلور درمه
په حساب تهٔ بیش وکمه
پترج لس درمه څویه
ناګ کسیر هم هومرهٔ بویه
دوه درمه زیره توره
شل درمه دَ هنیه ګوره
فلفل دراز انباله بیدهم
شل شل دا سیه سفید هم
شل درم دَ کلوی وی
شل شل دَ نور سماق پرتوی وی
داهمه شی اتهٔ خیزه
چه ئې وشماری عزیزه
داهمه سره میده کړه
بیا همه سره پخته کړه
دوه سوځل درمه ګړه
نهٔ چه بیش و یا کم ګړه
ځنے سازه کړه ګوله
په مقدار دَ بهلوله

هره ورځ په ناشته خوره
په آغاز ئے دشتا خوره

طبیعت به دِ صفا کا
خلط به لرے واړه ستا کا

که دِ رنګ په زحمت زردوی
یا دَ نور دَ ګیډے دردوی

دابه واړه ځنے دور شی
په صحت به دِ مخ سور شی

اشتها به دِ شی ډیره
خورنده به شی تر سیره

## دَ نفس خوړی دارو

بنهٔ داروی دا دَ ګیډے
که دِ درد شی دا دَ ګیډے

انګزه سپرکه چوکهار هم
نمک سنګ واخله اشخار هم

بنهٔ خربه هلیله ګوره
پوست ئے واخله دما روره

دا بینځه توکه همدمه
سره واړه دوه درمه

اوبهٔ واخله خلور سیره
پرے دَ اور لنبه کړه تیره

سره واړه جوشیده کړه
نرم اور پسے سیده کړه

چه نیم سیر اوبهٔ شی پاتے
اوبهٔ نهٔ وی کم د زیاتے

بیا پرے ګډے کړه شکرے
په ناشته به ئے ونغرے

## ایضاً

اطریفل زنجبیل یاره
خلور توکه شی وشماره

سره واړه دوه درمه
برابر واخله همدمه

بیا اوبهٔ خلور آثاره
پکښے جوش کړه ځما یاره

چه نیم سیر شی اوبهٔ پاتے
په حساب نه کم د زیاتے

تهٔ ئے ونوشه شیر ګرم
پر کوله شی ترم ترم

خوږ نفس ګوله ورکیږی
دا دارو دِ هومره کیږی

## دارو دیګر

دَ کهیل ولے اے ځویه
چه بنهٔ نفع لری بویه

نهٔ ئے کیږے لره بیائے — خس ئے مهٔ نغره خوش رائے
چه دَ کیږے درد علت وی — په دا کار به ئے صحت وی
دَ نفس کاهلی په دا درومی — بیمار زر صحت بیامومی

## فائده

کهٔ سپیرکئے شکرے سمے — سره آس کړه پیش و کمے
یو یو کف په هر صبا خورے — په درست کال همیشه دا خورے
هر زحمت په دا ورکیږی — پرے قوت دَ مرد زیاتیږی
دا ویل باور له ما کړه — بیائے تهٔ تجربه بیا کړه

## جلاب

هلیله نسوت دا دواړه — دَ نیلتی تخم وغواړه
سره واړه دوه درمه — سم میده کړه اے همدمه
له تودو اوبوئے نوش کړه — نور خوراک پرے فراموش کړه
چه فارغ شے یوځو لاسه — بهت شوروا وُخوره پرے پاسه
چه خوبږه شوروا دَ مزهٔ وی — نهٔ دَ غوا نهٔ دَ نورخهٔ وی

## دارو دَ جاونی دَ تبے

چوب ناز چریته دواړه — پا نسه سونڅ کشنیز دا دواړه
سره سم دوه دوه درمه — چار سیر ماء واخله همدمه
سره واړه جوشیده کړه — چه نیم سیر اوبهٔ بنے زده کړه
اوبهٔ کږے کړه په شهد — په خوراک ئے وکړه جهد
خو رغیږی دا دارو کړه — دَ شفا په لوری رو کړه
دَ جاونی تبه به دور کا — بیماران به پرے سُرور کا

## دا دارو هم مسهل دی یعنی جلاب

هلیله کابلی مرده ! — واخله بیا هلیله زرده
وریپسے هلیله توره — بیا دهنیا واخله اے روره

تج کاږهٔ ویلنی دواړه
دَ نیلی تخم وُغواړه
گلِ لعل اے اکرمه
هرکدام پینځه درمه
مصبّر نسوت دا دواړه
هر یو هفت درم وغواړه
دا دارو واړه وشماره
لس څیزونه شی اے یاره
واړه کُشی کُشی آس کړه
دَ غلبیل ئے کوزو پاس کړه
بیا ئے گډ په گبینه کړه
سره بنهٔ ئے خمیر تهٔ کړه
لکه زړے دَ کرکنړے
گولئ وکړه گردے پلنے
چه دَ شپے په وخت څملے
په دهن به یوه وے
پړے اوبهٔ گوته شیرگرمے
چه گولئ کا ترمے ترمے
یو خو شپے داهسے کار کړه
دَ گولئ خوراک وار وار کړه
دا گولئ به یو خو دسته
داخلاط بلا کا پسته
کهٔ زحمت دِ دَ سودا وی
پړے بهٔ خی کهٔ دَ صفرا وی
دا جلاب مفید جلاب دی
صفت شوی دَ هر باب دی
پړے خوراک وریژے ماستهٔ خوره
نمک سنگ ورسره تهٔ خوره
ورته کړی زیره سپینه
دَ مستو سره دِ وینه
کهٔ اثر دَ اسهال کم وی
پړے نسوت دَ زیات درم وی

## دَ وجود دَ باد دارو

گوره لوبیه مروندئ
نهٔ تازه نوے لنډئ
دَ دے پا نړے کړه نچوړے
اوبهٔ بیلے کړه ترے جوړے
په مقدار پینځه درمه
اوبهٔ بس دی اے همدمه
پړے اُوهٔ درمه پئ
دَ غوا گډ کړے په دوئ
دړے درمه غوړ دَ غوا هم
گډ دا خوره په هر صبا هم
خودِ باد دَ تن ورکیږی
دا دارو دِ دایم کیږی

## دارو دَ باد لقوه

کهٔ دَچا پیدا لقوه شی
مخ ئے کوږ خوله ئے کږه شی
دَ بیمار ساتنه بویه
کرم ځائے تاریک اے ځویه
آ غوستن دِ پوستین وی
خورد دِ نان وانګبین وی
درست جائفل دِ په غابښ نیسی
دَ خدائے فضل ته دِ کسی

## دارو دَ خفته باد

دَ بنګرِ دِ لے هم بنه ده
خفته باد لره فائده ده
کهٔ په سیوری ئے کړے وچه
په مقدار کښیے لکه پچه
له تودو اوبوئے نغرے
هرصبا زحمت کا لرے

## فائده دَ سپیلنو

سپیلنی دارو دی جانه
نشته بنهٔ تر دا درمانه
کهٔ دَ سُوده ئے خبر شے
په خوراک به ئے تل سر شے
برص پسے دَچا ومهٔ شه
کهٔ ئے وشی دائے زده شی
یو مثقال دِ ئے تل خورینه
چه زحمت ئے لرے شینه
کهٔ ئے تل سیزی په اورکښیے
تل به نهٔ وی په شرشور کښیے
چه دیوان وی یا پیران وی
همیشه به دے امان وی
په خوړلو هم په سولو
سودئے ډیر دے ترویلو

## دارو دَ بول بسته

دَ خِنی ګل درے درمه
دَ بادرنګ زړهٔ ئے اکرمه
دا خلور درمه تول کړه
همه واړه سره تول کړه
واړه بنهٔ سره میده کړه
اوبهٔ ګرمے ور سره کړه

چه ئے بنکته کړے تر کومی
پرے به بول بسته درومی

## دارو دَ سنګ مثانے

سها که خوګړ کوړ زېږی
له تودواوبو چه نغړی
که څلویښت ورځے څوک خوری
رنځ دَ سنګ مثانه وېړی
دے زحمت لره یو سنګ دے
لکه پچه تور په رنګ دے
چه ئے حجر الیهود بولی
دَ طلا په نرخ ئے تولی
چه بیمار ئے سولوینه
په صبا صبا ئے خورینه
چه ئے سنګِ مثانه وی
توئ په دے دانه دانه وی

## دارو دَ پرمیو دَ زحمت

اطریفل کوړ کمن سیاره
چوب ناز مشکک دلداره
بیا کلوی، کتله، پاپړه هم
دَ منړے ولے ترخه هم
داهمه برابر بو یه
واړه بنهٔ سره ورسویه
ګبینهٔ سره ئے ته خوره
پرے لطیف لطیف خواړهٔ خوره
تردا بِه به دارونهٔ وی
دَ پرمیوکهٔ هرڅو بنهٔ وی
په څو قسم پرے دینه
رنځ دَ واړو په دا ځینه

## ایضًا

واړه توره بنګره لوی
آمله زرچوب هم به وی
داهمه سره میده کړه
له نباتو سره ئے سرهٔ کړه
په دا هم دَ پرمیو درد ځی
هم دَ ښځو هم دَ مرد ځی
دَ دارو یو کف نهار خوره
پرے خوراک روستو په وار خوره

## دارو

دا درے ځیزه ډیر مفید دی
دَ دانا دی دَ سعید دی

یو جد وار خطائی دی
چه داروئے عطائی دی
نر بسی ئے هندوان بولی
دَ طلا په نرخ ئے تولی
بل تل تل کهٔ دارچینی خوری
نفع سُود به ترهنی خوری
مصطکی هم تنها شوی یه
نفع ډیره لری خو یه

## علاج دَ دردِ سر

کهٔ تازه ماهی ښوک واخلی
کهٔ روهی وی لا بهتر
اندرون ئے درست خالی کا
آلایش ئے کا بدر
دَ مروه په پاڼړو ئے ډک کا
دَ دهٔ کیږه درست جگر
بیائے کیږه سره کوک کا
چه محکم شی لرو بر
دَ کُنجد په تیل ئے پوخ کا
چه ښهٔ پوخ شی سراسر
بیا دِ پوخ ماهی راواخلی
له روغنه گرم تر
په طباخ کښے دِ ئے کیږدی
چه غوړی شی ترے بدر
بیا دِ صاف هغه غوړی کا
په شیشه دِ ئے کا در
په صماخ کښے یوڅو څاڅکی
یا په پوزه کښے اندر
چه دَ درد څښتن دا وکا
پرے ورکیږی درد سر
کهٔ هغه ماهی ښوک وخوری
سود دَ باد لری بیشتر

## فصل

## فائده دَ وینے دَ وښکو

فصد سرې لره نافع دے
دَ هزار علت نافع دے
کهٔ سرسام کهٔ برصام دے
کهٔ دَ شنجیو دا نوم نام دے
کهٔ سکته ده کهٔ سنبات دے
کهٔ دَ تب څهٔ آفات دے
یمن والی کهٔ جُشه وی
کهٔ دَ خولے بده مزه وی
بد بوئی دَ خولے یا وینے
چه ئے پاس یا کوزے وینے
کهٔ خُناق کهٔ مفاجا وی
له فاسدو وینو دا وی

چه وکا بری له قیفا له
هفت اندام وی که قیفال وی
تر پنځوس چه عمر تیر شی
په پسرلی په منی بنه دے
درد و کام آماس د کومی
فصد جلاب دا دواړه ښیزه
بل غشیان ورسره هم دے
څوک چه کا دا دوه درکار ه
چه د هر زحمت دوا دے
په ډیر رنګه جلاب کیږی
بنه جلاب د هلیلے دی
عام وخاص لره چه بنه ده

وینے لا بنے وی اے لا له
فصد د هر کله هر کال وی
د فصد کار د نه لری ډیر شی
فصد په بل آوان بنه نه دے
په هر ځائے علت د سپومی
لازمی ګنړه عزیزه
هره میاشت غشیان لازم دے
تل به خلاص وی له آزاره
فصد جلاب غشیان هم دا دے
هوښیاران به پرے پوهیږی
د تروی هم ورپسے دی
بنه تازه جمال کوته ده

## فصل
## ذکر د عورت د حمل

بارچه واخلی عورتینه
نه د ماره په سترګو ګوری
نه د دروند بیتي آخلی
نه د پاس په بام وخیژی
نه د درومی وحمام ته
چه ترخه یا باد انګیز وی
دارچینی د هم د برنه خوری
په جماع کښے د ځان ژغوری
رګ وهل که حجامت دی
که لطیفه غذا خورینه
که فرزند ځنے جدا شی

د فرزند شی خزینه
نه د لوړ په زور شوری
نه د زور کا نه د زغنی
نه د قهر غصه کیږی
نه د زړه کا تریو طعام ته
له هغو دے پرهیز وی
هر طعام د هم سیر نه خوری
چه پرے نه ورنه شی نه شوری
دا هم دے لره زحمت وی
خوږ خیز هم فائده لرینه
هم د دے د دا دوا شی

معجونات دِ ګرم خورینه — له هوا دِ ځان ساتینه
زعفران دِ له عسل خوری — هم دِ ماءِ دَ سپین بصل خوری
په خپل وخت چه لنګه شینه — په اوبو کښې دِ کښېنینه
اوبهٔ ښې دَ بنفشه دی — مرز نجوش دَ پودینه دی
کهٔ ملغوزے کهٔ بادیان دی — دا همه راحت دَ ځان دی
چه اوبهٔ کا دَ دوئ ګرمے — کښینې زنځ کا ترمے ترمے
موم روغن دِ په ځان مږی — چرک حلوان دِ ځان ته کوژی
واکهٔ وهیرنهٔ کا له فکره — ځان به بیا کا لکه بکره
دَ مور پلار په کار دِ ویاړی — مصلحت دِ ځنے غواړی
خوئ دِ واړه هغه کار کا — چه پرے حکم مور و پلار کا
کهٔ ئے ملک وی کهٔ ئے مال وی — مور و پلار دِ پائمال وی
چه فرض شوی په هرچا دی — حق دَ خویش دَ اقربا دی
حق دَ زن په شوهر باندِ — دے لازم په خبر باندِ
وریسے حق دَ مهمان دے — دَ مملوک دَ زیرستان دے

## فصل

### حق دَ خدائے په بنده باندِ

حق دَ خدائے په بنده دا دے — چه دا وائی خدائے یکتا دے
یکتائی په دهٔ بنائینه — یګانه دے تل به وینه
نهٔ شریک نهٔ ئے انباز شته — نهٔ ئے عجز نهٔ نیاز شته
دَخدائے امر دِ منی نه — پر طاعت دِ کاندِ مینه
نواهی کهٔ معاصی وی — له همه وُ دِ خلاصی وی
کهٔ دا حق دَخدائے په ځائے کا — خلد به ځائے دَ دهٔ خدائے کا
وربه نهٔ شی تر دوزخه — دَ دیوخوا به نشی یخ
حق دَ مور و پلار چه یاد دے — په قرآن کښې اسناد دے
په اولاد باندِ داشان دے — چه ویلی په عیان دے

هر فرمان دِ ئے منېنه
نامشروع امر دِ نۀ کا
چه ئے مور و پلار زاړه شي
مظلمه ئے په اولاد ده
په خپل ځان دِ ئے خدمت کا
کۀ خوراک وي کۀ پوشاک وي
مګر امر نامشروع وي
نور دِ هر څۀ قبلوينه
دَ مور پلار به کار دِ وياړي
خوئ دِ واړه هغه کار کا
کۀ ئے ملک وي کۀ ئے مال وي
حق دَ مشر ورور بسيار دے
کۀ حرمت کوي دَ مشر

چه تر خولے ئے څۀ وځينه
نور دِ جز و کل هر څۀ کا
کۀ غارمۀ ئے کۀ ساړه شي
دا خبره دَ استاد ده
ځان دَ دوئ دِ په رحمت کا
دَ دوئ کار دِ پر تپاک وي
په هغۀ دِ ځان ممنوع وي
اطاعت دِ ئے منېنه
مصلحت دِ ځنے غواړي
چه پرے حکم مور و پلار کا
مور و پلار ته دِ پائمال وي
مشر ورور هم لکه پلار دے
ستا به هم حرمت کا کشر

## فصل
## حق دَ خويش واقربا

چه فرض شوي په هر چا دي
چه صله رحم څوک بناد کا
چه الفت له اقرباء کا
چه شلوون کا له خويشانو
چه مئين په اقرباء وي
دَ رسولؐ دَ خولے وينا ده
چه دَ عرش تر سايه لاندِ
يو چه خوش ترے اقربا وي
دے خوروي په درويشانو
بله کُنړه فرزند داره

حق دَ خويش واقربا دي
خدائے به دے په بنائي بنا د کا
دَ دۀ ځلئے به خدائے ماوا کا
هغه دے له دوزخيانو
ډير به دے په دا دُنيا وي
شک پرے مکړه په رښتيا ده
به هغه وي چه دا کاندِ
بل چه مال ئے دَ دُنيا وي
خيرخيرات کاندِ يارانو
دَ شوهره نه ويزاره

لونړه څوئ خپل ساتینه — بل میرۀ نۀ یادوینه
په قیامت به دا درے گروهه — خلاص فارغ وی له اندوهه

# فصل

## حق دَ یتیمانو

دَ یتیم په حق خبر شه — له ثوابه بهره ور شه
کۀ یتیم خښتن دَ مال وی — مال په دۀ باندِ حلال وی
کۀ ئے نور په ظلم زور خوری — څوئے خوری دَ دوزخ اور خوری
دَ یتیم نمنځنه فرض دہ — په درست کلی لکه قرض دہ
چہ ئے لاس په سر ښکوینه — تفقّد باندِ کوینه
یا ثمر یا شکر ورکا — زړۀ ئے خوش په ما حضر کا
دَ یتیم په خوش نودئ — خدائے به ورکا بهبودئ
له دُنیا به په ایمان ځی — وجنت ته به خندان ځی

# فصل

## حق دَ درویشانو

فرض دے حق دَ درویشانو — په همه توانگرانو
خدائے چه مال وچا ته ورکا — په نادارو دِ نظر کا
دَ درویش چه څۀ حاجت وی — برے دِ هومره سخاوت وی
کۀ زکوٰة کۀ صدقه وی — کۀ خیرات کۀ نفقه وی
دَ درویش چه څۀ حاجت وی — پرے دِ هومره سخاوت وی
کۀ زکوٰة کۀ صدقه وی — کۀ خیرات کۀ نفقه وی
چه درویش وخۀ رسیږی — دولتمند دِ هوسیږی
چه محتاج دَ درویش نۀ شۀ — بل درویش محتاج دَ دۀ شۀ
بل چه ورکړه په درویش کا — ځان داخل دَ خدائے په ویش کا
ورکړه کله حبطه وی — لس دلے هورے اوبۀ وی
درویشان هدیه دَ خدائے دی — په سایه لکه همائے دی

دَ همائے سایه نادره
گوره چرته شی حاضره
ورکوه زاغ وزغن ته
هر مارغهٔ سایه فگن ته
گوندِ وی چه ستا په لومه
همائے رائے شی له کومه
دَ درویش دَ زړهٔ ساتنه
غنیمت گڼړه لا لسنه
دَ درویش خاطر که شاد کا
درست حاصل دَ زړهٔ مراد کا
چه درویش له چا آزار شی
په دُنیا په دین به خوار شی
ځوک چه یو درویش آزار کا
قتل عام ملک هزار کا

## فصل

## حق دَ همسایه گانو

حق دَ چار دَ همسایه دی
پرمایه که بے مایه دی
په ښادئ دَ دهٔ ښادمن شه
په غمونوئے غمژن شه
چه هر کار لره دِ بولی
قدم بږده دَ دهٔ په غولی
په رنځورئے کړه پوښتنه
مهرمهٔ نیسه دَ دهٔ نه
حجاب وباسه له میانه
که دام پور غواړی له تا نه
ورکوه زړهٔ ئے خوشحال کړه
دستګیری ئے په خپل مال کړه
دَ شادی ئے تهنیت کړه
دَ ماتم ئے تعزیت کړه
که خالی ئے درخانه کړه
دَ کاله ئے خصمانه کړه
که سفر لره روان شی
دَ دهٔ پاتو فرزندان شی
خصمانه دَ دویو تل کړه
لوئے هلک واړه خوشدل کړه
عزم کښ دَ همسایه شه
په ثواب بلند پایه شه
قبلوه دَ دهٔ سے نخونه
په دهٔ مږده خپل غمونه
چه دَ تا دَ دهٔ ترمیان دی
که دیوال وی که دالان دی
لوړول دِ ئے هاله دی
هغه رخت چه دَ دهٔ زړهٔ دی

## فصل

## حق دَ مرد په عورت

حق دَ مرد په زن بسیار دے | لزم تا وَ نه په شمار دے
په خدمت دِ وی تیاره | لکه وینځه پرستاره
چه میړهٔ وربانددِ راشی | دا دِ خوښه په خندا شی
کهٔ ئے زړهٔ غمونه غاندی | هم ښهٔ ورته وُخاندی
دا دِ زر پاسی له ځایه | په خندا دِ شی له ورا یه
ځان دِ شوئ وته تیار کا | په بستر دِ ئے قرار کا
کهٔ موزے وی کهٔ پاټزار وی | په خپل لاس دِ ئے داچار وی
په هر رنګ چه خوشی مومی | دَ میړهٔ په رائے دِ دروَمی
په رومال دِ ئے مخ پاک کا | په ډیر رنګ دِ پرے تپاک کا
خوچه زیرمه دَ طعام کا | په میوه دِ ئے خوږ کام کا
ناست ولاړ دِ هسے کاندِ | لکه حکم وی پرے باندِ
کهٔ پرے حکم هسے وینه | ورسره دِ طعام خورینه
کنړه کاروبار دِ کاندِ | یا دَ روستو یا دَ وړاندِ
کهٔ میړهٔ ئے خندا غواړی | دا دِ خاندی هم دِ ویاړی
کهٔ غزل وی کهٔ بیتونه | کهٔ سندرے کهٔ صوتونه
مسخرے دِ کا آغازے | موافقے دل نوازے
کهٔ میړهٔ ئے خشمناک وی | دا دِ هم ځنے په باک وی
کارد دِ نهٔ کا دَ بے باکو | سیب حنظل وی په غمناکو
داویل دَ پیغمبرؐ دی | په مشکوٰة کښے معتبر دی
چه په ژبه میړهٔ خوږ کا | خدائے به کل شادی په زوږ کا
لویه ورځ چه دَ محشر وی | دَ دے ژبه به لوئے غر وی
ترقفا به وی وُکښلی | غوټه سخته پرے وهلی
ځان دِ جوړ ساتی شوهرته | بچ دِ نهٔ پریږدی خپل سرته
کهٔ تنهائے خپل پدروی | هم دَ دے دِ ترے حذر وی
مجالس دِ له هغو کا | چه دَ نیکو گفتگو کا

زړه خوانه هرزه کاره
دا د نه پرېږدي خپل ځان ته
چه مېړۀ چرته ولاړ وي
دَ غمژن غوندِ دِ وُسي
دَ مېړۀ خونه دِ ژغوري
لوړ آواز نۀ چه چیغار کا
پل دِ نۀ آخلي له کوره
دَ مېړۀ بې اجازته
دَ مېړۀ له ډکه کوره
هغه توره به ماران شي
هره چار دِ په رخصت کا
دَ مېړۀ حکم دِ ژغوري
کۀ خپل مال هومره لرینه
په خندا دِ واړه ورکا
کۀ مېړۀ ئې عیبناک وي
مړدان هیڅ نۀ دي کړلي
چه پرې نوم دَ مرد وي پورې
کۀ دروغ کا کۀ رښتیا کا
دا حدیث دَ محمدؐ دې
سجود خدائې وته کاوۀ شي
کۀ نورچا وته روا دې
چه عاصي وي له شوهره
کۀ روژې کا کۀ نمونځونه
دا به واړه نۀ قبلیږي
کۀ جنت غواړي نیک زن

لا په تیر بوړي مکاره
چه آفت وي ځان ایمان ته
آرائش دِ تر ولاړ وي
هر هوس دِ له زړۀ یوسي
نامحرم ته دِ نۀ ګوري
په ادب دِ هره چار کا
نۀ په ورځ نۀ په شپه توره
نۀ دَ بلار کره رخصته
کۀ ضائع کا یوه توره
حواله به ئې په ځان شي
ګنړه واړه خیانت کا
وفرمان و ته دِ ګوري
چه په کار دَ مېړۀ شینه
مال خۀ ځان دِ هم ترې زار کا
هم دِ دې ته لکه پاک وي
تور سپین واړه دي بناغلي
واړه بنۀ دي کۀ ئې ګورې
دا دِ واړه آمنا کا
چه ئې نۀ مني مرتد دې
بې له خدایه سجود نۀ
خپل مېړۀ ته دَ نساوې
په اسلام کښې دۀ کا ترۀ
خیر خیرات دُعا نفلونه
کۀ هر څو ئې ډیر ډیر کیږي
پري روي سیمین تن

په رضا کښېنې دَ شوهر دی
درته اېښې برابر دی

له بنځه ځایه بنځه عورته
خالی نه وی له حکمته

دَ دے چار هنر ورزی وی
هم دوبی وی هم درزی وی

هم لاوینځه وی همدمه
هم دَ خونے وی حاکمه

چه خوراک پخوی دا وی
باورچی وی هم سقاوی

کهٔ رښتیا وایم اے ناسه
لامېرهٔ ته وی کناسه

مصاحبه وی حبیبه
دارو کړه وی طبیبه

باور وکړه بنځهٔ عورت
په دُنیا کښے وی جنت

## فصل

## حق دَ عورتے په خپل مېرهٔ

دَ عورتے حق هم فرض دے
په مردانو لکه قرض دے

امانت دی دَ عورتے
دَ بنځهٔ خدائے دی امانتے

په مردانو دی سپارلی
په خدمت دی کمارلی

ښځے مردلره پیدا دی
دَ جنت پخے حلوا دی

په عزت ساتلے بویه
دَ دوئی چار دهٔ ډیره لویه

انبیاءؑ کهٔ اولیاءؒ دی
له عورتو نه پیدا دی

بادشاهان ترے پیدا کیږی
بنځهٔ ځوانان ترے پیدا کیږی

ښځے محبوبے لکه گل وی
بنځهٔ ځوانان بانڈِ بلبل وی

کهٔ ئے زهٔ صفت ثناء کړم
مگر بل دفتر انشاء کړم

دوئی به خځهٔ وتا ته ستایم
له حقونو به ئے وایم

نفقه کهٔ اغوستن وی
دواړه توکه دِ دَ زن وی

لکه بنځهٔ دَ خپل ځان غواړے
په ښیگړه به ئے ویاړے

په خوراک په پوشاک واړه
کل اختیار ورکړه ویاړه

کهٔ مشٔی که دے کهٔ چاروی
زیست روزگار دِ ئے په دا روی

کهٔ مئین په یوهٔ نهٔ وی
نهٔ چه غم پرے بانڈِ ته وی

یائے بنۂ ساته تربنے نه
یا طلاق ورکړه دَدے نه

چه کابین ئے څۂ رسیږی
خیانت ئے نۀ رغیږی

خوَدَ تا په نکاح وینه
باندِ تل کړه دَ زړۀ مینه

تحمل ئے په جفا کړه
خشم کین له زړۀ رها کړه

چه دَ ښځو سره کین کا
مردی نۀ ده بدآئین کا

لکه زور دَ ښځے کم وی
دَدے عقل هم درهم وی

چه نۀ عقل نۀ ئے زور وی
دَ هغو سره چه شور وی

کۀ عصمت عفّت لرینه
توره هم کڼه ته سپینه

په دشنام ئے صبوری کړه
مۀ زړۀ بد مۀ ترے دوری کړه

کۀ ئے وینے ډیر عیبونه
ورته مۀ کړه پیغورونه

په وهل کۀ ورته خیر شی
به پرهر به ئے دلګیر شی

په اندام ئے پرهار مۀ کړه
دا په پوست کښے مالیده کړه

تل پرے کار اندرونی کړه
نۀ پرے چار بیرونی کړه

چه دَ خونی کاروبار کړه
کاروبار دِ په مقدار کړه

چه ئے توان ونۀ رسیږی
هسے کار دِ پرے نۀ کیږی

مسئلے دِ زده کوینه
په نمانځۀ دِ کاندِ مینه

ورته دین ښائیلے بویه
چه دین زده کړه چار ده لویه

نفقه چه ورکوینه
پرے دِ تل حلاله خورینه

کۀ لقمه ورکړی حرامه
پرے نیولے ته ئے عامه

کۀ ئے ملک وی یائے مال وی
تصرّف باندِ وبال وی

مګر حکم وتا در کا
یادَ تا په لاس چه زر کا

څو به ښځے پسے دروی
مرد به هومره ثواب مومی

## فصل

### حق دَ بنده کانو په خپل څښتن

دَ بنده په څښتن باندِ
حق هم ډیر دے کڼے کاندِ

کهٔ خوراک وی کهٔ پوشاک وی — دا دواړه په ښهٔ ژواک وی
چه نهٔ دُلای نهٔ بربنډ وی — کار خدمت وته به غونډ وی
هسے کار دِ باندِ کیږی — چه ئے توان ورته رسیږی
بیهوده کهٔ بد وئیل کا — نهٔ دِ دهٔ وته کنځل کا
کهٔ بدخوئ کهٔ بد نهاد وی — بیا دِ دی په مهر شاد وی
هر خواجه چه عبد لرینه — دے دِ تل شکر کوینه
چه خواجه دے بنده نهٔ دے — نورعالم بنده دَ دهٔ دے
په مریونو چه ستم کا — هغه کس به خدائے په غم کا

## فصل

## حق دَ شاگرد په اُستاد باندِ

په اُستاد د شاگرد حق دے — چه اخستے ئے سبق دے
په معنیٰ لکه فرزند دے — چه دَ دهٔ په حکم بند دے
شفقت چه په پسر کا — په شاگرد دِ لا بهتر کا
تل دِ ښه چه ورکوینه — چه آغوندی یا ئے خورینه
شریعت دِ ور ښئینه — عبادت دِ ور ښئینه

## فصل

## حق دَ پیر اُستاد په مرید په شاگرد باندِ

حق دَ پیر دَ اُستاد دواړه — دَ خپل پلار ترحق زیات غواړه
شیخ په قوم کښے کالنّبی دے — بِه ترآ به نسبی دے
چه حرمت دَ پیر نهٔ کاندِ — خود به خوار شی روستو وړاندِ
چه ویښتهٔ په دین کښے سپین کا — هغه پیر دے کهٔ یقین کا
لکه حق دَ پیر اُستاد دے — دَ اُستاد هسے لازیات دے
کهٔ په رائے دَ هغے درومی — دین دُنیا به واړه مومی
چه دِ خلاص کاندِ له جهله — تهٔ دا کار مهٔ کنړه سهله
جهل لرے کا له تانه — دانائی درکا اے جانه

دَحدیث په حکم یاره
هر سړی لره درے پلاره
اول پلار چه دَمیلاد دے
دویم سخر دریم اُستاد دے
دریم پلار دِ لا عزیز دے
چه درکړے ئے تمیز دے
چه ئے پوه په شریعت کړے
دَدے پلار به ډیر منت کړے
کهٔ په حق دَاُستاد کور ئے
په دُنیا په دین مختور ئے

# فصل

## حق دَ فرزند په پلار

دولس حقه دَ فرزند دی
په خپل پلار باندِ څرګند دی
اول ښه پاکیزه مزکه
چه مایه ئے نهٔ شی ورکه
بل چه ډکه شی عورته
ځان دِ نیسی له صحبته
چه فرزند ئے پاک پیدا شی
نهٔ کړے باک پیدا شی
بل چه نوم باندِ کیږدینه
نوم دِ ښهٔ ورباندِ ږدینه
بل حلاله لقمه بویه
ترهرڅهٔ ده دا چار لویه
بل ختنه دِ ئے زر کاندِ
لازمی ده دا پرے باندِ
بل قرآن چه وُلولینه
مسائل دِ زده کوینه
بل حلال کسب دِ زده کا
چه خپل قوت لره هغه کا
بل دِ غشے نه ده کوینه
چه پرے ښهٔ و پوهیږینه
بل دَ آس سواری لازم ده
آب بازی ورسره هم ده
نور دِ زده کا ادبونه
ناست ولاړ په مجلسونه
خط دِ هم زده کا اے جانه
چه ژوندون کا بے آرامه
نور حصه له ماله 'ورکړه
په دولت ئے بهره ورکړه
بل له ښهٔ پاکیزه کوره
ورته ښه ناوے وکوره
دا حقونه ئے په ځائے کړه
ورته نور پناهی خدائے کړه
پرے خوښیږه کهٔ صالح وی
خدائے ئے ښهٔ کړه کهٔ طالح وی
له فرزنده حیا غواړه
کهٔ حیا لری پرے ویاړه

کۀ پہ ستړگو کښې نو وی ۔۔۔ تل بہ دے سخن شنو وی

# فصل

## ثواب دَ قرآن چه فرزند ئے لولی

هر فرزند چه قرآن خوان وی ۔۔۔ دَ مور پلار دِ هم دَ ځان وی
پہ هر حرف بہ گونا گونے ۔۔۔ نیکئ بیا مومے زرگونے
پہ هر حرف ئے لہ دفترہ ۔۔۔ ځی بدئ ئے لس لس زرہ
چہ لس زرہ وړی سیر کا ۔۔۔ بربنډ پټ تر دا نہ ډیر کا
پہ فرزند چہ څۀ خرخیږی ۔۔۔ چہ قرآن دَ دۀ زدہ کیږی
پہ دُنیا بہ مومی خومرہ ۔۔۔ لکہ غر دَ اُحد هومرہ
مزد ثواب بہ هومرہ مومی ۔۔۔ لکہ چې لرہ څوک درومی
یا جهـاد کا یا غـزا کا ۔۔۔ لس لس زرہ ئے بیا بیا کا
مزد ثواب دَ قرآن ډیر دے ۔۔۔ تر حساب تر شمارہ تیر دے
پہ قیامت بہ ځی دَ وړا ندِ ۔۔۔ چہ پہ خلد ئے داخل کا ندِ
چہ کودک پہ دبستان شی ۔۔۔ دے اول تسمیّہ خوان شی
مور و پلار دی دا درے تنہ ۔۔۔ مسئلہ دہ مـبرهـنـہ
هغہ درنګ آمرزیدہ شی ۔۔۔ لہ اُستاد ہ کۀ دِ زدہ شی
چہ افضل دَ عبادت دے ۔۔۔ شک و مۀ کړہ تلاوت دے
اِستادہ چہ قران لولی ۔۔۔ پہ نمانځۀ کښې قرآن لولی
سل نیکی بہ ئے وکښـینہ ۔۔۔ پہ هر حرف چہ ئے لولـینہ
شل نیکی بہ دَ هغۀ وی ۔۔۔ پہ قرآن چہ غوږ دَ دۀ وی
کۀ ئے لوستل پہ ناستے وینہ ۔۔۔ پہ نمانځۀ کښې ئے لولـینہ
دَ هغۀ بہ پنجاہ بس وی ۔۔۔ دَ نغتونی بہ ئے لس وی
بے نمانځۀ چہ تلاوت کا ۔۔۔ پہ هر حرف چہ روایت کا
لس نیکی بہ دَ دۀ وینہ ۔۔۔ دَ سامع بہ یوہ شـینہ
چہ درست ختم سہے وُکا ۔۔۔ دَ هغۀ بخرہ بہ څۀ کا

په جنت کښې يوه ؤ نه
خوچه دا واړه دُنيا ده
دَ هغې وَنې تر سريره
رنګارنګ ميوې خوندونه
هرطعام چه ئې رضا وي
رنګارنګ به وي فرشونه
نور فراخ ارت قصرونه
رنګارنګ ښکلي اَسونه
خادمان ښائسته حورې
دَ قرآن له رويه خدايه
مور و پلار خپلخانه واړه
سايه داره لويه پلنه
ترې ځانګه لويه لا ده
دې به کښېني حُما سوره
خوځو رنګه نعمتونه
زر به دهٔ ته مهيا وي
لون لون پوششونه
ښکلي ښکلي محلونه
مرصّع واړه زينونه
په خدمت به وي حضورې
مکړه ماښې هسې ځايه
دَ جنت په خوشئ وياړه

## څوارلسم باب
## ذکرخوارج دَباغي ذمي دَخراج وغيره

داناياان به په دا پوه وي
چه خروج په امام ؤ کا
اهل بغي هم هغه دي
چه سر واخلي له امامه
مُسلمان بللي بويه
کهٔ بادشاه عادل دانا وي
چه په جنګ کښې ورته شا کا
کهٔ ئې مومي پرهار ژلي
آس وسله دِ نئې ساتينه
چه آشتي وکا جنګ پريږدي
چه باغي سره جنګ کاندِ
کهٔ بې شماره مقتولان وي
خوارج هغه ګروه وي
دَ امام اطاعت نهٔ کا
کهٔ باغي دي هم هغه دي
ده ښادي په دوئ حرامه
کلمه لولي حق ګويه
جنګ له دوئ سره روا وي
کهٔ پسې دروي خطا کا
په تپاک بويه ساتلي
کاروبار دِ پرې کوينه
مال دِ واړه ورته کيږدي
کهٔ مري صد رحمت ورباندِ
هغه واړه شهيدان دي

# فصل

## ذکر دَ جزیه دَ غنیمت

په جهود جزیه روا ده — په هندو ده په ترسا ده
چه په ملک دَ اسلام اوسی — له هغو دِ جزیه یوسی
په درویش ولس درمه — چه ئې واخلی نور بې غمه
په میانه بست و چهار وی — څلوېښت په دنیادار وی
په زنانو کودکانو — په پیرانو بندګانو
جزیه هیڅ نهٔ ده واجبه — څُنې مهٔ غواړه نائبه
غنیمت له دار الحربه — مواشی دِ نهٔ کړی چربه
رخت لباس کهٔ بندګان دی — زر و سیم کهٔ آس اوښان دی
چه په دار اسلام راشی — ویش دِ ګړه په دا اشیاء شی
پنځک بخره دَ امام ده — نور دَ درست لښکر تمام ده
کهٔ په دا کښې څهٔ نقصان کا — زیان دَ دین و دَ ایمان کا
دَ سوارهٔ دوه بخره بویه — د پَیکه یوه ده خُویه

## فصل دَ خراج

کهٔ آفت په مزکه کښېوزی — له هرچا نه خراج پرېوزی
ملک چه فتح شی په توره — پرې خراج دے څُما پوره
په هر ګز دَ ګښت دَ مزکے — یو درم قفیز بے کړکے
ګزے لوے ارش نه پس دے — هر ارش ئے شصت درشصت دے
په سبعه وزن درم دے — نهٔ څهٔ زیات وی نه څهٔ کم دے
هر درم هفتاد دیناره — دا حساب لره وُ شماره
قفیز څهٔ دے قفیز صاع دے — صاع اتهٔ رطل او ضاع دے
چه انګور په مزکه کیږی — لس درمه پرے رغیږی
په سبزه پینځه درمه — نور پرے مهٔ کړه زیات و کمه

چه زعفران په ملک کرینه
خراج هومره څو زغمینه

میوه داره مزکه یاره
په حساب ئې هسې شماره

## فصل
## حکم دَ مرتد

خدائے دِ هیڅوک مرتد نۀ کا
کۀ مرتد شي ترو دِ څۀ کا

ورته زر عرضه ایمان کړه
په ایمان ئې په امان کړه

کۀ بدبخت ایمان رانۀ وړي
تیغ ورواچوه چه ؤمري

دَ دۀ مال ساتلے بویه
دَ وارث ورکړے بویه

مرګ دَ ښځے روا نۀ دے
بند زندان ورلوه بنۀ دے

چه داخله په اسلام شي
نور دِ خلاص په اکرام شي

## فصل
## ذکر دَ مورث دَ فلاکت دے

چه مورث دَ فلاکت دے
هغه دا په روایت دے

چه ئې کا هغه به خوار شي
په دُنیا کښے به نیستګار شي

څوک چه مخ په لمن پاک کا
بیا لاسونه ګنده ژواک کا

په ولاړے چه بنۀ نۀ وي
پوشیدن دَ پرتا ګۀ وي

چه دَ غنړے پریږدي ځاله
څوک په کور کښے ځما لاله

چه پاره جامه اندر وي
څوک اخستي شړئ زر وي

چه په ناستے څوک ترینه
دستار دا هم بدوا ئېنه

چه په شپه بربنډ سملي
نوک په هر سکین اَخلي

چه دَ ورۀ په درشایۀ
کښینیني بد کا ؤوایه

چه په کور کښے کا مُتیازے
یا تل خوري خوارۀ یوازے

چه بربنډ لامبي بدکار کا
دَ بیغور دي ځان به خوار کا

چه مور پلار په نامۀ بولي
برکت ئې ځي له غولي

چه ادب دَ اُستاد نۀ کا
بے دولت دے کله بنۀ کا

چه په نام بولی عورته — خپل میړهٔ وی بې دولته
مور دِ هم په نام نهٔ بولی — ځکه غم وریٔ په غولی
چه په مات لوښی کښې خورینه — فلاکت نیسی وس ځینه
په طعام باندِ چه پښې ږدی — چه لږ ډیر ښادی به پریږدی
په انګنړ کښې چه پریږدینه — خس رخا شاک غم به ورځینه
څوک چه پرې کا په غاښونو — نوک دا کار کا دَ غمونو
چه په مات ږمنځ سر ږیره — ږمنځوی بدکا په ږیره
په شرکت چه ږمنځ کویه — فلاکت به پرې وس شینه
په ولاړ چه ږمنځ کوینه — دا هم بده ویلړینه
چه په شپه جارو جار باسی — په کور خیر ترې وباسی
چه دَ نغن پر ټکی خورینه — منځ پریږدی نیستی ورځینه
په څرګند چه څوک دخول کا — غم اندوه به پرې نزول کا
دخول هسې رنګه بو یه — چه پرې شک نهٔ شی څوک ځویه
چه دخول کښې څوک ویل کا — واړه بدکا شرمول کا
چه زنا کا آخر خوار شی — ځوانی مرګ نا برخوردار شی
چه خوراک کوی په ملا ستې — دَ دولت په کم وکا سستې
چه خواړهٔ خوری په ولاړې — دَ دولت له ملکه ولاړې
کهٔ په کټ باندِ خواړهٔ خوری — زده کړه دا خواړهٔ بهٔ نهٔ خوری
چه په پښو کښې دِ یا نزار وی — خوارهٔ داهم بدکار وی
دَ جُنب سره چه خورینه — فلاکت به پرې ورځینه
پوست دَ هوږې پیاز مهٔ خیزه — دَ نیستیٔ په لار مهٔ خوځه
په جامه جارو کوٴنه — دَ ځائې بشه نهٔ ده لا لنه
چه خلال په هر هر چوب کا — ګنده کار دې ګنده توب کا

دَ چار یار یو په ګوارې
ګړ یده مهٔ کړه په لارې

# فصل

## ذکرد ایام منحوسه

هره میاشت دی دوه ایامه — نحس اے نیکو فرجامه
پکښې کارکۀ زیات وکم وی — کړۀ ئے نۀ بویه چه غم وی
څلورم دَ محرّم دی — ورپسې ئے بیا پنځم دی
دَ صفر غرّه ده یاره — ورپسې شلم وُشماره
دَ ړومبئ خورخوارلسم دے — ورپسې پوره شلم دے
دَ دویمې خور غرّه ده — اتلسم هم نۀ ښنۀ ده
دَ دریمې خور لسم دے — ورپسې ئې یولسم دے
څلورمه خور وایمه — څلورمه بیا لسمه
په رجب کښې ده دویمه — ورپسې بیا دیارلسمه
دَ شعبان ده څلورمه — ورپسې ده بیا شلمه
په روژے کښې ورځ دریمه — ورپسې ده بیا شلمه
دَ شوال شپږم اتم دے — ذی قعده دویم انم دے
ذوالحجه شپږم اے یاره — ورپسې شلم وُشماره
بیا به هره میاشت نابه ده — چه روستئ چهارشنبه ده
داحساب دِ بیا دستا شی — چرے نۀ وی چه خطا شی

# فصل

## ذکرد رجال الغیب

داهم زده که کۀ تورزن ئے — په پرکاش به ښکارمیئن ئے
دَجهان کۀ څوک آګاه دی — پاسبانان رجال الله دی
په اَتۀ کُنجو نه ګرځی — پاسبانی کا څکه غورزی
مخامخ کۀ څوک پرے درومی — نیروزی به بیا نۀ مومی
چه دَ دیو په کین څنګ وی — یا ترشا نور دِ آهنګ وی
استمداد دِ څنے غواړی — دَ نصرت په کار دِ ویاړی

کنجغ باشم کوره کنجغ بشم اے روره
کنجغ باشم زده کړه کنجغ اشم شماره کړه
دوئ به وی په دامکان کښے فکرشهٔ بویه په ځان کښے

# فصل

## فالنامهٔ مصحف

لون لون دی فالونه طورطور دی فالونه
درمال دَ منجم دی دَجفری دَ تور هم دی
هرسړے چه مُسلمان دے دَ هر کار پیشوا قرآن دے
چه هرکار په مومن راشی په قرآن دِ التجاء شی
په قرآن دِ ئے نظر شی کا دِ هسے چه فال ورشی
اول هسے رنګه بویه کهٔ فال اچوے اے خو یه
اول شرط ئے طهارت دے په وضو کښے برکت دے
فاتحه یو ځل وُلوله اخلاص ولوله درے ځله
دا آیت بیا له پسه تهٔ ئے ولوله اے کسه

وَمَنْ يَتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ فَهُوَحَسْبُهٗ اِنَّ اللّٰهَ
بَالِغُ اَمْرِهٖ قَدْ جَعَلَ اللّٰهُ لِكُلِّ شَيْءٍ قَدْرًا

دا آیت ورپسے بیا دے وئے لوله چه زیبا دے

فَاِنْ تَوَلَّوْا فَقُلْ حَسْبِيَ اللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ
عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَهُوَ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيْمِ

ورپسے بیا دا دُعا دهٔ درے ځلے یے لوست روا دهٔ

اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ تَوَكَّلْتُ عَلَيْكَ وَتَفَاءَلْتُ بِكِتَابِكَ
فَاَرِنِيْ هُوَ الْمَكْتُوْبُ فِيْ سِرِّكَ الْمَكْنُوْنِ فِيْ غَيْبِكَ

مصحف بیرته کړه وګوره حرف دَ سطر روره!
بیا اُووهٔ ورق شمار کړه په اُومه سطره کار کړه
چه ئے حرف په سر کښے ورشی په نیک بد دِ بیا نظر شی

کهٔ اَلف ورشی په فال کښې
په غلیم به دِ لاس بر شی
بَ په فال هرکوره بنه ده
هرمراد به دِ حاصل شی
تَ په فال کښې ده کړلے
په هر کار چه عزم ستا دے
ثَ په فال کښې برکت ده
بنهٔ دولت ده بنهٔ نعمت ده
جَ په فال کښې جهد بویه
په کوشش به مقصود مومے
حَ په فال کښې بنه ده ډیره
هم به ستا غلیم نابود شی
خَ په فال کښې کامرانی ده
تصدّق خیرات ئے روره
دَال په فال کښې حُما لا له
تل به تهٔ مومے بے دیبه
ذَال په فال خواری ستا لاړه
کهٔ دِ کاروبار پریشان وی
رَ په فال حاجت روا ده
تهٔ به زر صاحب دَجاه شے
زَ په فال نهٔ ده زیان منه
کهٔ په زړهٔ دِ څهٔ مقصود شته
سَ په فال کښې سعادت دے
بدخصلت له ځانه دور کا
شَ په فال کښې شقاوت دے

ستا خوبی ده په هرحال کښې
کامرانی شادی به درشی
دَ غلیم چه اندیښنه ده
بخت دولت به دِ حاصل شی
تو به کار شه کهٔ عاقل ئے
تړے په شاشه چه خطا دے
مبارک په هر نیت ده
سعادت ده عنایت ده
چه مراد بیامومی څو یه
ګنړه تش خالی به دروے
ترحساب ترشماره تیره
میسّر په هر مقصود شی
ولے لږ پکښې ګرانی ده
بلا آروی له کوره
بهترې ده کال تر کاله
خورمی شی له غیبه
په حاسد خواری شوه ویاړه
سرانجام به په هرشان وی
ویاړه هره شادی ستا ده
یا به خان یا به بادشاه شے
سودئ هم نشته لا لنه
نهٔ ئے زیان شته نهٔ ئے سود شته
دَ خوشئ هم بشارت دے
همیشه خوشی سرور کا
مکړه کار چه دِ په نیت دے

کهٔ په زړهٔ دِ شور وشر دے
صؔ په فال کښے صبوری کړه
کهٔ ته ئې کار په صبر غواړے
ضؔ په فال رضا منی مهٔ کړه
په هر کار چه عزم وکړے
طؔ په فال طهارت وکړه
په توبه کښے چه ستا مرګ وی
ظؔ په فال مراد حاصل ده
دَ هر کار دَ ته چه مخ کړے
عؔ په فال ښهٔ علامت دے
نهٔ اندوه نهٔ به دِ غم وی
غؔ په فال کښے غمګین مشه
صدقه خیرات چه ورکړے
فؔ په فال کښے حکم دا دے
یو سفر پکښے نهٔ بویه
قؔ په فال کښے دَ چا کار دے
ته به مرد دِ معتبر شے
کؔ په فال کښے سود من نهٔ دے
کهٔ څهٔ بیرے کهٔ څهٔ پلورے
لؔ په فال دے ډیر ښاغلے
چه خصلت دِ فرخنده وی
مؔ په فال نهٔ دے ښاغلے
کهٔ غلیم لرے دَ وړاندِ
نؔ په فال خوبی لرینه
په مانځهٔ کهٔ دِل مائل کړے

دَ غلیم سره خطر دے
له تلوارے نه دوری کړه
صبر ښهٔ دے وبه ویاړے
نورچه ستا رضا هغه کړه
کړه اندوه مکړه چه ښهٔ کړے
دَ هر زړهٔ زیارت وکړه
تردا پهٔ به نور څهٔ برګ وی
دَ غلیم دعوی باطل ده
سخ دے ستا چه بل به سخ کړے
له غلیمه سلامت دے
په غلیم به ئے ماتم وی
په خوشئ کښے زړهٔ روښن شه
په غلیم به بیا ظفر کړے
چه هر کار پکښے روا دے
اندیښنه ده پکښے لویه
کړه ئے نور څهٔ انتظار دے
سخاوت کړه چه لا سر شے
کاف فیروز په دښمن نهٔ دے
سود دِ نشته زیان به ګورے
په خوبئ دِ دے راغلے
خانده ستا دښمن بنده وی
پوره نهٔ دے راغلے
مکړه قصد په غلیم باندِ
غم اندوه له دِله وړینه
لا به کام دولت حاصل کړے

واؤ په فال دولت وصال دے — درست کمال اندر کمال دے
حاجتمند به د چا نهٔ شے — کهٔ هرڅو معمّر تهٔ شے
هٔ په فال چه د چا را شی — نور به غم د دهٔ له چا شی
په دُنیا به وی بے غمه — خوش به ورشی ترا رمه
لا په فال کښے کهٔ پوهیږے — نفئ حرف دے کهٔ پوهیږے
واکشت بویه له غرضه — چه پائیږی بے مرضه
یٰ په فال غم د اعدا شه — تل خندا کړه عشرت ستا شه
کهٔ خپل یار له تا جدا وی — نشته غم چه وصال بیا وی

## پینځلسم باب

## ذکر د تسابیح د حاجت د نماز

کهٔ ئے واورے تسابیح دی — په خبر سره صحیح دی
بل تسبیح تر دا به نشته — تسبیحات چه هر څهٔ شته
هم تسبیح شی هم تحمید شی — هم تهلیل تکبیر تمجید شی
څوک چه دا تسبیح ادا کا — آمرزش په دم پیدا کا
کهٔ ئے ډیروی گناهونه — واړهٔ ځی په غاړه غرونه
دا تسبیح کهٔ څوک په خله — هره ورځ لولی سل ځله
د دهٔ تن به چه هنگام شی — د دوزخ پرے اور حرام شی

سُبْحَانَ اللّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ
اَكْبَرُ وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ الْعَلِيِّ الْعَظِيْمِ

بل تسبیح دے تل ئے وایه — آمرزش غواړه له خدایه

سُبْحَانَ اللّٰهِ وَبِحَمْدِهٖ سُبْحَانَ اللّٰهِ الْعَلِيِّ الْعَظِيْمِ
وَبِحَمْدِهٖ

بل تسبیح هرگوره ښهٔ دے — چه لائق د د هغهٔ دے

سُبْحَانَ اللّٰهِ الْمَلِكِ الْقُدُّوْسِ رَبِّ الْمَلٰئِكَةِ

وَالرُّوْحِ سُبُّوْحٌ قُدُّوْسٌ رَبُّ الْمَلٰئِكَةِ وَالرُّوْحِ ط

بل تسبیح دے حُما جا نه نازل شوے له رحمانه

سُبْحَانَ الدَّائِمِ الْقَائِمِ سُبْحَانَ اللّٰهِ الْقَائِمِ
الدَّائِمِ سُبْحَانَ الْحَيِّ الْقَيُّوْمِ سُبْحَانَ الْحَيِّ
الَّذِیْ لَا يَمُوْتُ وَلَا يَنَامُ بِرَحْمَتِكَ يَا اَرْحَمَ الرَّاحِمِيْنَ

بل تسبیح هر کوره بنۂ دے چې ئې لولے دَ هغۀ دے

سُبْحَانَ اللّٰهِ الْعَلِيِّ الْعَظِيْمِ ط سُبْحَانَ اللّٰهِ الشَّدِيْدِ
الْاَرْكَانِ ط سُبْحَانَ مَنْ يَّذْهَبُ بِاللَّيْلِ وَ يَأْتِيْ
بِالنَّهَارِ ط سُبْحَانَ الْمَنَّانِ ط سُبْحَانَ فِيْ كُلِّ مَكَانٍ ط
لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ ط لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ
الْكَبِيْرُ الْمُتَعَالُ ط

بل تسبیح دے مُسلمانه تۀ ئې لوله تسبیح جانه

لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ الْحَقُّ الْمُبِيْنُ ط لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ
الصَّادِقُ الْعَدْلُ الْيَقِيْنُ ط لَا اِلٰهَ اِلَّا اَنْتَ
سُبْحَانَكَ اِنِّيْ كُنْتُ مِنَ الظَّالِمِيْنَ - اَلتَّحْمِيْدُ اَلْحَمْدُ
لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ حَمْدَ الشَّاكِرِيْنَ حَمْدًا كَثِيْرًا طَيِّبًا
مُبَارَكًا اَبَدًا ط دَائِمًا بِجَمِيْعِ الْمَحَامِدِ كُلِّهَا عَلٰى جَمِيْعِ
نِعَمَائِهِ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ قَبْلَ كُلِّ حَالٍ ط وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ عَلٰى كُلِّ
حَالٍ وَبَعْدَ كُلِّ حَالٍ اَسْتَغْفِرُ اللّٰهَ مِنْ كُلِّ ذَنْبٍ
وَاَتُوْبُ اِلَيْهِ بِرَحْمَتِكَ يَا اَرْحَمَ الرَّاحِمِيْنَ ط

دا صلوٰة دَ تسابیح دے په کتاب کښلے صحیح دے
په څلور رکعته کیږی فاتحه سورت رغیږی
هر سورت چې وی ادا کړه إستاده بیا ادا دا کړه

سُبْحَانَ اللّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ
وَاللّٰهُ اَكْبَرُ ط

دا تسبیح پینځلس ځله — په قیام کښې ته ولوله
بیا رکوع لره روان شه — په رکوع کښې تسبیح خوان شه
پس لس ځله ئې ولوله — په قیام وکړه بیا ځله
بیا به لس ځله ولولې — وسجود ته چه به ځلې

## فصل
## دَ حاجت دَ نمانځه

کۀ مهم دَ سړی پریوزی — یا په غم په اندوه کښېوزی
دا نماز دَ حاجت بنۀ دے — هر حاجت لره لیمه دے
لکه نمونځ دَ تسبیحات دے — دا هم هسې رنګ صلوٰة دے
قل هو الله کۀ ووائې — دَ تسبیح په ځائې هم بنائې
په سلام چه نمونځ ادا کا — دا دِ زده کا چه بیا دا کا
مخ دِ کښېږدی په بنی لوری — په سجود لکه نسکوری
قل هو الله پانزده ځله — دِ ولولی له اوله
بیا دِ مخ کا په کینړ لوری — دَ اخلاص په لوست دِ شوری
دا هم څو پینځلس یاره — نور دِ غواړی حاجت یاره
هر حاجت کۀ مسئلت کا — خدائے به درست هغه حاجت کا

## فصل
## دَ نمونځ دَ شب برات

دَ برات په شپه لازم دے — سل رکعته نمونځ دا هم دے
په هر رکعت اے یاره — فاتحه اخلاص لس واره
همګی پنځوس سلامه — دَ نمانځه شی چار تمامه
قل هو الله چه ئې شمار شی — همګی واړه هزار شی
چه دا نمونځ سړے ګذارینه — دیرے بے حد ثواب لرینه

### نمونځ دَ شبقدر

دَ شبقدر په شب زده کړه — دوه رکعته نمونځ په شپه کړه

وتر وګذاره بیا دا کړه | کۀ توانیږے هرشب دا کړه
هر رکعت فاتحه خوان شه | اُوۀ ځله اخلاص دان شه
بیا سلام دَ نمانځۀ وکړه | استغفار دِ شروع تۀ کړه

اَسْتَغْفِرُ اللّٰهَ الَّذِیْ لَا اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْحَیُّ الْقَیُّوْمُ
غَفَّارَ الذُّنُوْبِ وَاَتُوْبُ اِلَیْهِ

استغفار اُوۀ کرته | چه آخر کړے پرے همته
تۀ به وُ باخښۀ شے یاره | تنها نۀ له مور و پلاره
ډیر ثواب دَ دے نمانځۀ دے | څوک ګبشم چه هومره نۀ دے

## فصل

## دَ نمونځ دَ اختر په شپه

دَ اختر په شپه اے جانه | پس له ماه رمضانه
نفل نمونځ څلور رکعته | دی په تا له روایته
قل هوالله پنځوس ځله | په رکعت رکعت ولوله

## فصل

## دَ لوئے اختر په شپه

چه دَ لوئے اختر شپه راشی | بویه دا چه نمونځ دِ داشی
نمونځ ئے دے څلور رکعته | دَ الحمد له سورته
بیا آیته الکرسی جانه | اخلاص درے ځله اے ځوانه

... ... ...

چه مهم لری دَ وړاندِ | په هفته دِ دا ورد کاندِ
دَ اتمام هفت نماز دے | دَ حاجت دپاره ساز دے
هم ثواب لری بے حده | کۀ ئے تل ګذاری لابنۀ ده

## نمونځ دَ جمعے په ورځ

په جمعے څلور رکعته | نمونځ دے اے صاحب حاجته

چه لا نمونځ دِ کړے نۀ وی
دَ نمانځه ښخوا لا ښنۀ وی
هر رکعت فاتحه لوله
قل هو الله پنځوس خله

## نمونځ دَ شنبے په ورځ

دَ شنبے په ورځ چه سازشی
څلور رکعته نماز شی
هر رکعت فاتحه لوله
قل هو الله پنځوس خله

## نمونځ دَ یکشنبے په ورځ

یکشنبه دولس رکعته
نمونځ دے اے صاحب حاجته
هر رکعت فاتحه لوله
قل هو الله پنځوس ځله

## نمونځ دَ دوشنبے په ورځ

دوشنبے په ورځ بیا بویه
شل رکعته نمونځ اے ځویه
فاتحه په رکعت جانه
بیا آیة الکرسی ځوانه
بیا اخلاص بویه لس ځله
په دا رنګ دا نمونځ ولوله

## نمونځ د سه شنبے په ورځ

سه شنبه لس رکعته
نمونځ دے اے صاحب حاجته
هر رکعت فاتحه بویه
بیا آیة الکرسی ځویه
بیا چه ورځ دَ سه شنبے وی
دَ زوال په وخت دا به وی
نمونځ کړه اتهٔ رکعته
هر رکعت له روا بیسته
په اول کښے فاتحه ده
بیا اوۀ ځله سوره ده
په روستی چار کښے درے ځله
اِذَا زُلْزِلَتْ دُلوله

## نمونځ دَ چارشنبې په ورځ

چارشنبه دیرش رکعته
په شپه نمونځ کړه په خونیته
یو ځل سبع مثانی دَه
یو ځل آیة الکرسی دَه
یو ځل آمن الرّسول دے
قل هو الله بیا قبول دے
بیا په ورځ څلور رکعته
نمونځ دے اے صاحب حاجته
نماز پیشین چه وُکذاری
بیا به دا همت وُکمارے
فاتحه دَه له او له
قل هو الله بیا شل ځله

## نمونځ دَ پنجشنبې په ورځ

پنجشنبه څلور رکعته
نمونځ دے اے صاحب حاجته
فاتحه دَه له او له
قل هوالله پینځه ځله
بیا نود ۹۹ ونه نام یاد کړه
بیا حاجت غواړه زړه بناد کړه

## نود ونه نومونه دَ باری تعالیٰ ۹۹

نود ونه نام دَ باری دینه
مندرج په کتابونه
غور چون پکښې نه نوی دی
چه په قول دَ نبیؐ دی
هر مومن چه ئے لولینه
ترجنته به ورشینه

اَللّٰهُمَّ اَنْتَ الْمَلِكُ الْحَقُّ الَّذِیْ لَا اِلٰهَ اِلَّا اَنْتَ
یَا اَللّٰهُ یَا رَحْمٰنُ یَا رَحِیْمُ یَا مَالِكُ یَا قُدُّوْسُ
یَا سَلَامُ یَا مُؤْمِنُ یَا مُهَیْمِنُ یَا عَزِیْزُ یَا جَبَّارُ
یَا مُتَكَبِّرُ یَا خَالِقُ یَا بَارِئُ یَا مُصَوِّرُ یَا غَفَّارُ
یَا قَهَّارُ یَا وَهَّابُ یَا رَزَّاقُ یَا فَتَّاحُ یَا عَلِیْمُ
یَا قَابِضُ یَا بَاسِطُ یَا خَافِظُ یَا رَافِعُ یَا مُعِزُّ
یَا مُذِلُّ یَا سَمِیْعُ یَا بَصِیْرُ یَا حَكِیْمُ یَا عَدْلُ

يَا لَطِيفُ يَا خَبِيرُ يَا حَلِيمُ يَا عَظِيمُ يَا غَفُورُ
يَا شَكُورُ يَا عَلِيُّ يَا كَبِيرُ يَا حَفِيظُ يَا مُقِيتُ
يَا حَسِيبُ يَا جَلِيلُ يَا كَرِيمُ يَا رَقِيبُ يَا مُجِيبُ
يَا وَاسِعُ يَا حَكِيمُ يَا وَدُودُ يَا مَجِيدُ يَا بَاعِثُ
يَا شَهِيدُ يَا حَقُّ يَا وَكِيلُ يَا قَوِيُّ يَا مَتِينُ
يَا وَلِيُّ يَا حَمِيدُ يَا مُحْصِي يَا مُبْدِءُ يَا مُعِيدُ
يَا مُحْيِي يَا مُمِيتُ يَا حَيُّ يَا قَيُّومُ يَا وَاجِدُ
يَا مَاجِدُ يَا وَاحِدُ يَا اَحَدُ يَا صَمَدُ يَا قَادِرُ
يَا مُقْتَدِرُ يَا مُقَدِّمُ يَا مُؤَخِّرُ يَا اَوَّلُ يَا اٰخِرُ
يَا ظَاهِرُ يَا بَاطِنُ يَا وَالِيُ يَا مُتَعَالِيُ يَا بَرُّ
يَا تَوَّابُ يَا مُنْعِمُ يَا مُنْتَقِمُ يَا عَفُوُّ يَا رَؤُفُ
يَا مَالِكُ الْمُلْكِ يَا ذُوالْجَلَالِ وَالْاِكْرَامِ
يَا رَبُّ يَا مُقْسِطُ يَا جَامِعُ يَا غَنِيُّ يَا مُغْنِيُ
يَا مُعْطِيُ يَا مَانِعُ يَا نُورُ يَا هَادِيُ يَا بَدِيعُ يَا
بَاقِيُ يَا وَارِثُ يَا رَشِيدُ يَا صَبُورُ يَا صَادِقُ
يَا سَتَّارُ بِرَحْمَتِكَ يَا اَرْحَمَ الرَّاحِمِيْنَ ط

# خاتمه

## شکرانه د کتاب خوبيته

شکر دا چې په آخر شهٔ | دا کتاب م تمام زر شهٔ
په سوڅه کښې التيام شهٔ | دَ اختر په ورځ تمام شهٔ
چه تمام م په خامه کړه | ملائ نوم فضل نامه کړه
ترجمه ئې هم يو نوم دے | کهٔ ئې بولې خوک موسوم دے
خوم توان خوم مجال وو | دام حال دام مقال وو

کار مدار په استعداد دے — یو شاګرد دویم استاد دے
دست بالائے دست یا دیږی — په خپل کار هر څوک بنا دیږی
ما ته خپلے شروبے ښیے دی — که خوږے دی که تروے دی
ورد نیشی دوه لاسه — نهٔ تر خط نهٔ تر قرطاسه
یو چه خام بیهوده خط کښی — بل که ښهٔ کښی چه غلط کښی
دَ کاغذ مخ تورَوینه — خط چه خام بیهوده کښینه
خدائے دِ واخلِه که ښهٔ خط کښی — که ئے ځائے په ځائے غلط کښی
دَ خبرو پیوند کړونے — دَ جګر وینے خورے وینے
چه هر حرف سره پیوند کا — دَ جګر په وینو شخوند کا
په مثال لکه جولا دے — چه په خپل قماش آګاه دے
په شماره ئے دی تارونه — زیات وکم ئے دی عارونه
که یو تار ئے زیات وکم شی — په وودنے ئے ساز غم شی
څوک دیبا اوکم خواب وودبی — څوک شړئ اوخمتا وودبی
په وودل کړه سرپه خړیکی — پکښے کا دَ زرو لیکی
تنستے بړدی دَ ململو — کشیدے کا په بخملو
چه م حکم باندِ رالئے کړه — ما دا هومره کار نمائے کړه
که تر دا څوک ښهٔ ووائی — مرګ ئے مهٔ وه تل دِ پائی

والسّلام خبره تم شوه
که په بیش وه که په کم شوه

په ورځ دَ دوشنبے ۲۵ / ماهِ رمضان المبارک غفط سنه ۱۰۸۹ھ
- ختمه شوه -

کاتب : غلام لطیف "چپرهارے" ۲۹/۱/۱۹۹۹ء

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

خدایه ته په زړه کښې اچوې دا مینه | چه په ښکار دِ مبتلا کړم ته مې وینه

چه ښې کینم پېژندلی دی دا مینه | تا ځما په زړه کښې ځائې کړله قرینه

په طفلئ مې دَ چمنو چتو ښکار کړ | ځلمیتوب مې له هوسیو سریکار کړ

په غرخه پسې به تلم په سم په غرونه | په توپکو مې ویشتلی دی زرکونه

ورپسې مې له مرغونو سریکار شو | ځان او هوش مې همګی دَ باز دَ ښکار شو

هم مې کړه دَ دُنیا څورنګه کارونه | هم مې هیڅکله ناغه نه وو ښکارونه

په دا سن چه تر شپیته مې زیاتی دوه دی | پښتانه مغل په څو سره اخته دی

اورنګ زیب له هندوباره دی راغلی | دَ اټک حسن ابدال ئې دی نیولی

دا څلور پینځه کالونه دَ فتور دی | چه مغل دَ پښتانهٔ په تیغ چورچور دی

مغل واړه په ارمان دَ انتقام دی | دَ خوشحال دَ سر په فکر صبح وشام دی

دَ مغل تکیه په زر په ملک په مال ده | دَ خوشحال خټک تکیه په ذوالجلال ده

بې وطنه بې اولسه تنها کښې | غره په غره لکه غرخه په غرونو تښتی

په دا تور کښې که دوه نوردی دریم زه یم | خلاص په هسې وخت دَ ښکار له کاره نه یم

نوره هم په مخکښې شته که کم و زیاته | دَ بازونو مینې راوستم تر سوا ته

کتابونه دَ هر فن راسره نور شته | خو ځما له بازنامې سره سرور شته

په هر زړه کښې چه میشته وی هغه مینه | ګفتګوئې همګی له هغې شینه

زه ځه لوئې هلک مې سل ځوئ اونسی دی | همګی دَ ښکار دَ مینې هوسی دی

څوک ښکارونه کا په غشی تیرانداز دی | څوک ځما غوندِ عاشق په ښکار دَ باز دی

څوک په غره په صحرا ګرځی ښکار دَ سو کا | په توپک سره دَ غره دَ غرخنو کا

څوک په ښکار دَ تازی سپی هوس لرینه | هر یو خوښ په هغه ښکار وی چه ئې مینه

خدائې دِ واړه لری تل په ډیر دولت کښې | تل دِ ژوی په عشرت په فراغت کښې

پلار نیکه مې هم دَ ښکار هوس وو کړې | دا هنر دې په میراث مونږه رادړې

که دَ توری که دَ ښکار دا دوه هنره | راته پاتې له آبا دی له پدره

نه مې کار په زرداری نه په ساتل دې | کاروبار مې په بخښل او په خوړل دې

كهٔ سخا ده او كهٔ توره كهٔ خامه ده
په دا درے توكه خما تللى نامه ده

واولاد وَته م پاتے شوه دا واړه
كهٔ مردان وى ترے به نهٔ غوړوى غاړه

په فارسى م بازنامه دَ هُنر كښلى
په پښتو م ورته وكښنهٔ نظم كښلى

په نههٔ سوه اونولس بيته تم شوه
خاتمه دَدے بنهٔ نظم پرستم شوه

كهٔ بښيينه كهٔ علاج كهٔ غزلونه
هممكى لرى اوهٔ څلويښت فصلونه

زر پينځه اتيا كالونه دَ هجرت دى
دَ رجب ورځے آخر شوے نهايت دى

په لږم كښے م شروعه بازنامه كړه
په شپږ ورځے م تمامه په خامه كړه

چه خما ژبه گويا په شاعرئ شوه
ته به ولے چه گويا په ساحرئ شوه

طبيعت م په مثال دَ باتور باز دے
كهٔ ئے گورے دَ هرشى وښكار ته ساز دے

## لهومبے فصل په بيان دَ پيژندگلئ دَ باز كښے

بازكهٔ لوئے وى هم تيز پروى بے بها دى
دَ نور چا غرض پرے نشته دَ بادشاه دى

په بازونو كښے كته باز نيسه غور ه !
رنگ تركيب وَته ئے مهٔ گوره بسره

كته ئے سرا وږدې ئے پلنے سترگے كراغے !
كته ورمير لنډه لكئ پرے نيسه كاغے

اوږدمار سرغاړه اوږده اوږده لكئ
بازهم دا دے سينه ور غونډے پنډ ئ

سترگے سرے دَ بازنشان دَ شجاعت دے
كهربا سترگے دليل دَ بنهٔ خصلت دے

كهٔ دَ باز دَ پوزے سركبود نمائے وى
په لكئ كبود دليل ئے دَ بنهٔ راتے وى

خودَ باز پنډئ لنډئ وى پرقوت وى
خودَ باز مښوكه لويه بے همت وى

دَ اوږو ترمينځ دَ باز پرونه ښكاريږى
لكه سيب بهى هغه بهتر شماريږى

چه دَ باز ستركه وتلى وى څهٔ رډه
دا نشان ئے دَ شوخئ دَ كړه ترے ډډه

بازچه ډير خريطه دم وى دَ خندا وى
لږ لم څورى دَ لوئے ښكار دَ نيوو دا دى

زوړند لم لنډه ئے غاړه سپينے سترگے
لينگور نرى بتر گنړه تر چرگے

كهٔ تيز پروى دلاور وى چار دانگى
بد دى نه ترے صدقه نامرد لانگى

زيرے پښے دَ يارهم نهٔ دى خوش نمايه
ډيراوږدهٔ شاه پركهٔ ښائى كهٔ نهٔ ښايه

## دویم فصل په بیان دَ رنګ دَ باز کښے

دَ بازونو رنګ ته مهٔ غوره ستر ګے
که تیغون دی مګر نشته سپینے چرګے

تیغون باز ځکه په قدر په قیمت دی
چه کمیاب شو نه چه بنهٔ په شجاعت دی

تر تیغون نه قیرخیشن بها دران دی
په میر شکار باندِ دا دواړه لکه ځان دی

بال دَ قیر دَ تقدری غوندِ نمود وی
خوشین سُور په سینه پاس په رنګ کبوُ دی

بیا په دا پسے سُور باز چه سیاه فام وی
تور منقاد توره ئے ژبه تورے کام وی

زیړ سُور فام لوئے کنجکی دیبا پر
په هُنر په خوئ بهتر وی تر چهر

سپه پشت که ځهٔ سختی لری په ځانه
که ئے ساز کړی نورئے وګوره مړانه

تر دا شو رنګه بنهٔ نهٔ دی نور رنګونه
کهٔ بو هیرے خو منه مکړه جنګونه

تور زړی کهٔ په ساړهٔ کښے مستحکم وی
په هُنر په خوئ خصلت تر نورو کم وی

زیړ بازونه کهٔ شوده کهٔ کل بادام دی
په ساړهٔ کښے تر تور باز پورے بدنام دی

## دریم فصل په بیان دا شیان دَ باز

چا اشیان چرے دَ باز نهٔ دی لیدلے
دا شیان ئے خو یو نوم دے او ریدلے

دا سپین غر چه لقا فقا سه را روان دے
لګیدلے په خطا په هندوستان دے

په میزان کښے را خوارهٔ شی له شماله
دَ ظلمات په نواحی کښے لری جاله

دا سپین غر تر حساب ډیر لری بناخونه
په بناخونو کښے را ئیشی بازونه

دَ هر غرهٔ چه وُنے ډیرے هوا بنهٔ وی
هغه غرونه ئے مکان په ورځ په شپه وی

ابتدا په سپینو غرونو باندِ راشی
خوش له وا وُرو وریدلو په هوا شی

چه په غرونو کښے ساړهٔ دَ ژمی ډیر شی
تاریه تار سره خوارهٔ په کوم سیر شی

په میزان کښے په عقرب کښے ډیر نیول شی
په لیندهٔ کښے خال خال تیز پر نیول شی

باز هغه چه بنهٔ هوښیار دام دار نیولے
بل هغه چه ناپکار دام دار نیولے

دَ هوښیار دام دار باز نهٔ وی پیر کیدلے
دا نادان وی پیر کیدلے تر هیدلے

چه هوښیار دام دا رئے ونیسی په تله
په سپینو کښے ئے پرانزه اے دله

چه دام دار شخه په تور کښې و تور یږی
دَ نا دان دام دار نیولی باز په صبر
په بنهٔ ځائې کښېـــے ساته تما غه ور کړه
په خوراک دَ ښو طمعو چه ښهٔ دوناب شی
دَ عقرب نیولی لا ساتلی بو یه
ډیر باز ونه په خطا دی یا په دوم دی
ځکه سپین تیغون راځی له ترکستا نه
نهٔ چه کښی په با زونو کښې باز سپین شته
مالیدلی دی په ستر گو شکرے سپینے
ابلق با ز ا بلق جره م دی لیدلی
په کارغانو په تمځرو کښې تیغون شــتــه
څو ژوندی وی هغه خوئی ئے نهٔ هیریږی
په زور زور په پرانزه مکړه بیړه جبر
بیړ کیدل خوارئی وا ړه ترے بدر کړه
بیا دِ هله دَ کشادو دَ طناب شی
دَ لیندے نیولی تنړه دی وُ ئے سو یه
په شیروان په ترکستان کښې هم هجوم دی
ډیرئے نیسی تول پرگړاشی له آشیا نه
سپین چرغونه سپین شنقار او هم شاهین شته
خو باښے سپینے تیغون په رنگ مهینے
چه دما په غرهٔ دما دام دار نیولی
په چمنوا و په سیر کنډ و کښې دا گون شته

## څلورم فصل په بیان دَ ترنیاک باز کښې

چوز با زونه په عزت قیمت لاشک دی
دا شتولک بوزم تولک نهٔ وی بے خال
دا شتولک لره هوبنیا رسړی با ئدهٔ دے
دا شتولک شنقا رکهٔ چوز واړه سرهٔ زرد ی
دا شتولک چه په تو یئ کښې وُ ویریږی
چرغ خو چوز وی په کا رنهٔ دی ترنیاک
دا شتولک شاهین دَ چا په حسا ب شمار دی
کهٔ شاهین دی خو پسندلی اشیانی دی
ترنیاکه با ښه ښه په غم لو ره
کهٔ لگړ کهٔ ترمیته کهٔ بیسره د ه
اشیانی شکره بهتره تر دا می د ه
اشیانی لگړ خو مهٔ پیره په تُوره
هنرمند دَ ښکار په کار کښې دا شتولک دی
لالیدلی ئے مرغئ نهٔ وی په خال
چه ئے واکه کار دَ هر هوسناک نهٔ دے
دلاور دی هنرور دی هم نیک پر دی
نورئے لرے کړه په بچه نهٔ پیریږی
مگر جاړے ماړے ونیسی بد ترواک
چوز دا می ئے په هزار حیله بکار دی
که ئے موے لا بهتر شاه جهانی دی
چه بټیری درته نیسی نور په څو د ه
دَ دے واړو په چوزئ کښې چارهٔ ښه د ه
ترنیاکه چه ساتلے شی خامی د ه
ترمیته اشیانی کهٔ گوری د ه کسور ه

چه په هند کښې اشياني خيزي کو ګجال وي | په تيرا د ترميته جالے هر کال وي
که شکره ده که بيسره ده که دو نيئے | ډير وئيل ئے په مانه شي خبر نه ئے
په خپل ځائے واړه پکار دهرسناک دی | په ديدن په تماشائے ترپناک دی

## پينځم فصل په بيان د بندونو د باز کښې

بند د باز د بابښے نه بويه چه سره وي | سره بندونه باز بابښے لره بښه نه وي
غوښخواره مرغونه نور وربانده راشي | سره بندونه با زبابښے لره بلاشي
سپين او تور په رنګ بندونه د باز بښه دي | موافق د بازه پښو سره سازښه دي
چغاول د هرګز نه وي په ځنګل کښې | تيار مرګ دے د تمځړي په نيول کښې
ځاړيو چوزو لره ښه ده جغاولئ | يا بټيري ياچه نيسي پړے هيلئ
جرس هله چه يا غروي يا ځنګل وي | او که نه خو بيهوده زيا تي خلل وي
بے تو پئ د بابښه نه وي مير شکاره | مګر هله چه کريز وخوري خو واره
د شاهين د چرغ خوخود تو پئ په ځاوي | د شنقار او د باړئ هم په دا شان وي
له اوله تو پئ باز لره ضرور ده | چه ئے لرے شوه له سره نوره دورده
په همه واړه مرغانو صاحب دے | با زپه دا چه بے تو پئ هم مصاحب دے

## شپږم فصل په بيان د پيژندلو د پيخال د باز کښې

چه د باز پيخال کته وي لرے دړومي | په او بوکښے لامبي رغړي فرحت مومي
ځان چه وخنډي آواز ئے ځي د پرونو | يکپائي کا پر روغن کا تر نو کونو
هم ښه خوري ښه هنر مومي په سينه پرځي | آسائش کا فراغت په لو بو کښې يوزي
په پيخال کښے آلوده نه که خپل پرونه | نه ئے ناست وي پکښے نه دي د باد غونډونه
په جچوره کښے آواز د قرقر نه کا | سرونغاړي په پرونو ځان اوده کا
دائے واړه علامت د خيريت دے | که ئے دا نه وي نښان ئے د زحمت دے

## اووم فصل په بيان د نوي باز کښې

A.S.KB

نوے باز چه په جال کیبا ىے دام دا سره
خپل وربوز په څادر ونغاړه رو ورشه
بندئ واچوه په پښو کښے ستر ګے دواړه
یو څو څا څکی اوبهٔ داچوه وباز ته
بیائے کښینوه په لاس آواز پرے مکړه
کوزئے کښینوه په مزکه چه ځان ساز کا
کهٔ ئے وخوری کهٔ ئے نهٔ خوری په خپل طور
نوی باز لره یا ښرکه یا کوتره
هم دا هسے رنګ دِ خوری غوښه ډیر وخته
پرمهره دِ خوری تلغه دِ خوری له دله
وازده بیله څنے توکه تورے غوښے

باندِ هیڅ مکړه ناره دَخدائے دپاره
بنهٔ ئے ونغاړه په جال کښے پرے خبر شه
بنهٔ ئے وکښه د په مزی وئے نغاړه
هیڅوک مهٔ پریږده سړی ولوړ آواز ته
اوبهٔ غوښے په بنهٔ طور ورښکاره کړه
زړهٔ په ځائے له ډیرے ویرے هغه باز کا
په رضا سره ئے پریږده مکړه جور
یا دچرګ یا دَ تراج غوښه ده غوره
ترهغه چه په خربښت کا سینه سخته
کنج نا نبات سره ګډ وے هم کله کله
ورکوه باز ته نهٔ وِلل ئے کینه کښے

# اتم فصل په بیان دَاموخته کولو دَباز کښے

په څورنګه نوی باز باز دار پرانزی
دَ توپئ په سوراخونو باز واکیږی
اول فعل خوئ خصلت دَ باز معلوم کړه
څنے درسته شپه پهره غواړی ډیر سخت وی
څوتلوار ورباندِ مهٔ کړه خوئ ئے ګوره
په شپه شپه ئے طماغه اخله له سره
هرسحر ئے مړوه په چرګ ئے بوله
نور تکلیف دَ تماغی ورباندِ مهٔ کړه
بلکه ننه ئے آرام کړه په خپل کور کښے
غوښه ځان څخه ساته کهٔ بے آرام شی
په دا شان ئے بنهٔ له خلقو سره ګډ کړه
طعمه هومره ورکوه چه درنه نهٔ وی

باز پرانتی دَ توپئ بنهٔ دے ترمزی
په سوراخو بهٔ ئے واکا چه پوهیږی
بیا په هسے دستګشئ هنر مخدوم کړه
څنے دوه پهره بس په خوئ نیک بخت وی
په خپل ځلئے کښے قرار ناست وُسه مهٔ شوړ
کهٔ دِ ولیدهٔ چه لاړه دَ دهٔ ویره
چه بنهٔ رام شی نور ئے خلاص کړه له آشوله
چه ورځنے عالم ګوری ځان ګوښه کړه
ګاه بیګاه ئے ګرځوه په ښار او شور کښے
څهٔ بنو ورکړه چه ئے لرے فکر خام شی
سړی څهٔ چه سپی او دس سره ګډ کړه
نوی باز لره دا هومره خوراک بنهٔ وی

چه ئې تږۀ دننه ډک پاسه خالي وی
بازکۀ نۀ وی که ښکاري خوسپک سیر شوی وی
په تناب ئې دَ ویښتو په حلقه ساز کړه
هنګامو لره ئې تل صبا بیګا وړه
نوے باز چه په غرمه په چاشت الوزی
اول لاس په هسے ښکار موړ کړے بویه
چه یکه یکه خلویښت لاسونه خیر شی
نوے باز چه ډیر لاسونه مړوینه
چه حواس کښے ئې خلل ضرر پیدا شی
نوے باز دِ په بیګا بیګا الوزی
دَ پرواز ویره ئې نۀ وی دا دوه وخته
دَ صافی مالګه وچوز لره خواری ده
په خالي نبات کۀ صاف شی باک ئې کوم دے
یو ئې لری له درونه خلط اخلاط شی
دَ صافی سره هاله مالګه لازم شی
کۀ په ښکار کښے لره بره کۀ اظهار ره
دَ صافی دِ اُوۀ چینی نبات وی
کۀ دِ وزن دَ نمک چرے زیات کم کړه
په صافی کښے ئې ډیر کار دے تلوار مکړه

درسته شپه دَ باز آرام او خوشحالي وی
لا خو نوی باز چه سپک موړ شی ډیر شوی وی
په شپه شپه ئې ښۀ آشنا دَ تبل باز کړه
نوړ ئې ښکار ورته بیګاه نه چه په ګاه وړه
په بازدار به ئې آخر کا نړی پریوزی
چه دَ بل مرغۀ یو نۀ وی یا په سو یه
بیا دِ هله ښکار په نوی مرغۀ ډیر شی
دَ باز زوچه شی دننه دَ زړۀ وینه
دَ کریز تر وخته نۀ رسی فنا شی
په هیلیو دِ په وخت په ګاه الوزی
عصر فجر دواړه یاد لره نیک بخته
بس دَ چوزخو پر مهره طعمه داری ده
دَ صافی سود ئې بے مالګے خو معلوم دے
بل ئې رنګ تر و تازه وی په نشاط شی
چه لو ئې ښکار وته دِ زړۀ وی یا سالم شی
مست دوناب وی هاله مالګه بویه یاره
نۀ چه وزن دَ نمک دَ چینی زیات وی
په خپل لاس دِ باز دَ مرګ یاد الم کړه
لکه حکم دَ اُستاد دے هم هغه کړه

## نهم فصل په بیان دَ اموختهٔ کولو دَ باز په ښکار دَ مرغابۍ

کۀ تۀ غواړے چه دِ باز مرغابۍ ګیر شی
په دنګ دنګ چه ښے ښے وُدهی باولئ
بیا پلی درته نژدے شه پله ګوره
په پله ئې پیاده موړ کړه یو خو لاسه

بیره مه کړه چه دا کار به په تدبیر شی
اول ورکړه پیش پرانه مرغابۍ
چه ئې نسی هسے رنګ ئې هیلۀ ژغوره
بیائې هله مړوه دَ اس دپاسه

قواعد دَ میرشکاری هنرئے دا دے
کنی ما په باز جره ډیرے هیلئ
چه یو ځلے په ښکار کښیوزی ښهٔ با زونه
مرغابئ او باز کهٔ پریوزی په اوبو کښے
هسے شان په قرارئ راشه ورباندِ
کهٔ ئے پریښوه مرغابئ دا به ښهٔ خوئ که
کهٔ ئے پرے نښوه لاسونه کړه ترے لاندِ
چه په ویره ځنے وکاږی نوکا رے
چه په وچه مرغابئ نیول عادت کا
لږے لږے ئے پریږده چه سینه کښښ شی
خود په خود به دَ مرغئ په رس عادت شی

هر هُنر دَ قواعد سره زیبا دے
څو نیولی په خپل لاس دی بے باولئ
په خپل زړهٔ کښے خود دَ ښکار لری رازونه
په اوبو کښے ئے هم دے لری په پښو کښے
چه ورتک ځنے دِ باز ویره نهٔ کاندِ
دَ اوبو له مرغابئ نه به کوږ روئ که
مرغابئ او باز غوته کړه لاندِ باندِ
چه منکر شی له دے فعله کړه پرچارے
نورد باز په دود دَ نوی ښکار جرأت کا
په ډیر تبل مرغابئ نیسی ستا خوښ شی
څهٔ حاجت چه په دا کار به مشقت شی

## لسم فصل په بیان دَ ښکار کولو دَ نورو مرغانو په باز باندِ

دَ باز ښکار خو مرغابئ ده کهٔ ئے ګورے
زرکے هم په الوتلو تقصیر نهٔ کا
تورتارو چه شه قندیل شی هم بد نهٔ دے
نداره کهٔ دَ تمځری هر څو ښه ده
دَ تمځری کوردِ وران شی باز په ځان کا
چه بټیری نیسی ښے نیسی سیسئ
ښهٔ میرشکار به په تمځری تلوار نهٔ که
کهٔ دَ باز معراج دے ځارے میرشکاره
جوزه باز و ته آسمان کنزه ترځاړی
دَ سرخاب نیولے جره لره هُنر دے
قاز قلنګ چه څوک په باز نیسی ستم کا
یکساله طاؤس هم ښهٔ دے ځنګ ئے نهٔ وی

بیا سونا بنا نسته غاړه سترګے تورے
باز چه ځان ورپسے جوړ که چغار ښهٔ کا
چه ئے واخلی باز نشاط وکا ډیر ښهٔ دے
یا جره دی یا تمځری یا با ښه ده
په هر بوټی ئے دهی پرونه ئے وران کا
تیز پری دَ باز په دا ده نور کیسئ
ځان چه ساز که بیا به ساز پسے مرغه که
امّا بند دَ پښے ئے وباسی له کاره
ښهٔ با نه وته چوز هیلئ غوندِ رانغاړی
تر هیلئ لا وباز وته بهتر دے
ښهٔ شیرین بازونه په الم کا
چه آزار دَ باز دَ پرونو دَ جنګ نهٔ وی

کۀ په بازدے خوَد سرئے نیول بویه
ترېناک لره بدی نۀ لری سویه

ترېناک څخه چل ول وی دَ نیولو
چوز دلاوره پرے حمله کړه دَ وهلو

ترېناک بوزم تولک ترچوز بهتر دی
بد خوداچه بښۀ کړیزنۀ خوری شوخ پردی

## یوولسم فصل په تشویق دَ بازونو دَ ښکار کښے دَ غزل په طرز

دَ بازونو ښکار کچا دے دَ زردار
هم زردارهم بے پروا قلندر وار

کۀ ئے غم دَ هوس کا دَ زیان ئے نۀ کا
کۀ ئے مری په قوشخانه کښے خودنیار

دَ هغۀ سړی څۀ کار وی په بازونو
چه بنده وی دَ درم او دَ دینار

دَ ښکار کار په مصلحت په سیالئی نۀ دے
دا یو عشق دے چه ئے ورکه کړد مکار

چه بادر با ذل باسل عالی فطرت دی
دَ هغۀ په زړۀ کښے حب پریوزی دَ ښکار

قمارباز به له قماره صبر ؤکا
مست به هم شی له شرابو توبه مکار

زۀ خوشحال به دَ بازونو ښکار پرے نږدم
خو ژوندے یم دا م کار دا م روزګار

## دولسم فصل په بیان دَ تعریف دَ جُره کښے

جُره څۀ دے ؟ باز نر دے کۀ پوهیږے
په تعلیم کښے تر باز زر دے کۀ پوهیږے

تر پینځه کړیزه بازالواتۀ ښۀ کا
چه جره سه کړیزه شی پرش نۀ کا

په کړیز کښے قابوچی شی کوته پر دے
تر کړیز لاهورته تلۀ دَ دۀ هُنر دے

لوئے کتهٔ جره دَ باز پردود کړیز که
په پرش دوردوی لکه باز تیز که

سینه ورلنده لکئ جره پکار دی
کته سرئے کړاغے سترګے دَ لوئے ښکار دی

غاړه ورکته کته مښوکه وړے سترګے
هم هغه جره وهی دَ غرونو چرګے

یا دیرکته وبازته خوږ جره هغه دے
یا ښۀ جوړ هرګوره وړجره هغه دے

لکه رنګ ترکیب دَ باز هغه جره دے
لکه باز زیهن دراز جره هغه دے

کۀ دَ باز مینه په ښۀ جره ماتیږی
عراقی چرے ترکی سره سمیږی

لکه باز پرونه ساز کا خوش روی که
جره کله هغه هسے دور دوی که

چه د باز علاج دارو هسې دَ دهٔ کړه
طبیعت نې ډیر نازک دې لانې بنهٔ کړه
چرګه وي چه نې ډیر په ښکار کښې خوب کړې
حلاوت نې دې په داچ ښکار پسې لږ کړې
مرغابۍ درې غلور زرکې دا هومره
په تارو تعمږی خهٔ وایم چه څومره

## د یارلسم فصل په بیان دَ ښکار دَ باښې کښې

باښه هم دَ باز دَ کورة یو مرغې دې
پرورش نې کهٔ څوک وکا عجب شې دې
باښه خهٔ ده په لیدل سره محبوبه
کهٔ نې وکورې مطبوعه ده مرغوبه
لکه ګل په نزاکت هسې نازکه
په هُنر په لطافت هسې نازکه
په رنګونو لکه باز هومره رنګونه
په نیولو په وهلو شوخ و شنګه
ترهیلۍ وترسرخابه دَ دې ښکار دې
په دا هومره جوسه دومره دَدٔ کار دې
باز جُره باښه یوشان اموخته کیږی
وَ باښې ته باولۍ شې اندوخته کیږی
اشیانی باښه تحفه ده کهٔ موندہ شی
دامی لا تر اشیانۍ پرش نې ښهٔ شی
کهٔ دِ زړهٔ وی چه باښه شی کلان کیره
چرې نهٔ شی خام کشا ده بې تدبیره
باز جُره باښه کهٔ ښکار کړه خام کشاد
په حساب دَ هوښیار خهٔ دې لکه باد
کهٔ نې خهٔ خو وینه زیاته دَ وجود شی
یا نې کمه دست کشی کړې نور نابود شی
له اوله زیره مهٔ ښیه باښې ته
زاغ دراج زرکې نې اچوه دِ باښې ته
چه یو څولا سونه سیره په لوئې ښکار شی
هوسناک دِ بیا هیلیو ته تیار شی
چه یو دوه چرګې پرې وتیسې په مینه
نور پرې نیسه مرغابۍ لوئې کمینه
بیا له پسه چه کیره شی په لوئې صید
دریزه نهٔ ئې هم مهٔ لره په قسید
کلان کیره ریزه کیره باښه بنه ده
چه ناموس که په هر ښکار باښه هغهٔ
دَ محصول چرچنړې لا ورله ښې دی
دَ باښې په سیل چرچنړو تماشې دی
چه په کم چندہ څوک ښهٔ کا باښه سازه
تیز پرې باندِ ښکاره کا څوخو نازه
چه باښه دِ خوب کیری وکه نور سیره
کشاله ور باندِ مهٔ پسنده تر ډیره
باز باښه چه خوب کیری وکه سیر یږی
هم هغه نې خوئ خصلت شی نهٔ هیر یږی
چه په غږ درلره راشی باښه ستا ده
چه په غږ دِ شیدا نهٔ وی دَ هوا ده

په طلب ئې هسې خپله په هنر کړه | چه د ځان سره ئې ته شیر وشکر کړه
رنځ علاج علت دارو لکه د باز دی | د باښې هم هغه هسې ورته ساز دی
خو مسهل د نبات ورکړه بې **نمکه** | مالګه زیان لری باښې لره بې شکه
د باښې چه سینه سره وی په **شا توره** | سرفرازه منګلوره باښه ګوره
سره زیړه باښه ښه ده ګل بادامه | بده کومه لکی وره بد اندامه
که باښه تر ډیره کریزه ورسیږی | د جره په طور به نه قابوچی کیږی
خو کریز باندِ تیریږی لا ښه کیږی | کال په کال په خو بګیر بوکښې زیاتیږی
د باښې په بتوله کښې لا ډیر کار دے | چه باښه ئې دست روکړه میرشکار دے
چه باښه ډنګره نه کا نه خیر نه | هم هغه سړے به کاندی پرے نیونه

## څوارلسم فصل په بیان د نیولو او د ساتلو د نوی باز کښې

که په نوی باز ښکا ښکا خوک ښکار که | د پرواز ویره ئې لره ده ښه کار که
خا بښت غرمه چه څوک په نوی مرغه ښکار که | د پرواز ویره ئې ډیره ده بد کار که
هر غرمه په خا بښت غرمه تر نماز پیشینه | و آسمان ته په پرواز به دور ځینه
د صبا په وخت ئې فکر د طعمې دی | د بیګاه په وخت ئې غم آرام د شپې وی
باز که هر څو په پهره په هنر ساز کړے | خو لا اوم دی لا به ته ترے احتراز کړے
چه پخته شی په هر کار به اموخته شی | په بازدار د ښکاری باز نظر دوخته شی
چه ډیر خوړب بې پهرو شی که ښکاری دے | هم ورک شوے په کوهسار په هواری دے
ډیر ښکاری خانه ګریزدی ما لیدلی | له مستئ نه و آسمان وته ختلی
باز چه پاس په پرواز وخیژی آسمان ته | په سل کروهه ځی په دم وهرمکان ته
د بد خوئ د لم که وتړی خو پرونه | باز به پریږدی د پرواز دور خوبونه
که بد فعله باز د چا ځی له دسته | بیا ئې بیا مومی سړی په ډیره مرسته
چه له ورایه ځنې تښتی نیول نه کا | ورته وایم په دا کار دِ علاج څه کا
ورته واچوه تارو زرکه تمځرے | ورته ګوره بیا له ورایه لکه ځرے
باز چه ورشی په خوړل په شوکول شی | ورنژدے دِ نور به فکر د نیول شی

یادِ وبولی بل باز پہ چرګه مرګه
دَ هغهٔ پہ قصد بہ هم ورشی پہ چرګه

یادِ صبر ورتہ وُکاچه تیارهٔ شی
پہ رنړا بہ دَ چراغ بانډِ نیوهٔ شی

کهٔ دِ ورک شی چرے باز پہ لویہ درګه
بوله باز پہ لوړ آواز دَ چړګ وچرګه

یا پہ هر لوری دَ درګے کړه اور پورے
رابه والوزی دَ درګے خود بہ ګورے

ورک باز موے پہ پوښتنہ پہ پوښتنه
لس پینځلس ورځے کړه دَ باز پوښتنه

پہ شلمہ ورځ کهٔ باز پہ نظر کښیوزی
ښکاری باز پہ چړګ دَ چړګ پہ آواز پریوزی

یادِ بیا ورتہ ګزګ جوړکه پہ تور کښے
یادِ وتړی چړګ مړګ ورتہ پہ پوړ کښے

زنګوله دَ باز غماز دے پہ ځنګل کښے
جانژنهٔ دی دَ هیلیو پہ نیول کښے

بیر هُنر دے دَ بازونو پہ ساتل کښے
مګر دا هنر پیدا شی پہ کابل کښے

کهٔ پہ هره طعمداری دَ باز پہ ځائے وی
هم ښهٔ ښکارکا هم ئے ورک دَ بد ئی رائےوی

یا ورځہ دَ بازو ښکارتہ حلق تریخ کړه
یا خپل ځان پہ ورځ پہ شپہ ورتہ پہ سیخ کړه

ورتہ وایم دَ بازونو ساتل چون دی؟
جګر خون دی جګر خون دی جګر خون دی

هوسناک ئے کهٔ زر زوړ شی هم ښائینه
کهٔ پہ عقل هنر جوړ شی هم ښائینه

## پینځلسم فصل پہ غزل سره پہ بیان دَ صافولو دَ باز کښے

چہ مرغونہ دَ آسمان ساتی دا کار
دَ هوښیار دی دَ بیدار دی خبردار

زهٔ دانهٔ وایم چہ زهٔ هوښیار بیدار یم
ځما هم لہ لاسہ لاړه دی ښو دینار

پہ صافی کښے ښهٔ بازونه رانہ مړهٔ دی
خام کښا دِ م کړهٔ بازونه پہ تلوار

نادان خطا لاهسے ګرانهٔ وی
کهٔ خطا ده خو خطا ده دَ هوښیار

خو دا هومره تفاوت ترمنځ لیدهٔ شی
چہ هوښیار سړی پوهیږی پہ خپل کار

نرښتہ دَ میر ښکاری ورسره نهٔ وی
بیهوده مرغی ضائع کړه نامیر ښکار

نہ مرغهٔ دَ نامیر ښکار ترلاس ورمښه
او کهٔ ورشی یا بہ خاورے شی یا خوار

دَ خوشحال خبره نغوږه پرے عمل کړه
تجربے ئے دی لیدلی دَ ~ روزګار

## شپاړسم فصل په بیان دَ مهره ورکولو باز لره

بازجره لره کهٔ مست شي صافي ورکړه
په صافئ نې دَ کولمو علت بدر کړه

چه لوئے ښکار ته هوس نهٔ کا باز بازداره
مالګه هله دَ نبات سره کړه یاره

اوکهٔ نهٔ خوتش نبات ورلره پیر دی
ورکول دَ مالګے عین لکه زلیر دی

دَ صافئ دپاره دوه چنړے نبات وي
مالګه نهٔ چه تر یوے چنړے نه زیات وي

نورے چوز لره ګولئ ترلے بویه
تر بادام دَ جرهٔ کم دَ بازده لویه

نوی چوز لره مسهل خوتش نبات دی
ړ نګر چوز لره کهٔ تش دی هم آفات دی

دَ ښنبرو دَ شکرو ښنهٔ مسهل دی
تر نبات ښخه لا دا مسهل اول دی

کهٔ صافي ده کهٔ مسهل دی کهٔ جلاب دی
درے لفظونه دی دا واړه یو حساب دی

لکه نس دَ سرې و ښیبږې روغ شي
په جلاب جمال کوتهٔ نے زړهٔ فروغ شي

هسے باز لره جلاب مسهل بائدهٔ دی
تر سرې نه لا مرغهٔ لره ډیر ښهٔ دی

یوے لوږه حرص ډیر شي بل تندرست شي
بل بد پریږدی دَ نیولو په کار چست شي

باز شاهین وهر مرغهٔ لره ښکار دی
چرغ منقار با ښه شکره چه څهٔ دَ ښکار دی

ګلاب چشم ته اوبهٔ ورکړه په جام کښے
سیه چشم ته نازه ورکړه په کام کښے

دَ شاهین مالګه یو حب نبات دوه حبه
چه شاهین به په دا جوړ شي کړه دالبه

باز شاهین چه مسهل وخوري دام ګوش کړه
په لوئے ښکار ئے برابر په هغه جوش کړه

هرمرغهٔ چه مسهل وخوري ښکار پرے نکړي
دَ دهٔ لوږه به ضائع شي کله ښهٔ کړي

دَ نباتو سره هله مالګه بویه
کهٔ په زړهٔ دَ باز دَ ښکار لرې چار لویه

یا دِ بازخانه ګریزوي یا دوناب وي
چه دَ ښکار په کار کښے دے په پیچ وتاب وي

خپله لوږه او خپل جوش باز له کافي دي
دَ نمک له غمه چوز په معافي دی

دَ ګولئ سره سُودخهٔ خو دَ نمک دے
ډیر نمک خوله آفته سره ډک دے

مګر هله کهٔ بیمار دَ خلط دَ رنج دے
دَ هغهٔ شیر و شکر مالګه لوئے ګنج دے

پرمهره دَ هرمرغهٔ اکثره بویه
دَ ورمیږ ماغزهٔ پرمهره پرمهره بویه

دارچیني هم ګاه ګاه ورسره وینه
پرمهره سره دا چار ګنړه مهینه

د چینجي علاج هم نه پرېږدي وباته
بادا غیر زحمت هم نه پرېږدي وباته

فوائد د دارچیني د خوړو ډیر دي
درته ښو کښم ښوک م یاد دي ښوک م هیر دي

د هر ښکار ترېخې د خوړې د باز صحت دې
لا د چرګ ترېخې دافع د هر علت دې

که ډیرې ترېخې خوري په زمستان کښې
ښو خشخاش د باز علت نه وي په ځان کښې

برمهره که ټینګه کلکه راوړي سخته
بنځې مه ګڼړه دارو کوه د وخته

یا ذبا دو کولئ ورکړه چه تندرست شي
یا تقلیل د طعمې بویه چه باز چست شي

برمهره که باز وانه چوي بدکار دې
په دارو بڼې راوا چوي بیمار دې

یا یوه دانه اوربشه مشک بانده دي
چه ئې وخوري ګڼړه هو مره هنځم بنه دي

د خو صبر سقوطوي که باز ته ورکړې
برمهره به ئې په دا هنر بهر کړې

داعلت چه باز پیدا کا ورته نه شي
د چار پائې د قاز قلنګ د لوئې غوښې

برمهره که ګل ولائ راوړي پریشانه
بیماري که د پیخال سره عیا نه

که مس نرم په سوهان سره مصعد شي
یو نخود برابر ورکړې سود بې حد شي

که درانه دواړه هډوکي نیسي بیا رته
یا ئې خلط دې یا ئې ضرب دې وهو ښیا رته

## اولسم فصل په بیان د رایستلو د بازله کریزه

په دا ملک کښې چه ځما وطن مسکن دې
درته وایم د ښکار وخت چه معین دې

باز اخست شي له کریزه په میزان کښې
بنه شي ښکار د باز شاهین په دا آوان کښې

په تحویل د سنبلې راشي بتهیرې
مرغابئ او زا نرې هم شي را برخېرې

ځارې هم په میزان راشي که ئې وینې
په اول د لړم راشي قازې سپینې

له راتلل د مرغابیو په خوشه دي
ښې د ښکار لا ئې تې عین په لیندہ دي

بریلي کښې ابتدا په دلو راشي
ښې ئې نیسي په دا وخت چرې سونا شي

د هیلیو ښکار موندہ شي ترنوروز ه
ترحمل ئې هورته نه وي نوره روزه

ترغوایه پورې د زانرو ښکار موند شي
د بتهیرو ښکار په دا موسم کښې بنه شي

تر تارو زرکې سیسئ په حوت د ښو شي
په دا وخت د ده نیول په کرشنو شي

د تتخري ښکار ترتلې ترحمله
کیږي بنه د میږې چارئ ده اوله

په کريز کښې باز تازه شي په جوړا کښې
نهٔ شي نور دَ مرغو ښکار په دا هوا کښې

## اتلسم فصل په بيان دَ کښينولو دَ بازونو په کريز

باز چه وخت دَ کريز راشي ښهٔ ئې صاف کړه
ورته وګوره ښهٔ کور نوے پسند لے
نهٔ دَ ونو باندِ سوړے وی نهٔ سړے
پکښې پاس روښنائی نهٔ وی دَ بخرې
دَ شمال په لور کهٔ کمه دريچه وی
نشينه دِ ورته وتړی ښهٔ پلنه
څوک دِ بے بازداره نهٔ ورځی وبازته
څوک دِ پاس دَ دغه کور د پاسه نهٔ ځی
لمبيدل دَ باز ښهٔ نهٔ دی په کريز کښې
کهٔ کښې کهٔ لمبيدل کا هم دِ کا ندِ
سپيلنی دِ هميشه وبازته سول شی
ښے طعمے دِ ورکوی پاکيزه پاکے
کله چرګ کله مرغئ کله کوتره
هميشه يوه طعمه ورته علت ده
په کريز کښې باز دِ ير خورب مست پرير بد دی
چه مستی په باز کښے نهٔ وی ښهٔ آرام وی
په کريز کښے کهٔ دَ خلط زحمت پيدا کا
غوړ دَ تورے غوا خرفه سره پاخهٔ کړه
کهٔ دَ زيت غوړی داشان ورکوی ښهٔ وی
مشکل کهٔ په کريز کښے خوری بازونه
هم به رنګ کړ باز دَ پښو په اصلی رنګ وی
فاسد خلط ورځنے لرے په انصاف کړه
چه بد بوئ نهٔ وی لوګی نهٔ وی وهلے
بد بوئ ورځنے ورچنے هم لرے
خو يو ور لری ترے لرے چړی پری
چه رنړائے ډيره نهٔ وی هم به ښهٔ وی
باز دِ وتړی باز دار په کور دننه
يو باز دار دِ تنها ښهٔ ورځی وبازته
يو قدم کهٔ باندِ کيږدی کله ښهٔ ځی
تل دِ صافے اوبهٔ ښبی په يوهٔ ځيز کښې
ډک تغارا وبهٔ دِ ږدی دَ باز دَ وړاندِ
کهٔ کښے دِ عود کشته بخور کول شی
نهٔ بد بويه ګنده شوے بد خوراکے
دَ حلوان دوړے دَ زړکے غوره غوره
هره هره طعمه باز لره صحت ده
په دا کار به خبردار چه باخرد دی
هغه هومره پرے نهٔ اچوی آرام وی
شودهٔ هم شکرے مالګه دِ دوا کا
کله کله ئے طعمه سره ترخولهٔ کړه
په کريز کښے نوردارو ورته ښهٔ نهٔ وی
نهٔ لمديږی په اوبهٔ دَ باز پرونه
هم به جوړ دَ دهٔ نوکونه دَ دهٔ جنګ وی

## نولسم فصل په بیان د دارو کولو د باز په سبب د خلط په کریز کښې

که ضرور شي چه دارو ورلره بو یه
که د خلط په سبب روغ نه وي بیمار وي
اول ورکړه په اوبو نمجنې غوښې
دا څو وخته ئې آرام په دستکشۍ کړه
قند بوره دا دواړه توکه بنه میده کړه
په یخه کښې د باز ترستونې تیر کړه
د باز خلط به هم په دا علاج بیرون شي
په کریز کښې که بیمار شي هم دا زده کړه
که بدخوئي یا تریاک یا خام کشادوي
د غوایه غدود نږدې وذبح ګاه ته
غدود بنه په خپلو ګوتو کښې ومروړه
چه بنه وچ شي دوه عدده څلور ورځې
وچې غوښې د ارنب واخله میده کړه
د بنبرو بچګان په تنکی کښې
د طعمې سره که باز هغه غوړي خوري
سپین چینجي د ونې هم بنه دي تورغاړي
خوږ وله هم که وچه د سایه شي
شلاند ه هم که په غوړیو کښې ورتیه کړي
په کریز کښې بنه مرغه د بنا پیرک دې
پرورده په خوابږه تیل د شکا نږه غوښې
بنه خود اچه خبردار په هر علاج شې
کړه کار په طبیعت بنه دې هوښیاره
پاکیزه طعمې چه باز وهر زنده خوري

دا یو څو دارو دي نفع لري لو یه
بیمار باز پرونه ونیسي آزار وي
یو څو ورځې بنې بنې غوښې خوښې خوښې
د علت دارو ئې هله په خوشۍ کړه
دا د غوا د شودو پیو بیا سره کړه
چه یو څو بیځاله ورکه اوبه ویر کړه
پاک او صاف به ئې له خلطه اندرون شي
هم دا هومره تر دا نیات دارو نور مکړه
د هغه دِ دا دارو که که استاد وي
یا د مږه غدود نږدې وذبح ګاه ته
چه زرد آب ورځنې لاړ شي چار دره جوړه
ورکړه باز ته په طعمه کښې بځې بځې
بیائې واخله د مږک غوښو سره کړه
جوشیده کړه بنې د غواو په غوړي کښې
دا غوړي د باز پرونه لوئې نرۍ خوري
سازونه د بنبرو غونډ غواړي
له طعمې ئې میده کړې خوري فائده شي
چه طعمه هغه غوړي کړه په طعمه کړي
کم مرغې د توتکۍ هم بهتر ک دې
په کریز کښې ډیرې باز لره دي خوښې
علاجونه کړه هله که ته محتاج شې
د دارو چار همیشه ده نا بکاره
زه ضامن که جانور کریز کنده خوري

# شلم فصل په بیان د رایستلو د باز له کریزه

چه خپل باز په وخت اخلے له کریزه — له ما یاد لره پر ورکړه دا خوخیزه
لس پینځلس ورځے ورکړه غوښے وللے — چه ئے سست که د درون د وازدو ولے
دستکشی د باز کوه چه ښهٔ آرام شی — بیائے صاف کړه چه ئے لرے خلط تمام شی
له کریزه ئے راواخله ښهٔ ئے ساز کړه — چه عمل ئے آراسته شی ښکار په باز کړه
کهٔ دِ باز بے وخته واخست له کریزه — چه ئے وازده لری ښهٔ نهٔ شی عزیزه
د کریز محنت دِ واړه ابته دے — د کریز په اخستو تلوار ګنده دے
کهٔ هر څو د وخته باز که ښږه تویه — آخستهٔ ئے د میزان په آخر بویه
چه هوا د غار مونهٔ وی ساړهٔ راشی — د کریز په باز هاله مسهل روا شی
په مقدار کړکنړے زړی مالګه بویه — په حساب نبات د مالګے سره څویه
اُوهٔ بخرے دِ نبات وی یوه مالګه — تردا زیات وکم دِ نهٔ وی ذره مالګه
د انار په اوبو سازے کړه ګولئ! — ورکوه ئے صبحدم کهٔ خبر ته ئے
د کریز د باز مسهل په احتیاط کړه — چرے نهٔ چه باز ضائع شی ځان بقراط کړه
کهٔ بیمار وی نور مسهل ورته نهٔ وی — تر هر څهٔ د شود و پیو مسهل ښهٔ وی
کهٔ ئے وازده وی په ته کښے پرش نهٔ کا — پلیته ورلره بویه چه ښکار ښهٔ کا
خورب باز چه له کریزه نه اخست شی — کهٔ آرام نهٔ وی پر کیږی پرئے سست شی
چه د باز وازده پاره په پرکیدل شی — په اصلاح ښے ئے رانهٔ وړے نور کهٔ سل شی
د کریز دی کهٔ د کور دی کهٔ د تور دی — کا رد هرے چار مرغئ دادی نور نهٔ دی
خورب باز په پرکیدلو خلور ځا یه — رنځ زحمت مومی کهٔ غوږ باسی خوش رایه
یا په ته یا په لرمون یا په مغزو کښے — زګ وبېئے سست شی وشلیږی په ښو کښے
په شلیدلی باز کهٔ فصل تلینه تیر شی — بیائے هله کوندِ رنګ د باز په خیر شی
په کریز واړه مرغونه سره سم دی — باز شین شنقار کهٔ لوئے دے او که کم دے
سنګریزه دِ نژدے اچوی شاهین ته — چه ئے وخوری خیری نهٔ پریږدی لاچین ته
د شنقار کریز د یخ د پاسه شینه — په کریز کښے پاس په یخ باندِ کښینینه

جاله هم دَیخ دپاسه دَشنقار وي
په کریز کښې منع شوې آبداره ده
تر پینځه تر شپږ کریزه پورې جوړه وي
په هیلیو کهٔ باز زوړ شي هم الوزي
دَجره خوبي تر دړے یا تر څلور وي
بابښه خو کریزه کیږي لا ښه کیږي
شاهین لا تر یا زچه زیات خوړ کریزونه
باز هغه شاهین هغه چه کریزي شي

تل دَ دهٔ له یخ له برفه سرېکار وي
کهٔ دَ خلط زحمت لري چاړے ښکاره
چه تر دا دپاسه کیږي نور باز زوړ وي
قابو چې شي دَ تراج د ښکاره وزي
چه تر دے نه زیات کریز خوړي کاړے نو وي
کال په کال بابښه خوا نیږي نهٔ زیږي
خو بکیږي خوبي دَ دهٔ شي لا افزونه
په چوزي کښې دَ دهٔ ښکار بے تمیزي شي

## یوویشتم فصل په بیان دَ بتوله کولو دَ بازا و دَ بابښے

لکه کار دَ تیر انداز دَ بر تولے دے
باز دِ هسے بتوله وخوري له دسته
لس پینځه گزه چه ولاړ شي پرونه واکه
خوک چه مشک دَ بتولے صفا هوار که
نهایت دَ میرشکارئ هُنرئے دا دے
بتوله دِ دَ مرغهٔ نهٔ وي په بیېړه
دَ بابښے په بتوله کښے لا ډیر کار دے
مشتکي دِ یا شکره یا دِ بیسره وي
دَ میرشکار رسا زکړے باز هم دَ میرشکار وي
چه ښهٔ باز دَ بد سړي تر لاسه ورشي

هسے رنګه کار دَ باز دَ بتولے دے
لکه غشے سم ثابت وزي له شسته
په قوت دَ بتولے پرونه پیدا که
دَ بابښے پرئے تړلي وي پرے ښکار که
کهٔ میرشکار په بتوله کښے په خطا دے
په قابو په بتوله ئے کړه تهٔ ویره
چه بابښه ئے ښه دست رو کړه میرشکار دے
چه بابښه ئے مشتکي کړه مخسره وي
دَ ښهٔ باز دَ بد سړي سره څهٔ کار وي
کهٔ یو لاس ئے بتوله که هم ابتر شي

## دوویشتم فصل په بیان دَ څورب کولو دَ ړنکر باز کښے

کهٔ تهٔ غواړے چه دِ څورب باز ړنګر شي
کهٔ ګمان دِ پرے دَ خلط دَ خیرن وي
کهٔ دَ باز نشته طاقت په خط ذلیل دے

په دا شان به زر تازه څورب بهتر شي
خلط ئے لرے په مسهل کړه مبرهن وي
دَ پیوري غوا شودهٔ عجب سمیل دے

یا بوره یا مالګه دَ دهٔ حبه میده کړه
درې مثقاله دَ غوا پیۍ هم ورسره کړه

په نچه ئې چه دَ باز ترحلق فرو کړې
دَ خلط ولی به په تِه کښې په ویستو کړې

چه ئې خلط له ځانه ووزی برطرف شی
په ښو ښو طعمو به بیا دَ ښکار دَ صف شی

مسهل ځکه وروغ باز ته ورکول شی
چه له خلط سلامت شی په نیول شی

دَ مسهل په خوراک باز وی بے علت
چه مسهل نهٔ خوری پرې ورشی ډیر زحمت

دَ چینجی په سبب هم مرغهٔ ډنګریږی
دَ مرغهٔ خوراک غذا دَ چینجی کیږی

یا دِ باز وَته څهٔ ضرب وی رسیدلے
په هغه سبب ډنګراوسی ځپلے

یا ئې ډیروی په ګرمی کښې پرې ښکار کړې
یا باز دار په پرکیدل کښې وی خوار کړې

کهٔ آزار ئې وی دَ خلط حرص ئې ومری
خور درهم پیخال به کهٔ طعمه به نهٔ وری

چه پیخال سره چینجی په مزکه پریوزی
دَ چینجی زحمت په دا په نظر کښیوزی

کهٔ آزار ئې له ګرمئ نه وی موندلے
هم اوبهٔ څښنی هم وی رنګ دَ باز وهلے

کهٔ آزار لری دَ ضرب ملول دلګیر وی
کهٔ طعمه خوری هم دَ ځان په کاهش خیږوی

کهٔ په ډیرو پرکیدلو وی شلیدلے
کهٔ ئې ګورې تل ملال اوسی زبېلے

په هر رنګ چه باز ډنګرشی دا خو بویه
دَ دهٔ ځائے دننه کونج دے لکه سویه

چه په ډیرې ورځې باز شی ډنګرپاتے
هم له ښکاره ئې موقوف کړه ورځې زیاتې

دَ مږهٔ زړهٔ دِ غواړ پیوسره تل خوری
پانړے پانړے ئې کړه زړهٔ چه باز ئې ښهٔ خوری

کله کله په مسکه غوړه طعمه کړه
چه ئې خورینه ښه فائده لری دا زده کړه

کله ګچ نبات ګډ دواړه برابر کړه
په مقدار دَ یوهٔ جوزئې باز ته ورکړه

کله یو با دام ماغزه ورکړه دَ ورئ
چه ئې وِته ته تازه غوښے سره وری

دَ بټیرې تازه غوښے هم زیبا دی
دَ مږ کورې غوښے سود منے لا دی

کهٔ دَ سوئے غوښے غوړې په غوړې خوری
یا چرچنړے مامولہ ترې مړے خوری

چه ئې غوښے دَ بسمل په دم لمدیږی
تجربه ده ډنګر باز په دا خړبیږی

ډنګر باز چه وږے پاتے شی ډنګریږی
بویه دا چه په وخت دِ ډے مړیږی

## درویشتم فصل په بیان دَ طعمه کښې چه دَ کوم ځناور ښه ده

درته و وایم چه ښې دی غوښې کومې | کومې سردې کومې ګرمې خشکې کومې
چه به باز پکښې تندرست فراغت اوسي | په خوښئ ئې له مجبوری ته نه یوسي
په ښارویو کښې اول دَ مرږه غوښې | دَ تندست و یکساله دَ خوسي غوښې
دَ حلوان غوښې هم ښې دي سردې ترې | که دَ بزې دي که دَ غوا دي چڑچرې
هرغرځهٔ ښاروې چه زورر غوښې ئې بدې | که ضرور وي که نا کام ونه دي ردې
سردې خشکې دي غلیظې دَ غوا غوښې | هاضمې لره ترغوا دي دَ خوسي خوښې
دَ اُشتر دَ پسهٔ دَ غوښې یو مثال دې | ګرمې خشکې دَ فالج دَ رنځ قتال دې
دَ فرس دَ نیله ګاؤ غوښې یو شان دي | ګرمې خشکې په عمل سره یکسان دي
غوښې بدې دي دَ خرې دَ ګوره خرې | هم غلیظې هم بدهضمې ګرمې ترې
خوا نه چرګه هم کوتره ده بهتره | لا ترچرګې نه بهتره ده کوتره
که تمځرې که سیسئ ده او که زرکه | که فاخته ده که چرچنړه ده که کرکه
دَدې وارو غوښې ښې دي ګرمې خشکې | لا په تیره غوښې ښې دي دَ کنجشکې
دَ ماهي غوښې دَ بطې دَ هیلئ | ګرمې ترې دي خبر که په دا ته ئې
هغه غوښې چه دَ باز دي درته وایم | دَ تارودي دَ دراج دي خوئې ستایم
یا دَ زرکې دَ سیسئ یا دَ زاغچه دي | یا خو غوښې دَ ځوان چرګ دَ بودنه دي
دَ ګوسپند یا دَ آهو یا دَ خرګوش دي | یا دَ زانړې یا دَ بطې بیا دَ وش دي
نرهٔ دَ مرږهٔ کوتره غوښې دَ چرچنړې | دَ شاهین که، که دَ دهٔ فلاکت سکنې
دَ اوړی مرغئ دَ چادي دَ باښې دي | له هرخو دارو مرغونو لره ښې دي

که فاخته که چرګه ده که موسیچه ده
دَ دوئ غوښه دَ بارئ دپاره ښه ده

## شلیریشتم فصل په بیان دَ آبدارې دَ غوښې ورکړلو

آبداره ښکاری مرغهٔ لره لازم ده | سیه چشم لره ډیره دَ باز هم ده

بنکاری باز چه مستی وکړه کله کله
بنهٔ باز دار به لته کښه ورکوله

لته کښه غوښه باز لره کهٔ ښه ده
لمده کړې نه چه سپینه آبداره ده

آبداره خو چرغ شاهین لره واجب ده
ګلاب چشم لره څهٔ خو مناسب ده

دَ شاهین کهٔ لږ خوړې دوم غوزې وی
لږ او برئې بیا په بنکار باندِ غوټې وی

چه دَ سپینې آبدارې په غوښو بنکار که
په لوئې صید باندِ هله شاهین کار که

له سرو غوښو سپینه وازده پیدا کیږی
په ګوشتاب سره ئې توره غوښه ریږی

آبداره دَ بازئ مړ کړه ډیره سپینه
نیمائی نیمکوره پریږده پکښې وینه

بازئ ډیره په علت دَ قبل قورت مری
قبل قورت ئې شی چه سپینه آبداره خوری

خپل شاهین په آب وتاب خوړب دوناب کړه
نهٔ په سرو غوښو فربه ئې په ګوشتاب کړه

دَ شاهین چه دا دوه لوږه قوت نهٔ وی
په لوئې صید باندِ دَ دهٔ برې په څهٔ وی

چرغ شاهین لره خو لوږه دَ بنکار بس ده
آبدارې سره سره غوښه نور عبث ده

باز چه ونیسی خپل بنکار غوښه ئې خورینه
خو مړیږی باز دِ وخوری غوښې وینه

شوکوی دِ په زور غوښې کمې لوئې
چه اوبهٔ دَ باز له پوزې شی راتوئې

یو دَ غټې لقمې بویه چه خوراک که
رهګذر به دَ دماغ له خرا شکې پاک که

چه سړې دَ باز په بنکار کښې بنهٔ میرشکار شی
هنرونه ورته ډیر نګه اظهار شی

باریکئ دَ میربنکارئ دِ هنرونو
هومره نهٔ دی چه ئې کښم په دفترونو

په دا کار کښې هنرونه بالا پست شته
کهٔ ئې ګورې روره دست بالائې دست شته

زهٔ خوشحال دَ دغه فوځ تهتو سوار یم
پس مانده وریسې ځم دَ دوئ دَ شمار یم

## پینځویشتم فصل په صحیح تعریف او تشویق دَ میرشکارئ په طرز دَ غزل

په جهان کښې لویه چار دَ میرشکار ده
چه دا چار ګورې هر کار لره پکار ده

خو قابو تالاش دا دواړه دی په بنکار کښې
چار دَ جنګ دَ مړنتوب هم په دا کار ده

په هر کار کښې ئې حکمت هنر حاصل شی
چا چه بنهٔ په لاس نیولې چار دَ بنکار ده

هره چار دَ نیکو بدو چه دَ باز ده
ومیرشکار ته ئې په سترګو کښې آشکار ده

آلوده په ډیر غم ورځ دَ عمر راز ده
چه په شمار دَ عمر نهٔ ده ورځ دَ بنکار ده

ورته هيڅ دَ ښکار دَ ذ خبرے مکړه
دَ هغه سړي چه طبع دَ بے کار ده

چه خوشحال باندِ دَ ښکار هوا ژوندون شو
مړده دِله کۀ په تا باندِ بېکار ده

## شپږ ويشتم فصل په بيان دَ ښکار دَ شاهين کښے

خوک چه ښکار دَ شاهين ووينې په سترګو
نور مرغونه شي وده ته لکه چرګے

په خوانۍ کښے مے هوس دَ شاهين وکړ
چه فارغ شوم ورته باز فرصت را نکړ

اوس په سپينه ږيره ښکار دَ شاهين څۀ کړم
بيا دا هومره کشالے تالاش ئے نۀ کړم

کۀ مے خوي په شاهين چين شي نو پرې خوښ يم
شاګردي کۀ له ماکاندِ ښۀ دستکش يم

دَ شاهين ګيرا کوونه درته وايم
يکايک ئے له ما واوره چه ئے ستايم

کۀ دِ زړۀ وي چه شاهين دِ زمين دوز شي
دا هنر له ابتدا په نوا موز شي

دَ باښے غوندِ ئے واچوه په مزکه
په دلبه ئے نژدے وبوله په مزکه

په ورورئ هسے بوله ناست په مزکه
په دلبه چه درتلۀ زده کۀ زغابنت په مزکه

په دلبه ستا په ناره چه ښۀ آشنا شي
پر به واکه چه حرص پکښے پيدا شي

په دا رنګ يا په رنګ شاهين يار کړه
غرض داچه په دلبه ئے استوار کړه

چه ومزکے ته نژدے په دلبه راست شي
برابر په دلبه څي نۀ چپ و راست شي

دلبه ئے بوله تل زنده دِ خورينه
آبداره دَ زنده زړۀ دَ زنده وينه

يوه مياشت يا خلويښت ورځے هنداکړه
بيا باولئ کَ کوترو ورته دا کړه

چه يو دوه باولئ وخوري دَ کوترے
نور دِ کاندِ په ريزه مرغيو چړے

په ريزه پسے ئے پريږده بيائے بوله
چه کوهي په بيرته راشي سم ئے توله

په زنده ئے سير وه آبداره سپينه
چه په ښۀ حرص ئے خوږي ورسره وينه

بياله پسه مرغابئ يو څو لاسه
چه ښے ونيسي شاهين دَ اس دپاسه

چه شاهين دِ په ريزه نيول اُستاد شي
په نيول به ئے دَ ځان ئے چه اُستاد شي

آبداره دَ هر زنده ورته ضرور ده
کۀ دَ ښکار ده کۀ دَ کور ده چه مذکور ده

اکۀ شاهين کلوخ نشين شي عيب ئے کوم دے
چه په دابه ئے عيب کاندِ هغه اوم دے

بنهٔ خو داچه لکه څۍ هسے راډرومي
زړهٔ فرحت دَدهٔ پرتلهٔ پرراتلهٔ مومي

په شاهین کهٔ همیشه هیلئ را نیسے
لا به بنهٔ پرش پیدا که خود به کسے

په هر څه ئے سیروه شاهین بے درنګ
زاغ، کامرغ، ځاړی، لک لک، قازو کلنګ

کهٔ دِ زړهٔ په ښکار کښے نهٔ یوښتئ ئے صاف کړه
په دا کار په میرمیرشکار کښے ئے خلاف کړه

چرے نهٔ وی چه شاهین درڅخه سوړ شي
نور به هیڅ درته اونهٔ نیسی کهٔ زور شي

همیشه ورکوه سپینه پنبه پاکه
چه هم دائے پرمهره ده له خوراکه

په څو ورځ دِ خوری هم وکی ډیر پرونه
چه ئے لرے کثافت کا له دړونه

آبدارے لره باسی غوښه باټڼدهٔ دهٔ
آبداره دَ تازه غوښے هیڅ ښه نهٔ ده

اول غوښه په ښهٔ شان سره برګ برګ کړه
یا وُرګ په اوبهٔ وللِ دَوینو ورګ کړه

بیائے وُنغاړه دَ شویو په رویمال کښے
درست به رنګ دَوینو ورک شي په داحال کښے

آبداره به سپینه پاتے شي یک لخته
عیب ئے څهٔ کهٔ درڅخه وی یو څو وخته

دَ زنده سره ئے ورکړه چرغ شاهین ته
منکرمهٔ شه دَمیرشکارو دے آئین ته

## اُوهٔ ویشتم فصل په بیان دَ دستکشئ دَ چرغ کښے

دستکشي دَچرغ شاهین سره نژدے ده
دَ بارئ دستکشي هم په دا پسے ده

لکه چرغ چه دستکشي غواړی له تا نه
لګړ هم په هسے شان واوره له مانه

لګړ هم دَچرغ په اصل کښے یو ذات دے
مساوات لری له چرغه له کجات دے

دَمیرشکار په دستکشئ کښے کار ښکاره شي
هر مرغهٔ په دستکشئ کښے آواره شي

چرغ شاهین دِ میرشکار نهٔ پریږدی له لاسه
ورځے شپے دِ یو دم نهٔ کیږدی له لاسه

چه ئے هر فعل معلوم شي ښه ښکاری شي
بیا مختاروی چه مرغهٔ ئے اتباری شي

دَ شاهین په باب هر څو مبالغه ده
خوئے ډیره دستکشي شي هومره ښه ده

دم غوزه بغل سینه دواړه ورنونه
دَ شاهین مړه لګئ دنبال پرونه

دَ شاهین دِ په توپئ کښے دستکشي شي
بے توپئ دستکشي ئے بد مستی شي

دستکشي دَ سیه چشم په داشان ده
دستکشي دَ ګلاب چشم تردا میان ده

نوے باز لکه دَ دهٔ فعل خصلت دے
دستکشي دِ ئے په اصل په فطرت وی

څنې دوه دونيم پهره پهره غواړي
څنې غواړي پهره درسته شپه تمامه

کۀ هر څو په ښکار کښې ساز وي بے هراس
نورے باز چه درتهٔ وکا څلويښت ښکاره

يوه ورځ دِ نورے باز و ښکار ته ورِ شي
چه دَ چرګ په آواز راشي خوغږ آوري

نورے باز دِ وا وبو وته پرے ايښ شي
دَ اوبو په چشمه سار وي دَ باز جاله

هميشه دِ اوبۀ ښنې هم دِ تغسيل که
دم غوزه لره ئے مهٔ ورو ړه لاسونه

چه شهپر لکئ دَ باز سره يوځائے وي
دواړه پښے دِ پريشانے خطا نهٔ وي

په سينه باندِ مهٔ وهه لاسونه
هر باز دار چه باز خيږن که دَ سزا دے

نورے باز چه طعمه وُخوري آرام ورکړه
بازچه ښهٔ په ښکار کښے ساز شي باور شي

دا هاله کۀ باز خوشخوئ وُ ښهٔ پرانتي
په چګس ئے کښينوه تغار دَ وړاندِ

نورے باز کۀ يوه ورځ کښيني د ننه
هغه ځائے ئے کښينوه چه عالم ګوري

په ساړهٔ کښے باز ساته په ګرم ځائے کښے
دستکشي دَ باز ښے هم لکه دَ باز دهٔ

چه باز دار سره دَ باز دستکشي کاندِ
دَ هغهٔ چه سر په پرونو کښے ډير نغاړي

درسته ورځ ئے هم په لاس لره تر شامه
ترے هراس کړه خو موړ نشي څلويښت لاس

بيا هاله باندِ باور وکړه اے يارهٔ
بله ورځ دِ دَ بلبلو کار پرے کړ شي

هغه باز کۀ څوک پرے ښکار کاندِ دَ ښکار وي
تل دِ دهٔ ته ډک تغار دَ اوبو کيښ شي

په اوبو دَ باز ژوندون دے دما لاله
په دا کار به ځان تندرست فعل جميل که

هم ئے تل لره دَ ځانګ دَ لکئ پرونه
چه تيره ناستے عادت کا خوشنمائے وي

په بهله باندِ دِ جوړ ناستے دَ دهٔ وي
لو يولو ته ئے مهٔ پريږده نوکونه

چه هر پرئے درته بريښي هنر دا دے
بيا هاله دَ دستکشئ باندِ هنر کړه

بيا هاله دِ دَ دهٔ دستکشي شي
دَ بدخوئ په دستکشئ دِ اوسے تښتي

چه آرام که فراغت که غسل کاندِ
بيل له خلقو نور خوبي لاړه له دهٔ نه

نور په لاس اخستے بويه چه وُښوري
په غار مهٔ کښے ئے ساته په سړد نمائے کښے

دَ ښکري دَ بيسري لازيا ته جواز دهٔ
روستو نه عالم دِ ځي دَ باز دَ وړاندِ

کۀ دَ باز دَ روستو تير څوک په هلئے هرے شي
چه په ترس پرې کيدل کاندِ نو بدخوئ شي

## اتۀ ویشتم فصل په بیان دَ رنګونو دَ مارغانو کښے

رنګا رنګ پاسی له جالے نه مرغونه — لکه باز هسے شاهین لړی رنګونه
دَ مرغانو ها په جاله کښے څلور وی — په یوه جاله کښے زیږوی سپین وی توروی
چه رنګونه ورکوی پروردګار دے — یو دَ بل په څیره نۀ وی عجب کار دے
ابقازی شاهین په ملک دَ ګرجستان وی — یا په غرونو دَ سنبل دَ هندوستان وی
تردا نورو په قیمت په وزن ګران وی — سینه سره په شا دَ تور کارغۀ په شان وی
دَ سپین باز لا هومره ډیره بها نه وی — تر سپین باز نه لا افزون قدر دَ دۀ وی
دَ کوترے باولئ ونخوری وهی زانړے — تر اشیان خیژی چه تورے شی مماڼړے
دَ کابل دَ قندهار چه اشیانی دی — دا همه واړه په نام خراسانی دی
دَ شاهین مرغے پیدا که په حمل شی — راوکښنه ئے دَ ثور په اول شی
چه شاهین خراسانی وی ځنے ځنے — دَ بارئ غونډ لوئے روغ وی اوږدے پلنے
تردامی نه آشیانی شاهین بهتر دے — کۀ دامی شاهین ښکاری بلند پر دے
کۀ شاهین دِ له نیولونه منکر شی — بویه داچه په زنده دِ خورب زر شی
دوباره ئے لکه نوے هسے ساز کۀ — ښکار پرے هر کله بامداد وخت دَ نماز کړه
په ریزه ئے سیروه ډنګر دِ اوسی — تر هغۀ چه قاز کلنګ په ډکه یوسی
کۀ شاهین دِ بلند پر دومی میر ښکاره — تۀ ئے مۀ نیسه هرګز له ریزه ښکاره
په شاهین سره هیلئ ډیرے نیسه — هسے رنګه به تیز پر شی بیا ئے کسه
شاهین ګرد لنډه لکئ سینه ورښۀ دے — اوږد د ورمیږ مښوکه ور تنه وریښۀ دے
دَ مښوکے سورے ارت کتبه ساری — کۀ ئے مومے بل به نۀ وی دَ دۀ ساری
دَ مښوکے سورے لوئے مښوکه لویه — باز شاهین څۀ دا دَ هر جانور بویه

## نهۀ ویشتم فصل په بیان دَ رنګونو دَ چرغ کښے

چرغ هم ډیر لړی دَ باز غونډ رنګونه — پکښے ډیر دَ مرتوب دی آهنګونه
چه له جالو الوتلی دی مرغونه — خوچرغونه دی چرغونه دی چرغونه

دَ مرغونو مزرے چرغ دے کۀ نے کورے
په تعلیم کښے دَ میر ښکار وینے کا تورے

هم نے چارده دَ تعلیم ډیره آسا نه
هم دَ چرغ دَ تعلیم چارده ډیره گرانه

په دلبه ودلوه زر راشی تیارشی
مت په دابو یه چه ښۀ ورسره یارشی

زوَرور دے مړنے دے دماغی دے
تۀ به وائے چه اوس ایل شولا یاغی دے

ښکار دَ باز کۀ دَ شاهین کۀ دَ باښے که
چه ښۀ سازشی عجائبے چارے ښے که

نقره دم وی هم چهره وی بورسوم فام وی
سپین شودۀ وی سیه پشت وی کلبادام وی

پکښے غوره چرغ سورفام وی توره ژبه
تورهم ښۀ وی بادابشت نے وی په شبه

شنقار هم اصل دَ چرغ دے ځما یاره
دَ سیری دے چاله نۀ که بے کهسا ره

ځنے چرغ اشیان په غوره کښے څوک په سم
دلاور پکښے دَ سمے دی له فهم

یو شنقار چه تل په واړو کښے اشیان که
قیمتی دے ښکار نے څوک که بادشاهان که

یونرے پشم لری ترویج دَ پرونو
ځنے ځنے موزه پائے دی تر نوکونو

چرغ شنقار چه سره پیژنی هوښیاره
ښۀ میرښکار ته نے ښکاره دی یوڅوکاره

اشیانی شنقار هیڅ لیدلے نۀ وی
لکه باز هسے نایاب اشیان دَ دۀ وی

دَ شنقار پیژندګلی دَ هر چا نۀ ده
چه شنقار نے لیدلی دَ هغۀ ده

اشیانی چرغونه ډیر دی په هر لوری
دامی هم عالم په هره کوڅه ګوری

اشیانی چرغونه ښے نیسی هوسئ
دامی زانړے تازی ښاری هم هیلئ

تماشه دَ دامی چرغ خو دَ قتال ده
دَ لوئے فوځ دَ ښخښتن ده دَ ډیر مال ده

## دیرشم فصل په بیان دَ تیارولو دَ چرغ کښے

چرغ په اصل دلاور سرکش مرغۀ دے
چه اُستاد دَ دۀ ښکاری وی دَ هغۀ دے

اول بویه چه ډیر چرک په دلبه وخوری
په طلب دِ دَ دۀ درسته هوا ومری

آبداره دِ ورکوی زړۀ دَ چرکو نو
لرے لرے دِ نے بولی په ملکونو

چه عاشق دِ دَ دادلبه شی باولئ بویه
زاغ کلموغ ریزه میزه بادائی نه لویه

بیا دِ مورړ شی په عقار په ښاری مارړی
بیا دِ دۀ لره دَ زانړے اولئ غوارړی

هسے رنګ دِ باولئ خوری چه تاؤ نے زور شی
نۀ دِ هسے باولئ خوری چه باولئ خور شی

په باولئ دِ په دوه زانړے تیار که | نور دِ څئ چه دَ صحرا زانړے پرے ښکار که
درد سر دَ چرغ دَ ښکاری ترحد تیر دے | مادا هومره درته ووے داهم ډیر دے
ما په چرغ سره نیولی دی ډیر ښکاری | چرغ خو ښکاری دَ بټیری غونډِ نغاړی
پرے م نور دَ زانړو قازو فکر نهٔ وُو | کهٔ م فکر پسے وکړے کارے څهٔ وو
چه هوا دَ یوے چارے څوک پیدا کا | هم پخپله هغه چار سړے دانا کا
شنقار هم دَ چرغ په څیر اموخته کیږی | ترسپین باز په بها گران فروخته کیږی
کهٔ نیول شی په خطا په ترکستان کښے | خال خال کبنیوزی په ملک دَ هندوستان کښے
دَ اورنګ په وخت هم بهٔ تیغون شنقار وُ | په یورپ کښے رانیولی چا دام دار وو
یو څما دام دار نیولے بهٔ شنقار وو | شاه جهان بادشاه لیدلے دَ دهٔ ښکار وو
یو په سوات کښے پریوتلے وو پشه کال وو | عجائب په رنګ کبود شنقار آل آل وو
په دا ملک په پیښور کښے چرے چرے | یا په سوات کښے بهٔ شنقار کبنیوزی دَ غورے

## یودیرشم فصل په بیان دَ اصل په بارئ کښے

بارئ اصل کښے کوهی ده نور څهٔ نهٔ ده | دا اشیان په بحر کهٔ کوهی دَ غرهٔ ده
دَ دریاب په جزیره دَ عود په وُنه | ځګرخون کهٔ دَ مرغیو په ساتنه
مګر کرځی دیو پری په هغه مزکه | اشیانی بحری موندله نشی څکه
په چوزئ کښے بارئ ډیرداد و بیداد که | چه په کور کښے کریږی شی نرخ کساد که
بارئ توره ده کهٔ سپینه څما روره | خو په ډیرو کښے یکرنګه بارئ کوره
چه دوه رنګه چه درے رنګه چه قشقه وی | ترے حذر کړه خو یکرنګه بارئ بهٔ وی
بارئ هم لکه شاهین په دلبه بوله | چه په تاؤ په دلبه راشی سمه ټوله
آبداره ئے څهٔ خوسره بویه نهٔ سپینه | چرغ شاهین ته غو بهٔ سپینه ورکوینه
چه بحری په دلبه راسته شوه تیاره | زړئے یوسه نورئے مهٔ نیسه له ښکاره
چه بارئ له ښکاره وُنیسے سره شی | نور به ښکار درته ونهٔ که کهٔ زړه شی
دَ بارئ دارو خو اصل پرمهره ده | پرمهره دَ پوست، مغز دَ هډ سره ده
په بارئ چه مرغابئ ډیرے ښکار کړی | بیا هاله په زانړو قازو تلوار کړی

دَ بارئ دَ ښکار هم لویه نندارہ دہ
کهٔ ریزہ ته میل وئهٔ کا ندِ ښکارہ دہ
دَ بارئ دَ چرغ ترمیان ځنګ ځنګ پیدا شي
ترشنقارہ هغه لا نورہ بلا شي

## دوہ دیرشم فصل په بیان دَ جفت کیدلو دَ غیر جنس کښې

باز خو شخور مرغهٔ مزرے دا درے اقوامه
غیرجنس سرہ جفتي که دا دہ عامه
دَ مزری دَ پراتګ ترمینځ ببر پیدا شي
کهٔ انکار ورځنې نکړي هسے دا شي
ذات په ذات چه اصل باز دے هغه قیرږے
چه بازونه رنګا رنګ شو دا تا ئیرږے
چرغ شاهین شنقار چه باز سرهٔ جفتي که
دا په لعلو په یاقوتو درسفتي که
زاغ تیوس لمچے باز رنګ چه ورسرہ شي
دَ هغهٔ نتاج نابودہ مسخرہ شي
نۂ ئے فعل نۂ ئے خوئ نۂ ئے هنر وي
کهٔ په رنګ کښې باز لیدهٔ شي هم بتر وي
له شنقارہ چه پیدا شي ترس لے کم وي
زرکه زانړہ دواړہ توکه ورته سم وي
یوه پښه خپله لري دَ ښکار دپاسه
بله پښه ورځنې بیله نیسي ناسه
چه له چرغ نه چه پیدا شي دلاور وي
له شاهینه چه پیدا شي ډیر تیز پر وي
له لګړہ چه پیدا شي ریزہ ګیر وي
په چستئ په چالاکئ کښې بے نظیر وي
دَ تیوس زوولی اصل هیچکارہ وي
هم په رنګ هم په عمل هرځهٔ ښکارہ وي
پرونه ډیر لري دَ ځان تنه ئے لړہ
نهٔ هنر نهٔ هومرہ پرنهٔ هومرہ لوړہ
دَ کارغهٔ زوولی وائي چه زړهٔ ور وي
اما ډیر په خوئ کښې خوار ګنده لے پروي

## درے دیرشم فصل په بیان دَ راویستلو دَ بچوله هانه

خلق ها دَ چرګے کیږي په غله کښې
ترے چرګوړي را پیدا شي په چله کښې
هغه تاوِ دَ غلے ورسي تر هوئ
هغه وارہ ها مرغے کهٔ کړے لوئ
چه مرغونه تر سینے ترسینے که هوئے لاندِ
تودوي ئے آړوي ئے لاندِ باندِ
دا هُنر دے چا مرغونو ته ښسئیلے
په بند بند ئے هسے بند ورته ویلے
دا همه وارہ ښسئیلے کړ دګار که
راشه وادرہ باز مرغی سرہ چه کار که
چه ئے وباسي له هانه لا هلک وي
هسے شان چه ورکوي خوراک ئے سپک وي

اول غوښے په جوره کښے ورستے کا — بیلئے وکاری جدا ځنے پستے کا
بیا هغه لکه خشخاش دلنے دانے کا — په حکمت ئے دَ مرغے په ته خانے کا
چه مرغے دَ باز قوت پیدا کوینه — په غذا ئے هغه هسے شان ساتینه
له بیضے نه چه پیدا توره بنږه که — دَ غذا نواله مئ او یا چنږه که
بال وپر دَ الوتلو چه پیدا که — اول حال ئے په ریزه مرغے شیدا که
چه په جاله کښے ریزه مرغے ووینے — ولوئے ښکار وته مرغے شی په ږنږه وینے
زرکے مرکے په چنګال سره زده که — چه نیول دَ باز مرغئ په هغو زده که
بیائے وباسی له جالے وکهسار ته — چه مرغی پرونه ساز کاندِ وښکار ته
ترمرغیو اول باز په ښکار غوته که — هغه ښکار ورته زبون او نیم مرده که
بیائے پریږدی و مرغی ته دے ئے کسی — له مرغئ نه هم خلاصیږی مرئے نیسی
چه مرغیِ دَ باز ښکاری شی باز ته شا که — په درو کښے دروبی ښکار نیسی هوا که
چه ئے زړهٔ وی هسے ښکار دَ کوهستان که — نئ مور پلار بیا یادوی نهٔ یاد اشیان که
چه مرغی دَ باز په باز پروادار نهٔ وی — هغه هومره مشقت دَ باز په خهٔ وی
په دا کار کښے حیرانی ده غرض کوم دے — مګر پوخ په دا پوهیږی نهٔ چه اوم دے
باز ته چا ورکړه دا هومره پوهه مینه — خپل مرغی هسے ساتی نو مرغے خورینه

## څلور دیرشم فصل په بیان دَ ابتدا دَ میر ښکاری کښے

ابتدا دَ میر ښکارئ مشق په جکړه دے — بیا شکره باښه بیسره ده بیا لګړه دے
دا خو توکیه چه ښهٔ روسره ښکاری که — بیا هاله دِ باز شاهین ته تیاری که
لګړ ډیر په دا ملکونو پیدا کیږی — ښکاری نهٔ دے چه له ډیرے چیرے ترهیږی
په دلبه چه ښهٔ تیار په ستونو شی — تلهٔ راتلهٔ ئے عجیبه په کرشنو شی
کهٔ علت دے کهٔ دارو دی کهٔ تعلیم دے — په هرځهٔ کښے اتیالک سره سهیم دے
ښکار دَ زاغ عجب په شوق ذوق کاندِ — په سلګونو ستونے خوری لا ندِ باندِ
بوتیمار سوبه عنقا رنیسی خو سنګه — بلکه وریشی ترقازو تر کلنګه
شکرے هم په رنګ ترکیب لکه دَ باز دے — عینه دَ باز په شان په خپل بیاض دے

په دا ملک کښې اشیانې شته هم دا شته
خونریزه نهٔ بنګالی غونډِ نامې شته
یا شکره دَ بنګالے یا دَ پنجاب ده
یا شکره دَ کلابست یا دَ مرغاب ده
دَ بل ښې غونډِ شکره اموخته کیږی
دَ شکری غونډِ بابنه اموخته کیږی
په تعلیم کښې له اوله بدفعلی که
چه عادت شی شکره ځان لکه اهلی که
خو پرونهٔ دَ لکئی ساتلی بویه
چه پرونهٔ سلامت وی چار ده لویه
بنه شکره درته کارغږ نیسی شین کوسی
تور تارو تمځرے هم په ړکه یوسی
بیسره ځهٔ ده نهٔ شکره ده نه بابنه ده
تر بابښې نه کمینه تر شکری بنه ده
په بل ملک کښې جاله نهٔ لری بے هنده
نام نشان ئې رسیدلے دے ترسنده
ترشکری نه په لیدلو ده خوشرنګه
ستر ګے سرے لری تورسرا وکبوډ چنګه
دَ نیولو ئې عجیبه ننداره ده
نهٔ دِ ولی بیسره ښځه وی بنکاره ده

په خورنګه دے جفتی چرچنړے نیسی
په خپل کورئے ملوکان ننداره کسی

## پینځه دیرشم فصل په بیان دَ خلط دَ باز په سبب دَ غوښې

یا دَ خلط په سبب باز غوښې خطا که
یائې زده کهٔ له تهٔ طعمه خا که
یا چه تل تل همیشه خوری هغه غوښې
له مجبورے نه سرے قی که هغه خوښے
یائې رګ وپے چه وشلوی په کام کښې
په قح قحئې راجا رباسی په ناکام کښې
یا چه وخوری طعمه ډیر دوی پرکیدلی
په ګرمۍ کښې پرکیدلی وی شلیدلی
یائې تهٔ په بلغم پوروی یاله باد ه
چه زر زر پرمهره نهٔ خوری له استاده
یا جوشش دَ عقلو دے لری په خولهٔ کښې
یائې دردوی یا نور ځهٔ نه په زړهٔ کښې
په هرشان طعمه رده کهٔ باز داره
هغه ورځ ورته طعمه مکړه آشکاره
په اوبو کښې مستکی کړه مضمحله
چه ئې باز پخپله وخښی یو ځو ځله
اوبهٔ ترمے مستکی چه نوش جان که
کثافت له تنه لرے په هرشان که
بله ورځ دَ امتحان د پاره غوښے
دَ چرچنړو ځهٔ خوور کړه کهٔ شوے خوښے
تر بیګاه پورے ورکړه دوه مرغئ
په وار وار نهٔ یکباره کهٔ خبر تهٔ ئے

بله ورځ په وار وار ورکړه څو چنځے
او که نهٔ څروی طعمه خوا اچول کا
باز که هر کله طلب د اوبو کا نډ!
هلیله مالګه نبات برابر واړه
چه یو څو پیځاله وکه طلب کار شي
چرګه مرکه ډ وباز ته چغوینه
که طعمه ئې ته ته یوړه خیریت دے
د مږ کوری یو طعمه ورلره بنه ده
نور په هره ورځ چه ئې طعمے پیدا شي
که په دا هم اساني د باز وُ نشي
د مږه زړه ډ بنهٔ ریزه تنک تنک که
تلخ لونګ ډ د نساله پیوګډ که
چه ئې وخوري که تازه په دا علاج شو
په مقدار د مهے مئ کښے لونګ ورکړه
که په دا دارو بنهٔ نهٔ شو یوه مهه
اُمید کړه چه باز به روغ په دا دارو شي
که پاره کړے د تمخری ترحلق کار ته
د سنګدان پرډ د زرکو کړه شي وُچے
د سینے د کونګی غوښے هم لا ښے دي
د غمو د نغن مورګه نوی سوی
په هغه اوبو د مږهٔ غوښه لمده کړه
دے زحمت لره هم بنهٔ د میږے پڅ ګي
بیا ترکیب د سونډ وهلم د عسل دے

په دا شان به روغ علت د باز وسکنړے
بویه داچه مقید شي علاج بل که
دا علاج دے لازمي په بازدار بانډ
دا جلاب وباز ته ورکړه بنهٔ دُغواړه
د ترړیه دریزه طعمه پکار شي
چه ئې فهم پرے غلط شي طعمه وړیئه
بیا ډکانده بنه څهٔ ورکه چه صحت دے
چه دوه درے طعمے قبولے که ولجه ده
ورکوی ډ چه قوت بهٔ ئې په دا شي
درته وایم اساني به ئې په څهٔ شي
رګ ریشه څر بښت مربښت ورځنے ورک که
سائیده ډ د لقمے سره ګډ وډ که
بنهٔ ګنړه چرے د بل علاج محتاج شو
په صبائې د ریزه په لقمه سر که
که ئې صبر سقوطوی ورشي ترتهه
او که نهٔ د مرګ دے بریز. ده چیکسو شي
په صبائې غوښے ورکړے شي وباز ته
له طعمے ډ خوري مقدار د بزو پچے
تر هر څهٔ وباز ته بدے وچے پښے دي
د اوبوسره چه دا شي او بهٔ شوی
چه ئې وخوري که ئې هضم کړه غم مکړه
چه ئې خوري ورسره غوښے د مرغئ دي
مجرب دے آزموده دے ډیر اول دے

په هدف چه غشے تیر د تیرانداز شي
یو خو وي چه د هدف په سینه ساز شي

## شپږ دیرشم فصل په بیان د رحمت د قبل قورت او دمې کښې

دره رحمته په کتاب کښې اندراج دی
قبل قورت دمه دا دواړه لاعلاج دی

قبل قورت نری چینجی لکه ویښته وی
یوه لویشت وی یا ځه کم و اولیږ نه وی

واړه غټ د باز شیند چینجی نور هم وی
نه واړه قبل قورت غوندې لږم وی

په لیدلو سره ډیر چینجی لیدل شی
په درون کښې حواله د باز په دل شی

د هغو علاج به وایمه د وبها نند
ناقلان په خپل محل خبرې کا نند

داوبونه نزله دومی هم هرڅه دی
چه دا واړه سره بیل که پوخ هغه دی

دومی څه دومی سیاره ده که پوهیږې
هیڅ دارو د دومې نشته که کروهیږې

که دمه د توخی دومی یا د زور که
یائې رنځ دې یا عقله د چه د شور که

داهمه واړه علاج لری هوښیاره
رنځ علت ئې په داروځی له میر شکاره

## اووه دیرشم فصل په بیان د چینجی د باز کښې

پوچینجی د قبل قورت غوندې دراز وی
لا ځه غټ په دا چه غم الم د باز وی

هیڅ آزار د دې چینجی و باز ته نه وی
په دا روئې برطرف کړه بد که بنه وی

چه خیرنې طعمې باز وخوری بد شری
دا چینجی شی ترې پیدا لکه ژوری

تنبیله د خولې او بڼ سره ممزوج کړه
د طعمې سره ئې ورکړه دا خروج کړه

چه بنگال سره ئې واړه چینجی پریوزی
یا په دا او یا په نور دارو وروزی

دارچینی چه پرمهرې سره باز خورینه
د چینجی علت په ځان کښې نه پریږدینه

د رحمت لره چه باز د غواغوږی خوری
د غواغوږ هم په ډکه سره چینجی وری

## اته دیرشم فصل په بیان د توخی د دومی

که په توخی دومی باز دمه کوینه
یائې گرد خاورې سپیږ مولره ورشینه

یا دمه د ډنگر توب یا د جوشش که
یا دمه د حرب د ضرب د ډیر کوشش که

داهمه واړه علاج لری باز داره
فارغ مه شه د علاج له کاره دباره

معطسات نسوار ضرور ورلره بویه
چه په لار د سپیږ موګړه شي دارو ځویه

تر سپیږ موږے چه اوبه خراشکي بیرون شي
نور به بنه د بازماغزه د بازلړمون شي

اول مرچ بیا انګوزه دریم حنظل وي
وار په وار نسوار د دړګ وار پر اول وي

تل د لنګے غوا پئ وځکوه میرشکاره
چرے نه وي چه فارغ شے له دے کاره

د بازځلے بویه همیش په ګرم ځائے کښے
خور غیږي غلط مه شه په دا رائے کښے

که دے یو نفس له ځایه نه بیرون کړے
بیا به سرد و باره غوځ د بازلړمون کړے

خوچه باد و ربا ندِ نه لګی سود دادے
چه په ځائے کښے ګرم ناست وی بهبود دادے

ځائے که سوړ وی پکښے اچوه سکروټه
چه د ژمی سوړ ساړه شی ځنے وټه

توخے دروی ترے له ډیر د نوی باز شی
ناګهانه ئے میشتی په هوا ساز شی

په میشتی کښے ګرد غبار لوګے موګے وی
په صحرا کښے کله اور کله لوګے وی

په صحرا کښے بنه بغږونه چشمه ساروی
د بازونو د ذوق هوا په مرغزار وی

ځکه چوز په اول کال کښے تما میږی
په رنګ رنګ به ئے ساتی که ځوښ نک پوهیږی

چه د کورخانه ګریز وی بازهاله وی
چوز مرغی نه د ساړه نه د غارمے وی

نسوارونه په ډیر رنګه ورکول شی
په یوه نسوار که نه شی بیا دِ بل شی

و نسوار لره بنه صبر سقوطوی دی
یا بهترے بنے اوبه د آهوری دی

د باداموغوړ نسوارو له هم بنه دی
که ئے ناس کړے ورته بنے تود اوبه دی

که په داهومره داروئے فائده نه شی
سکه علاج به ئے په داغ په پلیته شی

یائے داخله د سرپاسه کیږی
که په علم جراحئ کښے استاد ته ئے

د حلوان د پیه د موموساز مرهم کړه
پرپرږ ده ځه خو پرهارئے فراهم کړه

چه زرداب زوے ترے ځی هومره فائده ده
که دِ زده وی داهم بنه معالجه ده

که ډیرے ترېخے باز په هر صبا خوری
خود موتو دانے داهم بنه دوا خوری

په دانغ کښے د چارپائے غوښه ګنده دی
د چرچنږ د ریزه غوښے فائده دی

پرمهره دِ بازهم کله کله خورینه
یو نیم برګ دِ دارچینی ورسره وینه

## نهه دیرشم فصل په بیان دَ علاج دَ سپږو دَ باز کښې

په اغیږ مغیږ چه شی باز په لوږے
فلفل مول یا فلفل دانه بښهٔ میده کړه
دَ باز سپږے به په دا دارو شی لږے
یا یوه لته خامتا دَ باز په غاړه
دَ باز سپږے به راټولے په خامتا شی

دَ خوارئ دَ محمه وُشی دَ باز سپږے
دَ باز پرونه پرے تروبخ پوړے گنده کړه
کښئے کورے ښے خوندی شی دَ باز سپږے
اندرون ئے په پرونو کښے وُنغاړه
باز به خلاص له هغو سپږو ونه په دا شی

## څلویښتم فصل په بیان دَ عقلی دَ باز کښې

چه علت له عقله باز لره پیدا شی
په کریاس سره دِ مات دَ باز جوشش که
چه سپین والے برطرف شی له آزاره
دا درے توکیه کړهٔ یو ځائے سره میده که
هم دِ ژبه دَ مرغهٔ که پرے ککړه
دَ چرچنړے دَ ریزه غوښے دِ خورینه
کهٔ دَ تورے غوا په پیو اول پاک کا
کهٔ دَ باز عقلی دَ خولے دوائے دا ده
یا روغن دَ بلا وی یا زنگار بښهٔ دی
چه ئے فاسده غوښه واړه برطرف شی
دَ ناځوو پیځ دِ رنځ لره دارو دی

په دا شان بهٔ ئے علاج دارو دوا شی
پرے دِ مالګه مالیده په ډیر کوشش که
پټکړے سماق دوه دا او یو جوکاره
هغه ځائے دِ دَ جوشش پرے آلوده که
باز دِ بښهٔ ساتی له باده له جګړه
دَ چارپائے غوښے وباز ته زیان لرینه
باز لا ښهٔ چه دا داروئے فرح ناک که
کهٔ دَ پښو دَ کف پادی دا روا ده
پرے ئے کیږ. ده نور دارو مناسب نهٔ دَ ی
زردچوبه موم پرے تړه چه ښهٔ ئے کف شی
کهٔ دَ پښے په کف پاکه ئے په پرو دی

## یو څلویښتم فصل په بیان دَ علاج دَ پردے دَ سترګو دَ باز کښې

چه دَ باز پرده دَ سترګو شی ظاهره
دا علت ئے دَ عقلئ له بد اثر دے
یا خیر ئے غوښے خوری له زړهٔ ئے ردے

درته وایم کهٔ غوږ باسے دا خبره!
یا په ښکار کښے سیخ دَ ده په سترګو پرے
دا آزار ئے شی چه نهٔ کا غوښے ردے

پتکرے مشک ونبات کافور دا وړه | برابرے سره واخله وړے نغاړه
په اوبوکښې ئے تمامه شپه لامده کړه | په صبا ئے تف په سترګو د باز ته کړه
یوځو ورځے داعمل چه په باز وکړے | بویه داچه ترخانه ئے بیرون نهٔ کړے
دچارپایو غوښے باز لره ضرر دے | دچرچڼړو د ریزے ورته شکر دے
رس چه واچوی په اورکښے چه بنه سره شی | هغه دس دِ ساړهٔ شوے په اوبهٔ شی
بیائے واخله له اوبو بنهٔ ئے میده کړه | د باز سترګو ته ئے تف تهٔ نیچه کړه
دا دارو هرګوره ډیر بنهٔ دی عجب دی | خو باز و نه په دهٔ سوغ دی مجرب دی

## دوه څلویښتم فصل په بیان دَعلاج دَخشکئ دَ باز کښې

کهٔ دَ باز دِ دَخشکی علت ظاهر شی | بائدهٔ دادی چه دارو دَدهٔ هم زر شی
ګنړه یوځله چه دا علت ځائی شی | نورئے مرګ دے دا زحمت لادوائی شی
مګر بنهٔ میرشکار پیدا شی چه ئے چاک کا | چه دَ باز دَدے علته نه باز پاک کا
بازچه بدے ګنده غوښے خوری چرکښې | په اوبو سره ئے نهٔ وینځی مهینے
یائے اچوی وښکارته ډیرے رخه | باز بیغال دانے دانے که تیرے رخه
دَ بیغال ئے هسے رنګ هسے کونه وی | تهٔ به وائے عینه لکه چونه وی
څهٔ خوما لکه ډیر نبات کړه دَ غوا پئی | صاف کړه باز کهٔ په دا کار فهمیدئے تهٔ
یا نبات له کوچوګډ کړه کله کله | خو با دام ورکوه باز له دما دِ له
یا برګ برګ کړه زړهٔ دمږه په پیوترکړه | یوځو ورځے دا په وخت و باز ته ورکړه
دے زحمت لره ماغزهٔ دَ وزے بنهٔ دی | دَ پاچو ماغزهٔ دَ غوا غوړی بد نهٔ دی
په اوبو سره لمدے غوښے کهٔ خورینه | همیشه به دا زحمت کښې سود لرینه

## درے څلویښتم فصل په علاج دَ باز کښې چه وچے غوښے ئے خوړلی وی

باز چه غوښے بے اوبو خوری کلکے وچے | هغه غوښے ئے شی غوټه بکښې غوچے
یاچه ډیره طمعه وخوری بے حسابه | وړے تهٔ شی نهٔ قے کیږی شی کریابه
تهٔ ئے ګښته ته ته وړی نهٔ ئے جارباسی | بنهٔ باز دار دِ ئے په دا هنر وباسی

دَ کوترے دَ تارو یا دَ تمځرې — په مرغۀ دِ درسته روغه پښه ونغرې
هغه پښه چه مرغۀ روغه وی نغرلی — هغه پښے دِ بنۀ په مزی وی تړلی
په رو رو دِ هغه مزے راښکوینه — بند طعمه به هم له پښے سره راځینه
دا عمل چه یو ځله بنۀ تکرار شی — هم‌کی به برطرف دَ باز آزار شی
نور دِ نۀ ورکوی هیڅ تر صبحدمه — بله ورځ دِ طعمه ورکه بیش وکمه
باد اوبۀ علاج دَ باز دَدے زحمت دے — په نیمچه ئے ورکړه باز ته چه صحت دے
بیا دَ باز جوره و نموره په کوتو — په اوبو نوره طعمه نۀ وی دَ نښتو
انګوزه کۀ په اوبو کښے کۀ خوک تره — په سپیږ موئے ورته ناس کم ده غوړه
کۀ دَ مهے برابر کندر خوک ورکه — له جوجورے به دَ باز طعمه بهر که

## څلور څلویښتم فصل په علاج دَ سستئ دَ باز کښے

دَ چا باز چه سست کاهل شی نۀ کۀ ښکار — ورته وایم علاج څۀ کړه دَدے کار
شپږ اوۀ ورځے ئے وتړه دننه — ورکوه ښے ښے طعمے ورته بنادمنه
مۀ پرے ښکار مۀ دستکشی کړه یو څو ورځے — والے مۀ څله کۀ غارمۀ دی او کۀ وریځے
بیائے وباسه و ښکارو ته روان شه — نور بازونه دِ ښکار که پرے نګران شه
کۀ حرص وکه دَ ښکار تۀ ئے وړ پریږده — چه ښکار ورکه هغه ځائے ئے ورته کیږده
چه یکه یو څو ورځے باز سیر شی — دَ سستئ دَ کاهلئ خوئ به ئے هیر شی
کۀ کهے دِ دَ چرچڼے لقمے خورینه — په لقمه دِ څۀ خومشک پورے کوینه
کۀ لږ صبر سقوطوی ورکه څو مهه — کاهلی به ئے بهر کاندِ له تهه
کۀ ضروروی دَ تندرست هلک متیازے — په لقمه سره فائده لری وکازے

## پینځه څلویښتم فصل په علاج دَ پرګردان دَ باز کښے

کۀ علت دَ پرګردان چرے عیان شی — دَ هغۀ علت علاج دِ په دا شان شی
کله اچوی باز پرونه بے محله — کله پرونه په کال واچوی دوه ځله
خوک چه څورب باز په لاس واخلی لۀ کریږه — باز په ښکار نۀ که پیدا کاندِ داچیږه

یا ئې خاړې د وزرې بیخ پیدا شي
یا پړ کیږي په کربز کښې ډیر په دا شي
یا په ښکار کښې خبردار بڼې بازدار نشي
شلانډه ملانډه مړک کړ بوږې ترخوشي
یا ناغښي په کربز کښې یو څو وسځې
له خوارۍ شي د باز پرونه تځې تځې
کۀ علت ئې د خربښت وي چه ډنګر شي
بے دارو به ئې په دا کښې محکم پر شي
کۀ د چاړے په علت وي غذا بویه
نورغلیظه غذا مۀ ورکوه لوبیه
کۀ درون په کامبیله د مرغۀ پاک کړے
کوچ نبات ئې یو دوه درے ورځې خوراک کړے
دا زحمت به ئې له ځانه تاریه تارشي
پړگردان د شلانډې سهل وي نوردار شي

## شپږ څلویښتم فصل په بیان د علاج د بادو د باز کښې

قرقرباد د باز نښان دے د خشکئ
یا چه وښیسي لوئې ښکار که خبرتۀ ئې
تیزلونګ د ښځې پئ سره امیز کړه
په نهاره ئې مرغۀ په خوراک تیز کړه
یا لږ صبر سقوطوی ورکړه مرغۀ له
په لقمه کښې چه زحمت لري هغۀ له
یا ریشه د دارچیني نفع لرینه
چه ئې باز د پر مهرے سره وخورینه
د رونج هلم سوند هم فائده لرینه
کۀ میده ئې باز له غوښې سره خورینه
د چارمغز غوړي هم ډیره لري نفع
کۀ له غوښې ئې باز خوری زنځ ئې شي دفع
په دا رنځ کښې د چارپائې غوښه ګنده دي
غوښې ښې د عصافیر ریزه میره دي

## اووۀ څلویښتم فصل په بیان د متفرقاتو کښې

نوے باز په چرګ په غوښه په ګشته
په طلب ئې آراسته کړه سرګشته
ښکارچه وښیسے زره وینه سینه ورکړه
مړول ئې نور په لاس باندِ اکثر کړه
په آس سورشه ګرځوه ئې مړوه ئې
بدخوئ ئې څو هیریږي هیروه ئې
باز لږ خوری دوه خواړه عادت ښۀ نۀ دي
چه عادت په یک خوره شي ښۀ هغه دي
دوه خوره خو د باښې د باز ښۀ نۀ دے
باز عادت په یک خوره همیشه ښۀ دے
کۀ د باز یاد باښے بازدار شفیق دے
باز باښے لره لازم څۀ خوملهق دے

## متفرقه

چه دَ غوښې په ځائې باز له ورکوینه
خمیره د ودې بې مالګې منځ ئې بنۀ دے
دَ سرې دَ مخه بازکۀ ځۀ ترهیږی
ها، ماهے، کُج دا درے توکیه دِخورینه
ورسره کۀ بنۀ صاف کړے کبینه دے
چه په خولۀ نیولے غوښه خوری بنۀ کیږی

## متفرقه

بازکۀ ښکار له ورایه ووینی پرځیر که
کۀ تودے اوبۀ دَ باز په خولۀ اندر که
په دا حال کښې دَے باز دا رنودے دلګیر که
پر مهره به دَ بازهم په دا بهر که

## متفرقه

پاکیزه اوبۀ کۀ داخلے دوه درے کوته
ځۀ خو ښه غوښه په دا اوبۀ لمده کړه
پکښې واچوے توده دَ نغری لوټه
دَ اغیر دارو داغوښه دۀ تۀ زده کړه

## متفرقه

په طمعه کۀ باز رغبت نۀ که باز داره
په لقمه کښې څو دانے قنبیله ورکړه
یا یوه حبه نمک نبات دوه حبه
بیادِ خوری طعمه دَ غوا په غوړ ککړه
قنبیله ښه ده دَ دے زحمت دپاره
په ساړۀ بنۀ ده په اوړی ترے حذرکړه
دم درحال ورکړه په باز دَ مسهل لپه
باز ساته ګوښه له باده له جکړه

## متفرقه

دَ کوکرے غوښه کۀ باز په ژمی خورینه
ځۀ شو باز کۀ که کښے فریاد بنیا د که
هر زحمت لره دیر سود فائده لرینه
بد هغه چه وړے موړ درته فریاد که

... ... * ... ...

## متفرقه

دَ سهپرِ دَلم کۀ پر په ویخ کښې ماتشي
په دارو دَ هغه مات ځنې برات شي

## دغه رنګه

باز بابښه کۀ دَ بازدار چړے کوږ پر شي
سفید نفط کۀ پکښې واچوی سر بر شي

یائے وکنه غازه ځنے بیرون کړه
موم روغن ورباندِ تکے کړه لدون کړه

په توده ړوډیٔ کښې نوک دَ باز نغاړه
کۀ کوږ شوے وی په دائے سمون غواړه

## متفرقه

دَ چا باز کۀ بدخوئی که حکم نۀ وری
بښۀ آشنا به شی کۀ دا ګولیه وخوری

مښک لونګ مصری نبات دارچینی عود
برابر ورسره هم دَ مړۀ غدود

برابر دِ هګی سره بښۀ آس که
په صاف کړی ګبینه دِ ئے ګډ ناس که

دَ انارو اوبۀ هم ورسره بویه
په مقدار حبه ګولئی یا ځنے لوبیه

ګرزوی دِ تل په ښکار کښے دا ګولئی
ورکوی دِ تل په ښکار کښے دا ګولئی

باز کۀ غوښے دَ ښکار خوړځۀ وینۀ مینه
ورسره دِ دا ګولئی هم ورکوینه

هم به باز په الوتو کښے بے خطا شی
هم به کار دَ خوشخوییٔ پکښے پیدا شی

کۀ دَ باز شهپر په زور چړے ګنډ شی
کۀ ئے زر علاج ونۀ کړے نور ګنډ شی

میده کړی مالګه غوړ دَ غوا دا دواړه
په سوری کښے ئے دَ پر کیږده پڅ غواړه

باز کۀ ډیره بدفعلی کا ندِ آغازه
تداوی ورته دَ صاف شهد کړه سازه

## دَ باز دَ تاؤ دارو

قند بوره کافور دا درے توکیه سره کړه
مسکه هم دَ غوا په قدر ورسره کړه

کۀ هرخوری باز جُره ګرمئی و هلے
دا علت به ئے په دا دارو وی تللے

# متفرقه

موخوری لره دا خوتوکیه پیدا کړه
تورو انجو حنظل نظرون را پیدا کړه
دَ بازونو رنځ آفت دَ یے په کمان کښې
زیات هاله چه گرد غبار وی په آسمان کښې

# متفرقه

په تورتم کښې چه باز ناست وی ورو ږلاس
زړهٔ ورتوب دے که ئے نهٔ وکه هراس

# ایضًا

دَ ساړهٔ وهلے باز ترېخے دَ یړے
یا دِ دا خوری یا دِ خوری دَ مځے لږے
زیړ دَ هوئ ماهی تلخه ساړهٔ تر بندَ ده
که په قدر دَ خشخاش دَ غوښت دانهٔ
بندُ دَ باز دپاره مشک او مومیائی دی
دَ هرځهٔ دپاره دا داروځائی دی

# ایضًا

دچار پائے دَ غوښو رګ وپلے کړه لرے
مرګ دَ بازدے رګ وپلے که په باز نغرے
باز چه ؤنیسی ښکار و خوری وینه مینه
سورشی هله دے بیا ښکار ترے خلاص ښه

# ایضًا

کهٔ دَ باز دَ قولنج درد چرے پیدا شی
په طلب په ښکار په هرځهٔ سست نما شی
کهٔ په قدر دَ بادام ورکړے کاځره
دَ قولنج دَ باد هیڅ نشته نوره دیره
کهٔ دِ زړهٔ وی چه دِ باز خورب الوزی
په اول چه خورب ساز خورب الوزی
باز دَ لویو غرونو لوئی وی دَ کم کم وی
دَ تیراه بازونه خواری سره سم وی
کهٔ په دا خبره کاندِ خوک دعوه
نهٔ ده نیکه دَ دهٔ غرهٔ سره جګړه
په جُسه په تنه فرق تفاوت ډیر که
خوک اشیان په سیوری خوک په ګرم سیر که
باز چه لوږه خواری راځکوی بدحال شی
عیب علت مرض پیدا که خوئ بیوال شی

درته وایمه اکر نه یے دانی — باز ته بده ده طمعه د زندانی
بانکی باز که ډیر فریاد ناریے غوغا که — لوئے لاچی چه میده ګکړ به غوړ د غوا که
په لس ورځے کښے درے ځله که دا وخوری — ډیر فریاد به باز پرے کم که دارو بنهٔ خوری

## متفرقه

سوند لونګ مستکی عود سره میده کړه — د لقوی دارو هم دادی له ما زده کړه
پرے وخوره ګکړه پرے لقمه کړه — چرګے هضم کا ندِ ورلره طعمه کړه
سازوه د باز نوکونه چه خوشچنګ وی — د بادامو غوړ پرے مږه چه خوشرنګ وی
که ناخن د باز بهر شی له غلافه — د بادامو غوړ ئے جوړ که بے خلافه
که د باز چنګونه سست شی پرش نهٔ کا — دا زحمت لکه فالج د ترودے ځځ کا
دهتوره کړم اوبه واخله دا دواړه — د سړی مستیازے ګډے کړه په دواړه
که سونا دی که بورچی وی تبل وروکړه — الماس باش سرخ سرخوشرنګ لره خوځوکړه
هغه تبل چه سیخ پره مرغابئ خوری — هغه هسے لکه هره مرغابئ خوری
که چرګی دی که ابلق واړه دا نابود دی — په آواز د تبل هیڅ دی بے مقصود دی
په ارکه په لای خوره چه ستا رضا وی — لکه بنکار هسے د تبل پرے ادا وی
بادهم بویه مخامخ نهٔ چه ترشا وی — مخامخ د باد د باز غوټه زیبا وی
باد بښے کینړ ترځنګ د باز غوټه خطاکه — که ضرور وی ضرور هره چار روا که

## ایضاً

هر صبا د باز بیخال پر مهره ګوره — هسے رنګ ئے مروه هسے ئے زغوره
د بیخال ئے که په ځائے واړه تور سپینړ دی — دغدغه ورباندِ مه کړه که مهین دی
که ئے تور لړلے نه نرسوے رنګ وی — دا همه د خلط اغیر د زحمت زنګ وی
پر مهره نرمه هم نخښه د زحمت ده — سخته توله پر مهره د باز صحت ده
که په خوله کښے عقلی د باز پیدا شی — که په بله دوانهٔ شی بیاِ دا شی
د غوا غوړ د غوا شودهٔ سره تاوده کړه — په هنر سره داغ ځائے د جوشش ته کړه

# متفرقه

که د باز جبوره خیری شی بازداره
اندرتل ئې ضروری دی له تلواره

په پرهار کښې ئې رانجه سکاره اندر کړه
هغه ځائې ئې د سمن په غوړو غوړ کړه

که جوشش د باز پیدا شی په چنګال کښې
روغن داغ ورلره ښه دے په دا حال کښې

یا جوشش په مالګو بے سره ښه پاک کړه
بیا میده نکاریږې پورے په تپاک کړه

په جسم کښې که جره د باز په رنګ دے
امتحان ئې په مبنوکه یا په چنګ دے

باز چه کوز په مزکه کښینی له چګسه
په چګس دِ بیا په خپله کښینی کسه

په چګس که ئې ته کښینوے بدکار دے
په داهسے کار خوک نه که چه مېرشکار دے

په ساړه دِ چګس نغښتے په نمد وی
سوړ چګس په ژمی باز لره پرېید وی

د باز پر د بانس په ستن سیب کړے ښه دے
که د پره په تبل سیب شی هم بد نه دے

که د باز منګل اماس وکه له ضربه
یا د ښاړی د سرخاب د قاز له جربه

پریکړه نوک د دهٔ د کمے کوتے نخچے
چه ترے توئې تورے وینے شی بیا وچے

نور هاله دارو مارو ورلره سویه
بیا هاله تر بند مربند ورلره بویه

چه د باز فاسدے وینے ورکے نشی
که هزار دارو پرے کیږدے په داخته شی

باز په ژمی ښه ساته په ګرم ځائې کښې
اوړے هم چه معتدل وی په رستلئې کښې

په کلک ژمی په نوروز مسهل ښه نه دی
نور په هر موسم مسهل ورکوه ښه دی

چه ئې اخلې له کریزه هوا ګوره
په غارمه کښې جلاب به وی ترے ئې ژغوره

په لړم کښې باز اخلی له کریزه
مسهل هم په دا آوان ورکړه عزیزه

مستکی که په کریز کښې خوری بازونه
د بازونو په نم نه لګی پرونه

بل پرونه د بازونو خوشنمائې وی
بل به رنګ د باز د ښو واړه په ځلې وی

بل به هیڅ اشتها نقصان ونه کا
بل به لرے ځنې عیب د غارمې کا

باز خو رام خو آرام وی کریز ښه کا
چه نه رام وی نه آرام کریز نه کا

چه د خلط علت د باز وی زنده نه خوری
په نابوده طعمه کله کریز ښه خوری

اول باز له خلط پاک کړه مسهل ورکړه
د کریز په کور کښې بیا هاله اندر کړه

که ئې وتړې په کور کښې چه انسان وی — بیل له خلقه په باز لا کړېږ آسان وی
دست ګردان کړېږ هم ښه دی چه خو ښکار که — په سیرئی کښې باز درست او د خپل کار که
باز که د رنځ لړی له باده له جګړه — په سنګ تاؤ سره د خوری غوښه که کړه
که د غوا له شودو ګډې کړې شکرې — یو چونګ ورکړه خلط د باز شی په دا لړې
که بوره یا مالګه خو خو ورسره وی — د شودو پیروې ورکړه چار لا ښه وی
چه د باز ته خالی شی غوښه ورکړه — ګنړه رنځ زحمت به بیا مومی حذر کړه
چه په لاک باندې باز نه شی په نوکونه — په خپل ښکار کښې ئې واز نه که پرونه
باز به چړې خو بګیری یا تیز پری که — الوتل نیول به واړه سرسری که
د ښنبرو د شکرو ښه مسهل دې — اختراع د مصنف ده ډیر اول دې
که یو چونګ وباز ته ورکړې زیاتی نشته — پکښې لوږه خوش فعلی صحت هر څه شته
باز چه ګرم باد ته وباسی بازدار — توخی دومی ورته اېښی وی تیار
باز د توخی د نزلې دمه پیدا که — مګر ښه میر ښکار د دې زحمت دوا که
درته وایمه چه درسته میرشکاری ده — میرشکاری طمعه داری شب بیداری ده
که دارو وائی دارو خو پر مهره ده — د اوبو سره لمده څه خو قطره ده

چه ضرور نه وی دارو لره ترې لرې
نور به ختم کړم په دې خپلې خبرې

ختم

  

پہ دوران دَ شاہ جهان بادشاہ ځواني وہ
سرائے لہ سواتہ فاصلہ لری دیرش کروہ
درے خیزونہ م دَ سوات دَ زړہ پہ یاد وو
یو خسران چہ پہ حضور دَ وادۀ کار وو
زۀ نوکروم، یوسف زی روکردان وو
ملوخان دَ وادۀ کار دِ ما پہ زړۀ کړہ
تماشا دَ نرگس زار وہ کۀ دَ ښکار وہ
سوات م واړہ لکد مال کړۀ سرترپا یہ
ملک دَ سوات دَ ملکانو دَ نشاط دے
وشمال وتہ ئے غر بلورستان دے
هندوستان وتہ تور غر لری بدغا شی
تر کابل نہ ئے هوا دَ اوړی ښہ دہ
پہ هوا کښے دَ کشمیر پہ آب و رنگ دے
طولانی درہ تر دیرشو کروهہ ډیرہ
لہ مشرقہ ئے دریاب درومی مغرب تہ
پہ هر کلی پہ هر کور کښے ئے وَلے ځی
نۀ پرے لار رشتہ نۀ بل کار نۀ ئے بل سود دے
کلہ کلہ پکښے هسے ارزانی شی
هم سړے اوبۀ چینے لری هم واورے
هر هر ځائے دَ سوات دَ ملک ملوکانہ دے
ملوکانو عیش عشرت دے پکښے کړے
پکښے لوئے منارے شتہ، بتخانے شتہ
دَ میوو دے دَ گلونو د بستان دے
دوہ خیزونہ دی دَ سوات تحفہ تر واړہ
دَ سوات ملک چہ پکښے روغ حویلئ دی

میّسرہ دَ زړۀ هرہ کامرانی وہ
چہ ورکوز شی تر دریا دَ سوات تر کوہ
نور ئے هرځۀ پہ حیات ومات باد وو
بل ئے بوئ دَ نرگس زار دریم ښکار وو
ښکہ ورغلۀ تر سواتہ ځما گران وو
زۀ پہ کور دَ صدر موړ ئے، راوادۀ کړہ
پہ پیرئ کښے را پیرزو دَ کرد کار وہ
خبردار ئے شوم لہ هرہ هرہ ځا یہ
پہ دوران دَ یوسفزیو وران رباط دے
شرق کشمیر، غرب ئے کابل او بدخشان دے
پرے خاتۀ بہ دَ لشکرو پہ غوغا شی
دَ کابل هوا ترخہ دَ دۀ خوږہ دہ
حیف دے دا چہ کشمیر ارت، دے تنگ دے
عرض ئے دوہ کروهہ یا یو یا تیرو بیرہ
پہ کج راستے ویل مۀ کوہ کاتب تہ
هم ئے خوری هم ئے هر لوری تہ غلے ځی
خو یو کُنج گوشہ لہ خلقو غلہ بود دے
چہ پہ دوہ تورہ دَ ښلو مهمانی شی
نۀ پہ سوات بادِ سموم شتہ، نۀ گرد خاورے
بے سردارہ بے حاکمہ کوہ خانہ دے
پہ هغہ هنر کښے نۀ دے دا وکړے
لوئے کوټونہ حویلئ دَ زملے شتہ
دَ ملوک لائق پہ وخت دَ تابستان دے
گل رخسارے کافر، باز، دا دواړہ
پہ هر کور کښے گلزا رونہ سهیلئ دی

دَ سوات ملک چہ درست لائق دے دَ باغونو
پہ ھر لور کښے فوارے دی آبشارونہ
ھسے ملک ھسے ھوا ھسے جویونہ
کال پہ کال دَ ملک پہ ھسک کا بدِ باختونہ
یوسف زئی ډیر چرکین لری ځایونہ
کۀ پہ سوات کښے بےنظیر دی وریژے ماشی
پکښے دوہ خلہ تیږن پہ بروړو شوم
خُوسړی ھومرہ ئے سپی پہ ھرہ خُونہ
درستہ خونہ ئے نیولے پہ کندوانو
بائے زی ئے روزګار کا چہ سیلان دی
پہ ھر کال ئے دوصو تیرصو باز نیول شی
کۀ بل ښکار دَ سوات پہ ملک کښے پہ مقدار دے
مرغاوئی ئے دَ سیند ترسرو پا شتہ
ھم ګاوز بزُونہ سرړے ھم کوتہ پائے
چہ دَ سوات سرہ تړلے دے ملک ډیر دے
دَ چترال سرحد دَ سوات سرہ قریب دے
وچترال وتہ ئے لار دَ کوھستان ځی
درے ځلور میاشتے دا لار وی بنہ روانہ
تلۀ راتلۀ دَ خلائق پہ دا لار کم شی
یوہ لار دَ ھندوکوہ وہ ترکستان تہ
بلہ لار چہ دَ بتن ځی تر کاشغرہ
دا څو لارے پہ سرحد دَ ھندوستان دی
یوسفزی پہ شمارہ ترحساب تیر دی
دَ مغل نمک ہم وخوړ شپیږ پیړئ
رعیت ہم یوسفزی درست ختک وو

یوسف زیو برابر کړلہ راغونو
بنۀ شھرونہ بنۀ سرایونہ بازارونہ
نۀ ځایونہ۔ نۀ باغونہ۔ نۀ بویونہ
بے شکرو پہ خپل ځان کاندِ تاختونہ
آلودہ ګندہ بدبوئ لکہ سرایونہ
دَ منګوړو دَ بروړو ویل پہ چا شی
ھر ھر ځائے دانے دانے پہ خوموړ وشم
پہ انګنړ کښے ئے چرګان ګرزی سلګونہ
پہ ګندہ روزګار بتر دی تر ھندوانو
خواجوزی ئے نور ځنۀ نۀ دی بقالان دی
کافر کۀ ئے پہ شکل شمائیل شی
پہ ھرلوری تل دل دَ زرکو ښکار دے
دَ نااھل دَ ټوپکو پرے غوغا شتہ
امّا ورکے کړے توپچیا نو ځنۀ بہ ولے
دَ یوۀ سودار ترسرو پایہ تیر دے
غر او سم ئے آبادان جریب جریب دے
تر چترالہ پہ بیخہ ورځے کاروان ځی
ډیر آفت لری لہ برفہ لہ بارانہ
مګر کار پہ بدرقہ دَ ملک سم شی
بلہ لار دا دَ چترال دہ بدخشان تہ
بلہ لار کۀ پہ مورنګ ځی لرَہ سرہ
نورے لارے پہ سرحد دَ خراسان دی
اما وارہ ګاډ خرونہ دی کۀ ډیر دی
ماکَ زرو پکښے راوغے کړے بیرئ
پہ حرمت او پہ عزت کښے ہم څۀ شک وو

دَ مغل دپاره ما تُورے وهلے
کۀ ورکزی کۀ بنګش اوکۀ یوسف ذی
پښتانۀ م په زړګونو دی وژلی
لا تراوسه دَ سرونو ئے انبار دے
په دوران دَ اورنګ زیب بادشاه په بند شوم
درے خلور کاله په بند دَ اورنګ زیب شوم
دَ مغلو زیست سره وزګار را باندِ اوروو
را په غاړه دَ مغل منصب په زور وو
ناګهانه په دا ملک فساد بنیاد شۀ
دَ فساد کۀ یو بخرے وو ما اور کړۀ
دریاخان م دَ خیبر ګوتے خلے دے
چه تښے م دَ ختک دَ وړاندِ تللے
دَ خپل وُچولی په کار دِ ما باور دے
دا آسمان چرخ فلک وو دا به شوله
یکبارهٔ ئے په لاس دنیوے ناپسند دے
دا همه واړه دِ ما ظاهر باطن دی
کۀ مغل سره دِ ما دَ زړۀ اخلاص دے
نن دَ واړو پښتنو په ننګ ولاړ یم
چه پښتون شوم په دا هسے سپینه ږیره
کۀ مغل وما ته سل واړی خبرے
دا پوهیږم کۀ مغل لره کۀ ورشم
مخامخ به یو خو ورځے شه نمانځۀ شم
په تعظیم چه ورته وُدرم مخ وړاندِ
په ورتلۀ به بیا خدمت را تخۀ غواړی
پُښتانه به را ته هم کاندِ شکنځلے

پښتنو به را ته کړے ډیرے شکنځلے
دِیو همه دِ ما دَ تیغ په تأسف دی
په سرونو به ئے خرۀ غوایهٔ وو لشلی
په اټک په پیښور کښے ئے مینار دے
بے تقصیره بے ګناهه دردمند شوم
خدائے چه خلاص کړم انتقامه شکیب شوم
په صحبت ئے دِ ما رنګ لکه تور سکور وو
تۀ به وائے چه منصب نۀ وو سورا اوروو
دِ ما هم دَ تلافی کار په یاد شۀ
اور م پورے دَ اورنګ بادشاه په کور کۀ
ایمل خان م دَ پګړئ شملے دے
دَ مغل را سره ملے وے شورے پلے
چه وما ته څۀ خایش څۀ ئے خبر دے
اورنګ زیب بادشاه ویرانه کړه پخپله
خود په خود ئے په ځان وکړلے دا شندے
پښتانۀ چه واړۀ خوش له ځانه نن دی
خدائے خبر دے کۀ پښتون له ما خلاص دے
دا چه هسے په هر در هر در ننګ ولاړ یم
نور م خدائے مه کړه مغل وایم په خیره
همګی واړۀ په ما دی خاورے خرے
تر اول به لا په چاره کښے بهتر شم
پسے شا به حرام خور ګیدی شکانځه شم
اُمرا ګان به دَ مغلو خوشی کاندِ
پښتانۀ چه سره وژنی دیو بڼرے ویاړی
چه ئے لاف په ناحق دَ ننګ وهلے

چه په زړه کړم دا یو خو خبرې یا دې
نورے واړه اندیښنے شی را نه بادے

ومغل ته به خبرې په وربوز کړم
سورم پر یوزه کۀ به سر ورته بیا کوز کړم

نۀ به خپل نۀ په پردی یم خو په ننګ یم
په دا ننګ کښے ځوئی پلار سره په جنګ یم

کۀ دَ ننګ پښتانۀ شته ساعت هم دا ئے
په دا ننګ کښے سرو مال وملک فدا دی

داهم شکر چه رِم وستړله تُوره
دِ ما تُوره په جهان شوه مشهوره

ورځ په ورځ فتح ونصرت تازه تازه شی
کال په کال دَ بنو مغلو جناز شی

ترکابله ترا ټک په سم په غرو نو
انبارے دی دَ مغلو دَ سرونو

اورنګ زیب بادشاه یحنیله رایت راوړے
کۀ ئے زر ووکۀ ئے زور دو ئے پرځا وړے

په غرزی له هندوستانه راولاړ شۀ
خَبَطه خاورے په سر به بیا رته لاړ شۀ

پینځۀ شپږ کالونه تیر دَ دے فتور دی
پښتانۀ په زړۀ خوشحال مغل رنځور دی

عاقبت وهیچا ته سرګند نۀ دے
ګوره څۀ شی کار دَ خدائے دَ سند نۀ دے

کۀ حیات په دا دُنیا یم بخت مدد کا
یوسف زئی دَ نفاق خوبونه رد کا

اُوۀ میاشتے یم په سوات کښے ګرځیدلے
همه واړه دی عظیم سوګند خورلی

ملکان به ئے دخپل سوګند ته ګوری
په لشکر به جملګی سره وُشوری

ومغل وته س نن کړم اټک پُوله
ملک به خلاص کړم دَ مغل له غاله غوله

دَ اټک دَ پیښور دَ کابل کوټ ځی
لوئے هلک کوټونه واړه په داجوټ ځی

په دا کار کۀ یوسفزئ بے وفا شی
الوداع ده چه دما به ورته شا شی

نورم ځائے په خوتره په لوحانی دے
کۀ خوک وی کۀ نۀ ناکام دَ کړلانی دے

خوږ وندے یم وا به نۀ ورم له ګهوډه
مړدکی به په واروار ورشی ترکوړه

کۀ پیوند دَ ایمل خان دَ دریاخان شته
دَ خوشحال ختک سیلۍ تر دا میان شته

ورځ په ورځ به کار بهتر دَ پښتانۀ وی
دَ نن کار به دَ مغلو صبا نۀ وی

کۀ نور واړه پښتانۀ دَ مغل آش خوری
چه دَ موږه ورته شاده واړه شرخوری

خدائے دِ نۀ کا کۀ له موږه یو کند وشی
بیا به هله په چاجوړ دَ مغل بو وُشی

# دا دَ خان کلان قصیدۀ ده په احوال دَ جنګ جدل چه دَ مغل له مخالفته وو

په دا کار کښې چه چا وو هلې تورې
په مهمندو باندې مې شرمېندې بورې

په شنواری آفریدی باندې رحمت شه
په صافیو په غلجیو برکت شه

چه مغل دَ جنګ دلی تا نړه نیوله
غلجئ په پوند تُوره وُوهله

دَ ختکو نه یو لک ختک داخل دی
نور ختک واړه تر اوسه لا باطل دی

په ورکزئ په بنګش باندې نفرین دے
له دیو واړو اولسونو مې زړۀ شین دے

یوسفزئ کۀ وهلې نۀ ده تُوره
په ها هُو شرکت لری بلائے دُوره

کۀ فرصت وی تر اوله تر آخره
دَ دے کار به درته نظم کړم خبره

بیل په بیل کتاب خوجزه سره ساز کړم
حال به شرح تر انجامه تر آغاز کړم

چه په دا فتور کښې شوی دی جنګونه
تر کا بله خرابی په فرسنګونه

اوس به حال دَ سوات دَ ملک درته بیان کړم
دَ دے خلق کاروبار به درعیان کړم

چه دَ خټک په کار کښې شی پیدا داچارے
دَ ناکس دَ کس هموارے ناهموارے

پښتانۀ واړه نادان دَ جهل کان دی
کۀ ئے واوړے یوسفزئ په بل شان دی

ما دَ سوات دَ عالم بنه ننداره وکړه
وهر هر فریق م بیته بنکاره اوکړه

خو په خولۀ کلمه لولی مُسلمان دی
په وعده په عهد قول بے ایمان دی

دَ لږ سُود دَ لږ بهبود دَ لږ مقصُود دی
په اندک له تا خوشنود هم ناخشنود دی

دَ خپل سُود دپاره کرم یاری کاندې
چه ئے سُود نۀ وی بے شرم یاری کاندې

خبردار کله په شرم په کرم دی
همګی عبد الزوجه عبد الدرهم دی

هم ئے کبر، هم ئے حکم، هم ئے نازوری
په هرځۀ کښې دَ عورتو ساز ناساز وری

یائے شیخ ملا په مکر په افسون خوری
یائے مال په خپل پردی مکرخاتون خوری

سیوائی بدی دَ لور په لونړه پلوری
په دا خو توکو کښې غرق دی مختوری

په کم اصل په بد اصل نظر نۀ کا
دَ تهنکو په لالچ خور او لور وادۀ کا

آشنائی درسره کا دَ زړۀ دپاسه
خپل ساتی طمع به کاندې ستا له لاسه

زر روپئ به دِ نقصان کا په روپئ
په تمیز کښې سراسر واړه مبهوت دی
که په کور کښې خزانې لری دَ زرو
دَ ادب په کار کښې هسې ناهموار دی
درست عالم ئې دَ کوار په شماره دی
کور په کور گوندی گوندی او بد نیتی
نصیحت به درته وایم له ما زده کړه
مخامخ ئې نورخه نشته بې اقراره
که باورئې یا په هو یا په کرم کړې
په درست کال ئې کوتې نه خیژی لکاره
یا دَ سوات خاورې کنده په کار دَ کښت دی
ویش قسمت چه دَ وفا دَ مروت وو
پول پیسه پکښې دَ واړو دین مذهب ده
چه یوه پیسه په خهٔ انواع دوه کیږی
دَ دُنیا په کاروبار کښې هسې غرق دی
یو عالم دې پرې صبا شي یا بیگاه شي
پکښې نهٔ چه یوسفزې په دا طریق دې
ومیلمه وته ست بربر راشه نشته
اصیلانٔ پکښې بنده غوندِ خرخیږی
که مظلوم چرې ملک وته داد خواه شي
که په خوله کلمه لولی مُسلمان دی
تولا که تبرا که دَ دین ننگ وی
که هندو کلمه ولولی مُرتد شي
هسې خلاص دی له ادبه له تمیزه
په هر کار کښې ناهموار نا فهمیده دی

آواره کا درسته غوا دَ غوا په پیټ
چه بڼلئ ورته گوهر شئ یا یا قوت دی
بیا خوارهٔ خوری په شرشمو په دَ نبرو
کشر مشر تور و سپین په یوه شمار دی
تر تاجکولا په زیست کښې آواره دی
بیهوده له خانه خوش بې برکتی
چه په تهٔ ئې باور کړه په هو ئې مهٔ کړه
پسې شا ئې نورخهٔ نشته بې انکاره
دَ سقه سرې په خان باندِ ستم کړې
بوتیمار دی دَ اوبو په شالی زاره
یا له خایه یوسفزئ بدسرشت دی
یوسف زئ په دا کښې بدقسمت وو
اندیشه ئې خو دَ سیم او دَ ذهب ده
هم هغه کا هیڅ په بله نهٔ پوهیږی
نهٔ ډیوبنځی لوئ هلک ئې تا به فرق دی
که په خوب ئې له بندگئ لاس کوتاه شي
چه په سوات کښې موندهٔ نشي کوم فریق دې
نهٔ دَ ژبې چار نهٔ شناخت مهر دَ زړهٔ شته
هیڅ خوک نهٔ وی چه په دا دئ ورسیږی
چه یوه روپئ بل ورکا روئ سیاه شي
په عمل کښې یوسفزی لکه ددان دی
په دا واړه کښې دَ هر یوه زړهٔ سنگ دی
خوک به نهٔ وائی چه دا په دین کښې بدشي
لکه داهِ عربی هندی کنیزه
نادیده دی نادیده دی نادیده دی

پکښې نشته میوه دارے باغې ونے
همګی د غرۀ پلوسے دی یا غنے

په وعده په عهد تول په بے وفا دی
بے ادبه بے تمیزه ناصفا دی

د سیپه کا نړی یاقوت ورته پوشان دی
سیب شلغم انار بهی ورته پوشان دی

نۀ مردانو غوندې مخې شهنکی کا
سپینے ږیرے سره ټول مسروکی کا

نۀ ئے قول نۀ ئے عهد نۀ ئے بول شته
خود دیو ریش فش د بنګو پول شته

نۀ پرے حکم وو نۀ چا څۀ ورکوینه
واړه ځان لره ګټي په ځان ئے خوږینه

آشنائی خواب وخیال غوندې لیدۀ شی
یا په مثل لکه باد چه وریدۀ شی

مبتلا په خو رنګونه پلیدی دی
مزیدی دی، غسیدی دی، ندیدی دی

چه نیکان پاکان ئے داوی دائے حال وی
له بدانو نه ئے وایه کوم مقال وی

د بابا د مال یوازے میراث خور دی
نۀ په ترور دی، نۀ په مور دی نۀ په خور دی

چه د رور ئے جنازه په کور کښے کښیوزی
کۀ رضا کۀ بے رضا په ورندار پر یوزی

له قاتله ځان غلط کا په قصاص کښے
د مقتول په ځائے بل ووژنی په خاص کښے

هرملا په دا صحبت ورسره مل وی
په ثنا د یوسف زئی وی کۀ غل وی

دا لاخۀ دی څنے نور قباحت ونه
کور په کور سره اخته په شدّ تونه

هومره ملک هومره اولس برکت هیڅ
کۀ ئے مال کۀ ئے دولت سخاوت هیڅ

کۀ پالیږ د ختکو خوک ودان کا
پخیدو ته ئے پرے نږدی آدم ئے وران کا

کومه ملک ئے هومره زړۀ هومره خواړۀ کا
چه خلور ورځې خلور سری ماړۀ کا

کۀ سړی ئے په صورت لکه آدم دی
په روژه کا ربه خوئی خصلت لره دیو سم دی

په غلط غلط خویونو مبتلا دی
په بدخوئی په بدخصلت د ځان بلا دی

نۀ سزا د بدکارانو پکښے کیږی
نۀ په خپل عقل پښنۀ سړی پوهیږی

چه خوک ووائی دا پښنۀ دی هغه پښنۀ دی
چه خوک ووائی دا بد دی کله بنۀ دی

کۀ په مکر خوک خپل ځان پکښے طبیب کا
خوک به نۀ وی چه پښکاره د دۀ تکذیب کا

کۀ په مکر خوک ملا شی یا درویش شی
خوک به نۀ وی چه خبر د دۀ په کیش شی

هر سړے ئے ومنصب ته اماده شی
هر مغل چه په سوات راشی شهزاده شی

کۀ د کلی د اولس د تومن بزرګ دے
ومیلمه وته ئے کتر مکرر چرګ دے

خبردار کله په ننگ افغانی دی
دَ هغو چه زړه دَ چړک په مرگ ریږدی
خکه هسے په هرجنگ باندِ برے کا
دانے واړه نامردی ده هیچکاره دی
آسوده به مال په ملک په زر دینار دی
نۀ ئے خوان نۀ دستارخوان نۀ چراغ نشته
چه په تیل په دستارخوان ئے خۀ خرخیږی

کشمیری او پکلی وال دی لغمانی دی
مصلحت دَ تورو سپینو ورته بلیږدی
بیا له ترسه جنگ ته نۀ ځی خان مزرے کا
خیراتی دَ جنگ په کار په څۀ شماره دی
دَ دُنیا روزگارنے نۀ زده بدروزگار دی
درسته شپه ئے دَ شو نتهیو بد دُخان شته
کۀ زردار وی هم ئے غوښے او بۀ کیږی

# فصل

ملکان خانان ئے کل واړه خران دی
چه عبدل عبدل بالۀ شی پکښے کټ دے
دَ جهان عیبونه واړه سره ټول کړه
دَ تالی کۀ درته وایم یو کالے دے
دَ کاچو نمسے نۀ خان دے نۀ ملک دے
ملکی ئے په کرم نۀ ده په تـوره
کارئے ځکه مسخره حبطه سپک دے
سود حاصل ئے یادَ بۀ یو یادَ خواست وی
دَ ملک ئے دَ دفتر پولے پټی وی
دَ ملک ئے کۀ درے نوره ونړه سکه وی
یوه بجره دَ ملک وی درے دَ نوره
چه نیکان پاکان ئے دادی حال ئے دادے

عالمان شیخان ئے واړه جاهلان دی
اوس بساند کوطه دَ کلی کهوی چت دے
هغه واړه دَ هُنره دَ غار پسول کړه
پک شحنک دے دَ اوکړے کۀ یا تالے دے
کالگرچن دروغژن غشے دَ هلک دے
په دا واړه توکه مور وه باندِ بوره
خوک چه زیات دے په تپه هغه ملک دے
په هرکلی په هرچم باندِ ئے زغابنت وی
نورے تورے خاورے توئے په کهتی وی
پدری پټے ئے درست ریشه ریشه وی
په کم زیات ئے سره جنگ وی په لښکورو
شیخ میاں نُور پکښے تر واړو لا والا دے

اول حال دَ عالمانو درته وایم
بیا له پسه میاں نُور درته وستایم

عالمان ئے همگی واړه سفیهه دی
چه دَ کنز دَ قدوری شی ځان مُلا کا
نۀ دَ کنز دَ دقیقو څۀ خبر شوی

نۀ عالم دی نۀ فاضل دی نۀ فقیهه دی
هرحلال حرام په ځان باندِ روا کا
نۀ به مخ دَ قدوری مبصر شوی

کتابونه په سر کیږ دی ځان مُلا کا
کښیني شرع پرېکوي په رشوتونو
وهر چا ته مسئلې دَ سخاوت کا
په مسجد راځه پینځه وخته آذان کا
دَ میراث مالونه خوره له ظالمانو
په دا هسې علم برند کښیني مُلا شي
نڼۍ کښل زده وي نه لوستل تل تکل کا
په ناروغ ئې خوشي لا زیاته تر روغ
لا رنځور غریب صحت نۀ وي موندلے
کۀ په ورکړه کښې ځه دَرنګ ځغزتعطیل وي
چه دما په خلقو قدر قیمت نشته
چه رنځور له رنځه خلاص شي راته شا کا
دا چه زر هسې نا ساز کا آغازے
وائي موږ ته چه نظر دَ ستر ګو سپک کا
په دا عام وګړي هسې هیبت کیږ دي
کۀ ترس له خدا یه نۀ کاندي غلول کا
چه مُلا دَ میا نور په حکم دروي
میاں نور کۀ دَ خنزیر غوښې روا کا
دَ میاں نور مفتیان دَ سوات په ملک کښې دوي
لږ ئې علم لږ ئې لوسته ډیر تقریر کا
اوس به وایم دَ میاں نور له حقیقته
راشه واوره په دا هومره قباحت
زۀ چه څون په اعتقاد کښې پاک سُني یم
رافضي ئې په دا هسې اعتقاد کړم
دَ صدیقؓ او دَ فاروقؓ په عشق کښې طاق یم

په هر کلي محلت ګرځي تګي غلا کا
ځان قاضي کا په غلط روایتونو
خپله خونه ډکوه بله غارت کا
چه زکوٰة سرسایه نۀ وي مسجد وراز کا
نوم په ځان بانده کیږدهٔ دَ عالمانو
وعالم ته میراث خور دَ انبیا شي
تعویذونه ورکوي په دروغ کښل کا
طشت تعویذ دُعا هیکل کښي په دروغ
چه اخون وي اخستو ته ورنیولے
په غوغا په شور وشر ئې قال وقیل وي
دَ رنځورم بې تعویذه صحت نشته
نور بیا دِ ما تعویذ دَ چا بلا کا
خپل مقصود مطلب حاصل کا په نا سازے
خپل ایمان به په دا هومره چار ورک کا
چه دَ دیو په رضا ځي هر څۀ به پریږدي
اس به پریږدي زین به باندِ په جاهل کا
هم هغه دَ سوات په ملک کښې سیري موږ
مُلایان به باندِ زر جوړه فتویٰ کا
الله داد او دوست محمد دواړه یاوه دي
چه میاں نور ئې لمسوي هغه تزویر کا
چه تر نورونۀ دے لا دے بدخصلته
چه په ما باندِ ئې جوړه کړهٔ تهمت
په کندن دَ رافضي دَ بیخ کني یم
په درست سوات ئې په تکفیر په رفض یاد کړم
دَ عثمان او دَ حیدر بنده قلماق یم

آل اولاد دَ پاک رسولؐ وارہ منمہ
امامان نبیان هم تول وارہ منمہ

دَ یزید پلید په کار باندِ لعنت دے
چه دَ آل سرہ ئے کړے شرارت دے

دَ بد ذات مکر به علم کښے لا بد شی
حَبَشی چه په مخ خال کیږدی لا بد شی

# فصل

یو کتاب دے درویزہ سرہ جوړ کړے
دَ سوات خلق ئے کل عالم موړ کړے

نامعقول مجهول بیان پکښے بے ځایه
پکښے بد دَ سیّد وایه یزید ستایه

دا احوال به په بل فصل کښے آشکار شی
په مطلب نظر لرم چه در آشکار شی

ناګهانه چه دِ ما په نظر کښیوت
په دا حرف په داوئیل مِ نظر پریوت

چه لعنت به په یزید باندِ وائینه
چه په رفض کښے غرّہ بے حدہ وینه

دَ حسینؓ په مرګ یزید کلہ راضی وو
بلکه دے دَ دُہ دَخون متقاضی وو

امر کان ئے دَ حسینؓ په مرګ قصاص کړل
زہ حیران شوم دَ یزید په هسے خاص کړل

بیائے دا وو پکښے کښلی دہ له دینه
چه په آل به رافضی درود وائینه

بنهٔ جاهل مُلا چه دا کتاب وو کښلے
ما په دا خبرو دے وو ډیر شکنځلے

مخامخ ئے دا خبرے کړے نمائے
چه تهٔ هم سکه رافضی ئے چه دا دد ئے

رد بدل دَ دے خبرے ډیر مذکور شہ
دا مذکور په وارہ سوات کښے مشهور شہ

هغه نیم مُلا روان شهٔ د میانور ته
خس خاشاک ئے مرہ دلوستل تنور ته

سرے لمبے دَ میان نور په کور شوے بیلے
نهٔ وو خوک چه ئے اوبہ کړے باندِ تلے

ملایان شیخان ئے وارہ سرہ تول کړہ
ګهے ئے وارہ په دا ډیر په دا کج کول کړہ

میاں نور وے چه اخون دَ موږ امام دے
درست مخزن پرے نازل شوے الهام دے

په مخزن باندِ چه بد وائی کافر دے
دَ کافر قتل په شرع معتبر دے

چا به دا وے چه لعنت به په یزید وائی
رافضی دے دوازده امام هم ستائی

چا به دا وے نهٔ به توره دَ کشتن دے
رافضی په سرو لمبو کښے دَ سوختنی دے

چا به دا وے چه دَ ملکه دَ ویستو دے
چا به دا وے چه توبه ئے دَ ویشتو دے

یوه لویه هنګامه شوله برپا یه
چه ئې زړهٔ هسے خبرے په ما وا یه

ملکان دَ یوسفزیو لکه خرونه
په ګندګی سره لړلی خولے سرونه

نهٔ ئې علم نهٔ دانش نهٔ فهم پوهه
خو دوستی دِ درویزه باندِ انبوهه

په وئیل دَ درویزه عقیده خومره
لکه عینِ په آیت په حدیث هومره

درویزه چه بیان کړے خپل کتاب دے
نوم ئې مخزن الاسرار کړے جناب دے

هر بیان ئې ناموزون مجهول بے رنګه
خالی پا تو له دانشه له فرهنګه

کهٔ یوه مصرعه په شل بله په سل ده
نامربوطه ناموزونه په وئیل ده

قافیه ئې لام و دال سره وهلی
په ردیف کښے ئې نون واو سره پیټلی

قصیده دَ بوصری ترجمه کړی
عربی ئې تر پښتو مضحک راوړی

هر هر بیت دَ قصیدې چه دُر مرجان دی
په پښتو کښے تر اوریښو لا ارزان دی

معما دَ آزری ترجمه کړے ئې
تصوّف ئې وعالم وته نومړے ئې

ترجمه دَ شاه ناصر یو څو اشکاله
وعالم ته جوړه کړی له مقاله

مسئلے ئې نظم کړی په پښتو دی
در ته څهٔ وایم چه څهٔ دی دَ بستر دی

په داسے شان کتاب ئې مهابات دے
دَ جامی تر هفت اورنګ ور ته نادیات دے

ګنده پر دَ ګنده خور سره جوړیږی
خاص په خاص او عام په عام ویل خوښیږی

په حیرت به واړه ګوتے وچیچلے
دَ اخون په مخزن چا ګوتے کښیښولے

هر سړے چه په مخزن باندِ څهٔ وائی
په دُنیا کښے تر ساعته به خوک پائی

ملکان شیخان ئې واړه سره تول کړه
په خپل سحر په افسون ئې کچ او کول کړ

یو میان خان وو بل مانکئ وو بل سنګر وو
یو سنګر څهٔ خو په پوهه کښے بهتر وو

دَ لنګر خټک په کلی کښے زهٔ ناست وُم
فراغت دَ توت تر سیوره لاندِ ناست وُم

دا سکان رالره راغلهٔ زهٔ ئې ویش کړم
په لیدهٔ او په راتلهٔ ئې په تشویش کړم

په خندا ئې راته ووے دا خبره
اوس تر و پاسه خوشحال خانه زور وره

په درست سوات دِ غوغا ګډه کړه تهٔ خوب کړے
نهٔ دِ غم نهٔ دِ پروا نهٔ طلاطوب کړے

میان نور درلره راغے ناست په رود دے
خبرو لو لره راغلو دِ موږ دود دے

چه دعوی دَچا په مینځ کښې شی بنیاد — ملکان ئے سره زغوری له فساده

یا ورځه و میاں نور وته جواب کړه — یا قبول دَ درویزه مخزن کتاب کړه

دَ درست سوات دَ ملا یا نو دا رضا ده — چه قبول دِ کا دا کار فائده هم داده

ما وے دین دَ محمدؐ دے ما منلے — بے قرآنه بل کتاب دے چا منلے

درویزه نۀ مجتهد دے نۀ امام دے — دے هم خام تا سے هم خام مخزن هم خام دے

مُلایان دَ سوات همه زکوٰة خوارۀ دی — په دانش په دین په علم خبر نۀ دی

وے ئے دا خواب دَ غشی دَ ناوک دے — سکه ترو پاسه میاں نور هم ورته ړک دے

ملا م وته لۀ زۀ هم ورسره وان شوم — یک تنها مواجهه په ډیر خصمان شوم

چه غریبی ورته وغریږه له سکه — که خلاصے ورځنے نۀ وی باندِ لکه

مخامخ وبله کښیناستو په قهر — په خبرو مے شکاره کړو سره زهر

ملکان شیخان علماں واړه سرۀ شول — دَ خپل لوری ننګ ئے داخست مسخره شول

چه به ما ورته ویل کول دَ مشکو — ابلهانو به ویل کول له پشکو

نۀ ئے علم نۀ ئے عقل نۀ ئے پوهه — فضیلت ورځنے لرے په ډیر کروهه

خوک حکم منصف حاضر نۀ وو په میان کښے — چه په حق په باطل پوهه شوے په بیان کښے

ملکان په ننګ دَ خپل لوری ولاړ وو — عالمان شیخان په نور عضو ولاړ وو

خدائے دَ خپلو صادقانو سره مل وی — تر هر چا دَ صادقانو کار افضل وی

شیخ میاں نور په خپله کښیوت په تقریر کښے — ما و دهٔ دو چوټ ورکړے په تحریر کښے

کتابت ئے لا پخوا وو راته کښلے — مشتمل په جهالت وو ناپسندلے

نۀ ئے خط نۀ ئے املا نۀ ئے انشا وه — فضولی ئے خپله کښلی په ملا وه

دَ سلوک دَ تصوف واړه لا فونه — په املا دَ کاف به ځانے واړه قافونه

همګی ثنا صفت له خپله ځانه — طرهات ئے په خو رنګه په خوشانه

ما خواب دَ کتابت وو ورته کښلے — په هغه خواب دے درست وو پوهیدلے

ما وے ته لکه ګیدړ په خم کښے شین ئے — خو هم بیا هغه ګیدړ ئے که رنګین ئے

شاپرک غوندِ په شپه په هوا دروے — چه صبا په تا راځی هزیمت مومے

په خطو نو کښے چه ځان وماته ستائے — ما هم پیژنے چه څوک یم داخهٔ وائے

خپل صفت دِ یوسفزیو ته وایه | زۀ دِ پېژنم چه څنګه ځان مۀ ستایه
چه دا هسې احول چشم بدخصال ئے | دَ یزید دَ دربان یا دَ دجال ئے
کۀ څۀ شرم څۀ حیا دَ کیدی خر وے | بس وو دا هومره ویل کۀ ئے جوهر وے
دَ عروض دَ علم فن م دوهم کُبنلی | په مخزن دَ مغلظ قسم وو کبنلی
دَ دانش وئیل م دۀ ته لکه باد وو | له هوائے وارۀ خپل وئیل په یاد وو
دائے وارۀ تر عالم پورې شهرت کړه | دا نسته ئے هومره مکر خدیعت کړۀ
چه دا هومرۀ دعوی نۀ کړمه پرمایه | دَ مخزن به دا خبره شی بے ځایه
چه خبره دَ مخزن بے ځا یه کېږی | نور دما قدر قیمت په ملک کمېږی
درست دِ نفس په هوا غرق وو سر تر پایه | کنه ولے به دعوی کړه ده بے ځایه
چه انصاف ئے له ازله په نصیب وی | په دعوے کښې راضی کله په تکذیب وی
کار دَ خصم دَ خپل خپسر دَ حق کوئی ته | دوارۀ یودی جوړوی دَ حق سوئی ته
ناحقړن په خپل غرض باندِ ولاړ وی | حق انصاف حساب ئے وارۀ له زړۀ ولاړ دی
مګر خدائے ئے په سر سازه کړه شپیره | دَ کاذب له خولے نه وُځی وینا غویږه
الغرض چه ئے خبره کړه آغازه | دیرئے دوئیل دَ خپلے نیا له نمانزه
بیائے وُستایۀ نیکۀ په خوخور رنګه | مستمع شه درست عالم ورته تر درنګه
خدائے ئے وتړله ژبه له افسونه | دا وینا دَ دۀ دَ ژبے شوه بیرونه
مُوژه کله وایو دا چه یزید شۀ دے | په مخزن کښې دروېزه ستایلے نۀ دے
بل دِ موژ مخزن نۀ شعر نۀ بیان دے | بیان شوے نظم نۀ دے په بل شان دے
کۀ ئے کوړے درست په شان دَ صحیفو دے | چه راتلے به له آسمانه له هغو دے
یو پښتو کلام موزون دے بیان شوے | په معنی کښې دَ کړکون دے بیان شوے
هغه ځائے چه دَ رښتیا مهتاب ښکارۀ شی | دَ کتا نو تارو پود پاره پاره شی
دَ رښتیاؤ کرامت لکه باران دے | دَ دروغو سحر دوړے دَ بیابان دے
چه دَ دۀ دَ خولے نه دا خبرے وشوے | تۀ به والئے چه په هرجا توئے او به شوے
پوهیدم دِما ستاره وه پرے غالبه | له هیبته ئے دا دُوته له ژبه
کۀ ئے بیا کړۀ دَ افسون شیوه آغازه | سودئے نۀ وو دِما ژبه شوه پرسازه

ما وې بس د ما مقصود مراد هم دا دے
د یزید ستائینه کوري په مخزن کښې
زهٔ هم دا خبره وایم خلقه خامه
چه هر څوک په دا خبره خبردار شو
چه ترمیان د مومنانو شدت بد دے
تهٔ په ننګ د پښتانهٔ راغلے ترسوا ته
په دعوی به درست عالم سره ګډوړ شي
دِ ماهم په دا مطلب باندِ نظر وو
کنه دا پردے به ما کړے واړه څیرے
چه خبر ئے شوم له نقشه له ترازه
ومغلو وته کښل چه شیخ میاں نور کړهٔ
وے ئے نور م له مغلو نه توبه ده
د دُنیا خبره نهٔ وه کار د دین وو
دِ ما روغه په رښتیا، د دهٔ دروغه
فضیحت رسوا تر کوره پورے ولاړ شهٔ
چه م ولید هٔ یو هسے کږ زبان وو
په اَعوذُ م د خدائے په حکم خوار کړهٔ
ما وے دے به د مخزن غلطي دور کا
بیا په څور نګے تعظیم د مخزن کا ندِ
مدعی سره د خدائے دپاره بد یم
که په دا طور او ر پورے په درست سوات شي
بیخ بنیا دئے په جهان کښے د کشود ے
چه دا هسے عالمان هسے شیخان شته
د دُنیا حلال حرام و بله وُنغاړي
په دروغ په بے شرمۍ عمر تیر کړي

مدعی په دا خبر وخود آګاه دے
هم مخزن نهٔ دے د شعر په هر فن کښے
خود ئے وویل خبره شوه تمامه
چه کینه وُځي د روغے طلبګار شوو
بل ستا نور غرض ترد ا دعوی ارشد دے
غوږ کانړهٔ کړه د عالم په کم و زیاته
د لښکر په ټولول به فساد ګډ شي
بل مقصود م و نظر ته مختصر وو
یو ویشته م به ئے پرے نشهٔ په ژیرے
مائے هم په ژیره ووژل څو پیازه
ما وے نور دا هسے مئے کړه دهٔ منظور کړهٔ
هرچه ننګ د پښتانهٔ چار م هغه ده
دما زړهٔ د مؤمنانو سره سپین وو
د میاں نور سره م وشوه هسے روغه
د وګړی اعتقاد ځنې ولاړ شهٔ
چه په مکر په تزویر لکه شیطان وو
د شیطان ټولے م واړه تار په تار کړهٔ
دے لا ناست دے د مخزن سره سرور کا
غلطي ئے ترے ونهٔ کښه لاندِ باندِ
آلوده نهٔ په غرض او نهٔ په حد یم
مګر هاله دِ ما سیله مکافات شي
په جهان کښے پا تو کله د پریشو دے
په جهان کښے بدان ډېر دی لږ نیکان شته
هغه واړه مدعی دي چه خدائے غواړي
په روش د ګدائۍ مال ډیر کړي

دَ هغو به څهٔ طاعت څهٔ عبادت وی — هغه کرم به ئے دَ علم برکت وی!
مونځ روژه چه دَ ریا دپاره کیږی — له آسمانه به لعنت باندِ وریږی
چه دَ خلق قبولیت ئے په غرض وی — دَ هغهٔ طاعت طاعت نهٔ وی مرض وی
چه په صدق په اخلاص سره اداشی — په یوهٔ سجود جنت باندِ روا شی
کهٔ هزار ساله سجود کړے بے اخلاصه — په داهسے نما نځهٔ نهٔ وی غاړه خلاصه
شیخ میان نُور چه خجل ورغے ترکوره — په داخپل ویل پښیمان شهٔ راشه کوره
هرملک سره ځواب دَ دے مکاردے — په کمی په قصد دما دَ کاروبار دے
دَ لښکرو په وتلو اولس ساز شی — بیا دَ دهٔ له فعله بل فعل آغاز شی
دا ناقص چه بیش همیش وهی په کار کښے — کوره څهٔ شی دَ لښکر په کاروبار کښے
یوسف زئی خودَ ننګ وناموس نهٔ دی — خوک چه نهٔ کا دَ هغه سری په خولهٔ دی

کهٔ په خولهٔ دَ میانور نهٔ کا لښکرے
سکه په سرئے دَ لښکرو خا ورے سرے

## فصل

هغه وخت چه پیر روښاں فساد بنیاد کړ — پښتنو ورسره تهینګ کار دَ فساد کړ
پُښتانهٔ په هغه دور پیر پرست وو — خوک مرید دَ شاه عیسیٰ خوک دَ سرمست وُ
دَ روښان بخره درک زی افریدی شول — هغه خوښ په رهزنی په عنیدی شول
دَ قاسم په بخره واړه غوریه خیل وو — دَ نګرهیروته دَ بنو شیتک ایل وو
ختک واړه بوبکری پیر منصوری وو — له بدعته له فساده په دوری وو
په مذهب کښے درست ختک سنی مذهب دی — امّا پیر ورته له جهله لکه رب دے
کهٔ په دا سبب کافری کوندِ وینه — کنه واړه په مذهب کښے سُنی دینه
یوسف زئی همه واړه عیسائی وو — ملکانو سره کړه په سوائی وو
تاسے شاه عیسیٰ ئے سر په جنګ وو — روښانے پیر منصورے سره دا رنګ وو
درویزه له یوهٔ لوریه راپیدا شهٔ — په لږ علم په دا ملک کښے لوئے ملا شهٔ
چه ئے حال دَ دے عالم مشاهده کړ — خپل کتاب ئے په کاغذ مسوده کړ

دَ روښان خیرالبیان ئے وو لیدلے — هغه هم مجهول بیان وو ناپسند ے

دهٔ چه خوشے میدان بیاموند سخنګوئے شهٔ — په وئیل کښے ئے چه زړهٔ وو هیسے تونے شهٔ

هغه وخت په پښتنو کښے علم نهٔ وو — درویزه تر مجتهد ورته لابنهٔ وو

په مذهب سُنی مذهب وو خارجی شهٔ — دَ یزید په ستائنش کښے مارجی شهٔ

ملنګانو به یزید ته کړے شکنځلے — درویزه به دَ یزید پوزے بللے

خودَ نفس و دَ هوا په کارئے مخ شهٔ — ملنګان چه ورکیدل په دهٔ به سخ شهٔ

ملنګان ئے واړه ویستل له سواته — دم ئے اوواههٔ له کشف وکراماته

په دا فن ئے دَ درست سوات عالم مطیع کړ — وعالم وته ئے خپل کتاب بدیع کړ

هیڅ ئے نهٔ کا تهٔ دِ بدو وفساد ته — نقش ئے کښینا وهٔ په مکرخپل اولاد ته

درویزه دَ درویزے اوکړه خوړلی — په دا مکرئے حلوا سره لړلی

چه توره ونیځه هم نهٔ وه دَ وړاندِ — قچے قچے یوسف زی شو تر لاندِ

یوسف زی به دا کار کښے بدکیشی کا — چه دَ هر یو کم ذات سره خویشی کا

په هغهٔ آوان آکبر بادشاه بادشاه وو — واړه خلق دَ بادشاه سره ګمراه وو

شاه عیسٰی ته به ئے وړے دَ زروبدرے — وبلوټ لره ورتلے دَ خلق صدرے

مریدی په کلاه په شجره ده — کهٔ پیری مریدی دا ده مسخره ده

درویشان مرید به وران شه په تعین کښے — سل فتنے به ئے پیدا کړے په دین کښے

درویزه دَ ناکشیسینو دین بربائے کړو — خارجی ئے یوسف زئ ځائے په ځائے کړو

عام عالم قرآن حدیث په سترګو وینی — لا په نورو کوخوګرځی خاورے پیغی

عام وګړے په معنیٰ لګه دواب دے — په دوّابو کښے دَ ګډو په حساب دے

چه یو ه ګړه سوانه شی دَ وړاندِ — هغه نورے ګړے تلهٔ ورپسے کا سندِ

حقیقت دَ هر ابله دَ نادان نهٔ دے — چه دَ خدائے باندِ پیرزوئے دَ هغهٔ دے

خوک په پیر او په مرشد خهٔ لره ویاړی — خپل مراد دِ همګی له علمه غواړی

شکر دا چه په دا وقت عالمان پیردی — مدعی شیخان کهٔ هم ترشماره تیر دی

خدائے دِ ما له مدعی شیخانو ژغوری — تل دَ ما دی عالمان دَ سترګو توری

هر عالم چه ربانی دے ترے خاربږم — نفسانی وته غلیم غوندِ بښکاریږم

چه په علم عمل جوړ دے رباني دے
بے عمله علم واړه شیطاني دے

نیم ملا بلا دَ دین او دَ ایمان دے
نیم طبیب خطر دَ تن دے هم دَ ځان دے

مدعي ملا که ډیر علم حاصل کا
دے چه علم په دُنیا پلوري باطل کا

چه په زړه کښے ئے ذره دَ دُنیا عشق دے
دَ درویش درویشي نشته واړه فسق دے

یوسف زئ ساړه کړه له سیّده
ملنګان ئے اوشړل واړه له ضده

# تَمَّتْ بِالْخَیْرِ

موږ دا نشو وئیلے چه دا مجموعه په هر لحاظ مکمله ده او په دے کښے دَ خوشحال خان بابا ټول منظوم کلام راټول شوے دے. ولے موجوده وخت کښے دَ دے ضخامت دومره زیات شوے دے چه دَ نور سِوا کولو ګنجائش پکښے نشته.
په دے وجه موږ دا جلد بند وو او خپل کوشش دَ لټون جاري ساتو. هر کله چه څه مستند مواد مو په لاس راغلو نو هغه به دَ دویم جلد په شکل کښے موږ دَ ناظرینو په خدمت کښے پیش کړو

(ناشرین)

یونیورسټي بک ایجنسي خیبر بازار پیښور

کتابت :- غلام لطیف "چپرهارے" کال ۱۹۹۹ / ۳ فروري